# مظاهر حق جدید

د مشکوه المصابیح پښتو شرحه

لسم جلد

**تالیف**

علامه نواب محمدقطب الدین خان دهلوي رحمة الله علیه

**تزئین اوترتیب**

مولاناعبدالله جاوید غازي پوري (فاضل دارالعلوم دیوبند)

**ځانګړتیاوي**

١: حدیثونه د اعراب سره.

٢: تحت لفظي ترجمه.

٣: د حدیثونو تخریج.

٤: د لغاتو حل .

**مباحث**

کتاب الفضائل والشمائل

کتاب المناقب

اسماء الرجال

صداقت کتبخانه

بسم الله الرحمن الرحيم

# مظاهر حق

(د مشکٰوة المصابیح پښتو شرحه)


**تالیف:** نواب محمدقطب الدین خان دهلوي رحمه الله

**ترتیب او تزئین:** مولاناعبدالله جاوید غازي پوري (فاضل دیوبند)

**خپرندوی:** صداقت خپرندویه ټولنه

**پښتو ژباړه:** محمد رسول سعید

**تصحیح کوونکي:** بسم الله رحیمي، مولوي عبدالکریم کریمي، مولوي عبدالجبار

**لومړی چاپ:** ۱۳۹۲ش - ۲۰۱٤ ع.

**پنځم چاپ :** ۱۳۹۹ل. / ۲۰۲۰م.

**د خپرونو لړ:** ۱۸۳

**چاپ شمېر:** ۱۰۰۰ ټوکه

**د تر لاسه کولو ځایونه:**

**صداقت خپرندویه ټولنه**-کندهار

اوله ناحیه، نوی سړک- کریم اعتماد مارکېټ

Sadaqat.books@gmail.com / ۰۷۰۰۳۰۵۴۰۷

**کندهار:** صداقت خپرندویه ټولنه- ارگ بازار- قلم او کتاب مارکېټ ۰۷۰۰۳۰۹۲۴۴ .

**کابل:** صداقت خپرندویه ټولنه،کوټه سنگي مینه یار مارکېټ او **اکسوس کتاب پلورنځی. هلمند** :تاج منور خپرندویه ټولنه. **هرات:** صداقت کتاب پلورنځی- کوچه گدام. **جلال آباد:** مومند خپرندویه ټولنه.ننگرهار مارکېټ. **غزني:** نعماني کتاب پلورنځی. **پکتیکا:** مجاهد کتاب پلورنځی. **خوست:** اسلامي کتاب پلورنځی.

## د مظاهر حق لسم جلد فهرست

| مضمون | صفحه |
|---|---|

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

# بَابُ الْكَرَامَاتِ

## (د کرامت بیان)

**د کرامت تعریف**: کرامات د کرامت جمع ده چي د اکرم او تکریم اسم دی، د دغه لفظ لغوي معنی د عزتمند کېدو او سخي کېدو ده، مګر په اصطلاحي توګه کرامت هغه خارق العادة (د عادت خلاف) کار ته وايي چي د نېک مؤمن په لاس څرګندېږي، مګر هغه نه د نبوت په دعوه وي او نه د هغه مقصد د کفارو معارضه او مقابله وي ځکه چي کوم خارق العادة کار د نبوت سره وي او د کفارو د معارضې او مقابلې لپاره وي نو هغه ته معجزه وايي، اهل سنت د کرامت اقرار کوونکي او ویونکي دي، او معتزله له دې څخه انکار کوي.

**د کرامت اثبات**: اهل حق (یعني ټول اهل سنت والجماعت) پر دې خبره متفق دي چي د ولي څخه د کرامت څرګندېدل يو حقيقي شی دی، ولي الله هغه نېک بنده ته وايي چي د الله ﷻ د ذات او صفاتو د توان سره سم بشري عرفان ولري، پر طاعت (یعني نېکۍ کولو) او منهيات (یعني د بدۍ پرېښودو) باندي قائم او دائم وي، په دنيوي خوندونو او خواهشاتو کي بوخت نه وي، د سنت په پیروۍ او تقوا کي کامل وي، د اولياء د کرامتونو د ظهور او وقوع اثبات عقلا ناممکن نه دی چي د الله ﷻ په نزد هيڅ شی مشکل او بعيد الزمان نه دی، د هغه ذات چي څرنګه د خپلو پیغمبرانو په ذریعه د معجزو ظهور کولای سي همدارنګه د خپل پیغمبر د رېښتونو پیروانو او نیکو مؤمنانو په لاس د کرامت ظهور هم کولای سي.

او کوم چي د نقلا اثبات تعلق دی نو په قرآن کریم او حدیثو دواړو کي د کرامت ثبوت په ډاګه مذکور دی، بیا صحابه کرام او له هغوی وروسته اولياء الله څخه د صادرېدونکو کرامتونو روايتونه چي په کوم تسلسل سره منقول دي هغه د تواتر حد ته رسېدلي دي، او په قدر مشترک کي خو د تواتر معنی د دې درجې ده که په پاک ذهن او خلاص زړه سره وکتل سي نو په دې اړه هیڅ ته د شک او شبهې امکان نسي پاته کېدای، په خاصه توګه د ځينو اکابرو او مشائخو طریقت لکه د حضرت سیدنا عبدالقادر جیلاني رحمه الله کرامتونه نه یوازي دا چي دومره زیات دی چي د هغو شمېر ناممکن دی بلکه هغوی دومره په تواتر سره منقول دي چي د هغوی څخه انکار یوازي د عقل دښمن کولای سي، د هغه د زمانې د ځينو مشائخو دا قول

منقول دی چي د سیدنا عبدالقادر جیلاني رحمة الله علیه کرامتونه د مرواریډ په ډول وه چي پرله پسې به صادرېدل ، کله به خپله د هغه په ذات کي څرګندېدل او کله به د هغه د ذات څخه څرګندېدل.

**د کرامت صدور اختیاري هم وي او غیر اختیاري هم وي:**

ځینو حضراتو دا لیکلي دي چي د ولي څخه هیڅ کرامت د هغه په قصد او اختیار سره نه صادرېږي بلکه بېله قصده او اختیاره صادرېږي، همدارنګه د ځینو حضراتو قول دادی چي کرامت د معجزې د جنس څخه دی یعني کوم شیان چي د معجزې په توګه څرګند سوي دي لکه د لږ خوراک زیاتوب، د ګوتو څخه داوبو بهېدل او داسي نور، هغه د کرامت په توګه نه څرګندېږي مګر په دې اړه تحقیقي قول دادی چي کرامت په قصد او اختیار سره هم صادرېږي او بېله قصده او اختیاره هم، همدارنګه د کرامت ظهور د هغه شیانو په صورت کي هم کیدای سي چي د معجزې په توګه څرګند سوي دي او د دې څخه پرته په نورو صورتو کي هم کیدای سي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د دوو صحابه کرامو کرامت

﴿۵۶۹۲﴾: عَنْ أَنَسٍ أَنَّ أُسَيْدَ بْنَ حُضَيْرٍ وَعَبَّادَ بْنَ بَشْرٍ تَحَدَّثَا عِنْدَ النَّبِيِّ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چي اسید بن حضیر او عباد بن بشر د شپې تر ډېره وخته

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَاجَةٍ لَّهُمَا حَتَّى ذَهَبَ مِنَ اللَّيْلِ سَاعَةٌ فِي لَيْلَةٍ شَدِيْدَةِ

پوري د خپل یو حاجت په اړه د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره خبري کولې، تر هغو چي شپه ډېره

الظُّلْمَةِ ثُمَّ خَرَجَا مِنْ عِنْدِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْقَلِبَانِ وَبِيَدِ

تاریکه سوه بیا دواړه خپلو خپلو کورونو ته روان سول د دواړو په لاسونو کي کوچنۍ

كُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا عُصَيَّةٌ فَأَضَاءَتْ عَصَى أَحَدِهِمَا لَهُمَا حَتَّى مَشَيَا فِي ضَوْئِهَا

لکړي وې په هغه دواړو کي د یوه لکړه روښانه سوه او بیا دواړو ته لاره صفا معلومېدل،

حَتَّى إِذَا افْتَرَقَتْ بِهِمَا الطَّرِيْقُ أَضَاءَتْ لِلْآخَرِ عَصَاهُ فَمَشَى كُلُّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا فِي ضَوْءِ عَصَاهُ حَتَّى بَلَغَ أَهْلَهُ. رواه البخاري.

بيا چي د دواړو لار جلا سوه نو د دويم لکړي هم رڼا شروع کړه او هر يو د خپلي لکړي په رڼا کي خپل خپل کور ته ورسيدی . بخاري.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\ ۱۲۴، رقم: ۳۸۰۵.

**تشريح** د بخاري په يو بل روايت کي دا الفاظ دي: هغه دواړه صحابه کرام په سخته تياره شپه کي د رسول الله ﷺ څخه ولاړ سول او دباندي ووتل، نو هغه داسي ښېښه سول لکه د هغوی دواړو سره چي دوه څراغونه وي چي د هغوی د لاري په ځلانده کولو سره ورسره روان وه، بيا کله چي هغه صحابه کرام خپل ځای ته ورسېدل او د يو بل څخه بېل سول نو يو يو څراغ له هر يوه سره روان سو تر دې چي هغه دواړه خپلو خپلو کورو ته ورسېدل .

## څه چي يې وويل هغه وسول

﴿۵۶۹۳﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ لَمَّا حَضَرَ أُحُدٌ دَعَانِي أَبِي مِنَ اللَّيْلِ فَقَالَ مَا أُرَانِي

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي کله د احد غزا پېښه سول نو زما پلار يوه شپه زه را وغوښتلم او وه يې ويل : زما خيال دی چي

إِلَّا مَقْتُولًا فِي أَوَّلِ مَنْ يُقْتَلُ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَإِنِّي لَا

د رسول الله ﷺ په صحابه کرامو کي تر ټولو لومړنی مقتول (شهيد) زه يم ،

أَتْرُكُ بَعْدِي أَعَزَّ عَلَيَّ مِنْكَ غَيْرَ نَفْسِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَإِنَّ

د رسول الله ﷺ څخه وروسته ته ما ته تر هر چا ګران يې

عَلَيَّ دَيْنًا فَاقْضِ وَاسْتَوْصِ بِأَخَوَاتِكَ خَيْرًا فَأَصْبَحْنَا فَكَانَ أَوَّلَ قَتِيلٍ وَدَفَنْتُهُ مَعَ آخَرَ فِي قَبْرٍ. رواه البخاري.

پر ما چي کوم پور دی هغه ادا کړه او د خپلو خويندو سره نيک چلن کوه سبا چي جنګ شروع سو نو تر ټولو مخکي زما پلار شهيد سو او ما هغه د يو بل سړي سره په قبر کي ښخ کړ . بخاري.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\ ۲۱۴، رقم: ۱۳۵۱.

**تشريح** د أحد د غزا د شهيدانو د ښخولو په اړه رسول الله ﷺ ته حکم سوی وو چي دوه دوه په يوه قبر کي ښخ کړل سي، نو حضرت جابر رضي الله عنه خپل پلار د يو بل شهيد سره په يوه قبر کي ښخ کړ،

او هغه دوهم شهید حضرت عمرو بن الجموع رضی اللہ عنہ وو، چي د حضرت جابر رضی اللہ عنہ د پلار ملګری هم وو او د هغه اخښی (د خور خاوند) هم وو، ددغه حدیث څخه معلومه سول چي د ضرورت په وخت کي په یوه قبر کي دوه کسان ښخول جائز دي.

## په خوراک کي زیاتوب

﴿۵۶۹۴﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ قَالَ انَّ أَصْحَابَ الصُّفَّةِ كَانُوا أُنَاسًا

د حضرت عبدالرحمن بن ابوبکر رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي اصحاب صفه

فُقَرَاءَ وَأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ كَانَ عِنْدَهُ طَعَامُ اثْنَيْنِ فَلْيَذْهَبْ

مفلس او فقیر خلک وه، یوه ورځ رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته وفرمایل: د کوم چا سره چي د دوو کسانو خوراک وي هغه دي

بِثَالِثٍ ومن كان عنده طعام اربعة فليذهب بِخَامس أَوْ سَادِسٌ وَأَنَّ أَبَا بَكْرٍ

دریم سړی د ځان سره بوځي او د چا سره چي د څلورو کسانو خوراک وي هغه دي پنځم بوځي او که تر دې زیات وي شپږم دي بوځي، نو ابوبکر رضی اللہ عنہ

جَاءَ بِثَلَاثَةٍ فَانْطَلَقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَشَرَةٍ وَإِنَّ أَبَا بَكْرٍ تَعَشَّى عِنْدَ

درې کسان بوتلل او رسول الله ﷺ لس کسان بوتلل، په دغه شپه ابوبکر رضی اللہ عنہ

النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ لَبِثَ حتى صُلِّيَتْ الْعِشَاءُ ثُمَّ رَجَعَ فَلَبِثَ حَتَّى

د رسول الله ﷺ سره ډوډۍ وخوړل او د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر وو تر څو چي د ماختستن لمونځ وسو بیا د لمانځه څخه وروسته رسول الله ﷺ د هغوی کور ته راغلی

تَعَشَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَاءَ بَعْدَ مَا مَضَى مِنَ اللَّيْلِ مَا شَاءَ اللّٰهُ قَالَتْ

او تر څو پوري چي رسول الله ﷺ د شپې ډوډۍ نه خوړل تر هغو پوري حاضر وو بیا څه شپه تیریدو څخه وروسته خپل کور ته راغلی د هغه (یعني ابوبکر رضی اللہ عنہ) بي بي پوښتنه وکړه

لَهُ امْرَأَتُهُ وَمَا حَبَسَكَ عَنْ أَضْيَافِكَ او قَالَ أَوَمَا عَشَّيْتِيهِمْ قَالَتْ أَبَوْا حَتَّى

ته خپلو میلمنو ته ولي نه راغلې، ابوبکر رضی اللہ عنہ ورته وویل ایا تا تر اوسه پوري په دوی ډوډۍ نه

ده خوړلې، بي بي ورته وويل دوی تر هغه وخته پورې د خوراک څخه انکار وکړ تر څو پورې چې

تَجِيءَ فغضبه وقال والله لااطعمه ابدا فحلفت المراة ان لا تطعمه وخلف

ته رانه سې، ابوبکر رضی الله عنه په قهر سره وويل قسم په خدای زه به دا ډوډی هيڅکله ونه خورم، د
هغه ښځې هم قسم وخوړی چې هغه به هم دا ډوډی نه خوري

الاضياف ان لايطعموه قال ابوبکر کان هذا من شيطان فدعا بالطعام فاکل و

او ميلمنو هم قسم وخوړی چې هغوی به هم دا ډوډی نه خوري، ددې څخه وروسته ابوبکر رضی الله عنه
وويل زما غصه کيدل او قسم خوړل د شيطان د لوري څخه دي، ددې ويلو سره هغه ډوډی

اکلوا فجعلوا لايرفعون لقمة الا ربت من اسفلها اکثر منها فَقَالَ لِامْرَأَتِهِ يَا

وغوښتل او د ټولو سره يې ډوډی وخوړل او مېلمنو هم وخوړل دوی چې به کومه ګوله دلوښي
څخه را پورته کول نو د لوښي دومره ځای به نه خالي کيدی څومره چې به د لاندي خوا څخه
ډکيدی، ابوبکر رضی الله عنه خپلي ښځې ته وويل

أُخْتَ بَنِي فِرَاسٍ مَا هَذَا قَالَتْ وَقُرَّةِ عَيْنِي انها الْآنَ لَأَكْثَرُ مِنْهَا قَبْلَ ذَلِكَ

اې د بنو فراس خور! دا څه معامله ده؟ هغې ورته وويل د خپلو سترګو د يخوالي قسم دا
خوراک خو د مخکې څخه زيات سو

بِثَلَاثِ مرارًا فَأَكَلُوا وَبَعَثَ بِهَا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذُكِرَ أَنَّهُ أَكَلَ

درې چنده زيات، غرض دا چې ټولو ډوډی وخوړل او بيا هغه لوښی يې نبي کريم صلی الله علیه وسلم ته ور
ولېږی، ويل کيږي چې د هغه لوښي څخه نبي کريم صلی الله علیه وسلم هم وخوړل،

مِنْهَا .متفق عليه وذکر حديث عبدالله بن مسعود کنا نسمع تسبيح
الطعام في المعجزات.

بخاري او مسلم او د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه حديث چې موږ به د خوراک تسبيح اوريدل په
المعجزات کې تير سوی دی.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦ \ ٥٨٧، رقم: ٣٥٨١، ومسلم ٣ \ ١٦٢٨، رقم: ١٧٦- ٢٠٥٧.

**تشريح**: د نبي كريم ﷺ په زمانه كي د مسجد نبوي سره متصل او د نبوي حجرې شمال خوا ته واقع يوه منا وه چي هغه ته يې صفه ويل، كومو غريبو او مفلسو مهاجرو صحابه كرامو چي كور نه درلودی او نه يې كورنۍ وه نو هغوی په دغه منا كي شپه تېرول، په دغه نسبت سره هغوی ته اصحاب صفه وويل سول، دغه صحابه كرامو ته د مسلمانانو مېلمانه هم ويل كېدل ځكه چي دهغوی د فقر او مفلسۍ په وجه دهغوی د خوراک او څښاک بندوبست عامو مسلمانانو د خپل توان سره سم كوی او يوازي پر اخلاقي او انساني بنياد باندي د هغوی د مېلمستيا فريضه يې ادا كول، كوم خلک چي به د باندي څخه مدينې ته راتلل كه چيري په مدينه كي به د هغوی يو قريب وو نو له هغه سره به پاته كېدی كنه نو دغه صفه به د هغوی هستوګن ځای وو، مشهور صحابه كرام ابوذر غفاري رضي الله عنه، عمار ابن ياسر رضي الله عنه، سلمان فارسي رضي الله عنه، صهيب رضي الله عنه، ابوهريره رضي الله عنه، خباب ابن ارت رضي الله عنه، حذيفه بن اليمان رضي الله عنه، ابوسعيد خدري رضي الله عنه ، بشير بن انحصاصيه رضي الله عنه، او د رسول الله ﷺ ازاد سوی غلام ابومويهبه رضي الله عنه له اصحاب صفه څخه دي .

يا دي شپږم كس هم بوځي، دا حكم ددې لپاره وو چي د چا په كور كي د هغه د كورنۍ د څلورو كسانو خوراک موجود وي او هغه دا ګڼي چي هغه خوراک د پنځو كسانو لوږه دفع كولای سي نو د ځان سره دي پنځم سړی يعني د اصحاب صفه څخه دي يو سړی بوځي او كه هغه پوهيږي چي د څلورو كسانو خوراک دومره دی چي شپږم سړی هم په مړيږي نو بيا هغه دي د پنځم سره شپږم سړی هم يعني د اصحاب صفه څخه دوه كسان له ځان سره بوځي، په دغه صورت كي بايد دا په ذهن كي وي چي دغه لفظ د او د شک ظاهرولو لپاره دی يعني د اصل حديث برخه نه ده بلكه راوي ددغه لفظ په ذريعه د خپل شک اظهار كړی دی او يوه خبره دا هم كېدای سي چي د او لفظ په اصل كي د بل په معنی كي وي چي د مېلمستيا لپاره د مبالغې په توګه استعماليږي، مطلب دا چي په دغه وخت كي رسول الله ﷺ دا وفرمايل چي د كوم چا سره د څلورو كسانو خوراک وي نو هغه دي له ځان سره پنځم سړی بلكه شپږم سړی هم بوځي ، ددغه وضاحت بنياد هغه تناسب دی چي ارشاد نبوي، له كوم چا سره چي د دوو كسانو خوراک وي نو هغه دي دريم كس له ځان سره بوځي ، څخه څرګنديږي، چي تقاضا يې داده چي د كوم چا سره د خپلي كورنۍ د څلورو كسانو خوراک وي نو هغه لره يو نه بلكه د دوو مېلمنو بېولو حكم وركول كېدی بلكه احمد، مسلم، ترمذي او نسائي له حضرت جابر رضي الله عنه څخه مرفوعا دا روايت نقل كړی دی چي د يوه سړي خوراک د دوو لپاره كافي كېدای سي او د دوو كسانو خوراک د څلورو

لپاره کافي کيدای سي ، او د څلورو کسانو خوراک د اتو لپاره کافي کيدای سي .

او تر هغه وخته د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر وو ، تر څو چي نبي کريم ﷺ خوراک نه وو کړی، دغه جمله په ظاهره تکرار معلوميږي يعني رسول الله ﷺ ته د خوراک يادونه مخکي سوې وه اوس بيا دلته د هغه په يادونه کولو سره واقعه بېرته بيانول مقصد دي مګر دا هم کيدای سي چي مخکي خو يوازي د حضرت ابوبکر ﷺ د خوراک ذکر سوی وي چي هغه په کور کي د خپلي لور بي بي عائشي ﷺ سره په ناسته سره خوراک خوړلی وي او دلته د رسول الله ﷺ د خوراک ذکر دی چي رسول الله ﷺ د ماخستن د لمانځه وروسته يوازي يا د خپلو هغه مېلمنو سره خوراک وکړ کوم چي له اصحاب صفه څخه راوستل سوي وه .

هغوی خوراک وغوښتئ، او بيا ټولو خلکو خوراک وکړ ، دلته دا سوال پيدا کيږي چي حضرت ابوبکر صديق ﷺ خو مخکي د خوراک خوړلو څخه قسم وکړ او بيا يې خوراک وکړ ، هغه د قسم خلاف ورزي ولي وکړل، ددې جواب دادی چي هغه په غصه کي قسم وکړ مګر کله چي بيا هغه ته پر خپله غصه باندي پښېماني وسول او د رسول الله ﷺ دغه ارشاد ته يې فکر سو که چيري يو څوک پر يوه خبره باندي قسم وکړي او بيا هغه کار کول ورته غوره ښکاره سي نو هغه ته پکار ده چي د قسم خلاف کار وکړي مګر د قسم کفاره دي ادا کړي نو هغه د قسم په ماتولو سره خوراک وکړ او د قسم ماتولو کفاره يې ورکړل .

اې د بنو فراس خور!، حضرت ابوبکر صديق ﷺ په دغه وخت کي خپله ښځه د زيات حيرت څخه د هغې پلرنۍ قبيلې ته منسوب کړل او متوجه يې کړل، له کومي قبيلې سره چي د هغې پلرنی تعلق وو د هغه قبيلې نوم فراس وو .

د خپلو سترګو د يخوالي قسم: دا د ښځي والهانه انداز وو چي هغې خپل محبوب خاوند ، حضرت ابوبکر صديق ﷺ د حيرت څخه په ډک جواب کي اختيار کړ مګر دا خبره په هغه صورت کي ويل کيدای سي چي کله دا ومنل سي چي د سترګو د يخوالي څخه مراد حضرت ابوبکر صديق ﷺ وو ځکه چي ځينو حضراتو ويلي دي چي دلته د سترګو د يخوالي څخه د رسول الله ﷺ ذات مراد دی .

قرة العين : (د سترګو يخوالي) دا په اصل کي د عربو يوه محاوره ده چي په هغه سره د خپل محبوب ديدار او د هغه د ديدار څخه تر لاسه کېدونکي خوند او خوشحالي تعبير کيږي، د قره يا قر لفظ د قاف په پېښ او زور دواړو سره بېلي معناوي لري مګر دغه محاورتي اصطلاح (قرة العين) په دواړو معناوو کي صادقيږي، ځکه که چيري د قاء په پېښ سره وي نو معنی يې د

خنکی او يخوالي ده او د محبوب ديدار بېله شبهې سترګي يخوي، او که دغه لفظ د قاف په زور سره وي نو معنی يې د قرار ده او ظاهره ده چي کله محبوب مخته راسي نو سترګي کرار تر لاسه کړي او نظر د مجبوب په مخ کي داسي دريږي چي بيا راسته او چپه خوا ته ګرځول يې ممکن نه دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د نجاشي پر قبر نور

﴿۵۶۹۵﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمَّا مَاتَ النَّجَاشِيُّ كُنَّا نَتَحَدَّثُ أَنَّهُ لَا يَزَالُ يُرَى عَلَى قَبْرِهِ نُورٌ. رواه ابوداؤد.

د حضرت عائشې ﷺ څخه روايت ديچي کله (د حبش پاچا) نجاشي مړ سو نو موږ په خپل منځ کي دا ډول خبري کولې چي د نجاشي پر قبر هميشه نور معلوميږي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۳۴، رقم: ۲۵۲۳.

**تشريح**: د نجاشي څخه مراد د حبشې هغه پاچا دی چي د رسول الله ﷺ د نبوت په وخت کي د خپل هيواد پاچا وو، هغه مخکي د نصرانيت (عيسائيت) د دين پيروان وو او بيا په رسول الله ﷺ باندي په ايمان راوړلو سره پوخ مسلمان سوی وو، هغه د اسلام او مسلمانانو ستر خدمت وکړ او د رسول الله ﷺ په زړه کي يې لوړ ځای تر لاسه کړ، کله چي هغه په حبشه کي وفات سو او رسول الله ﷺ په خبر سو نو ډېر افسوس يې وکړ او له خپلو صحابه کرامو سره يې په مدينه کي د هغه غائبانه د جنازې لمونځ ورکړ، د هغه د وفات څخه وروسته بي بي عائشه ﷺ فرمايي چي په مدينه کي دا مشهوره سوې وه چي د نجاشي پر قبر باندي نور ليدل کيږي ځکه چي کوم صحابه کرام حبشې ته تلل او راتلل هغوی هلته د هغه د قبر په لېدو سره مدينې ته راتلل او دا يې ويل، او د ټولو خلکو پر يوه غلطه خبره باندي متفق کېدل ممکن نه وو ځکه دا خبره د خبر متواتر نژدې وه، پاته سوه دا خبره چي د نور ښکاره کېدو څخه څه مراد دی نو په ظاهره دا معلوميږي چي د نجاشي پر قبر باندي نور داسي لېدل کيدی لکه څرنګه چي د څراغ، سپوږمۍ او لمر رڼا ليدل کيږي مګر دا هم کيدای سي چي د نور ښکاره کېدل په اصل کي د هغه د نورانيت، تازګی او روحاني طمانيت تعبير وي چي د هغه قبر زيارت کوونکي ته حاصل سوی وي.

## رسول الله ﷺ ته د غسل ورکونکو د غیب څخه رهنمائي

﴿۵۶۹۶﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ لَمَّا أَرَادُوا غُسْلَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالُوا لاَ

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته چي رسول الله ﷺ ته د غسل ورکولو اراده وسول نو خلکو وویل:

نَدْرِي أَنُجَرِّدُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ ثِيَابِهِ كَمَا تُجَرِّدُ مَوْتَانَا أَمْ

ایا موږ رسول الله ﷺ هم هغسي څرګند کړو لکه څرنګه چي موږ خپل مړي څرګندوو او که

نَغْسِلُهُ وَعَلَيْهِ ثِيَابُهُ فَلَمَّا اخْتَلَفُوْا أَلْقَى الله عَلَيْهِمُ النَّوْمَ حَتَّى مَا مِنْهُمْ

رسول الله ﷺ ته د کالو سره غسل ورکړو، هر کله چي پر دې خبره اختلاف زیات سو نو الله تعالی پر دغه خلکو خوب راوستی تر دې چي هیڅ سړی هلته داسي نه وو

رَجُلٌ إِلاَّ وَذَقْنُهُ فِي صَدْرِهِ ثُمَّ كَلَّمَهُمْ مُكَلِّمٌ مِنْ نَاحِيَةِ الْبَيْتِ لاَ يَدْرُوْنَ مَنْ

چي د هغه زنه دي پر سینه نه وي بیا دغه خلکو ته یو ویونکي چي خلکو نه پېژندی د کور د یو

هُوَ اِغْسِلُوا النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَيْهِ ثِيَابُهُ فَقَامُوا فَغَسَلُوْهُ وَعَلَيْهِ

کونج څخه وویل چي نبي کريم ﷺ ته د کالو سره غسل ورکړئ، ددې اوریدو سره هغه ټول خلک را پورته سول او د رسول الله ﷺ مبارک بدن ته یې غسل ورکړ دغه وخت د رسول الله ﷺ

قَمِيْصُهُ يَصُبُّوْنَ الْمَاءَ فَوْقَ الْقَمِيْصِ وَيَدْلُكُوْنَهُ بِالْقَمِيْصِ . رواه البيهقي في دلائل النبوة.

پر بدن مبارک قمیص وو چي پر هغه به یې اوبه تویولې او د قمیص سره به یې بدن موږی. بیهقي.

**تخریج**: رواه البيهقي في دلائل النبوة.

**تشریح**: نووي رحمه الله په دې اړه دا هم نقل کړي دي چي صحیح روایت دادی چي د غسل ورکولو په وخت کي پر بدن مبارک باندي چي کومه جامه وه هغه د ددفن کولو په وخت کي ایسته کړل سوې وه، دغه روایت ضعیف دی چي دتکفین په وخت کي هغه قمیص نه وو ایسته

کړل سوی بلکه هغه د کفن لاندي پرېښودل سوی وو ، نو ددغه روایت څخه استناد او استدلال صحیح نه دی .

## د سفینه رضی الله عنه کرامت

﴿۵۶۹۷﴾ : وَعَنِ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ أَنَّ سَفِيْنَةَ مَوْلٰى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابن منکدر رضی الله عنه څخه روایت دی چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم ازاد سوي غلام سفینه نامي په

أَخْطَأَ الْجَيْشَ بِأَرْضِ الرُّوْمِ أَوْ أُسِرَ فَانْطَلَقَ هَارِبًا يَلْتَمِسُ الْجَيْشَ فَإِذَا هُوَ

مځکه د روم کي د لښکر لار خطا کړه ، یا بندي کړل سو بیا چي هغه د کافرانو دلاس څخه خلاص سو د لښکر په لټه کي وتښتیدی ، نو ناڅاپه

بِالْأَسَدِ فَقَالَ يَا أَبَا الْحَارِثِ أَنَا مَوْلٰى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ مِنْ

د یو زمری سره مخ سو هغه زمري ته وویل اې ابو حارث زه د رسول الله صلی الله علیه وسلم ازاد کړل سوی غلام

أَمْرِيْ كَيْتَ وَكَيْتَ فَأَقْبَلَ الْأَسَدُ لَهُ بِصَبْصَةٌ حَتّٰى قَامَ إِلٰى جَنْبِهِ كُلَّمَا سَمِعَ

یم او ما ته دا پېښه سوې ده ، زمری په لکۍ ښورولو سره مخته سو او د هغه پر څنګ ودریدی ،

صَوْتًا أَهْوٰى إِلَيْهِ ثُمَّ أَقْبَلَ يَمْشِيْ إِلٰى جَنْبِهِ حَتّٰى بَلَغَ الْجَيْشَ ثُمَّ رَجَعَ الْأَسَدُ . رواه في شرح السنة.

زمری چي به یو خوفناکه اواز واوریدی نو هغه خوا ته به متوجه سو او د سفینه پر بغل به تلی تر دې چي سفینه خپل لښکر ته را ورسیدی او زمری بیرته ولاړی . شرح السنه.

**تخریج** لم نجده في شرح السنة.

**د لغاتو حل** : بصبصة: اي تحريک ذنب کفعل الکب (د لکۍ ښورول).

**تشریح** ایا د دښمن په لاس بندي سو ، دلته راوي خپل شک څرګند کړی دی چي یا خو دا صورت وو چي په هغه سیمه کي حضرت سفینه رضی الله عنه د خپل اسلامي لښکر څخه بېل سوی وو او د هغه په پلټنه کي آخوا دېخوا سرګردانه وو ، یا دا چي د موقع په تر لاسه کولو سره دښمن هغه نیولی وو او بندي کړی یې وو ، د هغه نوم سفینه نه دی بلکه دا یې لقب دی او په دې اړه اختلاف

دی چي د هغه اصل نوم څه شي وو ، دغه لقب يې ځکه مشهور سو چي هغه په يو سفر کي د رسول الله ﷺ سره وو او ډېر زيات سامان يې پر ځان بار کړی وو ، له دې سره د سفر په ملګرو کي کوم څوک چي به ستړی سو نو هغه به هم خپل سامان پر هغه اچوی او هغه به په خندا او خوشحالۍ سره د ټولو بار وړی، رسول الله ﷺ هغه په دغه حالت کي وليدی نو د ټوکو په توګه يې وفرمايل چي: انت السفينة، يعني ته کښتۍ يې، د هغه ورځي څخه د سفينه لقب د هغه لپاره مشهور سو چي خلکو ته د هغه د اصل نوم معلومات هم ونه سو ، که يو چا به پوښتنه ځيني وکړل چي ستا نوم څه شي دی نو هغه به جواب ورکوی چي زما نوم همدغه دی کوم چي رسول الله ﷺ ايښی دی يعني سفينه.

## د قبر په ذريعه استسقاء

﴿۵۶۹۸﴾: وَعَنْ أَبِي الْجَوْزَاءِ قَالَ قُحِطَ أَهْلُ الْمَدِيْنَةِ قَحْطًا شَدِيْدًا فَشَكَوْا إِلٰى

د حضرت ابو الجور رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چي د مديني خلک په سخته وچ کالي اخته سول ،

عَائِشَةَ فَقَالَتْ انْظُرُوْا قَبْرَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاجْعَلُوْا مِنْهُ كُوًى إِلٰى

هغوی د بي بي عائشې رضی اللہ عنہا په خدمت کي شکايت وکړ ، هغې ورته وويل : تاسو د نبي کريم ﷺ مبارک قبر ته ورسئ او د قبر د حجرې په بام کي يو موری خلاصه کړئ

السَّمَاءِ حَتّٰى لَا يَكُوْنَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ السَّمَاءِ سَقْفٌ فَفَعَلُوْا فَمُطِرُوْا مَطَرًا حَتّٰى

چي د قبر او آسمان په منځ کي هيڅ پرده پاته نه سي ، هغه خلکو هم داسي وکړل نو ښه باران وسو

نَبَتَ الْعُشْبُ وَسَمِنَتِ الْإِبِلُ حَتّٰى تَفَتَّقَتْ مِنَ الشَّحْمِ فَسُمِّيَ عَامُ الْفَتْقِ .

رواه الدارمي.

تر دې چي وابنه شنه سول او اوښان او به سول تر داسي حده چي د چاغوالي د سببه حيوانان وچاودل نو د دغه کال نوم فتق کښېښودل سو . دارمي.

**تخريج**: سنن الدارمي ۱\۵۶، رقم: ۹۲.

**د لغاتو حل**: كوي: نقب البيت. (د کور سوري کول)

**تشريح**: (كَوَى) د کاف په زور او پېښ سره هم په اصل کي د كوة جمع ده چي معنی يې د هغه

سوري یا روشن دان ده چي د خوني په بام یا دېوال کي جوړ سوی وي، د بي بي عائشې ﷺ مطلب دا وو چي د رسول الله ﷺ قبر مبارک چي په کومه خونه کي دی د هغه په بام کي داسي ډېر سوریان جوړ سوي دي چي د قبر مبارک او آسمان په منځ کي یو حجاب حائل نه وي چي آسمان د رسول الله ﷺ قبر وویني او د رسول الله ﷺ د وفات په یادوني سره به وژاړي، او پر تاسو به اوبه و اوروي، او همداسي وسول چي د حجرې مبارکي په بام کي لوی لوی سوریان ورکړل سول او آسمان قبر مبارک ولیدی نو په ژړا سو او د هغه د ژړا په وجه شېلې وبهېدلې ، څرګنده دي وي چي د آسمان د ژړا یادونه په قرآن کریم کي هم ده: (فما بکت علیهم السماء والارض) په دغه آیت کي پر هغه کسانو باندي د آسمان د نه ژړېدو یادونه ده چي د الله ﷻ مبغوض بندګان وه نو د الله ﷻ د محبوب او غوره بندګانو په حق کي ددې برعکس وي چي آسمان د هغوی لپاره ژاړي، او ځینو حضراتو دا لیکلي دي چي د بي بي عائشې ﷺ په مشوره سره د قبر شریف په بام کي د سوریانو جوړول په اصل کي د قبر مبارک څخه وسیله تر لاسه کول وو، ``

مطلب دا چي په ژوند کي خو به خلکو د رسول الله ﷺ د ذات مبارک په ذریعه د باران غوښتونکي کېدل او کله چي د هغه ﷺ ذات له دنیا څخه پرده وکړل او د استسقاء اړتیا پېښه سول نو بي بي عائشې ﷺ حکم وکړ چي د قبر مبارک څخه بام دي ایسته کړل سي چي رحمت په جوش کي راسي او اوبه و اوریږي، یا دا چي هغې په څرګنده قبر مبارک د باران د غوښتونکو په ذریعه جوړ کړ مګر په حقیقت کي د رسول الله ﷺ ذات مبارک د هغه غوښتني ذریعه او وسیله وو او د قبر مبارک بام ایسته کول د هغه غوښتني د زیاتي مؤثر او د پریشانه خلګو د اضطراري کیفیت څرګندولو لپاره وو .

د فتق معنی د پرسېدو ده او ځینو ددې معنی د شکېدو او ځیني د خپرېدو هم بیان کړې ده ، مطلب دا چي د باران په اورېدو سره د وچ کالي اثر ختم سو، څلورو خواوو ته ارزاني سول ، ځنګلونه او کښتونه شنه سول او شنګیا دومره زیاته سول چي څاروي په خوراک ماړه سول او بیا په هغوی کي وازګه دومره زیاته سول چي نسونه یې و پړسېدل یا د هغوی بدنونه پراخ سول .

د بي بي عائشې ﷺ د باران په غوښتنه کي د قبر مبارک په ذریعه د ذات مبارک څخه سفارش او وسیله تر لاسه کول او د هغه اثر څرګندېدل د بي بي عائشې ﷺ کرامت هم دی او د رسول الله ﷺ معجزه هم ده ، او هسي هم د امت او اولیاؤ کرامتونه د پیغمبر په معجزو کي شمېرل کیږي .

## يوه معجزه او يو كرامت

﴿۵۶۹۹﴾: وَعَنْ سَعِيْدِ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيْزِ قَالَ لَمَّا كَانَ أَيَّامُ الْحَرَّةِ لَمْ يُؤَذَّنْ فِيْ

د حضرت سعيد بن عبد العزيز رحمه الله څخه روايت دی چي کله د حره پېښه رامنځته سوه (د حره پېښه د سختو پېښو څخه ده، د حضرت معاويه زوی يزيد پر مدينې لښکر کشي وکړه او مدينه يې تباه کړل، حره د مدينې څخه د باندي د مځکي يوه ټوټه ده دا لښکر د دغه خوا څخه راغلی

مَسْجِدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلاَثًا وَّلَمْ يُقَمْ وَلَمْ يَبْرَحْ سَعِيْدُ بْنُ

وو) نو تر درو ورځو پوري په مسجد نبوي کي اذان و نه سو او نه تکبير وويل سو، سعيد بن

الْمُسَيَّبِ الْمَسْجِدَ وَكَانَ لاَ يَعْرِفُ وَقْتَ الصَّلاَةِ إِلاَّ بِهَمْهَمَةٍ يَسْمَعُهَا مِنْ قَبْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رواه الدارمي.

مسيب په دغه ورځو کي په مسجد کي د ننه وو او هلته پاته سو د باندي نه راوتی، په دغه ورځو کي به سعيد بن مسيب د لمانځه وخت يوازي په هغه اواز سره پېژندی چي د رسول الله ﷺ د قبر مبارک څخه به راتلی. دارمي.

**تخريج**: سنن الدارمي ۵۶/۱، رقم: ۹۳.

**د لغاتو حل**: الحرة: ارض بظاهر المدينة بها احجار سود كثيرة. (په مدينه کي يوه ډبرينه سيمه)

**تشريح**: حره د مدينې څخه د باندي د مځکي هغه ټوټې ته وايي چي توري ډبري لري، او د حره د پېښي څخه مراد د مدينې پر اوسېدونکو باندي د يزيد ابن معاويه هغه بريد دی چي د هغه په نتيجه کي د مدينې منورې ښار د سختي تباهۍ او بربادۍ سره مخامخ سو، دغه دردناکه پېښه د اسلامي تاريخ د سختو پېښو څخه ده، د دغه دردناکه پېښي اندازه د دې خبري څخه لګېدلای سي چي پر له پسې درې ورځي مسجد نبوي د آذان او اقامت څخه محروم پاته سو.

د يزيد لښکر د دغه حره څخه پر مدينې منورې حمله وکړل ځکه چي دغه پېښه په حره سره ونومول سول.

حضرت سعيد ابن مسيب رحمه الله د سترو تابعينو څخه دی، نوموړی لوی فقيه، محدث، عابد او متقي وو، نوموړي څلوېښت حجونه کړي وه او په ۹۳ هجري کال کي وفات سو.

## د حضرت انس رضي الله عنه کرامت

﴿۵۷۰۰﴾: وَعَنْ أَبِي خَلْدَةَ قَالَ قُلْتُ لِأَبِي الْعَالِيَةِ سَمِعَ أَنَسٌ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى

د حضرت ابو خلده رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د ابو العاليه څخه پوښتنه وکړه چي انس رضي الله عنه د

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَدَمَهُ عَشْرَ سِنِينَ وَدَعَا لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه حديثونه اوريدلي دي، ابو العاليه وويل هو انس رضي الله عنه لس کاله د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کي تير کړي دي او نبي کريم صلى الله عليه وسلم هغه ته دعاء کړې وه،

وَكَانَ لَهُ بُسْتَانٌ يَحْمِلُ فِي السَّنَةِ الْفَاكِهَةَ مَرَّتَيْنِ وَكَانَ فِيهَا رَيْحَانٌ كَانَ يَجِيءُ مِنْهُ رِيحُ الْمِسْكِ. رواه الترمذي وقال هذا حديث حسن غريب.

د انس رضي الله عنه يو باغ وو چي هغه به په کال کي دوه واره ميوه کول او په هغه باغ کي ريحان وه چي د هغه د ګلانو څخه به د مشکو بوی تلی. ترمذي ويلي دي دا حديث حسن غريب دی.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۴۱، رقم: ۳۸۳۳.

**تشريح**: حضرت ابو خلده چي د حضرت انس رضي الله عنه په اړه د حضرت ابو العاليه رحمة الله عليه څخه پوښتنه وکړل، هغه مطلب دا وو چي حضرت انس رضي الله عنه کوم حديثونه روايت کوي هغه يې د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه بېله واسطې اورېدلي دي او که هغه مرسل روايتونه دي، که څه هم د مرسل روايتو په حجيت کي چا ته کلام نسته، د دغه سوال څخه دا خبره څرګنديږي چي د رسول الله صلى الله عليه وسلم د وفات څخه وروسته ځينو خلکو ته د حضرت انس رضي الله عنه د حديثو د روايت کولو په اړه شک وو، نو حضرت ابو العاليه رحمة الله عليه چي له سترو تابعينو څخه وو، د ابو خلده جواب په ژوندی بڼه ورنه کړ بلکه هغه دا خبره وکړل چي د هغه څخه د حضرت انس رضي الله عنه ارزښت څرګنديږي، هغه وويل چي حضرت انس رضي الله عنه د لسو کالو په عمر کي يا د ځينو روايتو سره سم د اته کالو په عمر کي د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کي وقف سوی وو، پرله پسې تر لسو کالو پوري د رسول الله صلى الله عليه وسلم خدمت يې وکړ او دا د هغه د مخلصانه خدمت صله وه چي رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغه په حق کي د عمر او مال د برکت دعاء کړې وه او د هغه د دعاء دا اثر وو چي د هغه عمر يو سل او ديرش کاله وو، او الله جل جلاله هغه ته ډېر اولادونه هم ورکړل چي د هغه درو اويا زامن وه او اووه ويشت لوڼې يې وې، او په مال کي د برکت دا حال وو چي د نورو خلکو باغونو به په کال کي يو وار ميوه ورکول مګر د هغه

باغ به په کال کي دوه واره میوه ورکول، د هغه د عظمت اندازه د دې څخه معلومیدای سي چي د هغه په باغ کي به کوم ګلان وه د هغو څخه به د مشکو په ډول خوشبويي راتلل نو څرګنده سول چي کوم ذات پر داسي لوړه مرتبه وي چي تر دومره اوږده وخت پوري د رسول الله ﷺ په خدمت کي د پاته کېدو شرف یې تر لاسه کړی وي نو هغه به د رسول الله ﷺ څخه خپله حدیثونه څرنګه نه وي اورېدلي او هغه به حدیثونه ولي نه روایت کوي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د حضرت سعید ابن زید ؓ کرامت

﴿۵۷۰۱﴾: عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ اَنَّ سَعِيْدَ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ نُفَيْلٍ خَاصَمْتُهُ

د عروه بن زبیر ؓ څخه روایت دی چي د سعید بن زید بن عمرو بن نفیل او اروی بنت اویس په

أَرْوَى بِنْتَ أُوَيْسٍ إِلَى مَرْوَانَ بْنِ الْحَكَمِ وادعت انه اخذ شيئا من ارضها فَقَالَ

منځ کي پر یو مځکه جګړه وسوه، او اروی، سعید بن زید مروان بن حکم ته بوتلی (چي د مدینې حاکم وو) بي بي اروی دا دعوه وکړه چي سعید بن زید زما د مځکي څه برخه نیولې ده،

سَعِيدٌ أَنَا كُنْتُ آخُذُ مِنْ أَرْضِهَا شَيْئًا بَعْدَ الَّذِي سَمِعْتُ مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ

ددې دعوا اورېدو سره سعید وویل ایا زه ددې مځکه یو برخه په زور اخیستلای سم، هر کله چي ما د رسول الله ﷺ دا وعید (سزا) اورېدلې ده،

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَمَا سَمِعْتَ مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سَمِعْتُ

مروان پوښتنه ځیني وکړه تا د رسول الله ﷺ څخه څه اورېدلي دي؟ سعید وویل ما د رسول الله

رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ أَخَذَ شِبْرًا مِنَ الْأَرْضِ ظُلْمًا طُوِّقَهُ إِلَى

ﷺ څخه دا اورېدلي دي څوک چي د یو چا څخه یوه لویشت مځکه په زور واخلي نو د هغه

سَبْعِ أَرَضِينَ فَقَالَ لَهُ مَرْوَانُ لَا أَسْأَلُكَ بَيِّنَةً بَعْدَ هَذَا فَقَالَ اللَّهُمَّ إِنْ كَانَتْ

مځکي اووه طبقې به (د قیامت په ورځ) د هغه په غاړه کي د طوق په ډول پرتې وي، ددې اورېدو سره مروان وویل، ددې دلیل څخه وروسته زه ستا څخه یو شاهد نه غواړم، ددې

اوريدو سره سعيد وويل اې الله! كه

كَاذِبَةً فَعَمِّ بَصَرَهَا وَاقْتُلْهَا فِي أَرْضِهَا قَالَ فَمَا مَاتَتْ حَتَّى ذَهَبَ بَصَرُهَا و بينما

دا درواغجنه وي نو دا ړنده كړې او په دغه مځكه كي ورته مرګ راولې چي د هغه دعوا كوي، د عروه بن زبير بيان دى چي د مرګ څخه مخكي هغه ښځه ړنده سوه

هِيَ تَمْشِي فِي أَرْضِهَا إِذْ وَقَعَتْ فِي حُفْرَةٍ فَمَاتَتْ. متفق عليه و في رواية لمسلم

او يوه ورځ د دعوې په مځكه كي روانه وه چي په ژور غاركي ولويدل او مړه سوه ، بخاري او

عن محمد بن زيد بن عبدالله بن عمر بمعناه وانه راها عمياء تلتمس الجدر تقول اصابتني دعوة سعيد وانها مرت على بئر في الدار التي خاصمته فيها فوقعت فيها فكانت قبرها.

مسلم او د مسلم په يوه روايت كي دي چي محمد بن زيد بن عبد الله بن عمر څخه ددې روايت هم منقول دى په هغه كي داسي دي چي محمد بن زيد هغه ښځه ړنده وليدل چي هغه به پر ديوال لاس اېښود و سره تلل او ويل به يې د سعيد ښيرا پر ما اثر كړى دى ، بيا يوه ورځ هغه په هغه مځكه كي كورته تلل چي پر هغه مځكه يې د سعيد سره جنګ كړى وو چي په يو څاه يا ژور غاركي ولويدل او هغه يې قبر جوړ سو.

**تخريج**: صحيح البخاري ٦\٢٩٣، رقم: ٣١٩٨، ومسلم ٣\١٢٣١، رقم: ١٣٦- ١٦١٠.

**تشريح**: حضرت سعيد ابن زيد رضي الله عنه هم له عشره مبشره (يعني هغه سترو صحابه كرامو څخه دى چي رسول الله ﷺ په دنيا كي د جنت زيرى وركړى وو) نوموړى د حضرت عمر رضي الله عنه اخښى (د خور خاوند) ، بابركته او مستجاب الدعوات وو، د اروى په اړه ددغه تحقيق څخه معلوميږي چي هغه صحابيه وه يا تابعيه وه، په هر حال هغه ښځي چي د مروان په عدالت كي د حضرت سعيد ابن زيد رضي الله عنه پر خلاف كومه د درواغو دعوه كړې وه چي هغه په زور زما د مځكي يوه برخه اخيستې ده ، حال دا چي په حقيقت كي هغه مځكه د حضرت سعيد رضي الله عنه خپله مځكه او ملكيت وو ، هغه پر دغه درواغجنه دعوه باندي د سختي حيرانتيا اظهار وكړ او د مروان په وړاندي يې وويل: چا چي د يو چا څخه په زور د مځكي اخيستلو وعيد په خپله اوريدلى وي هغه به څرنګه دا كولاى سي چي د يو چا مځكه په زور واخلي. مروان د حضرت سعيد رضي الله عنه څخه ددغه وعيد په اړه د حديث اوريدو خواهش وكړ. حضرت سعيد رضي الله عنه هغه حديث چي خپله يې د

رسول الله ﷺ څخه اورېدلی وو، بیان کړ، مروان ته د حضرت سعید رضی الله عنه د صداقت یقین وسو او هغه وخت چي هغه حضرت سعید رضی الله عنه ته څه وویل د هغه مطلب دا وو چي ما ته ستا په رښتوني کېدو پوره یقین دی ځکه چي ستا په ژوند زه خبر یم، ته پر چا باندي ظلم نه سې کولای، او بیا ستا څخه د دغه حدیث اورېدو وروسته ددې اړتیا پاته نه سوه چي په عدالتي توګه ستا د خبري د منلو لپاره ستا څخه شاهد وغواړم، یا د مروان مطلب دا وو چي ستا په روایت کي ما ته هیڅ شک نسته او نه د دغه حدیث په صحیح ګڼلو کي د بل راوي د روایت محتاج یم ته خپله د خپل حیثیت په اعتبار د دوو راویانو بلکه تر دې هم د زیاتو برابر یې،

خلاصه دا چي مروان د هغه ښځي دعوه وایستل، مګر څرنګه چي کرماني رحمه الله لیکلي دي او خپله د روایت څخه هم دا مفهوم اخیستل کیږي، خو حضرت سعید رضی الله عنه احتیاطا د هغه ځمکي څخه لاس واخیست او هغه ښځي ته یې ورکړل، مګر بیا هم هغه ښېرا وکړل، که چیري هغه ښځه درواغجنه وي نو په دنیا کي دي د خپلو درواغو سزا تر لاسه کړي او د نړېوالو په نظر کي دي د هغې درواغجن کېدل ثابت سي، نو الله جل جلاله د هغه د ښېرا اثر ظاهر کړ او څرنګه چي حضرت سعید رضی الله عنه ویلي وه هغه ښځه د مرګ څخه مخکي ړنده هم سول او هغه ځمکه د هغې قبر هم جوړ سو ځکه چي هغه په دغه ځمکه د یو کوړ په نړېدو سره مړه سول او چا د هغې د راکښلو اړتیا هم محسوس نه کړل.

## د حضرت عمر رضی الله عنه کرامت

﴿۵۷۰۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ عُمَرَ بَعَثَ جَيْشًا وَأَمَّرَ عَلَيْهِمْ رَجُلاً يُدْعٰى سَارِيَةُ

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه روایت دی چي حضرت عمر رضی الله عنه یو لښکر ولیږی او پر هغه یې یو سړی وټاکی چي نوم یې ساریه وو،

فَبَيْنَمَا عُمَرُ يَخْطُبُ فَجَعَلَ يَصِيحُ يَا سَارِيَ الْجَبَلَ فَقَدِمَ رَسُوْلٌ مِنَ

یوه ورځ حضرت عمر رضی الله عنه په مسجد کي د جمعې خطبه ویل چي ناڅاپه یې په لوړ اواز سره وویل اې ساریه! دې خوا ته غر ونیسه، ددې واقعې څخه څو ورځي وروسته د لښکر یو قاصد

الْجَيْشِ فَقَالَ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ لَقِيْنَا عَدُوَّنَا فَهَزَمُوْنَا فَاِذَا بِصَائِحٍ يَصِيحُ

راغلی، د حضرت عمر رضی الله عنه په خدمت کي حاضر سو عرض یې وکړ اې امیر المؤمنین! زموږ د ښمن پر موږ حمله وکړه او موږ ته یې ماته راکړه، ناڅاپه موږ د یو اواز کوونکي اواز واورېدی

يَاسَارِيَ الْجَبَلَ فَأَسْنَدْنَا ظُهُوْرَنَا إِلَى الْجَبَلِ فَهَزَمَهُمُ اللّٰهُ تَعَالٰى. رواه البيهقي في دلائل النبوة.

چي ويل يې اې ساريه! د غره خوا ته، نو موږ خپل شاوي غره ته تکيه کړلې نو بيا الله ﷻ دښمنانو ته ماته ورکړل. بيهقي.

**تخريج**: رواه البيهقي في دلائل النبوة.

**تشريح**: په رواياتو کې داهم راځي چې کله خلکو د خطبې په دوران کې د حضرت فاروق رضي الله عنه په داسې لوړ آواز باندې د ساريه په مخاطب کولو سره واورېدی نو په حيرانتيا سره يې وويل چې دلته ساريه ته آواز کېږي، هغه خو به د سوونو ميله ليرې ځخه د نهاوند په ځای کې له دښمن سره په مقابله کې مصروف يې، فاروق اعظم رضي الله عنه وفرمايل: ما داسې منظر وليدی چې مسلمانان په جګړه بوخت دي او د هغوی لپاره د غره پناه اخيستل ډېر ضروري دي ځکه بې اختياره زما د ژبې ځخه دغه الفاظ ووتل، کله چې د ساريه ليک او قاصد راغلی نو همدارنګه د جمعې په ورځ او د جمعې د لمانځه په وخت کې د دغه تاريخ پېښه په هغه ځای کې ليکلې وه او قاصد په ژبه هم بيان وکړ.

د دغه يوې پېښې ځخه د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه څو کرامتونه څرګند سول، يو خو دا چې هغه د نهاوند د غزا منظر په سوونو ميله ليرې په مدينه کې وليدی، دوهم دا چې د هغه آواز چې په مدينه کې لوړ سوی وو په سوونو ميله ليرې نهاوند ته ورسېدی او هلته د لښکر ټولو خلکو هغه واورېدی، او دريم دا چې د هغه په برکت الله ﷻ په هغه جګړه کې مسلمانانو ته فتح ورکړل.

## د حضرت کعب احبار رضي الله عنه کرامت

﴿۵۷۰۳﴾: وَعَنْ نُبَيْهَةَ بْنِ وَهْبٍ أَنَّ كَعْبًا دَخَلَ عَلٰى عَائِشَةَ فَذَكَرُوْا رَسُوْلَ

د حضرت نبيهه بن وهب رضي الله عنه ځخه روايت دی چې کعب رضي الله عنه د بي بي عائشې رضي الله عنها په خدمت کې حاضر سو، د هغې په مجلس کې د رسول الله ﷺ ذکر راغلی،

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ كَعْبٌ مَا مِنْ يَوْمٍ يَطْلَعُ إِلَّا نَزَلَ سَبْعُوْنَ أَلْفًا

کعب رضي الله عنه وويل هيڅ يوه ورځ داسې نه تيرېږي چې په هغه کې لمر راخيژي مګر اويا زره

مِّنَ الْمَلَائِكَةِ حَتَّى يَحُفُّوْا بِقَبْرِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضْرِبُوْنَ

ملائکي د آسمان څخه راکښته او د رسول الله ﷺ د قبر مبارک څخه چاپیره کیږي، او خپروي

بِأَجْنِحَتِهِمْ وَيُصَلُّوْنَ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى إِذَا أَمْسَوْا

خپل وزرونه پر قبر مبارک د هر طرف څخه او پر رسول الله ﷺ درود شریف وایي، ترد ې چي مابنام سي

عَرَجُوْا وَهَبَطَ مِثْلُهُمْ فَصَنَعُوْا مِثْلَ ذٰلِكَ حَتَّى إِذَا انْشَقَّتْ عَنْهُ الْأَرْضُ

خَرَجَ فِيْ سَبْعِيْنَ أَلْفًا مِّنَ الْمَلَائِكَةِ يَزُفُّوْنَهُ. رواه الدارمي.

نو دغه ملائکي آسمان ته وخيژي او دغومره ملائکي نوري راکښته سي او تر سهاره پوري همداسي کوي او دا لړۍ به تر هغه وخته پوري جاري وي چي (د قیامت په ورځ) قبر وچوي او رسول الله ﷺ ځيني راووځي او د اویا زره ملائکو په منځ کي به الله تعالی ته ورځي . دارمي.

**تخريج**: سنن الدارمي ۱\ ۵۷، رقم: ۹۴.

**تشريح**: حضرت کعب احبار رحمة الله علیه له سترو تابعینو څخه دی ، نوموړي د رسول الله ﷺ زمانه تر لاسه کړې وه مگر رسول الله ﷺ یې لیدلی نه وو او د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه په زمانه کي مسلمان سوی دي، د ملائکو د راکښته کېدو دغه خبره حضرت کعب رضي الله عنه ته یا خو په پخواني آسمانو کي د ذکر سوو وړاندوینو څخه معلومه سوې ده او یا هغه د سپین ږیرو او د پخواني کتابو له عالمانو څخه اورېدلي ده، یا دا چي خپله د هغه کشف او کراماتي لیدنه وه ، او دا خبره زیاته صحیح معلومیږي ځکه چي په دې سره د هغه کرامت څرگندیږي .

========

# بَابُ وَفَاتِ النَّبِيِّ ﷺ

## (د نبي کریم ﷺ دوفات بیان)

د مشکوة المصابیح په اکثرو نسخو کي دلته یوازي د باب لفظ منقول دی، په یوه نسخه کي د باب وفات النبي ﷺ الفاظ دي چي د هغه څخه د باب د موضوع اظهار کیږي، او همدغه زیات صحیح او مناسب معلومیږي ځکه چي د مشکوة د مؤلف دا معمول دی چي هغه یوازي د

باب لفظ په هغه ځای کي راوړي چيري چي د مخکني باب سره اړه لرونکي حديثونه نقل کول مقصد وي، حال دا چي دلته داسي نه ده ، په دغه باب کي چي کوم حديثونه نقل سوي دي هغه د مخکني باب سره تعلق نه لري بلکه ځانګړې موضوع يعني د رسول الله ﷺ د وصال د حالاتو سره اړه لري، او ددغه باب څخه وروسته چي کوم باب راځي هلته مؤلف د موضوع ذکر کولو پرته يوازي د باب لفظ ليکلی دی او په دغه باب کي ددغه باب موضوع يعني د نبي کريم ﷺ سره اړوند حديثونه منقول دي ، ددې خبري تقاضا هم داده چي دلته د باب ذکر د خپلي موضوع يعني د نبي کريم ﷺ د وفات د اظهار سره وسي ، راتلونکی باب د خپلي موضوع د اظهار څخه پرته دی چي په هغه کي ددغه باب سره اړوند پاته حديثونه منقول دي .

**د مرض الموت پيل** : د رسول الله ﷺ د مرض الموت (د مرګ ناروغي) پيل په کومه ورځ وسو ، په دې اړه مختلف اقوال دي، يو قول دادی چي د هجرت په يوولسم کال د صفري د مياشتي په پای کي په ۲۷ يا ۲۸ نېټه د سر د درد د سختي حملې سره د رسول الله ﷺ د مرض الموت پيل وسو ، او د يوه روايت سره سم د محرم په مياشت کي پر رسول الله ﷺ باندي د تبي حمله سوې وه او په ۲۶ صفر کي يې له ناروغۍ څخه لږ افاقه محسوس سوې وه او په ۲۸ صفر کي په ناروغۍ کي سختوالی څرګند سو ، يو روايت دادی چي د مرض الموت پيل د ربيع الاول په مياشت کي وسو ، د ابن جوزي په کتاب الوفاء کي دا ليکلي دي چي د رسول الله ﷺ د مرض الموت پيل د صفري د مياشتي په هغه تاريخ وسو کله چي د مياشتي په ختمېدو کي لس شپې پاته وې او د رسول الله ﷺ وصال په ۱۲ ربيع الاول کي وسو ، سليمان تيمي چي يو باوري او ستر راوي دی خپل دا يقين بيان کړ چي د رسول الله ﷺ د مرض الموت پيل د چارشنبې په ورځ په دوه ويشتمه (۲۲) نېټه د صفري وسو او د رسول الله ﷺ وصال د دوشنبې په ورځ د ربيع الاول په دوهمه نېټه وسو ، ډېر علماء دغه قول ته ځکه ترجيح ورکوي چي د بي بي فاطمې ﷺ وفات د رمضان المبارک په دريمه نېټه سوی دي او د ټولو علماوو پر دې اتفاق دی چي د بي بي فاطمې ﷺ وفات د رسول الله ﷺ د وفات څخه شپږ مياشتي وروسته سوی دی مګر دا هم حقيقت دی چي په اکثرو روايتو کي د رسول الله ﷺ د وفات نېټه ۱۲ ربيع الاول منقول دی .

**د ناروغۍ سختي** : د سخت سر درد او تبي په صورت کي چي کومه ناروغي رسول الله ﷺ ته لاحقه سوې وه هغه زياتيدی، د ناروغۍ له سختوالي څخه د رسول الله ﷺ د تکليف دا حال وو چي پر بستره باندي به اړخ پر اړخ کيدی مګر په هيڅ صورت کي آرام نه ور ته راتلی، هغه وخت به رسول الله ﷺ فرمايل چي زموږ خلګو (يعني انبياؤ) ناروغي څومره سخته وي هغومره

سخته د بل هيچا نه وي، او په دې كي هيڅ شک نسته چي اجر او ثواب هم موږ ته زيات وي ،
رسول الله ﷺ د خپلي دغه ناروغۍ په دوران كي څلوېښت غلامان ازاد كړل او تر درو ورځو
ماسوا په نورو ټولو ورځو كي يې له خپلو صحابه كرامو سره د جماعت لمونځ ادا كړ، ځينو
حضراتو ليكلي دي چي رسول الله ﷺ اووه لس لمونځونه نه وركړل او حضرت ابوبكر صديق
رضي الله عنه ته يې حكم وركړ چي هغه خلكو ته لمونځ وركړي .

**آخري تلقين او نصيحت** : په روايتو كي راځي چي رسول الله ﷺ په خپلي ناروغۍ كي تر
ټولو زيات چي د كوم شي نصيحت كوى په هغه كي يو دا وو چي د لمانځه څخه مه غافله كيږئ
او دوهم دا وو چي د خپلو غلامانو او مينزو سره ښه چلن او احسان كوئ ، د وفات په ورځ رسول
الله ﷺ د خپلي مباركي حجرې څخه په راوتلو سره مسجد ته راغلى او د حضرت ابوبكر صديق
رضي الله عنه په امامت كي يې د سهار لمونځ ادا كړ، د لمانځه وروسته يې صحابه كرامو په آخري وار
خطاب وكړ او وه يې فرمايل: اې مسلمانانو ! زه تاسو ته د خداى په امان وايم او تاسو ټول د الله
جل جلاله په ساتنه كي وركوم، الله جل جلاله ستاسو په حق كي زما خليفه يعني غوره كارساز دى اوس چي
زه دنيا پريږدم او ستاسو څخه بېلېږم ځكه تاسو ته دا نصيحت كول ضروري گڼم چي تقوا اختيار
كړئ او نېک كارونه تل كوئ .

**د مرض الموت دوران** : د وفات د ناروغۍ په دوران كي چي كومي پېښي رامنځته سوې د
هغو څخه يوه دا هم ده چي د پنجشنبې په ورځ چي پر رسول الله ﷺ باندي د ناروغۍ د سختۍ
غلبه وه ، رسول الله ﷺ د يوې وصيت نامې د ليكلو اراده وفرمايل او حضرت عبدالرحمن بن
عوف رضي الله عنه ته يې وفرمايل چي د پسه د ملا هډوكي يا يوه تخته راوړه چي زه پر هغه باندي د
ابوبكر صديق رضي الله عنه لپاره وصيت وليكم، حضرت عبدالرحمن رضي الله عنه د رسول الله ﷺ د وينا سره سم
د هډوكي يا تختې راوړلو لپاره تلل وغوښتل چي رسول الله ﷺ وفرمايل: پريږده، اوس يې
اړتيا نه محسوسوم ، (زما يقين دى) چي الله جل جلاله او مسلمانان به د ابوبكر صديق رضي الله عنه په حق كي
اختلاف نه كوي، (مطلب دا چي د ابوبكر صديق رضي الله عنه خلافت به الله ﷺ هم خوښ كړي او ټول
مسلمانان به هم په اتفاق سره د هغه په لاس بيعت وكړي) ،

نقل سوي دي چي كله د رسول الله ﷺ ناروغي سخته سول نو حضرت عباس رضي الله عنه، و
حضرت علي رضي الله عنه ته وويل: د عبدالمطلب د اولاد د مخونو ما ته ښه شناخت دى چي د مرگ آثار
پر هغوى څرنگه ظاهريږي ، زما سره بېره ده چي رسول الله ﷺ كيداى سي له دغه ناروغۍ څخه
پاته نه سي ، نو زما رايه ده چي آخري وخت غنيمت وگڼئ او د رسول الله ﷺ په خدمت كي په

حاضريدو سره ددغه شي (يعني خلافت) غوښتنه وکړئ، حضرت علي ﷺ جواب ورکړ، تاسو پوهيږئ که زه د رسول الله ﷺ څخه دغه شی وغواړم او رسول الله ﷺ يې نه راکړي نو بيا به هم خلک دغه شی ما ته راکړي، مطلب دا چي د خلافت مسئله د عامو مسلمانانو د رايي او د هغوی د اتفاق سره تعلق لري، که ما ته دا يقين وي چي ټول مسلمانان په هر حالت کي ما ته ترجيح راکوي نو ما به د رسول الله ﷺ څخه غوښتنه کړې وي مګر کله چي زه په دې پوهيږم نو په دې اړه رسول الله ﷺ ته څه ويل مناسب نه ګڼم.

په روايتو کي راځي چي د مرض الموت په دوران کي د رسول الله ﷺ سره پنځه يا شپږ او يا اووه ديناره وه چي د بي بي عائشې ﷺ په تحويل کي وه، رسول الله ﷺ د هغه دينارو د صدقه کولو حکم وکړ ددې لپاره چي رسول الله ﷺ خپل وروسته يو شی نه پرېږدي.

**د وفات ورځ**: د مرض الموت د پيل د ورځي او نېټې، او د وفات د ورځي او نېټې په اړه اختلافي اقوال دی، ځکه نو دا ويل هم مشکل دي چي رسول الله ﷺ څو ورځي په مرض الموت کي اخته وو، علماؤ ليکلي دي چي د ذکر سوو اختلافو پر بنياد رسول الله ﷺ دوولس يا اتلس ورځي ناروغ وو، او د علماؤ د باوري قول سره سم د ربيع الاول پر دوهمه نېټه په ۱۱ هجري کال کي د دوشنبې په ورځ له دغه فاني دنيا څخه رحلت وکړ، نقل سوي دي چي هغه وخت ځينو کسانو شک وکړ چي د رسول الله ﷺ روح مبارک د بدن څخه پرواز کړی دی که يا، نو بي بي اسماء بنت عميس ﷺ چي مخکي د جعفر ﷺ ابن ابو طالب په نکاح کي وه او د هغه د شهادت وروسته د حضرت ابوبکر صديق ﷺ په نکاح کي سول او بيا د هغه د وفات وروسته د حضرت علي ﷺ په نکاح کي راغلې وه، د رسول الله ﷺ د بدن مبارک د اوږو په منځ کي په لاس اېښودو سره څرګنده کړل او هغې وويل چي رسول الله ﷺ په فاني دنيا څخه رحلت کړی دی او د رسول الله ﷺ د دواړو اوږو په منځ کي چي کوم دنبوت مهر وو هغه پورته کړل سو، ام المؤمنين ام سلمه ﷺ بيان کوي چي د وفات په ورځ ما خپل لاس د رسول الله ﷺ پر سينه مبارکه راتېر کړ او د هغه ورځي څخه وروسته تر څو اونيو پوري زما د هغه لاس څخه د مشکو خوشبويي راتلل، حال دا چي د هر خوراک په وخت کي او همدارنګه د اوداسه او نورو کارو لپاره مي په پابندۍ سره لاس پرېولی، په شواهد النبوة کي د حضرت علي ﷺ په اړه منقول دي چي يو چا له هغه څخه پوښتنه وکړل چي ستاسو حافظه او فهم دومره ښه ولي سو؟ نو هغه ورته وويل چي ما د رسول الله ﷺ مبارک بدن ته غسل ورکړ نو د رسول الله ﷺ په وريزو مبارکو کي چي کومي اوبه جمع سوي وې ما هغه په خپله ژبه سره پورته کړلې او وه مي څښلې، همدغه کار زه د خپلي

حافظې او فهم د قوت ذريعه ګنم .

**تكفين** : د رسول الله ﷺ د كفن په اړه مختلف روايتونه منقول دي ، مګر صحيح روايت چي له بي بي عائشې ﷺ څخه منقول دی، دادی چي رسول الله ﷺ ته په درو جامو كي كفن وركړل سوی وو ، په هغو كي قميص او لنګوټه نه وه، د بي بي عائشې ﷺ د دغه روايت د مطلب په بيان كي هم اختلافي اقوال دي ، ځينو حضراتو دا ويلي دي چي د بي بي عائشې ﷺ د ارشاد ، چي په هغه كي قميص او لنګوټه نه وه، مطلب دادی چي قميص او لنګوټه په هغه درو جامو كي نه وه بلكه قميص او لنګوټه له هغه درو جامو څخه ماسوا وه، يعني د رسول الله ﷺ په كفن كي پنځه جامې وې، مګر دا خبره د قياس څخه معلوميږي اصل مطلب هغه دی چي نورو حضراتو بيان كړی دی چي د رسول الله ﷺ په كفن مبارک كي له هغه درو جامو څخه ماسوا قميص او لنګوټه بالكل نه وه يعني يوازي درې جامې وې، له همدې كبله د حنفيه په نزد درې جامې يعني لونګ، كفن او لفافه مستحب كفن دی .

**د جنازې لمونځ** : د رسول الله ﷺ د جنازې لمونځ په جماعت سره ادا نه كړل سو او نه چا امامت وركړ، بلكه دا صورت اختيار كړل سو چي بدن مبارک ولمبول سي او كفن وركړل سي، بيا په حجره مباركه كي چيري چي تدفين سوی وو ، كښېښودل سو ، خلګ به د ډلو په شكل كي يوازي يوازي د جنازې په لمونځ كولو سره دباندي وتل، همدارنګه لومړی نارينوو ، بيا ښځو او بيا ماشومانو بېل بېل د جنازې لمونځ اَدا كړ .

**تدفين** : د بي بي عائشې ﷺ په حجره مباركه كي چيري چي د رسول الله ﷺ پاک روح له بدن مبارک څخه پرواز كړی وو ، قبر تيار كړل سو او تدفين په عمل كي راغلل، كله چي قبر ته كښته كېدی نو د رسول الله ﷺ ازاد سوی غلام حضرت شقران ﷺ په لحد كي د رسول الله ﷺ لاندي د رسول الله ﷺ څادر وغوړوی او هغه وويل: زه دا نه خوښوم چي د رسول الله ﷺ وروسته بل څوک دغه څادر استعمال كړي، مګر د يوه روايت سره سم صحابه كرامو د شقران دا خبره خوښه نه كړل او د خاورو اچولو څخه مخكي هغه څادر ځيني ايسته كړل سو ، ځكه ټولو علماؤ په قبر كي د مړي لاندي څادر او بل شی غوړول مكروه ګرځولي دي، د رسول الله ﷺ تدفين د چارشنبې په شپه يا د يوه روايت سره سم د سه شنبې په ورځ د لمر زوال څخه وروسته په عمل كي راغلی وو .

**قبر شريف** : د رسول الله ﷺ قبر مبارک بغلي (لحد) جوړ كړل سو ، او د لحد له خوا نهه او مې خښتي ودرول سوې او بند كړل سو ، او هغه قبر مسنم (يعني د اوښ د بوک په ډول پورته سو)

بیا پر هغه ډبري واچول سوې او اوبه ورباندي وپاشل سوې، له دې کبله په اتفاق سره د څلورو امامانو په نزد مسنم قبر جوړول مستحب دي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### کله چي د اهل مدينه نصيب وېښ سو

﴿۵۷۰۴﴾: عَنِ الْبَرَاءِ قَالَ أَوَّلُ مَنْ قَدِمَ عَلَيْنَا مِنْ أَصْحَابِ رسول الله صَلَّى

د حضرت براء رضی الله عنه څخه روايت دی چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم په صحابه کرامو کي چي کوم خلک تر ټولو لومړی (مديني ته د هجرت کولو څخه مخکي) موږ ته راغلل هغه

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ وَابْنُ أُمِّ مَكْتُومٍ فَجَعَلَا يُقْرِئَانِنَا الْقُرْآنَ

مصعب بن عمير او ابن ام مكتوم وه، دوی به موږ ته قرآن وایه،

ثُمَّ جَاءَ عَمَّارٌ وَبِلَالٌ وَسَعْدٌ ثُمَّ جَاءَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ فِي عِشْرِينَ ثُمَّ جَاءَ

ددوی څخه وروسته عمار رضی الله عنه، بلال رضی الله عنه او سعد رضی الله عنه راغلل، بيا حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه د لس صحابه کرامو سره راغلل، د هغه څخه وروسته

النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَا رَأَيْتُ أَهْلَ الْمَدِينَةِ فَرِحُوا بِشَيْءٍ فَرَحَهُمْ بِهِ

رسول الله صلی الله علیه وسلم تشريف راوړ، د مديني اوسيدونکي چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم په راتلو څومره خوشحاله سوه دومره ما هيڅکله خوشحاله نه وه ليدلي

حَتَّى رَأَيْتُ الْوَلَائِدَ وَالصِّبْيَانَ يَقُولُونَ هَذَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

تر دې چي ما د هلکانو او انجونو څخه دا واوريدل چي دادی رسول الله صلی الله علیه وسلم تشريف راوړ، د

قَدْ جَاءَ فَمَا جَاءَ حَتَّى قَرَأْتُ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى فِي سُوَرٍ مِثْلِهَا مِنَ الْمُفَصَّلِ. رواه البخاري

رسول الله صلی الله علیه وسلم د راتلو څخه مخکي ما سورة سبح اسم ربک الاعلی او څو نور مفصل سورتونه زده کړي وه. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\۶۹۹، رقم: ۴۹۴۱.

**د لغاتو حل**: اولائد: جمع وليدة وهي الجارية الصغيرة (كوچنۍ انجلۍ)

**تشريح**: د دغه حديث شريف څخه ثابته سول چي سورة سبح اسم ربک الاعلى په مکه کي نازل سوی دی مګر ځيني حضرات وايي چي د دغه سورت آيت: (قد افلح من تزکی و ذکر اسم ربه فصلی) د صدقه فطر په اړه دی او د صدقه فطر او اختر د لمونځو واجب کېدل د دوهم هجري کال پېښه ده ځکه نو سورة سبح اسم ربک الاعلى ته مکي سورت ويلو باندي سوال کېدای سي، مګر که چيري دا وويل سي چي د دغه دوو آياتو څخه پرته نور ټول سورت په مکه کي نازل سوی دی نو بيا ذکر سوی سوال نه پيدا کيږي، مګر په حقيقت کي نه دغه سوال صحيح دی او نه دا احتمال، ځکه چي د صحيح روايت سره سم دغه پوره سورت په مکه کي نازل سوی دی او وروسته مدينې ته په راتلو سره چي صدقه فطر او د اختر لمونځ واجب سو نو رسول الله ﷺ هغه وخت د دغه دواړو اياتو مراد بيان کړ چي د دغه مضمون په اصل کي د صدقه فطر او اختر د لمانځه د اهميت او فضيلت سره تعلق لري، په نورو الفاظو دغه خبره داسي هم کيدای سي چي په دغه دواړو آياتو کي يوازي د مالي او بدني عبادتونو، تلقين او ترغيب دی چي په هغه کي د اصل مراد بيان نسته، دغه اصل مراد وروسته هغه وخت بيان کړل سو کله چي صدقه فطر او د اختر لمونځونه واجب وګرځول سول.

## هغه راز چي يوازي ابوبکر صديق رضي الله عنه و پيژندی

﴿۵۷۰۵﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ

جَلَسَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَقَالَ إِنَّ عَبْدًا خَيَّرَهُ اللّٰهُ بَيْنَ أَنْ يُؤْتِيَهُ مِنْ زَهْرَةِ الدُّنْيَا

پر منبر کښېنستی، ارشاد يې وفرمايه: الله تعالى خپل يو بنده ته دا اختيار ورکړی دی چي هغه خو دي يا د دې دنيا نعمتونه چي خدای تعالی ورکوي

مَا شَاءَ وَبَيْنَ مَا عِنْدَهُ فاختار ماعنده فَبَكَى أَبُو بَكْرٍ قَالَ فَدَيْنَاكَ بِآبَائِنَا

يا څومره چي بنده خوښوي اختيار کړي يا د الله تعالى قربت دي اختيار کړي، بنده د الله تعالى قربت اختيار کړي. د دې اوريدو سره حضرت ابوبکر رضي الله عنه په ژړا سو او عرض يې وکړ اې د الله

وَأُمَّهَاتِنَا فَعَجِبْنَا لَهُ فَقَالَ النَّاسُ انْظُرُوا إِلَى هَذَا الشَّيْخِ يُخْبِرُ رَسُولُ اللّٰهِ

رسوله ! زموږ مور او پلار دي پر تا قربان سي ، موږ خلک د حضرت ابوبکر رضی اللہ عنہ د دې خبري په اوریدو سره په تعجب کي سو ، ځیني خلکو وویل دغه سپین ږیري ته وګورئ رسول الله ﷺ د یو

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ عَبْدٍ خَيَّرَهُ اللّٰهُ بَيْنَ أَنْ يُؤْتِيَهُ مِنْ زَهْرَةِ الدُّنْيَا

بنده حال بیانوي چي خدای تعالی د دنیا د نعمتونو او آخرت په منځ کي اختیار ورکړی دی او

وَبَيْنَ مَا عِنْدَهُ وَهُوَ يَقُولُ فَدَيْنَاكَ بِآبَائِنَا وَأُمَّهَاتِنَا فَكَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ الْمُخَيَّرَ وَكَانَ أَبُو بَكْرٍ هُوَ أَعْلَمَنَا. متفق عليه.

دی دا وایي چي موږ او زموږ مور او پلار دي پر تاسو قربان سي ، (مګر وروسته معلومه سوه) چي کوم بنده ته اختیار ورکړل سوی وو هغه رسول الله ﷺ وو او ددې حقیقت څخه حضرت ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ تر موږ زیات خبر وو ،. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\ ۲۲۷، رقم: ۳۹۰۴، ومسلم ۴\ ۱۸۵۴، رقم: ۲- ۲۳۸۲.

**تشريح**: دا د حضرت ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ د فهم او ادراک کمال وو چي هغوی د رسول الله ﷺ د ارشاد په اوریدو سره پوه سول چي د رسول الله ﷺ د بېلوالي وخت نژدې راغلی دی او زموږ په منځ کي د رسول الله ﷺ د څو ورځو مېلمه دی، هغوی دغه حقیقت یا خو د رسول الله ﷺ د سختي ناروغۍ څخه و پېژندی ، یا هغه ژوروالي ته په تللو سره د ارشاد رمز وپلټه چي د دنیا د عزت او نعمتونو څخه مخ اړول او د آخرت ابدي حقیقتونه په رضا او رغبت سره اختیارول هغه وصف دی چي یوازي د الله جل جلالہ د نیکو او مقربو بندګانو مقام تسلیم او قرب ظاهروي، بلي خوا ته هغه پوهیدی چي ددغه دنیا نعمتونه د مقام سید الانبیاء د شان وړ نه دي نو د هغه ذهن دې ته منتقل سو چي رسول الله ﷺ د یو بنده په ذریعه په اصل کي خپل ذات ته اشاره کوي چي د دنیوي ژوند په پرېښودو سره د مرګ او بقاء حق اختیارولو فیصله یې وکړل .

**وداعي لمونځ او وداعي خطبه**

﴿۵۷۰۶﴾: وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ صَلَّى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عقبه بن عامر رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د احد پر شهیدانو اته کاله

عَلَى قَتْلَى أُحُدٍ بَعْدَ ثَمَانِي سِنِينَ كَالْمُوَدِّعِ لِلْأَحْيَاءِ وَالْأَمْوَاتِ ثُمَّ طَلَعَ الْمِنْبَرَ

وروسته لمونځ وکړ لکه رخصت اخیستونکی له ژوندو او مړو څخه، ددې څخه وروسته رسول

فَقَالَ إِنِّي بَيْنَ أَيْدِيكُمْ فَرَطٌ وَأَنَا عَلَيْكُمْ شَهِيدٌ وَإِنَّ مَوْعِدَكُمُ الْحَوْضُ وَإِنِّي

الله ﷺ منبر ته وختی اووه يې فرمايل: زه ستاسو په مخکي پيشوا يم او زه پر تاسو شاهد يم او ستاسو سره زما د ملاقات مقام حوض کوثر دی، او

لَأَنْظُرُ إِلَيْهِ وانا في مَقَامِي هَذَا واني قد اعطيت مفاتيح خزائن الارض وَإِنِّي

اوس پر دې ځای ولاړ زه حوض کوثر وينم او البته ما ته د مځکي د خزانو کيلياني راکړل سوي

لَسْتُ أَخْشَى عَلَيْكُمْ أَنْ تُشْرِكُوا بعدي وَلَكِنِّي أَخْشَى عَلَيْكُمُ الدُّنْيَا أَنْ

دي، او زه ددې څخه نه بيرېږم چي تاسو ټول به زما څخه وروسته مشرکان سئ بلکه ددې څخه بيرېږم چي تاسو به د دنيا په لور رغبت کوئ او په دنيا کي به اخته سئ

تَنَافَسُوهَا فيها وَزَادَ بَعْضُهُمْ فَتَقْتَتِلُوا فَتَهْلِكُوا كَمَا هَلَكَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ. متفق عليه.

او ځيني راويانو په دغه روايت کي دا الفاظ زيات بيان کړي دي چي بيا به تاسو په خپل منځ کي قتل او مقاتلې کوئ او هلاک به سئ، لکه څرنګه چي ستاسو څخه مخکي خلک هلاک سوي دي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۳۴۸، رقم: ۴۰۴۲، ومسلم ۴\۱۷۹۵، رقم: ۳۰-۲۲۹۶.

**د لغاتو حل**: فرط: هو الذي يقتدم الواردة فيهيئ لهم الرشاء والدلاء ويسقى لهم.

**تشريح**: لکه څرنګه چي په عامه توګه کيږي چي يو څوک د خپل اوسني ځای څخه بل ځای ته نقل کيږي او د بېلوالي څخه مخکي خپلو لوړنيو خلکو ته وداعي سلام او کلام کوي، همدارنګه رسول الله ﷺ د ژوند په آخره وخت کي د خپلو صحابه کرامو په مخکي د وفات د ورځي څخه څو ورځي مخکي د احد د شهيدانو لپاره لمونځ وکړ، يعني مړو ته يې خدای په اماني وويل، او بيا منبر ته په ختلو سره يې د خپلو صحابه کرامو په مخکي داسي بليغ ارشاد

وفرمایه چي د هغه څخه د رسول الله ﷺ د دنیا څخه رخصت کېدل او ژوند ته وداع ویل مفهوم وو، مړو ته د خدای په اماني ویلو مطلب خو دا وو چي له هغوی سره د دنیوي تعلق او لړۍ اوس ختمېدونکي ده چي د دعاء او استغفار په صورت کي تړول عمري جاري وه او ژوندو ته د وداع ویلو مطلب دا وو چي رسول الله ﷺ ډېر ژر د خپلو صحابه کرامو او خپلو قریبانو څخه تلونکی دی او په دغه دنیا کي د ذات رسالت له وجود څخه چي کوم نور هدایت او فیضان تر لاسه کېدی هغه به بیا هیچا ته په دې دنیا کي تر لاسه نه سي.

د اُحد د شهیدانو لپاره یې لمونځ وکړ: په دې اړه یو کوچنی فقهي بحث دی او هغه دا چي د حنفیه په مذهب کي د شهیدانو لپاره هم د جنازې لمونځ سته ځکه د حنفي علماؤ په نزد دلته د لمانځه لفظ پر خپل معروف معنی یعني د جنازې د لمانځه لپاره استعمال سوی دی، حال دا چي شافعي علماء چي د هغوی په مذهب کي د شهیدانو لپاره د جنازې لمونځ نسته، وایي چي د احد د شهیدانو لپاره د لمانځه ورکولو څخه مراد دادی چي رسول الله ﷺ د احد د شهیدانو په حق کي د استغفار دعاء وکړل.

زه ستاسو په وړاندي ستاسو امیر منزل وینم، امیر منزل د فرط ترجمه ده او فرط په عربي کي هغه چا ته وایي چي د قافلې په پرېښودو سره خپل منزل ته مخکي ورسیږي چي هلته د قافلې لپاره د هستوګن ځای، خوراک او نورو شیانو بندوبست وکړي، نو رسول الله ﷺ د دغه ارشاد په ذریعه دې ته اشاره وکړل چي زه ستاسو څخه مخکي آخرت ته ځم چي هلته ستاسو د کار جوړولو، خلاصون او شفاعت اسباب تیار کړم یا دا چي په حشر کي ستاسو شفاعت ما ته راکول کیږي ځکه ستاسو څخه مخکي هلته په رسېدو سره زه به د شفاعت لپاره تیار یم.

زه ستاسو شاهد یم، د دې څخه د رسول الله ﷺ مراد دا وو که زه تاسو خلګ پرېږدم او ځم مګر ستاسو احوال او معاملاتو څخه به بې تعلق او لا علم نه یم ځکه چي ستاسو اعمال او حالات به هلته ما ته وړاندي کیږي یا دا چي زه ستاسو شاهد یم، هلته به زه ستاسو د فرمانبرداري او اطاعت او ستاسو د دعوت اسلام قبلولو شاهدي ورکوم.

د وعدې پوره کېدو ځای حوض کوثر دی، د دې مطلب دادی چي په آخرت کي حوض کوثر هغه ځای دی چي هلته په رسېدو سره د نېک باطن او بدباطن او مؤمن او منافق په منځ کي امتیاز قائم کړل سي، همدارنګه په محشر کي ستاسو د خاص شفاعت چي زما وعده ده هغه به پر حوض کوثر باندي پوره سي، چي هلته به یوازي مؤمنانو ته زما شفاعت د حوض کوثر څخه د اوبه کېدو موقع تر لاسه کیږي، دا مطلب ملا علي قاري رحمة الله علیه لیکلی دی، او شیخ عبدالحق

رحمة الله عليه دا مطلب بیان کړی دی چي په محشر کي زما د لیدني چي ستاسو سره وعده ده ڈ هغه پوره کولو او زما او ستاسو په منځ کي د ملاقات ځای حوض کوثر دی .

حوض کوثر وینم، دغه ارشاد پر خپله ظاهري معنی باندي محمول وو، په دې کي د تاویل امکان نسته، مطلب دا چي هغه وخت رسول الله ﷺ پر خپل منبر باندي ناست صحابه کرامو ته یې خطاب کوی یعني د رسول الله ﷺ لپاره د حوض کوثر د آخرت د پردې څخه بې حجابه کړل سو او رسول الله ﷺ په خپلو ظاهرو سترګو سره هغه ولیدی .

ما ته د مځکي د خزانو کیلی راکړل سوي دي، مطلب دا چي زما څخه وروسته به د امت د مجاهدینو په لاسو لوی لوی سیمي او ښارونه فتح سي او د هغه خلګ به ایمان او اسلام قبول کړي د هغوی خزانې به زما د امت په لاس ورسي .

په دنیا کي به ستاسو زړه لګېدل زیات سي، ددغه جملې په ذریعه رسول الله ﷺ دې ته اشاره وفرمایل چي زما څخه وروسته هم تاسو خلک به ان شاء الله پر دین باندي قائم یاست، دا بېله خبره ده چي ځیني بدبخته خلګ د کفر او شرک تیارو ته بېرته وګرځي، مګر په مجموعي توګه ټول امت په دوهم ځل ګمراه کیدای نسي، مګر دا خو کیدای سي چي د وخت په تېرېدو سره ستاسو په دیني ژوند کي هم کمزوري راسي او تاسو په دنیا کي ډېره برخه اخیستل پیل کړي چي ستاسو د شان او حیثیت څخه به لیري خبري وي او ستاسو دیني او ملي ژوند به هم د هغه مضرو اثراتو ښکاره سي، دغه ارشاد په اصل کي د امت لپاره خبرداری دی چي د مؤمنانو شان دا نه دی چي هغوی د دنیا د فاني نعمتونو او خوندونو په لور د ضرورت څخه زیات مائل وي او دهغوی مقصد دنیا جوړه سي، د هغوی شان خو دادی چي هغوی خپل ټول مقصد او خپل ټول رغبت د آخرت نعمتونه وګرځوي ځکه چي باقي او پاته کېدونکی خو هغه دی، دا حقیقت قرآن کریم داسي بیان کړی دی :

وَفِي ذَٰلِكَ فَلْيَتَنَافَسِ الْمُتَنَافِسُونَ

امام نووي رحمة الله عليه لیکلي دي: ددغه حدیث څخه د رسول الله ﷺ د زیاتو معجزو اظهار کیږي، یو خو دا چي رسول الله ﷺ وفرمایل : زما امت به د مځکي د خزانو خاوندان سي، بالکل رېښتیا او د واقعي مطابق ثابت سو، دوهم دا چي رسول الله ﷺ د خپل امت په اړه دا خبر ورکړ چي هغوی به نه مرتد کیږي نو همداسي وسول، چي الله جل جلاله، امت محمدي د کفر او ارتداد څخه وژغوری، او دریم دا چي د رسول الله ﷺ دا فرمایل هم چي زما د امت خلک به په دنیا کي اخته سي، بالکل صحیح سو .

## د رسول الله ﷺ د ژوند اخیري لمحې

﴿۵۷۰۷﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ إِنَّ مِنْ نِعَمِ اللّٰهِ عَلَيَّ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روایت دی چې د خدای جل جلاله د نعمتونو څخه چې زما لپاره خاص سوي دي تر ټولو لوی نعمت دادی چې رسول الله ﷺ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُوُفِّيَ فِي بَيْتِي وَفِي يَوْمِي وَبَيْنَ سَحْرِي وَنَحْرِي وَأَنَّ اللّٰهَ جَمَعَ بَيْنَ

زما په کور زما نمبر په ورځ وفات سو، او رسول الله ﷺ زما د سینې او غاړې په منځ کې وفات سو، او د الله تعالی یو خاص نعمت پر ما دا وسو چې خدای تعالی

رِيقِي وَرِيقِهِ عِنْدَ مَوْتِهِ دَخَلَ عَلَيَّ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ وَبِيَدِهِ السِّوَاكُ وَأَنَا

د رسول الله ﷺ د وفات پر وخت زما او د رسول الله ﷺ لعاب (ناړي) یو ځای کړې، (چې هغه داسي پېښه سوه چې عبدالرحمن بن ابي بکر هغې ته راغلی دغه وخت د هغه په لاس کې مسواک وو

مُسْنِدَةٌ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَأَيْتُهُ يَنْظُرُ إِلَيْهِ وَعَرَفْتُ أَنَّهُ

او رسول الله ﷺ زما د سینې سره ځنګ وهلی وو، ما ولیدل چې رسول الله ﷺ د عبدالرحمن یا مسواک په لور ګوري ما ته معلومه سوه چې د رسول الله ﷺ

يُحِبُّ السِّوَاكَ فَقُلْتُ آخُذُهُ لَكَ فَأَشَارَ بِرَأْسِهِ أَنْ نَعَمْ فَتَنَاوَلْتُهُ فَأَمَرَّهُ وَبَيْنَ

مسواک ډېر خوښ وو ما ورته عرض وکړ اې د الله رسوله! ایا ستاسو لپاره د عبدالرحمن څخه مسواک واخلم، رسول الله ﷺ د سر مبارک په اشارې سره ظاهره کړه چې هو، نو ما د عبدالرحمن څخه مسواک واخیستی او رسول الله ﷺ ته مي ورکړ، رسول الله ﷺ ته د هغه

يَدَيْهِ رَكْوَةٌ فِيهَا مَاءٌ فَجَعَلَ يُدْخِلُ يَدَيْهِ فِي الْمَاءِ فَيَمْسَحُ بِهِمَا وَجْهَهُ يَقُولُ

مسواک ژوول مشکل سول ځکه چې هغه سخت وو نو ما ورته عرض وکړ ایا زه دا مسواک نرم کړم؟ رسول الله ﷺ اجازه راکړه نو ما هغه مسواک په خوله سره نرم کړ، بیا رسول الله ﷺ په خپلو غاښونو مبارکو وګرځوی او دغسي زما ناړې د رسول الله ﷺ د ناوړ مبارکو سره د وفات پر وخت یو ځای سوې او د رسول الله ﷺ مخکي د اوبو یو لوښی ایښودل سوی وو، رسول الله ﷺ به د هغه اوبو څخه په لاس کي را اخیستې او پر مخ مبارک به یې ګرځولې او فرمایل به یې

لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ إِنَّ لِلْمَوْتِ سَكَرَاتٍ ثُمَّ نَصَبَ يَدَهُ فَجَعَلَ يَقُولُ فِي الرَّفِيقِ الْأَعْلَى حَتَّى قُبِضَ وَمَالَتْ يَدُهُ. رواه البخاري

لااله الاالله، بېشکه د مرګ پر وخت سختي ده، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ لاس مبارک پورته کړاو دا یې و فرمایل ما د رفیق اعلی سره یو ځای کړئ، رسول الله ﷺ دا فرمایل تر دې چي روح مبارک یې قبض کړل سو او لاسونه مبارک یې کښنته ولویدل. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\ ۱۴۴، رقم: ۴۴۴۹.

**د لغاتو حل**: نحري: موضع القلادة من اعلى الصدر.

**تشريح**: او زما د وار په ورځ یې وفات وکړ، بي بي عائشې ﷺ دې ته اشاره وکړل چي که څه هم رسول الله ﷺ د وفات تر ورځي پوري د مرض الموت په ټول وخت کي زما په کور کي وو، مګر زما نوره خوشبختي دا وه چي په کومه ورځ رسول الله ﷺ وفات سو، د هغه حساب په اعتبار هغه ورځ وه چي په هغه کي به رسول الله ﷺ زما سره وو، په جامع الاصول کي یې لیکلي دي چي په کومه ورځ د رسول الله ﷺ د مرض الموت پیل د سردرد مبارک څخه وسو په هغه ورځ هم له بي بي عایشې ﷺ سره وو او د هغه وروسته چي په کومه ورځ د سر په درد او ناروغۍ کي سختوالی راغلی نو رسول الله ﷺ د بي بي میمونې ﷺ سره وو، هغه وخت د رسول الله ﷺ ازواج مطهرات په خوښي او رغبت سره رسول الله ﷺ ته اجازه ورکړل، دمرض الموت سختوالی دوولس ورځي وو او د رسول الله ﷺ وفات د ربیع الاول په میاشت کي د دوشنبې په ورځ د څاښت په وخت کي وسو، د نېټې په اړه ځینو حضراتو د ربیع الاول ۱۲ نېټه بیان کړې ده او له اکثرو روایتو څخه هم دا ثابتیږي.

زما د سینې او اوږو په منځ کي، مطلب دا چي پاک روح کله د بدن مبارک څخه پرواز وکړ نو رسول الله ﷺ د بي بي عائشې ﷺ د سینې او غاړي سره څنګ وهلی وو، دا خبره د بي بي عائشې ﷺ د مقام محبوبیت او کمال قرب باندي دلالت کوي، د بي بي عائشې ﷺ دغه ارشاد ډېر نقل سوی دی او د ابن سعد ﷺ دا روایت چي هغه وخت د رسول الله ﷺ سر مبارک د حضرت علي ﷺ په غېږ کي وو، خلاف نه دی ځکه چي لومړی خو هغه دواړو چي په کومو طریقو سره دا روایت نقل کړی دی په هغه کي هیڅ یو طریقه داسي نه ده چي په هیڅ ډول د یوې خرابۍ څخه خالي نه وي، دوهم دا که چیري دا طریقه صحیح هم ومنل سي نو ددغه روایت به دا

تاویل کیږي چي د رسول الله ﷺ سر مبارک د حضرت علي رضي الله عنه په غیږ کي د وفات څخه مخکي وو. زما او د رسول الله ﷺ ناړي یې جمع کړي وې، یعني کله چي رسول الله ﷺ د عبدالرحمن مسواک په خوله مبارکه واخیست او استعمالول یې وغوښتل او د هغه د سخت کېدو په وجه دا مشکله سول نو بیا بي بي عائشې رضي الله عنها هغه مسواک په خپلو غاښو سره نرم کړ او رسول الله ﷺ هغه نرم سوی مسواک په خپلو غاښو پوري وموږی، همدارنګه د دواړو ناړي د بي بي عائشې رضي الله عنها په خوله مبارکه کي هم جمع سوې، او د رسول الله ﷺ په خوله مبارکه کي هم، نو بي بي عائشې رضي الله عنها دا څرګنده کړل چي د رسول الله ﷺ د مقدسو ناړو د برکت تر لاسه کول زما لپاره ډېر لوی نعمت وو ځکه چي هغه وخت د ټولو برکتونو او سعادتونو منتهاء وه، یا د دغه جملې په ذریعه بي بي عائشې رضي الله عنها دې ته اشاره وکړل چي د رسول الله ﷺ د ناوړ برکت ما ته هغه وخت تر لاسه سو او تر دې مخکي هیڅکله دا نعمت ما ته تر لاسه سوی نه وو.

او په لندولو سره پر خپل مخ مبارک یې راتېروی، ددې څخه یوه خبره خو دا معلومه سول چي هغه وخت د رسول الله ﷺ پر مزاج مبارک د تودوخي ډېره غلبه وه او د لانده لاس پر مخ باندي راتېرولو سره تر څه حده ډاډ تر لاسه کیدی. مګر په دې کي د رسول الله ﷺ له خوا د خپل عجز او عبودت د اظهار اشاره هم وه او ددې څخه دا خبره هم راووتل چي د سکرات الموت په وخت کي دا عمل د هر ناروغ لپاره صحیح دی او که خپله ناروغ پر دې قادر نه وي نو روغ کسان دي په دغه سنت عمل باندي په عمل کولو سره لاس لندوي او د ناروغ پر مخ دي یې راتېروي، یا دهغه په ستوني کي اوبه څڅوي، ځکه چي په دې سره په تکلیف کي سپکوالی رائحي، بلکه که چیري حالات سخت وي نو بیا اوبه څڅول واجب کیږي.

سکرات په اصل کي د سکرة جمع ده چي معنی یې د سختۍ ده، او د سکرات الموت څخه د ساه ختلو په وخت کي هغه سختي او تکلیف مراد دی چي په دننه سوزش او طبیعت ته د پیښېدونکو سختیو په صورت کي مړ کېدونکي ته زغمل وي، او دغه سختۍ انبیاء او ارباب حق ته هم وي، او یوازي د الله جل جلاله فضل او کرم د داسي سختۍ په وخت کي مرسته کوونکي وي، نو د سکرات الموت څخه پناه غوښتل او د مړ کېدونکي ناروغ لپاره په دغه سختیو کي د اسانۍ دعاء کول ډېر ضروري وي.

په یو بل روایت کي د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه دا الفاظ منقول دي چي ما رسول الله ﷺ د نزع (زکندن) په وخت کي ولیدی چي رسول الله ﷺ له ځان سره ایښی د اوبو په پیاله کي خپل لاس مبارک لندوی او پر مخ یې راتېروی او پر ژبه مبارکه یې دا دعاء جاري وه: لااله الا الله ان

الموت سکرات، په يو بل روايت کي د سکرات الموت پر ځای د منکرات الموت الفاظ دي،
مطلب په دواړو صورتو کي يو دی چي اي الله! د مرګ د دغه سختيو په وخت کي زما مرسته وکړې.
په رفيق اعلی کي شامل کړې: د رفيق لفظ اسم جنس دی او د دغه لفظ اطلاق پر فرد واحد
باندي هم کيږي او پر ډېرو باندي هم کيږي، د رفيق اعلی څخه مراد انبياء کرام دي چي اعلي
عليين ته رسيدلي دي، د دې تائيد د هغه روايت څخه هم کيږي چي په هغه کي د دغه دعاء الفاظ
مذکور دي (يعني له انبياؤ سره)، صديقينو سره، شهيدانو او صالحانو سره چي هغوی ښه
رفيقان دي، يا دا چي د رفيق اعلی څخه مراد ملاء اعلی او عالم ملکوت يعني په آسمانو کي
اوسېدونکي ملائکي او نور وي، او ځينو حضراتو دا ليکلي دي چي د رفيق اعلی څخه مراد
الله ﷻ دی چي پر الله ﷻ باندي هم د رفيق اطلاق منقول دی لکه په يوه روايت کي راغلي دي
چي د هغه له خوا رسول الله ﷺ ته دا اختيار ورکړل سوی دی که تاسو په دنيا کي څو ورځي نور
اوسېدل خوښوئ او که هغه (الله ﷻ) ته ورځي ، رسول الله ﷺ وفرمايل: اخترت الرفيق
الاعلی، يعني ما رفيق اعلی اختيار کړ.

## انبياؤ ته د مرګ څخه مخکي اختيار

﴿۵۷۰۸﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ سَمِعْتُ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَا مِنْ

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي هر

نَبِيٍّ يَمْرَضُ إِلَّا خُيِّرَ بَيْنَ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَكَانَ فِي شَكْوَاهُ الَّذِي قُبِضَ أَخَذَتْهُ

نبي ته د مرګ پر وخت د دنيا او آخرت په منځ کي اختيار ورکول کيږي ، او د رسول الله ﷺ د
وفات په وخت کي سخت ټوخی کېدی ما په دې حالت کي د رسول الله ﷺ څخه دا واوريدل

بُحَّةٌ شَدِيدَةٌ فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمت عليهم مِنَ النَّبِيِّينَ
وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِينَ فَعَلِمْتُ أَنَّهُ خُيِّرَ. متفق عليه.

چي اې الله ! ما په هغه خلکو کي شامل کړې چي پر هغوی تا خپل انعام کړی دی يعني په نبيانو،
صديقانو، شهيدانو او صالحانو کي، د دغه آواز اوريدو سره ما معلومه کړه چي رسول الله ﷺ
د آخرت سفر ته اختيار ورکړ. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\۲۵۵، رقم: ۴۵۸۶، ومسلم ۴\۱۸۹۳، رقم: ۸۶- ۲۴۴۴.

## د بي بي فاطمې رضي الله عنها پريشاني

﴿۵۷۰۹﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ لَمَّا ثَقُلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَعَلَ يَتَغَشَّاهُ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي کله د رسول الله ﷺ د ناروغۍ سختي دې حد ته ورسيدل چي د مرض سختي به سخت خفگان پر راويستی

الكرب فَقَالَتْ فَاطِمَةُ عَلَيْهَا السَّلَام وَاكَرْبَ أَبَاهُ فَقَالَ لَهَا لَيْسَ عَلَى أَبِيكِ

نو بي بي فاطمې وويل: آه زما باباجان، څومره سختي او تکليف دی، ددې اوريدو سره رسول الله ﷺ وفرمايل: د نن ورځي څخه وروسته ستا پر پلار هيڅ

كَرْبٌ بَعْدَ الْيَوْمِ فَلَمَّا مَاتَ قَالَتْ يَا أَبَتَاهُ أَجَابَ رَبًّا دَعَاهُ يَا أَبَتَاهُ مَنْ جَنَّةُ

سختي او تکليف نسته، بيا چي رسول الله ﷺ وفات سو نو بي بي فاطمې رضي الله عنها وويل باباجانه تاسو د خدای جل جلاله دعوت قبول کړ او خپل پروردګار ته ولاړې، باباجانه! اې هغه شخصيته!

الْفِرْدَوْسِ مَأْوَاهُ يَا أَبَتَاهُ إِلَى جِبْرِيلَ نَنْعَاهُ فَلَمَّا دُفِنَ قَالَتْ فَاطِمَةُ عَلَيْهَا

چي د هغه ځای جنت الفردوس دی، باباجانه! موږ ستاسو د وفات خبر جبرائيل عليه السلام ته رسوو، بيا چي رسول الله ﷺ دفن کړل سو نو بي بي فاطمې وويل:

السَّلَام يَا أَنَسُ أَطَابَتْ أَنْفُسُكُمْ أَنْ تَحْثُوا عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ التُّرَابَ. رواه البخاري.

اې انس! تاسو دا څنګه زغمل چي پر رسول الله ﷺ مو خاوري اچولې؟. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۸\۱۴۹، رقم: ۴۴۶۲.

په دې اړه د حضرت بي بي فاطمې رضي الله عنها دوه شعرونه په لاندي ډول دي:

ماذا على من شم تربة احمد ان لم يشم مدى الزمان غواليا

صبت على مصائب لو انها صبت على الايام صرن لياليا

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### مدينه په غم کي ډوبه سوه

﴿۵۷۱۰﴾: عَنْ أَنَسٍ قَالَ لَمَّا قَدِمَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دی کله چي رسول الله ﷺ مدينې ته تشريف راوړ

لَعِبَتِ الْحَبَشَةُ بِحِرَابِهِمْ فَرَحًا لِقُدُوْمِهِ. رواه أبو داود وفي رواية الدارمي

نو حبيشانو د نيزو لوبه ښودل له وجهي د خوشحالۍ په راتللو دده، ابوداؤد، او د دارمي په

قَالَ مَا رَأَيْتُ يَوْمًا قَطُّ كَانَ أَحْسَنَ وَلَا أَضْوَأَ مِنْ يَوْمٍ دَخَلَ عَلَيْنَا فِيْهِ رَسُوْلُ

روايت کي دا الفاظ دي چي انس رضی الله عنه وويل: ما هيڅ يو ورځ د هغه ورځي څخه زيات حسينه او روښانه نه ده ليدلې په کومه ورځ چي رسول الله ﷺ مدينې ته تشريف راوړی وو،

اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَا رَأَيْتُ يَوْمًا كَانَ أَقْبَحَ وَلَا أَظْلَمَ مِنْ يَوْمٍ مَاتَ

او د هغه ورځي څخه زياته بده او تياره ورځ مي نه ده ليدلې په کومه ورځ چي رسول الله ﷺ

فِيْهِ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفِيْ رِوَايَةِ التِّرْمذي قَالَ لَمَّا كَانَ الْيَوْمُ

وفات سو، او د ترمذي په روايت کي دا الفاظ دي چي انس رضی الله عنه وويل هر کله چي هغه ورځ

الَّذِيْ دَخَلَ فِيْهِ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ أَضَاءَ مِنْهَا كُلُّ

راغلل په کومه ورځ چي رسول الله ﷺ مدينې منورې ته تشريف راوړ نو روښانه سو هر

شَيْءٍ فَلَمَّا كَانَ الْيَوْمُ الَّذِيْ مَاتَ فِيْهِ أَظْلَمَ مِنْهَا كُلُّ شَيْءٍ وَمَا نَفَضْنَا أَيْدِيَنَا عَنِ التُّرَابِ وَإِنَّا لَفِيْ دَفْنِهِ حَتَّى أَنْكَرْنَا قُلُوْبَنَا.

شی د رسول الله ﷺ په تشريف راوړلو سره هر شی روښانه سو، بيا چي هغه ورځ راغلل چي رسول الله ﷺ وفات سو نو پر ټولو شيانو تاريکي خپره سول، او د رسول الله ﷺ د دفن کيدو څخه وروسته موږ لا د خاورو څخه لاس نه وه څنډلي چي موږ خپل زړونه نا اشنا وليدل.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۲۲۱، رقم: ۴۹۲۳، والدارمي ۱\۵۴، رقم: ۸۸، والترمذي ۵\۵۴۹، رقم: ۳۶۱۸

**د لغاتو حل**: نزل به: اي الموت يعني علاماته (د مرګ نښې راتلل)

**تشريح**: په مدينه منوره کې د رسول الله ﷺ راتګ ورځ ډېره ښکلې هم وه او ډېر د افسوس هم وه ځکه چې هغه ورځ مشتاقان جمال لپاره د وصال او قرب ورځ وه ، د هغوی د غوښتنو د تکميل ورځ وه نه يوازې دا چې د هغوی زړه او دماغ خلاص سوی وو بلکه د هغوی تر ډېرو الو پورې د نبوت نور ځليدی او بيا چې هغه ورځ راغلل چې د نبوت لمر له دنيا څخه رخصت سو نو د مدينې اوسېدونکو ته تياره سول ، هرې خوا ته د غم تياره خپره سوه ځکه چې هغه ورځ مشتاقان جمال د نبوت لپاره د فراق ورځ وه د هغوی د خوشحاليو د بېلوالي ورځ وه .

د يو بل څخه نه پېژندنه مو محسوس کړل، مطلب دا چې زموږ څخه د رسول الله ﷺ تلل او د دنيا څخه د نبوت د لمر د رخصتېدو په وجه پر موږ چې کومه تياره خپره سول چې زموږ د زړونو هغه پاکي او نورانيت چې د رسول الله ﷺ د ليدني او ملګرتيا په نتيجه کې تر لاسه کېدی، د هغه لړۍ قطع سوې ده او زموږ په زړو کې د صدق او اخلاق هغه پخوانی کيفيت پاته نه دی.

## د رسول الله ﷺ د تدفين په اړه اختلاف

﴿۵۷۱۱﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمَّا قُبِضَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اخْتَلَفُوا

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دی چې کله رسول الله ﷺ وفات سو نو د رسول الله ﷺ د

فِي دَفْنِهِ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ سَمِعْتُ مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ ﷺ شَيْئًا مَا نَسِيتُهُ قَالَ مَا

دفن کيدو په ځای کې اختلاف واقع سو، ابوبکر رضي الله عنه وفرمايل په دې اړه ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي

قَبَضَ اللّٰهُ نَبِيًّا إِلَّا فِي الْمَوْضِعِ الَّذِي يُحِبُّ أَنْ يُدْفَنَ فِيهِ ادْفِنُوهُ فِي مَوْضِعِ فِرَاشِهِ. رواه الترمذي.

الله تعالی د يو نبي روح قبض کوي کوم ځای چې هغه دفن کيدل خوښوي، په دې وجه رسول الله ﷺ د خپلي بسترې پر ځای بايد دفن سي. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۳۳۸، رقم: ۱۰۱۸.

**تشريح**: د صحابه کرامو په منځ کې اختلاف را منځته سو، يعني د ځينو حضراتو دا وينا وه

چي د رسول الله ﷺ ښخېدل باید په بقیع هدیره کي وسي او ځینو حضراتو دا وویل چي په مسجد نبوي کي ښخېدل زیات مناسب دي، حال دا چي د ځینو صحابه کرامو رایه دا هم وه چي د رسول الله ﷺ تدفین په بیت المقدس کي وسي ځکه چي د اکثرو نبیانو قبرونه هلته دي یا دا چي د دفن کولو په اړه اختلاف را منځته سو چي ایا رسول الله ﷺ دفن کړل سي که یا؟ د ترمذي په یوه روایت کي داسي دي چي په هغه وخت کي صحابه کرامو ، حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته رجوع وکړل او له هغه څخه یې پوښتنه وکړل چي اې د رسول الله ﷺ ملګرې! ایا رسول الله ﷺ ښخ کړل سي که یا؟ حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه وویل: هغه ځای چیري چي الله جل جلاله د رسول الله ﷺ روح قبض کړل ، هغه پاک او طاهر ځای دی ، صحابه کرام پوه سول چي ابوبکر صدیق رضی الله عنه څه وایي هغه صحیح دي او همدارنګه د عائشې رضی الله عنها په حجره کي چیري چي رسول الله ﷺ وفات سوی وو ، تدفین په عمل کي راغلی .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### دوفات څخه مخکي نبي کریم ﷺ ته د هغه ځای و ښودل سو

﴿۵۷۱۲﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ وَهُوَ

د حضرت عائشي (رض) څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د روغتیا په حالت کي وفرمایل :

صَحِيحٌ إِنَّهُ لَمْ يُقْبَضْ نَبِيٌّ حَتَّى يَرَى مَقْعَدَهُ مِنَ الْجَنَّةِ ثُمَّ يُخَيَّرُ قالت

د یو نبي روح تر هغه وخته پوري نه قبض کېږي تر څو پوري چي په جنت کي خپل ځای ورته ونه ښودل سي ، هر کله چي هغه خپل ځای په جنت کي وویني هغه ته به اختیار ورکړل سي، بي بي

عائشة فَلَمَّا نَزَلَ بِهِ وَرَأْسُهُ عَلَى فَخِذِي غُشِيَ عَلَيْهِ ثُمَّ أَفَاقَ فَأَشْخَصَ بَصَرَهُ

عائشه رضی الله عنها فرمایي : کله چي رسول الله ﷺ ته مرګ راغلی نو سر مبارک یې زما پر ورانه پروت وو چي رسول الله ﷺ بې هوشه سو ، بیا په هوش کي سو سترګي مبارکي یې پورته کړې

إِلَى السَّقْفِ ثُمَّ قَالَ اللَّهُمَّ الرَّفِيقَ الْأَعْلَى قُلْتُ إِذًا لَا يَخْتَارُنَا وَعَرَفْتُ أَنَّهُ

بام ته یې وکتل او وه یې فرمایل : اللهم الرفیق الاعلی، اې الله زه رفیق اعلی خوښوم، ما وویل دوی به موږ نه اختیاروي ، بي بي عائشه وایي د رسول الله ﷺ الفاظ اورېدو سره ما ته د رسول

الْحَدِيثُ الَّذِي كَانَ يُحَدِّثُنَا بِهِ وهو صحيح في قوله انه لن يقبض نبي قط

الله ﷺ هغه خبره رایاد سوه کومه چي يې د روغتيا په حالت کي موږ ته بيان کړې وه يعني دا چي د يو نبي روح تر هغه وخته پوري نه قبض کيږي

حتى يرى مقعده من الجنة ثم يخير قَالَتْ عائشة فَكَانَ آخِرَ كَلِمَةٍ تَكَلَّمَ

تر څو پوري په جنت کي هغه ته خپل ځای ونه ښودل سي او بيا هغه ته اختيار ورکول کيږي که په دنيا کي ژوند کوي يا عالم آخرت ته ځي، بي بي عائشه فرمايي : د وفات پر وخت

بِهَا النَّبِيُّ ﷺ قَوْلُهُ اللَّهُمَّ الرَّفِيقَ الْأَعْلَى. رواه البخاري و مسلم.

د رسول الله ﷺ آخري کلام دا الفاظ وه (اللهم الرفيق الاعلى). بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\ ۳۵۷، رقم: ۶۵۰۹، ومسلم ۴\ ۱۸۹۴، رقم: ۸۷- ۲۴۴۴.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ د ژبي مبارکي څخه وتونکي آخري الفاظ : اللهم رفيق الاعلى، وه او څرنګه چي سهيلي رحمة الله عليه ليکلي دي چي د رسول الله ﷺ د ژبي مبارکي څخه تر مخکي چي کوم الفاظ ووتل هغه دا وه: الله اکبر، او دا دهغه وخت پېښه ده کله چي رسول الله ﷺ د خپل تي رودلو په زمانه کي له حليمه رضي الله عنها سره وو، او په يوه روايت کي دا راغلي دي چي په کومه ورځ الله جل جلاله د ټول عالم د ارواحو څخه د خپل ربوبيت عهد اخيستی وو چي هغه ته عهد الست وايي نو هغه وخت د الله جل جلاله د سوال : (الست بربکم) ايا زه ستاسو رب نه يم؟ ، په جواب کي بلى، (هو) يقينا تاسو زموږ رب ياست، تر ټولو مخکي د رسول الله ﷺ روح پاک ويلي وه.

## د زهرو اثر

﴿۵۷۱۳﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ كَانَ رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي مَرَضِهِ الَّذِي مَاتَ فِيهِ يَا عَائِشَةُ مَا أَزَالُ أَجِدُ أَلَمَ الطَّعَامِ الَّذِي أَكَلْتُ بِخَيْبَرَ وَهَذَا أَوَانُ وَجَدْتُ انْقِطَاعَ أَبْهَرِي مِنْ ذَلِكَ السُّمِّ. رواه البخاري.

د حضرت عائشي رضي الله عنها څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ په د خپل ناروغۍ په وخت کي فرمايل : اې عائشې ! زه همېشه د هغه طعام تکليف محسوسوم چي ما په خيبر کي خوړلی وو

(یعني د زهرو غوښه) اوس هغه وخت دی چې د هغه زهرو د اثر څخه زما د شا رګ پرې کړی معلومیږي . بخاري

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۸\۱۳۱، رقم: ۴۴۲۸.

**د لغاتو حل**: ابهري: وهو عرق یتعلق به القلب.

**تشریح**: د زهرجن خوراک څخه مراد هغه پسه دی چې یوې یهودي ښځې د خیبر د فتح په وخت کې د رسول الله ﷺ په خدمت کې وړاندې کړی وو او رسول الله ﷺ د هغه څخه یو څه خوړلي وه، د هغه ذکر په تفصیل سره مخکې تېر سوی دی ، هغه وخت که څه هم د ظهور د معجزې سره سم داسې اثر ونه سو چې هلاکت واقع سوي وي مګر د هغه مضر اثرات په هر حال قائم پاته سوي وه چې د هغه ظهور کله نا کله پېښېدی، بیا الله جل جلاله په ظاهره ددې حکمت سره سم چې رسول الله ﷺ د شهادت درجه تر لاسه کړي په مرض الموت کې د هغه زهرو اثر ظاهر کړ ، لکه څرنګه چې ویل کیږي چې د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه مرګ د هغه مار د زهرو د اثر څخه واقع سوی وو چې هغه ډېر وخت مخکې د مدینې د هجرت د سفر په دوران کې په غار ثور کې چیچلی وو .

## په مرض الموت کې یوه واقعه

﴿۵۷۱۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَمَّا حُضِرَ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفِي

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چې کله د رسول الله ﷺ د وفات وخت را نژدې سو هغه

الْبَيْتِ رِجَالٌ فِيهِمْ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلُمُّوا

وخت په کور کې ډېر خلک وه چې په هغوی کې حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه هم وو ، نبي کریم ﷺ وفرمایل : راسئ چې

أَكْتُبْ لَكُمْ كِتَابًا لَنْ تَضِلُّوا بَعْدَهُ فقَالَ عُمَرُ قد غُلِبَ عليه الْوَجَعُ وَعِنْدَكُمُ

ستاسو لپاره یو تحریر ولیکم، چې ددې څخه وروسته تاسو ګمراه نه سئ ، حضرت عمر رضي الله عنه خلکو ته وویل پر رسول الله ﷺ د مرض غلبه او شدت دی او ستاسو سره

الْقُرْآنُ حَسْبُكُمْ كِتَابُ اللّٰهِ فَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْبَيْتِ وَاخْتَصَمُوا فَمِنْهُمْ مَنْ يَقُولُ

قرآن موجود دی د خدای کتاب ستاسو لپاره کافي دی، کوم خلک چې هغه وخت په کور کې موجود وه په هغوی کې د رایې اختلاف سو ، ځینو وویل

قَرِّبُوا يَكْتُبْ لَكُمْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمِنْهُمْ مَنْ يَقُولُ مَا قَالَ عُمَرُ

د ليكلو سامان رسول الله ﷺ ته نژدې راوړئ چې رسول الله ﷺ ستاسو لپاره ليكنه وكړي، او ځينو هغه الفاظ وويل كوم چې حضرت عمر رضي الله عنه فرمايلي وه،

فَلَمَّا أَكْثَرُوا اللَّغَطَ وَالِاخْتِلَافَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُومُوا عَنِّي

آخر چې خلكو ډير شور جوړ كړ او اختلاف زيات سو نو رسول الله ﷺ وفرمايل: زما څخه ولاړ سئ

قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ فَكَانَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَقُولُ إِنَّ الرَّزِيَّةَ كُلَّ الرَّزِيَّةِ مَا حَالَ بَيْنَ رَسُولِ

د عبيد الله راوي بيان دی چې ابن عباس رضي الله عنه وويل مصيبت او پوره مصيبت هغه حالت وو چې د رسول الله ﷺ او هغه تحرير په منځ كي حائل سو

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَبَيْنَ أَنْ يَكْتُبَ لَهُمْ ذٰلِكَ الْكِتَابَ لِاخْتِلَافِهِمْ وَلَغَطِهِمْ.

كله چې رسول الله ﷺ ليكل غوښتل او دا حالت په خپلو كي د اختلاف او شور څخه پيدا سو، د

وفي رواية سليمان ابن ابي مسلم الاحول قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَوْمُ الْخَمِيسِ وَمَا

سليمان بن ابو مسلم احول په روايت كي دا الفاظ دي چې ابن عباس رضي الله عنه وويل: د پنجشنبې په

يَوْمُ الْخَمِيسِ ثم بكى حتي بل دمعه الحصى قلت يا ابن عباس وما اليوم

ورځ آه او د پنجشنبې ورځ څه ده؟ ددې ويلو سره ابن عباس رضي الله عنه په ژړا سو او دومره يې وژړل چې د هغه اوښكو هغه باجرى چې هلته پروت وو لوند كړ، ما وويل اې ابن عباس!

الخميس قَالَ اشْتَدَّ بِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَعُهُ فَقَالَ ائْتُونِي بكتف

د پنجشنبې ورځ څه شي ده؟ ابن عباس رضي الله عنه وويل: د رسول الله ﷺ ناروغي چې په دغه ورځ شدت اختيار كړ، نو رسول الله ﷺ وفرمايل: ما ته د ورانه هډوكي راوړئ

أَكْتُبْ لَكُمْ كِتَابًا لَنْ تَضِلُّوا بَعْدَهُ أَبَدًا فَتَنَازَعُوا وَلَا يَنْبَغِي عِنْدَ نَبِيٍّ تَنَازُعٌ

چې زه ستاسو لپاره يو تحرير وليكم چې بيا تاسو هيڅكله ګمراه نه سئ، په خلكو كي اختلاف سو او د نبي كريم ﷺ په حضور كي اختلاف مناسب نه وو.

فَقَالُوا مَا شَأْنُهُ أَهَجَرَ اسْتَفْهِمُوهُ فَذَهَبُوا يَرُدُّونَ عَلَيْهِ فَقَالَ دَعُونِي ذروني

ځيني صحابه كرامو وويل د رسول الله ﷺ څه حال دى چي دنيا ترک كوي، د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وكړئ چي د هغوى څه خوښه ده، نو ځيني صحابه كرامو د رسول الله ﷺ څخه پوښتني كول پيل كړل، رسول الله ﷺ وفرمايل ما پريږدئ، ما پريږدئ

فَالَّذِي أَنَا فِيهِ خَيْرٌ مِمَّا تَدْعُونِي إِلَيْهِ فَأَمَرَهُمْ بِثَلَاثٍ فقَالَ أَخْرِجُوا الْمُشْرِكِينَ

په دغه حالت كي په كوم كي چي زه يم ځكه چي زما دا حالت تر هغه غوره دى كوم ته چي تاسو ما بلئ، د دې څخه وروسته رسول الله ﷺ د درو خبرو حكم وكړ: يو خو دا چي مشركان د جزيره

مِنْ جَزِيرَةِ الْعَرَبِ وَأَجِيزُوا الْوَفْدَ بِنَحْوِ مَا كُنْتُ أُجِيزُهُمْ وَسَكَتَ عَنِ الثَّالِثَةِ أَوْ قَالَهَا فَنَسِيتُهَا قال سفيان هذا من قول سليمان. متفق عليه

عرب څخه وباسئ، دويم دا چي د قاصدانو احترام كوئ، او د هغوى سره احسان كوئ، لكه څرنګه چي ما ورسره احسان كوي، او دريمه خبره ابن عباس رضي الله عنه ونه ښودل يا داسي يې وفرمايل: چي هغه زما څخه هيره سوه، د سفيان بيان دى چي آخري قول د سليمان راوي دى. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۲۰۸، رقم: ۱۱۴، ومسلم ۱۳\۱۲۵۹، رقم: ۲۲- ۱۶۳۷.

**د لغاتو حل**: اللغط: الصوت الذي لايفهم مبناه. الرزيئة: اي المصيبة. اهجر: اي اختلاف كلامه.

**تشريح**: راوړئ، چي زه ستاسو لپاره ليكنه وكړم، په دې اړه نووي رحمه الله د مسلم په تشريح كي ليكلي دي چي دا ناممكن او محال وه چي رسول الله ﷺ درواغ ويلي واى، دا هم ناممكن او محال وه چي رسول الله ﷺ د شريعت د احكامو څخه په يو شي كي تغير او تبديل كړى واى، كه څه هم رسول الله ﷺ روغ او توانا وو يا په ناروغۍ كي اخته وو، دا هم ناممكن او محال وه چي رسول الله ﷺ د هغه شي بيان او نافذ كول غير ضروري ګڼلاى چي د هغه د بيان او نفاذ حكم رسول الله ﷺ ته د الله جل جلاله له خوا وركړل سوى وي او دا هم ناممكن وه چي د كوم شي تلقين او تبليغ يې كوى الله جل جلاله د رسول الله ﷺ لپاره واجب او ضروري ګرځولي وه د هغه د تلقين او تبليغ څخه رسول الله ﷺ صرف نظر كړى وي، دا ټول هغه قبائح دي چي له هغه څخه الله جل جلاله، رسول الله ﷺ معصوم ګرځولى وو، ځكه د رسول الله ﷺ څخه د داسي شيانو د صدور تصور هم نه سو كيداى، مګر دا خبره ناممكن نه وه چي رسول الله ﷺ په يوه داسي بدني ناروغۍ كي

اخته نه وي چي په هغه سره نه د رسول الله ﷺ د نبوت مرتبې او د رسالت شان ته تاوان رسيدي او نه د رسول الله ﷺ پر راوړي شريعت باندي اثر لويدی، همدا وجه ده چي په رسول الله ﷺ باندي جادو وکړل سو نو رسول الله ﷺ د هغه تر تاثير لاندي راغلی او د رسول الله ﷺ اندامونه او حواس تر دې حده متاثر سوي وه چي دا فکر به يې کوی چي ما دا کړی دی حال دا چي رسول الله ﷺ به هغه نه وو کړی، مگر په دغه حالت کي هم الله ﷻ د رسول الله ﷺ د عصمت مرتبه داسي خوندي وساتل چي په هغه دوران کي د رسول الله ﷺ د ژبي مبارکي څخه د شريعت د احکامو په اړه يوه داسي خبره نه ووتل چي د رسول الله ﷺ د مخکي خبري مخالفي وه يا د رسول الله ﷺ د خيال او عمل ذکر سوي تخالف په يوه داسي معامله کي ظاهر نه سو چي د هغه تعلق ديني او شرعي معمولاتو او عباداتو سره وي او په روايت کي دا هم بيان سوي دي چي رسول الله ﷺ د مرض الموت په آخري ورځو کي د يو څه ليکلو اراده فرمايلې وه او بيا هغه اراده يې پوره نه کړل نو په دې اړه مختلف قولونه دي، د مثال په توگه ځيني حضرات دا وايي چي رسول الله ﷺ دا غوښتل چي په تحريري توگه په خپلو صحابه کرامو کي يو کس د خلافت لپاره وټاکي چي وروسته د عامو مسلمانانو په منځ کي اختلاف رامنځته نه سي.

د ځينو نورو حضراتو قول دی چي د رسول الله ﷺ اصل مقصد يو داسي ليک تيارول وو چي په هغه کي د دين او شريعت د ارزښتناکو احکامو او مسائلو تدوين او د هغه وضاحت وي چي وروسته د امت علماء د هغه احکامو او هداياتو بيان او د هغه په وضاحت کي د اختلاف ښکار نه سي او پر منصوص عليه باندي د ټول امت اتفاق او اتحاد وي ، تر دغه ځايه د نووي رحمة الله عليه الفاظ وه، او دغه الفاظ ملا علي قاري رحمة الله عليه نه يوازي دا چي نقل کړي دي بلکه پر دغه ذکر سوو اقوالو يې نقد هم کړی دی، نوموړي د اول قول په اړه ليکلي دي چي دا خو د حقيقت څخه ليري ده ځکه چي د رسول الله ﷺ په خپلو صحابه کرامو کي يو څوک د خلافت لپاره ټاکل او د مثال په توگه په حضرت ابوبکر صديق، حضرت عمر، حضرت عباس، حضرت علي او نورو رضي الله عنهم کي د يو سړي نوم ټاکل، نو د هغه لپاره رسول الله ﷺ ته د ليکني اړتيا هيڅکله نه وه يوازي په ژبه سره د رسول الله ﷺ دا فرمايل کافي وه ،

او همدارنگه وسول چي ابوبکر صديق رضي الله عنه په خپل ژوند مبارک کي د لمانځه لپاره امام وټاکی او په دې سره يې په عملي توگه د هغه خلافت ته اشاره وفرمايل بلکه د خپل ارشاد (يابي الله والمؤمنين الا ابابکر) په ذريعه يې په ژبه سره هم وضاحت وکړ، مگر که چيري دا وويل سي چي رسول الله ﷺ په اصل کي يو داسي ليک ليکل غوښتل چي په هغه کي د خلافت

اهل او مستحق کسانو د ټاکنې داسې طريقه ليکلې وي چې د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته د امام مهدي عليه السلام د ظهور او د حضرت عيسی عليه السلام تر نزول پورې يو په بل پسې بېله اختلافه د خلافت ټاکل وسي ، نو دا يوه داسې خبره کيدای سي چې تر يوه حده پورې معقول او قرين قياس ورته ويل کيدای سي او په دغه صورت کې به ويل کيږي چې الهي حکمت دا وو چې د خلافت مسئله د تل لپاره ټاکل سوې او د ظاهرېدو پر ځای غير متعين او پټه وي ځکه رسول الله ﷺ هغه ليک ونه ليکلای سو.

د دوهم قول په اړه ملا علي قاري رحمة الله عليه ليکلي دي : څومره چې خپله د رسول الله ﷺ د زمانې تعلق دی نو ظاهره ده چې هغه وخت د دين او شريعت د ارزښتناکو احکامو او مسائلو متعلق اختلاف او نزاع نه وو چې هغه يې ختم کړي وي، او د صحابه کرامو په منځ کې د اتحاد او اتفاق قائمولو لپاره رسول الله ﷺ ته د يو ليکني اړتيا محسوس کېدل، پاته سوه دا خبره چې د رسول الله ﷺ د دغه ليکني د ارادې تعلق د رسول الله ﷺ وروسته په زمانه کې د ممکن اختلاف د دفع سره وو نو دا خبره هم د قرين قياس څخه معلوميږي ځکه چې د نبوت د زمانې څخه وروسته د ديني احکامو او مسائلو په وضاحت او ترجمانۍ او قياسي مسائلو کې د علماؤ اختلاف پيدا کېدل محض د امکان د درجې شی نه وو بلکه يو حقيقي شی وو چې د هغه په اړه خپله رسول الله ﷺ د مخکې څخه خبر ورکړی وو ،

دمثال په توګه رسول الله ﷺ فرمايلي وه : اختلاف امتي رحمة، يا د رسول الله ﷺ دغه ارشاد : اصحابي كالنجوم بايهم اقتديتم اهتديتم، يا د رسول الله ﷺ دغه فرمان: عليكم بالسواد الاعظم، او د رسول الله ﷺ دغه فرمان : استفت قلبک وان افتاک المفتون، هسې هم د ټولو خلګو پر يوه نکته باندې جمع کېدل او په دين او مذهب کې اختلاف نه واقع کېدل يوه داسې ناممکن خبره ده چې د هغه خبر خپله قرآن کريم هم ورکړی دی، د مثال په توګه فرمايي: (ولايزالون مختلفين الا من رحم ربک وبذالک خلقهم) ژباړه: او خلک به اختلاف کوي مګر پر چا چې ستا د رب رحمت وي او الله جل جلاله دغه بزرګان ددې لپاره پيدا کړي دي که د رسالت د زمانې وروسته په ديني معاملاتو او مسائلو کې د امت (يعني علماؤ او مجتهدينو) په منځ کې پيدا کېدونکي اختلاف په اړه رسول الله ﷺ ته څرګند احکام او هدايت ترتيب کول وي نو د هغه لپاره به رسول الله ﷺ د خپل ژوند په هغه آخري وخت کې اراده فرمايلې وه بلکه ډېر مخکې کله چې رسول الله ﷺ د هغه راتلونکو اختلافاتو خبر ورکولو ذکر سوې ليکنه به يې ليکلې وای، ددې څخه ماسوا دا خبره هم په ذهن کې راتلونکې نه ده چې د دين او شريعت هغه ټول

احکام او مسائل چي د هغه د نزول او وجوب د نفاذ زمانه شل کاله وخت باندي خپره وه آخري ایام حیات هغه مختصر وخت کي څرنګه یو ځای کیدای سول او دا څرنګه ممکن وه چي رسول الله ﷺ هغه وخت هغه ټول احکام او مسائل داسي مخلص او مرتب کړي وای چي په راتلونکي کي د هغه په اړه د اختلاف ذره هم پاته نه وای، نو دا قول منل کول ممکن نه دي ، مګر دا خبره په یوه درجه کي ویل کیدای سي چي رسول الله ﷺ هغه وخت د یوې داسي لیکني اراده وفرمایل چي په هغه کي د هغه احکامو او مسائلو ذکر وي چي په تېرو زمانو کي خو موجود وو مګر په کتاب او سنت کي د هغه ذکر نسته، یا دا چي رسول الله ﷺ په هغه لیکنه کي د مسلمانانو د ناجیه ډلي د طریقو ذکر کول او د هغه ګمراه ډلو احوال په تفصیل سره بیانول غوښتل چي وروسته دد غه امت په منځ کي پیدا سوي لکه معتزله، خوارج، روافض او ټول بدعتیان، مګر د الله ﷻ حکمت ته دا منظور نه وه ځکه رسول الله ﷺ هغه لیکنه ونه کړل .

دغه وخت پر رسول الله ﷺ باندي د ناروغۍ سخته غلبه ده: ددغه خبري څخه د حضرت عمر رضي الله عنه مطلب دا وو چي ستاسو لپاره د دیني ژوند ښکلي کولو او مستحکم کولو لپاره د الله ﷻ کتاب موجود دی چي د هغه په اړه خپله الله ﷻ فرمایلي دي.

یعني تاسو ټول د الله ﷻ رسۍ (قرآن کریم) په ټینګه ونیسئ، پاته سوه د حدیث او سنت خبره نو هغه هم د قرآن په ضمن کي راځي ځکه چي د حدیث او سنت اصل موضوع د قرآن کریم وضاحت او ترجماني ده ، نو د حضرت عمر رضي الله عنه مقصد د رسول الله ﷺ خبره پرېکول نه وو بلکه د هغه مخاطب هغه کسان وه چي هغوی هغه وخت بحث او جګړه پیل کړې وه او په دې خبره یې ټینګار کوی چي رسول الله ﷺ ته د لیکني سامان راوړل سي چي رسول الله ﷺ د خپلي ارادې سره سم هدایت ولیکي، او ددې خبري محرک د هغوی دا جذبه وه چي دا وخت په رسول الله ﷺ باندي د سختي ناروغۍ غلبه وه او په سخت تکلیف کي اخته دی ، رسول الله ﷺ ته د راحت موقع ورکول پکار دي، دوهم دا چي د هغوی فراست پوه سوی وو چي د رسول الله ﷺ دا حکم د لزوم سره نه دی بلکه خپله د صحابه کرامو او مسلمانانو د مصلحت سره سم دی، او که هغوی په دې عمل وکړي نو هغوی ته اختیار دی او که عمل ونه کړي نو د هغوی خوښه ده ، دا د رسول الله ﷺ تل معمول وو چي کله به یې په یوه معامله کي داسي حکم کوی چي په وجوب او لزوم سره به نه وو نو صحابه کرامو ته به په هغه کي د رایي د اظهار پوره ازادي وه ، که چیري هغوی به د اشکال او تردد اظهار وکړ نو رسول الله ﷺ به د هغه حکم تعمیل ضروري نه ګرځوی، بلکه د صحابه کرامو پر رایه باندي به یې پرېښوده ، مګر کوم حکم چي به د وجوب او لزوم په توګه وو

او د هغه عملي کول به ضروري وو نو هغه به يې د صحابه کرامو په رايه باندي نه پرېښودی او حضرت عمر ﷺ ته به دا احساس هم سوی وي چي دغه وخت رسول الله ﷺ څه ليکل غواړي کيدای سي هغه يو داسي حکم وي چي د هغه عملي کول به د صحابه کرامو لپاره د سختی سبب جوړ سي او بيا د هغه په وجه به ټول امت د فتنې سره مخامخ سي نو دخپلو ذکر سوو الفاظو په ذريعه هغه دې ته اشاره وکړل چي د رسول الله ﷺ دغه اراده پرېښودل غوره دي او د هغه په دغه اشاره پوهېدو سره رسول الله ﷺ هغه اراده پرېښودل، ددې مثال هغه پېښه ده چي د کتاب په پيل کي (باب الايمان) کي تېره سول، چي کله رسول الله ﷺ حضرت ابو هريره ﷺ ته وويل: ولاړ سه او خلکو ته زيری ورکړه چي کوم څوک لااله الاالله ووايي هغه به په جنت کي داخليږي،

بيا کله چي ابوهريره ﷺ دغه زيری تر ټولو مخکي حضرت عمر ﷺ ته ورسوی نو هغه نه يوازي دا چي حضرت ابو هريره ﷺ ددغه زيري نورو خلکو ته رسولو څخه منع کړ بلکه د رسول الله ﷺ په وړاندي يې عرض وکړ چي دغه زيری مه عام کوئ کنه نو خلک به په دغه زيري باندي په باور کولو سره کېنېني او په عمل کولو کي به سست سي، نو رسول الله ﷺ د حضرت عمر ﷺ دغه مشوره قبوله کړل او ددغه زيري عامو خلکو ته د رسولو حکم يې بېرته واخيست، ددغه وضاحت څخه ماسوا يوه خبره دا هم ويل کيدای سي چي څرنګه د حضرت عمر ﷺ نور موافقات دي چي په ځيني مسئلو کي د هغه اتفاق د اختلاف په صورت کي ظاهر سوی دی همدارنګه دغه پېښه او د هغه ذکر سوی قول هم پر موافقت باندي محمول کړل سي ، په دغه صورت کي د مخالفت الزام به د هغه څخه پورته سي ، ددې تائيد ددې خبري څخه هم کيږي چي رسول الله ﷺ د حضرت عمر ﷺ د خبري اورېدو سره سکوت وفرمايه يعني د هدايت نامې ليکني اراده يې پرېښودل .

د يوې ډلي وينا ده چي رسول الله ﷺ د غه حکم د ځان څخه نه وو ورکړی بلکه دا صورت رامنځته سوی وو چي مخکي ځينو صحابه کرامو رسول الله ﷺ ته درخواست کړی وو چي يو څه وصيتي کلمات وليکي ، دهغوی په غوښتنه رسول الله ﷺ د څه ليکلو خپل رجحان ظاهر کړ، او د کتاب د سامان راوړلو حکم يې وکړ، مګر کله چي رسول الله ﷺ وليدل چي ځيني صحابه کرام لکه حضرت عمر ﷺ او د هغوی د تائيد کونکو رجحان ددې خلاف دی نو رسول الله ﷺ د ليکني اراده پرېښودل، بيهقي ليکلي دي: سفيان ابن عينيه د باوري عالمانو څخه نقل کړي دي چي هغه وخت رسول الله ﷺ دا غوښتل چي د خلافت د منصب لپاره حضرت ابو بکر صديق ﷺ وټاکي او په دې اړه يو تحريري ليک وليکي مګر وروسته رسول الله ﷺ په دې باور د تحرير

اراده پرېښودل چي د تقدير الهي فيصله به خپله مخته راسي او عام مسلمانان به د هغه فيصلې څخه مخ نه اړوي نو د رسول الله ﷺ ارشاد: يابي الله والمؤمنون الا ابابكر، او ټول مسلمانان به د ابوبكر رضي الله عنه څخه ماسوا د بل چا خلافت قبول نه كړي، ددې څخه ددې تائيد هم كيږي. (دغه حديث په تفصيل سره مخته را روان دی).

پاته سول د شيعه ګانو دا خبره چي هغوی دا دعوه كوي چي هغه وخت د رسول الله ﷺ د ليكني د ارادې اصل مقصد د حضرت علي رضي الله عنه په حق كي د خلافت وصيت كول وو، نو هغوی خپله د خپلو دعوو د تضاد ښكار دي، يوې خوا ته خو هغوی دا دعوه كوي او بلي خوا ته د هغوی دا دعوه ده چي رسول الله ﷺ په غدير خم كي مخكي د حضرت علي رضي الله عنه د خلافت معامله فيصله كړې وه، يو چا د هغه څخه پوښتنه وكړل چي ستاسو د قول مطابق هر كله چي رسول الله ﷺ د حضرت علي رضي الله عنه د خلافت فيصله مخكي كړې وه نو بيا د وصيت نامې ليكني څه اړتيا پاته وه.

تاسو ټول زما څخه ولاړ سئ: يعني رسول الله ﷺ هغه خلګو ته ښكاره كړل چي ما له دې كبله اوس د ليكني قصد پرېښود چي د كتاب او سنت شتون ستاسو د هدايت او لارښووني لپاره كافي دي، په دې اړه نووي رحمة الله عليه ليكلي دي چي هغه وخت يا خو دا صورت پېښ سوی وو چي رسول الله ﷺ د خپل امت په ګټه او مصلحت كي ځيني شيان ليكل په خپل رايه او د خپل خيال مطابق مناسب ګڼلي وه مګر بيا كله چي رسول الله ﷺ وليدل چي نه ليكل مصلحت دی نو رسول الله ﷺ خپله رايه او خيال بدل كړ، يا دا سوي وه چي رسول الله ﷺ دغه اراده د وحي په ذريعه د الهي هدايت راتللو څخه وروسته وكړل مګر بيا وروسته د دوهمي وحي په ذريعه چي ددغه ارادې موقوف كولو حكم راغلی نو رسول الله ﷺ د ليكني اراده پرېښودل، نووي رحمة الله عليه دا هم ليكلي دي چي حضرت عمر رضي الله عنه په دغه وخت كي هلته موجود خلګ مخاطب كړل او ويې فرمايل: حسبكم كتاب الله، يعني ستاسو لپاره د الله جل جلاله كتاب كافي دی، نو ددې څخه د هغه كمال تفقه او د فهم اظهار كيږي، په اصل كي حضرت عمر رضي الله عنه ته دا ېېره پيدا سول كه چيري رسول الله ﷺ داسي احكام وليكي چي په هغه عمل كول د عامو مسلمانانو لپاره ممكن كيدای نه سي نو د هغه احكامو د منصوص كېدو په سبب په هغه كي به د اجتهاد او تاويل هيڅ امكان نه وي او خلګ به په هغه د عمل نه كولو په وجه د الهي عذاب مستحق سي، او هغه خپل قول: حسبكم كتاب الله، په ذريعه د الله جل جلاله د ارشاد: (ما فرطنا في الكتاب من شئ) او دغه ارشاد: اليوم اكملت لكم دينكم واتممت عليكم نعمتي، ته اشاره وكړل.

مصيبت دی: ددغه جملې په ذريعه حضرت ابن عباس رضي الله عنه په اصل کي هغه وخت د صحابه کرامو د اختلاف او شور په يو داسي خراب صورت سره تعبير کړ چي هغه رسول الله ﷺ د ليکني د ارادې څخه منع کړ، د هغه د وينا مطلب دا وو چي ارمان هغه خلګو د اختلاف او نزاع اظهار نه وای کړی نو رسول الله ﷺ به يو داسي ليکنه ترتيب کړې وای چي د امت لپاره به د تل هدايت او لارښوونې ذريعه وای، يعني د حضرت ابن عباس رضي الله عنه ميلان د حضرت عمر رضي الله عنه او د هغه د تاکيد کوونکو د رايي خلاف وو، هغه ددې خبري په حق کي وو چي رسول الله ﷺ ته دغه وخت د ليکلو موقع خامخا ورکول پکار دي. بيهقي په خپل کتاب دلائل النبوة کي ليکلي دي چي د حضرت عمر رضي الله عنه اصل مقصد دا وو چي رسول الله ﷺ د ناروغۍ ددغه سختي غلبې په وخت کي د ليکني تکليف ونه زغمي، که چيري رسول الله ﷺ هغه وخت د يو شي ليکل واجب ګڼلای نو د حضرت عمر رضي الله عنه يا د بل چا د اختلاف په وجه به يې خپله اراده موقوف کړې نه وای، ځکه چي رسول الله ﷺ ته د الله جل جلاله حکم وو: بلغ ما انزل اليک من ربک، څه چي ستا د رب له خوا پر تا نازل سي نو هغه خلګو ته ورسوه، نو کومي خبري چي خلګو ته رسول ضروري وي د هغو تبليغ او اشاعت پر رسول الله ﷺ باندي په هر صورت کي لازم دی، که څه هم د دين دښمنانو او د اسلام په لکونو مخالفينو د رسول الله ﷺ مخالفت وکړي، يا څرنګه چي په هغه وخت کي وسول چي د کوم شي وصيت او هدايت کول رسول الله ﷺ ضروري وګڼل يعني د عربو د جزيرې څخه د يهوديانو ايستل او داسي نور، نود هغه هدايت رسول الله ﷺ وکړ، خلاصه دا چي هغه وخت رسول الله ﷺ څه ليکل غوښتل هغه ضروري نه وه ځکه د حضرت عمر رضي الله عنه په عقل کي راغلل چي د ناروغۍ د سختۍ په وخت کي د بې ارامۍ په حالت کي رسول الله ﷺ ته د ليکني تکليف ولي ورکړل سي او بيا ددين او شريعت داسي کوم حکم او هدايت دی چي په کتاب الله او سنت رسول الله کي موجود نه دی، لکه څرنګه چي الله جل جلاله فرمايلي دي: اليوم اکملت لکم دينکم، ددغه ارشاد څخه چي کوم مفهوم اخيستل کيږي هغه دادی چي د دين او شريعت اړوند تر قيامت پوري پېښېدونکي داسي هيڅ شی نسته چي د هغه حکم او مسئله په کتاب او سنت کي دلالة يا صراحتا موجود نه وي، د حضرت عمر رضي الله عنه په فهم او ادراک کي يوه دا خبره هم راغلې وه که چيري رسول الله ﷺ يوه داسي ليکنه ترتيبول غواړي چي په هغه کي د دين احکام او مسائل د اتمام په توګه بيان وي نو په دغه صورت کي به د اجتهاد جواز ختم سي. او پر عالم او استنباط باندي به د اجتهاد دروازه بنده سي، نو هغه رسول الله ﷺ د ناروغۍ په سختوالي کي د ليکني د تکليف څخه وژغوری او د ارباب اجتهاد د فضيلت څخه د نه محروم

کېدو په نیت سره یې دا خبره زیاته ښه وګڼل چې رسول الله ﷺ د لیکنې اراده پرېږدي، او رسول الله ﷺ د حضرت عمر رضی الله عنه د خبرې په نه رد کولو سره او د خپلې ارادې په پرېښودو سره د حضرت عمر رضی الله عنه او د هغه د تائید کونکو د فهم او ادراک څخه ډېر زیات قوي وو.

په دغه ویلو سره هغه په ژړا سو، او دومره یې وژړل، د حضرت ابن عباس رضی الله عنه د ژړا سبب یا خو دا وو چې د هغه ورځې په ذکر کولو سره هغه ته د رسول الله ﷺ د وفات وخت په یاد سو، یا دا چې د هغه د ګمان مطابق رسول الله ﷺ په هغه ورځ چې کوم لیکنه کول غوښتل هغه د امت په حق کې د ډېر خیر باعث ګرځېدی، ځکه په دغه فکر سره چې د هغه لیکنې په نه لیکلو سره امت د خیر کثیر څخه محروم سو، د هغه زړه ډک سو او په ژړا سو، دغه دوهم احتمال د دغه ځای سره ډېر مناسبت لري.

یوه داسې لیکنه وکړم چې د هغه څخه وروسته به تاسو هیڅکله ګمراه نه سئ: علماؤ لیکلي دي چې د عبارت ظاهري اسلوب په څرګنده ښیي چې د رسول الله ﷺ اراده د دین او شریعت د احکامو او مسائلو په تفصیل سره د لیکلو نه وه، او نه د خلافت په اړه د وصیت کولو وه.

د نبي په مخکې د اختلاف او جګړې اظهار مناسب نه دی، د عبارت د سیاق څخه په ظاهره دا مفهوم اخیستل کیږي چې دغه جمله د حضرت ابن عباس رضی الله عنه خپله ده چې هغه د روایت په منځ کې داخله کړې ده، حال دا چې ځینې حضرات وایي چې په اصل کې دا د رسول الله ﷺ ارشاد دی چې په دغه وخت کې ابن عباس رضی الله عنه د استدلال په توګه نقل کړی دی.

ایا رسول الله ﷺ دنیا پرېږدي؟: دغه لفظ د اهجر معنی ده، په فتح الباري کې د قرطبې په حواله سره د دغه لفظ په معنی کې څو احتماله بیان سوي دي، په هغو کې یو احتمال دا نقل سوی دی چې لفظ د اهجر په اصل کې د هجر (پرېښودو) فعل ماضي دی او مفعول یې (الحیوة) محذوف دی، د دغه احتمال په زیات مناسب ګڼلو سره په معنی کې اختیار سوی دی او شیخ عبدالحق رحمه الله علیه دا معنی بیان کړې ده چې (دا خبره د رسول الله ﷺ د کوم حالت غمازه وه؟) ایا د ناروغۍ د سختوالي په وجه د رسول الله ﷺ کلام مختلط سوی دی؟ لکه چې په عامو ناروغیو کې ګڼل کیږي، چې د هغه د ژبې څخه کله یو څه وځي او کله بل څه، په دغه صورت کې به مطلب دا وي چې دغه جمله پر استفهام انکاري باندې محمول ده، او د هغه د خبرې پرېکولو لپاره استعمال سوې وه چې دا یې ویل چې رسول الله ﷺ دې هیڅ نه لیکي، یعنې د دغه جملې قائلینو دا ویل غوښتل چې ایا ستاسو دا خیال دی چې رسول الله ﷺ د لیکنې د سامان راوړلو حکم په حواس او شعور سره نه دی ورکړی بلکه د ناروغۍ د سختوالي په وجه د

رسول الله ﷺ د ژبي مبارکي ځخه دا خبره هسي وتلې ده، د رسول الله ﷺ په اړه داسي ګمان او خيال مناسب نه دی، نو د رسول الله ﷺ دا حکم پوره کړئ او د ليکني سامان راوړئ چي رسول الله ﷺ څه ليکل غواړي هغه وليکي.

تر هغه حالت غوره او افضل دی چي هغه ته تاسو ما متوجه کوئ، ددې خبري ځخه د رسول الله ﷺ مطلب دا وو چي دغه وخت زه د عالم آخرت د سفر تياري، د پروردګار سره د يو ځای کېدو په شوق کي د تفکر او استغراق په اعلی حالت کي يم، مګر تاسو خلګ په خپلو کي د لفظي تکرار او بحث او شور په ذريعه زما توجه بلي خوا ته کول غواړئ او خپلي خوا ته مي متوجه کوئ، نو تاسو ټول خلګ زما ځخه ليري سئ چي زه ستاسو د ادنا حالت پر ځای خپل اعلی حالت ته متوجه سم، په دې اړه ملا علي قاري رحمة الله عليه د خطابي رحمة الله عليه په حواله سره مشهور حديث (اختلاف امتي رحمة) زما د امت اختلاف رحمت دی، په دې اړه ليکلي دي چي په دين او شريعت کي د اختلاف درې ډولونه وي،

۱: يو خو صانع يعني د الله جل جلاله اثبات او د هغه په وحدانيت کي اختلاف، نو دغه اختلاف چي د هغه بنياد د الله جل جلاله د وجود او وحدانيت ځخه پر انکار باندي کيږي، صريح کفر دی، دوهم د الله جل جلاله په صفاتو او مشيت کي اختلاف نو دغه اختلاف چي د هغه بنياد د الله جل جلاله د صفاتو او مشيت ځخه پر انکار باندي کيږي بدعت او ګمراهي ده او دريم اختلاف چي د هغه بنياد هغه دی چي د دين او شريعت د داسي فروعي احکامو او مسائلو د استنباط او بيان سره تعلق لري چي د مختلفو وجهو او ډېرو معناوو احتمال لري او دا هغه اختلاف دی چي د ارباب علم او اجتهاد په منځ کي دی چي الله جل جلاله د علماؤ او مجتهدينو لپاره رحمت او کرامت ګرځولی دی.

ملا علي قاري رحمة الله عليه د مازري رحمة الله عليه په حواله سره دا هم ليکلي دي چي که چيري يو څوک دا اعتراض وکړي چي کله رسول الله ﷺ هلته موجود صحابه کرامو ته امر وکړ چي ما ته د ليکني سامان راوړئ چي زه ستاسو لپاره يوه ليکنه وليکم، نو د صحابه کرامو لپاره د اختلاف ګنجائش څه وو او هغوی د سمدستي عمل کولو پر ځای د اختلاف اظهار څرنګه وکړ؟ نو ددې جواب به دا وي چي په اصل کي هغه اوامر (احکام) چي د هغو په صدور کي خارجي قرائن هم وي د هغو حيثيت او نوعيت بدلېدای سي، نو کوم حضرات چي وايي چي د اوامرو اصل وجوب دی د هغوی په نزد هم د هغه قرائنو په سبب د وجوب حکم په استحباب کي بدليږي لکه څرنګه چي ځيني حضرات وايي چي د اوامر اصل استحباب دی، د هغوی په نزد هم د قرائنو په سبب د استحباب حکم په وجوب بدليږي، نو کېدای سي چي د دغه حکم ورکولو پر وخت د رسول الله

ﷺ ځکه داسي قرائن ظاهر سوي وي چي د هغه ځکه دا څرګنديږي چي ددغه حکم تعميل واجب او ضروري نه دی بلکه اختياري دی، نو صحابه کرامو د خپل خپل اجتهاد په وجه چي کوم اړخ مناسب وګڼی هغه يې اختيار کړ، او ددې ځکه ثابته سول چي صحابه کرامو د دين او شريعت په معاملاتو کي د ضرورت په وخت کي د اجتهاد مرسته اخيستل، پاته سوه دا خبره چي د حضرت عمر رضی الله عنه اجتهاد د ليکني نه ليکلو اړخ چي اختيار کړ ددې بنياد څه وو؟ نو کېدای سي چي هغه ته دا يقين تر لاسه سوی وي چي د رسول الله ﷺ د ارادې او حکم عدم وجوب څرګندېدی.

مشرکان د عربو د جزيري ځکه وباسئ: په دې اړه وضاحت په باب اخراج اليهود من جزيرة العرب کي تېر سوی دی، همدا رنګه د جزيره عرب تشريح هم د کتاب په لومړني بابو کي په باب الوسوسة کي سوې ده.

کوم قاصد چي راسي: ددغه حکم مطلب دا وو چي د نورو هيوادونو د پاچاهانو کوم قاصدان او سفيران چي تاسو ته راسي د هغوی د مرتبو او حيثيت سره سم د هغوی عزت او تکريم او له هغوی سره د احسان معامله کوئ کوم چي زما معمول وو، رسول الله ﷺ دغه حکم دذې ليپاره ورکړی وو چي يوې خوا ته د اسلامي اخلاقو او معاملاتو د لوړتيا اظهار وي، او بلي خوا ته هغه قاصدانو او سفيرانو ته خوښي او اطمينان وي او هغوی د مسلمانانو د بنه چلن په لېدو سره په مؤلفة القلوب کي د نورو خلګو ميلان اسلام او مسلمانانو ته زيات سي، علماؤ ليکلي دي چي د ښه چلن دغه حکم د هر قاصد په اړه دی که هغه مسلمان وي يا کافر وي.

مګر زما ځکه هېر سوي دي: په دې اړه ملا علي قاري رحمة الله عليه د نووي رحمة الله عليه په حواله سره دا ليکلي دي چي سفيان ابن عينيه ددغه جملې نسبت په کومه طريقه سره چي سليمان احول رحمة الله عليه ته دی هغه صحيح نه دی بلکه په حقيقت کي سکوت اختيارونکی حضرت ابن عباس رضی الله عنه وو، مګر زما ځکه هېر سوي دي، ددې ويونکي حضرت سعيد ابن جبير رضی الله عنه دی چي د حضرت ابن عباس رضی الله عنه ځکه ددغه روايت راوي دی، او له هغه ځکه سليمان احول رحمة الله عليه نقل کوي، شيخ عبدالحق رحمة الله عليه په خپله تشريح کي د سکت فاعل رسول الله ﷺ ګرځولی دی، د هغه په آند دا خبره حضرت ابن عباس رضی الله عنه بيانوي چي يا خو يې دريمه خبره فرمايلې نه ده يا دا چي رسول الله ﷺ دريمه خبره هم فرمايلې وه مګر زما ځکه هېره سوې ده په هر حال محدثينو ليکلي دي چي هغه وخت رسول الله ﷺ کومه دريمه خبره فرمايلې وه هغه د حضرت اسامه رضی الله عنه د لښکر د سامان بندوبست کولو حکم وو چي د هغه په تياري کي رسول الله ﷺ بوخت وو چي په مرض

الموت کي اخته سو، يا هغه دريمه خبره د قبر پرستۍ اړوند وه لکه څرنګه چي په يوه روايت کي د هغه لپاره دا الفاظ منقول دي: (لا تتخذوا قبري وثنا يعبد) زما قبر بت مه ګرځوئ چي د هغه عبادت کول پيل کړئ.

## د وحي د منقطع کيدو غم

﴿۵۷۱۵﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ أَبُو بَكْرٍ لِعُمَرَ بَعْدَ وَفَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته يوه ورځ حضرت ابوبکر رضی الله عنه حضرت عمر رضی الله عنه ته وويل:

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْطَلِقْ بِنَا إِلَى أُمِّ أَيْمَنَ نَزُورُهَا كَمَا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

راځه چي ام ايمن ته ورسو، او د هغې سره ملاقات وکړو لکه څرنګه چي رسول الله ﷺ به د هغې

وَسَلَّمَ يَزُورُهَا فَلَمَّا انْتَهَيْنَا إِلَيْهَا بَكَتْ فَقَالَا لَهَا مَا يُبْكِيكِ اما تعلمين اني ما

سره ملاقات کوی، کله چي مونږ دواړه هغې سره هغې ته ورسيدو نو هغه په ژړا سوه، حضرت ابوبکر او حضرت عمر رضي الله عنهما وويل اې ام ايمن ولي ژاړې؟ تا ته معلومه نه ده چي

عِنْدَ اللَّهِ خَيْرٌ لِرَسُولِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ اني لا أَبْكِي أَنِّي لا أَكُونَ

خدای تعالی سره د رسول الله ﷺ لپاره څه شي دي هغه د غوره څخه غوره دي، ام ايمن وويل: زه پر دې نه ژاړم چي ما ته د دې علم نسته چي د خدای تعالی سره د رسول الله ﷺ

أَعْلَمُ أَنَّ مَا عِنْدَ اللَّهِ خَيْرٌ لِرَسُولِهِ ﷺ وَلَكِنْ أَبْكِي أَنَّ الْوَحْيَ قَدِ انْقَطَعَ مِنَ

لپاره خير او خير دی بلکه پر دې ژاړم چي د آسماني وحي لړۍ قطع سول، د ام ايمن د غه الفاظو

السَّمَاءِ فَهَيَّجَتْهُمَا عَلَى الْبُكَاءِ فَجَعَلَا يَبْكِيَانِ مَعَهَا. رواه مسلم.

د حضرت ابوبکر او حضرت عمر رضي الله عنهما زړونه دومره نرم کړل چي هغوی هم ورسره په ژړا سول. مسلم. (ام ايمن د رسول الله ﷺ آزاده سوې مينزه او د اسامه بن زيد رضی الله عنه مور وه).

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۱۹۰۷، رقم: ۱۰۳- ۲۴۵۴.

**تشريح**: ام ايمن د حضرت اسامه ابن زيد رضی الله عنه مور ده او د رسول الله ﷺ ازاده سوې مينزه وه، د هغې اصل نوم برکة وو او د رسول الله ﷺ د پلار مبارک حضرت عبد الله مينزه وه، وروسته کله

چي د هغې د ملکيت حق د وراثت په توګه رسول الله ﷺ ته تر لاسه سو نو رسول الله ﷺ هغه ازاده کړل او د حضرت زيد رضي الله عنه په نکاح يې کړل، حضرت زيد رضي الله عنه هم مخکي غلام وو او د بي بي خديجة الکبرى رضي الله عنها په ملکيت کي وو، رسول الله ﷺ د بي بي خديجې رضي الله عنها څخه غوښتنه وکړل نو هغې د تحفې په توګه رسول الله ﷺ ته وراندي کړ او بيا رسول الله ﷺ هغه ازاد کړ، بي بي ام ايمن رضي الله عنها حبشي النسل وه او په صحابي ښځو کي د لوړي درجې څښتنه وه. رسول الله ﷺ به دهغې ډېر درناوی کوی، ام ايمن رضي الله عنها هم د اسلام او مسلمانانو په مينه ماموره وه، د جنګ په ميدان کي مجاهدينو ته اوبه ورکول، دزخميانو درملنه کول او خدمت کول د هغې غوره بوختيا وه، د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د وفات څخه شل ورځي وروسته وفات سوه.

## د مسجد نبوي پر منبر اخيري خطبه

﴿۵۷۱۶﴾: وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت بو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ په خپل هغه ناروغۍ کي چي په هغه کي وفات سو د کور څخه دباندي تشريف راوړ،

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ مَرَضِهِ الَّذِيْ مَاتَ فِيْهِ وَنَحْنُ فِي الْمَسْجِدِ عَاصِبًا رَأْسَهُ

دغه وخت موږ په مسجد کي وو، او سر مبارک يې په جامه کي تړلی وو،

بِخِرْقَةٍ حَتّٰى أَهْوٰى نَحْوَ الْمِنْبَرِ فَاسْتَوٰى عَلَيْهِ وَاتَّبَعْنَاهُ قَالَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ

رسول الله ﷺ مسجد ته داخليدو سره منبر ته راغلی بيا پر منبر کښېنستی، رسول الله ﷺ وفرمايل: په هغه ذات دي مي قسم وي چي د هغه په واک کي زما ساه ده

بِيَدِهٖ إِنِّيْ لَأَنْظُرُ إِلَى الْحَوْضِ مِنْ مَّقَامِيْ هٰذَا ثُمَّ قَالَ إِنَّ عَبْدًا عُرِضَتْ عَلَيْهِ

زه پر دغه منبر ناست حوض کوثر وينم، بيا يې وفرمايل: د خدای جل جلاله يو بنده چي هغه ته دنيا او

الدُّنْيَا وَزِيْنَتُهَا فَاخْتَارَ الْاٰخِرَةَ قَالَ فَلَمْ يَفْطِنْ لَهَا أَحَدٌ غَيْرَ أَبِيْ بَكْرٍ

د دنيا زينت وړاندي کړل سو مګر هغه آخرت اختيار کړ، د ابو سعيد بيان دی د رسول الله ﷺ د دغه ارشاد په مطلب د حضرت ابو بکر صديق رضي الله عنه څخه ماسوا بل څوک پوه نه سول،

فَذَرَفَتْ عَيْنَاهُ فَبَكٰى ثُمَّ قَالَ بَلْ نَفْدِيْكَ بِاٰبَائِنَا وَأُمَّهَاتِنَا وَأَنْفُسِنَا وَأَمْوَالِنَا يَا

رَسُوْلَ اللهِ قَالَ ثُمَّ هَبَطَ فَمَا قَامَ عَلَيْهِ حَتَّى السَّاعَةَ . رواه الدارمي.

د هغه د سترګو څخه اوښکي جاري سوې، بيا په ژړا سو، بيا يې عرض وکړ بلکه موږ پر تاسو خپل پلرونه، خپل ميندي، خپل مالونه او خپل ځانونه اې د الله رسوله ! قربانوو، ابوسعيد ﷺ وايي ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ د منبر څخه راکښته سو او بيا رسول الله ﷺ تر دې وخته پوري پر منبر ونه درېدی. دارمي.

**تخريج**: سنن الدارمي ۱\ ۴۹، رقم: ۷۷.

**تشريح**: په نورو رواياتو کي دي چي حضرت جبرائيل ﷺ د رسول الله ﷺ په خدمت کي په حاضرېدو سره عرض وکړ چي الله ﷻ فرمايي: که تاسو غواړئ چي په دنيا کي نور پاته سئ او موږ د دنيا خزانې تاسو ته حواله کړو او که دغه غرونه ستا لپاره د سرو زرو وګرځوو، پر ته له دې څخه چي زموږ په نزد (په آخرت کي) ستاسو لپاره کومه درجه، اجر او انعام ټاکلی دی په هغه کي به د ذرې په اندازه کمي نه راځي، او که ته موږ ته راتلل غواړې، ددې په اورېدو سره رسول الله ﷺ سر مبارک کښته کړ، او دا هم ويل کيږي چي هغه وخت د رسول الله ﷺ د غلامانو څخه يو غلام هلته موجود وو، کله چي هغه دا خبره واورېدل چي رسول الله ﷺ ته د شتمنۍ او زرو دومره لويه وعده او په دنيا کي د اوسېدو اختيار ورکول کيږي نو هغه وويل: اې د الله رسوله! په دې کي څه حرج دی، که تاسو يو څه وخت نور په دنيا کي اوسېدل وغواړئ نو ستاسو په برکت تر لاسه کېدونکی مال او زر به زموږ لپاره د اسانۍ سبب سي، مګر رسول الله ﷺ د هغه غلام خبري ته د توجه کولو پر ځای په نظر پورته کولو سره حضرت جبرائيل ﷺ ته وکتل او پوهېدل يې وغوښتل چي ددغه اختيار اصل مقصد څه دی او کله چي پوه سو چي د الله ﷻ اصل مقصد ځان ته بلل دي نو وه يې فرمايل: زه هلته ورتلل غواړم، همدارنګه رسول الله ﷺ اخرت اختيار کړ چي هغه ته فناء نسته، زوال نسته او دنيا يې پرېښودل چي د هغه له زوال او فناء څخه پرته بل هيڅ نه دي، له دې کبله د ډېرو عارفينو د ډېر ښه ويلي دي: که يو هوښيار سړي ته د داسي دوو پيالو څخه د يوې پيالې د خوښولو اختيار ورکړل سي چي په هغو کي يوه پياله د خاورو وي مګر ټينګه وي او بله پياله د سرو زرو وي مګر ټينګه نه وي نو هغه هوښيار به يقينا پر هغه پيالې باندي که څه هم د سرو زرو وي هغه پيالې ته ترجيح ورکړي چي د خاورو کېدو سربېره ټينګه او پاته کېدونکي وي او که چيري صورت حال ددې برعکس وي يعني د سرو زرو ټينګه پياله او د خاورو کمزورې پيالې کي د يوې خوښولو اختيار ورکړل سي نو بيا به داسي

كس ډېر ناپوه او بې عقل وي د ټينګې او د سرو زرو د پيالې په پرېښودو سره ژر ضائع كېدونكي د خاورې پيالې ته ترجيح وركړي، نو بايد پوه سو چې د آخرت مثال د هغه پيالې دي چې ټينګه هم ده او د سرو زرو هم ده حال دا چې د دنيا مثال د هغه پيالې دي چې نه يوازې دا چې د خاورو ده بلكه ژر ضائع او فناء كېدونكې هم ده ، په قرآن كريم كې دغه حقيقت ته په دغه الفاظو اشاره سوې ده : (والاخرة خير و ابقى) بېله شكه آخرت غوره او اعلى هم دى او تل هم دى.

## بي بي فاطمې ته د وفات پيشګوئي

﴿۵۷۱۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ إِذَا جَاءَ نَصْرُ اللهِ وَالْفَتْحُ دَعَا رَسُولُ

د ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دى چې كله سورة (اذا جاء نصر الله) نازل سو، نو رسول الله ﷺ

اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاطِمَةَ قَالَ نُعِيَتْ إِلَيَّ نَفْسِي فَبَكَتْ قَالَ لَا تَبْكِي

بي بي فاطمه رضي الله عنها را وغوښتل ورته وه يې فرمايل: ما ته د مرګ خبر راكړل سوى دى ، د دې اوريدو سره بي بي فاطمه په ژړا سوه ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : اې فاطمې ! مه ژاړه،

فَإِنَّكِ أَوَّلُ أَهْلِي لَاحِقٌ بِي فَضَحِكَتْ فَرَآهَا بَعْضُ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

زما په اهل بيتو كې به ته تر ټولو مخكې زما سره يو ځاى كيږې ، د دې اوريدو سره بي بي فاطمه په خندا سوه ، كله چې يې بي بي فاطمه په خندا وليدل نو د نبي كريم ﷺ ځينو بيبيانو د هغې

وَسَلَّمَ فَقُلْنَ يَا فَاطِمَةَ رَأَيْنَاكِ بَكَيْتِ ثُمَّ ضَحِكْتِ قَالَتْ إِنَّهُ أَخْبَرَنِي أَنَّهُ قَدْ

څخه پوښتنه وكړه چې اې فاطمې! اول مو ته په ژړا وليدلې او بيا په خندا د دې سبب څه دى؟ بي بي فاطمې ورته وويل رسول الله ﷺ زه خبره كړې وم چې

نُعِيت إِلَيْهِ نَفْسَهُ فَبَكَيْتُ فَقَالَ لِي لَا تَبْكِي فَإِنَّكِ أَوَّلُ أَهْلِي لَاحِقٌ بِي

ما ته د خپل مرګ خبر راكړل سوى دى ، د دې اوريدو سره زه په ژړا سوم ، نو رسول الله ﷺ را ته وفرمايل مه ژاړه زما په اهل بيتو كې به تر ټولو مخكې ته زما سره يو ځاى كيږې، د دې اوريدو

فَضَحِكْتُ وَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا جَاءَ نَصْرُ اللهِ وَالْفَتْحُ

سره زه په خندا سوم، او رسول الله ﷺ وفرمايل : د الله جل جلاله مرسته را ورسيدل مكه فتحه سوه، د

وَجَاءَ أَهْلُ الْيَمَنِ هُمْ أَرَقُّ أَفْئِدَةً وَالْإِيْمَانُ يِمَانٍ وَالْحِكْمَةُ يَمَانِيَةٌ. رواه الدارمي

یمن خلک راغلل چي ډیر نرم زړونه یې وي، او د هغوی ایمان هم یمني دی. او د هغوی علم او حکمت هم یمني دی. دارمي.

**تخریج**: سنن الدارمي ۱\۵۱، رقم: ۷۹.

**تشریح**: ما ته زما د مرګ خبر راکړل سوی دی: یعني رسول الله ﷺ دغه ارشاد وفرمایه چي دغه سورت په اصل کي د دنیا څخه زما د رحلت اعلان دی ځکه چي په دې کي د الله ﷻ د مرستي، نصرت، فتح او په دین کي د خلګو په ډلو ډلو داخلېدو خبر راکړل سوی دی او ددې سره د تسبیح او تحمید حکم راکړل سوی دی، او ددې مطلب ما سوا ددې څخه نور څه نه دی چي په دنیا کي زما د اوسېدو او زما د پیغمبرۍ مقصد یعني د دعوت اتمام او ددین تکمیل هغه پوره سوی دی، اوس ما لره د تسبیح او تحمید او الله ﷻ ته د کاملي توجه او استغراق په ذریعه د آخرت د سفر تیاري کول پکار دي.

ته به تر ټولو مخکي زما سره یو ځای کیږې: دغه الفاظ محض د بي بي فاطمې ؓ د ډاډ لپاره نه وه بلکه هغې ته ددغه حقیقت د وړاندویني په توګه وو چي زما د رحلت څخه وروسته زما په کورنۍ کي چي د چا مرګ تر ټولو مخکي واقع کیږي هغه ته یې، او زما د بېلوالي غم به تا ته زیات نه وي نو همدارنګه وسول چي د رسول الله ﷺ د وفات څخه شپږ میاشتي وروسته بي بي فاطمه ؓ له دنیا څخه رخصت سول، زیات صحیح روایت دادی مګر په یوه روایت کي د رسول الله ﷺ د رحلت څخه اته میاشتي وروسته او په یوه روایت کي درې یا دوې میاشتي وروسته او په یوه روایت کي اویا ورځي وروسته د هغې د وفات ذکر دی.

د ځینو ازواج مطهرات څخه بي بي عائشه ؓ مراد ده، لکه څرنګه چي طیبي رحمة الله علیه لیکلي دي، نو ویل کیږي چي د فقلن الفاظ هغوی وویل، او د جمع صیغه د بي بي عائشې ؓ د تعظیم لپاره استعمال سوې ده مګر دا لیري خبره نه ده چي په دغه وخت کي د بي بي عائشې ؓ څخه ماسوا نوري بیبیاني هم موجود وې او هغوی ټولو د بي بي فاطمې په ژړا او بیا په خندا لېدو سره د صورت حال پوښتنه کړې وي بلکه ظاهري عبادت یعني بعض ازواج النبي او فقلن څخه دا احتمال زیات قوي معلومیږي او رسول الله ﷺ بي بي فاطمې ؓ ته ذکر سوې خبره ډېره پټه کړې وه ځکه د بي بي فاطمې ؓ څخه ماسوا بل چا دا خبره اورېدلې نه وه او ځکه هغوی د بي بي فاطمې ؓ څخه پوښتنه وکړل، په ځینو روایتو کي دا هم راغلي دي چي بي بي فاطمې ؓ د

ازواج مطهراتو پر پوښتنه هغه وخت اصلي خبره ونه ښودل بلکه يو ازې دا جواب يې ورکړی وو چي دا زما او د خدای د رسول په منځ کي يو راز دی ، زه يې بل چا ته نه ښيم او بيا د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته هغې دا خبره ښودلې وه .

او ديمن خلک راغلل: ددغه جملې په ذريعه رسول الله ﷺ ، حضرت ابوموسی اشعري رضي الله عنه او دهغه د قوم خلکو ته اشاره وکړل چي هغوی اسلام قبول کړی وو ، په نحوي توګه د (وجاء اهل اليمن) الفاظ عطف دي پر (جاء نصر الله) باندي او په اصل کي دغه جمله چي ديمن خلک راغلل د ذکر سوي سورت ددغه الفاظ : (ورايت الناس يدخلون في دين الله افواجا) وضاحت او تفسير دی ، مطلب دا چي په دغه آيت کي فرمايل سوي دي چي رسول الله ﷺ خلک په دين کي داخلېدل ولېدل نو د خلکو څخه مراد د يمن او سېدونکي دي .

چي د نرم زړو خاوندان دي: دغه الفاظ رسول الله ﷺ د يمن د اوسېدونکو په مدح او تعريف کي وفرمايل چي هغه خلک احکام او هدايات ژر مني ، دهغوی زړونه د وعظ او نصيحت څخه ډېر زيات متاثره کيږي ، د حق قبلېدو استعداد په هغوی کي زيات دی او د زړه د سختوالي څخه هغوی خوندي دي.

ايمان يمني دی: يعني د ايمان لفظ د يمن څخه وتلی دی چي د يمن هيواد سره لفظي نه بلکه معنوي مناسبت هم لري، په اصل کي دغه جمله هم د اهل يمن په مدح کي يعني د هغوی د درجې څرګندولو لپاره ده چي هغوی ايمان او اسلام او اطاعت او انقياد کي لري .

او حکمت هم يمني دی: مطلب دا چي علم او حکمت چي د شيانو د حقيقت او د هغه د احوالو د معرفت څخه عبارت دی اهل يمن ته ځانګړی نسبت تر لاسه دی ځکه چي هغوی د تحقيق او پلټني خاص ذهن لري ، ددغه الفاظو په ذريعه رسول الله ﷺ د حضرت ابوموسی اشعري رضي الله عنه هغه سوالو ته اشاره وفرمايل چي هغوی د احوال مبداء و معاد او لومړني زېږېدني د حقائقو په اړه له رسول الله ﷺ څخه کړي وه، دغه روايت چي په هغه کي د حضرت ابوموسی اشعري رضي الله عنه سوالونه او د رسول الله ﷺ جوابونه دي د کتاب بدء الخلق په پيل کي تېر سوی دی او ځيني حضرات وايي چي د ايمان او حکمت نسبت يمن ته په دې اعتبار سوی دی چي ايمان د مکې څخه پيل سو او مکه د تهامه د مځکي څخه ده او د تهامه تعلق د يمن سره هم دی ځکه کعبې ته يمانيه هم ويل کيږي، او د ځينو حضراتو وينا ده چي رسول الله ﷺ دغه حديث په تبوک کي ارشاد فرمايلي وو چي د شام د هيواد سيمه ده او هلته د مکې او مدينې خواوي هغه دي چي ديمن دي نو رسول الله ﷺ اشاره خو يمن ته وکړه مګر مراد د رسول الله ﷺ د مکې او مدينې

څخه وو او د ابو عبيد رحمة الله عليه قول دی چي ديمن څخه مراد دمدينې انصار دي چي د هغوی اصل هيواد يمن وو نو د مدينې د انصارو تعريف او صفت بيانولو لپاره د ايمان او حكمت نسبت يمن ته سوی دی، په هر حال ددغه حديث مقصد محض دا ظاهرول دي چي د يمن خلك كامل ايمان لري او په دې سره د بل چا د ايمان نفي نه ظاهرېږي ځكه په دغه حديث او د هغه روايتو په منځ كي اختلاف نسته چي په هغو كي فرمايل سوي دي چي : الايمان في اهل الحجاز، يعني ايمان په اهل حجاز كي دی، او ددغه ارشاد څخه د يمن هغه كلمه ويونكي مراد دي چي په هغه زمانه كي وه نه د هري زمانې يمنيان، څرګنده دي وي چي د حديث د سياق څخه دا معلومېږي چي دغه ارشاد : ايمان يمني دی، او حكمت هم يمني دی، د رسول الله ﷺ د مرض الموت د زمانې دی، بيا هم دا خبره ويل كيدای سي چي دا خبره رسول الله ﷺ مخكي په بل ځای كي فرمايلي وي مګر دلته په روايت كي د اهل يمن ذكر وو ، په دې مناسبت سره مؤلف دغه ارشاد چي د يو بل حديث ټوټه ده د هغه ځای څخه په را پورته كولو دلته نقل كړې ده .

**د حكمت معنی** : د حكمت لغوي معنی د عقل او پوهي ده ، ځيني حضرات وايي : حكمت د هر شي د حقيقت د پلټني علم ته وايي، د طيبي رحمة الله عليه وينا ده : حكمت هر هغه صالح كلام ته وايي چي متكلم په تاوان او هلاكت كي د لوېدو څخه وژغوري، او ځيني حضرات وايي چي د حكمت لفظ د علم تر لاسه كولو او ښه عمل كولو څخه عبارت دی .

په قرآن كريم كي د حكمت داسي يادونه سوې ده : (ومن يؤت الحكمة فقد اوتي خيرا كثيرا ): (او حقيقت دا دی) چا ته چي حكمت تر لاسه سو نو هغه ته لوی خير وركړل سو .

حضرت انس رضي الله عنه فرمايي :

(الحكمة تزيد الشريف شرفا وترفع العبد المملوك حتي تجلسه مجالس الملوك)

ژباړه: حكمت هغه جوهر دی چي د عزتمند او شريف عزت او شرف زياتوي او د يو مملوك غلام مرتبه او حيثيت زياتولو سره د پاچاهانو په مجلس كي د ناستي وړ ګرځوي .

او له حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه منقول دي چي د حكمت لس برخي دي، په هغو كي نهه برخي په عزلت يعني ګوشه نشيني كي دي او يوه برخه په سكوت كي .

## د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه د خلافت په اړه وصيت

﴿۵۷۱۸﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ اَنَّهَا قَالَتْ وَا رَأْسَاهُ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دی چي يوه ورځ هغې د رسول الله ﷺ په حضور كي د

سخت درد په حالت کي وويل آه زما سر درد کوي، ددې اوريدو سره رسول الله ﷺ وفرمايل :

وَسَلَّمَ ذَاكِ لَوْ كَانَ وَأَنَا حَيٌّ فَأَسْتَغْفِرَ لَكِ وَأَدْعُوَ لَكِ فَقَالَتْ عَائِشَةُ وَا ثُكْلِيَاهُ

که مړګ واقع سو او زه ژوندی وم نو ستا لپاره به د بخښني دعاء کوم او تا ته به دعاء کوم، بي بي عائشې ﷺ عرض وکړ آه مصيبت او هلاکت دی ،

وَاللَّهِ إِنِّي لَأَظُنُّكَ تُحِبُّ مَوْتِي فَلَوْ كَانَ ذَاكَ لَظَلِلْتَ آخِرَ يَوْمِكَ مُعَرِّسًا بِبَعْضِ

په خدای دي مي قسم وي زما خيال دا دی تاسو غواړئ چي زه مړه سم که داسي وسول نو تاسو به د هغه ورځي په آخر کي د خپلي يوې بلي بي بي سره شپه تيره کړئ، الله ﷺ فرمايي ددې الفاظو څخه زما مطلب دا وو چي ما قصد کړی وو

أَزْوَاجِكَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَلْ أَنَا وَا رَأْسَاهُ لَقَدْ هَمَمْتُ أَوْ أَرَدْتُ

رسول الله ﷺ وفرمايل : اې عائشې ! زما د سردرد او زما د مرګ په ذکر کي بوخته سه ، رسول

أَنْ أُرْسِلَ إِلَى أَبِي بَكْرٍ وَابْنِهِ وَأَعْهَدَ أَنْ يَقُولَ الْقَائِلُونَ أَوْ يَتَمَنَّى الْمُتَمَنُّونَ ثُمَّ

يا ما ددې خبري اراده کړې وه چي يو څوک سړی واستوم ابوبکر او د هغه زوی را وغواړم او د هغه لپاره (ابوبکر ﷺ لپاره) د خلافت وصيت وکړم، لپاره ددې چي بيا وينا ونه کړي وينا کونکی، يا تمنا ونه کړي تمنا کونکی،

قُلْتُ يَأْبَى اللَّهُ وَيَدْفَعُ الْمُؤْمِنُونَ أَوْ يَدْفَعُ اللَّهُ وَيَأْبَى الْمُؤْمِنُونَ. رواه البخاري.

بيا ما په خپل زړه کي وويل چي خدای تعالی منعه کوي او مؤمنان دفع کوي يا خدای ﷻ دفعه کوي او مؤمنان منعه کوي . بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٠\١٢٣، رقم: ٥٦٦٦.

**تشريح** اُف زما سر: په ښکاره دا معلوميږي چي دا د رسول الله ﷺ د مرض الموت د زمانې پېښه ده ، په يو بله ورځ به بي بي عائشې ﷺ په سر کي درد پيدا سوی وي او هغې ددغه شکايت اظهار د رسول الله ﷺ په مخکي په هغه الفاظو کړي وي، او ځينو حضراتو ليکلي دي چي د سر څخه مراد ذات دی چي د هغه په ذريعه بي بي عائشې ﷺ خپل مرګ ته اشاره وکړل .

واثکلياه: اُف زما د سرد درد ، د ثکل لفظ د ثاء په زبر او پېښ دواړو سره د هلک يا مړ

کېدو ده او دلته د دغه لفظ څخه بي بي عايشې ﷺ خپل ذات مراد اخيستى دى چي د مرګ ذکر مرګ په يادوي ، دا يو محاوراتي لفظ دى چي د هري پريشانۍ په وخت کي د عربو پر ژبه راځي که د هغه حقيقي معنى مراد وي يا حقيقي معنى مراد نه وي .

تاسو زما مرګ خوښوئ: رسول الله ﷺ په مخاطب کولو سره بي بي عائشې ﷺ دغه الفاظ د هغې د ناز او ميني په توګه وويل، چي د هغې او د رسول الله ﷺ په منځ کي وو ، يعني بي بي عائشې ﷺ دا وويل: که زه مړه سم نو ستاسو يې څه ، تاسو خو به ما سمدستي هېره کړئ او په خپلو نورو بيبيانو کي به بوخت سئ .

زما د سر درد او زما د مرګ ذکر کوه، يعني ته د خپل سر درد او د خپل مرګ د ذکر کولو لپاره ولي کښېنستلې، تا لره خو زما د سردرد او زما په اړه فکر کول پکار دي زه د دغه دنيا څخه ځم تا لره تر اوسه ډېر ژوندى اوسېدل دي او زما وروسته هم تر ډېري زمانې پوري په دنيا کي اوسېدل دي ، د دې څخه معلومه سوه چي رسول الله ﷺ ته د وحي په ذريعه معلومات سوى وو چي د سر درد په اصل کي زما مرض الموت دى ، او د حضرت عائشې ﷺ د سر درد ناڅاپه دى، او د هغې ژوند تر اوسه ډېر پاته دى، د رسول الله ﷺ او د بي بي عائشې ﷺ د ناروغۍ په يو ډول والي کي هغه کمال محبت ته اشاره ده چي د هغوى دواړو په منځ کي وو .

زما قصد وو : کله چي رسول الله ﷺ د بي بي عائشې ﷺ په مخکي د خپل مرګ يادونه وکړل نو په قدرتي توګه د دې خبري ته متوجه کېدل هم ضروري وو چي د رسول الله ﷺ وروسته به کوم څوک د ملت ديني او دنيوي مشرتوب سنبالوي نو رسول الله ﷺ د حضرت ابوبکر صديق ﷺ خلافت ته څرګنده اشاره وفرمايل او هغه مقصد د بي بي عائشې ﷺ د زړه ښه کولو او د هغې د پلار لپاره د هغې عظيم دولت او نعمت زيرى ورکول هم وو .

چي بيا ويونکي هيڅ ونه وايي: د (ان يقول القائلين) يوه ترجمه خو دا ده او په دغه صورت کي مطلب دا دى چي ابوبکر صديق ﷺ د خپل ولي عهد جوړولو سره د هغه د خلافت په وصيت کولو سره بيا وروسته خلګو ته د څه ويلو موقع پاته نه سي او يوه ترجمه به دا وي چي ويونکي څه چي وايي، په دغه صورت کي د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب به دا وي چي زما د دغه ارادې بنياد دا وو که ما د ابوبکر صديق ﷺ لپاره د خلافت کبرى وصيت ونه کړ نو کيداى سي خلک به دا وايي چي رسول الله ﷺ د ابوبکر صديق ﷺ لپاره د خلافت صغرى (د لمانځه امامت) باندي اکتفاء کړې وه ، د هغوى لپاره د خلافت کبرى څرګنده وصيت يې ولي ونه کړ، سره د دې چي په خلافت صغرى کي د خلافت کبرى اشاره هم موجود وه .

بیا ما په خپل زړه کي وویل: دلته رسول الله ﷺ خپله ذکر سوي اراده باندي د عمل نه کولو سبب بیان نه کړ چي لومړی خو د الله جل جلاله فیصله به دا وي چي زما څخه وروسته لومړی خلیفه به ابوبکر صدیق رضی الله عنه وي، دوهم دا چي مسلمانان به هم د ابوبکر رضی الله عنه خلافت په شوق او رضا سره قبول کړي ځکه چي هغوی لیدلي دي چي ما د خپلي ناروغۍ په حالت کي د لمانځه لپاره ابوبکر صدیق رضی الله عنه ټاکلی دی چي ددې خبري څرګنده اشاره یې وکړل چي د مسلمانانو د قیامت عظمی ذمه داري پوره کولو تر ټولو زیات اهلیت په ابوبکر صدیق رضی الله عنه کي دی، نو کله چي تقدیر الٰهي داسي وي او عام مسلمانان به هم د ابوبکر صدیق رضی الله عنه څخه ماسوا د بل چا خلافت ته تیار نه سي نو زه پوهیږم چي د ابوبکر صدیق رضی الله عنه د خلافت لپاره د وصیت کولو سره اړتیا نسته نو همداسي وسول چي د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته الله جل جلاله داسي حالات پیدا کړل چي لومړنی خلیفه حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه وټاکل سو او کله چي د ځینو خلکو له خوا په دې اړه لږ اختلاف پیدا سو نو حضرت علي رضی الله عنه د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه په حق کي په خلافت صغری (د لمانځه امامت) سره په استدلال کولو وفرمایل چي کله رسول الله ﷺ، حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه زموږ ددین په معامله کي ټاکلی دی نو دا څرنګه ممکن ده چي موږ هغه په خپلو دنیوي معاملاتو کي ونه ټاکو، په اصل کي د خلافت په اړه د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه په حق کي تر دې لوی دلیل بل هیڅ نه سي کیدای.

او مسلمانان به هم د بل چا خلافت ونه مني: په دغه جمله کي نه یوازي دا چي د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه خلافت ته څرګنده اشاره ده بلکه په دې کي د هغه خلکو تکفیر ته هم اشاره ده چي د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه خلافت برحق نه مني.

## د مرض الموت پیل کیدل

﴿۵۷۱۹﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ رَجَعَ إِلَيَّ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ مِنْ

د حضرت عائشي (رض) څخه روایت دی چي یوه ورځ د بقیع په هدیره کي د یوې جنازې دفن

جَنَازَةٍ مِنَ الْبَقِيْعِ فَوَجَدَنِيْ وَأَنَا أَجِدُ صُدَاعًا وَأَنَا أَقُوْلُ وَارَأْسَاهُ قَالَ بَلْ أَنَا يَا

کولو څخه وروسته رسول الله ﷺ ما ته تشریف راوړ، او زه یې په داسي حال کي ولیدم چي زما سر خوږېدی او ما ویل: آه زما د سردرد، ددې اوریدو سره رسول الله ﷺ وفرمایل: اې

عَائِشَةُ وَارَأْسَاهُ قَالَ وَمَا ضَرَّكِ لَوْ مُتِّ قَبْلِيْ فَغَسَّلْتُكِ وَكَفَّنْتُكِ وَصَلَّيْتُ

عائشې ! بلکه زما سر درد کوي، بيا رسول الله ﷺ وفرمايل : او په دې کي ستا تاوان څه دی ؟ که ته زما څخه مخکي مړه سوې نو زه به غسل درکړم ، کفن به درکړم او د جنازې لمونځ به درکړم

عَلَيْكِ وَدَفَنْتُكِ قُلْتُ لَكَأَنِّيْ بِكَ وَاللهِ لَوْ فَعَلْتَ ذٰلِكَ لَرَجَعْتَ إِلٰى بَيْتِيْ

او تا به دفن کړم، ما وويل: په خدای ﷻ مي دي قسم وي که تاسو داسي وکړل نو خپل کور ته په راستنيدو سره به د خپلي بلي يوې بي بي سره

فَعَرَسْتَ فِيْهِ بِبَعْضِ نِسَائِكَ فَتَبَسَّمَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ بُدِئَ فِيْ وَجْعِهِ الَّذِيْ مَاتَ فِيْهِ. رواه الدارمي.

شپه تيره کړې ، ددې اوريدو سره رسول الله ﷺ په مسکا سو ، او د هغه وخت څخه د رسول الله ﷺ د هغه ناروغۍ لړۍ پيل سوه چي په هغه کي وفات سو . دارمي

**تخريج**: سنن الدارمي ۱\۵۱، رقم: ۸۰.

**تشريح**: او زه به تا ښخه کړم: د رسول الله ﷺ په دغه ارشاد کي دې ته اشاره ده که چيري بي بي عائشه ؓ د رسول الله ﷺ په شتون کي وفات سي نو يقينا به ورته د سعادت هغه خاص مرتبه تر لاسه سوې وای چي د رسول الله ﷺ څخه وروسته په ژوندۍ پاته کېدو کي او بيا د وفات کېدو په صورت کي به هغې ته تر لاسه نه سي .

## د حضرت خضر ؑ تعزيت

﴿۵۷۲۰﴾ : وَعَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ أَبِيْهِ أَنَّ رَجُلاً مِنْ قُرَيْشٍ دَخَلَ عَلٰى أَبِيْهِ

حضرت جعفر بن محمد ؓ د خپل پلار څخه روايت کوي چي يو قريشي سړی زما پلار علي بن

عَلِيِّ بْنِ الْحُسَيْنِ فَقَالَ أَلاَ أُحَدِّثُكَ عَنْ رَّسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَلٰى

حسين ته راغلی او علي بن حسين هغه ته وويل : ايا ستا مخکي د رسول الله ﷺ حديث بيان کړم، هغه سړي وويل : هو ،

حَدِّثْنَا عَنْ أَبِي الْقَاسِمِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَمَّا مَرِضَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ

موږ ته د ابو القاسم ﷺ حديث بيان کړئ، علي بن حسين ؓ ورته وويل رسول الله ﷺ چي کله

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَاهُ جِبْرِيْلُ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ إِنَّ اللهَ أَرْسَلَنِيْ إِلَيْكَ تَكْرِيْمًا لَكَ

ناروغ سو نو جبرائیل علیه السلام یې په خدمت کي حاضر سو ورته وه یې ویل اې محمد! خدای تعالی زه تا ته په خاصه توګه د تعظیم او تکریم لپاره رالیږلی یم

وَتَشْرِيْفًا لَكَ خَاصَّةً لَكَ يَسْأَلُكَ عَمَّا هُوَ أَعْلَمُ بِهِ مِنْكَ يَقُوْلُ كَيْفَ تَجِدُكَ قَالَ

او هغه ستا څخه دداسې خبري پوښتنه کوي چي ستا څخه زیات په پوهیږي یعني خدای تعالی ستا څخه پوښتنه کوي چي ستا څه حال دی؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل:

أَجِدُنِيْ يَا جِبْرِيْلُ مَغْمُوْمًا وَأَجِدُنِيْ يَا جِبْرِيْلُ مَكْرُوْبًا ثُمَّ جَاءَهُ الْيَوْمَ الثَّانِيْ

اې جبرائیل! زه خپل ځان رنجیده او غمګین وینم، او اې جبرائیل! زه خپل ځان مضطرب او پریشانه وینم، په دویمه ورځ بیا جبرائیل علیه السلام رسول الله ﷺ ته راغلی

فَقَالَ لَهُ ذٰلِكَ فَرَدَّ عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَمَا رَدَّ أَوَّلَ يَوْمٍ ثُمَّ جَاءَهُ

او هغه الفاظ یې وویل کوم چي یې په لومړۍ ورځ ویلي وه او رسول الله ﷺ ورته هغه جواب ورکړ کوم چي یې ورته په لومړۍ ورځ ورکړي وه، په دریمه ورځ بیا جبرائیل علیه السلام راغلی

الْيَوْمَ الثَّالِثَ فَقَالَ لَهُ كَمَا قَالَ أَوَّلَ يَوْمٍ وَرَدَّ عَلَيْهِ كَمَا رَدَّ عَلَيْهِ وَجَاءَ مَعَهُ مَلَكٌ

او هغه پوښتنه یې وکړه چي په لومړنۍ ورځ یې کړې وه او رسول الله ﷺ هم هغه جواب ورکړ کوم چي یې په لومړنۍ ورځ ورکړی وو، او د جبرائیل علیه السلام سره یوه ملائکه بله هم وه

يُقَالُ لَهُ إِسْمَاعِيْلُ عَلٰى مِائَةِ أَلْفِ مَلَكٍ كُلُّ مَلِكٍ عَلٰى مِائَةِ أَلْفِ مَلَكٍ فَاسْتَأْذَنَ

چي نوم یې اسماعیل وو او د زرو داسي ملائکو سرداره وه چي په هغو کي هره ملائکه د یو لک ملائکو سرداره وه، اسماعیل ملائکي د حاضرۍ اجازه وغوښتل،

عَلَيْهِ فَسَأَلَهُ عَنْهُ ثُمَّ قَالَ جِبْرِيْلُ هٰذَا مَلَكُ الْمَوْتِ يَسْتَأْذِنُ عَلَيْكَ مَا اسْتَأْذَنَ

رسول الله ﷺ د جبرائیل علیه السلام څخه د هغې د نوم پوښتنه وکړه او بیا یې ورته د حاضرۍ اجازه ورکړه، دذې څخه وروسته جبرائیل علیه السلام وویل دا ملائکه د مرګ حاضره ده د حاضرۍ اجازه غواړي او د نن څخه مخکي نه د غه ملائکي د چا څخه اجازه غوښتې ده

عَلٰى آدَمِيٍّ قَبْلَكَ وَلاَ يَسْتَأْذِنُ عَلٰى آدَمِيٍّ بَعْدَكَ فَقَالَ ائْذِنْ لَهُ فَأَذِنَ لَهُ فَسَلَّمَ

او نه به دا دې څخه وروسته د چا څخه اجازه وغواړي، رسول الله ﷺ ورته و فرمايل را وه يې غواړه، نو جبرائيل عليه السلام هغه ملائکه را وغوښتل هغه حاضره سوه سلام يې وکړ

عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ يَا مُحَمَّدُ إِنَّ اللهَ أَرْسَلَنِيْ إِلَيْكَ فَإِنْ أَمَرْتَنِيْ أَنْ أَقْبَضَ رُوْحَكَ

او بيا يې عرض وکړ اې محمد ﷺ ! خداى تعالى زه ستاسو په خدمت کې را ليږلى يم که تاسو حکم کوئ نو زه به ستاسو روح قبض کړم

قَبَضْتُ وَإِنْ أَمَرْتَنِيْ أَنْ أَتْرُكَهُ تَرَكْتُهُ فَقَالَ وَتَفْعَلَ يَا مَلَكَ الْمَوْتِ قَالَ نَعَمْ

او که منع کوئ نو روح به ستاسو په بدن کې پرېږدم، رسول الله ﷺ ورته و فرمايل : ايا ته به داسي وکړې؟ ، د مرګ ملائکي ورته عرض وکړ هو ،

بِذٰلِكَ أُمِرْتُ وَأُمِرْتُ أَنْ أُطِيْعَكَ قَالَ فَنَظَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى

ما ته همدا سي حکم را کړل سوى دى چي څه تاسو فرمايا ست زه به د هغه اطاعت کوم. د راوي بيان دى چي نبي کريم ﷺ

جِبْرِيْلَ عَلَيْهِ السَّلاَمُ فَقَالَ جِبْرِيْلُ يَا مُحَمَّدُ إِنَّ اللهَ قَدِ اشْتَاقَ إِلٰى لِقَائِكَ فَقَالَ

جبرائيل عليه السلام ته وکتل نو جبرائيل عليه السلام ورته عرض وکړ اې محمد ! خداى تعالى ستاسو د ملاقات مشتاق دى ،

النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِمَلَكِ الْمَوْتِ امْضِ لِمَا أُمِرْتَ بِهِ فَقَبَضَ رُوْحَهُ فَلَمَّا

نبي کريم ﷺ د مرګ ملائکي ته حکم ورکړ د کومي خبري چي تا ته حکم سوى دى هغه په عمل کي راوله، نو د مرګ ملائکي د رسول الله ﷺ روح مبارک قبض کړى ، کله چي

تُوُفِّيَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَاءَتِ التَّعْزِيَةُ سَمِعُوْا صَوْتًا مِنْ نَاحِيَةِ

رسول الله ﷺ وفات سو . او يو سړي د تعزيت لپاره راغلى نو د سراى د يوه کونج څخه يو آواز واوريدل سو چي کورنى يې مخاطب کړل ورته يې وويل :

الْبَيْتِ اَلسَّلاَمُ عَلَيْكُمْ أَهْلَ الْبَيْتِ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ إِنَّ فِي اللهِ عَزَاءً مِنْ كُلِّ

اې د پیغمبر اهل بیتو! پر تاسو دي سلامتیا وي د خدای مهرباني دي وي او د خدای ﷻ برکتونه دي پر تاسو نازل وي، د خدای په کتاب کي،

مُصِيبَةٍ وَخَلَفًا مِنْ كُلِّ هَالِكٍ وَدَرَكًا مِنْ كُلِّ فَائِتٍ فَبِاللّٰهِ فاتقوا وَإِيَّاهُ فَارْجُوْا

د خدای په دین کي د هر مصیبت د تسکین او تسلی سامان موجود دی، او خدای تعالی د هر هلاکیدونکي شي بدله ورکونکی او د هر فوت کیدونکي شي تدارک کونکی دی. هر کله چي صورت حال دادی نو د خدای ﷻ په مرسته سره تقوا اختیار کړئ او د هغه څخه امید ساتئ،

فَإِنَّمَا الْمُصَابُ مَنْ حُرِمَ الثَّوَابَ فَقَالَ عَلِيٌّ أَتَدْرُوْنَ مَنْ هٰذَا هُوَ الْخَضِرُ عَلَيْهِ السَّلَامُ. رواه البيهقي في دلائل النبوة.

ځکه چي هیڅ مصیبت وهلی د ثواب څخه محرومه سوی نه دی، ددې خطاب اوریدو سره حضرت علي رضي الله عنه وویل تاسو ته معلومه ده چي دا تسکین ورکونکی سړی څوک دی، دا حضرت خضر عليه السلام دی. بیهقي.

**تخريج**: رواه البيهقي في دلائل النبوة.

**د لغاتو حل**: درکا: اي تدارکا. (بدله ورکول)

**تشريح**: خپل ځان اضطراري او پریشانه وینم: په ښکاره دا معلومیږي چي رسول الله ﷺ د حضرت جبرائیل عليه السلام په وړاندي د خپل غم او پرېشانۍ اظهار وکړ ددې تعلق د امت د راتلونکي سره وو چي زما څخه وروسته به زما امت له کوم حالت سره مخامخ کیږي او مسلمانان به په کومو تاوانو او مصیبتو اخته سي.

د اسماعیل ملائکي په اړه علماؤ لیکلي دي چي دا د دنیا د آسمان چوکیداره ده، او په حدیث کي څرنګه چي د اسماعیل ملائکي د راتللو یادونه ده همدارنګه د مرګ د ملائکي یعني عزرائیل عليه السلام د راتګ یادونه نسته، ددې وجه داده چي هغه وخت د مرګ د ملائکي راتلل څرګنده خبره ده چي د هغه د بیانولو اړتیا نه وه یا دا چي د مرګ ملائکه د حضرت جبرائیل عليه السلام او اسماعیل ملائکي د راتلو وروسته هغه وخت حاضر سوي وي کله چي جبرائیل عليه السلام د هغې د حاضرۍ خبر او د هغې له خوا د اجازې غوښتنه رسول الله ﷺ ته وکړل، سیوطي رحمة الله عليه د بیهقي رحمة الله عليه څخه دا روایت نقل کړی دی چي په دریمه ورځ کله چي حضرت جبرائیل عليه السلام د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو نو د هغه سره د مرګ ملائکه هم وه او له هغوی دواړو سره په هواء

كي يوه بله ملائكه وه چي اسماعيل ورته ويل كيږي چي پر داسي اويا زره ملائكو باندي حاكم ده چي په هغو كي يوه يوه ملائكه د نورو اوويا زرو ملائكو مشره ده،

د مرګ ملائكي د رسول الله ﷺ روح مبارك قبض كړ، په دې اړه شيخ عبدالحق رحمة الله عليه ليكلي دي چي كله حضرت جبرائيل عليه السلام او د هغه سره د مرګ ملائكه او يوه بله دريمه ملائكه حضرت اسماعيل راغلل او ذكر سوي خبري پوره سوې نو تر دې وروسته رسول الله ﷺ ته لږ وخت تر لاسه سو او په دغه وخت كي رسول الله ﷺ صحابه كرامو ته د دغه ټولو پېښو او خبرو خبر وركړ، بيا د دې وروسته د مرګ ملائكي د رسول الله ﷺ روح مبارك قبض كړ، يا داسي وسول چي د عالم غيب دغه ټوله پېښه او خبري پر ځينو هغه صحابه كرامو باندي منكشف سوي وې چي هغه وخت د رسول الله ﷺ سره موجود وه او د هغه صحابه كرامو څخه يو چا امام علي زين العابدين ته دغه پېښه بيان كړه چي امام علي زين العابدين روايت په پيل كي د قريشو په يو سړي سره تعبير كړ، مګر زموږ زړه دا وايي چي كيداى سي حضرت خضر عليه السلام د يو قريشي سړي په صورت كي امام علي زين العابدين ته راغلى وي او دغه حديث يې هغه ته بيان كړي وي ځكه امام زين العابدين رحمة الله عليه د راوي ذكر په مبهمو الفاظو كي وكړ.

په يوه روايت كي د بي بي ام سلمه رضي الله عنها څخه منقول دي چي د وفات په وخت كي د نبي كريم ﷺ پر ژبه مباركه د وصيت او نصيحت كوم الفاظ چي ډېر زيات راتلل هغه دا وه : الصلوة وما ملكت ايمانكم، يعني لمونځ او د خپلو غلامانو او مينځو خاص پاملرنه كوئ.

ان في الله عزاء: د دې په معنى او مطلب كي د حديثو د شارحينو مختلف اقوال دي، يو قول دادى چي د في الله الفاظ په اصل كي د في كتاب الله مفهوم لري مطلب دا چي د مصيبت او غم په وخت كي د ډاډ وركولو او يا تسكين وركولو لارښوونه په كتاب الله كي موجود ده نو په دغه الفاظ، كي دغه آيت كريمه ته اشاره ده :

وَبَشِّرِ الصَّابِرِينَ الَّذِينَ إِذَا أَصَابَتْهُم مُّصِيبَةٌ قَالُواْ إِنَّا لِلّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعونَ

ژباړه: او تاسو داسي شاكرينو ته زيري وركړئ چي كله پر هغوى مصيبت راسي نو هغوى وايي چي موږ خو د الله جل جلاله يو او هغه ته ورتلونكي يو.

دوهم قول دادى چي في الله په اصل كي د في دين الله، په معنى كي دى، او مطلب دا چي د الله جل جلاله په دين كي د هر مصيبت او غم په وخت كي د هغه صبر په صورت كي د ډاډ سامان موجود دى چي د هغه تلقين شارع عليه السلام كړى دى ، او ځيني حضرات وايي چي په الله جل جلاله كي د

تسکین او ډاډ سامان موجود دی، مطلب دا چي الله ﷻ د هر مصیبت او غم په وخت کي د صبر او تسکین ورکوونکی دی، یعني د علم بیان په اصطلاح کي دا خبره د تجرید په توګه ویل سوې ده او ددې مثال دادی چي په عربي کي ویل کیږي: رایت في زید اسد، یعني ما په زید کي زمری ولیدی، او ددې مطلب دادی چي ما زید د زمري په ډول طاقتور ولیدی، دغه احتمال د وروستني عبارت په اعتبار زیات مناسب معلومیږي.

خلفا من کل هالک و درکا من کل فائت: ددې یوه معنی خو هغه ده چي په ترجمه کي ذکر سوې ده چي الله ﷻ د هر هلاکت کونکي شي بدله ورکونکی او د هر فوت کېدونکي شي تدارک کوونکی دی، او یوه معنی دا هم کیدای سي چي د الله ﷻ دین یا د الله ﷻ په کتاب کي هغه تعلیمات مذکور دي چي په هغه عمل کولو سره انسان د لوی محرومی او لوی تاوان نعم البدل یعني د اخروي اجر او انعام سبب کیدای سي.

د الله ﷻ په مرسته تقوا اختیار کړه: یعني د الله ﷻ حکم او فیصله په خوښي سره قبوله کړه او د هغه د مرستي په ذریعه صبر او استقامت اختیار کړه، ژړاوي، بې صبري او بې قراري مه کوه، په دغه الفاظو کي د الله ﷻ پر دغه ارشاد باندي د عمل کولو تلقین دی:

وَاصْبِرْ وَمَا صَبْرُكَ إِلاَّ بِاللهِ

ژباړه: او صبر کوه، او ستا صبر کول د الله ﷻ په توفیق سره دی.

په یوه روایت کي دلته د (فاتقوا) یعني تقوا اختیار کړه، پر ځای د (فتقوا) لفظ دی لکه ځرنګه چي په حصن حصین کي هم منقول دی، په دغه صورت کي به معنی دا وي چي په الله ﷻ باور کوه، او ویل کیږي چي د دغه الفاظو په ذریعه د الله ﷻ دغه ارشاد ته اشاره ده:

وَتَوَكَّلْ عَلَى الْحَيِّ الَّذِي لاَ يَمُوتُ. ژباړه: او پر حي لا یموت (الله ﷻ) باندي توکل کوه.

د هغه شخه امید لره، مطلب دا چي د الله ﷻ شخه ماسوا د بل چا شخه خپل امید مه ساته ځکه چي امید د هغه چا شخه کیدای سي چي معبود وي او معبود د الله ﷻ شخه ماسوا بل ثوک نسته، یا دا مطلب دی چي په صبر سره ستا لپاره د الله ﷻ سره چي کوم اجر او ثواب دی د هغه پوره امید لره.

چي د ثواب شخه محروم کړل سو: مطلب دا چي حقیقي ستونزمن هغه ثوک دی چي په دنیوي مصیبت اخته وي ځکه چي په دنیوي مصیبت باندي په صبر کولو سره د مرتبې مطابق ډېر ثواب تر لاسه کیږي بلکه حقیقي ستونزمن هغه دی چي پر مصیبت باندي صبر ونه کړي او

بيا د اخروي اجر او ثواب څخه محروم سي، ځکه دي وي چي د الله ﷻ په نزد هغه صبر معتبر دی چي د مصيبت د پيل په وخت کي تر لاسه سي ، حضرت علي رضي الله عنه وويل: تاسو پوهيږئ چي دا د هغه نامعلوم آواز وضاحت وو چي د کور د يو کونج څخه راتلی، حضرت علي رضي الله عنه وښودل چي دغه اواز په اصل کي د حضرت خضر عليه السلام دی چي د اهل بيت او صحابه کرامو سره د تعزيت لپاره دلته راغلی دی، او د عبارت د ظاهري سياق څخه معلوميږي چي دلته د علي څخه مراد د امير المؤمنين حضرت علي رضي الله عنه ذات دی چي هغه وخت هلته موجود وو، او دا احتمال هم نظر انداز کېدای نه سي چي د حديث راوي امام زين العابدين مراد دی او هغه د دغه حديث روايت کولو په وخت کي د هغه آواز په وضاحت کي دا خبره کړې وي .

په حصن حصين کي دا روايت نقل سوی دی چي کله د رسول الله ﷺ روح مبارک پرواز وکړ نو ملائکو (د غيبي آواز په صورت کي) د صحابه کرامو او اهل بيت سره تعزيت وکړ، د تعزيت د الفاظو نقل کولو څخه وروسته کوم چي مخکي په حديث کي نقل سوي دي، په يو بل روايت کي داسي نقل سوي دي چي (د رسول الله ﷺ د وفات وروسته) يو سپين ږيری سړی چي ډېر خوښ شکله وه، ناڅاپه (د نبي کريم ﷺ حجرې ) ته داخل سو او صحابه کرامو ته په متوجه کېدو سره يې دغه الفاظ وويل: في الله عزاء، يعني د الله ﷻ په کتاب ، يا د الله ﷻ په دين کي د هر مصيبت او تکليف په وخت کي د تسکين او ډاډ سامان موجود دی، حضرت علي او حضرت ابو بکر رضي الله عنهما هلته موجود خلګو ته وښودل چي دا حضرت خضر عليه السلام دی . د دغه روايت څخه دا هم ثابتيږي چي په ذکر سوي حديث کي د علي څخه مراد حضرت علي کرم الله وجهه دی .

============

# بَابُ

## (د تېر سوي باب اړوند حديثونه)

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### رسول الله ﷺ هيڅ مال وصيت نه دی کړی

﴿۵۷۲۱﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَا تَرَكَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دِينَارًا وَلَا دِرْهَمًا وَلَا شَاةً وَلَا بَعِيرًا وَلَا أَوْصَى بِشَيْءٍ. رواه مسلم .

د حضرت عائشې ﷞ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ د خپل وفات څخه وروسته نه یو دینار پرېښود ی نه درهم، نه یې پسه پرېښود ی نه اوښ او نه یې د یو شي وصیت کړی دی . مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۳\۱۲۵۶، رقم: ۱۸– ۱۶۳۵.

**تشریح**: او نه رسول الله ﷺ د یو شي وصیت وکړ: ددې مطلب دادی چې رسول الله ﷺ د مال څخه د یو شي په اړه وصیت ونه کړ ځکه چې رسول الله ﷺ هیڅ مال او جائیداد نه پرېښودی نو وصیت به یې ولې کولای، پاته سوه د بني نضیر او فدک د مځکې معامله نو هغه رسول الله ﷺ په خپل ژوند کې د ټولو مسلمانانو لپاره صدقه کړې وه یوازې د خپلې کورنۍ د نفقې په اندازه یې د هغه څخه اخیستل .

په دې اړه نووي ﷫ لیکلي دي چې په یو بل روایت کې منقول دي چې کله خلکو د بي بي عائشې ﷞ په وړاندې یادونه وکړل چې ځیني خلک وایي چې رسول الله ﷺ حضرت علي ﷜ خپل وصي ګرځولی دی، نو بي بي عائشې ﷞ وویل: رسول الله ﷺ کله وصیت کړی دی؟ زه خو تر آخري وخته پورې له رسول الله ﷺ سره وم او تر څو چې د رسول الله ﷺ روح مبارک پرواز نه وو کړی زه د رسول الله ﷺ سره ناسته وم، که چیرې رسول الله ﷺ د حضرت علي ﷜ په اړه وصیت کړی وای او هغه یې خپل وصي یعني د خپل مال او جائیداد وصي یا څارونکې ګرځولی وای نو د هغه علم به زما څخه زیات چا ته وای، او څوک چې څه وایي هغه غلط وایي، رسول الله ﷺ هیڅوک وصي ګرځولی نه دی، نو د حدیث الفاظ : (ولا اوصی بشئ) موضوع مالي وصیت دی، دهغه مطلب دادی چې رسول الله ﷺ نه خو د خپل مال د دریمې برخې وصیت وکړ او نه یې ددریمې برخې څخه د زیات یا کم، ځکه چې د رسول الله ﷺ سره نه مال وو او نه جائیداد چې د هغه په اړه یې وصیت کړی وای، او نه د بل چا په حق کې لکه څرنګه چې د شیعه ګانو غلط ګمان دی ، او کوم چې د هغه صحیح حدیثو تعلق دی چې په هغو کې د کتاب الله اړوند د وصیت کولو یا د پردیو قومو د قاصدانو سره دښه چلن کولو د وصیت ذکر دی نو هغه بله موضوع ده چې د حدیث د ذکر سوو الفاظو : ولا وصي شئ، مراد نه دی، ځیني سیرت لیکونکو چې دا لیکلي دي چې د رسول الله ﷺ سره ډېر اوښان وه او لس اوښې وې، او هغه اوښان به د مدینې شاوخوا کتل کېدلې ،هلته د اوښو څخه د شېدو په لوښلو سره به خلکو هره ورځ د شېې راوړلې او د رسول الله ﷺ سره اووه مېږې هم وې چې د هغه شېدې به رسول الله ﷺ څښنلې نو دغه روایت اول خو ددې حیثیت نه دی چې دذکر سوي حدیث خلاف سي ، دوهم دا که چیرې دغه روایت صحیح هم ومنل سي نو په دې خبره به محمول کیږي چې هغه اوښان او نور

شیان د صدقې مالونه وه او د هغه په ذریعه چې کومې شېدې تر لاسه کېدلې هغه به اصحاب صفه او نورو خلګو ښېنلې.

## رسول الله ﷺ میراث نه دی پرې ایښی

《۵۷۲۲》: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ أَخِي جُوَيْرِيَةَ قَالَ مَا تَرَكَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ مَوْتِهِ دِينَارًا وَلَا دِرْهَمًا وَلَا عَبْدًا وَلَا أَمَةً وَلَا شَيْئًا إِلَّا بَغْلَتَهُ الْبَيْضَاءَ وَسِلَاحَهُ وَأَرْضًا جَعَلَهَا صَدَقَةً. رواه البخاري.

د حضرت عمرو بن حارث ﷺ څخه روایت دی چې د جویرې وررور دی چې رسول الله ﷺ د خپل وفات په وخت نه یو دینار پرېښودی نه درهم، نه یې غلام پرېښودی نه مینزه او نه بل یو شی خو یو سپینه غاتره او خپله وسله او مځکه چې په خپل ژوند کي یې صدقه کړې وه. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳۵٦\۵، رقم: ۲۷۳۹.

**تشریح**: نه یې غلامان پرېښودل او نه مینځې، ددې مطلب دادی چې د رسول الله ﷺ سره داسې مینزه او غلام نه وو چې رق یعنې د مملوک په توګه د رسول الله ﷺ په غلامي کي وه، ددې څخه معلومه سول چې په ځینو روایتو کي د رسول الله ﷺ د مینځو او غلامانو ذکر راغلی دی نو هغوی یا خو د رسول الله ﷺ په ژوند کي مړه سوي دي او یا دا چې رسول الله ﷺ ازاد کړي دي.

د رسول الله ﷺ یو وسله وه: دلته د وسلې څخه مراد هغه وسله ده چې په خاصه توګه د رسول الله ﷺ په استعمال کي وه یعنې برچه، په یوه روایت کي یوازې د یوې زغرې یادونه ده چې د وفات په وخت کي رسول الله ﷺ پرې ایښې وه او هغه هم د یو یهودي سره ګرو پرته وه، ښرګنده دې وي چې په حدیث کي کوم حصر دی او پر دې خبره مبني دی چې د استعمال جامې او معمولي د کور سامان لکه د کوچنیو شیانو اعتبار نه وي او نه هغه شیان په مال او جائیداد کي شمېرل کیږي او ثابته ده چې رسول الله ﷺ جامې او ځینې نور شیان پرې ایښي دي او هغه یې هم صدقه کړي وي، په دې اړه یو شارح لیکلي دي چې د جعلها ضمیر ټولو ذکر سوو شیانو یعنې غاترې، وسله او مځکې ته راجع دی حال دا چې په ظاهره دا متبادر کیږي چې د جعلها ضمیر یوازې مځکې ته راجع دی او عسقلاني لیکلي دي چې هغه یې صدقه کړې دي، مطلب دا چې رسول الله ﷺ د مځکې ګټه اخیستل صدقه کړې وه یعنې دلته صدقه د وقف په حکم کي دی، یا داسې ویل کیدای سي چې رسول الله ﷺ هغه مځکه د هغه باقي او قائم ساتلو پوري په خپل

ژوند كي صدقه جاريه كړې وه، همدارنګه هغه مځكه چي تر څو پوري پاته وي د هغې د صدقې ثواب به رسول الله ﷺ ته رسيږي، نو دا خبره ددې خلاف نه ده چي كوم شيان د رسول الله ﷺ سره وه هغه د رسول الله ﷺ د وفات كېدو سره په خپله صدقه سول، علامه كرماني رحمه الله د بخاري شريف په تشريح كي ليكي: په حديث كي چي د كومي مځكي يادونه ده نو د هغه څخه د وادي قرى نيمه مځكه، د خيبر دمځكي پنځمه برخه او د بنو نضير د مځكي هغه برخه مراد ده چي رسول الله ﷺ د خپل ځان لپاره خاص كړې وه، او د جعلها ضمير په حديث كي ذكر سوو درو شيانو (يعني غاتري، وسله او مځكي ته) راجع دى ، نه يوازي مځكي ته، او دا خبره د رسول الله ﷺ ددغه ارشاد څخه ثابتيږي چي موږ انبياء ميراث نه پرېږدو بلكه زموږ تركه (ميراث) ټوله صدقه كيږي .

## د رسول الله ﷺ تركه دوارثانو حق نه دى

﴿۵۷۲۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ قَالَ لَا تَقْتَسِمُ وَرَثَتِي دِينَارًا مَا تَرَكْتُ بَعْدَ نَفَقَةِ نِسَائِي وَمَئُونَةِ عَامِلِي فَهُوَ صَدَقَةٌ. متفق عليه.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ يوه ورځ وفرمايل : زما دمرګ څخه وروسته به زما وارثان دينار نه ويشي ، د بيبيانو مصارف او دعامل د اجرت څخه وروسته چي څه پرېږدم هغه صدقه ده. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\۴۰۶، رقم: ۲۷۷۶، ومسلم۳\۱۳۸۲، رقم: ۵۵- ۱۷۶۰.

**تشريح**: زما وارثان به دينار نه ويشي: دا د رسول الله ﷺ په حقيقي توګه خبر وركول دي چي ما خپله په ميراث كي هيڅ دينار او درهم نه دي پرې ايښى او كله چي ما دينار او درهم نه دى پرې ايښى نو زما د مرګ وروسته به زما د وارثانو په منځ كي د دينار او درهم ويشلو نوبت نه راځي، يا دغه جمله د ظاهري طرز په اعتبار د خبر وركولو په توګه ده ، مګر په حقيقت كي د نهي مفهوم لري ، مطلب دادى چي زه څه پرېږدم هغه زما وارثان په خپلو كي نه ويشي او بيا مخته ددغه منع علت يې بيان كړى دى چي زما ټوله مځكه زما د ښځو د مصرف او زما د كاركوونكو د مزدوري څخه وروسته پاته ټوله صدقه ده، څرګنده دي وي چي د رسول الله ﷺ د ازواج مطهراتو حكم هغه نه دى كوم چي د عدت والا ښځو وي ځكه چي د رسول الله ﷺ د وفات وروسته د بل چا سره نكاح كول د هغوى لپاره جائز نه وه . ځكه د هغوى د مصرف ذمه داري او د هغوى نفقه د رسول الله ﷺ د تركې (ميراث) سره متعلق سو، او د كاركوونكي څخه مراد هغه

کسان دي چي د رسول الله ﷺ وروسته پر خلافت باندي فائز سول نو د ارشاد خلاصه دا سول چي زما د ترکې څخه دي زما د ښځو نفقه پوره ورکړل سي او زما خلفاء دي هم په خپل مصرف کي لګوي او بيا چي څه پاته سي هغه دي په فقيرانو او مسکينانو باندي مصرف کړل سي، لکه څرنګه چي ما به کول، دلته دا خبره هم د يادوني وړ ده چي رسول الله ﷺ د خپلي کورنۍ نفقه د صفايا د ګټي څخه پوره کول چي د بني نضير د جائيداد څخه د رسول الله ﷺ برخي او د فدک پر مځکه مشتمل وه، د نفقې په اندازه د اخيستلو وروسته د ګټي ټوله برخه به يې د مسلمانانو په مصالح او مصارف کي مصرف کول، د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته د ذکر سوي جائيداد متولي حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه سو او هغه د خپل ذاتي مال او دولت په وجه د هغه مځکي څخه مستغني وو، نو هغه ټوله مځکه په خپلو قريبانو کي مروان او نورو ته ورکړل چي پر هغه باندي هغه خلک قابض وه تر دي چي حضرت عمر ابن عبدالعزيز رحمه الله خليفه د مروان او نورو کسانو څخه هغه مځکه بېرته واخيستل او د پخوا په ډول يې د مصارفو لپاره خاص کړل.

## د نبيانو په ترکه ميراث نه سته

﴿۵۷۲۴﴾: وَعَنْ اَبِيْ بَكْرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا نُورَثُ مَا تَرَكْنَاهُ صَدَقَةٌ. متفق عليه.

د حضرت ابوبکر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زموږ د مال وارث نه وي موږ چي څه پرېږدو هغه صدقه ده. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۵، رقم: ۶۷۲۶، ومسلم ۳\۱۳۸۰، رقم: ۵۲– ۱۷۵۹

**تشريح**: مطلب دا چي انبياء د مال او جائيداد څخه څه پرېږدي هغه د ميراث په توګه د هغوی د پاته سوو حق نه وي بلکه د صدقې مال وي چي د هغه مصرف فقيران او مسکينان وي.

د صوفيانو په نزد د فقير تعريف دادی چي يو څوک د هيڅ شي مالک نه وي، نو د انبياؤ سره چي څه وي هغه په ظاهره د هغوی وي مګر په حقيقت کي امانت يا وقف او يا د صدقې په توګه د هغوی سره وي او څرنګه چي ځيني حضراتو ويلي دي: له دې کبله نه د انبياؤ په مال کي مېراث جاري کيږي او نه يو څوک د هغوی وارث ګرځېدای سي او کله چي د هغوی وراثت قائم نه وي نو د هغوی په وارثانو او پاته سوو کسانو کي هيڅ ته دا موقع نه تر لاسه کيږي چي هغه د هغوی د ترکې تر لاسه کولو په غوښتنه د هغوی په مرګ خوشحاله سي، په تفصيلي روايتو کي

راځي چي حضرت ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ دغه حدیث هغه وخت بیان کړی وو کله چي د بي بي فاطمة الزهرا رضی اللہ عنہا له خوا د میراث غوښتنه وړاندي سوې وه، هغه بي بي فاطمې رضی اللہ عنہا ته وفرمایل: زه د رسول الله ﷺ خلیفه یم ، زه د رسول الله ﷺ مېراث په هغه مصارفو کي مصرفوم چیري چي رسول الله ﷺ مصرف کول، او په دې اعتبار زه ستا غمخواري همداسي کوم لکه څرنګه چي رسول الله ﷺ کول، دغه حدیث ما خپله د رسول الله ﷺ څخه اورېدلی دی چي زموږ انبیاؤ وراثت نه قائمیږي، دا هم منقول دي چي حضرت ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ دغه خبره یوازي بي بي فاطمې رضی اللہ عنہا ته نه وه کړې بلکه ازواجِ مطهراتو ته یې هم کړې وه چي هغوی د میراث غوښتنه کړې وه ، او ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ دا فیصله وکړل چي د رسول الله ﷺ مالي مېراث نه قائمیږي ، دا یې یوازي د خپلي خوښي څخه نه وه ویلي بلکه هغه ټول لوی صحابه کرام راجمع کړل او مشوره یې ورسره وکړل، کله چي ټولو صحابه کرامو وویل چي د رسول الله ﷺ وراثت نه سي قائمیدلای ځکه چي موږ خپله د رسول الله ﷺ څخه داسي اورېدلي دي نو حضرت ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ ذکر سوې فیصله وکړل .

## د امت مرحومه د نبي او د امت غیر مرحومه د نبي د وفات په مینځ کي فرق

﴿۵۷۲۵﴾: وَعَنْ أَبِي مُوسَى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ اللهَ عَزَّ

د حضرت ابو موسی رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : الله تعالی چي په بندګانو

وَجَلَّ إِذَا أَرَادَ رَحْمَةَ أُمَّةٍ مِنْ عِبَادِهِ قَبَضَ نَبِيَّهَا قَبْلَهَا فَجَعَلَهُ لَهَا فَرَطًا

کي پر کوم قوم د خپلي مهربانۍ اراده کوي نو د هغوی نبي د هغه قوم څخه مخکي وفات کړي او بیا هغه نبي د هغه قوم امام وګرځوي،

وَسَلَفًا بَيْنَ يَدَيْهَا وَإِذَا أَرَادَ هَلَكَةَ أُمَّةٍ عَذَّبَهَا وَنَبِيُّهَا حَيٌّ فَأَهْلَكَهَا وَهُوَ يَنْظُرُ فَأَقَرَّ عَيْنَهُ بِهَلَكَتِهَا حِينَ كَذَّبُوهُ وَعَصَوْا أَمْرَهُ. رواه مسلم .

او هر کله چي الله تعالی د یو قوم د هلاکولو اراده وکړي نو د هغه نبي په ژوند او شتون کي هغه قوم په عذاب کي اخته کړي ، هغه نبي هغه قوم په عذاب کي نیولیویني او خوشحالیږي او خپلي سترګي یخوي ، ځکه چي هغوی دې دروا غجن او ده د امر نافرماني به یې کوله . مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۴\۱۷۹۱، رقم: ۲۴– ۲۲۸۸.

**د لغاتو حل**: سلفا: اي سابقا ومقدما وشفيعا.

## يوه پشگوئي

﴿۵۷۲۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ فِي يَدِهِ لَيَأْتِيَنَّ عَلَى أَحَدِكُمْ يَوْمٌ وَلَا يَرَانِي ثُمَّ لَأَنْ يَرَانِي أَحَبُّ إِلَيْهِ مَنْ أَهْلِهِ وَمَالِهِ مَعَهُمْ. رواه مسلم.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په هغه ذات دي مي قسم وي چي د هغه په قبضه كي د محمد ﷺ روح دی پر تاسو به يوه ورځ داسي راسي چي تاسو به ما ونه وينئ، بيا به تاسو ته زما ليدل تر اهل، مال او هر شي چي د ړسره وي تر هغه عزيز او محبوب وي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۸۳٦\۴، رقم: ۱۴۲- ۲۲٦۴.

**تشريح**: د دغه ارشاد تعلق يا خو د رسول الله ﷺ په ژوند كي د رسول الله ﷺ د ليدو او د رسول الله ﷺ د ميني اختيارولو سره دی چي زما د صحابوو زما سره دومره زياته مينه او تعلق دی كه هغوی ما يوه ورځ نه ويني او زما د صحبت څخه محروم سي نو دهغوی شوق او مينه زياته سي، په دغه صورت كي هغوی د خپل كورنۍ او خپل مال ليدو او دهغوی سره د اوسېدو څخه زيات دا خبره خوښوي چي زما ليدنه وكړي او زما په ملگرتيا كي پاته سي، يا په دغه ارشاد كي په اصل كي ددې خبري وړاند وينه ده چي زما سره د امت عقيدت او مينه به زما د وفات څخه وروسته هم كمه نه سي بلكه مسلمانان به خپلي كورنۍ او مال ته تر رغبت كولو او شوق ساتلو څخه زيات دا غواړي چي په يو ډول كه په خوب كي وي يا په وېښه كي زما ليدنه وكړي او ما ووينې، د كلام سياق ته په كتلو سره دا مطلب زيات مناسب معلومېږي، نو دا هغه كيفيت دی چي د هغه د جمال مشتاقان د نبي د حيات سرمايه وي چي د رسول الله ﷺ د جمال او كمال په تصور كي مستغرق وي.

===========

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# بَابُ مَنَاقِبِ قُرَيْشٍ وَذِكْرُ الْقَبَائِلِ

## (د قریشو مناقب او د قبائلو یادونه)

د مناقب لفظ د منقب جمع ده چي معنی یې د شرف او فضیلت ده، قریش د عربو د مشهوري قبیلې نوم دی، د قریش لغوي معنی د یو لوی خطرناک او توانا سمندري حیوان ده مګر په اصل کي دا د نضر ابن کنانه یا فهر ابن مالک ابن نضر لقب وو چي د هغه اولاد په مختلفو ښاخو او کورنیو کي خپور سو، او پر دغه ټولو کورنیو باندي مشتمل قبیله د مورث اعلی د لقب په مناسبت سره قریش ورته وویل سول،

قبائل د قبیلة جمع ده چي معنی یې د یوه پلار د اولادې ده، او د قبائلو د ذکر څخه مراد د عربو د مختلفو قبیلو خصوصیات او دهغوی نیکۍ او بدۍ بیانول دي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د قریشو فضیلت

﴿۵۷۲۷﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ النَّاسُ تَبَعٌ لِقُرَيْشٍ فِي هَذَا الشَّأْنِ مُسْلِمُهُمْ تَبَعٌ لِمُسْلِمِهِمْ وَكَافِرُهُمْ تَبَعٌ لِكَافِرِهِمْ. متفق علیه

د حضرت ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: خلک د قریشو تابع دي یعني مسلمان د مسلمانانو قریشو تابع او کافران د کافرانو قریشو تابع دي. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ٦\٥٢٦، رقم: ۳۴۹۵، ومسلم ۳\۱۴۵۱، رقم: ۲- ۱۸۱۸.

**تشریح**: د حدیث د ظاهري سیاق څخه دا معلومیږي چي د دغه خبري څخه مراد دین او شریعت دی که د هغه د وجود اعتبار وي یا د هغه د عدم، مطلب دا چي د دین قبلول او نه قبلول یعني د ایمان او کفر په اړه ټول خلک په قریشو پسې دي او قریش اقدامي او پیشوایي حیثیت لري، په دې توګه چي یوې خوا ته د دین ظهور تر ټولو مخکي په قریشو کي وسو او تر ټولو مخکي قریشو ایمان راوړ، او بیا د هغوی په اتباعو کي نورو خلګو هم ایمان راوړل پیل کړل، بلي خوا ته د هغوی یعني د قریشو خلک وه چي هغوی د دین تر ټولو مخکي مخالفت وکړ او د

مسلمانانو د لاري منع كولو لپاره يې تر ټولو مخکې اقدام وکړ، همدارنګه كه چيري د قريشو د كافرانو تابعدار سول نو د اسلام تاريخ پوهان ښه پوهيږي چې د مکې د فتح څخه مخکي ټول عرب د قريشو د اسلام راوړلو په انتظار وه ، كله چي د مسلمانانو په لاس مکه فتح سول او د مکې قريش مسلمانان سول نو د ټول عرب خلګ هم ډلي ډلي په اسلام کي داخل سول لكه څرنګه چي د سورة اذا جاء نصر الله ، څخه څرګنديږي، په هر حال ددغه ارشاد مقصد د قريشو د مشرانو حيثيت بيانول دي چي د قيامت او امارت جوهر هغوی ته په برخه دی كه څه هم هغوی د جاهليت د زمانې سره وابسته وه او يا د اسلام د عهد سره، مګر دهغوی دغه قيادت او امارت ته د فضل او شرف په اعتبار يوازي د اسلام په صورت کي حاصل دی نه د کفر په حالت کي، او كه د فضل او شرف قيد مقصد نه وي نو ويل کيږي چي په دغه ارشاد کي د قريشو مطلق د قيادت او امارت ذكر دی كه د هغه تعلق د دنيوي امورو سره وي او كه د مذهبي امورو سره وي، نو د جاهليت په زمانه کي هم نه يوازي په دنيوي اعتبار قريش په ټولو عربي قبائلو کي د سردار حيثيت درلود بلکه د هغه وخت د هغوی مذهبي معاملات لكه د بيت الله توليت او مشرتوب ، داوبو څښنلو او داسي نورو ذمه داريو اعزاز هم هغوی ته په برخه وو .

ځينو حضراتو ويلي دي چي ددې خبري څخه مراد د خلافت منصب دی لكه څرنګه چي په نورو حديثو کي په وضاحت سره منقول هم دی او ددغه ارشاد مقصد د قريشو قيادت منل او دهغوی د پيروي حکم ورکول دي او كه خلک ددغه ارشاد روح او ددې څخه اخذ سوي حکم باندي عمل نه کولو سره د قريشو قيادت ونه مني او دهغوی د پيروۍ څخه انكار وکړي نو دا خبره به د ارشاد خلاف نه وي ځکه چي د يو عمل د اثبات لپاره دا ضروري نه ده چي عملي او واقعي توګه سره د هغه ظهور هم وي د حكم مقصد خو د يو شي ثابتول وي او كه څوک په هغه حكم باندي عمل ونه کړي نو دهغه دا مطلب هيڅکله نه دی چي هغه حکم د خپل اثبات څخه خالي دی نو رسول الله ﷺ ددغه ارشاد په ذريعه د قريشو قيادت او امارت اختيارولو چي كوم حكم ورکړی دی ددې مقصد دا ثابتول دي چي قريش د قيادت او امارت استحقاق او د هغه ذمه داري سنبالولو اهليت لري كه څه هم د هغوی قيادت او امارت ومنل سي او د هغوی پيروي وکړل سي يا ونه کړل سي .

## قريش سرداران دي

﴿۵۷۲۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ النَّاسُ تَبَعٌ لِقُرَيْشٍ

فِي الْخَيْرِ وَالشَّرِّ. رواه مسلم.

د حضرت جابر ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: خلک د خير او شر په دواړو حالتونو کي د قريشو تابع دي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۴۵۱، رقم: ۳- ۱۸۱۹.

**تشريح**: د خير مراد اسلام دی او د شر څخه مراد کفر دی لکه څرنګه چي په تېر سوي حديث کي په تفصيل سره بيان سو.

## د قريشو خلافت

﴿۵۷۲۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَزَالُ هٰذَا الْأَمْرُ فِي قُرَيْشٍ مَا بَقِيَ مِنْهُمُ اثْنَانِ. متفق عليه.

د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هميشه دا امر (يعني دين يا امر خلافت) به په قريشو کي وي تر څو پوري چي په دوی کي دوه کسان هم پاته وي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۶\۵۳۳، رقم: ۳۵۰۱، ومسلم ۳\۱۴۵۲، رقم: ۴- ۱۸۲۰.

**تشريح**: همېشه په قريشو کي وي: مطلب دا چي د خلافت وړتيا تر ټولو زيات قريش لري نو له همدې کبله د خلافت منصب هم بايد د قريشو سره وي او د بېله قريشو خليفه ګرځولو فيصله شرعا جائز نه ده، د صحابه کرامو په زمانه کي پر دې اجماع وه او دغه ارشاد د هغو انصارو صحابه کرامو په مقابله کي د مهاجرو صحابه کرامو دليل سو چا چي خلافت د انصارو حق کېدل غوښتل.

تر څو چي په هغوی کي دوه کسان پاته وي، دا خبره رسول الله ﷺ د خلافت د منصب په اړه د قريشو ترجيحي استحقاق په زيات ارزښت سره بيانولو لپاره وفرمايل، که چيري په قريشو کي دوه کسان هم پاته وي چي يو خليفه سي او دوهم د هغه فرمانبردار نو بيا هم خلافت د قريشو حق دی، ددغه حديث په تشريح کي نووي رحمة الله عليه ليکلي دي: دغه او داسي نور حديثونه چي په هغو کي د خلافت حق د قريشو لپاره خاص دی، د غير قريشي خليفه ګرځول جائز نه دي نو په دې اړه نه يوازي د صحابه کرامو په زمانه کي بلکه د صحابه کرامو وروسته هم د امت اجماع

راغلې ده، اهل بدعت د اهل سنت والجماعت د اتفاقي مذهب څخه په سرغړوني چې کومو خلکو په دغه مسئله کې د اختلاف او انکار لار اختيار کړې ده د هغوی خبره نه يوازې دا چې د امت سواد اعظم ونه منی بلکه دهغوی د ترديد او تغليظ لپاره دا دليل وړاندې کړل سو چې د قريشو د خلافت پر استحقاق باندې د صحابه کرامو اجماع وه ، امام نووي رحمة الله عليه دا هم ليکلي دي چې رسول الله ﷺ د دغه ارشاد په ذريعه دا خبر ورکړی دی چې دغه حکم (چې د هغه څخه د خلافت منصب د قريشو سره خاص کېدل ظاهرېږي) تر آخري زمانې پورې جاري او نافذ دی، تر څو چې په دنيا کې دوه کسان هم پاته وي نو رسول الله ﷺ چې څه وفرمايل او کوم خبر يې ورکړ هغه د واقعې په اعتبار هم ثابت سو چې تر ننه پورې د قريشو خلافت او دهغوی بالادستي قائمه ده، مګر د نووي رحمة الله عليه دا نتيجه بيانول د تاريخي حقيقت مطابق نه ده ، د هغوی تر زمانې پورې خو د قريشو خلافت قائم وو مګر وروسته د قريشو خلافت او امامت پر ټولې اسلامي نړۍ باندې پاته نه سو ، په پيل کې تر دوو سوو کالو پورې داسې تېره سوه چې په هغو کې د اکثرو اسلامي هيوادو خلافت د قريشو وو مګر د هغه وروسته د خودمختارۍ دور شروع سو او په اسلامي نړۍ کې د مختلفو حکمرانانو او پاچاهانو خپل خپل حکومت قائم سو، نو په دې اړه تحقيقي قول دادی چې دا خبر په اصل کې د امر يعني حکم په معنی کې دی، يعني رسول الله ﷺ د خبر په طرز کې دا حکم ورکړی دی چې کوم ثوک په اسلام او ايمان برخه وي نو پر هغه لازمه ده چې هغه قريشي خپل مشر ومني ، د هغه پيروي وکړي او دهغوی امامت او قيادت څخه سرغړونه ونه کړي، هسې دا هم ويل کيدای سي چې د رسول الله ﷺ دغه ارشاد پر خپلې ظاهري معنی محمول دی مګر د (ما اقاموا الدين) په الفاظو مقيد دی، چې په تېر سوي حديث کې مذکور دي، په دغه صورت کې د دغه حديث مطلب دادی چې د خلافت منصب او امارت به تر هغه وخته پورې په قريشو کې وي تر څو چې هغوی پر دين قائم وي نو همداسې وسول چې قريش تر څو پورې خلافت د دين تابع کړ او د اسلام په خدمت او خپرولو کې بوخت وه ، د خلافت منصب د هغوی په لاس کې وو مګر کله چې هغوی نه يوازې دا چې دين ته بې توجهي وکړل بلکه حرام او ناجائز کارو کې اخته سول او د دين بې حرمتي يې وکړل نو د خلافت واګې د هغوی د لاس څخه ووتې او غير قريشو ته په لاس ورغلې .

## د قريشو استحقاق

﴿۵۷۳۰﴾: وَعَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ

إِنَّ هَذَا الأَمْرَ فِي قُرَيْشٍ لَا يُعَادِيهِمْ أَحَدٌ إِلَّا كَبَّهُ اللهُ عَلَى وَجْهِهِ مَا أَقَامُوا الدِّينَ. رواه البخاري.

د حضرت معاويه ﷛ څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي دا (يعني خلافت يا دين) به هميشه په قريشو کي وي تر څو پوري چي د قريشو خلک دين قائم ساتي څوک چي د دوی سره عداوت او دښمني کوي خدای ﷻ به هغه پړمخي راوغورځوي. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٥٣٢، رقم: ٣٥٠٠.

**د لغاتو حل**: كبه: اي اسقطه (غورځول)

**تشريح**: مطلب دا چي د خلافت اصل مقصد د دين قائمول او د اسلام بېرغ لوړ ساتل دي ځکه نو قريش چي تر څو پوري د دين او شريعت په ترويج او خپرېدو کي بوخت وي او د اسلام د بېرغ د لوړ ساتلو هڅه کوي نو هغوی د خلافت د منصب استحقاق لري او الله ﷻ به د هغوی مشري او قيادت قائم وساتي مګر کله چي هغوی د خپل فرض يعني د دين او اسلام د اقامت څخه غافل سي او د خلافت حقيقي غوښتنه پوره کول پرېږدي نو د عزل (برطرفه کېدو) سبب به وي، او د خلافت او امارت واکي به د هغوی د لاس څخه واخيستل سي او ځينو شارحينو دا ليکلي دي چي د دين قائمولو څخه مراد لمونځ قائمول دي لکه څرنګه چي په يوه روايت کي د (ما اقاموا الصلوة) الفاظ هم نقل سوي دي، او هسي هم په ځينو ځايو کي د دين او ايمان اطلاق پر لمانځه راغلی دی، له دې کبله دځينو وينا ده چي ددغه ارشاد اصل مقصد قريشو ته د لمانځه قائمولو تلقين او ترغيب دی او دا دې څخه بېرول دي که چيري لمونځ قائم نه کړي نو کيدای سي چي د خلافت منصب يې د لاسه ووځي او نور خلک پر هغوی غلبه او تسلط تر لاسه کړي.

## د قريشو د دوولس خلفاؤ ذکر

﴿۵۷۳۱﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت جابر بن سمره ﷛ څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ اوريدلي دي چي

يَقُولُ لَا يَزَالُ الإِسْلَامُ عَزِيزًا إِلَى اثْنَيْ عَشَرَ خَلِيفَةً كُلُّهُمْ مِنْ قُرَيْشٍ، وَفِي

فرمايل يې: اسلام به تر دوولس خليفه ګانو پوري قوي او عزيز وي او دا ټول خلفاء به د قريشو

روایة لایزال امر الناس ماضیا ما ولیهم اثنی عشر رجلا کلهم من قریش وفي روایة لایزال الدین قائما حتی تقوم الساعة او یکون علیهم اثنا عشر خلیفة کلهم من قریش. متفق علیه.

څخه وي، او په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د خلکو دا کار به برابر جاري وي تر څو پوري چي دوولس کسان به حکمراني کوي او دا ټول به د قریشو د کورنۍ څخه وي، او په یوه روایت کي داسي دي چي نبي کریم ﷺ وفرمایل: تر قیامته پوري به دین قائم او مستقیم وي او پر خلکو به دوولس خلیفه ګان وي چي ټول به د قریشو څخه وي. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۲۱۱، رقم: ۷۲۲۲، ومسلم ۳\۱۴۵۳، رقم: ۷- ۱۸۲۱.

**تشریح** ددغه حدیث په معنی کي او مفهوم کي مختلف قولونه دي، او علماؤ د سوال اظهار هم کړی دی، سوال دا دی چي د حدیث څخه په ظاهره کومه خبره مفهوم کیږي هغه داده چي د رسول الله ﷺ څخه وروسته پرله پسې دوولس خلیفه ګان به وي چي دهغوی د خلافت په زمانه کي به د دین نظام مستحکم او برقرار وي، د هغوی په وجود سره به اسلام ته شان او شوکت تر لاسه کیږي او نه یوازي دا چي خپله به هغه ټول دوولس خلیفه ګان د دین او مذهب ریښتوني پابند او پیروان وي بلکه د هغوی په خلافت او عدالت سره به د حق او انصاف مطابق د احکامو او هدایاتو نفاذ وي حال دا چي د تاریخ له رویه چي څه پېښ سوي دي هغه ددې خبري شاهدي نه ورکوي، نو د رسول الله ﷺ څخه وروسته د خلافت پر منصب باندي په فائز کېدونکي د بني مروان هغه خلیفه ګان او امیران هم وه چي نه یوازي دا چي د خپل سیرت او طریقو په اعتبار یې د دین او مذهب سره څه مناسبت نه درلود بلکه د هغوی په ظالمانه او مفسدانه کړنو سره اسلام او مسلمانانو ته سخت تاوانونه رامنځته سول، ددې څخه ماسوا هغه حدیث هم دی چي دهغه مطابق رسول الله ﷺ فرمایلي وه چي زما څخه وروسته به تر دېرشو کالو پوري د خلافت نظام قائم وي او دهغه وروسته به پر ظلم او زیاتوب باندي مبني پاچاهي پیل سي، د ټولو علماؤ پر دې اتفاق دی چي دېرش کاله وخت یعني د خلافت راشده څخه وروسته چي کوم حکومت څرګند سو هغه ته خلافت نه بلکه پاچاهي او امارت ویل پکار دي،

دا هم یو سوال دی او له دې کبله علماؤ ددغه حدیث په توجیه او تاویل کي مختلف قولونه وړاندي کړي دي، په هغو کي یو قول دادی چي د دوولس خلیفه ګانو څخه مراد هغه دوولس

كسان دي چي د رسول الله ﷺ څخه وروسته به د خلافت او حكومت خاوندان سي او د هغه د اقتدار په زمانه كي به د مسلمانانو ظاهري حالات او معاملات او د رعيت د ګټي په اعتبار د پاچاهي او حكومت نظام به مستحكم او متوازن وي ، كه څه هم په هغوى كي به ځيني مشران د ظلم او بې انصافۍ پر لار روان وي ، د منځني اختلاف ، جګړو او خرابيو ظهور د وليد بن يزيد بن عبدالملک بن مروان په وخت كي وسو چي په دوى كي دوولس كسان وه، د هغه امارت به هغه وخت قائم سي كله چي دهغه اكا هشام ابن عبدالملک وفات سي، مخكي چي خلګو د وليد ابن يزيد په امارت اتفاق وكړ او دهغوى اتفاق تر څلورو كلو پوري قائم وو مګر څلور كاله وروسته خلګ د هغه پر خلاف را پورته سول او هغه يې ووژى، دهغه ورځي څخه بدلون پيدا سو او فتنه او فساد خپور سو ، دا قول قاضي عياض مالكي رحمة الله عليه ته منسوب دى او علامه ابن حجر عسقلاني رحمة الله عليه ددغه قول تحسين كړى دى او ويلي يې دي چي ددغه حديث څومره توجيهات سوي دي او په دې اړه چي څومره خبري منقول دي په هغو ټولو كي دغه قول تر ټولو زيات مناسب او تر ټولو زيات د ترجيح وړ دى، او ددې تائيد په دغه الفاظو سره كيږي چي ددغه حديث د جزء په توګه په ځينو صحيح طريقو سره منقول دى چي : كلهم يجتمع عليه امر الناس، او د جمع څخه مراد د هغه خليفه ګانو پر بيعت باندي د خلګو اتفاق او اجماع او دهغوى قيادت او مشري منل دي ، كه څه هم په كراهت سره وي، او ددغه حديث څخه د هغه خليفه ګانو مدح او توصيف مفهوم كيږي هغه ددين ، عدالت او حقانيت په اعتبار نه دي بلكه په سياسي او انتظامي چارو كي د استحكام او د حكومت د امارت په اړه د اتفاق او اتحاد په اعتبار دى، پاته سوه ددغه صحيح حديث خبره چي په هغه كي رسول الله ﷺ خلافت په دېرش كاله كي منحصر كړى دى، نو هلته د خلافت څخه مراد خلافت كبرى دى چي په اصل كي خلافت نبوت دى ، او په دغه حديث كي خلافت امارت مراد دى نو د خلفاء راشدينو څخه وروسته چي كوم اميران تېر سول هغوى ته هم خليفه ګان ويل كيږي كه څه هم هغوى ته خليفه ويل د مجازي معنى په اعتبار دي ، ذكر سوى لومړنى قول كه څه هم علامه ابن حجر رحمة الله عليه غوره او راجح ګرځولى دى مګر حقيقت دادى چي د حديث د دغه الفاظو : لايزال الاسلام عزيزا ، او لايزال الدين قائما ، سره دغه قول څرګند مناسبت نه لري ځكه چي دغه الفاظ د هغو دوولسو خليفه ګانو د مدح او تعريف صريح مظهر دى چي دهغوى د خلافت په زمانه كي به دين ته استحكام حاصل وي ، د حق وينا به لوړه وي او د هغوى د عدل او انصاف په ذريعه به د اسلام د شان او شوكت او قوت اظهار وي

دوهم قول دادی چي د خلیفه ګانو څخه مراد عادل او انصاف کوونکي خلیفه ګان مراد دي، چي د خپل ذاتي او ښو صفاتو په وجه د خلافت صحیح مصداق او د منصب امارت اهل وي، په دغه صورت کي د حدیث لازمي مطلب به دا بیانول نه وي چي دغه دوولس خلیفه ګان به د رسول الله ﷺ د زمانې څخه وروسته یو په بل پسې وي بلکه کیدای سي چي اصل مقصد د داسي خلیفه ګانو او امیرانو محض شمېر بیانول وي که د هغوی ظهور په هره زمانه کي وي او د دوولس شمېر تر قیامته پوري په هر وخت کي چي پوره سي، د توربشتي رحمه الله د قول مطابق دغه حدیث او په دې اړه منقول نورو حدیثو مفهوم او معنی کي دا قول زیات مناسب دی، دریم قول دادی چي په دغه حدیث کي د داسي دوولس خلیفه ګانو ذکر مراد دی چي د حضرت مهدي علیه السلام د زمانې څخه وروسته به د خلافت او امارت پر منصب فائز وي، (یعني مخبر صادق ﷺ دا وړاند وینه وفرمایل چي په آخره زمانه کي به د قریشو سره نسبي تعلق لرونکي داسي دوولس کسان د مسلمانانو د ملي او ملکي قیادت آمین جوړ سي چي د هغوی د حکومت په زمانه کي به دین او مذهب ته عروج حاصل سي او د اسلام شان او شوکت به لوړ سي، په یو بل حدیث کي راغلي دي چي کله حضرت مهدي علیه السلام وفات سي نو د حکومت خاوند به یو په بل پسې پنځه کسان وي، هغه به سبط اکبر یعني د حضرت امام حسن رضی الله عنه د اولاد څخه وي، د هغوی څخه وروسته د قیامت او حکومت واګي به یو په بل پسې د هغه پنځو کسانو په لاس راسي چي د سبط اصغر یعني حضرت امام حسین رضی الله عنه د اولاد څخه به وي او په هغوی کي به آخري سړی خپل مشر هغه ځوک جوړ کړي چي د حضرت امام حسن رضی الله عنه د اولاد څخه به وي او د هیواد او ملت د امامت او مشرۍ د دغه لړۍ یوولسم کس به وي، بیا کله چي دغه یوولسم سړی د خپل حکومت د زمانې په پوره کولو سره مړ سي نو د هغه پر ځای به د هغه زوی وي او هغه به د حکومت خاوند سي، همدارنګه د دولس شمېر به پوره سي او په دغه دوولس کي به هر یو امام عادل او هادي او مهدي وي چي د هغه عدالت، انصاف او د رعیت سره د ښه چلن کولو په وجه به اسلام او مسلمانانو ته ستر شان او شوکت په برخه سي، که دغه حدیث صحیح وي نو بیا د ذکر سوي دوهم قول یو معقول او غوره توجیه ګرځول کیدای سي، په یوه روایت کي د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما څخه هم نقل کیږي چي په هغه کي د حضرت امام مهدي علیه السلام اوصاف او محاسن بیانولو سره دا یې ویلي دي چي الله جل جلاله به د هغه (امام مهدي علیه السلام) په وجود سره هر غم او فکر لیري کړي او د هغه په عدل او انصاف سره به هر ظلم او فتنه ختمه سي د هغه د زمانې څخه وروسته به بیا د مشرتوب واګي د دوولس کسانو په لاس ورسي چي یو په بل پسې به تر یونیم

سل كالو پوري د حكومت نظام سنبالوي.

او ځلورم قول دادی چي اصل مراد په يوه زمانه کي د دوولس خليفه ګانو راتلل دي چي پر خپل خپل ځای به د خود مختار حيثيت دعوه کوي او په هغوی کي به د هر يوه د اطاعت خلګ بېل بېل وي ، ددې تائيد ددغه روايت څخه کيږي چي (رسول الله ﷺ وفرمايل) هغه وخت راتلونکی دی چي زما څخه وروسته به خليفه ګان وي او ډېر به وي، ددغه ارشاد څخه د رسول الله ﷺ اصل مقصد دا خبر ورکول وو چي زما څخه وروسته به د نوو فتنو ظهور وسي او ډول ډول اختلافي او نزاعي معاملات به راپورته سي تر دې چي په يوه زمانه کي به دوولس خليفه ګان د خپل بېل بېل خلافت دعوه کوي او د آخري قول مطابق د حديث مراد به دا وي چي په يوه وخت کي د دوولس خليفه ګانو د وجود د زمانې څخه تر مخکي زمانې پوري خو د مسلمانانو مؤثر اجتماعي او تنظيمي حيثيت برقرار وي ، د دين نظام به مستحکم او استوار وي او د اسلام عزت او شان به زياتيږي مګر په هغه زمانه کي به اختلاف او جګړې را پورته سي او د مسلمانانو ټولنه به منتشر سي مګر د مخکنيو قولونو مطابق د حديث مراد دا معلوميږي چي د هغه دوولس خليفه ګانو تر زمانې پوري به د اسلام او مسلمانانو نظام مستحکم او استوار وي د هغه په نظام کي چي کوم خلل او اضطراب پيدا سي هغه به ددغه زمانې څخه وروسته وي.

شيعه ګانو په دغه حديث کي د دوولس خليفه ګانو ذکر پر دې محمول کړی دی چي هغوی به د اهل بيت څخه وي که څه هم هغوی پر حقيقي منصب باندي فائز وي او که د خلافت د استحقاق درلودلو سربېره پر خلافت باندي فائز نه سي، ددغه شيعه ګانو مطابق تر ټولو لومړنی خليفه حضرت علي رضي الله عنه دی ، بيا حضرت حسن رضي الله عنه ، بيا حضرت حسين رضي الله عنه ، بيا حضرت زين العابدين ، بيا حضرت محمد باقر ، بيا حضرت جعفر صادق ، بيا حضرت موسی کاظم ، بيا حضرت علي رضا ، بيا حضرت محمد نقي، بيا حضرت علي نقي، بيا حضرت حسين عسکري، بيا حضرت محمد مهدي.

## د عربو قبائل

﴿۵۷۳۲﴾ : وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غِفَارُ غَفَرَ اللّٰهُ لَهَا وَأَسْلَمُ سَالَمَهَا اللّٰهُ وَعُصَيَّةُ عَصَتُ اللّٰهَ وَرَسُولَهُ. متفق عليه.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : قبيله غفار خدای جل جلاله وبخښل ، قبيله اسلم يې سلامت وساتل او قبيله عصيه د خدای او د هغه د رسول نافرماني وکړه . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\ ٥٤٢، رقم: ٣٥١٣، ومسلم ٤\ ١٩٥٣، رقم: ١٨٧- ٢٥١٨.

**تشريح**: غفار د عربو يوه مشهوره قبيله ده، ستر صحابي حضرت ابوذر غفاري رضي الله عنه ددغه قبيلې سره تعلق درلود، ويل كيږي چي د جاهليت په زمانه كي به دغه قبيلې د حاجيانو مالونه غلا كول او د خپلي دغه خرابۍ په وجه به د عامو عربو په نظر كي بد وه، له دې كبله رسول الله ﷺ د دوى په اړه دعاء وفرمايل چي ددغه قبيلې پر لمن باندي كوم داغ لګيدلى دى الله جل جلاله د هغه داغ پاكولو او په بخښني سره ونازول ځكه چي اوس ددغه قبيلې خلګ په خوښي سره په اسلام كي داخل سوي دي او دا هم ويل كيداى سي چي دغه ارشاد د دعائيه جملې پر ځاى د خبريه جمله ده، يعني رسول الله ﷺ ددغه الفاظو په ذريعه خبر ورکړ چي الله جل جلاله ددغه قبيلې د جاهلي ژوند پېښي نيستي ګرځولي دي او اوس دغه قبيله د ايمان او اسلام په بركت په بخښنه او مغفرت سره نازول سوې ده.

اسلم هم د يوې قبيلې نوم دى، ددغه قبيلې خلګو بېله جګړې كولو اسلام ومنى ځكه رسول الله ﷺ د دوى په اړه دعاء وكړل چي الله جل جلاله ددغه قبيلې خلګ سلامت ولري، ددغه قبيلې په اړه ذكر سوې جمله هم د خبريه احتمال لري يعني دا هم كيداى سي چي رسول الله ﷺ ددغه جملې په ذريعه خبر وركړى وي چي دا هغه قبيله ده چي د مسلمانانو پر خلاف وسله پورته كول يې خوښ نه كړل ځكه الله جل جلاله ددغه قبيلې خلګ د قتل او تباهۍ څخه سلامت او خوندي وساتل.

عصيه، د هغه بدبختي قبيلې نوم دى چي هغوى مسلمانان قاريان د بئرمعونه سره په چمبازۍ په ډېره بې دردۍ سره شهيدان كړل، رسول الله ﷺ ته په دغه پېښه ډېر غم ورسيدى او په قنوت كي يې ددغه قبيلې پر خلګو لعنت وكړ او د هغوى لپاره يې ښېرا وكړل، ددغه قبيلې په اړه د ذكر سوي حديث الفاظ يوازي د جمله خبريه په توګه دي، په دې كي د جمله دعائيه هيڅ احتمال نسته، بيا هم په دغه الفاظو كي ددغه قبيلې يادونه ځرنګه چي شكوه ظاهروي هغه پر خپل ځاى ښېرا لره هم مستلزم ده مګر په دغه مفهوم كي نه چي ددغه قبيلې خلګ په دغه ګناه او معصيت كي زيات تر زياته اخته سي بلكه په دغه مفهوم كي چي د قبيلې خلګو كومه لويه سركښي او ګناه كړې وه د هغه په سبب په دنيا او آخرت كي د ذلت او خوارۍ خاوندان سي.

## د يو څو قبائلو فضيلت

﴿۵۷۳۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُرَيْشٌ وَالْأَنْصَارُ وَجُهَيْنَةُ وَمُزَيْنَةُ وَأَسْلَمُ وَغِفَارُ وَأَشْجَعُ مَوَالِيَّ لَيْسَ لَهُمْ مَوْلًى

وْنَ اللّٰهِ وَرَسُولِهِ. متفق علیه.

حضرت ابو هريره ﷜ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : قريش، انصار جهينه ، مزينه، اسلم، غفار، اشجع زما دوستان دي او د هغوی مرستيال د خدای ﷻ او د هغه د رسول ﷺ څخه پرته بل څوک نسته. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٥٤٢، رقم: ٣٥١٢، ومسلم ١٤\١٩٥٤، رقم: ١٨٩- ٢٥٢٠.

**تشريح**: د موالي لفظ د متکلم ياء ته مضاف دی او د مولی جمع ده، په يوه روايت کي دغه لفظ موال نقل سوی دی په دغه صورت کي به معنی دا وي چي (ددغه قبيلې مسلمانان) په خپلو کي د يو بل مرسته کوونکي او ملګري دي .

## د دوو قبيلو ذکر

﴿۵۷۳۴﴾: وَعَنْ اَبِيْ بَكْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَسْلَمُ وَغِفَارُ وَمُزَيْنَةُ وَجُهَيْنَةُ خَيْرٌ مِنْ بَنِي تَمِيمٍ وَبَنِي عَامِرٍ وَالْحَلِيفَيْنِ أَسَدٍ وَغَطَفَانَ. متفق علیه.

حضرت ابوبکره ﷜ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : اسلم ، غفار، مزينه او جهينه د قبائل بنو تميم او بنو عامر څخه غوره دي او د دواړو يعني بنو اسد او عطفان څخه هم غوره دي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٥٤٣، رقم: ٣٥٢٣، ومسلم ١٤\١٩٥٥، رقم: ١٩٠- ٢٥٢١.

**تشريح**: بنو اسد او غطفان هم د دوو قبيلو نومونه دي، دغه دواړي قبيلې په خپلو کي د يو بل حليف (مرسته کوونکي) وې لکه څرنګه چي په هغه زمانه کي د عربو عام رواج وو او دواړو قبيلې د يو بل په وړاندي په قسم کولو سره عهد کړی وو چي په خپلو کي به د يو بل مرسته کوونکي يو . په حديث کي ذکر سوو قبيلو ته يې ځکه غوره وفرمايل چي ددغه قبيلو خلګو په اسلام کي د سبقت (مخته والي) شرف تر لاسه کړ او د خپل ښه حالاتو او کړنو څرګندونه يې وکړل .

## د بنوتميم تعريف

﴿۵۷۳۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ مَا زِلْتُ أُحِبُّ بَنِي تَمِيمٍ مُنْذُ ثَلَاثٍ سَمِعْتُ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روایت دی چي زه بنو تمیم د هغه وخت څخه همېشه محبوب ګڼم د کوم وخت څخه چي ما د هغوی د درو خویونو ذکر

مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِيهِمْ سَمِعْتُهُ يَقُولُ هُمْ أَشَدُّ أُمَّتِي

د رسول الله ﷺ څخه اوريدلی دی، رسول الله ﷺ فرمايلي وه بني تمیم به زما د امت څخه پر

عَلَى الدَّجَّالِ قَالَ وَجَاءَتْ صَدَقَاتُهُمْ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دجال تر ټولو زيات سخت وي، د ابو هريره رضي الله عنه بيان دی چي يو وار د قبيله بنو تميم صدقې راغللې، د هغه په ليدو سره رسول الله ﷺ وفرمايل:

هَذِهِ صَدَقَاتُ قَوْمِنَا وَكَانَتْ سَبِيَّةٌ مِنْهُمْ عِنْدَ عَائِشَةَ فَقَالَ أَعْتِقِيهَا فَإِنَّهَا مِنْ وَلَدِ إِسْمَاعِيلَ. متفق عليه.

دا زموږ د قوم صدقې دي، ابوهريره رضي الله عنه وايي د بي بي عائشې سره د بنو تميم يوه مينزه وه، رسول الله ﷺ بي بي عائشې رضي الله عنها ته وفرمايل چي دا آزاده کړه دا د حضرت اسماعيل عليه السلام د اولاد څخه ده. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\۱۷۰، رقم: ۲۵۴۳، ومسلم ۴\۱۹۵۷، رقم: ۱۹۸- ۲۵۲۵.

**د لغاتو حل**: سبية: اي اسيرة (بندي).

**تشريح**: تر ټولو زيات سخت او دروند ثابت سي: يعني کله چي لعين دجال ښکاره سي نو د بني تميم خلک به تر ټولو زيات د هغه مقابله کوي، د هغه په ماتولو کي به تر ټولو زيات هڅه او کوښښ کوي او د هغه په ترديد او تغليظ کي به تر ټولو مخکي وي، همدا رنګه په دغه الفاظو کي د بني تميم د ځانګړتيا او فضيلت ذکر دی مګر له دې سره دا وړاند وينه هم ده چي د بنو تميم د کورنی خلک د دجال د ښکاره کېدو په وخت کي زيات وي.

دا زموږ د قوم صدقات دي: د دغه الفاظو په ذريعه رسول الله ﷺ بنو تميم په داسي شرف او فضيلت سره ونازول چي هغوی خپل ځان ته په منسوب کولو سره د هغوی قوم ته يې خپل قوم وفرمايل.

دا د حضرت اسماعيل عليه السلام د اولاد څخه ده، مطلب دا چي دغه مينزه د بني تميم څخه د کېدو په وجه عربي النسله ده او عرب د حضرت اسماعيل عليه السلام اولاده ده، ځکه نو دغه مينزه هم

دحضرت اسماعيل عليه السلام د اولادې څخه سول، كه څه هم دغه نسلي وصف د ټولو عربو مشتركه وصف دی او يوازې د بنوتميم سره خاص نه دی مګر رسول الله ﷺ د يو ډول فضل او شرف وركولو لپاره دغه الفاظ وفرمايل.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### قريش مه ذليل کوئ

﴿۵۷۳۶﴾: عَنْ سَعِيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ يُرِدْ هَوَانَ قُرَيْشٍ أَهَانَهُ اللّٰهُ. رواه الترمذي.

د حضرت سعيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چې د قريشو د ذلت او خوارۍ غوښتونکی وي خدای جل جلاله به هغه ذليل او خوار کړي. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۷۱، رقم: ۳۹۰۵.

**د لغاتو حل**: هوان: اي ذلهم واهانتهم (سپکاوی)

**تشريح**: مطلب دا چې د قريشو عزت او احترام په هر صورت کې لازم دی، د هغوی بې عزتي کول او دهغوی رسوائي او ذلت غوښتل د الله جل جلاله ناراضګي اخيستل دي، که څه هم هغه پر امارت کبری يعني خلافت او امارت باندې فائز وي يا نه وي، دهغوی خليفه او امير کېدو په صورت کې د هغوی د بې عزتۍ کولو منع او د تمهيد وجه خو ښکاره ده، پاته سو هغه صورت چې هغوی دخلافت او امارت پر منصب باندې نه وي نو په دغه صورت کې هم دهغوی د بې عزتۍ کولو منع به په دې اعتبار وي چې هغوی ته د رسول الله ﷺ نسبت حاصل دی او دهغوی دغه خاص فضل او شرف د دې خبرې متقاضي دی.

### د قريشو لپاره دعاء

﴿۵۷۳۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللّٰهُمَّ أَذَقْتَ أَوَّلَ قُرَيْشٍ نَكَالًا فَأَذِقْ آخِرَهُمْ نَوَالًا. رواه الترمذي.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: اې الله! تا په اول کې پر قريشو عذاب وڅکی (يعنی د بدر او احزاب په جګړو کې) اوس د خپل بخښنې او ورکړې خوند

په وڅکي. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ٥\٦٧٢، رقم: ٣٩٠٨.

## دوې يمني قبيلې

﴿٥٤٣٨﴾: وَعَنْ أَبِي عَامِرٍ الْأَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِعْمَ الْحَيُّ الْأَسْدُ وَالْأَشْعَرِيُّونَ لَا يَفِرُّونَ فِي الْقِتَالِ وَلَا يَغُلُّونَ هُمْ مِنِّي وَأَنَا مِنْهُمْ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

د حضرت ابو عامر اشعري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ و فرمايل: قبيله اسد او قبيله اشعري ډېري ښه قبيلې دي، دا دواړي قبيلې د جنګ د ميدان څخه نه تښتي او د غنيمت په مال کي خيانت نه کوي، هغوی زما څخه دي او زه د هغوی څخه يم. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي: ٥\٦٨٧، رقم: ٣٩٤٧.

**تشريح**: اسد د يمن د يوې قبيلې د مورث اعلی نوم دی او دغه قبيله د هغه په نامه سره مشهوره او متعارفه سول، دغه قبيلې ته ازد او ازدشنوه هم وايي، ټولو د مدينې انصارو له دغه قبيلې سره تعلق درلود، اشعر په اصل کي د عمرو ابن حارثه اسعدي لقب وو چي په خپله زمانه کي د يمن يو ستر سړی وو، دی هم د خپلي قبيلې مورث اعلی وو او د هغه د لقب د نسبت څخه د هغه قبيلې ته اشعري ويل کيدل او د قبيلې خلکو ته اشعريون او اشعرون هم ويل کيږي، مشهور او ستر صحابي حضرت ابو موسی اشعري رضي الله عنه او د هغه د قوم خلک د دغه قبيلې سره تعلق لري.

هغوی زما څخه دي، مطلب دا چي هغوی زما پيروي کوونکي او زما پر سنت باندي تلونکي خلک دي، يا دا چي د دغه قبيلو خلک زما ملګري او مرسته کوونکي دي، همدارنګه زه د هغوی څخه يم، مطلب دا چي زه هم د هغوی ملګری او د هغوی مرسته کوونکی يم، يعني د دغه الفاظو په ذريعه دې ته اشاره وسول چي د دغه قبيلو مؤمنان او مسلمانان د تقوا او پرهيزګارۍ پر مقام دي او دا خبره د قرآن کريم د دغه الفاظو څخه ثابتيږي چي:

وان اولياؤه الا المتقون: او د هغه (محمد ﷺ) ملګري ټول متقيان او پرهيزګاره دي.

## ازد د الله ﷻ لښکر دي

﴿۵۷۳۹﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْأَزْدُ أَزْدُ اللَّهِ فِي الْأَرْضِ وَ يُرِيدُ النَّاسُ أَنْ يَضَعُوهُمْ وَيَأْبَى اللَّهُ إِلَّا أَنْ يَرْفَعَهُمْ وَلَيَأْتِيَنَّ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ يَقُولُ الرَّجُلُ يَا لَيْتَ أَبِي كَانَ أَزْدِيًّا يَا لَيْتَ أُمِّي كَانَتْ أَزْدِيَّةً. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: قبيله ازد په مځکه کي د خداى ﷻ زمريان او د خداى ﷻ لښکر دي، خلک د هغوى ذليل او خوار کول غواړي مگر خداى ﷻ د هغوى د خواهش خلاف د هغوى درجه لوړوي، او يوه زمانه به پر خلکو داسي راسي چي سړى به دا وايي کاش چي زما پلار او مور د قبيله ازد څخه واى، ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دى.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۸۳، رقم: ۳۹۳۷.

**تشريح**: د ازد قبيلې نسبت الله ﷻ ته په کولو سره هغوى ته ازد الله ويل يا خو د هغوى په دغه لقب سره متعارف کول وو، يا په دې اعتبار چي د دغه قبيلې خلک د الله ﷻ د دين او د الله ﷻ رسول مرسته کوونکي او د الله ﷻ لښکر وه، د هغوى فضل او شرف څرگندولو لپاره د هغوى نسبت يې الله ﷻ ته وکړ، او ځينو حضراتو ويلي دي چي ازد الله په اصل کي د اسد الله په معنى کي استعمال سوى دى، مطلب دا چي د ازد قبيلې خلک په جگړه کي زړه ور ثابت سوي دي،

کاش زما پلار ازدي واى: مطلب دا چي په يوه زمانه کي د دغه قبيلې مرتبه به داسي وي او دغه قبيلې سره تعلق لرونکي خلک به دومره عزتمند او سرلوړي وي چي د نورو قبيلو خلک به ازپه کوي او دا خواهش به کوي چي کاش مور هم د دغه قبيلې څخه واى.

## د درو قبيلو څخه ناراضي

﴿۵۷۴۰﴾: وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ مَاتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَكْرَهُ ثَلَاثَةَ أَحْيَاءٍ ثَقِيفًا وَبَنِي حَنِيفَةَ وَبَنِي أُمَيَّةَ. رواه الترمذي.

د حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ په داسي حالت کي وَفات سو چي درې قبيلې يې خوښې نه وې (او هغه درې قبيلې دادی قبيله ثقيف، قبيله بنو حنيفه، او قبيله بنو اميه) . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۸۵، رقم: ۳۹۴۳.

**تشريح**: په ذکر سوو درو قبيلو کي داسي خلک پيدا سول چي هغوی د اسلام مخالفينو ته ګټه ورسول او مسلمانان د سخت غم او تکليف سره مخامخ سول، او الله جل جلاله خپل رسول خبردار کړی وو چي په راتلونکي کي د هغه قبيلو څخه ثرنګه فتنې او ثرنګه ظالمان خلک پيدا سول، ځکه رسول الله ﷺ دغه درو سره قبيلو ته په ښه نظر و نه کتل، ثقيف هغه قبيله ده چي په هغه کي حجاج ابن يوسف په ډول مشهور ظالم سړی پيدا سو، بنوحنيفه هغه قبيله ده چي د مسلمه کذاب په ډول فتنه کوونکي سړی يې پيدا کړ او بنو اميه هغه قبيله ده چي په هغه کي عبيدالله ابن زياد پيدا سو، دا هغه عبيدالله ابن زياد دی چي د يزيد بن معاويه له خوا د کوفې او بصرې والي وو چي محض د امارت تر لاسه کولو لپاره يې حضرت سيد الشهداء امام حسين رضي الله عنه شهيد کړ، عبيدالله ابن زياد ډېر بدبخته او بد سړی وو.

نقل سوي دي چي کله د هغه فوج د کربلا د ميدان څخه د حضرت حسين رضي الله عنه سر مبارک هغه ته راوړی نو هغه سر مبارک په يوه تالۍ کي کښېښود او د يوې لښتي په ذريعه يې هغه وهی او د رسول الله ﷺ د زړه د ټوټې په اړه يې بې ادبه الفاظ ويل، مګر د دغه بدبخته پايله هم ډېره خرابه سول، په ډېره بې دردۍ سره په يوه جګړه کي ووژل سو، ترمذي په خپل جامع کي د عماره ابن عمر رحمة الله عليه څخه نقل کړي دي چي هغه بيا ن وکړ: کله چي عبيدالله ابن زياد د جنګ په ميدان کي ووژل سو نو د هغه دښمن د هغه مړی په اور کي وسوځوی ، بيا د هغه فوجيانو د هغه د سر په اخيستلو سره ښار ته راوړ او د مسجد په دوکانچه کي يې کښېښود ، چيري چي د هغه نور ملګري او مرسته کوونکي ناست وه، عماره ابن عمر رحمة الله عليه وايي په دغه وخت کي زه هم هلته ورسېدم ، بيا ما ولېدل چي د هغه ملګرو چغي کړې چي هغه راغلی، (ما په حيرت سره وکتل نو) ناڅاپه يو مار راښکاره سو او بيا هغه په ډېره تيزي سره د عبيدالله ابن زياد سر ته ورغلی او د هغه په پزه ننوتی، يو څه وخت دننه وو او بهرته دباندي راووتی تر دې چي هغه غائب سو، د دغه حيرانوونکې پېښي په لېدو سره تر اوسه پر خلګو حيراني خپره وه چي ناڅاپه هغوی بيا شور جوړ کړ چي هغه راغلی، هغه مار بيا راغلی، په دغه وخت کي هغه مار سر ته نژدې ورسېدی او بيا په پزه ننوتی او څه وخت وروسته بهرته دباندي راووتی ، همدارنګه دوه يا درې ځله وسول.

سوال پیدا کیږي چي دلته د حدیث په وضاحت کي د بنو امیه په اړه یوازي د عبید الله ابن زیاد ذکر ولي سوی دی، حال دا چي یزید ابن معاویه هم د بنو امیه څخه وو، او په دې اعتبار د هغه ذکر کول زیات ضروري وه، چي عبید الله ابن زیاد خو د هغه تاکل سوی والی او د هغه لاندي کارکوونکی وو، او عبید الله چي څه وکړل د یزید حکم او د هغه په خوښي یې وکړل، مګر ددې خبري څه زیات اهمیت نسته، د بني امیه پاته خلګو په خپلو بدیو کي څه کسر پرې ایښی وو، د دولت او مشرتوب په اخته کېدو سره هغوی اسلام او مسلمانانو ته تاوانونه ورسول، هغه ټول د ځلانده ورځي په ډول څرګند دي، یو یزید ابن معاویه یا عبید الله ابن زیاد ته څه وویل سي، مقصد خو د بنو امیه بدي بیانول دي، د مثال په توګه د عبید الله ابن زیاد ذکر وکړل سو، اوس نور ټول پر ده قیاس کیدای سي، په یو بل حدیث کي راغلي دي چي رسول الله ﷺ یوه ورځ خوب ولیدی چي یو څو بېزوګان د مسجد نبوي پر منبر لوبه ښیي، رسول الله ﷺ ددغه خوب په تعبیر کي د بنو امیه ذکر وکړ.

## د بنو ثقیف د دوو کسانو په اړه پیشګوئي

﴿۵۷۴۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ثَقِيفٍ

د حضرت ابن عمر رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د ثقیف په قبیله کي به د

كَذَّابٌ وَمُبِيرٌ قَالَ عبدالله ابن عصمة يُقَالُ الْكَذَّابُ الْمُخْتَارُ بْنُ أَبِي عُبَيْدٍ

انتها درجې یو درواغجن وي او یو سړی به هلاکونکی وي، د عبد الله بن عصمه راوي بیان دی چي په حدیث کي د کوم درواغجن ذکر دی ددې څخه مراد مختار بن ابي عبید دی،

وَالْمُبِيرُ الْحَجَّاجُ بْنُ يُوسُفَ وقال هِشَام بْنِ حَسَّانَ أَحْصَوْا مَا قَتَلَ

او هلاکونکی حجاج بن یوسف دی، او هشام بن حسان وایي حجاج بن یوسف چي زموږ څومره خلک بندیان کړي او قتل کړي دي

الْحَجَّاجُ صَبْرًا فَبَلَغَ مِائَةَ أَلْفٍ وَعِشْرِينَ أَلْفًا. رواه الترمذي وروى مسلم

د هغوی شمیر خلکو شمیرلی دی چي یو لک شل زره دی، ترمذي، د مسلم په صحیح روایت

في الصحيح حين قتل الحجاج عبدالله ابن الزبير قالت اسماء ان رسول

کي ویل سوي دي چي کله حجاج حضرت عبدالله بن زبیر ﷛ شهید کړنو د هغه مور بي بي اسماء (بنت ابوبکر) وویل مورږ ته رسول الله ﷺ

الله ﷺ حدثنا ان في ثقیف کذابا و مبیرا فاما الکذاب فر اینا ه واما المبیر فلا اخالك الا ایاه و سیجئ تمام الحدیث في الفصل الثالث.

فرمایلي وه چي په قبیله ثقیف کي به یو ډیر لوی درواغجن پیدا کیږي او یو ډیر لوی هلاکونکی، نو لوی درواغجن خو موږ ولیدی (یعني مختار) اوس پاته سو مفسد او هلاکونکی نوګمان نه کوم پر تا مګر د هغه (یعني حجاج هلاکونکی دی)، دا پوره حدیث په دریم فصل کي دی.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۴۳۲، رقم: ۲۲۲۰.

**د لغاتو حل**: مبیر: اي مفسد (فساد کوونکی)

**تشریح**: حجاج په لغوي توګه د حاج اسم مبالغه ده چي د هغه معنی د بحث کوونکي، دلیل او ثبوت راوړونکي ده، حجاج بن یوسف د تاریخ اسلام مشهور ظالم سړی دی چي هغه په زرګونو ښه او نیک خلک چي په هغو کي صحابه کرامو او تابعین هم شامل دي، په ناحقه وژلي دي، عبدالله ابن زبیر ﷛ یې شهید کړ او په زرګونو بې ګناه انسانان یې بندیان کړل، ویل کیږي چي ځیني خلک یې بېله جګړې کولو همدارنګه بې ګناه ونیول او په بندیخانو کي یې واچول او بیا یې ووژل، د هغوی شمېر یو لک او شل زره کسان دي او کوم خلک چي په جګړو کي ووژل سول د هغوی شمېر بېل دی، دا هم ویل کیږي چي د هغه په بندیخانه کي د پنځوسو زرو شمېر رسېدلی دی، او ددغه سړي د بدبختۍ اندازه ددې څخه لګیږي چي هغه کومي بندیخانې جوړي کړي وې په هغو کي د بام هیڅ نوم او نښان نه وو، د هغه ټولو بندیانو تر شنه آسمان لاندي د ګرمۍ او یخ، لمر او باران ورځي تېرولې، حجاج ابن یوسف ثقفي په اصل کي د اموي امیر عبدالملک ابن مروان تر لاسه لاندي او باوري کس وو، او د امارت او پاچاهۍ په معاملاتو کي یې ډېر اثر درلود، عبدالملک ابن مروان هغه د عراق او خراسان والي جوړ کړی وو او د حضرت عبدالله ابن زبیر ﷛ د شهادت څخه وروسته د حجاز والي هم جوړ سو، دعبدالملک ابن مروان څخه وروسته ولید ابن عبدالملک د امارت په زمانه کي هم پرعراق او خراسان باندي د هغه مشري وه، دهغه د ظلم څخه ډکو کړنو څخه د تاریخ کتابونه ډک دي، د شوال دمیاشتي په نیمایي کي په ۹۵ هجري کال کي د ۵۴ کلو په عمر مړ سو.

مختار د یو ستر صحابي حضرت ابوعبیدابن مسعود ثقفي ﷜ زوی وو، مختار تر هجرت یو کال مخکي پیدا سو، هغه ته د رسول الله ﷺ صحبت او روایت یعني د صحابیت شرف تر لاسه نه سو، په پیل کي دغه کس په علم، فضل او نیکۍ سره مشهور وو مګر وروسته څرګنده سول چي د باطني خباثت ښکار دی او محض د دنیا تر لاسه کولو لپاره یې د علم او تقوا جامې اغوستي دي، په پیل کي یې له اهل بیت سره سخت بغض او عناد درلود، ناڅاپه کي په هغه کي داسي انقلاب راغلی چي داهل بیتو دمیني ساه یې اخیستل او په دې اړه د صحیح فکر او عقیدې معلومیدی، د اهل بیتو په اړه د هغه دغه ظاهري مینه دومره زیاته سول چي د حضرت امام حسین ﷜ د شهادت څخه وروسته د یزیدیانو څرګنده دښمن سو او په هغوی کي ډېر خلګ هغه د حسین ﷜ په قصاص کي ووژل، خلاصه دا چي ددنیا په طلب کي یې ډېر اړخونه بدل کړل او په خپلو نوو نوو کړنو یې فتنې را پورته کړې، د حضرت عبدالله ابن زبیر ﷜ د عراق په خلافت کي یې د بغاوت بېرغ پورته کړ، د مکر او چم په ذریعه یې جاهل او کمزوري خلک د خپل ځان په بزرګۍ او کرامت داسي خطا کړل چي د هغه د پیروانو یوه لویه ډله پر هغه را ټوله سول او ځومره چي د هغه خلګ زیاتېدل هغومره د بدي عقیدې او ګمراهۍ ښکار کېدی، د دروا‌غو په چم کولو سره هغه پر ټول اسلامي خلافت باندي د قبضې کولو فلان جوړ کړ او د خپلو فتنو په ذریعه پر کوفه هم قابض سو، د نبوت مدعي هم سو او ددې خبري دعوه یې کول چي جبرائیل ﷺ ما ته وحي راوړي، په پای کي حضرت معصب ابن زبیر ﷜ چي د حضرت عبدالله ابن زبیر ﷜ له خوا د بصرې والي وو، د خپل فوج په بېولو سره پر کوفه باندي حمله وکړل، مختار هم مقابله وکړل مګر ماته یې وخوړل او بیا د رمضان د میاشتي پر څوارلسمه نېټه په ۶۷ هجري کال کي ووژل سو، د مختار ددغه چمبازۍ او دروا‌غو په وجه علماؤ هغه په کذابو کي یو لوی کذاب (دروا‌غجن) شمېرلی دی، او د حدیث الفاظ: یخرج من ثقیف کذاب ومبیر، د ثقیف په قبیله کي به یو سخت دروا‌غجن او سخت مفسد پیدا کیږي، ددغه حدیث مصداق مختار او حجاج ګرځول سوي دي.

## د قبیله ثقیف لپاره دعاء

﴿۵۷۴۲﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَخْرَقَتْنَا نِبَالُ ثَقِيفٍ فَادْعُ اللّٰهَ عَلَيْهِمْ قَالَ اللّٰهُمَّ اهْدِ ثَقِيفًا. رواه الترمذي.

د حضرت جابر رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چي خلکو وويل: اې دالله رسوله د ثقيف غشو موږ وسوځلو ،نو د خدای جل جلالہ څخه د هغوی لپاره ښيرا وکړه، رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم وفرمايل : اې الله ! د ثقيف قبيلې ته هدايت وکړې . ترمذي.

**تخريج:** سنن الترمذي : ۵\۶۸۵، رقم: ۳۹۴۲.

## د حمير قبيله لپاره دعاء

﴿۵۷۶۳﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّزَّاقِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ مِينَاءَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كُنَّا

عبدالرزاق رضی اللہ عنہ د خپل پلار څخه او هغه د ميناء څخه او هغه د ابو هريره رضی اللہ عنہ څخه روايت کوي

عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَاءَ رَجُلٌ أَحْسِبُهُ مِنْ قَيْسٍ فَقَالَ يَا

چي موږ د نبي کريم صلی اللہ علیہ وسلم سره ناست وو چي يو سړی زما په خيال کي د قبيله قيس څخه وو حاضر سو او وه يې ويل: اې

رَسُولَ اللّٰهِ الْعَنْ حِمْيَرًا فَأَعْرَضَ عَنْهُ ثُمَّ جَاءَهُ مِنَ الشِّقِّ الْآخَرِ فَأَعْرَضَ

دالله رسوله ! پر قبيله حمير باندي لعنت وکړئ (يعني ښيرا ورته وکړئ) ددې اوريدو سره رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم مخ مبارک ځيني واړوی،

عَنْهُ ثُمَّ جَاءَهُ مِنَ الشِّقِّ الْآخَرِ فَأَعْرَضَ عَنْهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

هغه بيا د بل طرف څخه راغلی نبي کريم صلی اللہ علیہ وسلم مخ ځيني وګرځوی بيا د بل طرف څخه ورته راغلی نو د ښيرا څخه يې اعراض وکړی او وه يې فرمايل :

وَسَلَّمَ رَحِمَ اللّٰهُ حِمْيَرًا أَفْوَاهُهُمْ سَلَامٌ وَأَيْدِيهِمْ طَعَامٌ وَهُمْ أَهْلُ أَمْنٍ

خدای جل جلالہ دي پر حمير رحمت نازل کړي د هغوی خولې سلام دي (يعني ډير سلام کوي) او د هغوی په لاسونو کي خوراک دي (يعني ډير خوراک ورکونکي دي) او هغوی د امن او ايمان

وَإِيمَانٍ وَقَالَ هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ الرَّزَّاقِ وَيُرْوَى عَنْ مِينَاءَ هٰذَا أَحَادِيثُ مَنَاكِيرُ. رواه الترمذي.

خاوندان دي ، ترمذي . او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دی چې د عبدالرزاق څخه پرته بل چا نه دی روايت کړی او دی له ميناء څخه روايت کوي منکر احاديث .

**تخريج**: سنن الترمذي ٥\ ٦٨٤، رقم: ٣٩٣٩.

**تشريح**: د هغوی خولې سلام وي او دهغوی لاسونه خوراک وي: ددغه جملې په ذريعه دوو لويو ښېګڼو ته اشاره ده، يو دا چې د هغوی په نزد سلام لوی شی دی ، کله چې د يو بل سره يو ځای کيږي نو د هغوی د خولې څخه سلام عليک خامخا راوځي ، اودوهمه ښېګڼه داده چې په خپل لاس سره په خلکو ډوډی خوري او ښه ويش کوي، په دې اعتبار دغه خلک د خاکسارۍ او سخاوت په ډول د دوو سترو صفتو جامع دي چې ددې خبري نښه ده چې هغوی ته د فضيلت او بزرګۍ مقام او د حقوق العباد د ادا کولو سعادت تر لاسه دی .

هغوی اهل امن هم دی او اهل ايمان هم، يعني دغه خلک د پاخه ايمان خاوندان هم دي او د هر ډول آفاتو او مصيبتو څخه خوندي او مامون هم دي .

## قبيله دوس

﴿٥٧٤٤﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِمَّنْ أَنْتَ قَالَ قُلْتُ مِنْ دَوْسٍ قَالَ مَا كُنْتُ أَرَى أَنَّ فِي دَوْسٍ أَحَدًا فِيهِ خَيْرٌ. رواه الترمذي.

د حضرت ابو هريره رضی الله عنه څخه روايت دی چې يوه ورځ رسول الله ﷺ زما څخه پوښتنه وکړه چې ته د کومې قبيلې څخه يې ؟ ما وويل د قبيله دوس څخه. رسول الله ﷺ وفرمايل : زما دا خيال نه وو چې په دوس کې به داسي يو سړی وي چې په هغه کې به خير وي، ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ٥\ ٦٤٣، رقم: ٣٨٣٨.

**تشريح**: په دغه حديث کې د حضرت ابو هريره رضی الله عنه تعريف او تحسين دی اود هغه د قبيلې دوس بدي، که ابو هريره رضی الله عنه نه وای نو په دغه قبيله کې به هيڅ خير او نيکي نه وای .

## د عربو سره دښمني مه کوئ

﴿٥٧٤٥﴾: وَعَنْ سَلْمَانَ قَالَ قَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَبْغَضْنِي فَتُفَارِقَ دِينَكَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ كَيْفَ أَبْغَضُكَ وَبِكَ هَدَانَا اللّٰهُ قَالَ تَبْغَضُ الْعَرَبَ فَتَبْغَضُنِي. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

د حضرت سلمان ﷛ څخه روایت دی چي یوه ورځ رسول الله ﷺ ما ته وفرمایل : ته زما سره بغض مه ساته کنه نو د دین څخه به بیل سې، ما وویل: اې د الله رسوله ! زه به څنګه ستاسو سره بغض ساتم، حال دا چي ستاسو په ذریعه خدای تعالی موږ ته سیده لار ښودلې ده،رسول الله ﷺ وفرمایل : که ته د عربو سره بغض ساتې نو لکه زما سره چي بغض ساتې . ترمذي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۶۸۰، رقم: ۳۹۲۷.

**تشریح**: د رسول الله ﷺ مطلب دا وو که چیري ته په عامه توګه د ټولو عربو سره بغض او عداوت وکړې نو زه هم په عربو کي یم ځکه نو زما سره هم ستا دښمني لازمیږي، نو په دې اعتبار ما ویلي دي چي ته زما سره دښمني مه کوه، ددې څخه څرګنده سول چي د عربو سره بغض او عداوت درلودل د سید الخلق ﷺ په اړه د بغض او عداوت سبب هم په ځینو صورتو کي ګرځېدای سي، ځکه د عربو په اړه د بغض او عداوت درلودلو څخه په هر صورت کي ځان ساتل ضروري دي چي د دومره لوی خرابۍ را منځته کېدو نوبت را نه سي .

په ښکاره دا معلومیږي چي حضرت سلمان فارسي ﷛ عجمي او فارسي النسل وو، ځکه د هغه پخواني او اصل وطن ته په نسبت کولو سره د هغه د ژبي څخه به داسي خبره وتلې وي یا یو داسي کړنه به ځیني سوې وي چي د هغه څخه به د ټولو عربو لپاره یا د ځینو عربو په اړه سپکاوی یا د بې ادبي اظهار سوی وي، کنه نو تر څو چي د حقیقي بغض او عداوت تعلق دی نو د حضرت سلمان فارسي ﷛ په اړه دا تصور هم نسي کیدای، چي هغه به د عربو په اړه داسي جذبه ولري بیا هم د هغه داسي خبره یا کړنه صورتا د بغض او عداوت مظهر کیدای سو ځکه رسول الله ﷺ هغه خبردار کړ چي په دې اړه احتیاط وکړه او د خپلي ژبي څخه داسي خبره مه باسه چي په هغه سره حقیقتا نه بلکه صورتا هم د عربو د دښمني اظهار کیږي ځکه که دا لړۍ حقیقتا بغض او عداوت ته ورسیږي نو دغه کار به زما سره د بغض او عداوت درلودلو مترادف وي .

## د عربو سره خیانت

﴿۵۷۴۶﴾ : وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ غَشَّ الْعَرَبَ لَمْ يَدْخُلْ فِي شَفَاعَتِي وَلَمْ تَنَلْهُ مَوَدَّتِي. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب لا نعرفه الا من حديث حصين بن عمر وليس هو عند اهل الحديث بذات القوی.

د حضرت ثمان بن عفان رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک چي د عربو سره خیانت وکړي هغه به زما په شفاعت کي داخل نه سي او نه به زما د دوستۍ شرف ورته تر لاسه سي . ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دی.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\ ۶۸۰، رقم ۳۹۲۸.

**تشریح**: د غش مطلب د دوکې ورکول، په زړه کي یو څه او په ژبه بل څه ویل ، خیرخواهي نه کول او څوک پر هغه خبره راپارول چي د هغه د مفاد او مصلحت خلاف وي، د شفاعت څخه شفاعت صغری یعني خاص شفاعت مراد دی نه شفاعت کبری چي په هرحال د هر امتي لپاره به وي، د ملګرتیا د سعادت نه تر لاسه کېدو څخه یا خو دا مراد دی چي هغه سړي ته دا مرتبه هیڅکله نه سي تر لاسه کېدای چي زه هغه خپل دوست کړم یا د رسول الله ﷺ مراد دا وو چي هغه سړي ته دغه سعادت هیڅکله نه سي تر لاسه کیدای چي هغه ما خپل دوست او محبوب کړي په هر حال د دواړو صورتو څخه مراد نفي کمال دی .

او هغه دومره قوي نه دی، د امام ترمذي رحمه الله د الفاظو مطلب دا سو چي عمران ابن حصین د حدیث په روایت کي قوي نه ګڼل کیږي ځکه د هغه روایت سوي حدیث ته به ضعیف ویل کیږي مګر اول خو دا چي د فضائلو په اړه ضعیف حدیث هم معتبر منل کیږي دوهم دا چي ددغه روایت تائید د هغه ډېر حدیثو څخه کیږي چي د تواتر معنوي حد ته رسیدلي دي،دمثال په توګه د حضرت انس رضی الله عنه څخه د رسول الله ﷺ دغه ارشاد نقل سوی دی : (حب العرب ایمان وبغضهم نفاق) د عربو سره مینه درلودل ایمان دی او د هغوی سره بغض درلودل نفاق دی .

طبراني په اوسط کي د حضرت انس رضی الله عنه څخه دا روایت نقل کړی دی:

حب قریش ایمان وبغضهم کفر وحب العرب ایمان وبغضهم کفر فمن احب العرب فقد احبني ومن ابغض العرب فقد ابغضني :

د قریشو سره مینه درلودل ایمان دی او دهغوی سره بغض کول کفر دی، د عربو سره مینه درلودل ایمان دی او د هغوی سره بغض درلودل کفر دی چا چي د عربو سره مینه وکړل نو هغه په حقیقت کي زما سره مینه وکړل او چا چي د عربو سره بغض وکړ نو هغه په حقیقت کي زما سره بغض وکړ .

طبراني په کبیر کي د حضرت سهل ابن سعد رضی الله عنه څخه دا حدیث نقل کړی دی:

احبوا قریشا فانه من احبهم احبه الله :

د قریشو سره مینه ولرئ ځکه څوک چي د قریشو سره مینه ولري نو الله جل جلاله به دهغه سره مینه ولري .

حاکم په مستدرک کي د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه د رسول الله ﷺ دغه ارشاد نقل کړی دی:
احبو الفقراء وجالسوهم واحبو العرب من قلبک ويسرک من الناس ماتعلم من نفسک:
د فقيرانو او مسکينانو سره مينه ولره او د هغوی سره کښينئ، او د عربو سره د زړه مينه ولرئ او پکار ده چي هغه عيبونه چي تاسو يې په خپل ځان کي تر لاسه کوئ تاسو د نورو د عيب ويني څخه منع کړي.

## يوه پشگوئي

﴿۵۴۷﴾: وَعَنْ أُمِّ الْحُرَيْرِ مولاة طلحة بن مالك قَالَتْ سَمِعْتُ مَوْلَايَ يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ مِنْ اقْتِرَابِ السَّاعَةِ هَلَاكُ الْعَرَبِ. رواه الترمذي.

د حضرت ابوطلحه د ازاد کړل سوي مينزي ام حرير څخه روايت دی چي ما د خپل بادار (ابو طلحه بن مالک) څخه دا اوريدلي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د قيامت د نژدېوالي د نښو څخه يوه نښه د عربو هلاکيدل دي،. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۸۱، رقم: ۳۹۲۹.

**تشريح**: د عربو څخه مراد يا خو مسلمان عرب دي او يا جنس عرب مراد دي، په هر حال مطلب دادی چي کله عرب د دنيا څخه پورته سي نو پوه سئ چي قيامت راتلونکی دی، په دغه حديث کي دې ته اشاره ده چي عربو ته د قيادت او سياست مقام حاصل دی، ټول غير عرب د هغوی تابع دي، څرګنده دي وي چي کله قيامت راسي نو هغه وخت به يوازي بدکاره خلګ په دنيا کي وي، هيڅوک کلمه ويونکی به پاته نه وي.

## خلافت او امارت قريشو ته ښايي

﴿۵۴۸﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُلْكُ فِي قُرَيْشٍ وَالْقَضَاءُ فِي الْأَنْصَارِ وَالْأَذَانُ فِي الْحَبَشَةِ وَالْأَمَانَةُ فِي الْأَزْدِ يَعْنِي الْيَمَنَ وفي رواية موقوفا. رواه الترمذي وقال هذا اصح.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: خلافت او حکومت په قريشو کي دی او قضاء په انصارو کي او آذان په قوم حبشه کي او امانت داري په ازد کي ده، او دا حديث موقوف هم روايت سوی دی، ترمذي ويلي دي دا موقوف والی ډير صحيح دي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۶۸۳، رقم: ۳۹۳۶.

**تشریح**: د قضاء څخه مراد نقابت دی، دنقابت معنی د نقیب جوړېدو یعني نګران، خبر اخیستونکي ده، نبي کریم ﷺ په لیلة العقبه کي د انصارو د هر ښاخ او قبیلې یو نقیب ټاکلی وو، د هغه کار دا وو چي هغه په خپل قوم کي د اسلام تبلیغ او خپرېدل وکړي، خلک په پوهولو سره اسلام ته مائل کړي او کوم خلک چي مسلمانان سي د هغوی د حالاتو او چارو نګراني وکړي، نو هغه نقیبانو خپل دغه کار په ډېره ښه توګه سرته ورسوی او د رسول الله ﷺ له خوا د تحسین او تعریف مستحق وګرځېدل.

ځینو حضراتو دا لیکلي دي چي په دغه ارشاد کي د قضاء لفظ په خپل معروف معنی کي استعمال سوی دی او ددې دلیل دادی چي رسول الله ﷺ، حضرت معاذ ﷺ د یمن قاضي وټاکی، دا قول زیات واضح او د قیاس زیات قرین دی.

آذان په حبشیانو کي دی، مطب دا چي د آذان کولو خدمت د حبشي خلګو لپاره زیات مناسب دی، رسول الله ﷺ دغه خبره د حضرت بلال ﷺ په مخکي وفرمایل چي د رسول الله ﷺ د مؤذنانو سردار وو، او هغه حبشي وو.

امانت په ازد کي دی: دلته د ازد څخه څه مراد دی، په دې اړه دوه قوله دي، یو خو دا چي ددې څخه دیمن هغه مشهوره قبیله مراد ده چي هغې ته ازد شنوه ویل کیږي او د ارشاد مطلب دادی چي د امانت ذمه داري په ډېر اطمینان سره د ازد شنوه قبیلې خلک ادا کوي، او دوهم قول د هغه راوي دی چي د هغه په روایت کي د یعني الیمن الفاظ زیات کړل او دا یې ښودلي دي چي د ازد څخه دیمن یوازي یوه قبیله ازد شنوه مراد نه ده بلکه اهل یمن مراد دي، لکه څرنګه چي په یوه روایت کي د اهل یمن په اړه په عامه توګه فرمایل سوي دي چي هغوی د نرم زړو خاوندان دي، اهل امن او اهل ایمان دي.

په هر حال د حدیث خلاصه دا سول چي ددغه کارو یعني قضاء، نقابت، مؤذني او امانت لپاره د کسانو د ټاکني په وخت کي د ذکر سوو قبیلو خلګو ته ترجیح ورکول پکار دي ځکه چي ددغه قبیلو په خلګو کي ددغه منصب د ذمه دارۍ او خدمت خاص صلاحیت دی، او په دې اړه هغوی ته یو خاص نسبت تر لاسه دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د قریشو په باره کي پیشگوئي

﴿۵۷۴۹﴾: عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُطِيعٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ لَا يُقْتَلُ قُرَشِيٌّ صَبْرًا بَعْدَ هٰذَا الْيَوْمِ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ. رواه مسلم.

حضرت عبدالله بن مطیع رضی الله عنه د خپل پلار څخه روایت کوي چي ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه د مکې د فتح په ورځ واوریدل چي د نن څخه وروسته به هیڅ قریشي په بندي خانه کي نه وژل کیږي تر ورځي د قیامت پوري . مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۱۴۰۹\۳، رقم: ۸۸- ۱۷۸۲.

**د لغاتو حل**: صبرا : اي لا في معركة. (په جنگ کي)

**تشریح**: په بندي کولو سره نه وژل کیږي: د دې څخه څه مراد دی؟ په دې اړه د علماؤ اختلاف دی، ملا علي قاري رحمه الله د طیبي رحمه الله دا قول نقل کړی دی چي دلته د نفي څخه نهي مراد ده، مطلب دا چي د ارشاد څخه د رسول الله صلی الله علیه وسلم مقصد د دې خبري منع کول دي چي قریشي خلگ په بندیخانه کي په اچولو سره ووژل سي مگر ملا علي قاري رحمه الله د طیبي رحمه الله پر دغه قول مختلف اعتراضات کړي دي او بیا یې د حمیدي دغه قول نقل کړی دی چي ځینو محدثینو د دغه ارشاد تاویل کړی دی او ویلي یې دي چي د دې معنی داده : نن د مکې د فتح د ورځي څخه وروسته د قیامت تر ورځي پوري به داسي نوبت هیڅکله نه راځي چي یو قریشي سړی دی د اسلام څخه مرتد سي او بیا د اسلامي قانون مطابق هغه دي بندي کړل سي او هغه دي پر ارتداد باندي ثابت او قائم پاته سي تر دې چي هغه ووژل سي، د دغه تاویل بنیاد دادی چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه وروسته داسي مثالونه خو موجود دي چي قریشي خلگ په دې وجه بندي سوي او وژل سوي دي چي هغوی د اسلام څخه پر کفر او انکار او د اسلام پر دښمني قائم وه مگر هیڅ داسي مثال نه سي تر لاسه کیدای چي یو قریشي دي مرتد سوی وي او په دې وجه دي هغه په بند کي اچولو سره وژل سوی وي چي هغه د خپل ارتداد څخه منع نه سو او پر کفر باندي قائم او ثابت پاته سو ، نو د دغه ارشاد خلاصه به دا وي چي الله جل جلاله به د قریشو په زړو کي دین

او ایمان داسي راسخ کړي او هغوی به د اسلام پر لاره داسي ټینګ کړي چي هیڅکله به په هغوی کي یو څوک مرتد نه سي چي د هغه په سبب به هغه په بند کي واچول سي او د وژني نوبت به راسي، د دې تائید د دغه روایت څخه کیږي چي: ان الشیطان قد ایس من جزیرة العرب، بېله شکه شیطان د جزیرة العرب څخه مایوس سوی دی.

## د حجاج په مخکي د بي بي اسماء حق ویل

﴿۵۷۵۰﴾: وَعَنْ أَبِي نَوْفَلٍ معاوية بن مسلم قال رَأَيْتُ عَبْدَ اللهِ بْنَ الزُّبَيْرِ عَلَى

: حضرت ابو نوفل معاویه بن مسلم رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما ولیدی د عبد الله بن زبیر رضي الله عنه

عَقَبَةِ الْمَدِينَةِ قَالَ فَجَعَلَتْ قُرَيْشٌ تَمُرُّ عَلَيْهِ وَالنَّاسُ حَتَّى مَرَّ عَلَيْهِ عَبْدُ اللهِ

مړی د مدینې پر غونډی، قریش د دغه مړي سره تیریدل تر دې چي عبد الله بن عمر رضي الله عنه د مړي

بنُ عُمَرَ فَوَقَفَ عَلَيْهِ فَقَالَ السَّلَامُ عَلَيْكَ أَبَا خُبَيْبٍ السَّلَامُ عَلَيْكَ أَبَا خُبَيْبٍ

نژدې ودریدی وه یې ویل: السلام علیک اې ابو خبیب (د عبد الله بن زبیر رضي الله عنه کنیت دی) السلام علیک اې ابو خبیب،

السَّلَامُ عَلَيْكَ أَبَا خُبَيْبٍ أَمَا وَاللهِ لَقَدْ كُنْتُ أَنْهَاكَ عَنْ هَذَا أَمَا وَاللهِ لَقَدْ كُنْتُ

السلام علیک اې ابو خبیب، خبر سه! قسم په خدای ما ته د دې کار څخه منع کولې، خبر سه! قسم په خدای ما ته د دې کار څخه منع کولې،

أَنْهَاكَ عَنْ هَذَا أَمَا وَاللهِ لَقَدْ كُنْتُ أَنْهَاكَ عَنْ هَذَا أَمَا وَاللهِ إِنْ كُنْتَ مَا عَلِمْتُ

خبر سه! قسم په خدای ما ته د دې کار څخه منع کولې، (د کار څخه مراد خلافت دی)، خبر سه! قسم په خدای ما ته معلومه وه چي ته

صَوَّامًا قَوَّامًا وَصُولًا لِلرَّحِمِ أَمَا وَاللهِ لَأُمَّةٌ أَنْتَ أَشَرُّهَا لَأُمَّةٌ سوء وفي رواية لامة

زیات روژې نیونکی وې ډیر شب بیدار وې او د قریبانو سره ډیر احسان او ښه چلن کونکی وې، قسم په خدای هغه ډله چي د هغوی خیال او په اعتقاد کي ته خراب یې البته یو خراب ډله ده، او په یوه روایت کي دا الفاظ دي کومه ډله چي پر تا خراب خیال کوي

خير ثُمَّ نَفَذَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ فَبَلَغَ الْحَجَّاجَ مَوْقِفُ عَبْدِ اللّٰهِ وَقَوْلُهُ فَأَرْسَلَ

څه بنه ډله ده ، (د تعريض او طعن په ډول چي ستا په ډول نيک سړي باندي دا ډله بد وايي)، ددې څخه وروسته عبد الله بن عمر رضي الله عنهما ولاړى ، بيا دا خبر چي حجاج بن يوسف ته ورسيدى چي عبد الله بن عمر رضي الله عنهما د مړي سره ولاړ وو او داسي يې ويلي دي ،

إِلَيْهِ فَأُنْزِلَ عَنْ جِذْعِهِ فَأُلْقِيَ فِي قُبُورِ الْيَهُودِ ثُمَّ أَرْسَلَ إِلَى أُمِّهِ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي

نو هغه مړى يې د لرګي څخه راکښته کړ او د يهودو په هديره کي يې وغورځوى ، بيا حجاج سړى وليږى او د عبد الله بن زبير رضي الله عنهما مور بي بي اسماء بنت ابوبکر يې وغوښتل ،

بَكْرٍ فَأَبَتْ أَنْ تَأْتِيَهُ فَأَعَادَ عَلَيْهَا الرَّسُولَ لَتَأْتِيَنِّي أَوْ لَأَبْعَثَنَّ إِلَيْكِ مَنْ يَسْحَبُكِ

هغې د راتلو څخه انکار وکړ، حجاج بيا سړى ور وليږى، او حکم يې وکړ چي سمدستي حاضره سه کنه نو داسي سړى به در واستوم چي تا به د سر وربښتانو څخه نيولې راولي،

بِقُرُونِكِ قَالَ فَأَبَتْ وَقَالَتْ وَاللّٰهِ لَا آتِيكَ حَتَّى تَبْعَثَ إِلَيَّ مَنْ يَسْحَبُنِي بِقُرُونِي

د راوي بيان دى چي اسماء بنت ابوبکر بيا انکار وکړا و وه يې ويل : قسم په خداى چي هيڅکله به در نه سم، که څه هم ته هغه سړى راوليږې چي ما تر سر نيولې راکشوي،

قَالَ فَقَالَ أَرُونِي سِبْتَيَّ فَأَخَذَ نَعْلَيْهِ ثُمَّ انْطَلَقَ يَتَوَذَّفُ حَتَّى دَخَلَ عَلَيْهَا فَقَالَ

ددې اوريدو سره حجاج وويل : زما څپلې راوړه ، بيا هغه څپلې په پښو کړې او په کبر سره روان سو، تر دې چي اسماء بنت ابوبکر ته راغلل او ورته وه يې ويل :

كَيْفَ رَأَيْتِنِي صَنَعْتُ بِعَدُوِّ اللّٰهِ قَالَتْ رَأَيْتُكَ أَفْسَدْتَ عَلَيْهِ دُنْيَاهُ وَأَفْسَدَ عَلَيْكَ

تا زه د خداى د دښمن (يعني ابن زبير رضي الله عنهما) سره په چلن کولو کي څنګه وليدم؟ بي بي اسماء ورته وفرمايل : ما وليدل چي تا دده دنيا تباه او برباد کړه او هغه ستا آخرت تباه کړ،

آخِرَتَكَ بَلَغَنِي أَنَّكَ تَقُولُ لَهُ يَا ابْنَ ذَاتِ النِّطَاقَيْنِ أَنَا وَاللّٰهِ ذَاتُ النِّطَاقَيْنِ أَمَّا

زه خبره سوې يم چي تا ده ته د ذات النطاقين زوى ويل، قسم په خداى هغه دوه کمر بنده والا ښځه زه يم ،

أَحَدُهُمَا فَكُنْتُ أَرْفَعُ بِهِ طَعَامَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَطَعَامَ أَبِي بَكْرٍ

زما يو كمر بند خو هغه وو چي په هغه سره ما د رسول الله ﷺ او د ابوبکر رضی الله عنه خوراک تړلو سره

مِنَ الدَّوَابِّ وَأَمَّا الْآخَرُ فَنِطَاقُ الْمَرْأَةِ الَّتِي لَا تَسْتَغْنِي عَنْهُ أَمَا إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ

زړوی چي د حیوانانو څخه خوندي وي او زما دویم کمر بند هغه وو چي د هغه څخه هیڅ یوه ښځه بې پروا کیدلای نه سي. ، خبر سه ! رسول الله ﷺ

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدَّثَنَا أَنَّ فِي ثَقِيفٍ كَذَّابًا وَمُبِيرًا فَأَمَّا الْكَذَّابُ فَرَأَيْنَاهُ وَأَمَّا الْمُبِيرُ فَلَا إِخَالُكَ إِلَّا إِيَّاهُ قَالَ فَقَامَ عَنْهَا وَلَمْ يُرَاجِعْهَا. رواه مسلم.

حدیث بیان کړی دی چي د ثقیف په قبیله کي به یو لوی درواغجن او یو لوی مفسد او لوی وینه بیونکي وي ، هغه لوی درواغجن خو موږ ولیدی اوس پاته سو هغه فاسد او قاتل نو زما خیال دی چي هغه هم ته یې، د ابونقل راوي بیان دی د بي بي اسماء د دغه الفاظو اوریدو سره حجاج پورته ولاړ سو او هغې ته یې هیڅ جواب ور نه کړ . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۹۷۱\۱۴، رقم: ۲۲۹- ۲۵۴۵.

**د لغاتو حل**: لامة سوء: فساد فهمهم. جذعة: المصلوب عليه. قرونک: بظفائرک شعرک (کوڅۍ). سبتي: اي نعلي (څپلۍ). يتوذف: يسرع و قيل يتبختر.

**تشريح**: د مدينې د غونډۍ څخه مراد د مکې د ښار لوړه برخه ده چي لویدیځي خوا ته واقع ده، د مدينې لارپر هغه ځای تېرېږي، او د مدينې څخه راتلونکي کسان به د دغه ځای څخه مکې ته داخلېدل، په دغه مناسبت سره هغه د مدينې په غونډۍ تعبير کړل سو، کله چي ظالم حجاج ابن يوسف د خپل لښکر په ذريعه حضرت عبد الله ابن زبير رضی الله عنه په مسجد حرام کي په چاپېره کولو سره په ډېره بې دردۍ شهيد کړ نو وروسته هغوی د هغه مړی پر ذکر سوي ځای باندي په دار و زړوی او بيا هغه ځای ته نژدې په حجون يعني جنت المعلاة کي هغه ښخ کړل سو، مگر اوس د هغه د قبر نښه هم نسته او نه څوک دا ښودلای سي چي د هغه قبر چيري وو، همدارنگه په جنت المعلی کي چي کوم صحابه کرامو ښخ سول د هغوی قبرونه هم معلوم نه دي ، د بي بي خديجة الكبرى رضي الله عنها قبر هم په دغه جنت المعلاة کي دی ،د هغې قبر هم نامعلوم وو بيا په يوه زمانه کي يو بزرگ د خوب په بنياد د هغې قبر معلوم کړ او پر هغه قبر يې گونبده هم جوړه کړې

وه، مګر اوس هغه هم معلومه نه ده.

ما ته د دغه کار څخه منع کړې وي: د لته د کار څخه مراد د یزید ابن معاویه څخه وتل او د خپل خلافت دعوه ده چې حضرت عبد الله ابن زبیر رضی الله عنه کړې وه، د هغه مختصر تفصیل داد ی چې کله د حضرت امیر معاویه رضی الله عنه څخه وروسته د هغه زوی د خلافت پر تخت کښېنستی نو حضرت عبد الله ابن زبیر رضی الله عنه د هغه د پیروی او بیعت څخه انکار وکړ او د مکې مکرمې خلګو د هغه په لاس د بیعت کولو اعلان وکړ، حضرت عبد الله ابن زبیر رضی الله عنه ستر صحابي او د لوړې درجې درلودلو په وجه ډېر عزت درلود ځکه نو ډېر ژر د هغه د پیروانو او منونکو ډله پراخه سول او پر مختلفو سیمو باندې هغه ته واک تر لاسه سو، بلکه څرنګه چې تاریخ پوهانو لیکلي دي: د شام څخه تقریبا ټولو مسلمانانو هغه خلیفه ومنی، د یزید څخه وروسته د مروان ابن حکم او د هغه څخه وروسته د عبد الملک ابن مروان امارت هم هغوی ونه منی او د خپل خلافت پر دعوه باندې قائم وو، مګر عبد الملک ابن مروان د هغه پر خلاف سخته کاروایي وکړل او حجاج ابن یوسف ثقفي یې د لښکر جرار سره پر مکه باندې د حملې کولو لپاره ولیږی.

حضرت عبد الله ابن زبیر رضی الله عنه د خپلو لږ ملګرو د حجاج د لوی فوج سخته مقابله وکړل او په پای کي په شهادت ورسېدل، بدبخته حجاج د هغوی سرونه پرې کړل او مدینې منورې ته یې واستول او پاته بدنونه یې په دار وزړول، تر دې مخکي دغه لښکر پر مدینه منوره باندي حمله وکړل، هغه وخت یزید ژوندی وو، هغه لښکر چي څرنګه مدینه منوره تباه او برباد کړل او د هغه ځای خلګ یې ووژل هغه د حره پېښي په نامه سره د تاریخ په کتابو کي په تفصیل سره ذکر ده، نو حضرت عبد الله رضی الله عنه ابن عمر رضی الله عنه پر دار باندې زړېدلی د حضرت ابن زبیر رضی الله عنه د مړي مخته درېدی او د دغه دردناکه پېښو او د ظالم او فاسد خلګو د هغه ډلې پر وحشیانه کړنو باندې یې د تاسف او افسوس اظهار وکړ او حضرت ابن زبیر رضی الله عنه ته مخاطب سو او دا یې ورته وویل: ما ته د مخکي څخه منع کولې چې ته د دغه ظالمانو مقابلې ته مه راځه او د هغوی معامله الله جل جلاله پر پرېږده، مګر تا ونه منل، د حق حکمرانۍ قائمولو لپاره ستا پاکي جذبې ته د خلافت پر دعوه باندې مجبور کړلې او ته د پایلو څخه په بې پروا کېدو د هغه شتمن او مفسد حکمران پر خلاف ټینګ ولاړ وې، او په پای کې ته د زړه سوځونکې پایلې سره مخامخ سوې.

ته ډېر زیات روژې نیونکی وې: ویل کیږي چې حضرت عبد الله ابن زبیر رضی الله عنه ډېرې زیاتې روژې نیولې، داسې به هم کېدل چې پنځلس ورځې پرله پسې به یې روژې نیولې چې د طي روژې ورته ویل کیږي او پوره میاشت به یې نفلونه، تلاوت او ذکر الله کوی، د قریبانو سره یې

ښه چلن کوی، حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنه په دغه وخت کي د حضرت ابن زبیر رضي الله عنه د هغه صفتو یادونه ځکه وکړل چي حجاج هغه ته د الله جل جلاله دښمن او ظالم ویلي وه او څرګنده نه ده چي نور څه بدي خبري یې ورته کړي وې، نو حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنه ضروري وګڼل چي د حضرت عبدالله ابن زبیر رضي الله عنه هغه ښګڼې او نیکۍ بیان کړي چي په هغه کي د حجاج د پالتو او لغو خبرو تردید وسي او پر عامو خلګو څرګنده سي چي ابن زبیر رضي الله عنه د کومي درجې عابد، زاهد او د لوړي درجې مسلمان وو.

په یوه روایت کي د : (لامة خیر) الفاظ دي، یعني په اصل روایت کي خو دادي چي حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنه د حجاج ابن یوسف او د هغه د ملګرو په اړه په څرګنده الفاظو خپل دا تاثر بیان کړ چي کومه ډله حضرت عبدالله ابن زبیر رضي الله عنه ته خراب او د حق څخه بېل سوی وایي، په اصل کي هغه ډله د خپلي بدي عقیدې او خپل فاسد خیال په وجه خرابه او تباه ډله ده، چي ستا په ډول سړی خلګ په شریر او فسادي کي شمېري، مګر په یوه روایت کي دلته د خرابي او بدي ډلي پر ځای دادي چي هغه ګومره ښه ډله ده ، په دغه الفاظو کي هم د هغه تاثر اظهار مقصد دی کوم چي د اصل روایت څخه ظاهر دی، فرق یوازي دادی چي ددغه روایت مطابق حضرت ابن عمر رضي الله عنه د پېغور او تعریض طرز اختیار کړ لکه څرنګه چي په عامه توګه د یو خراب او فسادي سړي د بد ویلو لپاره وایي چي واه ته ګومره ښه یې، په خپلو کي بېلوالي راولې، مګر زیات مناسب او قریب الفهم هغه الفاظ دي کوم چي په اصل روایت کي مذکور دي.

د یهودیانو په هدیره کي وغورځوی، یعني په مکه کي اوسېدونکي یهودیان یا د دباندي څخه راغلي یهودیان چي به چیري دفن کېدل هلته حجاج د حضرت عبدالله ابن زبیر رضي الله عنه مړی وغورځوی مګر دا خبره ددې خلاف نه ده چي د حضرت عبدالله ابن زبیر رضي الله عنه تدفین په جنت المعلاة کي وسو ځکه چي د دغه صورت حال د پیل دی چي د هغه مړی د یهودیانو په هدیره کي غورځول سوی وو مګر وروسته دهغه مړی د هغه ځای څخه را پورته کړل سو او په جنت المعلاة کي دفن کړل سو، څرګنده دي وي چي اوس خو د ډېري زمانې څخه هغه ځای معلوم نه دی چي په کوم ځای کي د یهودیانو هدیره وه یا د هغوی قبرونه وه مګر په هغه زمانه کي به داسي خامخا وه چي دیهودیانو د قبرو لپاره خاص وو ، او ځکه حجاج حکم کړی وو چي د عبدالله ابن زبیر رضي الله عنه مړی د دار څخه راکښته کړل سي او دیهودیانو په هدیره کي وغورځول سي.

زما څپلۍ راوړئ او زما مخته یې کښېږدئ: دا د (اروني سبتي) معنی ده، سبتی په اصل کي د یاء په متکلم سره د سبتیه تثنیه ده او سبتیه هغه څپلۍ ته وایي چي دباغت کړل سوي او د

وېښتانو څخه پاکي سوې وي، په هغه زمانه کي اميرانو او پاچاهانو دغه ډول څپلۍ په پښو کولې.

دوه کمر بند والا ښځه، دا د ذات النطاقين معنی ده او دا د بي بي اسماء بنت ابوبکر صديق رضي الله عنهما لقب وو چي رسول الله ﷺ د يوې خاصي پيښي په وجه ورکړی وو، دا سي پېښه سوې وه چي کله رسول الله ﷺ د هجرت په وخت کي د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه سره ملګري د هغه د ځای څخه روانيدی نو بي بي اسماء رضي الله عنها د هغه دواړو لپاره ښه توښه تياره کړې وه، د توښه دان تړلو لپاره هغې رسۍ يا بل شي پيدا نه کړ نو هغې خپل کمر بند څيري کړ او هغه يې دوې ټوټې کړ، په يوه ټوټه يې توښه دان وتړی او په بلي ټوټې يې خپله ملا وتړل، دا په اصل کي د نطاق ترجمه د کمر بند پر ځای د کمر پټه کول زيات مناسب دي، په هغه زمانه کي د عربو په خلګو کي پرتوګ زيات رواج نه وو نو هغوی به د خپل لونګ سربېره د ملا پټه استعمالول چي د کار په وخت کي د لونګ خلاصېدو امکان پاته نه سي، په هر حال په دغه وخت کي بي بي اسماء رضي الله عنها چي کوم کار وکړ په دغه مناسبت سره رسول الله ﷺ هغې ته د ذوالنطاقين لقب ورکړ، په دې اعتبار دغه لقب خپله دهغې لپاره خو د فخر سبب وو چي خپل يو شی د رسول الله ﷺ په استعمال کي راولي، او ددې څخه نور لوی فضيلت هم څرګنديږي مګر ناپوه حجاج دغه لقب د هغې پر سپکاوي باندي محمول کړ چي هغه په يو داسي شي سره ملقب کړل سول چي په عامه توګه په کورو کي د کار کوونکو ښځو او دباندي د وتونکو خادمانو ښځو نښه وي.

هو، قسم په خدای زه دوه کمر بنده والا ښځه يم، ذوالنطاقين لقب د حجاج د فاسد خيال پر خلاف د بي بي اسماء رضي الله عنها لپاره د دارينو د تفاخر سبب وو ځکه هغې نه يوازي دا چي دغه لقب په فخر سره استعمالوی او د حجاج مخکي د هغې څرګنده اظهار او اعتراف هم وکړ بلکه ددې څخه وروسته هغه وجه يې هم بيان کړل چي د هغه په وجه دې ته دغه شرف تر لاسه سو، نو هغې څرګنده کړل چي ما دخپل کمر بند څخه دوه کمر بندونه جوړ کړي وه، په هغو کي د يوه په ذريعه د رسول الله ﷺ او د ابوبکر صديق رضي الله عنه خوراک په دسترخوان کي په نغښتلو سره يو لوړ ځای به مي زړوی چي د مږيانو او نورو شيانو څخه خوندي وي او دوهم کمر بند ددې لپاره وو چي د هغه څخه هيڅ يوه ښځه بې پروا کېدای نه سي، ددې مطلب خو دا کيدای سي چي د يوې ښځي تعريف او تحسين په دغه صورت کي کيږي کله چي هغه د خپل کور په پوره بوختيا او ذمه داری سره کوي، د نطاق يعني کمر بند اصل مقصد دا وو چي ښځه هغه پر خپل لونګ وتړي چي د هغې د لونګ خلاصېدو بېره نه وي، او هغه د خپل کور کار په اطمينان سره وکړي، نو بي بي اسماء رضي الله عنها دې ته اشاره وفرمايل چي کومه ښځه د خپل کور کار د کار سره مينه لري نو هغه د

کمر بند څخه بې نیازه کیدای نه سي ، دوهم مطلب دادی چي په ښځو کي د نطاق یو استعمال به ددې مقصد لپاره هم وو چي نس یې غټ نه سي لکه څرنګه چي په یوه زمانه کي د عربو په ښځو کي ددې ډېر رواج وو چي هغوی د خپل نس د هیئت سمولو لپاره د پوست کمر بند استعمالوی بلکه شتمنو ښځو به د سرو زرو کمر بند تړی ، نو بي بي اسماء رضي الله عنها دې ته اشاره وکړل چي دوهم نطاق ما ددې مقصد لپاره استعمالوی او دا یو داسي مقصد وو چي د هغه څخه هیڅ ښځه بې پروا کیدای نه سي .

او هغې ته یې هیڅ جواب ور نه کړ، دا د بي بي اسماء رضي الله عنها د حق ویني اثر وو چي د ظالم حجاج په ډول سړی د هغه د خبرو په اورېدو سره پټه خوله سو او دهغې د جواب ورکولو جرئت یې ونه کړ، نقل سوي دي چي بي بي اسماء رضي الله عنها د خپل زوی حضرت عبدالله ابن زبیر رضي الله عنه د شهادت څخه شل ورځي وروسته وفات سول، هغه وخت دهغې عمر سل کاله وو او د هغې یو غاښ هم مات سوی نه وو، علامه نووي رحمة الله عليه ددغه حدیث په تشریح کي لیکلي دي چي حضرت ابن عمر رضي الله عنه د حضرت عبدالله ابن زبیر رضي الله عنه د مړي مخته په درېدو سره هغه ته سلام وکړ، ددې څخه معلومه سول چي مړي ته سلام کول او تریو وار زیات کول مستحب دي، ددغه حدیث څخه دا هم څرګنده سول چي مړي په مخکي د هغه ښېګڼې او صفتونه بیانول چي د هغه په ذریعه هغه مشهور وو، جائز دي، ددغه حدیث څخه د حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنه ستر فضیلت او ځانګړتیا څرګندیږي چي هغه د حق ویلو څخه منع نه سو ، سره ددې چي هغه پوهیدی چي دلته زه څه وایم ددې یو یو لفظ به حجاج ظالم ته ورسیږي .

## د حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنه د خلافت څخه انکار

﴿۵۷۵۱﴾ : وَعَنْ نَافِعٍ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ اَتَاهُ رَجُلَانِ فِي فِتْنَةِ ابْنِ الزُّبَيْرِ فَقَالَا إِنَّ

د حضرت نافع رضي الله عنه څخه روایت دی چي د عبدالله بن زبیر رضي الله عنه د فتنې په ورځو کي دوه خلک عبدالله بن عمر رضي الله عنه ته راغلل ورته وه یې ویل

النَّاسَ صَنَعُوا وَأَنْتَ ابْنُ عُمَرَ وَصَاحِبُ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَا

خلکو چي څه وکړل هغه ته وینې او ته د حضرت عمر رضي الله عنه زوی او د رسول الله صلى الله عليه وسلم صحابي یې بیا

يَمْنَعُكَ أَنْ تَخْرُجَ فَقَالَ يَمْنَعُنِي أَنَّ اللّٰهَ حَرَّمَ دَمَ أَخِي قَالَا أَلَمْ يَقُلْ اللّٰهُ

کوم امر مانع دی چي ته هم وو ځې ، ددې او ریدو سره ورته عبدالله بن عمر رضي الله عنه وویل : الله جل جلاله د
یو مسلمان و رور وینه بیول زما لپاره حرام ګرځولي دي ، هغوی ورته وویل ایا الله جل جلاله داسي نه

وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ فَقَالَ ابن عمر قد قَاتَلْنَا حَتَّى لَمْ تَكُنْ فِتْنَةٌ

دي فرمايلي : (وقاتلوهم حتى لا تكون فتنة)، (د خلکو سره جنګ کوئ تر دې چي فتنه ختمه
سي)، عبد الله بن عمر رضي الله عنه ورته وویل موږ د هغه خلکو سره قتل وکړ تر دې چي فتنه ختمه سوه،

وَكَانَ الدِّينُ لِلَّهِ وَأَنْتُمْ تُرِيدُونَ أَنْ تُقَاتِلُوا حَتَّى تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ

لِغَيْرِ اللَّهِ. رواه البخاري.

او خالص دین الهي پاته سو او تاسو اوس دا غواړئ چي زه جنګ وکړم چي فتنه خپره سي او
د دین الهي پر ځای د غیر الله دین قائم سي . بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\۱۸۳، رقم: ۴۵۱۳.

**تشريح**: الله جل جلاله زما لپاره حرام ګرځولي دي: د دغه جملې په ذریعه د حضرت عبدالله ابن عمر
رضي الله عنه مقصد د دغه خبري په ارزښت او تاکید سره بیانول وو چي د ویني تویولو څخه ځان ساتل
او د مسلمانانو په منځ کي د جګړې څخه منع کول پکار دي ، دا د ځان لپاره په هر حالت کي
ضروري ګڼم او په خاصه توګه په هغه صورت کي کله چي د خلافت مسئله او د امارت خواهش
وي نو په دغه جمله کي د علي لفظ ددې مقصد لپاره استعمال سوی دی ، کنه نو ددې ضرورت
نه وو ځکه چي د مسلمان ورور وینه بیول خو د هر سړي لپاره حرام ګرځول سوي دي .

او د غیر الله دین قائم سي، په اصل کي دهغه دوو کسانو خیال دا وو چي لومړی خو
حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنه د خپل خلافت دعوه وکړي مګر که چیري هغه دې ته تیار نه وي نو
بیا کم از کم دا پکار دي چي د هغه خلکو پر خلاف توره پورته کړي کوم چي د حضرت عبدالله
ابن زبیر رضي الله عنه خلافت نه مني او دهغوی په مقابله کي د ظالمانو او نااهلو د امارت وفادار دي
مګر د حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنه خیال دا وو چي عام مسلمانان د خپل منځي اختلاف او
جګړې څخه د ژغورني لپاره داسي اقدام مناسب نه دی ځکه چي د مسلمان د مسلمان پر خلاف
توره پورته کول او هغه هم د خلافت او امارت لپاره د خپل منځي افتراق او انتشار یو داسي
صورت حال کېدو سبب ګرځېدای سي چي د اسلام نظام دین او شریعت او د مسلمانانو ملي

ژوند کمزوري کړی تر دې چي د اسلام دښمنانو ته د خپلي غلبې او واک موقع تر لاسه سي، له دې کبله حضرت عبدالله ابن عمر رضی الله عنه د حضرت ابن زبیر رضی الله عنه په اړه هم دا غوره ګڼل چي هغه دخلافت په مسئله کي جګړه او قتال پرېږدي او د یوازیوالي په اختیارولو سره خلک پر خپل حال پرېږدي.

## قبیله دوس ته دعاء

﴿۵۷۵۲﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ جَاءَ الطُّفَيْلُ بْنُ عَمْرٍو الدوسي إِلَى رسول

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي طفیل بن عمر دوسي د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کي

الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنَّ دَوْسًا قَدْ هَلَكَتْ عَصَتْ وَأَبَتْ فَادْعُ اللَّهَ

حاضر سو او عرض یې وکړ چي د دوس قبیله هلاکه سوه نافرماني یې وکړه د اطاعت څخه یې انکار وکړ تاسو د دوی لپاره ښیرا وکړئ،

عَلَيْهِمْ فظن الناس انهم يدعوا عليهم فَقَالَ اللَّهُمَّ اهْدِ دَوْسًا وَأْتِ بِهِمْ. متفق عليه.

نو د خلکو ګمان سو چي رسول الله صلی الله علیه وسلم به هغوی ته ښیرا وکړي، مګر رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: اې الله! د دوس قبیلې ته سیده لار وښیې، هغوی د مدینې په لور راولې. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۱۹۶، رقم: ۶۳۹۷، ومسلم ۱۴\۱۹۵۷، رقم: ۱۹۷ - ۲۵۲۴.

**تشریح**: حضرت طفیل ابن عمرو دوسي رضی الله عنه یو ستر صحابي دی او د اوس قبیلې سره یې تعلق درلود، او په اهل حجاز کي شمېرل کیدی، په مکه کي په اسلام مشرف سو او بیا خپلي قبیلې ته بېرته ولاړی، کله چي رسول الله صلی الله علیه وسلم مدینې ته په هجرت کولو سره راغلی نو هغه هم د خپلي قبیلې او وطن په پرېښودو سره هجرت وکړ او د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کي هغه وخت حاضر سو کله چي رسول الله صلی الله علیه وسلم په خیبر کي وو او بیا د رسول الله صلی الله علیه وسلم تر رحلت کولو پوري په مدینه منوره کي له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره وو، هغه ته د ذوالنور لقب حاصل وو، او دا لقب ځکه مشهور سوی وو چي کله رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه خپلي قبیلې ته د اسلام د تبلیغ لپاره واستوی نو هغه وویل: اې دالله رسوله! ما ته یوه داسي نښه راکړه چي د هغه په لېدو سره خلک زما تصدیق وکړي، رسول الله صلی الله علیه وسلم دعاء وفرمایل: اې الله! ده ته نور ورکړې، الله جل جلاله دعاء قبوله کړل او د

هغه د دواړو سترګو په منځ کې نور وځلېدی، او س هغه وویل: اې د الله رسوله! ما ته بېره ده چې خلک زما دغه نور پر بد شکلې باندې محمول نه کړي، ددې څخه وروسته هغه نور د هغه ځای څخه د هغه سینې ته منتقل سو، په تیاره شپه کې به د هغه د سینې دغه برخه داسې ځلېدل لکه د هغه په سینه کې چې څراغ بلیږي، حضرت طفیل رضي الله عنه خپلې قبیلې ته په رسېدو سره د اسلام په تبلیغ او دعوت کې بوخت سو، د هغه پلار رضي الله عنه هغه د تبلیغ په نتیجه کې د اسلام په دائره کې داخل سوی وو مګر د هغه مور ته د ایمان هدایت په برخه نه سو.

## د عربو سره مینه

﴿۵۷۵۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحِبُّوا الْعَرَبَ لِثَلَاثٍ لِأَنِّيْ عَرَبِيٌّ وَالْقُرْآنُ عَرَبِيٌّ وَكَلَامُ أَهْلِ الْجَنَّةِ عَرَبِيٌّ. رواه البيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د درو خبرو په سبب د عربو سره مینه کوئ: یو خو دا چې زه په عربو کې یم، دویم دا چې قرآن کریم په عربي ژبه کې دی او دریم دا چې د جنتیانو ژبه عربي ده. بیهقي

**تخریج**: البیهقي في شعب الایمان ۲\۲۳۰، رقم: ۱۶۱۰.

**تشریح**: د جنتیانو ژبه عربي ده: دلته دا خبره مفهوم کیږي چې د دوږخیانو ژبه به عربي نه وي، په هر حال د حدیث خلاصه دا ده چې عربو ته په دنیا کې او اخرت دواړو کې فضیلت تر لاسه دی، او په دغه حدیث کې د مینې کولو یوازې هغه درې اسباب بیان سول چې په دې اړه ډېر اعلی دی، کنه نو ددې څخه ماسوا نور اسباب هم سته چې د هغو په وجه د عربو سره مینه کول لازمي شی دی، دمثال په توګه دا چې عربو د شارع علیه السلام څخه مخامخ د دین او شریعت علم تر لاسه کړ او بیا هغه علم یې موږ ته راورسوی، بیا هغوی د رسول الله صلی الله علیه وسلم اقوال، افعال، عادات او معجزې خوندي کړلې، او دغه سرمایه یې موږ ته رانقل کړل، عرب په اصل کې د اسلام مرسته کوونکي او زموږ د ملي ژوند توانایي ده، هغوی د اسلام لپاره د لویو لویو طاقتونو سره جنګونه وکړل، د ځان او مال په قرباني ورکولو سره یې لوی لوی سیمې فتح کړلې، په ښارو او کلیو کې یې اسلام خپور کړ، د نړۍ په شاوخوا کې یې د دین بیرغ لوړ کړ او مسلمانانو ته چې کوم عزت او شان حاصل سو هغه د دوی د هڅو او کوښښو نتیجه ده، زموږ د ملي تاریخ ټول

عظمت او سرلوړي د دوی په وجه ده، عرب د حضرت اسماعیل علیه السلام اولاد دي، دهغوی نسل د نساني ځانګړتیاوو او ښېګڼو امین دی او نه یوازې دا چې د هغوی ژبه به جنتیانو ژبه وي بلکه په قبر کې د منکر او نکیر سوال به هم دهغوی په ژبه وي او له همدې کبله ویل سوي دي :
مَنْ اسلم فهو عربي : څوک چې د اسلام په دائره کې داخل سو نو هغه عربي دی .

==========

# بَابُ مَنَاقِبِ الصَّحَابَةِ رضي الله عنهم

## (د صحابه کرامو رضي الله عنهم د مناقبو بیان)

مناقب په اصل کې د منقبت جمع ده چې معنی یې د فضیلت ده، او فضیلت هغه ښه عادت او ځانګړتیا ته وایې چې د هغه په سبب د الله جل جلاله په نزد یا د مخلوق په نظر کې شرف او عزت تر لاسه کیږي مګر اصل اعتبار د هغه شرف او عزت دی چې د الله جل جلاله په نزد تر لاسه سي، د مخلوق په نظر کې د تر لاسه کېدونکي عزت او شرف هیڅ اعتبار نسته، مګر که چیري دغه عزت او شرف د الله جل جلاله په نزد د لوړي وسیله او ذریعه جوړیږي نو په دغه صورت کې به ددې هم اعتبار وي، کله چې دا ویل کیږي چې فلانی سړی با فضیلت او د لوړي درجې دی او دا خبره هم په ذهن کې وي چې فضیلت او لوړې مرتبې ته نسبت په هغه صورت کې معتبر دی کله چې هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه منقول وي یعني د یو چا په اړه دا ویل چې هغه د منزلت او قدر وړ دی، دا څه معنی لري، نو هغه سړي ته افضل او د لوړي درجې ویل به معتبر وي چې د هغه د فضیلت او لوړي درجې په اړه د رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد موږ ته را رسېدلی وي .

**صحابي رضي الله عنه چا ته وایي ؟** صحابي هغه مسلمان ته وایي چې د هغه د وېښې په حالت کې په خپلو سترګو سره رسول الله صلی الله علیه وسلم لیدلی وي، یا د رسول الله صلی الله علیه وسلم ملګرتیا کې پاته سي او د ایمان په حالت کې پر دین او اسلام باندې د هغه خاتمه وسي، که څه هم په دغه منځ کې ارتداد رامنځته سوی وي لکه د اشعب یا د اشعث بن قیس رضي الله عنه په اړه چې ویل کیږي، او ځینو حضراتو د صحابي کېدو لپاره اوږده ملګرتیا شرط ګرځولې ده یعني د هغوی په نزد صحابي هغه مسلمان ته وایي چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په ملګرتیا کې تر ډېره وخته پوري پاته سوی وي، هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه علم تر لاسه کړی وي او له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره یې په غزاوو کې ګډون کړی وي، دغه حضراتو اوږد وخت کم از کم شپږ میاشتې بیان کړي دي مګر ددغه شپږو میاشتو د

تعین دلیل د هغوی سره نسته، بیا هم په دې کي شک نسته چي چا زیات وخت د رسول الله ﷺ خدمت او ملگرتیا کي تېر کړ او له رسول الله ﷺ سره یې په جهاد کي گډون وکړ د هغه مرتبه د هغه کسانو په نسبت لوړه ده چا ته چي د زیات وخت د خدمت او ملگرتیا موقع په لاس نه ورغلل، څوک چي له رسول الله ﷺ په یوې غزا کي گډون ونه کړ، چا چي رسول الله ﷺ محض د لیري څخه ولیدی، د رسول الله ﷺ سره د خبرو کولو په سعادت ډېر لږ برخمن سو یا چا چي د خپل ماشومتوب په زمانه کي رسول الله ﷺ ولیدی، که څه هم د محض صحبت شرف ټولو ته تر لاسه دی.

**د صحابي رضي الله عنه د پېژندو ذریعه:** څوک چي صحابي دی د هغه صحابي کېدل د تواتر په ذریعه پېژندل کیږي لکه د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه او حضرت عمر فاروق رضي الله عنه صحابي کېدل په تواتر سره ثابت دي، یا د خبر مشهور په ذریعه پېژندل کیږي، یا بل صحابي د خپل غیر په اړه بیان وکړي چي هغه صحابي دی یا خپله صحابي د خپل ځان په اړه ووایي چي زه صحابي یم، په شرط د دې چي هغه روایت د معیار پر لړۍ باندي روان وي او عادل وي، دا خبره هم باید په ذهن کي وي چي په کتاب، سنت او اجماع سره په څرگنده ثابته ده چي ټول صحابه کرام عادل دي.

**دصحابه کرامو رضي الله عنهم فضیلت:** په شرح السنه کي دا بو منصور بغدادي رحمة الله علیه په حواله سره لیکلي دي چي زموږ د ټولو علماؤ پر دې اجماع ده چي په صحابه کرامو کي تر ټولو افضل خلفاء اربعه دي او په هغوی کي هم د خلافت د ترتیب اعتبار دی یعني تر ټولو افضل حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه دی، د هغه څخه وروسته حضرت عمر فاروق رضي الله عنه، دهغه څخه وروسته حضرت عثمان غني رضي الله عنه او دهغه څخه وروسته حضرت علي رضي الله عنه، د خلفاء اربعه څخه وروسته تر ټولو افضل هغه ټول صحابه کرام دي چي هغوی ته عشره مبشره ویل کیږي، د هغوی څخه وروسته تر ټولو افضل هغه صحابه کرام دي چي د بدر په غزا کي یې گډون وکړ، دهغوی څخه وروسته تر ټولو افضل هغه صحابه کرام دي چي د اُحد په غزا کي یې گډون کړی وو، د هغوی څخه وروسته په بیعت رضوان کي گډون کونکي صحابه کرام افضل دي، د هغوی څخه وروسته هغه انصار صحابه کرام چي هغوی دوه واره د بیعة العقبة الاولی او بیعة العقبة الثانیه په وخت کي مکې ته په راتلو سره د رسول الله ﷺ سره بیعت کړی وو، همدارنگه هغه صحابهٔ کرام چي هغوی ته سابقون الاولون ویل کیږي، یعني هغوی په اسلام منلو کي مخته والی وکړ، او د اسلام په پیل کي مسلمانان سوي دي، او هغوی ته د دواړو قبلو یعني بیت المقدس او کعبې شریفي په خوا د لمانځه کولو موقع تر لاسه سول، دغه صحابه کرام تر هغه صحابه کرامو افضل

دي چي هغوی وروسته د اسلام په دائره کي داخل سول.

د بي بي عائشې او بي بي خديجې رضي الله عنهما په اړه د علماؤ اختلاف دی چي کومه يوه تر بلي افضله ده، همدارنګه د بي بي عائشې او بي بي فاطمې رضي الله عنهما په اړه هم اختلاف دی، د هغوی په اړه خراب فکر کول او د هغوی په شان کي داسي خبره کول چي د صحابت د مرتبې خلاف وي داسي منع دي لکه څرنګه چي د نورو صحابه کرامو په اړه منع ده، پاته سوه دا خبره چي د ځينو صحابه کرامو په منځ کي چي کومه جګړه وسول يا د جګړې نوبت راغلی نو پر دې باندي بحث او تمحيص کول او د هغه يوه نتيجه را ايستل زموږ مقام نه دی، هغه ټول معاملات د خپل اجتهاد سره تعلق لري په هغوی کي هيڅ صحابي هم داسي نه وو چي هغه په دغه معاملاتو کي د نفساني غوښتنو يا دنيوي مقاصدو لپاره ګډون کړی وي، هغه ټول صحابه کرام د خپل خپل موقف صحيح ګڼلو عقيده درلودل او د خپل منځي جګړو تاويل يې کوی، هغه صحابه کرامو ته مجتهدانه مقام او مرتبه تر لاسه وه، په مسائلو کي د يو بل سره د اختلاف درلودلو حق يې درلود، ځکه د هغوی ددغه جګړو په وجه په هغوی کي هيڅوک به د لوی عادل له ډلي څخه وتلی نه وي، او نه د هغوی حيثيت او د هغوی په مرتبه کي څه نقص راځي، لنډه دا چي د اهل سنت والجماعت مذهب دادی چي دهغوی په اړه د ژبي خلاصولو پر وخت احتياط کول پکار دي د هغوی په حق کي د ژبي څخه هغه خبره را ايستل پکار دي چي د تعريف او خير وي که په هغوی کي د يو چا په اړه داسي خبره منقول وي چي په ظاهره د تعريف خلاف وي نو دهغه څخه دي صرف نظر وکړل سي، ددين او ايمان سلامتيا په همدې کي ده.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### اصحابو ته بد مه وایاست

﴿۵۷۵۴﴾: عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَسُبُّوا أَصْحَابِي فَلَوْ أَنَّ أَحَدَكُمْ أَنْفَقَ مِثْلَ أُحُدٍ ذَهَبًا مَا بَلَغَ مُدَّ أَحَدِهِمْ وَلَا نَصِيفَهُ. متفق عليه.

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: زما صحابه کرامو ته بد مه واياست ځکه که په تاسو کي څوک د غره برابر سره زر خرڅ کړي نو د صحابي د يو مد يا

نيم مد برابر هم ثواب نه سي تر لاسه کولای (مد يو پيمانه ده چي د سير په اندازه اوربشي پکښي راځي) . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۲۱، رقم: ۳۶۷۳، ومسلم۴\۱۹۶۷، رقم: ۲۲۲- ۲۵۴۱.

**تشريح**: د (تاسو) مخاطب خپله په صحابه کرامو کي ځيني حضرات وه، لکه چي په يوه روايت کي د دغه ارشاد دا بيان سوی دی چي د حضرت خالد ابن وليد رضي الله عنه او حضرت عبدالرحمن ابن عوف رضي الله عنه په منځ کي کومه جګړه رامنځته سوه او حضرت خالد ابن وليد رضي الله عنه ، حضرت عبدالرحمن ابن عوف رضي الله عنه ته بد او رد وويل، هغه وخت رسول الله ﷺ ، حضرت خالد ابن وليد رضي الله عنه او نورو ته په خطاب کولو سره وفرمايل : زما صحابوو ته بد مه وايه، نو زما د صحابوو څخه هغه خاص صحابه مراد دي چي د هغه مخاطب صحابي يعني حضرت خالد ابن وليد رضي الله عنه او نورو څخه يې مخکي اسلام راوړی وو ، او دا هم کيدای سي چي په دغه حديث کي د (تاسو) په ذريعه ټول امت مخاطب وي او نور نبوت د مخکي څخه دا ليدلي وي چي په راتلونکو خلګو کي به داسي خلګ هم پيدا سي چي زما صحابوو ته به بد وايي، د هغوی په شان کي به بې ادبي کوي، لکه څرنګه چي د روافضو او خوارجو په صورت کي مختلفي ډلي د صحابه کرامو په اړه بد وايي ځکه رسول الله ﷺ د مسلمانانو په راتلونکو پيړيو کي د صحابه کرامو د احترام ښداره کولو لپاره حکم وکړ چي هيڅوک دي زما صحابي ته بد نه وايي .

مُد په هغه زمانه کي د يوې پيمانې نوم وو چي په هغه کي د سېر په اندازه اوربشي او نوره غله راتلل، د حديث د دغه برخي مراد د هغه صحابوو د لوړي درجې تعين کول دي چي د هغه خلګو د کمال اخلاص په وجه د هغه لږ نيک عمل د خپل وروستنيو پر لوی عمل باندي درون‍د دي، د مثال په توګه که په صحابه کرامو کي يو څوک سېر يا نيم سېر اوربشي يا بل شی د الله جل جلاله په لاره کي مصرف کړي نو په دغه عمل چي هغه ته څومره ثواب تر لاسه کيږي هغومره ثواب د هغوی څخه وروسته راتلونکو ته په هغه صورت کي نه تر لاسه کيږي که څه هم هغوی د الله جل جلاله په لاره کي د اُحد د غره په اندازه سره زر مصرف کړي ، د دې وجه دا ده چي د اخلاص او صفا نيت چي کوم کمال په هغوی کي وو هغه په وروسته خلګو کي تر لاسه کيدای نه سي .

دوهم دا چي د هغوی مال طيب او پاک وو ، او د هغوی خپلو اړتياوو د دې خبري تقاضا کول چي د هغوی سره څه دي په خپل ذاتي مصرف کي يې مصرف کړي مګر د دې سربېره د خپل توان مطابق هغوی د الله جل جلاله په لاره کي په پراخ زړه سره مصرفول، او خپل ټولي اړتياوي يې تر شا

پرېښودلې، دا خو د هغوی د الله ﷻ په لاره کې د اجر او ثواب ذکر دی، پر دې باندې په قیاس کولو سره اندازه لګېږي چې هغوی په سختو حالاتو کې د الله ﷻ د دين ببرغ لوړوی او د الله ﷻ د پیغام رسولو لپاره یې د ریاضت او مجاهدې سخت پړاوونه پر ځان وګالل، تر دې چې د خپلو ځانو قرباني يې وړاندې کړل، له دې کبله هغوی ته به کوم اجر او ثواب تر لاسه سوی وي او د هغوی درجې او مرتبې به څومره لوړې وي، د حدیث د لومړنۍ برخې څخه که څه هم دا معلومېږي چې دغه ارشاد (زما صحابوو ته بد مه وایاست) د خاصو صحابه کرامو په اړه دی مګر د دې څخه دا خبره په هر حال ثابتېږي چې د غیر صحابي، صحابي ته بد ویل په طریقه اولی منع دي ځکه چې د حدیث اصل مقصد د هغه خلګو په اړه د بدویلو څخه د منع تلقین او هدایت کول دي چا ته چې د اسلام په منلو کې د سبقت فضیلت او غوره والي تر لاسه دی، او د خپل دغه فضیلت او غوره والي په وجه د وروسته کسانو لپاره یقینا واجب التعظیم دي، علي ابن حرب طائي او خثمه ابن سلمان رحمهما الله د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه نقل کړي دي:

ولاتسبوا اصحاب محمد فلمقام احدهم ساعة خير من عمل احدكم عمره.

ژباړه: د محمد ﷺ اصحابو ته مه وایاست، (په حقیقت کې هغوی ته د خپلو عبادتونو) دا مقام تر لاسه دی چې د هغوی د یوه ساعت نیک عمل ستاسو د ټول عمر د نیک عمل څخه غوره دی.

عقیلي رحمة الله علیه په ضعفا کې نقل کړي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل:

ان الله اختارلي واختار لي اصحابا وانصارا واصحارا وسياتي قوم يسبونهم ويستنقصونهم فلا تجالسوهم ولاتشاربوهم ولاتواكلوهم ولاتناكحوهم.

ژباړه: بېله شکه الله ﷻ زه ټاکلی یم او زما لپاره یې زما اصحاب، زما انصار او زما قریبان ټاکلي دي، په یاد ولرئ ډېر ژر به داسي خلګ پیدا سي چې زما اصحابو ته به بد وایي او په هغوی کې به نقص راباسي نو تاسو د هغو خلګو سره تعلق مه اختیاروئ، د هغوی سره خوراک او څښاک مه کوئ او د هغوی سره ودونه مه کوئ.

**صحابوو ته د بدویونکي په اړه شرعي حکم**: د مسلم په شرح کې لیکلي دي: باید پوه سو چې صحابه کرامو رضي الله عنهم ته بد ویل حرام دي او د لویو ګناهو څخه دي، زموږ او د جمهورو علماؤ دا مذهب دی چې څوک یو صحابي رضي الله عنه ته بد ووایي هغه ته دې سزا ورکړل سي، او ځینو مالکیه وو لیکلي دي چې هغه دې قتل کړل سي، همدارنګه خبره طیبي رحمة الله علیه هم لیکلې ده او قاضي عیاض رحمة الله علیه ویلي دي چې په صحابه کرامو کې یو چا ته بد ویل لویه ګناه ده او زموږ ځینو علماؤ صراحت کړی دی چې کوم څوک شیخینو (یعني حضرت ابوبکر صدیق او حضرت

عمر فاروق رضي الله عنهما) ته بد ووايي نو هغه د وژلو وړ دی، په مشهور كتاب، الاشباه والنظائر په كتاب السير كي ليكلي دي : كوم كافر چي د خپل كفر څخه توبه وكړي هغه لره د دنيا او آخرت معافي ده مګر كوم خلګ چي په دې وجه كافران سوي دي چي هغوی نبي ته بد ويلي دي يا شيخينو ته يا په هغوی دواړو كي يوه ته بد ويلي دي يا د جادو مرتكب سوی وي او بيا د توبې كولو څخه مخكي ونيول سي اوس كه چيري هغه توبه كوي نو د هغوی توبه به د منلو وړ نه وي او هغوی ته به معافي نه كيږي، همدارنګه د اشباه مؤلف علامه زين ابن نجيم داهم ليكلي دي چي شيخينو رضي الله عنهما ته بد ويل يا پر هغوی لعنت كول كفر دی او كوم څوک چي حضرت علي رضي الله عنه ته پر شيخينو رضي الله عنهما فضيلت وركړي نو هغه مبتدع دی، د مناقب په كردري كي ليكلي دي : كه چيري هغه سړی چي پر شيخينو رضي الله عنهما باندي د حضرت علي رضي الله عنه د فضيلت قائل وي او د دواړو يعني شيخينو رضي الله عنهما د خلافت منكر وي نو هغه ته به هم كافر ويل كيږي، په دې سبب چي هغه د دغه سترو صحابه كرامو سره بغض او عناد وكړ، چي د هغوی سره د رسول الله صلی الله علیه وسلم د زړه مينه وه، مګر كه چيري دا صورت وي چي يو سړی نه خو پر شيخينو رضي الله عنهما باندي د حضرت علي رضي الله عنه د فضيلت قائل وي ، نه د شيخينو رضي الله عنهما د خلافت منكر وي او نه هغه د دواړو سره بغض او عناد لري او نه هغوی ته بد وايي مګر د شيخينو رضي الله عنهما په نسبت د حضرت علي رضي الله عنه سره زياته مينه لري نو هغه به يوازي په دې وجه ماخوذ نه وي ، په دې اړه د هغه دواړو يعني د حضرت ابوبكر صديق او حضرت عمر رضي الله عنهما د تخصيص وجه كيداې سي داوي چي د هغه دواړو په فضيلت كي د رسول الله صلی الله علیه وسلم كوم حديثونه چي په خاصه توګه منقول دي هغسي د بل صحابي په اړه منقول نه دي، لكه څرنګه چي د راتلونكي باب د نقل سوو حديثو څخه څرګنديږي، يا د تخصيص وجه داده چي د هغه دواړو پر خلافت د مسلمانانو پوره اجماع وه ، دهغوی قيادت او مشري د هيچا له خوا رد سوې نه ده ، ددې پر خلاف د حضرت عثمان، حضرت علي، حضرت معاويه او نورو خلفاؤ رضي الله عنهم پر خلافت باندي دومره اجماع نه وه بلكه په هغوی كي د هر يوه په زمانه كي د بغاوت او خروج عمل ظاهر سو .

## د ابوبكر صديق رضي الله عنه د خلافت څخه انكار كوونكی د اسلام څخه وتلی دی:

حضرت شاه عبدالعزيز رحمة الله عليه ليكلي دي: په دې كي هيڅ شک نسته چي د اماميه ډلي خلګ د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه د خلافت منكر دي او د فقهي په كتابو كي ليكلي دي چي كوم څوک د ابوبكر صديق رضي الله عنه د خلافت څخه انكار وكړي نو هغه د اجماع قطعي منكر ګرځول كيږي او د اجماع قطعي منكر كافر كيږي لكه چي په فتاوی عالمګيريه كي دي :

الرافضي اذا کان یسب الشیخین ویلعنهما العیاذ باالله فهو کافر وان کان یفضل علیا کرم الله تعالی وجهه علی ابي بکر لایکون کافرا لکنه مبتدع ولو قذف عائشة رضي الله عنها کفر باالله.

ژباړه: او رافضي که شیخینو رضي الله عنهما ته بد ووایي او العیاذ باالله، پر هغوی لعنت ووایي نو هغه کافر دی او که حضرت علي رضي الله عنه ته پر حضرت ابوبکر رضي الله عنه فضیلت ورکړي نو کافر خو نه دی مګر مبتدع ګرځول کیږي او که څوک د بي بي عائشې رضي الله عنها پر پاک لمنۍ تهمت ولګوي نو الله جل جلاله چې د بي بي عائشې رضي الله عنها د پاک لمنۍ تصدیق په قرآن کریم کې کړی دی د هغه څخه به منکر وي. په فتاوی عالمګیري کې داسې دي:

من انکر امامة ابي بکر الصدیق فهو کافر علی قول بعضهم وقال بعضهم هو مبتدع ولیس کافر والصحیح انه کافر کذالک من انکر خلافة عمر في اصح الاقوال ویجب اکفار الروافض في قولهم برجعة الاموات الی الدنیا وتناسخ الارواح.

ژباړه: کوم څوک چې د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د امامت کبری څخه انکار وکړي نو هغه د ځینو په نزد کافر دی او د ځینو په نزد مبتدع ګرځول کیږي او هغه ته به کافر نه وایو، مګر صحیح خبره داده چې هغه کافر دی، همدارنګه د صحیح قول مطابق هغه سړی هم کافر کیږي چې د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت څخه انکار وکړي او رافضیان ځکه کافر ګرځول واجب دي چې هغوی د مړو دنیا ته بېرته راتللو او د تناسخ ارواح قائل دي.

**د اسلام څخه د وتلو دلیلونه** : سوال پیدا کیږي چې د امامیه ډلې خلک (یا روافض او شیعه ګان) که صحابه کرامو ته په خاصه توګه شیخین رضي الله عنهما ته بد ووایي یا د هغوی د خلافت منکر وي ددې په وجه هغوی په کوم دلیل سره کافران ګرځول کیږي، نو باید پوه سو چې دهغوی د کفر ډېر دلائل او براهین دي، لومړۍ خبره چې صحابه کرامو په اصل کې دوحي حاملان، د قرآن راویان او ناقلان دین او شریعت دي، څوک چې د صحابه کرامو د حقانیت او صداقت منکر وي نو څرنګه کیدای سي چې د قرآن کریم او نورو ایمانیاتو سره د هغه ایماني تعلق قائم وي او کله چې د قرآن کریم او نورو سره د هغه ایماني تعلق قائم نه وي نو هغه ته به مؤمن کوم ناپوه وایي، دوهم دا چې ددغه صحابه کرامو د حقانیت، صداقت او فضیلت شاهد خپله قرآن کریم دی، د قرآن کریم منکر هیڅکله مؤمن نه دی، بل دا چې هغه حدیثونه چې په هغو کې د حضرت علي رضي الله عنه څخه پرته د درو خلفاء راشده فضائل او مناقب هم منقول دي د هغو شمېر ډېر زیات دی او هغه حدیثونه د ډېرو طریقو او زیاتوب په سبب متواتر بالمعنی ګرځول سوي دي نو ددغه حدیثونو او روایتونو مفهوم او معنی او مدلول او مضمون څخه انکار د کفر په ډله کې

راځي او دا خبره بايد په ذهن کي وي چي ددغه درجې د حديثو د استناد او اعتبار څخه په مجتهدينو امامانو کي هيچا هم اختلاف نه دی کړی بلکه حضرت امام اعظم ابوحنيفة رحمة الله عليه چي په مجتهدينو امامانو کي ستر مقام لري، خبر واحد ته هم پر قياس باندي ترجيح ورکوي تر دې چي د صحابه کرامو اقوالو ته هم، نو څه چي متواتر بالمعنی حيثيت لرونکي احاديث.

راځئ! تر ټولو مخکي قرآن کريم وګورو چي د الله جل جلاله د کلام څخه موږ ته د صحابه کرامو په اړه، او صحابه کرامو يا د رسول الله صلى الله عليه وسلم يو صحابي ته د بد ويونکو او لعنت کوونکو په اړه څه لارښوونه تر لاسه کيږي:

۱: الله جل جلاله د صحابوو څخه راضي کېدل او خوشحاله کېدل بيان کړي دي لکه څرنګه چي په دغه آيت کريمه کي راغلي دي:

لَقَدْ رَضِيَ اللّٰهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ

ژباړه: بېله شکه الله د هغه مسلمانانو څخه راضي او خوشحاله سو کله چي د دغه کسانو ستاسو سره د درختي لاندي بيعت کوی.

په يو بل ځای کي داسي فرمايي:

وَالسَّابِقُونَ الأَوَّلُونَ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالأَنصَارِ وَالَّذِينَ اتَّبَعُوهُم بِإِحْسَانٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُواْ عَنْهُ

ژباړه: او کومو مهاجرينو او انصارو چي د ايمان په راوړلو کي تر ټولو سبقت کړی دی (او په پاته امت کي چي) څومره خلګ په اخلاص سره دهغوی پيروان دي، الله جل جلاله د هغوی ټولو څخه راضي او خوشحاله سو.

نو الله جل جلاله په خپل کتاب کي د کومو خلګو تعريف وکړ، د چا څخه چي يې خپله رضا او خوشحالي څرګنده کړل او د چا چي يې لوړه درجه او مقام وښودی، پر هغوی دغه خلګ (روافض او شيعه ګان) لعنت کوي بلکه هغوی غاصب او کافر ګڼي، په دغه دواړو خبرو کي بالکل تضاد دی نو دا خلګ هغه صحابه کرامو ته په بد ويلو سره او پر هغوی په لعنت کولو سره د قرآن کريم مخالفت کوي او د قرآن کريم مخالفت کوونکي کافر دی ځکه هغوی د اسلام څخه خارج کړل سول.

۲: د خلفاء راشدينو خلافت د قرآن کريم څخه ثابت دی په دې توګه چي فرمايل سوي دي:

وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنكُمْ وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَيَسْتَخْلِفَنَّهُم فِي الأَرْضِ

ژباړه: اې مؤمنانو! په تاسو کي چي کومو خلګو ايمان راوړ او نيک عمل يې وکړ د هغوی سره الله ﷻ وعده کوي چي هغوی ته به د مځکي پر مخ اقتدار او حکومت ورکړي.

مستندو او معتبرو مفسرينو وضاحت کړی دی چي دغه آيت د خلفاء راشدينو پر خلافت باندي مبني د صداقت او صحت کېدو څرګند دليل دی چي په آيت کي د ذکر سوې وعدې مطابق کومو خلګو ته چي پر مځکه باندي حکومت او اقتدار په برخه سو او د دغه آيت مطابق د ايمان او عمل صالح خاوندان وه هغوی همدغه خلفاء راشدين دي کوم خلګ چي د دوی خلافت صحيح او پر حق نه مني هغوی د قرآن کريم په ترديد او تغليط کولو په سبب د ايمان څخه خارج ګرځول کيږي ځکه چي په دغه آيت کي مخکي دا هم څرګنده سوې ده چي: من کفر ذلک فاولئک هم الفاسقون، چا چي کفر وکړ نو هغه فاسقان دي او د قرآن کريم په اصطلاح کي د فاسق څخه مراد فاسق کامل دی او فاسق کامل کافر ته وايي ځکه هغوی فاسقان دي، ددې مطلب دادی چي هغوی کافران دي، ددې خبري دليل چي د قرآن په اصطلاح کي د فاسق څخه مراد فاسق کامل دی، دغه آيت دی:

وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَا أَنزَلَ اللّٰهُ فَأُولَـٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ

ژباړه: او کوم څوک چي د الله ﷻ د نازل سوي حکم مطابق عمل ونه کړي نو داسي خلګ بالکل فاسقان (يعني کافران) دي.

۳: قرآن کريم صحابه کرامو ته صادق يعني رېښتوني ويلي دي لکه څرنګه چي په دغه آيت کريمه کي ذکر سوي دي:

لِلْفُقَرَاءِ الْمُهَاجِرِينَ الَّذِينَ أُخْرِجُوا مِن دِيَارِهِمْ وَأَمْوَالِهِمْ يَبْتَغُونَ فَضْلاً مِّنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانًا وَيَنصُرُونَ اللّٰهَ وَرَسُولَهُ أُولَئِكَ هُمُ الصَّادِقُونَ

ژباړه: او دهغه اړو مهاجرينو (په خاصه توګه) حق دی کوم چي د خپلو کورو څخه او د خپلو مالو څخه (په زور او ظلم) بېل کړل سول، هغوی دا لله ﷻ د فضل (يعني جنت) او رضا غوښتونکي دي او هغوی د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ (د دين) مرسته کوي او همدغه کسان رېښتوني دي.

ټولو صحابه کرامو به حضرت صديق اکبر رضي الله عنه ته په يا خليفه الله، ويلو سره مخاطب کوی

مګر شیعه هغوی ته کاذب یعني دروا غجن وایي، څرګنده ده چي د صادق او کاذب په منځ کي څرګند فرق دی کوم څوک چي هغوی ته کاذب وایي هغه په اصل کي د قرآن کریم تردید او مخالفت کوي او که دا کفر نه وي نو څه دي ؟
۴: صحابه کرام کامیاب دي، او د هغوی کامیاب کېدل د قرآن کریم د نص څخه ثابت دي چي دهغئ په حق کي (اولئک هم المفلحون) او هم دغه خلګ کامیاب دي، فرمایل سوي دي، نو کوم خلګ چي د دغه نص خلاف هغوی ته دا وایي چي اولئک هم الخاسرون، دغه خلګ ناکام او تاوانیان دي، نو د قرآن کریم دغه مخالفینو ته د اسلام څخه وتلي څرنګه نه ویل کیږي.
۵: الله ﷻ په ډېرو ځایو کي په خپل کلام کي د صحابه کرامو ښېګڼې بیان کړي دي او ځای پر ځای یې تعریف او توصیف سره د دوی ذکر کړی دی د مثال په توګه یو ځای ارشاد دی :

مُّحَمَّدٌ رَّسُولُ اللَّهِ وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ تَرَاهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِّنَ اللَّهِ وَرِضْوَانًا سِيمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِم مِّنْ أَثَرِ السُّجُودِ ذَٰلِكَ مَثَلُهُمْ فِي التَّوْرَاةِ وَمَثَلُهُمْ فِي الْإِنجِيلِ كَزَرْعٍ أَخْرَجَ شَطْأَهُ فَآزَرَهُ فَاسْتَغْلَظَ فَاسْتَوَىٰ عَلَىٰ سُوقِهِ يُعْجِبُ الزُّرَّاعَ لِيَغِيظَ بِهِمُ الْكُفَّارَ وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ مِنْهُم مَّغْفِرَةً وَأَجْرًا عَظِيمًا.

ژباړه: محمد (ﷺ) د الله ﷻ رسول دی او کوم خلګ چي د دوی ملګري دي هغوی د کافرانو په مقابله کي تېز او په خپلو کي مهربان دي ، اې مخاطب! ته به دوی وینئ چي کله رکوع کوي او کله سجده کوي ، د الله ﷻ فضل او رضا تر لاسه کولو کي لګیدلي دي چي د هغه آثار د سجدې د تاثیر په وجه د هغوی پر مخونو ښکاره دي، د دوی دغه اوصاف په تورات کي دي او په انجیل کي د دوی وصف دادی چي څرنګه کښت خپل تیغ راباسي بیا یې قوي کړي بیا هغه نوره غټه سي بیا پر خپل زور ودریږي چي کښت کوونکو ته ښه معلومیږي چي په دې سره کافرانو ته غصه ورسي ، الله ﷻ د دغه صحابوو سره چي ایمان یې راوړی دی او نیک کارونه کوي د مغفرت او اجر عظیم وعده کړې ده .

نو د داسي خلګو په اړه څه ویل کیدای سي چي د قرآن کریم د دومره ستري شاهدۍ سربېره صحابه رسول ته بد وایي او هغوی ملعون ګرځوي او په دغه آیت کي د صحابه کرامو چي کوم وصف بیان سوی دی چي هغوی د کفارو په مقابله کي تېز او سخت دي مګر په خپلو کي نرم او مهربان دي د دې څخه ثابته سول چي کوم څوک صحابوو ته په خپلو کي بې میني او بې مهربانه

او د یو بل سره د ښمني کوونکي ګڼي (لکه چي د شیعه ګانو وینا ده) نو هغوی د قرآن کریم منکر دي ، همدارنګه کوم څوک چي د صحابوو سره بغض او حسد لري او دهغوی په اړه په غضب کي اخته وي نو خپله پر هغه باندي د کفر اطلاق مذکور دی ځکه د (لیغیظ بهم الکفار) څخه دا مطلب څرګندیږي چي د صحابوو په اړه د غیظ او غضب اظهار او هغوی ته غصه کېدل د کافرانو کار دی، د دغه آیت څخه د هغو خلګو تردید هم کیږي چي وایي چي صحابه د رسول الله ﷺ په زمانه کي که څه هم د ښه عقیدو او اعمالو خاوندان وه مګر د رسول الله ﷺ دوصال څخه وروسته بې دینه سول ، څرګنده ده چي د الله ﷻ له خوا د مغفرت او اجر عظیم وعده د هغه کسانو لپاره وي چي تر مرګه پوري پر ایمان او عمل صالح قائم وي چي هغوی ته تر آخري وخت پوري د ایمان او عمل صالح توفیق تر لاسه کیږي، اوس که څوک د هغوی په اړه داسي خبره کوي نو نه یوازي دا چي هغه د نص قرآن خلاف خبره کوي بلکه العیاذ بالله، الله ﷻ ته د جهل او بې علمی نسبت هم کوي .

۶: کومو کسانو چي مخلفین اعراب (وروسته پاته کېدونکي صحرایان) د جهاد لپاره راوبلل ، هغه خلیفه اول حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه دی ، پر دې خبره نه یوازي دا چي د ټولو اهل سنت اتفاق دی بلکه خپله شیعه ګانو ته هم د انکار او اختلاف ګنجائش نسته، د مخلفین اعراب په اړه قرآن کریم داسي فرمایلي دي :

قُل لِّلْمُخَلَّفِينَ مِنَ الْأَعْرَابِ سَتُدْعَوْنَ إِلَىٰ قَوْمٍ أُولِي بَأْسٍ شَدِيدٍ تُقَاتِلُونَهُمْ أَوْ يُسْلِمُونَ فَإِن تُطِيعُوا يُؤْتِكُمُ اللَّهُ أَجْرًا حَسَنًا وَإِن تَتَوَلَّوْا كَمَا تَوَلَّيْتُم مِّن قَبْلُ يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا أَلِيمًا

ژباړه: تاسو هغه وروسته پاته کېدونکي صحرانیانو ته ووایاست چي ډېر ژر به تاسو له داسي خلګو سره (د جګړې کولو) په لور وبلل سئ چي سخته جګړه کوونکي به وي چي یا به د هغوی سره جګړه کوئ یا هغوی مسلمانان سي، که تاسو پیروي کوئ نو تاسو ته به الله ﷻ ښکه بدله درکړي او که تاسو مخ اړوئ لکه چي تر دې مخکي مو سرغړونه کړې ده نو دردناک عذاب به درکړي .

په دغه آیت کي د ذکر سوي وړاند ویني مطابق هغه مخلفین اعراب د اسلام د دښمنانو مقابلې ته د جنګ لپاره حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د خپل خلافت په زمانه کي وبلل ، په دې اعتبار د دغه آیت څخه نه یوازي دا چي د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه خلافت ثابتیږي لکه څرنګه چي ابن ابي حاتم، ابن قتیبه، شیخ ابوالحسن او امام ابوالعباس رحمهم الله او نورو هم وضاحت کړی

دی بلکه دا خبره هم ثابتیږي چي د جهاد لپاره د هغه د بلني څخه سرغړونه کوونکي ته دردناک عذاب ورکړل کیږي بلکه د کوم چا په اړه چي د قرآن کریم دوه مره لویه خبره ثابتیږي پر هغه لعنت کوونکو او هغه ته د کافر ویونکو لپاره د خپل حشر څخه بېرېدل پکار دي .

۷: ددغه صحابه کرامو جنتي کېدل د نصوص قطعیه څخه ثابت دي لکه چي په قران کریم کي الله ﷻ داسي فرمایلي دي :

لَا يَسْتَوِي مِنكُم مَّنْ أَنفَقَ مِن قَبْلِ الْفَتْحِ وَقَاتَلَ أُوْلَئِكَ أَعْظَمُ دَرَجَةً مِّنَ الَّذِينَ أَنفَقُوا مِن بَعْدُ وَقَاتَلُوا وَكُلًّا وَعَدَ اللَّهُ الْحُسْنَى وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ .

ژباړه: په تاسو کي چي کومو کسانو د مکې د فتح څخه مخکي (د الله ﷻ په لاره کي) مصرف کړی دی او جګړه یې کړې ده، برابر نه دي د هغه خلګو سره په درجه کي، د هغه کسانو څخه لوی دي چا چي د مکې د فتح څخه وروسته مصرف وکړ او جګړه یې وکړل او الله ﷻ د نیکۍ وعده د ټولو سره کړې ده ، نو ددغه صحابه کرامو د جنتي کېدو څخه انکار کول د نصوص څخه انکار کوي او دا کفر دی .

۸: الله ﷻ د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه په شان کي داسي فرمایلي دي :

ثَانِيَ اثْنَيْنِ إِذْ هُمَا فِي الْغَارِ إِذْ يَقُولُ لِصَاحِبِهِ لَا تَحْزَنْ إِنَّ اللَّهَ مَعَنَا .

ژباړه: (د مکې څخه مدینې منورې ته د هجرت په وخت کي) په دوو کسانو کي یو رسول الله ﷺ کله چي دواړه د ثور په غار کي وه، کله چي رسول الله ﷺ خپل ملګري ته وفرمایل: ته فکر مه کوه ، یقینا الله ﷻ زموږ سره دی .

الله ﷻ په خپل کلام کي د کوم کس یادونه چي د خپل رسول په ملګري او قرباني په حیثیت سره وکړل هغه د بد ویونکو پایله به څه وي ددې اندازه خپله لګول پکار دي .

۹: د قرآن کریم دغه آیت کریمه :

وَلَا يَأْتَلِ أُوْلُوا الْفَضْلِ مِنكُمْ وَالسَّعَةِ .

ژباړه: او کوم خلک چي په تاسو کي (دیني) بزرګي والا او (دنیاوي) پراخي والا دی .

په دغه آیت کریمه کي چي کوم ذات ته اشاره کول مقصد ده هغه د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه ذات مبارک دی لکه څرنګه چي محققو مفسرینو او د اسلام علماؤ وضاحت کړی دی نو د هغوی د فضل څخه انکار کول د قرآن کریم په ډاګه رد کول دي .

۱۰: د الله ﷻ ارشاد دی :

وَسَيُجَنَّبُهَا الأَتْقَى الَّذِي يُؤْتِي مَالَهُ يَتَزَكَّى وَمَا لأَحَدٍ عِندَهُ مِن نِّعْمَةٍ تُجْزَى إِلاَّ ابْتِغَاء وَجْهِ رَبِّهِ الأَعْلَى . وَلَسَوْفَ يَرْضَى .

ژباړه: او د هغه (دوږخ) څخه داسي کس ليري ساتل کيږي چي لوی پرهيزګار دی چي خپل مال دد‌ې لپاره ورکوي چي پاک سي او بېله د خپل پروردګار د رضا څخه د هغه پر ذمه د چا احسان نه وو چي د هغه بدله ورکول مقصد وو او دغه سړی به ډېر ژر خوشحاله سي (يعني په اخرت کي به داسي نعمتونه ورکړل سي) .

دغه آياتونه هم د حضرت ابوبکر صديق ﷺ په اړه دي، د حضرت علي ﷺ په اړه نه سي کيدای، د تفسير ماهرين ددغه حقيقت سره سم ددغه آياتو محمول او مدلول حضرت ابوبکر صديق ﷺ ګرځولی دی او ثابته کړې يې ده چي ددغه آياتو شان نزول د حضرت ابوبکر صديق ﷺ واقعه ده چي هغه محض د الله ﷻ د رضا لپاره خپل ډېر مال مصرف کړ او حضرت بلال ﷺ او نور کسان يې د کافرانو څخه رانيول او ازاد يې کړل ، نو کوم چا ته چي الله ﷻ لوی پرهيزګار وايي هغه به د رحمت او رضوان مستحق وي که د لعنت او خذلان مستوجب؟

اوس صحيح حديثونه کتل پکار دي چي د هغو څخه ثابتيږي د روافضو کفر يا ايمان؟ څرګنده دي وي چي دلته پر څو حديثو باندي اکتفاء کيږي ، حال دا چي په دې ډېره بې شمېره حديثونه نقل سوي دي :

عن عويمر ابن ساعدة انه ﷺ قال ان الله اختارلي واختار لي اصحابا فجعل لي منهم وزراء وانصارا واصهارا فمن سبهم فعليه لعنة الله والملائكة والناس اجمعين ولايقبل الله منه صرفا ولا عدلا . (طبراني ، حاکم)

ژباړه: د عويمر ابن ساعد ﷺ څخه روايت دی چي نبي کريم ﷺ وفرمايل: الله ﷻ زه ټاکلی يم او زما لپاره يې ملګري او رفيقان هم ټاکلي دي، او بيا د هغه ملګرو څخه څوک يې زما وزير ، څوک مرسته کوونکي او څوک زما قريب وګرځوی نو کوم څوک چي هغوی ته بد ووايي پر هغه د الله ﷻ لعنت، د ملائکو لعنت او د ټولو خلګو لعنت دي وي ، الله ﷻ به د هغوی توبه قبوله نه کړي او نه دهغوی فديه ، يا دا چي نه به يې نفل قبلوي او نه فرض .

عن علي عن النبي ﷺ قال سياتي من بعدي قوم يقال لهم الرفضة فان ادركتهم فاقتلهم فانهم مشركون قال قلت يا رسول الله ما العلامة فيهم؟ قال يفرطونک بماليس فيک ويطعنون على السلف . دار قطني .

ژباړه: حضرت علي ﷺ له رسول الله ﷺ څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ډېر ژر به زما وروسته يو ډله پيدا سي چي رافضي به ورته ويل کيږي که تاسو هغه تر لاسه کړئ نو قتل يې کړئ ځکه چي هغوی به مشرکان وي، حضرت علي ﷺ وايي: ما عرض وکړ چي اې دالله رسوله! د هغوی پېژندنه څه ده؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: هغه خلګ به تا د داسي شيانو په ذريعه لوړ ښيي چي په تا کي به نه وي او پر صحابه کرامو به لعن او طعن کوي. دار قطني.

د دارقطني په يو بل روايت کي دا الفاظ دي:

وذلک يسبون ابابکر وعمر ومن سب اصحابي فعليه لعنة الله والملائکة والناس.

ژباړه: او هغه کسانو د مشرک ويلو وجه داده چي هغوی به ابوبکر او عمر ﷺ ته بد وايي او کوم څوک چي زما صحابوو ته بد ووايي نو پر هغه دي د الله ﷻ، د ملائکو او خلګو لعنت وي.

همدارنګه روايت د حضرت انس، حضرت عياض انصاري، حضرت جابر، حضرت حسن ابن علي، حضرت ابن عباس، بي بي فاطمة الزهرا، او بي بي ام سلمه ﷺ څخه هم نقل سوی دی، او دا هم راغلي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

من ابغضهم فقد ابغضني ومن اذاهم فقد اذاني ومن اذاني فقد اذی الله.

ژباړه: کوم څوک چي صحابه کرام خپل دښمن وګڼي نو هغه په حقيقت کي زه خپل دښمن وګڼلم او څوک چي هغوی ته تکليف ورکړي نو هغه په حقيقت کي ما ته تکليف راکړ او چا چي ما ته تکليف راکړ نو هغه په حقيقت کي الله ﷻ ته تکليف ورسوی.

ابن عساکر ﷺ دا حديث نقل کړی دی:

ان رسول الله ﷺ قال: حب ابي بکر وعمر ايمان وبغضهما کفر.

ژباړه: رسول الله ﷺ وفرمايل: د ابوبکر او عمر ﷺ سره مينه لرل ايمان دی او دهغوی سره بغض لرل کفر دی.

عبدالله ابن احمد د حضرت انس ﷺ څخه مرفوعا دا روايت نقل کړی دی:

اني لارجو لامتي في حبهم لابي بکر وعمر ما ارجو لهم في قول لااله الاالله.

ژباړه: بېله شکه زه د خپل امت لپاره د هغوی د ميني په عوض کي چي هغوی يې د ابوبکر او عمر ﷺ سره لري د هغه اميد لرم چي د هغوی لپاره د کلمې: لااله الاالله، په عوض کي تاکل سوی دی.

د محبت او بغض په منځ کي ضد دی ځکه د ابوبکر او عمر ﷺ سره د مينه لرلو چي دا حال معلوم سو چي د هغه اجر، سلامتيا، ايمان، په دنيا او آخرت کي د کاميابۍ په صورت کي دی

نو په منطقي توګه دا نتیجه را ووتل چي د هغوی سره بغض او نفرت کول کفر، او د هغوی پایله په دنیا او آخرت کي د ذلت او تباهی په صورت کي ده .

د دغه حدیثو ځخه وروسته اوس دا کتل هم ضروري دي چي په دې اړه د دین د امامانو او د شریعت د لاربنوونکو ارشادات او ویناوي څه دي، تر ټولو مخکي باید هغه اصول په ذهن کي وي چي د مؤمنانو تکفیر یعني یو مؤمن او مسلمان ته کافر ویل خپله کافر دی ځکه چي په صحیح حدیث کي نقل سوي دي چي کوم څوک یو چا ته کافر ووایي یا عدو الله (د خدای دښمن) ورته وایي او په حقیقت کي داسي نه وي نو هغه کفر په بېرته راګرځېدو سره خپل پر ویونکي باندي راګرځي، د صحابه کرامو مؤمن او مسلمان کېدل قطعي دي ځکه کوم څوک چي هغوی ته کافر وایي هغه کفر خپله هغه ته راګرځي ، دلته دا خبره ذکر کول مناسب دي چي روافض نه یوازي دا چي دصحابه کرامو د تکفیر او د حضرت عائشې ﷺ قذف مرتکب کیږي بلکه دغه دواړه شیان چي دکفر د سترو موجباتو ځخه دي په درجو کي د پرمختګ سبب یې هم مني حال دا چي خبره د ټولو په نزد منل سوې ده چي محض د معصیت استحلال کفر دی ، څه دا چي کفر دي د درجو د پرمختګ موجب و منل سي .

امام ابوزرعه رضي الله عنه چي د امام مسلم رحمه الله د سترو شیوخو څخه دی ، ویلي دي: که یو څوک د رسول الله ﷺ په صحابه کرامو کي د یو چا سپکاوی وکړي نو بېله شکه هغه زندیق دی او ددې وجه داده چي قرآن کریم حق دی او رسول الله ﷺ چي څه راوړي دي هغه حق دي او دا ټول د نقل او روایت په ذریعه موږ ته را رسونکي بېله صحابه کرامو بل څوک نسته، کوم څوک چي په دغه صحابوو کي عیب او نقص راباسي هغه په اصل کي کتاب او سنت باطل او لغو ګرځولو اراده وکړل، په دې اعتبار تر ټولو لوی عیب دار او ناقص خپله هغه سړی وګرځېدی او په هغه د زندقه او ضلالت حکم صحیح کیږي .

د حضرت سهل ابن عبدالله تستري رحمه الله وینا ده: هغه چا ته پر رسول الله ﷺ ایمان راوړونکی نه سي ویل کیدای چا چي د رسول الله ﷺ د صحابه کرامو عزت ونه کړ .

په محیط کي د حضرت امام محمد رحمه الله ځخه منقول دي چي په رافضیانو پسي لمونځ کول جائز نه دي ځکه چي هغوی د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د خلافت منکر دي .

په خلاصه کي لیکلي دي : من انکر خلافة الصدیق فهو کافر، څوک چي د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د خلافت ځخه انکار وکړي نو هغه کافر دی .

په مرغیناني کي ذکر سوي دي چي په اهل هوا او بدعتیانو پسي لمونځ کول مکروه دی او

په رافضیانو پسې ناجائز دی.

قاضي رحمۃ اللہ علیہ په شفاء کي لیکلي دي چي د حضرت مالک ابن انس رحمۃ اللہ علیہ او نورو وینا ده:

من ابغض الصحابة وسبهم فليس له في المسلمين حق.

ژباړه: څوک چي د صحابه کرامو سره بغض ولري او هغوی ته بد وایي نو هغه د مسلمانانو د فئ په مال کي هیڅ حق نه لري.

د هغوی دا وینا هم ده:

من غاظه اصحاب محمد ﷺ فهو کافر، قال الله تعالى ليغيظ بهم الكفار.

ژباړه: چا چي د محمد ﷺ د اصحابو سره بغض وکړ، هغه د الله جل جلاله د دغه ارشاد: چي په هغه سره کافر په غصه کړي، په سبب کافر دی.

قاضي ابوبکر باقلاني رحمۃ اللہ علیہ هم داسي خبره کړې ده، او بیهقي رحمۃ اللہ علیہ د امام اعظم ابو حنیفة رحمۃ اللہ علیہ څخه هم داسي وینا نقل کړې ده بلکه فقهاء حنفیه چي شیعه ګانو ته کافر ویلي دي د هغه بنیاد د امام اعظم ابو حنیفة رحمۃ اللہ علیہ دا قول دی، دا خبره په خاصه توګه د یادوني وړ ده چي د شیعه ګانو او رافضیانو د عقیدو تر ټولو زیات پېژندونکی حضرت امام اعظم رحمۃ اللہ علیہ دی ځکه چي هغه کوفي دي او د رفض او تشیع اصل منبع او مرکز کوفه پاته سوې ده، که امام اعظم ابو حنیفة رحمۃ اللہ علیہ د خلافت صدیق د منکر تکفیر کړی دی نو پر ابوبکر او حضرت عمر رضی اللہ عنہما یا یو بل صحابي باندي لعنت کونکي به د هغوی په نزد په درجه اولی کافر وي.

امام مالک رحمۃ اللہ علیہ د نبي کریم ﷺ په صحابوو کي چا ته هم د بدویونکي په اړه د حکم بیانولو سره داسي فرمایلي دي:

فان قال كانوا على ضلال او كفر قتل.

ژباړه: که هغه سړی دا ووایي چي هغوی (صحابه کرام) پر ګمراهي وه یا کافران وه نو هغه سړي دي ووژل سي.

د حضرت امام احمد ابن حنبل رحمۃ اللہ علیہ د قول او نورو ارشاداتو ته په کتلو سره دا معلومیږي چي هغوی هم د روافضو د ارتداد قائل وه، په هر حال د روافضو په کفر دا څو دلیلونه دي، که څه هم دد ې څخه ماسوا نور هم ډېر دلیلونه سته مګر د اوږدوالي د بیري څخه د دغه څو دلیلو په راوړلو اکتفاء سوې ده، او دا هم ځکه چي عام مسلمانان وړونه د شک او شبهې ښکار نه سي، هغوی ته د صحابه کرامو عظمت او هغوی ته د بدویونکو خرابي معلومه سي، د رافضیانو د دوکې څخه هوښیار اوسي، خپله عقیده خرابه نه کړي د هغوی د ناستي او ولاړي څخه ځان

وساتي او د هغوی سره هرډول تعلق پرې کړي، او که چیري د صحابه کرامو د فضائل او مناقبو سره متعلق ددغه آیاتو او حدیثو په لېدو سره یو شیعه ته توفیق الهي په برخه سي نو هغه به په توبه کولو سره خپل عاقبت درست کړي .

**یو اعتراض او دهغه جواب**: کیدای سي یو رافضي دا اعتراض وکړي چي په مشهور کتاب شرح عقائد نسفي کي دا خبره اسانه نه ده ښودل سوې چي شیخینو رحمهما الله ته بد ویونکي دي کافر وګرځول سي او صاحب جامع الاصول او صاحب مواقف شیعه ګان په اسلامي ډلو کي شمېرلي دي، همدارنګه شیخ ابوالحسن اشعري او امام غزالي رحمة الله علیهما هم دا مناسب نه دي ګڼلي چي اهل قبله ته دي کافر وویل سي ، کوم خلک چي شیعه ګانو ته کافر وایي دهغوی قول د سلف اهل سنت موافق نه دی؟ ددې جواب دادی چي بېله شکه هغه د امت بزرګانو او د علم اساطینو د شیعه ګانو په تکفیر کي د احتیاط څخه کار اخیستی دی او ددغه ډلي د اسلام د دائرې څخه په ایستلو کي یې تامل کړی دی مګر ددې وجه دا نه ده چي دغه حضراتو د شیعه ګانو ټول عقائدِ او نظریات او د هغوی احوال او معاملات په پوره توګه پېژندو سربېره د هغوی د تکفیر څخه اعتراض کړی دی،

بلکه اصل خبره داده چي د هغو بزرګانو په ذهن کي د شیعیت مسئلې په پوره توګه واضحه سوي نه دي او د شیعه ګانو متعلق د ټولو شیانو حقیقي اوواقعاتي حیثیت په پوره توګه د هغوی په علم کي نه وو چي د هغه په وجه هغوی د شیعه ګانو په باره کي ددغه خیال او نظر اظهار وکړ، چي دهغوی د هغه وخت د علم او معلوماتو مطابق وو او همدارنګه ډېر مثالونه تر لاسه کیږي چي سترو صحابه کرامو په ځینو مسئلو کي اشتباه کړې ده او دهغوی قول یا عمل د هغه مسائلو د حقیقي اړخ څخه مختلف ظاهر سو، د مثال په توګه حضرت عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه ته په لمانځه کي د اطباق یدین په مسئله کي اشتباه کېدل یا حضرت علي رضی الله عنه ته د بیع امهات اولاد او د زندیقانو په اور کي د سوځلو په مسئله کي اشتباه کېدل او حضرت عمر فاروق رضی الله عنه ته د جنب د تیمم په اړه اشتباه کېدل نو د ذکر سوو بزرګانو نظر محض د هغوی د تکفیر څخه احتیاط وکړ که د هغوی په عمل کي د شیعه ګانو هغه ټول عقائد او حالات په تفصیل سره راسي چي دهغوی د اهل قبله او کلمه ویلو صریح خلاف دي او د هر سړي د تکفیر لپاره د واضح ثبوت او دلیل حیثیت لري نو یقینا هغه بزرګان به هم د هغوی د تکفیر قائل سوي وای ، حال دا چي خلیفة المسلمین حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د زکوة د فرضیت او ادا کولو څخه د انکار کونکو خلاف د توري پورته کولو فیصله وکړل ، نو حضرت عمر رضی الله عنه او حضرت

علي رضي الله عنه د هغه خلکو د کلمه ویلو په وجه د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه په مخکي دهغوی شفاعت وکړ او هغوی وویل: موږ ددغه خلکو خلاف جنګ او قتال څرنګه وکړو حال دا چي د رسول الله ﷺ ارشاد دی:

امرت ان اقاتل الناس حتی یقولوا لا اله الا الله.

ژباړه: ما ته د الله جل جلاله له خوا حکم سوی دی چي زه د خلکو سره جګړه وکړم تر دې چي هغوی لا اله الا الله، ووایي.

حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه په پوره عزم سره جواب ورکړ چي زه به د هر هغه سړي پر خلاف جنګ وکړم چي د لمانځه او روژې په منځ کي فرق کوي، حضرت عمر رضي الله عنه وویل: ما ولیدل چي په دغه مسئله کي الله جل جلاله، حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه ته شرح صدر ورکړی وو او اوس زه ویلای سم چي حق هغه دی کوم چي ابوبکر صدیق رضي الله عنه وایي.

دا هم کیدای سي چي ذکر سوو بزرګانو د خپلو اقوالو اونظریاتو اظهار د هغه شیعه ګانو په اړه فرمایلي وي چي په هغه زمانه کي داسي خراب او فاسدو عقیدو والا نه وه لکه څرنګه چي وروسته شیعه ګان او رافضان پیدا سول، ددې تائید په مرقاة کي د ملا علي قاري رحمة الله علیه ددغه الفاظو څخه هم کیږي:

قلت وهذا في حق الرافضة والخارجة في زماننا كانهم يعتقدون كفرا اكثر اكابر الصحابة فضلا من سائر اهل السنة والجماعة فهم كفرة بالاجماع بلانزاع.

ژباړه: زه وایم چي دا خبره زموږ د زمانې د رافضیانو او خارجیانو په حق کي صادقیږي ځکه چي ددغه ډلي خلګ په سترو صحابه کرامو کي اکثر د کفر عقیده لري او ټول اهل سنت والجماعت هم کافر ګڼي نو ددغه ډلو پر کافر باندي اجماع ده چي په هغه کي هیڅ اختلاف نسته.

## د صحابه کرامو وجود د امت لپاره د امن باعث وو

﴿۵۷۵۵﴾: وَعَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ رَفَعَ يَعْنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت ابوبرده رضي الله عنه د خپل پلار ابوموسی رضي الله عنه څخه نقل کوي چي رسول الله ﷺ پورته کړ

رَأْسَهُ إِلَى السَّمَاءِ وكان كثيرا مما يرفع راسه الى السماء فَقَالَ النُّجُومُ أَمَنَةٌ

خپل سر مبارک د آسمان خوا ته او رسول الله ﷺ به سر مبارک د اسمان طرف ته ډیر پورته کوی او وه یې فرمایل: ستوري د آسمان لپاره د امن سبب وي

لِلسَّمَاءِ فَإِذَا ذَهَبَتْ النُّجُومُ أَتَى السَّمَاءَ مَا تُوعَدُ وَأَنَا أَمَنَةٌ لِأَصْحَابِي فَإِذَا

کله چي دا ستوري ولاړ سي نو د آسمان لپاره به هغه شي راسي چي د هغه وعده سوې ده او زه د خپل اصحابو لپاره د امن سبب يم چي

ذَهَبْتُ أَتَى أَصْحَابِي مَا يُوعَدُونَ وَأَصْحَابِي أَمَنَةٌ لِأُمَّتِي فَإِذَا ذَهَبَ أَصْحَابِي أَتَى أُمَّتِي مَا يُوعَدُونَ. رواه مسلم.

زه ولاړ سم نو زما پر اصحابو باندي به هغه شی نازل سي چي د هغه وعده سوې ده (خپل منځي اختلاف) او زما اصحاب زما د امت لپاره د امن سبب دي او هر کله چي زما اصحاب ولاړ سي نو زما پر امت به هغه څه نازل سي چي د هغه وعده سوې ده (يعني بدعت او فساد). مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۴\۱۹۶۱، رقم: ۲۰۷ - ۲۵۳۱.

**د لغاتو حل**: النجوم امنة: اي امان و مرحمة.

**تشريح**: د ستوري لفظ لمر او سپوږمۍ ته هم شامل دی او د ستورو له تلو څخه مراد د لمر او سپوږمۍ او ټولو ستورو بې نوره کېدل، ماتېدل او را لوېدل دي، لکه څرنګه چي په قرآن کريم کي فرمايل سوي دي:

اذا الشمس کورت واذا النجوم انکدرت.

ژباړه: کله چي (د قيامت په ورځ) لمر بې نوره سي او ستوري په ماتېدو سره را ولوېږي.

د آسمان لپاره چي کوم شی موعود او مقدر دی: ددې څخه مراد د قيامت په ورځ د آسمانو چاودل، ټوټې کېدو سره د پمبوو په شان الوتل دي، ددې خبر په قرآن کريم کي ورکړل سوی دی: (اذا السماء انفطرت) کله چي آسمان وچوي، او: (اذا السماء انشقت) او کله چي آسمان ټوټې ټوټې سي، په الفاظو کي ورکړل سوی دی.

د صحابه کرامو لپاره موعود او مقدر شی: ددې څخه مراد فتنه، فساد، اختلافات او جګړې دي او د ځينو اعرابي قبائلو مرتد کېدل دي، همدارنګه د امت لپاره موعود او مقدر شی څخه مراد د بدي عقيدې او د بدعملۍ د فتنو را پورته کېدل، د بدعتو زياتېدل، پر مسلمانانو باندي ديني او ملي پېښو واقع کېدل، د اهل خير او برکت له دنيا څخه پورته کېدل، اهل شر باقي پاته کېدل او پر هغه اهل شر باندي قيامت راتلل دي، نو په دې کي دې ته اشاره ده

چي د اهل خیر وجود د شر د لاري تر ټولو لوی خنډ دی ، کله چي اهل خير ولاړ سي نو شر ته د راتللو موقع تر لاسه کيږي نو د رسول الله ﷺ وجود د صحابه کرامو لپاره د شر څخه د ساتني ضامن وو ، په یوې ټولنهٔ کي د فتنې پیل د مختلف الذهن او مختلف الخیال خلګو د یو بل پر خلاف رايي درلودلو په وجه کيږي، د رسول الله ﷺ په زمانه کي دا صورت حال وو چي کله به په یوه مسئله کي اختلاف پیدا سو نو رسول الله ﷺ به هغه اړخ بیانوی کوم چي به د حقیقت مطابق وو او ټول صحابه کرام به پر هغه متفق کېدل، په دغه صورت کي د فتنې پیدا کېدو سوال هم نه پیدا کیدی، کله چي رسول الله ﷺ له دنیا څخه رخصت سو نو صورت حال مختلف سو ، د رسول الله ﷺ د صحبت څخه د محرومو مسلمانانو کثرت سو ، د خپل رايي رجحان پیدا سو او ددغه خپلي رايي بنیاد ذاتي اغراض او نفساتي خواهشات وه ځکه فتنه او فساد ظاهر سو ، هغه وخت ډېر صحابه کرام موجود وه چي په یوه معامله کي به يې خپل ذاتي خواهش او رجحان ته ارزښت نه ورکوی بلکه په هره معامله او هره مسئله کي د رسول الله ﷺ د قول یا فعل یا دلالت سره به يې په سند کي د یو چا قول وړاندي کوی او د رسول الله ﷺ د صحبت او ملګرتیا د انوارو څخه معمور وه ځکه د هغوی وجود په هر حال دومره د خیر باعث وو چي د فتنو او خرابو تیارې زیاتي خپرې نه سوې مګر د هغه صحابه کرامو وجود هم چي له دنیا څخه رخصت سو نو په انوارو او برکاتو کي ډېره کمي راغلل او د تیارو د خپرېدو موقع پیدا سول، دا حقیقت رسول الله ﷺ د ستورو او آسمان د مثال په ذریعه د مخکي څخه بیان کړ او داسي دي لکه څرنګه چي د آسمان وجود تر هغه وخته پوري وي تر څو چي سپوږمۍ، لمر او ستوري د خپلو رڼاوو په خپرولو سره موجود وي ، کله چي دا ستوري ختم سي نو د آسمان د وجود د خاتمې وخت به راسي او کله چي د آسمان وجود ختم سي نو ټول کائنات به د عدم په تیاره کي ورک سي، نو صحابه کرام د هغه ستورو په ډول دي چي د هغوی د وجود څخه ټولو کائناتو ته رڼا رسیږي او ځکه رسول الله ﷺ وفرمایل:

اصحابي کالنجوم بایهم اقتدیتم اهتدیتم .

ژباړه: زما صحابه د ستورو په ډول دي تر څو چي د هغوی پیروي کوئ نو سېده لاره به تر لاسه کړئ.

## د صحابه کرامو برکت

﴿۵۷۵۶﴾ : وَعَنْ اَبِيْ سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

يَأْتِي عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ فَيَغْزُو فِئَامٌ مِنَ النَّاسِ فَيَقُولُونَ فِيكُمْ مَنْ صَاحَبَ

یوه زمانه به داسي راسي چي د خلکو یو ډله به جهاد کوي ، خلک به په خپل منځ کي پوښتني کوي ایا په موږ کي داسي څوک هم سته چي

رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَقُولُونَ نَعَمْ فَيُفْتَحُ لَهُمْ ثُمَّ يَأْتِي عَلَى النَّاسِ

د رسول الله ﷺ په صحبت کي پاته سوی وي ، خلک به وايي هو سته نو د هغه خلکو لپاره به ښار او قلعه فتح کړل سي ، بیا به پر خلکو یوه داسي زمانه راسي چي

زَمَانٌ فَيَغْزُو فِئَامٌ مِنَ النَّاسِ فَيُقَالُ هَلْ فِيكُمْ مَنْ صَاحَبَ أَصْحَابَ

هغوی به جهاد کوي او په خپلو کي به یو بل ځخه پوښتني کوي ایا په تاسو کي یو تابعي سته ،

رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَقُولُونَ نَعَمْ فَيُفْتَحُ لَهُمْ ثُمَّ يَأْتِي عَلَى

خلک به وايي هو سته نو خلک به ښارونه او قلعي فتح کړي ، بیا به پر خلکو یوه داسي زمانه

النَّاسِ زَمَانٌ فَيَغْزُو فِئَامٌ مِنَ النَّاسِ فَيُقَالُ هَلْ فِيكُمْ مَنْ صَاحَبَ مَنْ

راسي چي د خلکو یو ډله به غزا کوي او په خپل منځ کي به پوښتنه کوي ایا په تاسو کي یو تبع

صَاحَبَ أَصْحَابَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَقُولُونَ نَعَمْ فَيُفْتَحُ

تابعي سته ، خلک به وايي هو سته نو د هغوی لپاره به ښارونه او قلعي فتح کړل سي .

لَهُمْ. متفق عليه وفي رواية لمسلم قَالَ يَأْتِي عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ يُبْعَثُ مِنْهُمْ

بخاري او مسلم او د مسلم په یوه روایت کي داسي دي چي پر خلکو به یوه داسي زمانه راسي چي په هغه زمانه کي به خلکو ته یو لښکر ولیږل سي

الْبَعْثُ فَيَقُولُونَ انْظُرُوا هَلْ تَجِدُونَ فِيكُمْ أَحَدًا مِنْ أَصْحَابِ رسول الله

او لښکریان به یو د بل ځخه پوښتنه کوي وګورئ چي په موږ کي یو داسي څوک سته چي د

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيُوجَدُ الرَّجُلُ فَيُفْتَحُ لَهُمْ بِهِ ثُمَّ يُبْعَثُ الْبَعْثُ الثَّانِي

رسول الله ﷺ صحابي وي، يو سړی به داسي پيدا کړي او د هغه د برکته به يې فتح نصيب سي، بيا به دوهم لښکر وليږل سي

فَيَقُولُونَ هَلْ فِيهِمْ مَنْ رَأَى أَصْحَابَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيُفْتَحُ

او لښکر والا به وايي ايا په دوی کي يو داسي څوک سته چي هغه د رسول الله ﷺ يو صحابي ليدلی وي نو يو سړی به پيدا کړي چي د هغه د برکته به فتحه حاصله کړي،

لَهُمْ ثُمَّ يُبْعَثُ الْبَعْثُ الثَّالِثُ فَيُقَالُ انْظُرُوا هَلْ تَرَوْنَ فِيهِمْ مَنْ رَأَى مَنْ

بيا به دريم لښکر وليږل سي او وه به ويل سي وګورئ ايا په دوی کي يو داسي څوک سته چي

رَأَى أَصْحَابَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ يَكُونُ الْبَعْثُ الرَّابِعُ فَيُقَالُ

هغه يو صحابي ليدلی وي ، بيا به څلورم لښکر وليږل سي او وه به ويل سي

انْظُرُوا هَلْ تَرَوْنَ فِيهِمْ أَحَدًا رَأَى مَنْ رَأَى أَحَدًا رَأَى أَصْحَابَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيُوجَدُ الرَّجُلُ فَيُفْتَحُ لَهُ.

وګورئ چي په دوی کي يو داسي څوک سته چي هغه د يو صحابي ليدونکی ليدلی وي نو يو سړی به پيدا کړي او د هغه په سبب به فتح ور په برخه سي .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۳، رقم: ۳۶۴۹، ومسلم ۱۴\۱۹۶۲، رقم: ۲۰۸ - ۲۵۳۲.

**تشريح**: په دغه دواړو روايتو کي د رسول الله ﷺ د هغه معجزې يادونه ده چي رسول الله ﷺ د يو داسي حقيقت وړاندي وينه وفرمايل چي د رسول الله ﷺ وروسته درې يا څلور پېړيو کي رامنځته کېدونکې ده، د دې سره په دغه روايتو کي د رسول الله ﷺ د صحابه کرامو، تابعينو، تبع تابعينو او تبع اتباع تابعينو فضيلت او دهغوی د خير او برکت سبب کېدل هم ذکر سوي دي، په دغه دواړو روايتو کي فرق دادی چي په لومړني روايت کي د درو ډلو يعني صحابه کرامو، تابعينو او تبع تابعينو يادونه ده او د مسلم په نورو روايتو کي د څلورو ډلو يعني صحابه کرامو، تابعينو، تبع تابعينو او تبع اتباع تابعينو يادونه هم ده .

**خير القرون کوم قرنونه دي**: د بخاري په يو صحيح روايت کي دي چي کوم حديث د خير القرون په اړه روايت دی هلته د څلورو پېړيو ذکر دی، دغه اهل خير په دغه څلورو پېړيو کي ډېر

کامیاب وه او په مخکني درو قرنو کي د اهل خیر او برکت، اهل علم او پوهي زیاتوب وو، د لنډ نظری، ناپوهی او فتنې لاره بنده وه ځکه په اکثرو روایتو کي پر دغه درو قرنو باندي اکتفاء سوې ده، په صحیح مسلم کي د بي بي عائشې ﷺ څخه مرفوعا منقول دي :

خیر الناس القرن الذي انا فیه ثم الثاني ثم الثالث.

ژباړه: رسول الله ﷺ وفرمایل: غوره خلک هغه دي چي زما په زمانه کي دي ، بیا د دوهمي زمانې خلک او بیا د دریمي زمانې خلک.

طبراني د حضرت ابن مسعود ﷺ څخه مرفوعا روایت نقل کړی دی :

خیر الناس من قرني ثم الثاني ثم الثالث ثم تجئ قوم لاخیر فیهم.

ژباړه: غوره خلک هغه دي چي زما په زمانه کي دي، بیا د دوهمي زمانې خلک بیا د دریمي زمانې خلک او بیا کوم قومونه چي راسي نو هغوی به (د مخکې زمانې په ډول) غوره خلک نه وي.

چا چي د رسول الله ﷺ زمانه لیدلې وي: دا د مسلم د بل روایت الفاظ دي او د هغه څخه معلومیږي چي د تابعي کېدو لپاره دومره کافي دي چي هغه صحابه لیدلي وئ لکه څرنګه چي د صحابي کېدو لپاره دومره کافي دي چي هغه د رسول الله ﷺ لیدنه کړې وي ، مګر د تابعي کېدو لپاره دا ضروري دي چي هغه ته د صحابه کرامو صحبت او خدمت هم په برخه سوی وي لکه څرنګه چي په لومړني روایت کي د شرف صحبت ذکر دی، په دغه صورت کي به ویل کیږي چي دلته د صحابي د لیدو څخه مراد دادی چي هغه د صحابي په ملګرتیا کي پاته سوی وي.

﴿۵۷۵۷﴾: وَعَنْ عِمْرَانَ بْنَ حُصَيْنٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عمران بن حصین ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

خَيْرُ أُمَّتِي قَرْنِي ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ ثُمَّ إِنَّ بَعْدَكُمْ قَوْمًا

زما د امت غوره زما د قرن خلک دي (قرن یو دور دی یعني یوه زمانه ده ، ځینو څلوېښت کاله، ځینو پنځوس کاله، ځینو اتیا کاله او ځینو سل کاله ټاکلي دي) ، بیا هغه خلک غوره دي کوم چي د هغوی سره متصل دي بیا هغه خلک غوره دي چي د هغوی سره متصل دي بیا د دې قرن

يَشْهَدُونَ وَلَا يُسْتَشْهَدُونَ وَيَخُونُونَ وَلَا يُؤْتَمَنُونَ وَيَنْذُرُونَ وَلَا يَفُونَ

څخه وروسته د خلکو یو داسي ډله به پیدا سي چي شاهدي به وایي خو د وی څخه به څوک د شاهدی طلب نه کوي او خیانت به کوي امینان کیدلای به نسي او داسي خلک به وي چي نذر به مني او وفا به نه کوي

وَيَظْهَرُ فِيهِمُ السِّمَنُ، وفي رواية و يحلفون ولا يستحلفون. متفق عليه وفي رواية لمسلم عن ابي هريرة ثم يحلف قوم يحبون السمانة.

په هغوی کي به چاغوالی پیداسي، او په یوه روایت کي داسي الفاظ دي چي بیا به داسي خلک پیداسي چي پرته د قسم ورکولو به قسمونه خوري، بخاري او مسلم، او د مسلم په یوه روایت کي چي د ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی دا الفاظ دي چي د دغه خلکو څخه وروسته به یو داسي ډله پیداسي چي چاغوالی به خوښوي.

**تخریج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۳، رقم: ۳۶۵۰، ومسلم ۴\ ۱۹۶۴، رقم: ۲۱۴- ۲۵۳۵.

**د لغاتو حل**: السِّمَن: التوسع في الماكل والمشارب (چاغښت)

**تشريح**: قرن، عهد يا زماني ته وايي چي د هغه اندازه د ځينو حضراتو په نزد څلوېښت کاله، د ځينو په نزد اتيا کاله او د ځينو په نزد سل کاله ده، مګر صحيح دادی چي د قرن اطلاق د مياشتي او کال د تعين په اعتبار نه دی بلکه هر هغه عهد يا زماني ته وايي چي تقريبا پر يو ډول عمر لرونکو باندي مشتمل وي، يعني د قرن لفظ د اقتران څخه ماخوذ دی، داسي مقدر دی چي په هغه کي د هغه زماني خلک د خپل عمرونو او احوالو په اعتبار يو بل ته نژدې وي، نو د رسول الله ﷺ د قرن څخه مراد د صحابهٔ کرامو قرن دی، د دغه قرن پيل د رسالت څخه کيږي او د هغه آخري زمانه هغه ده تر څو چي يو صحابي هم په دنيا کي ژوندی وو، يعني تر ۱۲۰ هجري کال پوري، دوهم قرن چي د تابعينو قرن دی د ۱۰۰ هجري کال څخه تر ۱۷۰ هجري پوري دی، او دریم قرن چي د اتباع تابعينو قرن دی د تابعينو د قرن څخه وروسته کيږي او تقريبا تر ۲۲۰ هجري کال پوري دی، د دغه قرن څخه وروسته د هغه خاص خير او برکت لړۍ ختمه سول چي قرن اول (يعني د رسالت او صحابه کرامو زمانه) او د هغه سره متصل دواړو قرنو ته د زماني فرق په نسبت سره کم او زيات (خير او برکت) تر لاسه وو، بيا د بدعتونو ظهور پيل سو، د دين په نامه عجيب او غريب شيان پيدا سول، فلاسفه او په نامه پوهانو سر را پورته کړ، معتزله پيدا سول او هغوی د دين د مسح کولو ذمه داري واخيستل، قرآن ته د مخلوق ويلو فتنه را پورته سول چي اهل علم يې له سخت امتحان سره مخامخ کړل د خلکو ديني ژوند کمزوری سو، نوي افکار او خيالات پيدا سول، اختلافات او جګړې خپرې سوې، د آخرت بېره کمه سول او دنيا ته رجحان زيات سو، په احکام شريعت او سنت کي دومره خنډ او تاوان راغلی چي اخلاقي ژوند مجروح

سو او د خلکو هغه حال پیل سو چي د هغه خبر مخبر صادق ﷺ په حدیث کي بیان کړی دی،
چي خپله به شاهدي ورکوي او څوک چي شاهدي ور څخه نه غواړي، د حدیث د دغه الفاظو څخه دا معلومیږي چي بېله شاهدۍ غوښتني شاهدي ورکول یو خراب کار دی، حال دا چي په یو بل حدیث کي دا راغلي دي چي په شاهدانو کي غوره شاهد هغه دی چي شاهدي ورکړي مخکي تر دې چي د هغه څخه د شاهدۍ ورکولو غوښتنه وسي، په ظاهره په دغه دواړو حدیثو کي اختلاف دی مګر په حقیقت کي د هغوی په منځ کي څه اختلاف نسته ځکه چي بېله غوښتني د شاهدۍ ورکولو خرابۍ ظاهرونکي حدیث تعلق د هغه سړي سره دی چي د هغه په اړه معلومه وي چي هغه د فلانۍ پېښي یا معاملې شاهد دی مګر ددې سربېره صاحب معامله نه خو د هغه څخه د شاهدۍ ورکولو غوښتنه کوي، او نه هغه په عدالت کي د شاهدۍ په توګه وړاندي کول غواړي، په داسي صورت کي که چیري هغه سړی په خپله شاهدي ورکوي نو ښکاره خبره ده چي د هغه د شاهدۍ به څه معنی وي مګر دا به خامخا ثابت وي چي هغه د شاهدۍ په پرده کي یو فاسد مقصد لري،
ددې پر خلاف که چیري دا صورت وي چي یو سړی د یوې پېښي شاهد وي مګر د هغه شاهد کېدل معلوم نه وي، هغه ته معلومیږي که چیري زه شاهدي ورکړم نو د یو مسلمان حق به تلف سي یا هغه ته به بېله وجه ځاني او مالي تاوان پېښ سي، ددغه خیر په جذبه سره هغه صاحب معامله ته ووایي چي زه ددغه پېښي یا معاملې شاهد یم او که ته غواړې نو ستا له خوا په عدالت کي زه شاهدي ورکولای سم، نو بېله غوښتني کولو دغه شاهدي ورکونکی به یقینا د تعریف وړ وي، او ویل کیږي چي په دوهم حدیث کي (چي په هغه کي بېله شاهدۍ غوښتني د شاهدي ورکونکي ته غوره شاهد ویل سوي دي) د داسي کسانو په اړه دی، یا دا چي بېله غوښتني کولو د شاهدي ورکونکي ښه والي حدیث په اصل کي دا خبره د مبالغې په توګه بیانولو لپاره ده چي کوم څوک د یوې پېښي یا معاملې ریښتونی شاهد وي هغه ته پکار ده چي د شاهدۍ ورکولو څخه اعراض ونه کړي او کله چي د هغه څخه شاهدي وغوښتل سي نو ځنډ دي نه پکښي کوي او سمدستي دي د شاهدي لپاره حاضر سي.
همدارنګه دا هم ویل کېدای سي چي بېله غوښتني کولو د شاهدۍ ورکولو خرابي بیانونکي حدیث د هغه سړي په حق کي دی چي هغه د شاهدۍ اهل نه وي یا پر هغه سړي باندي محمول دی چي د درواغو شاهدي ورکوي، ځینو حضراتو دا هم لیکلي دي چي بېله غوښتنه کولو د شاهدي ورکونکي بدي بیانونکي حدیث تعلق د حقوق العباد سره متعلق شاهدي

ورکولو لپاره دی او د ښه والي بیانونکي حدیث پر حقوق الله باندي اړوند معاملو کي شاهدي ورکول دي، مګر دا په هغه صورت کي وي کله چي په شاهدي پتهولو کي یو حکمت نه وي او ځیني حضرات وایي چي په دغه حدیث کي د شهادت څخه مراد قسم دی، په دغه صورت کي د حدیث د هغه الفاظو ترجمه به دا وي: په هغوی کي به داسي کسان هم وي چي د دروغو قسمونه به اخلي مخکي تر دې چي څوک هغه ته قسم ورکړي.

چي خیانت به کوي او د هغوی پر دیانت او امانت به باور نه کیږي: مطلب دا چي په خیانت او بددیانتي کي به هغوی دومره مشهور سي چي خلګ به هغوی امانت دار نه مني او هغوی به د امانت د وصف څخه خالي ګڼل کیږي، مګر که چیري د یو چا څخه کله نا کله خیانت وسي نو د دې اعتبار نسته.

چي نذر به مني او خپل نذر به نه پوره کوي: یعني نه یوازي دا چي نذر به نه پوره کوي بلکه دې خبري ته به څه ارزښت هم نه ورکوي چي په نذر منلو سره هغه نه پوره کول څومره خرابه خبره ده، حال دا چي نذر پوره کول لازم دي او د الله ﷻ کوم نیک بندګان چي په دې عمل کوي د هغوی تعریف په قرآن کریم کي داسي بیان سوی دی:

يُوفُونَ بِالنَّذْرِ وَيَخَافُونَ يَوْمًا كَانَ شَرُّهُ مُسْتَطِيرًا

ژباړه: هغوی (یعني نېک بندګان) نذر پوره کوي او د قیامت د ورځي څخه بیریږي.

او په هغوی کي به چاغ والی پیل سي، د سمن معنی د غټ والي ده چي د زیات خوراک او څښاک په سبب پیدا کیږي مګر دلته هغه غټ والی مراد نه دی چي په خلقي او طبعي توګه وي، ځینو حضراتو لیکلي دي چي دلته د غټ والي څخه مراد په احوالو کي غټ والی دی یعني د فخر او ناز له موخي خپل ځان خوشحاله او شتمن څرګندوي، او د عزت او شرف هغه دعوه کوي چي په انسان کي نه وي، ځیني حضرات وایي چي د چاغ والي څخه مال او دولت جمع کول دي، توربشتي رحمه الله لیکلي دي: په هغوی کي به چاغ والی پیدا سي، دغه الفاظ په اصل کي د دې خبري کنایه ده چي د دیني معاملاتو او د شریعت د احکامو پر ځای راوړلو کي به د غفلت او کوتاهي ښکار سي او د اوامرو او نواهیو خیال به نه ساتي چي د دین او شریعت اصل تقاضا ده، دا خبره په چاغ والي سره د تعبیر کولو وجه داده چي په عامه توګه چاغ خلګ سست او کهاله وي، محنت او تکلیف نه خوښوي، خپل نفس په مشکل کي له اچولو څخه ساتي او د هغوی زیات بندوبست د نفس په لذت او خوند کي وي، په راحت او آرام کي د خپلو بسترو سره محدود وي.

د مسلم په شرح کي ليکلي دي: علماؤ وضاحت کړی دی چي چاغ والی هغه بد شی دی چي د عيش او تنعم په ذريعه قصدا پيدا کړل سي ، خلقي او طبعي چاغ والی بد نه دی او نه پر هغه باندي دد غه روايتو اطلاق کيږي، په دې وضاحت سره دد غه روايت معنی هم څرګنده سول چي په هغه کي فرمايل سوي دي :

ان الله يبغض الحبر السمين، ژباړه: الله جَلَّالہٗ چاغ عالم نه خوښوي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د صحابه کرامو عزت او تکريم لازم دی

﴿۵۷۵۸﴾: عَنْ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَكْرِمُوا أَصْحَابِيْ

د حضرت عمر رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زما د صحابه کرامو تعظيم

فَإِنَّهُمْ خِيَارُكُمْ ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ ثُمَّ يَظْهَرُ الْكِذْبُ

(عزت) کوئ، ځکه چي هغوی ستاسو غوره خلک دي، بيا هغه خلک غوره دي چي هغوی ته نژدې دي او بيا هغه خلک غوره دي چي هغوی ته نژدې دي، دد ې څخه وروسته به درواغ

حَتّٰى إِنَّ الرَّجُلَ لَيَحْلِفُ وَلاَ يُسْتَحْلَفُ وَيَشْهَدُ وَلاَ يُسْتَشْهَدُ أَلاَ مَنْ سَرَّهُ

ښکاره سي تر دې چي يو سړی به قسم خوري او د هغه څخه به د قسم خوړلو غوښتنه نه وي ، او شاهدي به ورکوي او د شاهدي خواهش به ځيني نه کيږي ،

بُحْبُوحَةُ الْجَنَّةِ فَلْيَلْزَمِ الْجَمَاعَةَ فان الشيطان مع الفذ وهو من الاثنين

خبردار سئ! په تاسو کي چي څوک په جنت کي بالکل په منځ کي د اوسيدو خواهش لري هغه ته پکار ده چي هغه جماعت لازم ونيسي ځکه چي شيطان د هغه سړي سره وي چي د ډلي څخه بيل

ابعد ولا يخلو رجل بامراة فَإِنَّ الشَّيْطَانَ ثَالِثُهُمْ وَمَنْ سَرَّتْهُ حَسَنَتُهُ

او يوازي وي او شيطان د دو خلکو څخه هم چي متحد وي ليري اوسي ، او سړی دي د پردۍ ښځي سره په يوازيوالي کي نه اوسيږي، ځکه چي د هغوی سره دريم شيطان وي، او څوک چي

وَسَاءَتْهُ سَيِّئَتُهُ فَهُوَ مُؤْمِنٌ. رواه النسائي واسناده صحيح ورجاله رجال الصحيح

الا ابراهيم ابن الحسن الخثعمي فانه لم يخرج عنه الشيخان وهو ثقة ثبت.

په خپل نيکۍ سره خوشحاله سو او په بدۍ سره غمګين سو نو هغه مؤمن دی. نسائي.

**تخريج**: سنن النسائي الكبرى ۵/۳۸۷، رقم: ۹۲۲۲.

**د لغاتو حل**: بحبوحة: اي وسطها و خيارها.

**تشريح**: په دغه حديث کي هم د اسلام د لومړنيو درو ډولو خلګو يعني صحابه کرام، تابعين، او تبع تابعينو فضيلت پر ټول امت باندي ظاهر سوی دی، چي دغه کسان د امت هغه دري ډلي دي چي په امت کي تر ټولو غوره خلګ دي، د ملت مشران او مقتدا دي او دغه درو ډولو خلګو ته او د هغوی په زمانو کي غلبه صدق او ديانت تر لاسه وو، تر دې چي د دغه ډلو د کومو خلګو احوال او کوائف نامعلوم وو (چي په اصطلاح کي ورته مستور الحال ويل کيږي) هغوی هم عادل منل سوي دي، دا بېله خبره ده چي په هغوی کي د يو نادر کس په اړه داسي ونه ويل سي، ځکه چي د دغه ډلو خلګ هم په هر حال غير معصوم انسانان وه بيا د دغه درو ډولو خلګو څخه هم لومړۍ ډله يا د قرن اول خلګ يعني د صحابه کرامو د عظمت او درجې څه ځای نسته د هغوی تعظيم او تکريم کول پر هر امتي باندي لازم دي دا حکم د هغوی په ژوند کي هم د هر مسلمان لپاره وو او د هغوی د مرګ څخه وروسته هم پاته سو او تر قيامته پوري به همداسي پاته وي، که يو څوک هر څومره د علم او فضل، تقوا او پرهيزګارۍ لوړ مقام ته و رسيږي مګر هغه د رسول الله ﷺ د صحابي پر عمل او کړني باندي بد نه سي ويلای که يو سړی دا جرئت وکړي نو هغه د رسول الله ﷺ د ارشاد خلاف کوي، او د صحابوو د عزت او حرمت مجروح کولو په سبب خپل ايمان په خطره کي اچوي.

بېله شکه صحابه کرام د امت هغه بزرګان او نيک کسان دي چي د رسول الله ﷺ ملګري او خادمان وه چي د رسول الله ﷺ څخه يې د علم او عمل روزنه تر لاسه کول، په هغوی کي کومو بزرګانو ته چي د صحبت او خدمت شرف تر لاسه نه سو او محض د جمال باکمال ليدنه يې په برخه سول د هغوی مقام هم د امت تر لوی عالم او فاضل، عابد او زاهد، غازي او مجاهد زيات دی، شيخ ابوطالب مکي رحمة الله عليه ډېره ربښتونې خبره کړې ده چي د رسول الله ﷺ پر مخ مبارک باندي د لوېدونکي يو نظر څخه دومره څه تر لاسه کېدل او د مطلب رسېدو هغه دولت په لاس راتلی چي د نورو لويو لويو خلوتونو څخه هم نه سو تر لاسه کېدای، د ايمان عياني او يقين شهودي کوم مقام چي د هغوی په برخه وو په هغوی کي هيڅوک د هغوی شريک نسته.

تر دې وروسته به درواغ ظاهر سي: یعني په دغه درو زمانو کي خو دین پر خپل اصلي حالت وو او په اخلاص سره ټول کارونه تر سره کېدل مګر د قرن ثالث یعني تبع تابعینو د زمانې څخه وروسته چي کومه زمانه راځي هغه به دین او دیانت لپاره خوندي نه وي ، یعني په دې کي دې ته اشاره ده چي د تبع تابعینو د قرن د خاتمې څخه وروسته به د بدعاتو او نفساني خواهشاتو دور شروع سي ، که څه هم د غیر اسلامي افکارو او نظریاتو لرونکو خلګو لکه معتزله، قدریه ، مرجیه او داسي نورو ظهور په نورو وروستو زمانو کي وسو مګر د هغوی څخه مخکي د بدعاتو ظهور سوی وو .

جماعت لازم ونیسئ : دلته د جماعت څخه مراد د ملت سواد اعظم دی، مطلب دا چي په دیني او ملي چارو کي هغه اصول او تعلیمات لاربنود کړل سي کوم چي د جمهورو صحابه کرامو، تابعینو او سلف صالحینو څخه منقول دي او د هغوی پیروي دي اختیار کړل سي، نو په دغه حکم کي د صحابه کرامو، تابعینو او سلف صالحینو مینه او دهغوی تعظیم هم شامل دی .

هغه مؤمن دی، یعني د کامل مؤمن نښه داده چي په نیکۍ کولو سره مطمئن سي او که بدي رامنځته سي نو ناراضه سي ، دغه خبره علماؤ د زړه د ژوندي او حساس کېدو علامه ګرځولې ده، نو کوم څوک چي په نیکي سره نه خوشحاله کیږي او نه په بدي سره خفه کیږي د هغه زړه مړ سوي وي او احساسات یې فنا سوي وي او داسي وي لکه منافق چي د قیامت او اخرت د عقیدې څخه خالي وي، د هغه په نزد نیکي او بدي دواړه برابر دي حال دا چي د الله جل جلاله ارشاد دی : (ولا تستوي الحسنة ولا السیئة) نیکي او بدي برابر نه دي .

## د صحابه کرامو او تابعینو فضیلت

﴿۵۷۵۹﴾: وَعَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَمَسُّ النَّارُ مُسْلِمًا رَآنِي أَوْ رَأَى مَنْ رَآنِي. رواه الترمذي.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : هغه مسلمان چي هغه زه لیدلی یم ، یا هغه سړی یې ولیدی چي هغه زه لیدلی یم نو اور به یې نه مس کوي . ترمذي

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۵٦۱، رقم: ۳۸۵۸.

**تشریح**: مطلب دا چي کوم چا رسول الله صلی الله علیه وسلم ولیدی یا د رسول الله صلی الله علیه وسلم لیدونکی یعني صحابي یې ولیدی نو هغه به جنت ته ځي، په شرط ددې چي د هغه خاتمه پر ایمان او اسلام باندي سوې

وي، ددغه شرط پر بنياد د رسول الله ﷺ ددغه زيري سره سم صحابي او تابعي خو جنتي دي مگر د الله ﷻ د فضل څخه اميد دى چي هر مسلمان جنتي دى ، څرگنده دي وي چي د هغه چا د جنتي کېدو اميد کيږي چي په ايمان او اسلام سره له دنيا څخه رخصت سي مگر ځيني خاص خلک داسي دي چي د هغوى د جنتي کېدو څرگند زيرى رسول الله ﷺ داسي ورکړ چي په دنيا کي يې وښودل چي دغه خلک په يقيني توگه جنتي دي، لکه عشره مبشره، يا لکه د صحابه کرامو او تابعينو په اړه د رسول الله ﷺ په دغه حديث کي عمومي زيرى ورکړل سوى دى مگر ددې مطلب دا نه دى چي د رسول الله ﷺ د زيري څخه نور مسلمانان محروم دي، حقيقت دا دى چي کله رسول الله ﷺ احساس وکړ چي د صحابه کرامو او تابعينو په اړه ددغه زيري په لېدو سره هغه مسلمان چي نه هغه ته د رسول الله ﷺ د ليدني او ملگرتيا شرف تر لاسه سوى وي او نه د صحابي د لېدني شرف تر لاسه سوى وي هغوى به پر محرومۍ باندي زړه سي نو رسول الله ﷺ د هغوى د ډاډ لپاره وفرمايل: طوبى لمن راني وامن بي مرة وطوبي لمن لم يرني وامن بي سبع مرات.

## د صحابه کرامو فضيلت

﴿۵۷۶۰﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُغَفَّلٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن مغفل رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

اللّٰهَ اللّٰهَ فِي أَصْحَابِي اللّٰهَ اللّٰهَ فِي أَصْحَابِي لَا تَتَّخِذُوهُمْ غَرَضًا بَعْدِي فَمَنْ

د خداى ﷻ څخه وبيرېږئ او بيا د خداى ﷻ څخه وبيرېږئ ، زما د اصحابو په اړه د خداى ﷻ څخه وبيرېږئ او زما د اصحابو په اړه د خداى ﷻ څخه وبيرېږئ ، زما څخه وروسته تاسو

أَحَبَّهُمْ فَبِحُبِّي أَحَبَّهُمْ وَمَنْ أَبْغَضَهُمْ فَبِبُغْضِي أَبْغَضَهُمْ وَمَنْ آذَاهُمْ فَقَدْ

هغوى د بد او رد نښه مه جوړوئ څوک چي د هغوى سره مينه ساتي زما د ميني په سبب هغوى محبوب ساتئ او څوک چي د هغوى سره دښمني کوي نو زما سره د دښمنۍ په سبب د هغوى سره دښمني ساتي ، او چا چي هغوى ته تکليف ورسوئ

آذَانِي وَمَنْ آذَانِي فَقَدْ آذَى اللّٰهَ وَمَنْ آذَى اللّٰهَ يُوشِكُ أَنْ يَأْخُذَهُ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

هغه ما ته تكليف ورسوئ، او چا چي ما ته تكليف ورسوئ هغه خداى ﷻ ته تكليف ورسوئ او چا چي خداى ﷻ ته تكليف ورسوى خداى ﷻ به هغه ډير ژر ونيسي. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي: ۵\۶۵۳، رقم: ۳۸۶۲.

**تشريح**: د الله ﷻ څخه و بيريږئ: دغه الفاظ رسول الله ﷺ په تاكيد او مبالغې سره دوه واره وفرمايل، د صحابه كرامو په حق كي د الله ﷻ څخه د بيرېدو مفهوم دادى چي د هغوى عزت او توقير دي وكړل سي، دهغوى د عظمت او فضيلت دي په هرحال كي لحاظ وساتل سي او د رسول الله ﷺ د ملګرتيا چي هغوى ته حاصله ده د هغه حق دي اداء كړل سي.

زما څخه وروسته تاسو هغوى د بد او رد نښه مه جوړوئ: مطلب دا چي د هغوى په اړه مه بد ګمانه كيږئ، دهغوى د عظمت خلاف هيڅ خبره د ژبي څخه مه باسئ د هغوى د عيبو او غلطيو ويلو څخه ځان وساتئ.

زما د مينې په سبب هغوى محبوب وساتئ: ددې مطلب دادى چي د هغوى سره مينه ځكه وكړئ چي زه د هغوى سره مينه لرم، د ارشاد خلاصه داده چي زما د صحابوو سره مينه كوونكي زما سره مينه كونكي دي او زما د صحابوو سره دښمني كوونكي زما سره دښمني كوونكي دي، ددې څخه معلومه سول چي د مالكيه مذهب حق دى چي كوم څوک صحابي ته بد ووايي نو په دنيا كي واجب القتل ګرځي.

علماؤ ليكلي دي: د يو چا سره د صحيح او ريښتوني ميني نښه داده چي د هغه مينه د محبوب د ذات څخه په تېرېدو سره د هغه متعلقينو ته ورسيږي، نو د الله ﷻ سره د ميني نښه داده چي د هغه د رسول سره هم مينه وي او د رسول سره د ميني نښه داده چي د هغه د كورنۍ او صحابو سره هم مينه وي.

كله چي الله ﷻ هغه ونيسي: ددې مطلب دادى چي كوم څوک د خپلي جذبي او عمل په ذريعه دا ښكاره كړي چي هغه الله ﷻ ته تكليف رسوي نو هغه سړى د الله ﷻ د نيوكي څخه ساتل كيداى نه سي، يعني په آخرت كي به په عذاب اخته وي او په دنيا كي به هم عذاب پر راځي، دا په دې اعتبار ويل سوي دي چي دغه حديث كيداى سي د الله ﷻ ددغه ارشاد څخه ماخوذ وي:

إِنَّ الَّذِينَ يُؤْذُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ لَعَنَهُمُ اللَّهُ فِي الدُّنْيَا وَالآخِرَةِ وَأَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا مُّهِينًا وَالَّذِينَ يُؤْذُونَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ بِغَيْرِ مَا اكْتَسَبُوا فَقَدِ احْتَمَلُوا بُهْتَانًا وَإِثْمًا مُّبِينًا.

ژباړه: بېله شکه کوم کسان چي الله ﷻ او د هغه رسول ته تکليف ورکوي ، الله ﷻ پر هغوی په دنيا او آخرت کي لعنت کوي او د هغوی لپاره ذليل کونکي عذاب تيار کړی دی، او کوم کسان چي مؤمنو نارينوو او مؤمنو ښځو ته بېله ددې چي هغوی يو څه کړي وي، تکليف رسوي نو هغه خلک د بهتان او ښکاره ګناه بار اخلي.

## د صحابه کرامو او امت مثال

﴿۵۷۶۱﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ أَصْحَابِيْ فِيْ أُمَّتِيْ كَالْمِلْحِ فِي الطَّعَامِ لاَ يَصْلَحُ الطَّعَامُ إِلاَّ بِالْمِلْحِ قَالَ الْحَسَنُ فَقَدْ ذَهَبَ مِلْحُنَا فَكَيْفَ نَصْلَحُ. رواه في شرح السنة.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زما اصحاب زما په امت کي داسي مثال لري لکه مالګه په کتغ کي، خوراک تر هغه پوري خوند نه کوي تر څو پوري چي مالګه پکښي وانه چول سي، ددغه حديث اوريدو سره حسن وفرمايل زموږ مالګه ولاړل بيا به خپل خوراک موږ څنګه خوندور جوړ کړو. شرح السنه.

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۴\۷۲، رقم: ۳۸۶۳.

**تشريح**: حضرت حسن بصري رحمه الله چي ددغه حديث په اورېدو سره خپل کوم تاثر بيان کړ د هغه مطلب دا وو چي اوس خو صحابه کرام له دنيا څخه رخصت سوي دي نو دا څرنګه کيدای سي چي موږ دي ښه سو ، د حضرت حسن بصري رحمه الله په دغه تاثر کي ډېر افسوس دی او هغه ددغه افسوس اظهار ددغه حقيقت سره وکړ چي د هغوی په زمانه کي ځيني صحابه کرام موجود وه، څرګنده دي وي چي حضرت حسن بصري رحمه الله په ۱۱۰ هجري کال کي وفات سوی دی.

ملا علي قاري رحمه الله د حضرت حسن بصري رحمه الله ددغه قول نقل کولو څخه وروسته يوه لويه عارفانه خبره کړې ده چي که څه هم په دغه دنيا کي او د امت په منځ کي صحابه کرام موجود نه دي مګر موږ ښه کېدلای سو ، د هغوی د اقوالو او ارشاداتو څخه، دهغوی د نقل سوو روايتو څخه، دهغوی د سترو کړنو او حالاتو د رڼا څخه او د هغوی د اخلاقو او اوصافو د پيروۍ څخه ، ځکه چي اصل اعتبار خو ددغه شيانو دی نه د ذات او بدن.

## د صحابي خلك جنت ته بيول

﴿۵۷۶۲﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ بُرَيْدَةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ أَحَدٍ مِنْ أَصْحَابِي يَمُوتُ بِأَرْضٍ إِلَّا بُعِثَ قَائِدًا وَنُورًا لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب ، وذكر حديث ابن مسعود لا يبلغني احد في باب حفظ اللسان.

حضرت عبد الله بن بريده رضي الله عنه د خپل پلار څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زما په اصحابو کي چي څوک پر کومه ځمکه مړ سي نو د هغه ځای څخه به په داسي حال کي پورته کیږي چي هغه به د هغه ځمکي خلک د جنت خوا ته بيايي او د قيامت په ورځ به د خلکو لپاره نوروي. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۶۵۴، رقم: ۳۸۶۵.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### صحابه کرامو ته بدويل د لعنت سبب دی

﴿۵۷۶۳﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا رَأَيْتُمُ الَّذِينَ يَسُبُّونَ أَصْحَابِي فَقُولُوا لَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى شَرِّكُمْ. رواه الترمذي.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چي تاسو هغه خلک ووينئ چي زما اصحابو ته بد وايي نو تاسو ورته ووایاست چي ستاسو پر دغه شرير کار دي د خدای جل جلاله لعنت وي. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۶۵۴، رقم: ۳۸۶۶.

**د لغاتو حل**: شركم: اهل الشر والفتنة.

**تشريح**: په دغه حديث کي دې ته اشاره ده چي صحابه کرامو ته د بد ويونکي بدي خپله هغه ته راګرځي ځکه چي فتنه او شر والا هغه دی او صحابه کرامو خو په خپلو قبرو کي دي، او په دې اعتبار هغوی يوازي د رضا او رحمت لائق دي او په حديث کي ذکر سوی حکم دې ته اشاره

کوي چي د هغه سړي (چي صحابي ته بد وايي) پر ذات د لعنت کولو پر ځای د هغه پر فعل باندي لعنت کول احتیاط ته نژدې دی.

ذکر سوی روایت د ترمذي څخه ماسوا خطیب رحمة الله علیه هم نقل کړی دی او ابن عدي رحمة الله علیه د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه مرفوعا نقل کړی دی چي:

ان اشرار امتي اجرؤهم علی اصحابي.

ژباړه: بېله شکه زما د امت خراب خلګ هغه دي چي زما د صحابوو په اړه بې ادبي کوي.

په یو بل مرفوع حدیث کي دي چي:

یکون في آخر الزمان قوم یسمون الرافضة یرفضون الاسلام فاقتلوهم فانهم مشرکون.

ژباړه: په اخره زمانه کي به داسي خلګ پیدا سي چي هغوی ته به رافضي ویل کیږي دغه خلګ به د اسلام پرېښودونکي وي نو تاسو هغه ووژنئ ځکه چي هغوی مشرکان دي.

په یو بل روایت کي داسي فرمایل سوي دي:

وینتحلون حب اهل البیت ولیسوا کذلک وایة ذلک انهم یسبون ابابکر وعمر.

ژباړه: او هغه خلګ به د اهل بیتو د صحبت دعوه کوي حال دا چي هغوی به داسي نه وي، د هغه خلګو علامه به دا وي چي هغوی به ابوبکر او عمر رضي الله عنهما ته بد وایي.

په دغه دنیا کي د داسي خلګو پیدا کېدل چي ځینو سترو صحابه کرامو ته بد وایي لکه روافض یا د ځینو سترو اهل بیتو په اړه خرابي عقیدې لري او بد ویل کوي لکه خوارج، کیدای سي ددې لپاره وي چي کله هغه ستر کسان د دنیا څخه رخصت سوي دي او د هغوی په عمل نامه کي د ثواب زیاتوب تل جاري وي چي په جنت کي د هغوی د درجو د لوړوالي سبب دی او د هغوی دښمنان د سخت عذاب سره مخامخ کیږي، نو دغه سترو کسانو ته بد ویونکي د هغوی په ثواب کي د زیاتوب سبب ګرځي او د خپل ځان عذاب زیاتوي.

## د صحابه کرامو اقتداء د هدایت ذریعه ده

﴿۵۷۶۴﴾: وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اوریدلي دي چي

يَقُوْلُ سَأَلْتُ رَبِّيْ عَنْ اِخْتِلَافِ أَصْحَابِيْ مِنْ بَعْدِيْ فَأَوْحٰى إِلَيَّ يَا مُحَمَّدُ إِنَّ

فرمایل یې: ما د خپل پروردګار څخه د خپل وفات وروسته د صحابه کرامو د اختلاف په اړه پوښتنه وکړه، نو خدای تعالی زه د وحي په ذریعه خبر کړم چي اې محمد! (صلی الله علیه وسلم)

أَصْحَابَكَ عِنْدِيْ بِمَنْزِلَةِ النُّجُوْمِ فِي السَّمَاءِ بَعْضُهَا أَقْوٰى مِنْ بَعْضٍ وَلِكُلٍّ

ستا اصحاب زما په نزد داسي دي لكه په آسمان كي ستوري، ځيني په هغو كي د ځينو څخه

نُوْرٌ فَمَنْ أَخَذَ بِشَيْءٍ مِمَّا هُمْ عَلَيْهِ مِنْ اِخْتِلاَفِهِمْ فَهُوَ عِنْدِيْ عَلٰى هُدٰى

قوي دي مګر پر هر حال ټول روښانه دي چا چي د هغوی د اختلاف څخه څه واخيستل زما په نزد

قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَصْحَابِيْ كَالنُّجُوْمِ فَبِأَيِّهِمُ

اِقْتَدَيْتُمْ اِهْتَدَيْتُمْ. رواه رزين.

هغه پر هدايت دی، د حضرت عمر رضي الله عنه بيان دی چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي زما اصحابه په مثال د ستورو دي په هغوی كي چي د چا پيروي كوئ هدايت به تر لاسه كړئ. رزين.

**تخريج**: رواه رزين.

**تشريح**: داسي دي لكه د آسمان ستوري: مطلب دا چي څرنګه په تياره شپه كي پر آسمان باندي ځلېدونكي ستوري مسافرو ته د درياب او ځنګل د لارو نښي ښيي چي قرآن كريم ورته په دغه الفاظو اشاره كړې ده (وبالنجوم هم يهتدون) او د ستورو په ذريعه هغوی لاره تر لاسه كوي، همدارنګه صحابه كرام كي هم د صداقت لارښوونكي او د بدۍ ليري كوونكي دي چي د هغوی نوراني وجود د هغوی اخلاق او كړني او دهغوی د رواياتو او تعليماتو په رڼا كي حق لار څرګنديږي او د بدۍ تيارې ليري كيږي.

زما په نزد هغه پر هدايت دی، ددې څخه ثابته سول چي د امامانو خپل منځي اختلاف د امت لپاره رحمت دی مګر څرنګه چي طيبي رحمه الله وضاحت كړی دی چي د اختلاف څخه مراد هغه اختلاف دی چي د دين په فروعي مسائلو كي وي نه د دين په اصولو كي، سيد جمال الدين ليكلي دي: په ظاهره داخبره صحيح ده چي په دغه حديث كي د صحابه كرامو كوم اختلاف ته اشاره ده د هغه څخه هغه اختلاف مراد دی چي په ديني معاملاتو او مسائلو كي څرګند سي نه هغه اختلاف چي په دنيوي چارو كي ظاهر سي، د دغه وضاحت په رڼا كي پر هغه اختلاف باندي سوال نه كيږي كوم چي د خلافت او امامت په اړه د ځينو صحابه كرامو په منځ كي څرګند سوی وو.

مګر په دې اړه ملا علي قاري رحمه الله ليكلي دي: زما په نزد صحيح خبره داده چي د خلافت او امارت سره پېښېدونكي اختلافات هم په فروع دين كي د اختلاف په ډله كي راځي ځكه چي

په دې اړه د هغوی په منځ کي کوم اختلاف چي واقع سو هغه اجتهاد وو نه د دنيوي مقصد او نفساني جذبې په وجه، لکه څرنګه چي د پاچاهانو په نزد وي.

د چا چي پيروي کوئ نو هدايت به تر لاسه کړئ: ولکل نور، په هغوی هر يوه کي نور دی، د دغه جملې په ذريعه دې حقيقت ته اشاره وکړل سوه چي هر صحابي د خپلي خپلي مرتبې او استعداد مطابق د علم او فقه نور لري او په دې اعتبار هيڅ صحابي د دين او شريعت د علم څخه خالي نه دی ځکه کوم صحابي چي د خپلي مرتبې او استعداد مطابق د دين او شريعت کوم خبره بيانوي د هغه پيروي به د هدايت ضامن وي.

څرګنده دي وي چي په دغه حديث کي (اصحابي کالنجوم ...) علماؤ کلام کړی دی، ابن حجر رحمة الله عليه پر دغه حديث باندي او رد بحث کړی دی چي دغه حديث موضوع باطل دی مګر له دې سره د بيهقي دغه قول هم ذکر کړی دی چي د مسلم د يوه حديث څخه د دغه حديث ځيني معنی ثابتيږي، د مسلم په حديث کي دي: النجوم امنة السماء، ستوري د آسمان محافظين او آمين دي او بيا په دغه حديث کي دا الفاظ دي: واصحابي امنة لامتي، او زما اصحاب زما د امت امين او محافظين دي.

===========

# بَابُ مَنَاقِبِ اَبِيْ بَكْرٍ رضي الله عنه

## (د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د مناقبو او فضائلو بيان)

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه مقام

﴿۵۷۶۵﴾: عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ

د حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : بېشکه

مِنْ أَمَنِّ النَّاسِ عَلَيَّ فِي صُحْبَتِهِ وَمَالِهِ أَبَا بَكْرٍ وعند البخاري ابابكر وَلَوْ

د ډېر احسان کونکی د خلکو زما سره په صحبت خپل کي او په مال خپل کي ابوبکر دی او په نزد د بخاري ابابکر دی او که چيري

كُنْتُ مُتَّخِذًا خَلِيلًا لَاتَّخَذْتُ أَبَا بَكْرٍ وَلَكِنْ أُخُوَّةُ الْإِسْلَامِ وَمَوَدَّتُهُ لَا تَبْقَيَنَّ

ما يو ثوک خپل خليل نيولای نو ابوبکر ﷛ به مي نيولی وای مګر وروولي د اسلام ده او

في الْمَسْجِدِ خوخة الا خوخة ابي بکر، وفي رواية لوكنت متخذا خليلا غير ربي لااتخذت ابابكر خليلا. متفق عليه.

دوستي د اسلام ده او په مسجد نبوي کي دي د هيچا کلکين پاتـه نه سي مګر د ابوبکر ﷛ د کور کلکين، او په يوه روايت کي دا الفاظ دي که ما د خدای ﷻ څخه پرته بل ثوک خليل جوړولای نو ابوبکر ﷛ به مي جوړ کړی وای. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۲۲۷، رقم: ۳۹۰۴، ومسلم ۴\۱۸۵۴، رقم: ۲– ۲۳۸۲.

**د لغاتو حل**: امن: انعمهم. الخوخة: باب صغير (دريچه).

**تشريح**: هغه ابوبکر ﷛ دی، مطلب دا چي په کوم تندي سره ابوبکر ﷛ زما خدمت کړی دی او په کومي قرباني او اخلاص سره يې زما پر ذات باندي يا زما د رضا لپاره د دين په لاره کي خپل مال ډېر زيات مصرف کړ دا د هغه امتيازي وصف دی چي زما په اصحابو او زما په ټول امت کي هغه ته تر ټولو لوړ مقام ورکوي.

خليل، که چيري د خلة څخه مشتق وي نو معنی يې د ريښتوني ملګري ده، او د خلة لفظ په اصل کي د سرايت کونکي ملګري او ميني مفهوم لري، يعني هغه ريښتوني ملګرتيا او مينه چي په زړه کي دننه داسي سرايت وکړي چي محبوب د محب پر ظاهر او باطن حکمران او دهغه محرم اسرار جوړولو تقاضا وکړي، نو رسول الله ﷺ فرمايي: که زما لپاره روا وای چي زه په مخلوق کي ثوک په دغه صفت سره خپل ريښتونی دوست جوړ کړم چي د هغه محبت زما په زړه کي سرايت وکړي او هغه زما محرم اسرار سي نو يقينا ما به ابوبکر ﷛ خپل داسي دوست جوړ کړی وای ځکه چي هغه د دوستۍ ددغه صفت استعداد او اهليت لري مګر زما دومره مينه يوازي د الله ﷻ سره ده چي د هغه مينه زما پر ظاهر باندي هم حکمرانه ده او زما پر باطن باندي هم، او هغه زما محرم اسرار دی مګر د ظاهر زړه د ميني زما کوم تعلق چي د ټولو مسلمانانو سره دی په هغه کي د ابوبکر ﷛ مقام يقينا تر ټولو لوړ دی.

يا دا چي خليل په اصل کي د خلة څخه مشتق دی چي د هغه معنی د احتياج ده، په دغه صورت کي به د ارشاد خلاصه دا وي که چيري ما يو ثوک خپل داسي دوست جوړولای چي هغه

ته زه د خپلو اړتیاوو په وخت کي رجوع وکړم او په خپلو چارو کي پر هغه باور وکړم نو یقینا ابوبکر رضي الله عنه به مي داسي دوست جوړ کړی وای مګر په داسي ټولو چارو کي زما واحد رجوع الله جل جلاله ته ده، او په ټولو حالاتو کي زما واحده مرسته او ملجا د هغه ذات دی ، مګر د اسلامي اخوت او میني چي زما ظاهري او قلبي تعلق د ټول امت سره دی په هغه کي د ابوبکر رضي الله عنه مقام تر ټولو لوړ دی، دغه دوهمه معنی که څه هم د حدیث د سیاق سره زیات مناسبت لري مګر محدثینو لومړنۍ معنی غوره ګرځولې ده .

د ابوبکر رضي الله عنه د کلکین څخه ماسوا : په حدیث کي د خوخة لفظ دی چي د هغه معنی د کلکین او روښن دان ده، یعني سوری چي د کور یا خوني د رڼا لپاره په دیوال کي جوړیږي، ځینو حضراتو ویلي دي چي د خوخة معنی د کلکین ده ، په پیل کي د مسجد نبوي سره متصل چي کوم سرایونه وه د هغو کلکینان مسجد نبوي ته را خلاص وه چي د هغه په ذریعه مسجد ته تلل او راتلل یا د هغوی په سرایو کي مسجد شریف ته خلاص سوي وه چي د هغه په ذریعه مسجد دننه برخه معلومېدل او د هغه سرایو خلک به دخپلو هغه کلکینانو په ذریعه کتل چي رسول الله صلی الله علیه وسلم مسجد ته راغلی دی که یا، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم په مرض الموت کي چي آخري خطبه وفرمایل په هغه کي یې دا حکم وکړ چي مسجد ته د کورو کلکینان دي بند کړل سي یوازي د ابوبکر رضي الله عنه د کور کلکین دي خلاص وي ، ددغه حکم په ذریعه د حضرت ابوبکر رضي الله عنه افضیلت او د هغه د تکریم اظهار خو مقصد وو مګر په اصل کي ددې خبري څخه کنایه هم وه چي زما څخه وروسته د امت مشرتوب، قیادت او امامت کبری یعني خلافت لپاره دي ابوبکر رضي الله عنه وټاکل سي، او په دغه مسئله کي دبحث او خبرو کولو دروازه دي هیڅ خوا ته نه خلاصیږي، نقل سوي دي چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم ددغه حکم په اورېدو سره کله چي خلکو خبري وکړلې نو رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: دغه خبره زما د خپل ځانه نه ده کړې بلکه د الله جل جلاله په حکم مي کړې ده، په یوه روایت کي راغلي دي چي حضرت عمر رضي الله عنه غوښتنه وکړل چي ما ته په خپل دېوال کي د یو کلکین خلاصولو اجازه راکړل سي چي د هغه په ذریعه ما ته په مسجد کي د رسول الله صلی الله علیه وسلم د راتللو علم کیږي نو رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: نه،، د ستني د سوري په اندازه سوری دي هم نه پرېښودل کیږي .

## د حضرت ابوبکر صدیق او حضرت علي رضي الله عنهما په اړه د روایتونو اختلاف :

حافظ ابن حجر عسقلاني رحمة الله علیه د صحیح بخاري په شرح کي لیکلي دي چي په ډېرو طریقو سره داسي حدیثونه نقل سوي دي چي په ظاهره ددغه حدیث مخالف او معارض معلومیږي چي

ه هغه کي د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه په اړه دا حکم دی چي د مسجد نبوي خوا ته د هغه د کور کلکين يا روشندان څخه پرته د بل چا کلکين يا روشن دان دي نه پاته کيږي، په دې کي يو حديث خو هغه دی چي د حضرت سعد ابن وقاص رضی الله عنه څخه منقول دي چي رسول الله ﷺ د صحابه کرامو د کورو د هغه دروازو بندولو حکم وکړ چي مسجد نبوي خوا ته وې مګر د حضرت علي رضی الله عنه دروازه يې خلاصه پرېښودل، دغه حديث احمد او نسائي نقل کړی دی او د سنادو په قوي کيدو کي يې شک نسته، او طبراني په اوسط کي د باوري راويانو په حواله سره ا روايت نقل کړی دی چي صحابه کرام يو ځای سول او د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سول او عرض يې وکړ چي اې دالله رسوله! تاسو د نورو صحابوو د دروازو بندولو حکم وکړ مګر د علي رضی الله عنه دروازه مو خلاصه پرېښودل، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: دروازې نه ما بندي کړي دي او نه مي خلاصي پرې ايښي دي بلکه الله جل جلاله بندي کړي او خلاصي کړي دي، په حقيقت کي د الله جل جلاله له خوا ما ته حکم سوی دی چي د علي رضی الله عنه د دروازې څخه ماسوا نوري ټولي دروازې بندي کړم.

همدارنګه روايت احمد او نسائي د حضرت ابن عباس او حضرت ابن عمر رضی الله عنهما څخه نقل کړی دی، ابن حجر رحمة الله عليه وايي: په دې کي هر يو حديث د حجت وړ دی په خاصه توګه په هغه صورت کي چي په هغه کي ځيني حديث ته د ځيني حديث څخه زيات قوت حاصل سوی وي، ابن حجر رحمة الله عليه دا هم ليکلي دي چي کوم حديث د حضرت علي رضی الله عنه په شان کي وارد سوی دی هغه ابن جوزي موضوع ګرځولی دی او دهغه په ځينو طريقو کي په دې وجه خبري سوي دي چي دا حديث د هغه صحيح احاديثو خلاف دی کوم چي د ابوبکر صديق رضی الله عنه په شان کي منقول دي، او ويلي يې دي چي روافض د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه په شان کي د منقولو حديثونو په مقابله کي دغه حديث وضع کړی دی مګر ابن حجر د ابن جوزي دا خبره منلې نه ده او ويلي يې دي چي محض ددې مفروضي په وجه چي دا حديث د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه سره د متعلق حديث معارض دی دا موضوع ګرځول مناسب نه دي بلکه حقيقت دادی چي د حضرت علي رضی الله عنه سره متعلق حديث په داسي طريقو سره منقول دي چي په هغه کي ځيني طريقې حد صحت ته رسيدلي دي او ځيني وختونه د حسن حديث په اړه په اصل کي ابن حجر په بنيادي توګه دا خبره نه مني چي د دغه دواړو حديثو په منځ کي څه تعارض او تضاد دی ، هغه په ښرګنده ليکلي دي چي د حضرت علي رضی الله عنه سره اړوند هغه حديث او د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه په شان کي منقول حديث په منځ کي معارضه نسته او وجه توافق هغوی دا ليکلې وه چي د نورو صحابه کرامو د

دروازو بندولو حکم او د حضرت علي رضی الله عنه د دروازې د خلاصي پاتېدو اجازه د هغه لومړنی زمانې واقعه ده کله چي مسجد نبوي نوی جوړ سوی وو ،

د حضرت علي رضی الله عنه سرای هم د مسجد نبوي سره ملحق وو او د هغه د سرای دروازه مسجد نبوي ته داسي وه چي حضرت علي رضی الله عنه د مسجد څخه په تېرېدو سره خپل سرای ته تللی او راتلی او دا په طریقه د صحت منقول دی چي رسول الله ﷺ د حضرت علي رضی الله عنه په وړاندي فرمایلي وه چي دغه مسجد ته هیڅ جنب نه راځي مګر ما ته او تا ته په دغه مسجد کي د تېرېدو اجازه ده ، پاته سوه د هغه حدیث خبره چي په هغه کي د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه څخه ماسوا د نورو کورو د کلکینانو بندولو حکم منقول دي نو دغه ارشاد د هغه زمانې دی کله چي رسول الله ﷺ په مرض الوفات کي وو او د وفات څخه دوې یا درې ورځي مخکي رسول الله ﷺ دا حکم صادر کړی وو ، ددې خبري اصل هغه روایت دی چي په هغه کي بیان سوی دی چي کله رسول الله ﷺ د حضرت علي رضی الله عنه څخه ماسوا د نورو ټولو دروازو بندولو حکم وکړ نو حضرت حمزه ابن عبدالمطلب د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو ، دا په اصل کي هغه وخت حضرت حمزه رضی الله عنه د سترګو په درد اخته وو او دهغه د سترګو څخه اوبه بهېدلې ، له دې کبله د هغه له خوا د رسول الله ﷺ د ذکر سوي حکم په تعمیل کي توقف سوی وو ، هغه وویل: اې دالله رسوله! تاسو خپل اکا (یعني زه) خو وایستی او د اکا زوی (یعني علي رضی الله عنه) مو دننه پرېښود ، رسول الله ﷺ وفرمایل: اې اکا ! حقیقت دادی چي په دې اړه زما څه اختیار نسته ، ما هغه کړي دي کوم چي ما ته حکم سوی دی نو په دغه پېښه کي د حضرت حمزه رضی الله عنه د یادوني څخه ثابته سول چي د حضرت علي رضی الله عنه سره متعلق ذکر سوی حدیث بالکل د لومړنی زمانې دی ځکه چي حضرت حمزه رضی الله عنه د احد په غزا کي شهید سوی وو چي د دریم هجري کال پېښه ده .

## ابوبکر صدیق رضی الله عنه غوره صحابي دی

﴿۵۷۶۶﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَوْ كُنْتُ مُتَّخِذًا خَلِيلًا لَاتَّخَذْتُ أَبَا بَكْرٍ خَلِيلًا وَلَكِنَّهُ أَخِي وَصَاحِبِي وَقَدْ اتَّخَذَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ صَاحِبَكُمْ خَلِيلًا . رواه مسلم.

د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : که ما یو څوک خپل خاص دوست جوړولای نو ابوبکر رضی الله عنه به مي جوړ کړی وای مګر ابوبکر رضی الله عنه زما ورور او زما

صحابي دی او البته ستاسو دوست (یعني رسول الله ﷺ) خدای ﷻ خپل خلیل جوړ کړی دی. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۴\۱۸۵۵، رقم: ۳- ۲۳۸۳.

**تشریح**: د امام احمد ابن حنبل رحمة الله عليه په روایت کي داسي دي:

اخي في الدین وصاحبي الغار، ابوبکر رضي الله عنه زما دیني ورور دی او زما د غار ملګری دی.

په مسند ابو لیلی کي د حضرت ابن عباس رضي الله عنه دا روایت داسي نقل سوی دی:

ابوبکر صاحبي ومونسي في الغار سدوا کل خوخة في المسجد غیر خوخة ابي بکر.

ژباړه: ابوبکر زما د غار ملګری او مونس دی، مسجد ته ټول کلکینان بند کړئ ماسوا د ابوبکر رضي الله عنه د کلکین څخه.

دغه روایت ابوحاتم هم نقل کړی دی او ویلي یې دي چي د رسول الله ﷺ ارشاد: سدوا...الخ: دا په اصل کي ددې خبري اشاره ده چي زما څخه وروسته د خلافت لومړی حق د ابوبکر رضي الله عنه دی، دده څخه ماسوا د نورو ټولو خلګو د خلافت دغوښتني دروازه بنده ده.

الله ﷻ خپل خلیل ګرځولی دی، د لومړني حدیث څخه دا معلومه سول چي رسول الله ﷺ، الله ﷻ خپل خلیل جوړ کړی دی او دلته په دغه حدیث کي دا ذکر سوي دي چي الله ﷻ، رسول الله ﷺ خپل خلیل جوړ کړی دی، ددې مقصد دا ښودل دي چي کوم څوک په مینه کي صادق او خالص وي هغه مرتبه محبوبیت ته رسیږي،

هر که او درعشق صادق آمده است ... بر سرش معشوق عاشق آمده است

په اصل کي رسول الله ﷺ حبیب الله وو او حبیب هغه محب ته وایي چي د محبوبیت مرتبې ته ورسیږي، ځیني حضرات خلت اعلی اخص ګرځوي او رسول الله ﷺ ته د میني او خلت جامع وایي او امام غزالي رحمة الله عليه لیکلي دي چي د رسول الله ﷺ خلت د حضرت ابراهیم عليه السلام د خلت څخه زیات کامل او اتم دی، په هر حال ذکر سوی حدیث ددغه حقیقت څرګند دلیل دی چي حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه په صحابه کرامو کي افضل دی.

## د خلافت وصیت

﴿۵۷۶۷﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ ما ته د خپل مرض الموت په زمانه

مَرَضِهِ ادْعِي لِي أَبَا بَكْرٍ أَبَاكِ وَأَخَاكِ حَتَّى أَكْتُبَ كِتَابًا فَإِنِّي أَخَافُ أَنْ يَتَمَنَّى

کي وفرمايل : زما د لوري خپل پلار ابوبکر او خپل ورور راوغواړه، چي زه يو تحرير وليکم ځکه چي زما سره دا انديښنه ده چي يو ثوک آرزو ونه کړي (يعني د خلافت)

مُتَمَنٍّ وَيَقُولُ قَائِلٌ أَنَا أَوْلَى وَيَأْبَى اللّٰهُ وَالْمُؤْمِنُونَ إِلَّا أَبَا بَكْرٍ. رواه مسلم وفي كتاب الحميدي انا اولى بدل انا ولا.

او زما سره دا بيره ده چي يو ويونکی دا ونه وايي چي زه د خلافت وړيم ، او الله ﷻ او مؤمنان به د ابوبکر رضی الله عنه د خلافت ثخه ماسوا بل ثوک خلافت ته پرې نهږدئ ، مسلم او د حميدي په کتاب کي د انااولى پر ځای انا ولا راغلي دي .

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۱۸۵۷، رقم: ۱۱– ۲۳۸۷.

**تشريح**: طيبي رحمة الله عليه د قاضي عياض رحمة الله عليه په حواله سره نقل کړي دي چي دغه روايت اجود دی او په دغه حديث کي د رسول الله ﷺ ثخه وروسته د حضرت ابوبکر رضی الله عنه خلافت ته ثرګنده اشاره ده، پاته سوه د روافضو دا وينا چي د حضرت علي رضی الله عنه پر خلافت نص وارد دی او رسول الله ﷺ د هغه د خلافت وصيت کړی وو ، نو دا بالکل بې اصله خبره او يو لغو دعوه ده، د ټولو مسلمانانو اجماع ده چي د حضرت علي رضی الله عنه په اړه نه يو نص وارد سوی دی او نه رسول الله ﷺ په ژبه يا ليکنه وصيت کړی وو بلکه حقيقت دادی چي د دغه دعوې تر ټولو لومړنی ترديد خپله د حضرت علي رضی الله عنه له خوا سوی وو ، کله چي له هغه ثخه پوښتنه وسول چي ايا ستاسو سره يو داسي شی سته چي په قرآن کريم موجود نه دی؟ حضرت علي رضی الله عنه په جواب کي وويل: نه، زما سره چي ثه دي هغه دي کوم چي په دغه صحيفه کي موجود دي، که چيري د هغه سره يو نص وای نو يقينا به يې هغه ظاهر کړی وای .

﴿۵۶۸﴾: وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ قَالَ أَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ امْرَأَةٌ

د حضرت جبير بن مطعم رضی الله عنه ثخه روايت دي چي يوه ښځه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضره

فكلمته في شئ فَأَمَرَهَا أَنْ تَرْجِعَ إِلَيْهِ قَالَتْ يارسول الله أَرَأَيْتَ إِنْ جِئْتُ

سوه او پر يو شي يې خبري ورسره وکړې، رسول الله ﷺ هغې ته وفرمايل : بيا يو وخت راسه، هغه ښځي وويل: اې دالله رسوله ! دا راته وفرمايا ست که زه راسم

وَلَمْ أَجِدْكَ كَأَنَّهَا تَقُولُ الْمَوْتَ قَالَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنْ لَمْ تَجِدِينِي فَأْتِي أَبَا بَكْرٍ. متفق عليه.

او ته مي پيدا نه کړلې لکه چي ددې ښځي د رسول الله ﷺ وفات مقصد وو نو زه بيا څه وکړم؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل که زه نه وم نو ابوبکر رضی الله عنه ته ولاړه سه. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۷\۷، رقم: ۳۶۵۹. ومسلم ۱۸۵۶\۴، رقم: ۱۰– ۲۳۸۶.

**تشريح**: دغه حديث بېله شکه دې ته څرګنده اشاره وه چي د رسول الله ﷺ څخه وروسته لومړنی خليفه به ابوبکر رضی الله عنه وي، که څه هم په دې اړه دغه حديث ته د نص قطعي درجه نه سي ورکول کيدای مګر د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه د فضيلت او منقبت څرګند دليل خامخا دی.

څرګنده دي وي چي د جمهورو علماوو په نزد نقص قطعي د هيڅا د خلافت په اړه وارد نه دی او د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه د خلافت حقانيت او صحت په دې دليل دی چي د هغه پر خلافت د صحابوو اجماع وه، علامه ابن همام په مشائره کي د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه د خلافت په اړه د نص دعوه کړې ده او خپله هغه دعوه يې ثابته کړې هم ده.

اسمعيلي په خپل معجم کي د حضرت سهل ابن ابي حثمه رحمة الله عليه دا روايت نقل کړی دی چي يو صحرائي سړي په رسول الله ﷺ يو څو اوښان په دې وعده وپلورل چي د هغه قيمت به وروسته ورکړي، حضرت علي رضی الله عنه هغه صحرائي ته وويل: ولاړ سه او د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړل که چيري زه ددغه اوښانو د قيمت اخيستلو لپاره داسي وخت راسم چي تاسو په دنيا کي نه ياست نو بيا د قيمت ادا کول به څوک کوي؟ صحرائي د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او پوښتنه يې وکړل نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ابوبکر رضی الله عنه به د هغه قيمت ادا کړي، هغه صحرائي بېرته ولاړی او حضرت علي رضی الله عنه ته راغلی او د رسول الله ﷺ جواب يې ورته ووايه، حضرت علي رضی الله عنه هغه ته وويل: اوس بيا ولاړ سه او پوښتنه وکړه که چيري ابوبکر رضی الله عنه ته هم هغه وخت راسم چي هغه له دنيا څخه رخصت سوي وي نو بيا به د اوښانو قيمت څوک ادا کوي؟ صحرائي در سول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او پوښتنه يې وکړل، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: عمر رضی الله عنه به د هغه قيمت ادا کړي، هغه صحرائي بېرته حضرت علي رضی الله عنه ته راغلی او د رسول الله ﷺ په جواب يې خبر کړ، حضرت علي رضی الله عنه ورته وويل: بيا ولاړ سه او د رسول الله ﷺ د حضرت عمر رضی الله عنه د وروسته کس په اړه پوښتنه وکړه، نو صحرائي

بیا د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او د حضرت عمر رضي الله عنه څخه وروسته د بل چا په اړه یې پوښتنه وکړل ، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: حضرت عثمان رضي الله عنه به د هغه قیمت ادا کوي، صحرائي راغلی او دغه جواب یې وښودی، حضرت علي رضي الله عنه ورته وویل: بیا ولاړ سه او پوښتنه وکړه ، نو رسول الله ﷺ وفرمایل: کله چي ابوبکر رضي الله عنه مړ سي ، عمر رضي الله عنه هم مړ سي او عثمان رضي الله عنه هم مړ سي نو بیا به ته په ژوندي پاته کېدو سره څه کوې .

## د رسول الله ﷺ محبوب کس ابوبکر صدیق رضي الله عنه وو

﴿۵۷۶۹﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَهُ عَلَى

د حضرت عمر بن عاص رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ زه د یو لښکر امیر وټاکلم و ذات

جَيْشِ ذَاتِ السُّلَاسِلِ قَالَ فَأَتَيْتُهُ فَقُلْتُ أَيُّ النَّاسِ أَحَبُّ إِلَيْكَ قَالَ عَائِشَةُ

السلاسل ته یې ولیږلم، بیا چي زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم نو ما وویل چې اې دالله رسوله ! ستاسو زیاته مینه د چا سره ده ؟ وه یې فرمایل : د بي بي عائشې سره،

قُلْتُ مِنَ الرِّجَالِ قَالَ أَبُوهَا قُلْتُ ثُمَّ مَنْ قَالَ عُمَرُ فَعَدَّ رِجَالًا فَسَكَتُّ مَخَافَةَ أَنْ يَجْعَلَنِي فِي آخِرِهِمْ. متفق عليه.

بیا ما پوښتنه وکړه او په نارینوو کي مو زیاته مینه د چا سره ده؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : د بي بي عائشې د پلار (حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه) سره، ما وویل: بیا د چا سره ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : د عمر رضي الله عنه سره، عمروبن عاص رضي الله عنه وایي همداسي رسول الله ﷺ یو څو کسان وشمیرل ، بیا زه په دې خیال پټه خوله سوم چي داسي نه وي زما نوم بالکل په پای کي راسي . بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\۷۴، رقم: ۴۳۵۸، ومسلم ۴\۱۸۵۶، رقم: ۸- ۲۳۸۴.

**د لغاتو حل**: السلاسل: رمل ينعقد بعضه ببعض.

**تشریح**: زما سوال د نارینوو په اړه وو، یعني د حضرت عمرو ابن العاص رضي الله عنه مراد یا خو د هغه ټولو نارینوو څخه وو چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي وه یا دا چي د هغه لښکر خلک مراد وه چي هغه یې امیر جوړ کړل سوی وو ، دحضرت عمرو ابن العاص رضي الله عنه ددغه سوال سبب په اصل کي دا وو چي کله هغه د ذکر سوي لښکر امیر وګرځول سو او ددښمن په مقابله کي ولیږل

سو نو وروسته دهغه د مرستي لپاره د دوو سوو اسلامي مجاهدينو يو بل لښکر د حضرت ابوعبيده بن الجراح رضي الله عنه په مشرتوب کي وليږل سو ، په دغه دوو سوو مجاهدينو کي د انصارو او مهاجرينو چي کوم لوی لوی صحابه کرام وه په هغو کي حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه هم شامل وه او د لښکر د امامت لمونځ به حضرت عمر رضي الله عنه ورکوی، الله جل جلاله اسلامي مجاهدينو ته فتح ورکړل او ددين دښمنان وتښتېدل، په دغه وخت کي به د حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه په خيال کي دا خبره راغلې وي چي ددغه لښکر په ټولو خلګو کي زما مرتبه تر ټولو لوړه ده ځکه زه د دوی ټولو امير جوړ سوی يم. او هغوی زما په واک کي د دښمن مقابلې ته واستول سول، نو هغه د خپل لښکر سره په کاميابي بېرته راغلی او د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه يې ذکر سوی سوال وکړ، رسول الله صلی الله علیه وسلم چي کوم جواب ورکړ د هغه څخه معلومه سوه چي زما په خيال کي کومه خبره راغلې وه هغه صحيح نه وه ، ددې څخه دا معلومېږي چي دوهم احتمال زيات قوي دي يعني دا چي د حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه د سوال مراد د هغه لښکر د خلګو څخه وو مګر رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغه په اول وار پوښتنه کولو چي کوم جواب ورکړ د هغه څخه د اول احتمال تائيد کيږي چي د هغه مراد د رسول الله صلی الله علیه وسلم د زمانې د ټولو خلګو څخه وو.

## د ابوبکر صديق رضي الله عنه د فضيلت شاهدي د حضرت علي رضي الله عنه په ژبه

﴿۵۷۷۰﴾: وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْحَنَفِيَّةِ قَالَ قُلْتُ لِأَبِي أَيُّ النَّاسِ خَيْرٌ بَعْدَ النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَبُو بَكْرٍ قُلْتُ ثُمَّ مَنْ قَالَ ثُمَّ عُمَرُ وَخَشِيتُ أَنْ يَقُولَ عُثْمَانُ قُلْتُ ثُمَّ أَنْتَ قَالَ مَا أَنَا إِلَّا رَجُلٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ. متفق عليه.

د حضرت محمد بن حنفيه رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د خپل پلار (حضرت علي رضي الله عنه) څخه پوښتنه وکړه چي د نبي کريم صلی الله علیه وسلم څخه وروسته کوم سړی تر ټولو غوره دی ، هغه وفرمايل : ابوبکر رضي الله عنه، ما بيا پوښتنه وکړه د ابوبکر رضي الله عنه څخه وروسته کوم سړی غوره دی ؟ هغه وفرمايل : عمر رضي الله عنه، بيا ما له دې کبله پوښتنه ونه کړل چي هغه د حضرت عثمان رضي الله عنه نوم وانه خلي، بلکه ما د سوال طرز بدل کړ او دا پوښتنه مي وکړه چي بيا تاسو غوره ياست؟ نو هغه راته وفرمايل زه خو د مسلمانانو څخه يو فرد يم. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷ ؍ ۲۰، رقم: ۳۶۷۱.

**تشريح**: زه خو يو مسلمان نارينه يم، د حضرت علي رضي الله عنه دغه ارشاد پر تواضع او خاکساری

مبني وو، کنه نو حقيقت دادی چي هغه وخت د هغه څخه دا پوښتنه سوې وه يعني د حضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت څخه وروسته په ټول اسلامي ملت کي تر ټولو غوره او افضل د هغه ذات والاصفات وه.

## د ابوبکر صديق رضي الله عنه فضيلت ټولو صحابه کرامو ته تسليم وو

﴿۵۷۷۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كُنَّا فِي زَمَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا نَعْدِلُ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي موږ به د نبي کريم ﷺ په زمانه کي هيڅوک

بِأَبِي بَكْرٍ أَحَدًا ثُمَّ عُمَرَ ثُمَّ عُثْمَانَ ثُمَّ نَتْرُكُ أَصْحَابَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د ابوبکر رضي الله عنه برابر نه ګڼئ، (يعني تر هغه غوره) او د هغه څخه وروسته عمر رضي الله عنه، او بيا عثمان رضي الله عنه او د عثمان رضي الله عنه څخه وروسته به صحابه کرام موږ پر خپل حال پريښودل،

وَسَلَّمَ لَا نُفَاضِلُ بَيْنَهُمْ. رواه البخاري وفي رواية لابي داؤد قال كُنَّا نَقُولُ

او د هغوی په منځ کي به مو چا ته فضيلت نه ورکوی، بخاري، او د ابوداؤد په روايت کي دا

وَرَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَيٌّ أَفْضَلُ أُمَّةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَهُ أَبُو بَكْرٍ ثُمَّ عُمَرُ ثُمَّ عُثْمَانُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ أَجْمَعِينَ.

الفاظ دي چي د رسول الله ﷺ په ژوند کي به موږ دا ويل چي د رسول الله ﷺ په امت کي د نبي کريم ﷺ څخه وروسته ابوبکر رضي الله عنه غوره دی، بيا عمر رضي الله عنه بيا عثمان رضي الله عنه. الله جل جلاله دي د دوی ټولو څخه راضي سي.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵۳/۷، رقم: ۳۶۸۷، وسنن ابي داود ۲۶/۵، رقم: ۴۶۲۸.

**تشريح**: د هغوی په منځ کي به مو چا ته پر چا فضيلت نه ورکوی، ددې څخه مراد دادی چي کوم صحابه يو شان حيثيت او مرتبه درلودل په هغوی کي چا ته پر چا فضيلت مو نه ورکوی کنه نو تر څو پوري چي د ځينو صحابه کرامو د ځينو څخه د افضل کېدو سوال دی نو دا خبره ثابته ده چي اهل بدر، اهل احد، اهل بيعت الرضوان، او اعلم صحابه پر پاته ټولو صحابه کرامو باندي فضيلت لري، همدارنګه دا احتمال هم نظر انداز کېدای نه سي چي کيدای سي تفاضل بين الاصحاب مراد وي يعني د حضرت عثمان رضي الله عنه څخه وروسته بيا چا ته پر بل صحابي

فضیلت نه ورکوی، ځرګنده دي وي چې د اهل بیتو نبوي حیثیت اخص دی ، او په دې وجه د هغوی حکم د نورو صحابه کرامو څخه بالکل بېل نوعیت لري چې هغوی د خپل خاص نسبت په اعتبار بېله شکه هغه خاص فضیلت لري چې د هغوی څخه ماسوا نورو ته حاصل نه دی او دهغوی خپل خاص فضیلت د لمر په څېر ښکاره دی، دلته دا سوال کول نه دی پکار چې د حضرت عثمان رضی الله عنه څخه وروسته د حضرت علي رضی الله عنه ذکر ولي ونه سو یا د حضرت امام حسن او حضرت امام حسین رضی الله عنهما د رسول الله ﷺ د دوو اکاګانو یعني حضرت امیر حمزه او حضرت عباس رضی الله عنهما فضیلت ولي بیان نه سو ،یو شارح لیکلي دي چې دلته د صحابو څخه د حضرت ابن عمر رضی الله عنه مراد هغه سپین ږیري صحابه دي چې د رسول الله ﷺ په وړاندي اصحاب الرایه او د اصحابو د مشورې حیثیت یې درلود او د هغوی څخه به رسول الله ﷺ راتلونکي معاملاتو او مسائلو کي مشوره اخیستل، تر څو چې د حضرت علي رضی الله عنه تعلق دی نو هغه د رسول الله ﷺ په زمانه کي ځوان وو او په دې اعتبار د ذکر سوو صحابه کرامو په ډله کي یې تعلق نه درلود، په دې وجه حضرت ابن عمر رضی الله عنه د هغه یادونه ونه کړل ، کنه نو د حضرت عثمان رضی الله عنه څخه وروسته پر ټولو صحابه کرامو باندي دهغه فضیلت څخه هیڅوک منکر نه دی، او د صحابه کرامو په منځ کي تفاضل بېله شکه ثابت دی لکه څرنګه چې اهل بدر، اهل بیعت الرضوان او علماء صحابه کرامو ته پر نورو ټولو صحابه کرامو باندي فضیلت او غوره والی تر لاسه دی .

امام احمد رحمة الله علیه د حضرت ابن عمر رضی الله عنه یو روایت داسي نقل کړی دی چې د رسول الله ﷺ په زمانه کي موږ حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه (د رسول الله ﷺ وروسته) تر ټولو افضل انسان ګڼئ او دهغه وروسته حضرت عمر رضی الله عنه، پاته سوه د حضرت علي رضی الله عنه خبره نو حقیقت دادی چې هغه ته هغه درې خاصیتونه حاصل دي که په هغه کي یو ما ته حاصل سي نو زه به ځان د دنیا او مافیها څخه غوره وګڼم ، رسول الله ﷺ د هغه نکاح د خپلي لور بي بي فاطمې رضی الله عنها سره وکړل او د رسول الله ﷺ نسل د هغه څخه پیدا سو ، رسول الله ﷺ د هغه د دروازې څخه ماسوا نوري ټولي دروازې (د مسجد خوا ته) بندي کړې، رسول الله ﷺ د خیبر د غزا په ورځ خپله نیزه هغه ته ورکړل او د نسائي په روایت کي داسي چې د حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه د حضرت عثمان رضی الله عنه او د حضرت علي رضی الله عنه په اړه پوښتنه وسول نو هغه ذکر سوی حدیث بیان کړ او د هغه وروسته یې وویل: دعلي رضی الله عنه په شان کي پوښتنه مه کوه او مه څوک پر هغه قیاس کوه ،د هغه مقام خو دادی چې د هغه څخه پرته د نورو ټولو دروازې بندي کړل سوې .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ فضیلت

﴿۵۷۷۲﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا لِأَحَدٍ

د حضرت ابوهریره رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: چا چي زموږ سره یو

عِنْدَنَا يَدٌ إِلَّا وَقَدْ كَافَيْنَاهُ مَا خَلَا أَبَا بَكْرٍ فَإِنَّ لَهُ عِنْدَنَا يَدًا يُكَافِيهِ اللّٰهُ بِهَا

احسان کړی دی موږ یې بدله ورکړې ده پرته د ابوبکر رضی اللہ عنہ څخه چي هغه زموږ سره داسي نیکي او بخښنه کړې ده چي د هغه بدله به

يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَمَا نَفَعَنِي مَالُ أَحَدٍ قَطُّ مَا نَفَعَنِي مَالُ أَبِي بَكْرٍ وَلَوْ كُنْتُ مُتَّخِذًا

د قیامت په ورځ هغه ته الله جل جلالہ ورکوي، او د یو سړي مال ما ته دومره ګټه نه ده راکړې لکه څومره چي د. ابوبکر رضی اللہ عنہ مال ما ته ګټه را رسولې ده که ما یو څوک

خَلِيلًا لَاتَّخَذْتُ أَبَا بَكْرٍ خَلِيلًا أَلَا وَإِنَّ صَاحِبَكُمْ خَلِيلُ اللّٰهِ. رواه الترمذي.

خپل خلیل جوړولای نو ابوبکر رضی اللہ عنہ به مي خپل خلیل جوړ کړی وای، یاد لرئ ستاسو دوست د خدای خلیل دی. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۶۸، رقم: ۳۶۶۱.

**تشريح**: د ید څخه مراد هغه شی دی چي د هغه څخه ګټه تر لاسه کړل سي، په دې اعتبار د غه لفظ مال، شتمنی، ځان او آل ټولو ته شامل دی او په دې کي شک نسته چي د الله جل جلالہ او رسول ﷺ رضا او خوشحالي تر لاسه کولو لپاره حضرت ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ خپل هر څه د الله جل جلالہ په لاره کي او د الله جل جلالہ د رسول د خدمت لپاره وقف کړي وه او دا هم کیدای سي چي: فان له عندنا یدا یکافئه الله...الخ، په ذریعه د حضرت ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ کومه ورکړې او عظیم چلن ته اشاره سوې ده د دې څخه د هغه ستري مالي قرباني مراد ده چي هغه حضرت بلال رضی اللہ عنہ د کافرانو څخه رانیوی او د الله جل جلالہ او د هغه د رسول د رضا لپاره یې ازاد کړ، او هغه ته په قرآن کریم کي په دغه آیت کي اشاره سوې ده:

وَسَيُجَنَّبُهَا الْأَتْقَى الَّذِي يُؤْتِي مَالَهُ يَتَزَكَّى

ژباړه: او د هغه (دوږخ د اور ځخه) به داسي کس ليري ساتل کيږي ،او خپل مال ددې لپاره د الله ﷻ په لاره کي مصرف کوي چي د گناهو ځخه پاک سي .

ځومره چي د ابوبکر رضي الله عنه مال گټه را رسولې ده، ددې تر ټولو لوی دليل هغه ښکاره ده چي کله رسول الله ﷺ خپلو صحابوو ته د الله ﷻ په لاره کي د مالي مرستي او تعاون لپاره وويل نو هر سړي د خپل خپل حيثيت او توان سره سم ځه چي مناسب وگڼل هغه يې راوړل او وړاندي يې کړل، او حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د کور ټول سامان راوړی او د رسول الله ﷺ په خدمت کي يې وړاندي کړ، د خپل ځان او کورنۍ د اړتيا سامان يې هم په کور کي نه پرېښود، تر دې چي ټول مال او سامان يې د الله ﷻ په لاره کي مصرف کړ او د بدن جامې يې هم ورسره پاته نه سوې نو کمبله يې پر بدن داسي واچول چي د ازغو په لگولو سره يې د هغه ځخه چپنه جوړه کړل . په دې مناسبت سره د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه يو لقب ذو الخلال هم دی ، خلال ازغي ته وايي .

په رياض الصالحين کي دا روايت دی چي کله رسول الله ﷺ دا وفرمايل: د هيچا مال ما ته دومره گټه نه ده رسولې ځومره چي د ابوبکر صديق رضي الله عنه مال رسولې ده، نو د دې په اورېدو سره حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په ژړا سو او عرض يې وکړ چي اې د الله رسوله! نه زما ځان خپل دی ، نه زما مال خپل دی، زما سره چي ځه دي هغه ټول د الله ﷻ ملکيت دی .

په موافقاتو کي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د هيڅ مسلمان سړي مال زما لپاره د ابوبکر رضي الله عنه تر مال زيات نافع نه دی او د حضرت ابوبکر رضي الله عنه په مال کي به رسول الله ﷺ داسي حکم کوی لکه په خپل مال کي، په روايتو کي راځي چي حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په رسول الله ﷺ باندي ځلوېښت زره درهم مصرف کړل ، د عروه روايت دی چي کله حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه اسلام قبول کړ نو هغه وخت د هغه سره ځلوېښت زره درهم وه او هغه ټول يې د رسول الله ﷺ په زمانه کي د الله ﷻ په لاره کي مصرف کړل، د عروه په يوه روايت کي دي چي حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه هغه اووه غلامان رانيول او د الله ﷻ په لاره کي يې ازاد کړل چي د اسلام منلو په وجه د خپلو بادارانو له خوا د سخت ظلم او تکليف ښکاره وه ، حضرت بلال او حضرت عامر ابن فهيره رضي الله عنهما د هغه اوو ځخه دي .

## ابوبکر رضي الله عنه د صحابه کرامو سردار دی

﴿۵۷۷۳﴾ : وَعَنْ عُمَرَ قَالَ أَبُو بَكْرٍ سَيِّدُنَا وَخَيْرُنَا وَأَحَبُّنَا إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رواه الترمذي.

د حضرت عمر رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي ابوبکر رضی اللہ عنہ زموږ سردار دی او زموږ غوره دی او په موږ کي رسول الله ﷺ ته زیات محبوب دی. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ٥\٥٦٦، رقم: ٣٦٥٦.

## د رسول الله ﷺ د غار ملګری

﴿٥٧٧٤﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِأَبِي بَكْرٍ أَنْتَ صَاحِبِي فِي الْغَارِ وَصَاحِبِي عَلَى الْحَوْضِ. رواه الترمذي.

د حضرت ابن عمر رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي یوه ورځ رسول الله ﷺ ابوبکر رضی اللہ عنہ ته وفرمایل: ته زما د غار ملګری یې او پر حوض کوثر باندي به زما ملګری یې. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي: ٥\٥٧٢، رقم: ٣٦٧٠.

**تشريح**: مطلب دا وو چي ته زما د دنيا ملګری هم یې او د آخرت هم، څرګنده دي وي چي د غار څخه مراد د مکې څخه درې پر درې میله فاصله باندي واقع د جبل ثور هغه غار دی چیري چي د هجرت په دوران کي رسول الله ﷺ او ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ هلته پټ وه او د دغه آیت کریمه (ثاني اثنين اذ هما في الغار اذ يقول لصاحبه لاتحزن ان الله معنا) کي د حضرت ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ صحابيت او ملګرتیا ته اشاره ده.

علماؤ او مفسرینو وضاحت کړی دیچي په دغه آیت کي د صاحبه څخه مراد حضرت ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ دی، له دې کبله علماء وایي چي د حضرت ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ د صحابيت او ملګرتیا رسول څخه انکار کوونکي کافر کیږي ځکه چي د هغه څخه انکار د نص جلي څخه انکار دی، د حضرت ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ پر خلاف د نورو یعني د حضرت عمر، حضرت عثمان او حضرت علي رضی اللہ عنہ او نورو صحابه کرامو د صحابيت څخه انکار کوونکی نه کافر کیږي، په هر حال د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دا وو چي اې ابوبکر! ته زما داسي ملګری او دوست یې چي الله جل جلاله ستا د دوستی او ملګرتیا شاهدي ورکړې ده او غالبا له دې کبله د یار غار لفظ د رینښتوني او پخې ملګرتیا او رفیق په معنی کي د محاورې په توګه استعمالیږي.

## د ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ فضیلت

﴿٥٧٧٥﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَنْبَغِي

لِقَوْمٍ فِيهِمْ أَبُو بَكْرٍ أَنْ يَؤُمَّهُمْ غَيْرُهُ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په کومه ډله کي چي حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه موجود وي مناسب نه دي چي د هغه څخه پرته بل سړی امام جوړ سي، ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دی.

**تخريج:** سنن الترمذي: ۵\ ۵۷۳، رقم: ۳۶۷۳.

**تشريح:** دغه حديث د امامت په اړه د يو اصولي حکم حيثيت هم لري چي د يوې ډلي د امامت وړ هغه سړی دی چي په هغوی کي تر ټولو افضل وي او هغه ددې خبري څرګند دليل هم ګرځول کيږي، حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه په ټولو صحابوو کي تر ټولو افضل دی، کله چي دا خبره ثابته سول نو دا هم ثابته سول چي د رسول الله ﷺ څخه وروسته د خلافت اصل مستحق هغه وو، ځکه چي د فاضل په موجودتيا کي يو مفضول خليفه جوړول غير مناسب خبره ده ځکه حضرت علي رضی الله عنه د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه په مخاطب کولو سره فرمايلي وه چي کله رسول الله ﷺ تاسو (د لمانځه لپاره امام وګرځولاست) او زموږ د دين پيشوا يې وګرځولې نو بيا زموږ د دنيا په معامله (يعني خلافت) کي کوم څوک تاسو تر شا غورځولای سي.

## ابوبکر رضی الله عنه سبقت يوړی

﴿۵۷۷۶﴾: وَعَنْ عُمَرَ قَالَ أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَتَصَدَّقَ

د حضرت عمر رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ يوه ورځ موږ ته د خدای جل جلاله په لار کي د

وَوَافَقَ ذَلِكَ عِنْدِي مَالًا فَقُلْتُ الْيَوْمَ أَسْبِقُ أَبَا بَكْرٍ إِنْ سَبَقْتُهُ يَوْمًا قَالَ

صدقې او خيرات کولو حکم راکړ، په حسن اتفاق سره هغه وخت زما سره ډير مال وو، ما په خپل زړه کي وويل که تر ابوبکر رضی الله عنه مخته والی زما لپاره يو ورځ ممکن وای نو نن به ممکن وي، او

فَجِئْتُ بِنِصْفِ مَالِي فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَبْقَيْتَ لِأَهْلِكَ

زه به د ډير مال ورکولو سره مخته والی تر لاسه کړم، نو زه د نيم مال راوړلو سره د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم، رسول الله ﷺ زما څخه پوښتنه وکړه د کورنۍ لپاره دي څومره مال

قُلْتُ مِثْلَهُ وَأَتَى أَبُو بَكْرٍ بِكُلِّ مَا عِنْدَهُ فَقَالَ يَا أَبَا بَكْرٍ مَا أَبْقَيْتَ لِأَهْلِكَ قَالَ

پرېښود، ما عرض وکړ: نيم مال، بيا ابوبکر رضي الله عنه څه چي د هغه سره وه ټول يې راوړل، رسول الله ﷺ د هغه څخه پوښتنه وکړه اې ابوبکر! کورنۍ ته دي څه پرې ايښي دي؟ هغه عرض وکړ د

أَبْقَيْتُ لَهُمُ اللَّهَ وَرَسُولَهُ قُلْتُ وَاللَّهِ لَا أَسْبِقُهُ إِلَى شَيْءٍ أَبَدًا. رواه الترمذي وابوداؤد.

هغوی لپاره مي خدای او د هغه رسول پرې ايښي دي، ما په زړه کي وويل چي زه به پر ابوبکر رضي الله عنه هيڅکله مخته والی تر لاسه نه کړم. ترمذي او ابوداؤد

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۵۷۴، رقم: ۳۶۷۵، وابوداود ۲\ ۳۱۲، رقم: ۱۶۷۸،

**تشريح**: او د هغه سره چي څه وه، ددغه الفاظو څخه اشارتًا دا خبره مفهوم کيږي چي حضرت عمر رضي الله عنه د خپل مال څخه کومه نيمه برخه راوړل هغه کيدای سي د ماليت او مقدار په اعتبار د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د مال او اسباب څخه زياته وه مګر په دې اعتبار چي حضرت عمر رضي الله عنه خو خپل نيم مال د کورنۍ لپاره پرې ايښی وو او حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د خپلي کورنۍ لپاره هيڅ نه وه پرې ايښي هر څه يې راوړي وه، دا فضيلت حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه ته حاصل سو، حقيقت دادی چي اصل قيمت د جذبې وي، د يو سړي سره لس لکه روپۍ وي او د هغه څخه پنځه لکه د الله جل جلاله په لاره کي مصرف کړي نو يقينا هغه ته به لويه مرتبه او مقام تر لاسه کيږي مګر تر دې لويه مرتبه او مقام به د هغه سړي وي چي د هغه ټوله سرمايه پنځه سوه روپۍ وي او هغه پنځه سوه ددې خبري څخه په بې نيازه کېدو سره د الله جل جلاله په لاره کي وړاندي کړي چي وروسته به د هغه او دهغه د کورنۍ اړتيا په څه شي پوره کيږي، ددې سره سم په يو حديث کي فرمايل سوي دي: افضل الصدقة جهد المقل، غوره صدقه هغه ده چي کم مال والا يې په قربانۍ کولو سره ورکړي.

الله جل جلاله او دهغه رسول ﷺ مي پرې ايښي دي: ددغه جواب په ذريعه حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د خپل يقين اظهار وکړ چي د الله جل جلاله او د هغه د رسول رضا او خوشحالي زما او زما د کورنۍ لپاره د دواړو جهانو لويه سرمايه ده، ددغه سرمايې په مقابله کي دنيوي مال او سامان بې حيثيته دي، يا د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د جواب مطلب دا وو چي زما په کور کي کوم مال او سامان وو هغه ټول ما راوړی دی او د الله جل جلاله په لاره کي مي وړاندي کړی دی، او کوم چي د کورنۍ د اړتياوو سوال دی نو د الله جل جلاله فضل او احسان، د هغه رزاقيت او د هغه د

رسول د مرستي او اعانت يقين د هغوى لپاره كافي دى، كه د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه ټول مال د حضرت عمر رضي الله عنه د نيم مال څخه زيات وو نو په دې كي د ابوبكر رضي الله عنه فضيلت بېله شكه مسلم او ظاهرېږي او كه د هغه مال د حضرت عمر رضي الله عنه تر مال كم وي نو بيا هم د هغه فضيلت په دې اعتبار منل كيږي چي هغه د خپل ټول سامان په راوړلو سره د الله جل جلاله په لاره كي وراندي كړ.

زه پر ابوبكر رضي الله عنه باندي هيڅكله فضيلت تر لاسه كولاى نه سم، حضرت عمر رضي الله عنه فكر كړى وو چي په هر نېک كار كي ابوبكر رضي الله عنه پر ما مخته وي، نن داسي موقع ده چي زه هغه تر شا كړم، مگر كله چي هغه د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه قرباني او اطاعت وليدى نو وه يې ويل: كه د مخته والي كېدو د دومره پوره ذريعې موجود كېدو سربېره زه نن هم د هغه څخه تر شا سوم نو يقين دى چي بيا هيڅكله د هغه څخه مخته كيداى نه سم، په ځينو روايتو كي راغلي دي چي په دغه وخت كي رسول الله صلى الله عليه وسلم دواړو ته وفرمايل: ما بينكما كما بين كلمتكما: ستاسو په منځ كي هغه فرق دى كوم چي ستاسو د دواړو په الفاظو كي تر لاسه كيږي.

### د عتيق د نامه سبب

﴿۵۷۷۷﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ أَبَا بَكْرٍ دَخَلَ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَنْتَ عَتِيقُ اللَّهِ مِنَ النَّارِ فَيَوْمَئِذٍ سُمِّيَ عَتِيقًا. رواه الترمذي.

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دى چي يوه ورځ ابوبكر رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر سو، رسول الله صلى الله عليه وسلم هغه ته وفرمايل: ته د دوږخ د اور څخه الله جل جلاله آزاد كړي (انت عتيق من النار) نو د هغه ورځي څخه د ابوبكر رضي الله عنه نوم عتيق سو. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۵۷۵، رقم: ۳۶۷۹.

**د لغاتو حل**: عتيق: المتقدم في الزمان.

**تشريح**: د عتيق معنى د ازاد ده، د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه يو نوم عتيق هم دى او د دې وجه دغه حديث بيانوي چي عتيق د حسن او جمال، شرافت او نجابت په معنى راځي او دغه ټولي ښېگڼې د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه په ذات كي موجود دې ځكه ورته عتيق ويل كېدل، مگر خپله حديث د دغه نامه صراحت كړى دى چي د عتيق څخه مراد د دوږخ د اور څخه د ازاد سړي دى ځكه نو بله وجه بيانول به معتبر نه وي او په يوه روايت كي دا هم راغلي دي:

قال صلى الله عليه وسلم: من اراد ان ينظر بنظر الى عتيق من النار فلينظر الى ابي بكر.

ژباړه: رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: څوک چي د دوږخ د اور څخه د ازاد سړي د لېدلو خواهش لري

نو هغه دي ابوبكر رضي الله عنه ته وګوري .

**اصلي نوم او نسب:** د حضرت ابوبكر رضي الله عنه اصل نوم عبدالله دی او د ابوقحافه عثمان زوی دی، د نسب لړۍ يې عبدالله ابن ابوقحافه عثمان ابن عامر ابن عمرو ابن كعب ابن سعد ابن تميم ابن مره دی، چي په اووم نيكه كي د نبي كريم ﷺ د نسب سره يو ځای كيږي ، حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه لومړنی هغه سړی دی چي تر ټولو مخكي يې د رسول الله ﷺ تصديق وكړ او په ايمان او اسلام مشرف سو ، د نبي كريم ﷺ د ژوند هيڅ داسي غزا او ښبنه نسته چي په هغه كي د ګډون او ملګرتيا شرف تر لاسه سوی نه وي، نوموړي يوازينی سړی دی چي نه خو د جاهليت په زمانه كي د رسول الله ﷺ څخه بېل وو او نه د اسلام په زمانه كي هيڅ وخت ځيني بېل سوی دی ، خپله هم صحابي دی او مور و پلار يې هم صحابي دي او اولاد يې هم صحابي دي، كه دغه عظيم خصوصيت يو چا ته حاصل وي نو هغه يوازي حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه دی، حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه نه يوازي د سيرت او باطن په اعتبار په ټولو صحابه كرامو كي بې مثاله وو بلكه هغه سر تر پايه او په ظاهري جمال كي هم بې مثاله وو ، سپين رنګ، سپک بدن، ډک تندی، او ښكلې سترګي دا ټول په يو ځای كېدو سره د هغه شخصيت يې ډېر زړه وړونكی ګرځولی وو ، د فيل د پېښي څخه دوه كاله ، څلور مياشتي او څو ورځي وروسته په مكه معظمه كي پيدا سو او په ۱۳ هجري كال د جمادي الثاني په دوه وېشتمه نېټه (يا اتمه نېټه) د سه شنبې په ورځ د ماښام او ماخستن په منځ كي د ۶۳ كالو په عمر په مدينه منوره كي وفات سو، حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه وصيت كړی وو چي ما ته دي غسل زما ښځه بي بي اسماء بنت عميس رضي الله عنها راكړي ، نو بي بي اسماء رضي الله عنها هغه ته غسل وركړ او حضرت عمر فاروق رضي الله عنه هغه ته د جنازې لمونځ وركړ، دوه كاله او څلور مياشتي د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه خلافت وو ، ډېرو صحابه كرامو او تابعينو ته د نوموړي څخه د حديث د روايت كولو شرف تر لاسه دی مګر د رسول الله ﷺ وروسته لږ وخت ژوندی وو ځكه نو د نوموړي روايتونه ډېر كم دي .

## د قبر چاودل

﴿۵۷۷۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا أَوَّلُ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د قيامت په ورځ به تر ټولو

مَنْ تَنْشَقُّ عَنْهُ الْأَرْضُ ثُمَّ أَبُو بَكْرٍ ثُمَّ عُمَرُ ثُمَّ آتِي أَهْلَ الْبَقِيعِ فَيُحْشَرُونَ

مخکي زما قبر چوي او تر ټولو مخکي به زه د قبر څخه راپورته سم، بيا دابوبکر رضي الله عنه قبر او بيا دعمر رضي الله عنه، بيا به زه د بقيع په هديره کي ښخ سوو ته راسم او هغوی به زما سره راپورته سي

مَعِي ثُمَّ أَنْتَظِرُ أَهْلَ مَكَّةَ حَتَّى أُحْشَرَ بَيْنَ الْحَرَمَيْنِ. رواه الترمذي.

او جمع به کړل سي، بيابه زه د مکې والاوو انتظار کوم تر دې چي د حرم مکه او حرم مدينه په منځ کي به زه دهغوی سره يو ځای سم. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ٥\٥٨١، رقم: ٣٦٩٢.

**تشريح**: د قيامت په ورځ به تر ټولو مخکي رسول الله ﷺ د خپل قبر څخه را پورته کيږي، د رسول الله ﷺ څخه وروسته به تر ټولو مخکي راپورته کېدونکی سړی حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه وي، او بيا به حضرت عمر رضي الله عنه را پورته کيږي، رسول الله ﷺ به د خپل قبر څخه په را پورته کېدو سره د بقيع هديرې ته راسي او هلته به اهل بقيع د رسول الله ﷺ په مخکي د خپلو خپلو قبرو څخه راووځي او د رسول الله ﷺ سره به يو ځای سي، دلته به رسول الله ﷺ د اهل مکه انتظار کوي چي هغوی به هم د خپلو خپلو قبرو څخه په را پورته کولو سره دلته راوستل سي او د رسول الله ﷺ سره به يو ځای کړل سي، بيا به د اهل مکه او اهل مدينه سره رسول الله ﷺ د حشر ميدان ته روان سي او هلته به د ټولو خلکو سره يو ځای سي.

## جنت ته داخليدل

﴿٥٧٧٩﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَانِي

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: يوه ورځ

جِبْرِيلُ فَأَخَذَ بِيَدِي فَأَرَانِي بَابَ الْجَنَّةِ الَّذِي تَدْخُلُ مِنْهُ أُمَّتِي فَقَالَ أَبُو

جبرائيل عليه السلام ما ته راغلی او زما لاس يې په خپل لاس کي واخيستی (دا واقعه د معراج ده) او ما ته يې د جنت هغه دروازه وښودل چي پر هغه به زما امت په جنت کي داخليږي،

بَكْرٍ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَدِدْتُ أَنِّي كُنْتُ مَعَكَ حَتَّى أَنْظُرَ إِلَيْهِ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ

ابوبکر رضي الله عنه عرض وکړ اې دالله رسوله! کاش چي زه هم ستاسو سره وای چي هغه دروازه مي

أَمَا إِنَّكَ يَا أَبَا بَكْرٍ أَوَّلُ مَنْ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مِنْ أُمَّتِي. رواه ابوداؤد.

لیدلی وای، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: اې ابوبکر! خبردار سه! زما په امت کي به تر ټولو لومړنی سړی ته یې چي په جنت کي به داخلیږې. ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود ۵\۴۱، رقم: ۴۶۵۲.

**تشریح**: ما ته یې د جنت دروازه وښودل: دغه پېښه یا خو د معراج د شپې ده چي رسول الله ﷺ یې یادونه وکړل او یا د بل وخت پېښه ده کله چي رسول الله ﷺ ته د جنت لېدنه وړ په برخه سول.

په هغوی کي تر ټولو لومړنی سړی ته یې: یعني ته به جنت ځې او تر ټولو مخکي به ځې، نو هغه وخت د جنت دروازه هم ووینه یا د دغه الفاظو څخه د رسول الله ﷺ مراد دا وو چي د جنت د دروازې څه خواهش کوې ستا لپاره خو هغه شی مقدر دی چي تر دې ډېر لوړ او افضل دی یعني زما سره ستا په جنت کي داخلېدل، په هر حال دغه حدیث ددې خبري دلیل دی چي حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه په امت محمدي کي تر ټولو افضل سړی دی، که هغوی ته افضیلت حاصل نه وای نو د امت په خلګو کي به تر ټولو مخکي په جنت کي د داخلېدو شرف د هغه لپاره ولي ټاکل سوی وای.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د ابوبکر صدیق رضي الله عنه دوه عملونه

﴿۵۷۸۰﴾: عَنْ عُمَرَ ذُكِرَ عِنْدَهُ أَبُو بَكْرٍ فَبَكَى وَقَالَ وَدِدْتُ أَنَّ عَمَلِي كُلَّهُ مِثْلُ

د حضرت عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چي یوه ورځ د هغه په مخکي د ابوبکر رضي الله عنه ذکر وسو، نو دی په ژړا سو او وه یې ویل زما خوښه ده چي زما ټول عمل د ابوبکر د یوې ورځي د ورځو

عَمَلِهِ يَوْمًا وَاحِدًا مِنْ أَيَّامِهِ وَلَيْلَةً وَاحِدَةً مِنْ لَيَالِيهِ أَمَّا لَيْلَتُهُ فَلَيْلَةٌ سَارَ

په شان سي او په شان د یوې شپې سي له شپو دده څخه، د هغه د یوې شپې عمل خو دا دی چي

مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْغَارِ فَلَمَّا انْتَهَيَا إِلَيْهِ قَالَ وَاللهِ لاَ

هغه د رسول الله ﷺ سره د هجرت په شپه روان سو غار ثور ته ورسیدل او رسول الله ﷺ ته یې عرض وکړ قسم په خدای (تاسو به تر هغه وخته پوري په غار کي قدم نه ایږدئ)

تَدْخُلُهُ حَتَّى أَدْخُلَ قَبْلَكَ فَإِنْ كَانَ فِيهِ شَيْءٌ أَصَابَنِي دُونَكَ فَدَخَلَ فَكَسَحَهُ

تر څو پوري چي زه په هغه کي داخل نه سم او وه ګورم چي په دې کي خو به یو مضر شی نه وي که

یو داسي شی وي نو چي د هغه ضرر ما ته ورسیږي او تاسو خوندي پاته سئ، نو ابو بکر رضی اللہ عنہ په غار کي ننوتی او هغه یې جارو کړ،

وَوَجَدَ فِيْ جَانِبِهٖ ثُقْبًا فَشَقَّ إِزَارَهٗ وَسَدَّهَا بِهٖ وَبَقِيَ مِنْهَا اِثْنَانِ فَأَلْقَمَهُمَا

بیا ابو بکر رضی اللہ عنہ په غار کي دننه یو سوری ولیدی یو خو یې په خپل لونګ ښیرلو سره بند کړی او په دوو سوریانو کي یې خپلي پوندي داخلي کړې

رِجْلَيْهِ ثُمَّ قَالَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُدْخُلْ فَدَخَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ

او د هغه وروسته یې رسول الله ﷺ ته عرض وکړ چي تشریف راوړئ، رسول الله ﷺ غار ته دننه

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَوَضَعَ رَأْسَهٗ فِيْ حِجْرِهٖ وَنَامَ فَلُدِغَ أَبُوْبَكْرٍ فِيْ رِجْلِهٖ مِنَ

راغلی او د ابو بکر رضی اللہ عنہ په غیږ کي یې خپل سر مبارک کښېښود او بیده سو، په دغه حالت کي د سوري دننه ابو بکر رضی اللہ عنہ پر پښه (مار) و چیچی،

الْجُحْرِ وَلَمْ يَتَحَرَّكْ مَخَافَةَ أَنْ يَّنْتَبِهَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

مګر هغه هم هغسي ناست وو او له دې کبله یې حرکت ونه کړ چي د رسول الله ﷺ سترګي

فَسَقَطَتْ دُمُوْعُهٗ عَلٰى وَجْهِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا لَكَ يَا أَبَا

مبارکي ونه لغړیږي، مګر د زیات درد له کبله د هغه پر سترګو اوښکي راغلې چي د رسول الله ﷺ پر مخ مبارک پریوتې، د رسول الله ﷺ سترګي مبارکي ولغړیدې او پوښتنه یې وکړه اې

بَكْرٍ قَالَ لُدِغْتُ فِدَاكَ أَبِيْ وَأُمِّيْ فَتَفَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ابوبکره! څه وسوه؟ هغه عرض وکړ زما مور او پلار دي پر تاسو قربان وي زه (مار) وچیچلم، رسول الله ﷺ د خپلي خولې مبارکي ناړي د هغه پر پښه په زخم پوري کړې

فَذَهَبَ مَا يَجِدُهٗ ثُمَّ انْتَقَضَ عَلَيْهِ وَكَانَ سَبَبَ مَوْتِهٖ وَأَمَّا يَوْمُهٗ فَلَمَّا قُبِضَ

او د هغه تکلیف ختم سو، د دې پېښي څخه وروسته ډیر وخت وروسته د مار زهرو بیا اثر وکړ او هم دغه زهر د هغه د مرګ سبب جوړ سو، د حضرت ابو بکر صدیق رضی اللہ عنہ د یوې ورځی عمل دادی

رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارْتَدَّتِ الْعَرَبُ وَقَالُوْا لاَ نُؤَدِّيْ زَكَاةً فَقَالَ لَوْ

كله چي رسول الله ﷺ وفات سو نو د عربو خلک مرتد سول (يعني د دين څخه واوښتل) او هغوی اعلان وکړ چي موږ زکوة نه ورکوو ، ابوبکر ﷛ وفرمايل : که

مَنَعُوْنِيْ عِقَالاً لَجَاهَدْتُهُمْ عَلَيْهِ فَقُلْتُ يَا خَلِيْفَةَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

خلک ما ته د اوښ د رسۍ راکولو څخه هم انکار وکړي نو زه به د هغوی سره جهاد کوم، ما ورته وويل (حضرت عمر ﷛ فرمايي) اې د رسول الله ﷺ خليفه !

وَسَلَّمَ تَأَلَّفِ النَّاسَ وَأَرْفُقْ بِهِمْ فَقَالَ لِيْ أَجَبَّارٌ فِي الْجَاهِلِيَّةِ وَخَوَّارٌ فِي الْإِسْلاَمِ إِنَّهُ قَدِ انْقَطَعَ الْوَحْيُ وَتَمَّ الدِّيْنُ أَيَنْقُصُ وَأَنَا حَيٌّ. رواه رزين.

د خلکو سره الفت او موافقت کوئ او د نرمۍ څخه کار واخلئ، نو ابوبکر ﷛ راته وفرمايل : اې عمر ! د جاهليت په ورځو کي خو ته ډېر سخت مزاجه وې ايا په اسلام کي د داخليدو سره دومره نرم سوې، د وحي لړۍ بنده سوه او دين پوره سوی دی ايا دين به کميږي او زه به ژوندی يم . رزين.

**تخريج**: رواه رزين.

**د لغاتو حل**: كسحه: اي كنسه . (جارو يې کړ). انتقض: اي رجع(راستون سو). عقالا: اي حبلا صغير (کوچنۍ رسۍ). خوار: اي جبان وعطوف .

**تشريح**: او له همدې کبله د هغه مرګ واقع سو، يعني په هغه شپه چي د ثور په غار کي د سوري څخه مار پر پښه چيچلی وو، هغه وخت هم د هغه زهرو اثر د رسول الله ﷺ د لعاب مبارک په برکت زائل سوی وو بيا د دغه پېښي څخه ډېر وخت وروسته د حضرت ابوبکر ﷛ په آخر عمر کي د هغه زهرو اثرات ښکاره سول او په همدغه سبب د هغه مرګ واقع سو، همدارنګه حضرت ابوبکر صديق ﷛ ته هغه مرتبه تر لاسه سول کوم چي د الله ﷻ په لاره کي شهيد ته تر لاسه کيږي، ځکه چي د کومو زهرو د اثر څخه هغه وفات سو دا هغه ته هغه وخت رسېدلي وو کله چي هغه د الله ﷻ او د هغه د رسول د رضا لپاره د هجرت په سفر کي د الله ﷻ د رسول معيت اختيار کړ او د الله ﷻ د رسول د ضرر څخه د خوندي کولو لپاره خپله هر ضرر ته ور وړاندي کېدی، د زهرو د اثر بېرته راګرځېدو پېښه رسول الله ﷺ ته هم پېښه سوې وه، د خيبر د غزا په وخت کي د پسه په غوښو کي د زهرو په ګډولو سره رسول الله ﷺ ته ورکړل سوي وي هغه وخت خو الله ﷻ

د هغه زهرو د ضرر څخه خوندي کړی وو مګر په مرض الموت کي بیا د زهرو اثرات ظاهر سول.

موږ زکوة نه ادا کوو : د هغه قبائلو د زکوة ادا کولو په اړه دا ویل د انکار په توګه وه یعني یا خو هغوی د زکوة د وجوب څخه منکر سوي وه یا په ډاګه د زکوة نه ورکولو اعلان یې کړی وو ، ددې تفصیل مخکي په کتاب الزکوة کي تېر سوی دی، زموږ ځینو علماؤ لیکلي دي : که یو چا ته په شرعي توګه حکم ورکړل سي چي زکوة ادا کړي او هغه جواب ورکړي چي زه زکوة نه ادا کوم نو هغه سړی کافر کېږي .

که دغه خلګ د رسۍ راکولو څخه هم انکار وکړي، دا خو د (لو منعوني عقالا) معنی ده، عقال په اصل کي هغه رسۍ ته وايي چي په هغه سره د اوښ پښې تړل کېږي، که د چا سره اوښان وي او په هغه اوښانو کي زکوة واجب وي او بیا هغه د نصاب مطابق یو یا تر یو زیات اوښان په زکوة ورکړي نو د هغه لپاره ضروري ده چي هغه د رسۍ سره اوښ ورکړي ځکه چي د زکوة پر ادا کوونکي لازم ده چي هغه په زکوة کي د زکوة شیان د زکوة اخیستونکي په قبضه کي ورکړي، څرګنده ده چي اوس په پوره توګه په قبضه کي هغه وخت راتلای سي چي په رسۍ یا بل شي سره تړلی واخیستل سي او ځینو حضراتو ویلي دي چي عقال په اصل کي د اوښ یا پسه د یوه کال زکوة ته وايي ، په لغت کي د عقال دغه دواړي معناوي راغلي دي مګر زیاته مشهور او متعارف معنی لومړنۍ یعني د رسۍ ده، صاحب قاموس دغه لفظ په بلي معنی کي ذکر کړی دی او ویلي یې دي چي د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه په الفاظو : لومنعوني عقالا، کي د عقل دا معنی مراد ده چي د اوښ یا پسه د یوه کال زکوة، په یوه روایت کي د عقالا پر ځای د عناقا الفاظ نقل سوي دي چي معنی یې د پسه د هغه وري ده چي د یوه کال پوره سوی نه وي .

بې زړه او نرم سوی یې : ددغه الفاظو په ذریعه حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د حضرت عمر رضي الله عنه د رایي خلاف د سختي ناخوښۍ اظهار وکړ، د هغه د وینا مطلب دا وو چي کله ته مسلمان سوی نه وې او د جاهلیت په زمانه کي وې نو هغه وخت خو ته ډېر زړه ور او غیور وې، پر معمولي خبره دي دومره غصه کول چي توره به دي راوکښل مګر اوس په تا څه سوي دي چي د اسلام د دومره لوی حکم څخه د انکار کونکو په اړه د نرمۍ اختیارولو مشوره ماته راکوې، ددغه مرتدانو پر خلاف ما د تورو پورته کولو څخه منع کوې، داسي مشوره خو ستا په ډول د زړه ورو او غیور مسلمانانو شان نه دی، دا خو د بې زړه توب او نرمۍ خبره ده، د هغه عربو په قبیلو کي د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه سخت رویه او د هغوی فیصله په اصل کي د هغه د بې مثاله مېړانه او د هغه د سخت دیني حمایت او غیرت غماز ده،

که څه هم د حضرت عمر رضي الله عنه په ذکر سوې رايه کي حضرت علي رضي الله عنه هم شريک وو مګر ددې سربېره د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه باکمال بصيرت هغه رايي ته ارزښت ور نه کړ او په پوره مېړانه يې د هغه مرتدو پر خلاف د توري چلولو فيصله وکړل، د هغه د کلکي ارادې په لېدو سره حضرت عمر رضي الله عنه خپله رايه بدله کړل او نه يوازي دا بلکه هغه په دغه وخت کي په ډاګه اعتراف وکړ چي اوس الله جل جلاله زما سينه خلاصه کړې ده او زما يقين دی چي هغه خبره صحيح ده کوم چي د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د فيصلې په صورت کي مخته راغلې ده، بلکه هغه ددغه پېښې څخه وروسته هم زيات وختونه د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه ددغه باعزيمت فيصلې تعريف کوی او څرنګه چي په دغه حديث کي دي چي دا به يې هم ويل: حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د ژوند محض دغه يوه فيصله دومره عظيمه کړنه ده که زما د ټول ژوند نېک اعمال د هغه د يوه عمل برابر وګرځول سي نو زه به يې خپله نيک بختي ګڼم.

د وحي لړۍ منقطع سوې ده: دغه خبره حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په دې معنی وکړل چي مخکي خو رسول الله صلی الله علیه وسلم په دنيا کي موجود وو، ديني هدايات او لارښووني د وحي په صورت کي تر لاسه کېدلې مګر اوس حالت بدل سوی دی، د اجتهاد څخه ماسوا داسي يوه ذريعه زموږ سره نسته چي موږ په راتلونکو مسئلو کي چي په قرآن کريم او حديثو کي په څرګنده ذکر سوي نه وي، صحيح فيصله وکړلای سو، نو په يوه ديني معامله او مسئله کي د رايي ورکولو پر وخت ښه فکر کول پکار دي او د معاملې ټول اړخونه بايد په ذهن کي وي.

ددې څخه ماسوا د الله جل جلاله ارشاد دی:

الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي...

ددې سره سم دينْ د الله جل جلاله د رسول په ذريعه په خپل مکمل صورت کي موږ ته را رسېدلی دی ځکه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د خليفه په حيثيت سره زما ذمه داري ده چي د دين ددغه اصل او په پوره توګه ساتنه وکړم او هيڅ داسي فتنه نه پرېږدم چي په هغه سره دين ته د تاوان رسېدو بېره وي.

==========

# بَابُ مَنَاقِبِ عُمَرَ رضي الله عنه

## (د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د مناقبو او فضائلو بيان)

د امير المؤمنين حضرت عمر فاروق رضي الله عنه مناقب او فضائل بې شمېره دي، د نوموړي په عظيم شخصيت او حيثيت او د هغه په لوړ مقام او مرتبې کي دا يوه خبره کافي ده چي الله جل جلاله د خپل رسول صلى الله عليه وسلم د دعاء په قبلولو سره هغه ته د اسلام قبلولو توفيق ورکړ او د هغه په ذريعه يې خپل دين ته ستر شان او شوکت ورکړ، د هغه تر ټولو لوی فضيلت دادی چي د الله جل جلاله له لوري به هغه ته صحيح لار روښانه کېدل، د الهام او القاء په ذريعه به په غيبي توګه د هغه لاربښوونه کېدل، د هغه په زړه کي به هغه خبره اچول کېدل چي حق به وه او د هغه رايه به د وحي الهي او کتاب الله موافق کېدل، له دې کبله علماؤ ليکلي دي چي د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په حق کي د هغه رايه د خلافت صديق د حق کېدو دليل دی لکه څرنګه چي د حضرت عمار ابن ياسر رضي الله عنه شاهدي د حضرت علي مرتضی رضي الله عنه په حق کېدو باندي دليل منل کيږي.

ابن مردويه رضي الله عنه د حضرت مجاهد رحمة الله عليه قول نقل کړی دی چي حضرت عمر فاروق رضي الله عنه به يو رايه ورکول د هغه موافق به قرآني آياتونه نازلېدل، ابن عساکر د سيدنا علي رضي الله عنه دا الفاظ نقل کړي دي: قرآن د حضرت عمر رضي الله عنه د رايي څخه يوه رايه ده، يعني د قرآني آياتونو يوه لويه برخه د حضرت عمر رضي الله عنه د رايي مطابق ده، د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه مرفوعا روايت دی چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: که چيري (په يوه مسئله کي) د ټولو خلګو رايه يوه وي او د عمر رضي الله عنه رايه بله وي او (د هغه مسئلې په اړه) د قرآن آيت نازل سي نو هغه به د عمر رضي الله عنه د رايي مطابق وي، دغه روايت سيوطي رحمة الله عليه په تاريخ الخلفاء کي نقل کړی دی او ليکلي يې دي چي موافقات عمر يعني د حضرت عمر رضي الله عنه د رايي سره په قرآن کريم کي چيري چي اتفاق سوی دی داسي ځايونه شل دي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### حضرت عمر رضي الله عنه محدث وو

﴿۵۷۸۱﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقَدْ كَانَ فِيمَا قَبْلَكُمْ مِنَ الْأُمَمِ مُحَدَّثُونَ فَإِنْ يَكُ فِي أُمَّتِي أَحَدٌ فَإِنَّهُ عُمَرُ. متفق عليه.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ستاسو څخه مخکني امتونو کي محدثون وه (يعني الهام به ورته کيدى) که زما په امت کي يو څوک محدث وي نو هغه به عمر وي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۴۲، رقم: ۳۶۸۹، ومسلم ۴\۱۸۶۴، رقم: ۲۳– ۲۳۹۸.

**د لغاتو حل**: محدثون: اي ناس ملهمون. (الهام ورته کېدونکی)

**تشريح**: که زما په امت کي څوک محدث واى، ددې څخه مقصد په امت کي د محدث وجود مشکوک او مشتبه کول نه دى ، امت محمدي خو تر مخکنيو ټولو امتونو افضل او اعلى دى، که په تېرو امتونو کي محدث وو نو په دغه امت کي د هغه وجود په يقيني توګه په طريقه اولى دى، نو ددغه الفاظو مقصد تاکيد او تخصيص دى يعني په دغه امت کي يوازي حضرت عمر رضي الله عنه ددغه ځانګړتياوو او اوصافو حامل دى چي د هغه څخه د هغه محدث کېدل ظاهرېږي، ددغه جملې مثال داسي دى لکه يو سړى د خپل مخلص ملګري د خاص حيثيت په څرګندولو سره ووايي که په دنيا کي څوک زما دوست وي نو بس هغه دى، لکه څرنګه چي ددغه جملې مراد دهغه سړي د کمال او ډېري ځانګړتياوي بيانول دي همدارنګه د حديث د ذکر سوې جملې مراد په ذکر سوي وصف سره د حضرت عمر رضي الله عنه زياته ځانګړتيا بيانول دي .

**د محدث معنى** : محدث دلته د ملهم (صاحب الهام) په معنى کي دى يعني هغه څوک چي د هغه په زړه کي د غيب څخه يوه خبره لوېږي، هغه ته محدث په دې اعتبار ويل کيږي چي د هغه سره په غيبي طاقت خبره کوي، هغه ته هغه خبره ښيي چي نورو ته معلومه نه وي او بيا هغه سړى دغه خبره نورو خلګو ته رسوي، په مجمع البحار کي ليکلي دي: محدث هغه سړي ته وايي چي د هغه په زړه کي (د الله جل جلاله له خوا) يوه خبره واچول سي او بيا هغه سړى د ايماني فراست په ذريعه هغه خبره نورو ته رسوي او دغه مرتبه هغه سړي ته په برخه کيږي چي الله جل جلاله يې نازول غواړي، ځينو حضراتو ويلي دي چي محدث هغه سړي ته وايي چي د هغه ګمان (د اختلافي خبرو) هغه اړخ اختيار کړي چي صواب يعني صحيح وي، او په آخر کي د هغه رايه داسي صحيح ثابته سي لکه يو پوهېدونکي چي هغه ته ښودلې وي او ځينو حضراتو دا ليکلي دي چي د محدث اطلاق پر هغه سړي کيږي چي ملائکي د هغه سره کلام (خبري) کوي، دغه قول غالبا په دې وجه دى چي په يوه روايت کي د محدثون پر ځاى د متکلمون لفظ نقل سوى دى .

## د عمر رضی الله عنه څخه د شیطان بیره

﴿۵۷۸۲﴾: وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ قَالَ اسْتَأْذَنَ عُمَرُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى

د حضرت سعد بن ابي وقاص رضی الله عنه څخه روایت دی چي عمر بن خطاب رضی الله عنه د رسول الله ﷺ په خدمت کي د حاضرۍ اجازه وغوښتل،

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعِنْدَهُ نِسَاءٌ مِنْ قُرَيْشٍ يُكَلِّمْنَهُ وَيَسْتَكْثِرْنَهُ عَالِيَةً

دغه وخت د رسول الله ﷺ سره د قریشو ځیني ښځي (یعني بیبیاني مبارکي) ناستي وې، په زوره زوره یې خبري کولې او زیاته غوښتنه یې کول،

أَصْوَاتُهُنَّ فَلَمَّا اسْتَأْذَنَ عُمَرُ قُمْنَ يَبْتَدِرْنَ الْحِجَابَ فدخل عمر وَرَسُولُ

کله چي حضرت عمر رضی الله عنه اجازه وغوښتل نو هغوی پورته سوې او د پردې په لور وځغاستې، عمر رضی الله عنه چي دننه راغلی نو رسول الله ﷺ

اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضْحَكُ فَقَالَ عُمَرُ أَضْحَكَ اللَّهُ سِنَّكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ

خندل نو حضرت عمر رضی الله عنه وویل خدای جل جلاله دي ستا غاښونه په خندا ولري ای د الله رسوله،

فَقَالَ النبي صلى الله عليه وسلم عَجِبْتُ مِنْ هَؤُلَاءِ اللَّاتِي كُنَّ عِنْدِي فَلَمَّا

نبي کریم ﷺ وویل د دغه ښځو پر حالت ما ته تعجب راځي (زما سره ناستي وې شور یې کوی)

سَمِعْنَ صَوْتَكَ ابْتَدَرْنَ الْحِجَابَ قَالَ عُمَرُ يا عَدُوَّاتِ أَنْفُسِهِنَّ أَتَهَبْنَنِي وَلَا

او چي کله یې ستا آواز واورید نو پردې ته ولاړې، عمر رضی الله عنه هغه بیبیاني مخاطب کړې ورته وه یې ویل ای د خپل ځان دښمنانو بیبیانو! زما څخه بیریږئ

تَهَبْنَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْنَ نَعَمْ أَنْتَ أَفَظُّ وَأَغْلَظُ فقال

او د رسول الله ﷺ څخه نه بیریږئ، هغوی ورته وویل هو (ستا څخه ځکه بیریږو چي) ته سخت طبیعته یې او سخت ویونکی یې،

رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ايه يا ابن الخطاب وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ مَا

رسول الله ﷺ حضرت عمر رضی الله عنه ته وفرمایل : اې د خطاب زویه! بله خبره کوه (دوی پرېږده) په هغه ذات دې مې قسم وي چې د چا په لاس کې زما ساه ده

لَقِيَكَ الشَّيْطَانُ سَالِكًا فَجًّا إِلَّا سَلَكَ فَجًّا غَيْرَ فَجِّكَ. متفق عليه وقال الحميدي زاد البرقاني بعد قوله يا رسول الله ما اضحك.

کله چې ته پر یوه لاره ځې نو شیطان در ته مخته نه راځي بلکه پر کومه لاره چې ته ځې هغه پرېږدي او پر بله لار روان سي . بخاري او مسلم ، او حمیدي وویل چې برقاني د یارسول الله څخه وروسته ما اضحک الفاظ زیات کړي دي .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۴۱، رقم: ۳۶۸۳، ومسلم ۴\۱۸۶۳، رقم: ۲۲-۲۳۹۶.

**تشريح**: او خبري يې په زوره کولې ، يعني د هغه آواز د رسول الله ﷺ پر آواز لوړ وو ، نو په دې اړه يو احتمال دادی چې دغه پېښه د هغه وخت ده کله چې د رسول الله ﷺ په وړاندي د شور کولو يعني د رسول الله ﷺ د آواز څخه د خپل آواز پورته کولو منع په قرآن کريم کي نازله سوې نه وه ، او بل احتمال دادی چې د هغه ټولو آوازو نو په يو ځای کېدو سره شور جوړ سوی وو لکه څرنګه چې په عامه توګه کيږي چې کله يو څو ک خلک يو ځای په کراره خبري کوي نو د ټولو د آوازونو په يو ځای کېدو سره شور ځيني جوړيږي ، دا صورت نه وو چې په هغوی کي د هري يوې يا د يوې آواز د هغه حد څخه لوړ وو کوم چې منع يې راغلې ده ، دغه دواړه احتمالونه ملا علي قاري رحمه الله نقل کړي دي او بيا يې ليکلي دي : زه دا وايم چې د حديث د الفاظو څخه دا چيري ثابتيږي چې د هغه آواز دومره زيات لوړ وو چې د رسول الله ﷺ د آواز څخه پورته سوی وو او کله چې دا نه ثابتيږي نو بيا د الله جل جلاله د ارشاد :

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَرْفَعُوا أَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ... الاية.

اشکال نه پيدا کيږي ، د حديث د الفاظو څخه چې کومه خبره مفهوم کيږي هغه داده چې ازواج مطهرات به په عامه توګه د رسول الله ﷺ په مخکي په کښته آواز خبري کولې ، په دغه وخت کي د هغوی اواز د هغه عادت او معمول څخه لږ پورته سوی وو چې نه خو د حد ادب څخه متجاوز وو او نه د رسول الله ﷺ د خوش خلقی او خوش مزاجی د ناخوښی باعث سوی وو .

هغه د لاري څخه په آخوا کېدو سره بله لار اختياروي ، مطلب دا چې ستا هيبت دومره دی چې شيطان ستا د تصور څخه هم ريږي ، د هغه دومره توان نسته چې ستا مخته راسي ، په کوم

ځای کي چي ته يې هلته د شيطان تيريدل هم نه سي کيدای، په يوه روايت کي داسي راغلي دي چي شيطان د عمر رضي الله عنه د سايې څخه هم بيريږي، څرګنده دي وي چي د فج څخه مطلق لار مراد ده که هغه تنګه وي يا پراخه وي، مګر قياس ته نژدې دادی چي دغه لفظ دلته پر خپل ظاهري معنی يعني پراخي لاري لپاره استعمال سوی دی او په دې کي دا نکته پټه ده چي شيطان د عمر رضي الله عنه پر پراخي لاري لېدو سره هم تښتي او بله لار اختياروي، حال دا که چيري هغه وغواړي نو د پراخي لاري پر بلي غاړي هم تېرېدای سي مګر پر هغه باندي د عمر رضي الله عنه خوف او هيبت دومره غالب وي چي هغه د بلي لاري اختيارولو ته مجبور سي.

## په جنت کي د حضرت عمر رضي الله عنه محل

﴿۵۷۸۳﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلْتُ الْجَنَّةَ فَإِذَا

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: زه چي جنت ته ولاړم (يعني د

أَنَا بِالرُّمَيْصَاءِ امْرَأَةِ أَبِي طَلْحَةَ وَسَمِعْتُ خَشَفَةً فَقُلْتُ مَنْ هَذَا فَقَالَ هَذَا

معراج په شپه) نو ناڅاپه زما ملاقات د ابو طلحه د ښځي رميصاء سره وسو او ما د قدمونو آواز واوريدی، ما پوښتنه وکړه دا د چا د قدمونو آواز دی، جبرائيل عليه السلام راته وويل دا

بِلَالٌ وَرَأَيْتُ قَصْرًا بِفِنَائِهِ جَارِيَةٌ فَقُلْتُ لِمَنْ هَذَا فَقَالَ لِعُمَرَ فَأَرَدْتُ أَنْ

د بلال رضي الله عنه د قدمونو آواز دی، بيا ما يوه ماڼۍ ولیدل چي په غولي کي يې يوه پيغله ښځه ناسته وه، ما پوښتنه وکړه دا د چا محل دی، هغوی راته وويل دا د عمر ابن خطاب رضي الله عنه محل دی، ما

أَدْخُلَهُ فَأَنْظُرَ إِلَيْهِ فَذَكَرْتُ غَيْرَتَكَ فَقَالَ عُمَرُ بِأَبِي وَأُمِّي يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَعَلَيْكَ أَغَارُ. متفق عليه.

غوښتل چي دننه ورسم محل وګورم مګر بيا (اې عمره!) ستا غيرت را ته ياد سو، عمر رضي الله عنه عرض وکړ اې دالله رسوله! زما مور او پلار دي پر تاسو قربان سي ايا زه به ستاسو پر داخليدو غيرت کوم. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۴۰، رقم: ۳۶۷۹، ومسلم ۴\۱۸۶۲، رقم: ۲۰-۲۳۹۴.

**د لغاتو حل**: الرميضاء: تصغير رمضاء، امراة في عينها رمض. خشفة: اي حركة.

**تشريح**: رميصا د حضرت ابو طلحه انصاري رضي الله عنه ښځه او د حضرت انس ابن مالک رضي الله عنه مور ده، مخکي د مالک ابن نضر په نکاح کي وه چي د هغه څخه حضرت انس رضي الله عنه پيدا سو، د مالک څخه وروسته ابو طلحه رضي الله عنه ورسره نکاح وکړل، د هغې د اصل نامه په اړه اختلاف دی، ام سليم هم ورته ويل سوي دي او رميصاء هم، يو مشهور نوم يې غميصاء هم دی، رميصاء په اصل کي د رمص څخه دی چي د هغه معنی د هغه سپينو خيرو ده چي د سترګو په کونج کي جمع کيږي او غميصاء د غمص څخه دی چي معنی يې د سترګو خيره بهېدل دي.

ايا زه ستاسو سره غيرت کوم، دا د (اعليک اغار) معنی ده او ځينو حضراتو ويلي دي چي په دغه جمله کي قلب الفاظ دی يعني اصل جمله داسي ده: اغار منک، او په ځينو روايتو کي دا هم دي چي حضرت عمر رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم د ارشاد په اورېدو سره دا هم وويل: وهل رفعني الله الا بک وهل هداني الله الا بک، يعني ما ته چي دا کومه مرتبه راکړل سوې ده دا محض ستاسو په وجه ده ما ته الله جل جلاله هدايت کړی دی دا ستاسو په ذريعه دی.

## د دين فهم

﴿۵۷۸۴﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَا أَنَا نَائِمٌ رَأَيْتُ النَّاسَ يُعْرَضُونَ عَلَيَّ وَعَلَيْهِمْ قُمُصٌ مِنْهَا مَا يَبْلُغُ الثُّدِيَّ وَمِنْهَا مَا دُونَ ذَلِكَ وَعُرِضَ عَلَيَّ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ وَعَلَيْهِ قَمِيصٌ يَجُرُّهُ قَالُوا فَمَا أَوَّلْتَ ذَلِكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ الدِّينَ. متفق عليه.

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: يو وخت زه بيده وم وينم چي خلک زما مخته راوستل سي او ما ته وښودل سي، دغه ټولو خلکو قيمصونه اغوستي وه په هغوی کي د ځينو قيمصونه دومره وه چي سينو ته رسيدل او د ځينو تر دې لاندي، بيا زما مخته عمر بن خطاب رضي الله عنه راوستل سو چي هغه دومره اوږد قميص اغوستی وو چي پر مځکه راکشېدی، خلکو پوښتنه وکړه اې د الله رسوله! د دغه خوب تعبير څه شي دی؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل :دين، (يعني د حضرت عمر رضي الله عنه دين کامل دی) بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۴۳، رقم: ۳۶۹۱، ومسلم ۴\۱۸۵۹، رقم: ۱۵-۲۳۹۰.

**تشریح**: او د ځینو قمیصونه د هغه څخه هم کوچني وه، یعني د ځینو خلکو د بدن قمیصونه دومره وه چي سینې ته رسېدل او د ځینو خلکو قمیصونه دومره کوچني وه چي د هغوی سینې ته هم نه رسېدل بلکه د سینې څخه پورته وه.

ومنها دون ذلک، ددې مطلب دا بیان سوی دی، مګر ملا علي قاري رحمه الله ددغه جملې چي کوم وضاحت کړی دی د هغه څخه معلومیږي چي د هغه په نزد دا معنی هم ده او دا معنی هم کیدای سي چي د هغوی قمیصونه د هغوی د قمیصونو څخه اوږده وه.

د حضرت عمر رضي الله عنه د قمیص د اوږدوالي په تعبیر کي د دین او مذهب د ذکر څخه دا مراد دی چي د حضرت عمر رضي الله عنه د ذات څخه به دین ته تقویت تر لاسه کیږي او د هغه د خلافت زمانه به اوږده وي، د هغوی په زمانه کي به د دین شان او شوکت ډېر لوړ سي، بې شمېره ښارونه او هیوادونه به فتح سي او د هغه د فتوحاتو په نتیجه کي به د بیت المال آمدني پراخه سي، یا دا چي دین ته په قمیص سره تشبیه ورکول دې ته اشاره کول وو چي څرنګه د انسان جامه نه یوازي دا چي د هغه د ښکلا او د مختلفو مضرو اثراتو څخه ساتنه کوي او د آرام ذریعه وي بلکه په حقیقت کي د هغه د بدن لازمي تقاضا هم وي، همدارنګه د دین څخه نه یوازي دا چي د انسان تهذیب او ښکلا او د هغه د روحاني اطمینان او سکون ذریعه ده او په دواړو جهانو کي د هغه د ساتني ضامن دی بلکه په حقیقت کي د انسانیت لازمي جزء او د انساني فطرت سلیم عین تقاضا هم ده.

## د حضرت عمر رضي الله عنه علم

﴿۵۷۸۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يقول

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اوریدلي دي چي وه یې

بَيْنَا أَنَا نَائِمٌ أُتِيتُ بِقَدَحِ لَبَنٍ فَشَرِبْتُ حَتَّى إِنِّي لَأَرَى الرِّيَّ يَخْرُجُ فِي

فرمایل: یو وخت زه بیده وم چي په خوب کي ما ته د شیدو پیاله راوړل سوه، ما شیدې وڅښلې، ما د هغه شیدو د موړوالي حالت ولیدی چي د هغه اثر زما

أَظْفَارِي ثُمَّ أَعْطَيْتُ فَضْلِي عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ قَالُوا فَمَا أَوَّلْتَهُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ الْعِلْمَ. متفق عليه.

د نوکانو څخه څرګندیدی، ما د شیدو څخه پاته سوي شیدې عمر بن خطاب رضي الله عنه ته ورکړې، خلکو پوښتنه وکړه اې دالله رسوله ! ددې خوب تعبیر څه شي دی ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: علم، (د علم څخه مراد علم دین دی . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\ ۴۰، رقم: ۳۶۸۱، ومسلم ۴\ ۱۸۵۹، رقم: ۱۶- ۲۳۹۱.

**د لغاتو حل**: الرِي: اثر اللين من الماء.

**تشريح**: علماؤ ليکلي دي چې د علم صورت مثاليه په عالم بالا کي شېدې دي، ځکه که يو سړی په خوب کي ويني چې هغه شېدې څښني نو ددې تعبير دادی چې هغه سړي ته به خاص او نافع علم په برخه سي ، د علم او شېدو په منځ کي د مشابهت وجه داده چې څرنګه شېدې د انساني بدن لومړنی غذا او د بدن د اصلاح او تقويت بنياد دی همدارنګه انساني علم د روح لومړنی غذا او د بدن د اصلاح او تقويت بنيادي ذريعه ده، ځينو عارفينو دا ليکلي دي چې د عالم مثال څخه د تجلي علم انعکاس يوازي په څلورو شيانو يعني اوبه، شېدو، شراب او د عسلو په صورت کي کيږي او دا هغه څلور شيان دي چې د هغه وياله په جنت کي بهيږي، قرآن کريم ددغه څلورو شيانو د ويالو داسي يادونه کړې ده :

مَثَلُ الْجَنَّةِ الَّتِي وُعِدَ الْمُتَّقُونَ فِيهَا أَنْهَارٌ مِّن مَّاءٍ غَيْرِ آسِنٍ وَأَنْهَارٌ مِن لَّبَنٍ لَّمْ يَتَغَيَّرْ طَعْمُهُ وَأَنْهَارٌ مِّنْ خَمْرٍ لَّذَّةٍ لِّلشَّارِبِينَ وَأَنْهَارٌ مِّنْ عَسَلٍ مُّصَفًّى

ژباړه: جنت چې د پرهيزګارانو سره يې وعده سوې ده،د هغه صفت دادی چې په هغه کي به د اوبو وياله وي چې بوی به نه کوي او د شېدو وياله دي چې خوند يې نه بدليږي او د شرابو وياله دي چې د څښونکو لپاره خوند دی او د عسلو پاکي وياله دي .

نو کوم څوک چې په خوب کي اوبه وڅښني هغه ته به د علم لدني ورکړل سي او کوم څوک چې شېدې وڅښني نو هغه ته به د اسرار شريعت علم ورکړل سي او چا چې شراب وڅښل (په خوب کي) نو هغه ته به علم کمال ورکړل سي او چا چې عسل وڅښل نو هغه ته به د وحي په طريقه علم ورکړل سي، په عارفينو کي ځينو په دې اړه دا نکته بيان کړې ده چې د جنت دغه څلور وياله په حقيقت کي د څلورو خلفاء څخه عبارت دي او په دې اعتبار په حديث کي د شېدو نسبت يوازي د حضرت عمر رضي الله عنه ذکر کول ډېر مناسب دي ، د حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه څخه منقول دي چې هغه وفرمايل: که د حضرت عمر رضي الله عنه علم د ترازو په يوه پله کي واچول سي او په دوهمي پلې کي د عربو د ټولو قبيلو په جمع کولو سره واچول سي او بيا وتلل سي نو د

حضرت عمر رضی اللہ عنہ د علم پله به د هغه ټولو د علم د وزن څخه درنه وي، او په دې وجه د ټولو صحابه کرامو عقیده وه چې د لسو برخو څخه نهه برخې علم یوازې حضرت عمر رضی اللہ عنہ تر لاسه کړی دی.

## د رسول الله ﷺ یو خوب

﴿۵۷۸۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ

د حضرت ابوهریره رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي چې فرمایل یې:

بَيْنَا اَنَا نَائِمٌ رَأَيْتُنِي عَلَى قَلِيبٍ عَلَيْهَا دَلْوٌ فَنَزَعْتُ مِنْهَا مَا شَاءَ اللهُ ثُمَّ

زه یو وخت بیده وم چې ما خپل ځان د یو څاه سره ولیدی چې پر هغه سلواغه پرته وه، ما د هغه سلواغې څخه څومره چې خدای جل جلاله ته منظوره وه اوبه راوکښلې، بیا

أَخَذَهَا ابْنُ أَبِي قُحَافَةَ فَنَزَعَ بِهَا ذَنُوبًا أَوْ ذَنُوبَيْنِ وَفِي نَزْعِهِ ضَعْفٌ وَاللهُ يَغْفِرُ

ابن ابي قحافه رضی اللہ عنہ سلواغه واخیستل او د څاه څخه یې یوه یا دوې سلواغې اوبه راوکښلې، د ابن ابي قحافه رضی اللہ عنہ په اوبو راکښلو کې کمزوري وه، خدای جل جلاله به د ابوبکر رضی اللہ عنہ کمزوري معاف

لَهُ ضَعْفَهُ ثُمَّ اسْتَحَالَتْ غَرْبًا فَأَخَذَهَا ابْنُ الْخَطَّابِ فَلَمْ أَرَ عَبْقَرِيًّا مِنَ

کړي، بیا هغه سلواغه (لویه سلواغه) جوړه سوه او عمر بن خطاب رضی اللہ عنہ واخیستل، او ما هیڅ پهلوان په خلکو کې داسې نه دی لیدلی چې

النَّاسِ يَنْزِعُ نَزْعَ عُمَرَ حَتَّى ضَرَبَ النَّاسُ بِعَطَنٍ، وفي رواية بن عمر قال ثُمَّ

د عمر رضی اللہ عنہ په ډول هغه سلواغه راوکاږي تر هغو چې خلکو د اوبو اخورونه جوړ کړل او د ابن عمر رضی اللہ عنہ په یو روایت کې دا الفاظ دي چې بیا

أَخَذَهَا ابن الخطاب من يد ابي بكر فَاسْتَحَالَتْ فِي يَدِهِ غَرْبًا فَلَمْ أَرَ عَبْقَرِيًّا يَفْرِي فَرِيَّهُ حَتَّى روى الناس وضَرَبوا بِعَطَنٍ. متفق عليه.

هغه سلواغه د ابوبکر رضی اللہ عنہ د لاس څخه عمر رضی اللہ عنہ واخیستل، سلواغه چې د هغه لاس ته ورسیدل نو لویه سلواغه ځیني جوړه سوه، ما هیڅ پهلوان سړی داسې نه دی لیدلی چې د عمر رضی اللہ عنہ په ډول کار

کوي تر دې چي هغه خلک په اوبو ماړه سول او د اوبو اخورونه يې جوړ کړل. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۱۸، رقم: ۳٦٦۴، ومسلم۴\۱۸٦۰، رقم: ۱۷– ۲۳۹۲.

**د لغاتوحل**: قليب: اي بئر لم تطو. غربا: اي دلوا عظيمة (لويه سلواغه). بعطن: مبرک الابل حول الماء.

**تشريح**: قليب هغه څاه ته وايي چي هغه غاړه نه لري، ددې پر خلاف پر کوم څاه چي د ډبرو يا خښتو غاړه جوړه سوې وي د هغه لپاره د طوي لفظ راځي، علماؤ دا نکته ليکلې ده چي په خوب کي د طوی پر ځای د قليب لېدل دې ته اشاره کوي چي د اهل دين عزم او حوصله پر حقيقي مطلوب او مراد باندي موقوف ده نه پر سربېرن جوړ سوي قالب باندي.

د يوې يا دوو سلواغو څخه زيات، دلته راوي ته شک سوی دی چي رسول الله ﷺ د يوې سلواغې يادونه وفرمايل او که د دوو، مګر صحيح داده چي دلته اصل لفظ د ذنوبين (دوو سلواغو) دی، په دغه لفظ کي د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د خلافت زمانې ته اشاره ده چي تر دوه کاله زياته نه وه، يو احتمال دا هم دی چي په ذنوبا او ذنوبين کي د او حرف په اصل کي د بل په معنی کي استعمال سوی دی، په دغه صورت کي ددې ويلو اړتيا نه پاته کيږي چي دلته راوي د اصل لفظ يادولو څخه خطا سو چي د هغه په وجه هغه خپل شک ظاهروی او دواړه لفظونه يې نقل کړل.

هغه سست او کمزوری کېدی، په دغه الفاظو کي د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د مرتبې او مقام تخصيص نسته او نه د الفاظ مقصد پر حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه باندي د حضرت عمر رضي الله عنه فضيلت او غوره والی ثابتول دي بلکه اصل مقصد دې ته اشاره کول وو چي د ابوبکر رضي الله عنه د خلافت زمانه به ډېره مختصره وي او د عمر رضي الله عنه د خلافت زمانه به ډېره اوږده وي او په هغه زمانه کي به مخلوق ته ډېره ګټه ورسيږي، ځينو شارحينو د ضعف معنی د سستۍ او کمزورۍ پر ځای د نرمۍ او مروت کړې ده،

الله جل جلاله دي معاف کړي، ددغه دعائيه جملې مقصد حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه ته د ګناه او کوتاهۍ نسبت ثابتول نه دي بلکه دا يوه داسي جمله ده چي د محاورې په توګه ويل کيږي لکه څرنګه چي د يو چا د کار يا قول په بيانولو سره دا سي ويل کيږي هغه دا او دا کار وکړ، يا دا خبره يې وکړل الله جل جلاله دي دهغه معفرت وکړي.

هغه ځای د اوښانو د ناستي ځای جوړ کړ، عطن په اصل کي هغه ځای ته ويل کيږي چيري چي اوبه جمع کيدی او دهغه شاوخوا به اوښان کښېنستل، څرګنده دي وي چي د رسول الله ﷺ په دغه خوب کي مختلفو شيانو ته اشاره وه، يعني څاه، دين ته اشاره کوي لکه څرنګه چي څاه

دهغه اوبو منبع ده چي د دنيوي ژوند د حيات او بقاء بنياد دى، همدا رنګه دين هم د هغه حقائقو سرچينه ده چي په هغه د انسانيت د حيات او بقاء انحصار دى، چي د انسان د فكري او روحاني اقدارو بنياد دى، د څاه څخه اوبه راكښل دې ته اشاره كوي چي د دين كار د رسول الله ﷺ څخه حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه ته او له هغه څخه به حضرت عمر رضي الله عنه ته منتقل سي، د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه د څاه څخه يوه يا دوې سلواغې اوبه راكښل دې ته اشاره كوي چي دهغه د خلافت زمانه به لږ وي يعني دين او هغه توسط سره دملت د قيادت او كار به دهغه په لاس كي تر يوه يا دوو كلو پوري وي، او بيا به حضرت عمر رضي الله عنه ته منتقل سي چي د هغه د خلافت زمانه به د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه د خلافت په نسبت ډېره زياته وي ، لكه چي حضرت عمر رضي الله عنه لس كاله او درې مياشتي خليفه وو، د اوبو په راكښلو كي د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه سست او كمزورى كېدل يا خو دې ته اشاره كوي چي د هغه د خلافت په زمانه كي به د دين د كمزوري كولو هڅه كيږي لكه څرنګه چي د ځينو عربو د ارتداد په صورت كي د اضطراب او اختلاف كيفيت پيدا سو، يا دې ته اشاره كوي چي ابوبكر صديق رضي الله عنه فطرتا نرم مزاج ، بردبار او بامروت واقع سوى دى ځكه په حكومتي چارو كي به د رعب او دبدبې څخه زيات كار نه اخلي، ددې تائيد د رسول الله ﷺ د ارشاد : ان الله يغفر له ضعفه، د هغه سستي او كمزوري دي الله جل جلاله معاف كړي، څخه هم كيږي مګر دغه جمله معترضه ده ، ددې مقصد دا څرګندول دي چي د هغه دغه سستي او كمزوري يا نرمي داسي شى دى چي د الله جل جلاله په نزد د عفوي او بخښي وړ دى او ددې سره د هغه په مرتبه او مقام كي هيڅ فرق نه راځي، او د سلواغې د حضرت عمر رضي الله عنه لاس ته په رسېدو سره لويه سلواغه كېدل دې ته اشاره كوي چي هغه به دين څلور كونجه دنيا ته ورسوي، په زياتولو او ټينګولو كي به داسي هڅه او كوښښ وكړي چي د هغه اتفاق به نه دهغه څخه مخكې او نه وروسته بل چا ته تر لاسه سي،

امام نووي رحمة الله عليه ليكلي دي: د رسول الله ﷺ ارشاد : ما د هغه څاه څخه اوبه راوكښلې ثومره چي د الله جل جلاله خوښه وه، او زما څخه وروسته ابن ابوقحافه يعني ابوبكر صديق رضي الله عنه سلواغه واخيستل ، په دې كي د رسول الله ﷺ څخه وروسته د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه د خلافت او نيابت او له دنيا څخه د رخصت كېدو په صورت كي د رسول الله ﷺ د دنيا د غم او تكليفو څخه راحت تر لاسه كولو ته اشاره ده او د رسول الله ﷺ ارشاد: بيا هغه سلواغه د ابوبكر رضي الله عنه د لاس څخه عمر رضي الله عنه واخيستل او خلګو هغه ځاى د اوښانو د ناستي ځاى جوړ كړ، په دې كي دې ته اشاره ده چي د مرتدانو سرونه پرې كول او اهل اسلام د جمع كولو په صورت

كي د دين د ټينګ ساتلو او فتوحات اسلام چي پيل يې حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه وكړ هغه به د حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه كي د خپلو ثمراتو سره عروج ته ورسيږي او يو شارح ليكلي دي چي د حضرت عمر رضي الله عنه دومره زياتي او به راكښل دې ته اشاره كوي چي د هغه د خلافت زمانه به هر خاص او عام، هر كوچني او لوی لپاره د ديني او دنيوي ګټو څخه ډك وي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د حضرت عمر رضي الله عنه حق وينه

﴿۵۷۸۷﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ جَعَلَ الْحَقَّ عَلَى لِسَانِ عُمَرَ وَقَلْبِه. رواه الترمذي و في رواية ابي داؤد وعن ابي ذر قال ان الله وضع الحق على لسان عمر يقول به.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: الله جل جلاله د عمر رضي الله عنه پر ژبه او زړه حق جاري كړی دی، ترمذي، او د ابوداؤد په روايت كي چي د ابوذر رضي الله عنه څخه روايت دی دا الفاظ دي چي الله تعالى حق د عمر رضي الله عنه پر ژبه جاري كړی دی نو هغه حق خبره كوي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۷٦، رقم: ۳٦۸۲.

### د حضرت عمر رضي الله عنه پر ژبه سكينت

﴿۵۷۸۸﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ مَا كُنَّا نُبْعِدُ اَنَّ السَّكِيْنَةَ تَنْطِقُ عَلٰى لِسَانِ عُمَرَ. رواه البيهقي في دلائل النبوة.

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دی چي موږ خلكو دا خبره (د عقل څخه) ليري نه بلل چي سكينت د عمر رضي الله عنه پر ژبه دی يعني هغه چي كومه خبره كوي د هغه سره سكون او اطمينان تر لاسه كيږي. بيهقي.

**تخريج**: رواه البيهقي في دلائل النبوة.

**د لغاتو حل**: نُبعِد: بمعنى الاستبعاد. (ليري كېدل)

**تشريح**: د حضرت علي رضي الله عنه مطلب دا وو چي حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه ته دا ځانګړتيا تر لاسه

ده چي هغه كله په يوه مسئله يا معامله كي د خپل خيال اظهار كوي نو داسي خبره كوي چي اوريدونكي ته سكون او اطمينان تر لاسه كيږي او بې قراره زړه ته هم قرار تر لاسه كيږي، يا د سكينه څخه مراد ملائكه هم كيداى سي چي حق او مناسب خبره په زړه كي اچوي او بيا هغه خبره په ژبه سره ادا كيږي ، ددې تاييد د حضرت علي رضي الله عنه د يو بل روايت څخه كيږي چي طبراني په اوسط كي نقل كړې دى چي هغه وفرمايل: اې خلكو ! كله چي د صالحينو يادونه كوئ نو د عمر رضي الله عنه يادونه مخكي كړئ ځكه كيداى سي چي د هغه قول الهام وي او هغه د ملائكي زباني بيان كوي، په دې اړه دا روايت هم بايد په ذهن كي وي چي په هغه كي نقل سوي دي چي حضرت ابن مسعود رضي الله عنه وفرمايل: كله چي ما عمر رضي الله عنه وليدى نو داسي راته محسوسه سول چي د هغه د دواړو سترګو په منځ كي ملائكه موجود ده چي هغه ته صحيح لار ښيي.

## د حضرت عمر رضي الله عنه لپاره دعاء

﴿۵۷۸۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللّٰهُمَّ أَعِزَّ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله صلى الله عليه وسلم دغه دعاء وكړه چي اې الله !

الْإِسْلَامَ بِأَبِي جَهْلِ ابْنِ هِشَامٍ أَوْ بِعُمَرَ ابن الخطاب فَأَصْبَحَ فَغَدَا عُمَرُ عَلَى

دابو جهل بن هشام په ذريعه يا د عمر بن خطاب رضي الله عنه په ذريعه د اسلام عزت او عظمت نصيب كړې، ددې دعاء څخه وروسته سبا ته حضرت عمر رضي الله عنه

النبي صلى الله عليه وسلم فَأَسْلَمَ ثم صلى في المسجد ظاهرا. رواه احمد والترمذي.

د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر سو او اسلام يې قبول كړې، ددې څخه وروسته رسول الله صلى الله عليه وسلم به په ښكاره په مسجد كي لمونځ كوى. احمد او ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۷۷، رقم: ۳۶۸۳، ومسند الامام احمد ۲\۹۵. بلفظ قريب.

**تشريح**: د دعوت اسلام په لومړني زمانه كي كله چي د مكې قريشو د حق داعي صلى الله عليه وسلم او د حق نوم اخيستونكو پر خلاف ظالمانه محاذ قائم كړى وو او اهل اسلام يې د سختئ او تكليفو په ذريعه مجبوره كول، نو په مكه كي هيڅ مسلمان په ډاګه لمونځ نه سو كولاى، رسول الله صلى الله عليه وسلم په دار ارقم كي اوسېدى او په هغه سرا يكي هم په پټه توګه د الله جل جلاله نوم اخيستى، د الله جل جلاله بندګي كېدل او د الله جل جلاله د رسول، د الله جل جلاله د دين په زياته خپرېدو كي بوخت وو ، رسول الله صلى الله عليه وسلم

پوهېدى چي د قريشو په مشرانو كي دوه كسان يعني ابوجهل او عمر دا حيثيت لري كه په هغوى كي يو اسلام قبول كړي او موږ ته راسي نو اسلام چي نن د مكې د قريشو د ظلم او ستم په وجه په دارارقم كي محدود سوى دى ، دومره توان به تر لاسه كړئ چي مسلمانان به په پټه د الله ﷻ نوم اخيستلو او د الله ﷻ پر عبادت كولو باندي مجبور نه سي، هغوى به په ډاګه لمونځ كولاى سي او په څرګنده به د اسلام دعوت وړاندي كولاى سي نو رسول الله ﷺ ذكر سوې دعاء وكړل.

دغه دعاء څرنګه قبوله سول، او حضرت عمر رضي الله عنه څرنګه په اسلام مشرف سو ددې تفصيل په يوه روايت كي چي ابو حاكم عبدالله په دلائل النبوة كي نقل كړى دى، حضرت عبدالله ابن عباس رضي الله عنه يې داسي بيانوي چي يو وار ابوجهل اعلان وكړ : كوم څوك چي محمد ﷺ ووژني نو هغه ته به په انعام كي سل اوښي او زر سپين زر وركوم، عمر (د دې په اورېدو سره ) وويل: الضمان صحيح، يعني تاوان صحيح دى، ابوجهل وويل: هو، سمدستي به يې ادا كړم، هيڅ ځنډ به پكښي ونه كړم، عمر د هغه ځاى څخه روان سو او په لاره كي د يو سړي سره يو ځاى سو ، هغه پوښتنه وكړل چي چيري د تللو اراده ده، عمر جواب وركړ ، محمد ﷺ ته ځم، اراده مي ده چي نن د هغه كار خلاص كړم، هغه سړي ورته وويل: ايا ته د (محمد ﷺ) د كورنۍ بني هاشم د غچ بيره نه لري؟ عمر ورته وويل: معلومېږي چي تا هم خپل مذهب بدل كړى دى ، كله چي ته د بني هاشم د غچ اخيستلو څخه په بېرولو سره ما د محمد (ﷺ) د قتل څخه منع كوې، هغه سړي ورته وويل: ايا تر دې خطرناكه خبره تا ته وښيم، چي ستا خور او اخښي خپل زوړ مذهب پرې ايښي دى او د محمد (ﷺ) سره يو ځاى سوي دي، ددې په اورېدو سره عمر د خپل خور كور ته روان سو ، هلته چي ورسېدى نو هغه وخت د هغه په كور كي دننه د قرآن كريم تلاوت كېدى، او سورة طه يې ويل، عمر لږ وخت په دروازه كي ودرېدى او د هغه تلاوت يې واورېدى، بيا يې دروازه وټكول، كله چي دننه داخل سو نو پوښتنه يې وكړل چي دا د څه شي د ويلو آوازوو، خور يې ورته ټوله خبره بيان كړل او هغه ته يې څرګنده كړل چي موږ د زړه په صدق سره مسلمانان سوي يو اوس كه ته يا بل څوك هر څومره سختي راسره وكړي كوم دين چي موږ قبول كړى دى د هغه څخه نه ايسته كيږو ، د عمر دپاره دغه صورت حال ډېر پريشانه كوونكي وو ، يوې خوا ته خو هغه د خور او اخښي پر وهلو باندي مجبور كړ بلي خوا ته خپله دهغه په ژوند كي راتلونكى انقلاب د هغه پر زړه او دماغ باندي اثر كړى وو ، په دغه اضطرابي حالت كي ټوله شپه اخته وو ، بلي خوا ته د هغه خور او اخښي د شپې را پورته سول او د الله ﷻ په عبادت او د قرآن كريم په

تلاوت کي بوخت سول، هغوی سورة طه ما انزلنا علیک القرآن لتشقی، طه موږ پر تا قرآن دد ې لپاره نه دی نازل کړی دی چي ته تکلیف پورته کړې، دد غه ځای څخه یې لوستل پیل کړل، داسي معلومه سول چي د قرآن کریم د تلاوت هغه آواز د هغه روح په آخري توګه سره هغه تیار کړی دی ، د کلام الله ابدي صداقت د هغه پر زړه او دماغ خپور سو او په ډیره بې تابي سره یې وویل: راوړه دغه کتاب ما ته راکړه، چي زه یې هم لږ وګورم، خور یې محسوسه کړل چي د ورور سخت زړه چي کفر او شرک ډبره جوړ کړی وو ، کرار کرار ویلي کیږي، او الهي آواز ته متوجه کیږي نو هغې ورته وویل: داسي نه سي کیدای ، دغه مقدس کتاب یوازي پاک خلک مس کولای سي نو عمر غسل وکړ ، پاک سو او کلام الله یې په لاس کي واخیست او کښېنست، کله چي یې د طه څخه لوستل پیل کړل او دغه آیت : لااله الاهو له الاسماء الحسنی، الله ﷻ داسي دي چي دهغه څخه ماسوا بل معبود نسته د هغه ښه ښه نومونه دي، دغه ځای ته راورسېدی نو بې اختیاره یې وویل: اې خدایه! بېله شکه ته د عبادت لائق یې ستا څخه ماسوا بل څوک د عبادت لائق نسته چي هغه معبود وګرځول سي، اشهد ان لااله الاالله واشهد ان محمد رسول الله، بیا هغه ټوله شپه همداسي په ډېښه تېره کړل چي لږ لږ وخت وروسته یې د شوق نعره کول چي سهار سو، نو خباب ابن ارت رضی الله عنه چي په هغه کور کي د مخکي څخه موجود وو او دعمر د داخلېدو سره پټ سوی وو اوس چي هغه ولیدل چي د عمر دنیا بدله سوې ده د کفر او شرک تیاره ور څخه لیري سوې ده او داسلام رڼا د هغه په وجود کي ځای نیولی دی ، نو عمر ته راغلی او ورته یې وویل: عمر! مبارک دي وي الله ﷻ ته په خپل دین سره ونازولې، کیدای سي تا ته معلومه نه ده چي رسول الله ﷺ ټوله په ویښ پاته کېدو سره په دغه دعاء کي تېره کړه چي الهي ، ابوجهل یا عمر بن الخطاب په ذریعه اسلام ته قوت ورکړې، زه خو دا ګڼم چي دا د رسول الله ﷺ دعاوه چي ستا د قبول اسلام خیمه جوړه سوې ده ، ددې څخه وروسته عمر رضی الله عنه توره په غاړه کي واچول او د رسول الله ﷺ تم ځای ته روان سو، هلته چي ورسېدی نو رسول الله ﷺ دباندي راووتی او د هغه استقبال یې وکړ، او د اسلام دعوت یې ورته وړاندي کړ چي اې عمره! د باطلو معبودانو په پرېښودو سره د الله ﷻ واحد په درګاه کي سرکښته کړه ، سرلوړي په دې کي ده چي اسلام قبول کړې کنه نو پر تا باندي به ددنیا او اخرت هغه عذاب نازل سي کوم چي پر ولید ابن مغیره باندي نازل سو، عمر د رسول الله ﷺ د آواز په اورېدو سره په رپېدو سو او توره یې د لاس څخه ایله سول، او بې واکه یې د ژبي څخه ووتل: اشهد ان لا اله الاالله واشهد ان محمد رسول الله، او بیا هغه وویل: کله چي موږ د لات او عزی بندګي په غرونو او شېلو کي په ډاګه کوو نو دا څرنګه

كيداى سي چي د الله ﷻ عبادت دي په ښېره كي په پټه كوو ، قسم په خداى! د نن څخه وروسته به د الله ﷻ عبادت هيڅكله په پټه نه كوو، دد ې څخه وروسته عمر رضي الله عنه ټول مسلمانان د ځان سره كعبې ته بوتلل او هلته يې په ډاګه لمونځ او عبادت وكړ، او همدارنګه د حضرت عمر رضي الله عنه په ذريعه اسلام ته توان پيدا سو .

**سيدنا فاروق اعظم** رضي الله عنه : د حضرت عمر رضي الله عنه د نسب لړۍ داده: عمر بن خطاب بن فضيل بن عبدالعزى بن رياح بن قرط بن رزاح بن عدي بن كعب بن لوى كعب ته په رسېدو سره دغه لړۍ د رسول الله ﷺ د نسب د لړۍ سره يو ځاى كيږي، د حضرت عمر رضي الله عنه كنيت ابو حفص او لقب يې فاروق دى، د امام نووي رحمه الله د تحقيق سره سم د نوموړي زېږېدل د فيل د كال څخه ديارلس كاله وروسته وسو، او څرنګه چي ذهبي رحمه الله ليكلي دي چي عمر رضي الله عنه د اووه لس كالو په عمر په شپږم هجري كال كي په اسلام مشرف سو، د ځينو حضراتو وينا ده چي حضرت عمرفاروق رضي الله عنه په پنځم هجري كال كي اسلام راوړ تر هغه وخته پوري څلوېښت نارينوو او يوولس ښځو اسلام قبول كړى وو، نوموړي ته د فاروق لقب د هغه پېښي څخه وروسته تر لاسه سو چي د يو يهودي او يو منافق په منځ كي پر يوه خبره جګړه وسول، او د صلح لپاره يهودي رسول الله ﷺ د ثالث په توګه وټاكى، منافق د قريشو د مشركينو يو سردار كعب ابن اشرف د دريم كس جوړولو هڅه كول، د ډېرو خبرو اودليلو وروسته دواړو رسول الله ﷺ خپل دريم ومنى ، نو هغو دواړو خپله قضيه د رسول الله ﷺ په خدمت كي وړاندي كړل، رسول الله ﷺ د يهودي په حق كي فيصله وكړل ځكه چي د هغه پر حق كېدل ثابت وو مګر منافق دا فيصله ونه منل او هغه وويل: اوس موږ عمر رضي الله عنه دريم جوړوو، هغه چي څه فيصله وكړي نو موږ دواړو ته د منلو وړ ده، يهودي د معاملې ختمولو لپاره د منافق دا خبره هم ومنل او د هغه سره حضرت عمر رضي الله عنه ته ولاړى او يهودي حضرت عمر رضي الله عنه ته وښودل چي موږ دواړه مخكي رسول الله ﷺ خپل دريم جوړ كړ او هغه زما په حق كي فيصله وكړل مګر دا سړى د محمد ﷺ په فيصله راضي نه دى او اوس يې زه تا ته راوستلى يم، حضرت عمر رضي الله عنه د هغه منافق څخه پوښتنه وكړل چي دغه يهودي څه وايي هغه صحيح دى، منافق تصديق وكړ چي هو ، د ده بيان صحيح دى ، نو حضرت عمر رضي الله عنه ورته وويل: تاسو دواړه دلته ودرېږئ تر څو چي زه بېرته نه راسم تر هغه وخته پوري مه ځئ ، ددې په ويلو سره كور ته ولاړى او توره يې راوړل او بيا يې په هغه توره د منافق سر پرې كړ، او وه يې فرمايل: كوم څوک چي د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ فيصله نه مني د هغه په حق كي زما دا فيصله ده، پر دغه پېښه باندي دغه آيت نازل سو :

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ آمَنُوا بِمَا أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَن يَتَحَاكَمُوا إِلَى الطَّاغُوتِ

ژباړه: ایا تا هغه خلک ونه لېدل چي دعوه کوي چي هغوی پر کتاب باندي هم ایمان لري کوم چي پر تا نازل سوی دی او پر هغه کتاب هم چي ستا څخه مخکي نازل سوی دی، هغوی خپلي مقدمې شیطان ته وړل غواړي (حال دا چي هغوی ته دا حکم سوی دی چي هغه ونه مني).

او حضرت جبرائیل علیه السلام په راتللو سره وویل: عمر رضی الله عنه د حق او باطل په منځ کي فرق کوونکی دی نو د هغه ورځي څخه د حضرت عمر رضی الله عنه لقب په فاروق مشهور سو.

### د حضرت عمر رضی الله عنه فضیلت

﴿۵۷۹۰﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ عُمَرُ لِأَبِي بَكْرٍ يَا خَيْرَ النَّاسِ بَعْدَ رَسُولِ اللّٰهِ

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دی چي یوه ورځ عمر رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه وروسته

فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ أَمَا إِنَّكَ إِنْ قُلْتَ ذَاكَ فَلَقَدْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

ابوبکر رضی الله عنه ته په غوره سړي ویلو سره مخاطب کړ، ابوبکر رضی الله عنه ورته وویل اې عمر! تا زه په دې خطاب سره مخاطب کړی یم نو زه تا خبروم چي ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اورېدلي دي چي

وَسَلَّمَ يَقُولُ مَا طَلَعَتْ الشَّمْسُ عَلَى رَجُلٍ خَيْرٍ مِنْ عُمَرَ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

لمر پر هیڅ داسي سړي نه راخیژي چي د عمر رضی الله عنه څخه غوره وي.، ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دی.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۵۷۷، رقم: ۳۶۸۴.

**تشریح**: د حضرت عمر رضی الله عنه په حق کي دغه ارشاد یا خو د هغه د خلافت پر زمانه محمول دی یعني هغه به د خپل خلافت په زمانه کي تر ټولو انسانانو غوره وي او دا حقیقت رسول الله صلی الله علیه وسلم مخکي بیان کړی وو، یا دا چي په ارشاد کي د ابوبکر رضی الله عنه څخه وروسته الفاظ محذوف او مقدر دي یعني رسول الله صلی الله علیه وسلم دا وفرمایل: چي د ابوبکر رضی الله عنه څخه وروسته حضرت عمر رضی الله عنه غوره دی یا دا چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم د دغه ارشاد مقصد د عدالت او سیاست په باب کي د حضرت عمر رضی الله عنه پر افضیلت او غوره والي باندي محمول دی، خلاصه دا چي دغه حدیث د هغه حدیثو

خلاف نه دی چي په هغو کي د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه افضیلت او غوره والی ثابتیږي ځکه دد غه حدیثونو په منځ کي د تطبیق لپاره ذکر سوي توجیهات بیانیږي.

## د حضرت عمر رضی الله عنه منقبت

﴿۵۷۹۱﴾: وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ قَالَ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ كَانَ بَعْدِي نَبِيٌّ لَكَانَ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب

د حضرت عقبه بن عامر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: که زما څخه وروسته یو نبي وای نو هغه به عمر رضی الله عنه وای. ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دی.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵/۵۷۸، رقم: ۳۶۸۶.

**تشریح**: دا ډول خبره په امر محال کي هم د مبالغې په توګه کیږي، د رسول الله صلی الله علیه وسلم مطلب دا وو که چیري فرضا زما څخه وروسته څوک نبي راتلای نو هغه به عمر رضی الله عنه وای، مګر حقیقت دا دی چي د نبوت دروازه بنده سوې ده او زما څخه وروسته د هیڅ یو نبي راتلو سوال هم نه پیدا کیږي ځکه د عمر رضی الله عنه مرتبه پر نبوت باندي فائز کیدای نه سي او نه صاحب وحي کیدای سي مګر په هغه کي ځیني ځانګړتیاوي داسي دي چي د انبیاوو څخه ماسوا د نورو ټولو انسانانو په منځ کي د هغوی یوازینی حیثیت څرګندوي او د عالم وحي سره د هغه یو ډول مناسبت هم څرګندیږي، د مثال په توګه دا چي د الله جل جلاله له خوا هغه ته الهام کیږي، د الله جل جلاله په حکم سره ملائکه د هغه په زړه او دماغ کي القاء کوي او په غیبي توګه د حق لاره هغه ته روښانه کیږي.

## شیطان د عمر رضی الله عنه څخه بیریږي

﴿۵۷۹۲﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ خَرَجَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَعْضِ

د حضرت بریده رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم یوې غزا ته تشریف وړی وو کله چي

مَغَازِيهِ فَلَمَّا انْصَرَفَ جَاءَتْ جَارِيَةٌ سَوْدَاءُ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنِّي كُنْتُ

راوګرځېدی نو د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کي یوه توره (حبشي) انجلۍ حاضره سوه او عرض يې وکړ اې دالله رسوله! ما

نَذَرْتُ إِنْ رَدَّكَ اللّٰهُ سَالِمًا أَنْ أَضْرِبَ بَيْنَ يَدَيْكَ بِالدُّفِّ وَأَتَغَنَّى فَقَالَ لَهَا

دا نذر منلی وو چي کله تاسو د غزا څخه کامیاب را سئ نو زه به ستا په مخکي دریا وهم او سندره به وایم، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل:

رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنْ كُنْتِ نَذَرْتِ فَاضْرِبِي وَإِلَّا فَلَا فَجَعَلَتْ

که تا نذر منلی وي نو دریه ووهه او که دي نذر منلی نه وي نو مه يې وهه نو هغه انجلۍ دریه

تَضْرِبُ فَدَخَلَ أَبُو بَكْرٍ وَهِيَ تَضْرِبُ ثُمَّ دَخَلَ عَلِيٌّ وَهِيَ تَضْرِبُ ثُمَّ دَخَلَ

وهل شروع کړل ابوبکر ﷛ راغلی او هغې دریه وهل.، بیا حضرت علي ﷛ راغلی او هغې دریه وهل، بیا

عُثْمَانُ وَهِيَ تَضْرِبُ ثُمَّ دَخَلَ عُمَرُ فَأَلْقَتْ الدُّفَّ تَحْتَ اسْتِهَا ثُمَّ قَعَدَتْ

عثمان ﷛ راغلی او هغې دریه وهل، بیا عمر ﷛ راغلی نو هغه انجلۍ دریه وهل پریښودل او ترخپلو کوناتو لاندي يې کښېښودل او پر هغه سربیره کښېښستل،

عَلَيْهِ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الشَّيْطَانَ لَيَخَافُ مِنْكَ يَا

ددې لیدو سره نبي کریم ﷺ وفرمایل اې عمر! بېشکه شیطان هم ستا څخه بیریږي،

عُمَرُ إِنِّي كُنْتُ جَالِسًا وَهِيَ تَضْرِبُ فَدَخَلَ أَبُو بَكْرٍ وَهِيَ تَضْرِبُ ثُمَّ دَخَلَ

زه ناست وم او دې ا نجلۍ دریه وهل ، ابوبکر ﷛ راغلی او دې دریه وهل بیا

عَلِيٌّ وَهِيَ تَضْرِبُ ثُمَّ دَخَلَ عُثْمَانُ وَهِيَ تَضْرِبُ فَلَمَّا دَخَلْتَ أَنْتَ يَا عُمَرُ أَلْقَتْ الدُّفَّ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب صحيح.

علي ﷛ راغلی او دې دریه وهل بیا عثمان ﷛ راغلی او دا په دریه وهلو کي بوخته وه بیا چي ته راغلې نو ستا په لیدو سره يې دریه د ځان څخه بیله کړه، ترمذي ویلي دي د احدیث حسن غریب صحیح دی.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۵۷۹، رقم: ۳۶۹۰.

**تشریح**: د دُف لفظ زیات صحیح او فصیح د دال په پېښ سره دی مګر په ځینو روایتو کي د دال په زور سره هم منقول سوی دی او د دف څخه مراد دریه ده.

که تا په حقیقت کي نذر منلي وي، دغه جمله ددې خبري دلیل دی چي د هغه نذر پوره کول چي په هغه کي د الله ﷻ رضا او خوښي تر لاسه کیږي، واجب دی، د رسول الله ﷺ په ستنېدو او په خاصه توګه د جهاد د سفر څخه په سلامتیا بېرته راتلو باندي چي په هغه کي ځانونه له منځه ځي، د خوشحالی اظهار کول یقینا داسي شی وو چي په هغه سره د الله ﷻ رضا تر لاسه کیږي.

کنه نو داسي مه کوه، ددې څخه ثابته سول چي هسي د دریې وهل جائز نه دي مګر په داسي وخت کي جائز دي چي په هغه کي د شارع ﷺ اجازه منقول وي لکه د ذکر سوي نذر پوره کول یا دنکاح اعلان کول نو د کومو سیمو (لکه یمن) د مشائخو په اړه چي منقول دي چي هغوی به د ذکر په حالت کي دریه وهل نو ددې هیڅ اعتبار باید ونه سي د هغوی دغه فعل د حدیث بالکل خلاف وو، څرګنده دي وي چي ملا علي قاري رحمه الله ددغه حدیث جمله (او سندري به وایم) په اړه چي څه لیکلي دي د هغه څخه دا ثابتیږي چي د ښځي داسي غزلي او رېدل چي ساز ورسره نه وي، او نه پر فحش او غیر اخلاقي مضامینو باندي مشتمل وي او د هغه په وجه په کوچنی یا لویه خرابی کي د اخته کېدو بېره هم نه وي، جائز دي،

او همدارنګه ځینو حضراتو په ودونو، اخترو او نورو خوشحالیو کي دې ته جائز او مختار ویلي دي مګر دا خبره د حنفي فقهي د روایتونو خلاف ده ځکه چي په ظاهر ګمان سره د فقهاؤ د روایت څخه غزل مطلق حرامه ده لکه څرنګه چي په درمختار، بحر الرائق او نورو کي لیکلي دي بلکه په هدایه کي خو یې دې ته لویه ګناه ویلي دي، که څه هم غزلي د خپل زړه د خوشحاله کولو لپاره وي، ددغه فقهاؤ په نزد د جواز حدیثونه منسوخ دي.

ستا څخه شیطان هم په بېره کي وي، دلته د شیطان څخه مراد هغه توره انجلی وه چي هغې ځان د شیطاني کارو په کولو سره د انساني شیطان مصداق جوړ کړی وو، یا هغه شیطان مراد دی چي پر هغه انجلی باندي مسلط وو چي هغه یې یو غیر مناسب او مکروه کار باندي را پارولې وه او هغه مکروه فعل د دریې وهل او په غزلو کي د حد څخه زیات بوخت کېدل وو چي هغه تفریح د لهوي حد ته رسولې وه.

**یو سوال او دهغه جواب**: دا خو دحدیث وضاحت وو، ددې څخه قطع نظر که د حدیث سیاق او سباق ته وکتل سي نو په ذهن کي یو سوال را پیدا کیږي چي هغه انجلی د رسول الله ﷺ په وړاندي د دریې وهلو اجازه وغوښتل او بیا هغې دریه وهل پیل کړل، نو رسول الله ﷺ پټه خوله وو، نه یې د ناخوښی اظهار وکړ او نه د خفګان، یعني هغه صورت وو چي هغه ته د حدیث په اصطلاح کي تقریر ویل کیږي او دغه صورت هغه وخت هم وو کله چي حضرت ابوبکر صدیق

رضي الله عنه راغلی ، بیا حضرت علي رضي الله عنه راغلی او بیا حضرت عثمان رضي الله عنه راغلی مگر کله چي حضرت عمر رضي الله عنه راغلی او هغه انجلۍ دریه وهل بند کړل نو په پای کي رسول الله ﷺ هغه په شیطان سره تعبیر کړل ، نو دا ولي ؟په دې اړه علماؤ لیکلي دي چي دلته خبره ونه چلېدل ، کله چي رسول الله ﷺ د سفر جهاد ته ووتی نو هغه انجلۍ په ډېره مینه او عقیدې سره د رسول الله ﷺ د فتح او سلامتیا دعاء وغوښتل ، کله چي رسول الله ﷺ د فتح او سلامتیا سره را ستون سو نو هغه انجلۍ په خیر راتګ د الله جل جلاله یو ډېر لوی نعمت وګڼی چي د هغې په نزد د شکر ادا کولو موجب هم وو ، او د خوشحالۍ د اظهار متقاضي هم، له دې کبله رسول الله ﷺ هغې ته د نذر پوره کولو اجازه ورکړل نو د هغې د یو ښه نیت او ښه جذبې په وجه او د رسول الله ﷺ د خاص اجازې په وجه د لهو د حکم څخه په وتلو سره د حقانیت په حکم کي او د کراهت د صورت تخه په وتلو سره د استحباب په صورت کي داخل سو ، مگر داسي کېدل پر دې منحصر وو چي دغه عمل تر ډېر محدود وخت پوري وي چي د هغې د نذر پوره کېدو مقصد پوره سي ، مگر داسي وسول چي هغه انجلۍ دریه وهل پیل کړل او دومره بوخته سول چي د حد څخه تېره سول او د هغې دغه عمل د کراهت په دائره کي داخل سو مگر په اتفاق سره کله چي هغه د حد څخه متجاوز سول هم هغه وخت حضرت عمر رضي الله عنه راغلی نو رسول الله ﷺ ذکر سوی ارشاد وفرمایه چي په هغه کي دې ته اشاره وه چي دغه کار بس همدومره جائز دی څومره چي اجازه ورکړل سوې ده تر دې زیات منع دی او بېله اړتیا دریه وهل ددې بالکل اجازه نسته، پاته سوه دا خبره چي رسول الله ﷺ صریحا هغه انجلۍ ولي منع نه کړل نو په دې کي دا نکته وه چي په صریحا منع کولو سره د تحریم حد ته رسېدل ، دغه احتمال هم د قیاس څخه لیري نسي ګرځېدای چي په هغه زمانه کي د ضرورت په وخت کي تر څومره وخته پوري چي د دریې وهلو او د جواز په دائره کي راتلی هغه بس د دومره وخت برابر وو چي د هغه انجلۍ د دریې وهلو د پیل څخه په مجلس نبوي کي د حضرت عمر رضي الله عنه د راتګ تر وخت پوري مشتمل وو ، نو د حضرت عمر رضي الله عنه په راتګ سره مخکي خو د هغې دریه وهل د جواز په حد کي وو ځکه رسول الله ﷺ تر دغه وخت پوري پټه خوله وو مگر څرنګه چي د جواز وخت ختم سو او د حضرت عمر رضي الله عنه راتګ د هغې انجلۍ لپاره خبرداری ثابت سو مگر ددغه احساس سره چي هغې د رسول الله ﷺ د حد څخه متجاوز کېدل او د حضرت عمر رضي الله عنه د بیري څخه هغې دریه پټه کړل له دې کبله رسول الله ﷺ وفرمایل چي اې عمر ! ستا څخه شیطان هم دومره بیرېږي چي چیري چي ستا قدم پورته سي د هغه ځای څخه شیطان تېښتي، او س هغه وخت شیطان هغه انجلۍ را پارول او غوښتل یې چي تر دومره وخت پوري دریه ووهي چي په هغه سره

د هغې دغه کار د بدۍ په دائره کي داخل سي مګر ستا په راتلو سره شیطان وتښتېدی او دغه انجلۍ دریه وهل سمدستي بند کړل.

یوه توجیه دا هم بیانیږي چي په اصل کي حضرت عمر رضی الله عنه هغه مباح کار هم نه خوښوی چي د خرابۍ مشابه وي، که څه هم د یوې خوا په هغه کي څه ښه والي وي، ددې تائید د ډېرو روایتو څخه کیږي چي صاحب مرقاة نقل کړی دی نو د دریې په مسئله کي که څه هم د ضرورت په وجه د جواز امکان سته او ځکه رسول الله ﷺ هغې انجلۍ ته اجازه ورکړل چي هغه د خپل نذر پوره کولو لپاره دریه ووهي مګر د دریې وهل په هر حال د یو منع شی صورت لري ځکه حضرت عمر رضی الله عنه به دا نه خوښول، ددغه خبري په پوهېدو سره هغې انجلۍ د حضرت عمر رضی الله عنه په لېدو سره نه یوازي دا چي دریه وهل یې بند کړل بلکه هغه دریه یې د هغه څخه پټه کړل او رسول الله ﷺ د حضرت عمر رضی الله عنه ددغه ځانګړتیا په وجه ذکر سوی ارشاد وفرمایه.

﴿۵۷۹۳﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسًا

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ ناست وو،

فَسَمِعْنَا لَغَطًا وَصَوْتَ صِبْيَانٍ فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِذَا

چي موږ سخت اوازونه او د کوچنیانو شور واوریدی، ددې اوریدو سره رسول الله ﷺ ولاړ سو

حَبَشِيَّةٌ تَزْفِنُ وَالصِّبْيَانُ حَوْلَهَا فَقَالَ يَا عَائِشَةُ تَعَالَيْ فَانْظُرِي فَجِئْتُ

دباندي یې تشریف یووړ، وه یې لیدل چي یو حبشي ښځه رقص کوي او کوچنیان د هغې شاوخوا دي، ددې لیدو سره نبي کریم ﷺ وفرمایل: اې عائشې! دېخوا راسه! ته هم وګوره،

فَوَضَعْتُ لَحْيَيَّ عَلَى مَنْكِبِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَعَلْتُ أَنْظُرُ

نو زه ورغلم او د رسول الله ﷺ شا ته ودریدم او زنه مي د رسول الله ﷺ پر اوږه مبارک کښېښودل، او ما د رسول الله ﷺ د

إِلَيْهَا مَا بَيْنَ الْمَنْكِبِ إِلَى رَأْسِهِ فَقَالَ لِي أَمَا شَبِعْتِ أَمَا شَبِعْتِ قَالَتْ فَجَعَلْتُ

اوږې او سر مبارک په منځ کي هغه حبشي ښځي ته کتل لږ وخت وروسته رسول الله ﷺ وفرمایل ایا تر اوسه پوري دي زړه نه دی موړ سوی، لا تر اوسه دي زړه نه دی موړ سوی او ما

أَقُولُ لَا لِأَنْظُرَ مَنْزِلَتِي عِنْدَهُ إِذْ طَلَعَ عُمَرُ قَالَتْ فَارْفَضَّ النَّاسُ عَنْهَا قَالَتْ

ورته هر وار دا وويل چي اوس لا نه، او ددې څخه زما مقصد دا وو چي زه دا معلومه کړم چي د رسول الله ﷺ په زړه کي زما څه مرتبه ده ، (يعني زما سره يې څومره مينه ده) ناڅاپه حضرت عمر رضی الله عنه راغلی ، کوم خلک چي ولاړ وه د هغه ښځي تماشه يې کول آخوا دېخوا وپاشل سول،

فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي لَأَنْظُرُ إِلَى شَيَاطِينِ الْإِنْسِ وَالْجِنِّ

رسول الله ﷺ وفرمايل : زه وينم چي د انسانانو او پيريانانو شيطانان هم د عمر رضی الله عنه د بيري څخه

قَدْ فَرُّوا مِنْ عُمَرَ قَالَتْ فَرَجَعْتُ. رواه الترمذي وقال هذا حديث حسن صحيح غريب.

تښتي، د بي بي عائشې (رض) بيان دی چي ددې څخه وروسته زه هم ولاړمه، ترمذي ويلي دي دا حديث حسن صحيح غريب دی.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۵۸۰، رقم: ۳۶۹۱.

**د لغاتو حل**: تزفن: اي ترقص. (نڅا کول). لحي: منبت الانسان. (زنه)

**تشريح**: په اصل کي ما معلومول غوښتل ، يعني زما ددغه جواب دا مطلب نه وو چي په حقيقت کي زما زړه نه دی موړ سوی او د هغه د ليدني زما ډېر شوق وو بلکه ما خو يوازي دا لېدل غوښتل چي د رسول الله ﷺ زما سره څومره تعلق دی او د رسول الله ﷺ په زړه کي زما د محبوبيت څومره لوړ مقام دی .

د انسانانو او پيريانو شيطان، ددې څخه مراد هغه ماشوم وو چي د هغه حبشي ښځي د غورځېدو ليدنه يې کول او هغه يې په دغه الفاظو تعبير کوی ، يو خو د هغه ماشومانو د شرارت او شور کولو په وجه وو لکه څرنګه چي په عامه توګه شور کوونکي ماشومانو ته وايي چي څرنګه شيطان يې، او دوهم د هغې لوبه د هغې ظاهري صورت په اعتبار چي د لهو و لعب د صورت مشابه وو داسي نه وو چي هغه په حقيقت کي هم هغه هر څه د لهو ولعب په حکم کي وو که داسي وای نو رسول الله ﷺ به خپله ولي ورته کتلای او بي بي عائشې رضی الله عنها ته به يې ولي ښودلای،دا هم ويل کيدای سي چي په اصل کي هغه ښځي د نېزې او نورو شيانو په ذريعه بازی کولې چي د جهاد لپاره يو ګټهور شی وو او ځکه رسول الله ﷺ د هغې دغه لوبه خپله هم وليدل او

بي بي عائشې ﷺ ته يې هم وښودل مګر په دغه لوبه کي مقصد هغه تر وخته پوري وو تر څو چي د هغې ليدنه د ضرورت سره سم وه او هغه ضرورت په يو محدود وخت کي پوره کېدی مګر عين هغه وخت کله چي د هغه لوبي ضرورت او د جواز وخت متجاوز سو او دلهب ولعب او شيطان کار په دائره کي داخل سو نو حضرت عمر ﷺ هلته راغلی او شيطان ته دخپل چم کولو موقع په لاس نه ورغلل نو دحضرت عمر ﷺ د راتلو څخه مخکي هغه لوبه د جواز په حد کي وه چي رسول الله ﷺ او بي بي عائشې ﷺ هم وليدل او تر دې مخکي چي شيطاني اثرات خپل کار وکړي او د هغه ښځي شاوخوا ماشومان او خلګ د هغې د اثراتو ښکار سي د حضرت عمر ﷺ راتګ هغه ټول شيطانان پر تېښته مجبور کړل ، په هر حال توجيه چي هر څه وکړل سي يوه خبره چي د حديث څخه په ثرګندہ ثابته ده هغه داده چي په رسول الله ﷺ باندي د صفت جمال غلبه وه چي هغه د رسول الله ﷺ خوش اخلاقي، خوش طبعي او مروت درجمه کمال ته رسولې وه ، او پر حضرت عمر ﷺ باندي د صفت جلال غلبه وه چي د هغه شخصيت دومره د رعب او هيبت څخه ډک وو چي دهغه په مخکي د بدۍ او کراهت شبه لرونکی کار هم نه سو کيدای .

دغه حديث صحيح غريب دی، په دې اړه بايد دا خبره په ذهن کي وي چي د حبشيانو د لوبو کولو په اړه يو بل روايت په بله طريقه په صحيحينو (بخاري او مسلم) کي هم منقول دی ، په هغه کي بيان سوی دی چي يوه ورځ ځيني حبشيانو په مسجد نبوي کي د نيزې لوبي کولې او رسول الله ﷺ ، بي بي عائشې ﷺ ته هغه لوبه ښودل چي حضرت عمر ﷺ راغلی نو هغه حبشيان د هغه لوبي څخه منع کول وغوښتل بلکه د هغوی خوا ته يې ډبري وغورځولې نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: اې عمر! دوی پر خپل حال پرېږده، نن دا ختر ورځ ده .

په ذکر سوي حديث شريف کي چونکه ښځه او ننداره چيانو د کوچنيانو ذکر وو نو له همدې کبله دا سوال نه پيدا کيږي چي حضرت عائشې رضي الله عنها وغيرو ته کتله او نه ددې د جواب ضرورت سته ، چونکه هغه وخت بي بي عائشه رضي الله عنها په خپله کوچنۍ وه او بيا و پرديو ته د هغې کتل منعه نه وو دلته په ظاهره دا معلوميږي چي د ترمذي په نقل سوي روايت کي چي د کومي واقعې ذکر دی هغه ددې واقعې څخه جلا وه د کوم ذکر چي په بخاري او مسلم کي سوی وو .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د حضرت عمر رضي الله عنه موافقات

﴿۵۷۹۴﴾: عَنْ اَنَسٍ وَابْنِ عُمَرَ اَنَّ عُمَرَ قَالَ وَافَقْتُ رَبِّيْ فِيْ ثَلَاثٍ قُلْتُ يَا

د حضرت انس او ابن عمر (رضي الله عنهما) څخه روايت دی چي عمر رضي الله عنه وويل: زه په درو کارو کي د خپل پروردګار سره موافق سوی يم: يو وار ما

رَسُوْلَ اللّٰهِ لَوْ اتَّخَذْنَا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيْمَ مُصَلًّى فَنَزَلَتْ وَاتَّخِذُوا مِنْ مَقَامِ

رسول الله صلی الله علیه وسلم ته عرض وکړ که مقام ابراهيم موږ دلمانځه کولو ځای و ټاکو نو غوره به وي، زما ددې مشورې سره سم دا آيت نازل سو: (واتخذوا من مقام ابراهيم مصلى)،

إِبْرَاهِيْمَ مُصَلًّى وَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ يدخل على نسائك الْبَرُّ وَالْفَاجِرِ فلو امر

يعني مقام ابراهيم تاسو د لمانځه ځای وټاکئ، بيا يو وار ما دا عرض وکړ چي اې د الله رسوله! ستاسو د بيبيانو مخته هر ډول ښه او بد خلک راځي که تاسو خپلو بيبيانو ته د پردې کولو حکم

تهن يحتجبن فَنَزَلَتْ آيَةُ الْحِجَابِ وَاجْتَمَعَ نِسَاءُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ورکړئ نو غوره به وي، زما پر دې مشوره د پردې په اړه آيت نازل سو. بيا يو وار د رسول الله صلی الله علیه وسلم

فِي الْغَيْرَةِ فَقُلْتُ عَسَى رَبُّهُ إِنْ طَلَّقَكُنَّ أَنْ يُبَدِّلَهُ أَزْوَاجًا خَيْرًا مِنْكُنَّ فَنَزَلَتْ

بيبياني د غسلو په قصه کي راجمع سوې نو ما ورته وويل: اې بيبيانو! که رسول الله صلی الله علیه وسلم تاسو ته طلاق درکړي نو اميد دی چي الله جل جلاله ستاسو څخه غوره بيبياني ورکړي، (حضرت عمر رضي الله عنه فرمايي) زما ددې قول سره سم د خدای جل جلاله د طرف څخه داسي آيت نازل سو،

كذالك. وفي رواية لابن عُمَرَ قال قال عمر وَافَقْتُ رَبِّيْ فِيْ ثَلَاثٍ فِيْ مَقَامِ إِبْرَاهِيْمَ وَفِي الْحِجَابِ وَفِيْ أُسَارَى بَدْرٍ. متفق عليه

او د ابن عمر رضي الله عنه په روايت کي دا الفاظ دي چي ابن عمر رضي الله عنه وويل چي حضرت عمر رضي الله عنه وفرمايل: د خپل پروردګار سره په درو شيانو کي موافق سوی يم: يو د مقام ابراهيم په باره

کي، دويم د پردې په باره کي او دريم د بدر د بنديانو په باره کي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱\۵۰۴، رقم: ۴۰۲.

**تشريح**: حافظ عسقلاني رحمة الله عليه ليکلي دي چي دلته يوازي د يوازي درو خبرو د ذکر کولو څخه دا نه لازميږي چي د موافقات عمر شمېر تر دغه درو زيات نه دی ، په حقيقت کي ددغه موقعو شمېر تر درو زيات دی چي په هغه کي د حضرت عمر رضي الله عنه د رايي او مشورې مطابق الهي حکم نازل سو ، په هغو کي چي زياتي مشهوري وې هغه خو يوه د بدر د بنديانو معامله ده ، يوه د منافقانو د جنازې د لمانځه کولو پېښه هم ده ، همدارنګه ځينو محققين د پلټني څخه وروسته چي کوم موافقات عمر جمع کړي دي د هغو شمېر تر پنځلس زيات دی (لکه چي علامه سيوطي رحمة الله عليه د شلو موافقات عمر رضي الله عنه يادونه کړې ده ) .

د مقام ابراهيم څخه مراد هغه ډبره ده چي پر هغه باندي د حضرت ابراهيم عليه السلام د قدم مبارک نښه د معجزې په توګه پاته ده او پر هغه ډبره باندي په درېدو سره د بيت الله جوړونه يې کول، په يوه روايت کي راغلي دي چي رسول الله صلی الله عليه وسلم د حضرت عمر رضي الله عنه لاس ونيوی او ورته يې وښودل چي دا مقام ابراهيم دی، هغه وخت حضرت عمر رضي الله عنه وويل: اې د الله رسوله! ايا دا مناسب نه دي چي موږ دغه مقام د لمانځه کولو ځای وګرځوو ، رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل : ما ته په دې اړه څه حکم نه دی راکړل سوی دی او بيا په هغه ورځ لمر لا نه وو لويدی چي ذکر سوی آيت نازل سو ، د هغه مطلب دادی چي د هر طواف څخه وروسته کوم دوه رکعته لمونځ کول چي واجب دی هغه دي د مقام ابراهيم سره کوي چي مقام ابراهيم هم مخته وي او بيت الله شريف هم ، په دغه آيت کي د امر صيغه د استحباب لپاره ده او ځينو حضراتو د وجوب لپاره ويلې ده ، يعني د طواف څخه وروسته دوه رکعته کول واجب دي مګر مستحب دادي چي دغه دواړه رکعتونه خاص د مقام ابراهيم تر شا متصل وکړل سي ، مګر کوم څوک چي د مقام ابراهيم سره ځای پيدا نه کړي او هغه په حرم کي چيري چي دغه دوه رکعته وکړي نو ددغه حکم پوره تعميل به وسي ، د امام شافعي رحمة الله عليه په مذهب کي ددغه دوو رکعتو د وجوب په اړه دوه قوله دي .

نو د پردې دغه آيت نازل سو ، هغه آيت دغه دی :

وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَاسْأَلُوهُنَّ مِن وَرَاءِ حِجَابٍ

ژباړه: او کله چي تاسو د دوی (ازواج مطهرات) څخه يو شی غواړئ نو د پردې تر شا يې ځيني غواړئ .

ثرگنده دي وي چي د ازواج مطهراتو په اړه کومه پرده واجب سوې ده دا د هغه پردې ثخه ماسوا ده چي د نورو ټولو ښځو لپاره واجب سوې ده، يعني ددغه آيت کريمه په ذريعه ازواج مطهراتو ته دا حکم ورکړل سوی وو چي د غير محرمو مختنه بالکل نه راځي که ثخه هم په جامو کي پټې وي، دغه حکم په خاصه توګه يوازي د ازواج مطهراتو لپاره وو ، حال دا چي نورو ښځو ته اجازه ده که خپل بدن په ښه ډول پټ کړي او د باندي راوتل غواړي نو راوتلای سي .

د رسول الله ﷺ بيبياني د عسلو په قصه کي راجمع سوې: ددې ثخه د رسول الله ﷺ د عسلو ثښبنلو په اړه مشهوره معامله مراد ده ، د رسول الله ﷺ عادت وو چي د مازديگر ثخه وروسته په ولاړه به يې خپلو ازواجو ته تشريف وړی ، يو وار ددغه عادت سره سم رسول الله ﷺ خپلي بي بي ، زينب ﷺ ته ورغلی نو هغې رسول الله ﷺ ته عسل ورکړل چي د رسول الله ﷺ ډېر خوښ وه او ددې لپاره بي بي زينب ﷺ د رسول الله ﷺ لپاره ايښي وه، د عسلو په ثښبنلو کي رسول الله ﷺ يو ثه ځنډ وکړ او له دې کبله رسول الله ﷺ د بي بي زينب ﷺ سره د عادت ثخه زيات پاته سو ، دغه خبره بي بي عائشې ﷺ او نورو ازواجو ته د غيرت باعث سوه، ام المؤمنين بي بي عائشې ﷺ او ام المؤمنين بي بي حفصې ﷺ مشوره وکړه او دواړي پر دې متفقي سوې چي رسول الله ﷺ په موږ کي هري يوې ته راسي نو هغه به ورته داسي وايي چي ستاسو ثخه د مغافر بوی راځي او بيا چي رسول الله ﷺ هغوی ته راغلی نو په هغوی کي هري يوې همداسي وويل، رسول الله ﷺ هغوی ته وفرمايل: ما خو مغافير ته لاس هم نه دی وروړی، يوازي عسل مي ثښبنلي دي، هغوی ورته وويل: کيدای سي چي د عسلو موچۍ پر مغافير باندي ناستي وي چي د هغه په سبب د مغافير بوی په دغه عسلو کي ګډ سوی دی، ددې خبري ثخه د هغوی مقصد دا وو چي رسول الله ﷺ د عسلو ثښبنلو لپاره د بي بي زينب ﷺ سره پاته نه سي مګر رسول الله ﷺ د هغوی خبره پر صداقت باندي محمول کړل او احتياطا يې د عسلو ثښبنل پر ځان حرام کړل، بيا وروسته ټول راز ثرگند سو چي دا خو د بن توب کار وو چي په هغه کي رسول الله ﷺ اخته سو ، او يو بد صورت حال رامنځته سو ، په دغه وخت کي حضرت عمر ﷺ د ازواج مطهراتو د خبردار کولو لپاره دغه الفاظ وويل او بيا چي په قرآن کريم ددغه پېښي په اړه الهي فرمان نازل سو نو په هغه کي د حضرت عمر ﷺ هغه الفاظ او مفهوم هم هغسي شامل کړل سو ، په سورة تحريم کي دي :

عَسَىٰ رَبُّهُ إِن طَلَّقَكُنَّ أَن يُبْدِلَهُ أَزْوَاجًا خَيْرًا مِّنكُنَّ....الاية

ژباړه: که چیري (رسول الله ﷺ) تاسو ته طلاق درکړي نو هغه پروردگار به ډېر ژر ستاسو په بدله کي هغه ته ستاسو څخه غوره بیبیاني ورکړي.

د بدر د بندیانو په اړه، یعني د بدر په غزا کي د فتح وروسته د جنګي بندیانو په اړه رسول الله ﷺ له صحابه کرامو سره مشوره وکړل چي د هغوی سره څرنګه چلن کول پکار دي او دهغوی معامله څرنګه فیصله کړل سي، ابوبکر صدیق ؓ رایه ورکړل چي دفدیې په اخیستلو سره دي هغوی ازاد کړل سي مګر د حضرت عمر ؓ رایه دا وه چي د اسلام دښمنان دي ووژل سي، رسول الله ﷺ د حضرت ابوبکر صدیق ؓ رایه خوښه کړل او د هغه بندیانو څخه یې د هغوی د توان مطابق فدیه واخیستل او ایله یې کړل مګر کله چي وروسته په قرآن کریم کي په دې اړه آیت نازل سو نو هغه د حضرت عمر ؓ د رایي مطابق سو، په دې اړه تفصیل مخته را روان دی.

**هغه څلور خبري چي د هغو په وجه حضرت عمر ؓ ته فضیلت حاصل سو**

﴿۵۷۹۵﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ فَضَلَ النَّاسَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ

د حضرت ابن مسعود ؓ څخه روایت دی چي عمر بن خطاب ؓ ته پر نورو خلکو د څلورو

تَعَالٰى عَنْهُ بِأَرْبَعٍ بِذِكْرِ الْأَسْرٰى يَوْمَ بَدْرٍ أَمَرَ بِقَتْلِهِمْ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ

خاصو خبرو په سبب فضیلت ورکړل سوی دی: (۱): یو خو د جنګ بدر د بندیانو په اړه کي ددې مشوره ورکولو په سبب چي هغوی دي قتل کړل سي نو د هغه سره سم خدای تعالی دا آیت

لَوْلَا كِتَابٌ مِنَ اللّٰهِ سَبَقَ لَمَسَّكُمْ فِيمَا أَخَذْتُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ وَبِذِكْرِهِ

نازل کړ: (لولا کتب من الله سبق لمسکم فیما اخذتم عذاب عظیم)، (که لوح محفوظ یا علم الهي کي دا خبره تاکل سوې نه وای نو تاسو ته به پر فدیه اخیستو باندي لوی عذاب رسیدلی

الْحِجَابِ أَمَرَ نِسَاءَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَحْتَجِبْنَ فَقَالَتْ لَهُ زَيْنَبُ

وای)، (۲): او دویم د پردې د مشورې په سبب، یعني عمر ؓ د رسول الله ﷺ بیبیانو ته د پردې کولو مشوره ورکړل، د رسول الله ﷺ کوروالا بي بي زینب ددې اوریدو سره وویل

وَإِنَّكَ عَلَيْنَا يَا ابْنَ الْخَطَّابِ وَالْوَحْيُ يَنْزِلُ فِي بُيُوتِنَا فَأَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ

اې ابن خطاب ! ته په پرده کي د پاته کیدو حکم کوې حال دا چي زموږ په کورونو کي وحي نازليږي، پر دې خبره الله تعالى دا آيت نازل کړ :

وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَاسْأَلُوهُنَّ مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ وَبِدَعْوَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ

(واذا سالتموهن متاعا فاسئلوهن من وراء حجاب)، ، (هر کله چي د رسول الله ﷺ د بيبيانو څخه څه غواړئ نو د پردې تر شا يې غواړئ)، (۳) : او دريم عمر رضي الله عنه ته د هغه دعاء په سبب

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللَّهُمَّ أَيِّدِ الْإِسْلَامَ بِعُمَرَ وَبِرَأْيِهِ فِي أَبِي بَكْرٍ كَانَ أَوَّلَ النَّاسِ بَايَعَهُ. رواه احمد.

فضیلت تر لاسه دی چي رسول الله ﷺ د هغه په حق کي داسي کړې وه چي اې الله ! اسلام ته د عمر رضي الله عنه په ذريعه قوت ورسوې ، (۴) : او څلورم د هغه اجتهاد په سبب چي عمر رضي الله عنه د ابوبكر رضي الله عنه د خلافت په باره کي کړی وو او تر ټولو مخکي يې د ابوبكر رضي الله عنه پر خلافت بيعت کړی وو. احمد.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۱\۴۵۶.

**تشريح**: د بدر د غزا د بنديانو په اړه، ددې تفصيل خپله حضرت عمر رضي الله عنه په يوه روايت کي چي په رياض الصالحين کي نقل سوی دی، داسي بيانوي: د بدر په ورځ چي الله جل جلاله مسلمانانو ته فتح او غلبه ورکړل او ډېر بنديان د مسلمانانو لاس ته راغلل نو رسول الله ﷺ د صحابه کرامو مشوره وغوښتل او د هغه بنديانو په اړه يې مشوره وغوښتل، حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د خپلي رايي په اظهار کولو سره وويل: اې د الله رسوله! په دغه بنديانو کي ټول خپل قريبان دي څوک د اکا زوی دی، څوک وراره دی، څوک د کورنۍ سړی دی او څوک د قبيلې، که موږ د دوی ټولو څخه فديه واخلو او ايله يې کړو نو په دې سره به موږ ته د دين د دښمنانو په مقابله کي ډېره مرسته تر لاسه سي او کېدای سي چي الله جل جلاله دوی ته هدايت وکړي او دوی هم د اسلام په منلو سره زموږ مرسته کوونکي جوړ سي، رسول الله ﷺ د ابوبکر صديق رضي الله عنه د رايي په اورېدو سره وفرمايل چي اې عمر! په دې اړه ستا څه رايه ده، ما وويل: اې د الله رسوله! زه د ابوبکر رضي الله عنه رايه مناسب نه ګڼم، دغه ټول بنديان د کفر او ضلالت مشرتابه او د دين د دښمنانو مشران دي ، د دوی ژوندي پرېښودل خطره ده ، د دوی ټولو سرونه پرې کول مناسب دي، په پای کي رسول الله ﷺ د ابوبکر صديق رضي الله عنه رايه خوښه کړل او د فديې په اخيستلو سره يې هغه بنديان ايله کړل، په بله ورځ سهار چي زه (حضرت عمر رضي الله عنه وايي) د رسول الله ﷺ په خدمت کي

حاضر سم نو وه مي لېدل چي رسول الله ﷺ او ابوبكر صديق رضي الله عنه په ژړا ناست دي، ما پوښتنه وکړل چي اې دالله رسوله! خير دی، تاسو او ابوبكر ولي ژاړئ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: اې عمر! څه پوښتنه كوې ، پوه سه چي الله جل جلاله خير كړ، كنه نو عذاب خو زما مخته تر دغه درختي هم نژدې راغلی وو، الله جل جلاله دغه آيت نازل كړی دی :

مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَن يَكُونَ لَهُ أَسْرَى حَتَّى يُثْخِنَ فِي الأَرْضِ تُرِيدُونَ عَرَضَ الدُّنْيَا وَاللهُ يُرِيدُ الآخِرَةَ وَاللهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ لَّوْلاَ كِتَابٌ مِّنَ اللهِ سَبَقَ لَمَسَّكُمْ فِيمَا أَخَذْتُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ۝

ژباړه: پيغمبر ته مناسب نه ده چي د هغه بنديان دي پاته سي (بلكه وژل پكار دي) تر څو چي هغه په مځكه كي په ښه ډول (د دين د دښمنانو) وينه توی نه كړي، تاسو خو د دنيا مال او اسباب غواړئ او الله جل جلاله د آخرت مصلحت غواړي او الله جل جلاله ډېر زبردست او حكمت والا دی كه د الله جل جلاله يوه ليكنه مقدر نه وای نو كوم امر چي تاسو اختيار كړی دی په دې اړه به پر تاسو يوه لويه سزا راتلای .

څرګنده سول چي د بدر د بنديانو په اړه مناسبه رايه هغه وه كوم چي حضرت عمر رضي الله عنه ظاهره كړې وه، د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه رايه پردغه مصلحت مبني وه چي دا وخت مسلمانانو ته د مالي تنګی وخت دی ،د دين دښمنان په دغه جګړه كي د ماتي خوړلو سربېره خپله دښمني نه پرېږدي د مسلمانانو پر خلاف د هغوی عزائم جاري دي او هغوی د خپل ټول مالي او انساني قوت په جمع كولو سره د مسلمانانو بيا د جنګ لپاره راوستلو هڅه كوي نو مناسب ده چي د دغه بنديانو څخه د فديې په اخيستلو سره ايله كړل سي ، د هغوی د ايله كولو په صورت كي يوې خوا ته به په موږ كي د چا پر زړه او دماغ دا بار نه وي چي خپل قريب په خپلو لاسو قتل كړي او كيدايسي چي دغه احسان خپله دغه بنديان محسوس كړي او هغوی ته د ايمان قبلولو او زموږ مرستي كولو توفيق په برخه سي، بلي خوا ته د فديې په شكل كي د هغوی څخه تر لاسه كېدونكي مال او اسباب زموږ ډېره مرسته كوي، د دې په ذريعه به زموږ توان زيات سي او د دين د دښمنانو سره د جګړې لپاره به جنګي سامان هم برابر كړو، په يوه اعتبار د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه رايه د صفت جمالي مظهر هم وو او دا وجه ده چي په صحابه كرامو كي د كومو حضراتو په مزاج كي نرمي او مروت زيات وو هغو ټولو هم د دغه رايي تائيد وكړ ، بلي خوا ته د حضرت عمر رضي الله عنه رايه د هغه د صفت جلال مظهر وو او په كومو صحابه كرامو كي چي د دغه صفت غلبه وه هغوی د حضرت عمر رضي الله عنه د رايي تائيد وكړ، نبي كريم ﷺ كه څه هم د

ټولو صفاتو او کمالاتو جامع وو مګر ښېښه داده چي رسول الله ﷺ صَفت جمال ته مائل وو او په دې وجه هغه د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه رایه خوښه کړل مګر د الله جل جلاله څخه پرته بل کوم ذات ددې فیصلې په اصل عواقبو او نتائجو پوهیدای سو، د هغه په حکمت کي د بندیانو د ایله کولو دغه فیصله غیر مناسب وګرځېدل او په دې اړه ذکر سوی آیت نازل سو چي په هغه سره د حضرت عمر رضی الله عنه د رایي توثیق وسو.

## په جنت کي مرتبه

﴿۵۷۹۶﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاكَ الرَّجُلُ أَرْفَعُ أُمَّتِي دَرَجَةً فِي الْجَنَّةِ قَالَ أَبُو سَعِيدٍ وَاللّٰهِ مَا كُنَّا نُرَى ذٰلِكَ الرَّجُلَ إِلَّا عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ حَتّٰى مَضٰى لِسَبِيلِ. رواه ابن ماجه.

د حضرت ابوسعید رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: هغه سړی زما په امت کي په جنت کي د لوړي مرتبې والا دی، د ابو سعید رضی الله عنه بیان دی چي زموږ په رایه کي هغه سړی چي د هغه ذکر رسول الله ﷺ فرمایلی وو عمر بن خطاب رضی الله عنه وو، تر څو چي هغه وفات سو او زموږ پر ده خیال وو. ابن ماجه

**تخریج**: سنن ابن ماجه ۲\۱۳۵۹، رقم: ۴۰۷۷.

**تشریح**: هغه سړی، دغه خبره رسول الله ﷺ مبهم وکړل او تعین یې ونه فرمایه چي هغه سړی څوک دی او ددغه ابهام څخه مقصد دا وو چي د امت هر سړی په طاعت او عبادت کي زیاته هڅه وکړي او ددغه لوی مرتبې تر لاسه کولو هڅه دي کوي او پوه دي سي چي دغه مرتبه یوازي هغه چا ته تر لاسه کېدای سي چي په طاعت او عبادت کي ډېره هڅه کوي او د اخلاقو او کمالاتو په متصف کېدو سره ددې استحقاق پیدا کړي، یا دا هم کیدای سي چي په مجلس نبوي کي د یو داسي سړي ذکر راغلی وي چي په ذکر سوو صفتو سره متصف وي او د هغه په ضمن کي رسول الله ﷺ فرمایلي وي چي کوم څوک ددغه اوصافو حامل وي هغه ته به په جنت کي لوړه درجه تر لاسه کیږي.

او حضرت عمر رضی الله عنه چي تر څو پوري په دنیا کي وو، دغه الفاظ ددغه شک د دفع لپاره دي چي کیدای سي په دې ترڅ کي حضرت عمر رضی الله عنه ته د خلګو خیال تللی وي او بیا وروسته هغه بدل سوی وي، دلته دا سوال پیدا کیږي چي د حضرت ابوسعید رضی الله عنه د الفاظو څخه دا لازمیږي

چي حضرت عمر رضي الله عنه د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه څخه افضل وو، حال دا چي په حقیقت کي داسي نه وه، ددې جواب د الفاظ حدیث د ذکر سوي وضاحت څخه تر لاسه کیږي یعني دا چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم په دغه ارشاد کي د مبهم اشارې مقصد دې ته متوجه کول وو چي په امت کي د هر چا د شریعت اطاعت او فرمانبرداري او په نیکو کارو کي لګېدل په محنت او اخلاص سره زیاته هڅه او کوښښ وکړي چي دغه لوړي درجې ته ورسیږي، هغه لوړه درجه هغه چا ته تر لاسه کیږي چي په طاعت او عبادت کي هڅه کوونکی وي، په اخلاص او کمالاتو سره متصف وي، په دین کي د ښه غور او فکر په ذریعه اجتهاد کوي او په نیکو کارو کي لګیدلی وي، نو په کومو خلګو کي چي دغه ښېګڼه څومره زیاته وي د حضرت عمر رضي الله عنه په ذات کي د پیل څخه د هغه تر ژوند پوري دومره زیاته او کامله وه چي په بل صحابي کي هغوی ته نه معلومیدل، ځکه هغوی دا ګمان وکړ چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم په دغه ارشاد کي د هغه سړي څخه مراد یوازي د حضرت عمر رضي الله عنه ذات وو نه بل څوک، که چیري د اخفاء لیلة القدر مسئله په ذهن کي وي نو بیا دا خبره په اساني سره په فکر کي راتلای سي چي په دغه روایت کي د حضرت عمر رضي الله عنه په ذکر سره پر حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه باندي د هغه د فضیلت مفهوم نه لازمیږي، خلاصه دا چي د هغه سړي څخه د حضرت عمر رضي الله عنه مراد کېدل بې ګمانه خبره ده او هغه هم د ځینو حضراتو په نزد د یقین خبره ده، نو په دغه روایت کي استدلال کول به صحیح نه وي چي حضرت عمر رضي الله عنه تر ابوبکر صدیق رضي الله عنه افضل وو بلکه د جمهورو علماؤ اتفاق د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه پر افضیلت باندي ثابت دی او د اهل سنت والجماعت متفق عقیده هم پر دې ده، که چیري دا وویل سي چي حضرت ابوسعید رضي الله عنه د حضرت عمر رضي الله عنه په اړه دا خبره د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د وفات څخه وروسته د حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کي کړې ده چي هغه وخت د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ارشاد مصداق د حضرت عمر رضي الله عنه څخه لوی بل څوک نه سو کیدای، نو بیا د اصل حدیث په اړه هیڅ سوال نه پیدا کیږي ځکه چي حضرت عمر رضي الله عنه د خپل خلافت په زمانه کي تر ټولو افضل وو

## په نیکیو کي هڅه کونکی

﴿۵۷۹۶﴾: وَعَنْ أَسْلَمَ قَالَ سَأَلَنِي ابْنُ عُمَرَ بَعْضَ شَأْنِهِ يَعْنِي عُمَرَ فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ مَا رَأَيْتُ أَحَدًا قَطُّ بَعْدَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ حِينَ قُبِضَ كَانَ أَجَدَّ وَأَجْوَدَ حَتَّى انْتَهَى مِنْ عُمَرَ. رواه البخاري.

د حضرت اسلم رضي الله عنه څخه روایت دی چي ابن عمر رضي الله عنه د حضرت عمر رضي الله عنه یو څه حالات زما څخه و پوښتل، ما عرض وکړ د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته ما هیڅوک د عمر رضي الله عنه څخه زیات په نیک کار کي کوښښ کونکی او د نیک کار کونکی نه دی لیدلی تر دې چي عمر رضي الله عنه آخري عمر ته ورسیدی . بخاري.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۷\۴۲، رقم: ۳۶۸۷.

**د لغاتو حل**: اجد : اي اجهد في الدین . (په دین کي هڅه کوم)

**تشریح**: علماؤ لیکلي دي چي دغه روایت دي د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د خلافت پر زمانه محمول وګڼل سي چي د دغه الفاظو څخه کوم عام مفهوم اخیستل کیږي د هغه څخه د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه ذات مستثنی دی .

### د دین او ملت غم

﴿۵۷۹۸﴾: وَعَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ قَالَ لَمَّا طُعِنَ عُمَرُ جَعَلَ يَأْلَمُ فَقَالَ لَهُ

د حضرت مسور بن مخرمه رضي الله عنه څخه روایت دی چي کله حضرت عمر رضي الله عنه په نېزه زخمي کړل سو نو ده فریاد وکړ،

ابْنُ عَبَّاسٍ وَكَأَنَّهُ يُجَزِّعُهُ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ ولا كل ذلك لَقَدْ صَحِبْتَ رَسُولَ

ابن عباس رضي الله عنه د ډاډ او تسکین لپاره ورته وویل : اې امیر المؤمنین! فریاد کول ستاسو د شان سره نه ښایي، تاسو د رسول الله ﷺ په صحبت کي پاته سوي یاست

اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَحْسَنْتَ صُحْبَتَهُ ثُمَّ فَارَقْتَهُ وَهُوَ عَنْكَ رَاضٍ ثُمَّ

او ستاسو ملګرتیا ډیره ښه پاته سوې ده ، بیا چي رسول الله ﷺ ستاسو څخه رخصت سو نو رسول الله ﷺ در څخه خوشحاله او راضي وو ، بیا

صَحِبْتَ أَبَا بَكْرٍ فَأَحْسَنْتَ صُحْبَتَهُ ثُمَّ فَارَقْتَهُ وَهُوَ عَنْكَ رَاضٍ ثُمَّ صَحِبْتَ

تاسو د ابوبکر رضي الله عنه په صحبت کي پاته سوا است او هغه سره هم ستاسو ملګرتیا ډیره پاته سوه بیا چي در څخه بیل سو نو هغه هم در څخه خوشحاله او راضي وو ، بیا د خپل خلافت په ورځو کي

المسلمين فَأَحْسَنْتَ صُحْبَتَهُمْ وَلَئِنْ فَارَقْتَهُمْ لَتُفَارِقَنَّهُمْ وَهُمْ عَنْكَ

تاسو د مسلمانانو په صحبت کي واست او هغوی سره مو هم صحبت ښه پاته سو او س که تاسو د مسلمانانو څخه بیلیږئ نو مسلمانان ستاسو څخه خوشحاله او راضي دي،

رَاضُونَ قَالَ أَمَّا مَا ذَكَرْتَ مِنْ صُحْبَةِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرِضَاهُ

ددې او ریدو سره حضرت عمر ﷺ وویل تا چي د رسول الله ﷺ د صحبت کوم ذکر کړی دی او د رسول الله ﷺ د خوشحاله او راضي رخصتیدو

فَإِنَّمَا ذَالِكَ مَنٌّ مِنَ اللّٰهِ تَعَالَى مَنَّ بِهِ عَلَيَّ وَأَمَّا مَا ذَكَرْتَ مِنْ صُحْبَةِ أَبِي بَكْرٍ

نو دا د خدای ﷻ یو احسان دی چي خدای ﷻ پر ما کړی دی ، بیا تا دابوبکر د صحبت او رضا

وَرِضَاهُ فَإِنَّمَا ذَاكَ مَنٌّ مِنَ اللّٰهِ جَلَّ ذِكْرُهُ مَنَّ بِهِ عَلَيَّ وَأَمَّا مَا تَرَى مِنْ جَزَعِي

ذکر وکړ نو هغه هم پر ما د خدای ﷻ احسان دی ، او اوس چي ته ما د فریاد په حالت کي وینې نو هغه ستا او ستا د دوستانو په سبب دی، (یعني دا بیره ده چي زما څخه وروسته تاسو په فتنه

فَهُوَ مِنْ أَجْلِكَ وَأَجْلِ أَصْحَابِكَ وَاللّٰهِ لَوْ أَنَّ لِي طِلَاعَ الْأَرْضِ ذَهَبًا لَافْتَدَيْتُ بِهِ مِنْ عَذَابِ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ قَبْلَ أَنْ أَرَاهُ. رواه البخاري.

کي اخته نه سئ)، په خدای ﷻ دي مي قسم وي که زما سره د مځکي برابر هم سره زر وي نو د عذاب الهي په بدله کي به مي هغه قربان کړي وای ددې څخه مخکي چي زه هغه عذاب ووینم . بخاري.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۷\۴۳، رقم: ۳۶۹۲.

**د لغاتو حل**: یجزعه: اي ینسبه الی الجزع ویلومه علیه. جزعي: اي فزعي . طلاع: اي مایملؤها ذهبا حتی یطلع ویسیل.

**تشریح**: حضرت ابن عباس ﷺ دې ته اشاره وکړل چي کله د الله ﷻ رسول ستاسو څخه راضي او خوشحاله ولاړی ، د الله ﷻ د رسول محبوب (حضرت ابوبکر صدیق ﷺ) ستاسو څخه راضي او خوشحاله له دنیا څخه رخصت سو او ټول مسلمانان ستاسو څخه راضي او خوشحاله دي نو دا ددې خبري دلیل دی ، یعني الله ﷻ ستاسو څخه راضي او خوشحاله دی او تاسو د خپل الله ﷻ څخه راضي او خوشحاله یاست، په دغه صورت کي خو تاسو ددغه ارشاد د زیري مصداق یاست :

يَا أَيَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ ارْجِعِي إِلَى رَبِّكِ رَاضِيَةً مَّرْضِيَّةً

ژباړه: اې ډاډه روح! ته د خپل پروردګار رحمت ته ځه، داسي چي ته د هغه څخه راضي او هغه ستا څخه راضي دی.

نو بیا تاسو ولي پرېشانه یاست او ولي دومره بې قراره یاست، ایا د دغه زخم تکلیف تاسو بې ارامه کړي یاست او که د مرګ تصور، مګر خو د هر مؤمن لپاره تحفه ده، هغه تحفه چي په لوړ مقام کي بنده د خپل بادار سره یو ځای کوي، د مولی د ابدي نعمتونو او سعادتونو ته یې رسوي، حضرت عمر ﷛ چي ابن عباس ﷛ ته کوم جواب ورکړ د هغه خلاصه دا وه چي دا محض ستا خیال دی چي زما بې ارامي د زخم د تکلیف یا د مرګ د بیري څخه ده، په حقیقت کي دغه ټول حالت او اظهار ستاسو خلګو د راتلونکي په اړه د څو خطراتو او بیرو تاثر دی، زما سره بېره ده چي زما څخه وروسته به فتنې را پورته سي، اختلاف او انتشار او ددین څخه بې توجهي کي به مسلمانان اخته سي، د فتنې او فساد دروازې چي ما پر ملت اسلامیه باندي ډیري ټینګي بندي کړي وي، سستي نه سي، ددې څخه ماسوا زه د خپل ځان په اړه د آخرت بېره هم زما لپاره د اضطراب سبب دی بېله شکه الله ﷻ زه په ډېرو سعادتونو نازولی یم او په دنیا کي یې پر ما ډېر فضل او انعام کړی دی مګر ما د الله ﷻ د حقوقو په ادا کولو کي کوتاهي کړي دي چي د هغه په اړه په آخرت کي نیو که کیدای سي، که الله ﷻ زه د عذاب وړ وګرځولم نو څه حشر به مي وي، په استیعاب کي منقول دي چي کله حضرت عمر ﷛ په زخمي کېدو سره ولویدی نو دخپل زوی عبدالله ابن عمر ﷛ په غېږ کي یې سر کېښېښود او پروت وو، او په وار وار یې ویل: ظلوما لنفسي غیر اني مسلم اصلي صلاتي کلها واصوم، زه پر خپل ځان ډېر ظلم کوونکی یم سره ددې چي زه مسلمان یم ټول لمونځونه هم کوم او روژې هم نیسم.

**وژونکې حمله او شهادت**: په مدینه منوره کي یو فارسي غلام چي فیروز نومیدی او کنیت یې ابولولو وو، هغه یوه ورځ د حضرت عمر ﷛ په خدمت کي حاضر سو او دخپل بادار مغیره ابن شیبه ﷛ شکایت یې وکړ، چي هغه پر ډېر زیات محصول عائد کړی دی، تاسو دا کم کړئ، حضرت عمر ﷛ د هغه محصول مقدار او د هغه د کار صلاحیت او ګټي په اړه د معلومات تر لاسه کولو سره هغه ته وویل چي دغه محصول زیات نه دی، ابولولو د دغه په اورېدو سره سخت ناراضه سو او د حضرت عمر ﷛ څخه ولاړی، په دوهمه ورځ ابولولو په زهرو لړلی یو خنجر واخیست او مسجد ته راغلی او یو کونج کي پټ کېښېنست، کله چي حضرت عمر ﷛ د سهار د

لمانځه لپاره راغلی او د امامت لپاره مخته سو نو ابولولو ناڅاپه د کونج څخه په راوتلو سره پر حضرت عمر رضی اللہ عنہ د خنجر شپږ واره وکړل چي په هغه کي يو د نامه لاندي وموښتی، زخم دومره سخت وو چي حضرت عمر رضی اللہ عنہ تاب نه راوړی او سمدستي را ولوېدی، حضرت عبدالرحمن ابن عوف رضی اللہ عنہ د کوچني کوچني سورتو په وَيلو سره ژر د سهار لمونځ ورکړ، د لمانځه څخه وروسته يې حضرت عمر رضی اللہ عنہ کور ته راوړی.

د حملې څخه درې ورځي وروسته حضرت عمر رضی اللہ عنہ په حق ورسېدی او د محرم د مياشتي په لومړۍ نېټه په ۲۴ هجري کال کي د شنبې په ورځ دفن کړل سو، حضرت صهيب رضی اللہ عنہ د جنازې لمونځ ورکړ. ځينو حضراتو د حملې پېښه د ذي الحجې اووه ويشتمه نېټه، ۲۳ هجري کال د چارشنبې ورځ ليکلې ده او د تدفين نېټه يې د محرم لسمه د ۲۴ هجري کال د يکشنبې ورځ بيان کړې ده، د حضرت عمر رضی اللہ عنہ خلافت لس نيم کاله وو او عمر يې د تحقيقي قول سره سم ۶۳ کاله وو، د صحابه کرامو او تابعينو لوی ډلي د هغه څخه حديثونه روايت کړي دي چي په هغو کي حضرت ابوبکر صديق رضی اللہ عنہ او عشره مبشره هم شامل دي.

**د حضرت عمر رضی اللہ عنہ يو لوی کرامت** : په مستندو کتابو کي د غوره او باوري راويانو په حواله بيان سوي دي چي کله مصر فتح سو نو هلته حضرت عمروبن العاص رضی اللہ عنہ والي وټاکل سو، هغه ته يوه ورځ مصريانو وويل چي د پخوا زمانې څخه د نيل سيند هر کال د يوې پيغلي انجلۍ نذرانه اخلي، تر څو چي دا نه ورکړل سي او به نه جاري کيږي، ددې صورت دا وي چي هر کال د مياشتي په يوولسمه نېټه يوه پيغله انجلۍ د هغه د مور او پلار په رضا سره ښه جامې واغوندي او ګېڼې او سنګار کولو سره په سيند کي اچوي، که داسي نه کوي نو درياب وچيږي او بيا په ښارو او کليو کي د اوبو د کمي په سبب وچ کالي راځي، حضرت عمرو بن العاص رضی اللہ عنہ مصريانو ته وويل: دا پالتو رواج دی، په اسلام کي د داسي لغو رواجو هيڅ ځای نسته، ځکه زه ددې اجازه نه سم درکولای، نو په هغه کال دغه رواج پر ځای نه سو او د نيل سيند وچېدو ته نژدې سو، په ټول مصر کي د وچ کالۍ کيفيت پيدا کېدو په سبب اهل مصر د خپل وطن پرېښودو ته مجبور سول، حضرت عمرو بن العاص رضی اللہ عنہ د صورت حال تفصيلي خبر د حضرت عمر فاروق رضی اللہ عنہ په خدمت کي وليږی، فاروق اعظم رضی اللہ عنہ هغه ليک وکتی او عمرو بن العاص رضی اللہ عنہ ته يې وليکل چي تا د هغه رواج د پوره کولو اجازه نه ورکول ښه کار کړی دی، حقيقت دادی چي اسلام د داسي رواجونه بيخ کاږي، زه يو ليک در استوم ته هغه په نيل درياب کي واچوه، په هغه ليک کي ليکلي وه:

بسم الله الرحمن الرحيم، د الله ﷻ د بنده، عمربن الخطاب ﷛ امير المؤمين له خوا د نيل سيند په نامه ، وروسته تر حمد او صلوۃ، اې د نيل سينده! که ته په خپل اختيار او قوت سره بهيږې نو زما تا ته هيڅ وينا نسته او که د الله ﷻ په حکم او د هغه په مرضۍ سره بهېږې نو زه د الله ﷻ واحد او قهار په نامه تا ته حکم درکوم چي جاري او روان سه ، عمرو بن العاص ﷛ د مصر والي هغه ليک د نيل په سيند کي واچوی او سهار چي را پورته سو نو خلکو وليدل چي په يوه شپه کي د نيل د سيند اوبه شپاړلس گزه پورته راغلی دی او په پوره زور سره روان او جاري دی، او بيا هر کال شپږ لاسه زياتېدی ، همدارنگه الله ﷻ د مصر د اوسېدونکو د هغه پخواني رواج خاتمه وکړل او د هغه ورځي څخه تر ننه پوري د نيل سيند جاري او روان دی .

==========

# بَابُ مَنَاقِبِ اَبِيْ بَكْرٍ وَعُمَرَ ﵄

## (د حضرت ابوبکر صديق او حضرت عمر فاروق ﵄ د مناقبو بيان)

ځيني داسي روايتونه نقل سوي دي چي په هغو کي د شيخينو (يعني حضرت ابوبکر صديق او حضرت عمر فاروق ﵄) ذکر يو ځای سوی دی ځکه د مشکوۃ مؤلف پر هغه روايتو مشتمل يو بېل باب دلته قائم کړ .

په دې کي شک نسته چي دغه دواړه حضرات د خپلو مشترکه ځانگړتياوو په وجه پر اکثرو ځايو باندي يو ځای ذکر کيږي چي دواړه د رسول الله ﷺ خاص مرسته کوونکي او د رسول الله ﷺ په خدمت کي وخت پر وخت د حاضرۍ او تقرب سعادت لرونکي د ټولو ديني او ملي معاملاتو او مسائلو مشير او آمين او د رسول الله ﷺ د ټولو وختو او احوالو مصاحب او هم نشين وه .

### اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ (لومړی فصل)

﴿۵۷۹۹﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَمَا

د حضرت ابوهريره ﵁ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : يو وخت

رَجُلٌ يَسُوقُ بَقَرَةً إِذْ اَعْيٰى فَرَكِبَهَا فَقَالَتْ إِنَّا لَمْ نُخْلَقْ لِهٰذَا إِنَّمَا خُلِقْنَا

يو سړي غوا روانه کړې وه، ناگاه هغه ستړی سو نو پر هغه غوا سپور سو ، غوا ورته وويل موږ

ددې کار (يعني سپرلۍ) لپاره نه يو پيدا کړل سوي بلکه پيدا کړل سوي يو

لِحِرَاثَةِ الْأَرْضِ فَقَالَ النَّاسُ سُبْحَانَ اللّٰهِ بَقَرَةٌ تَكَلَّمُ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى

د مځکي د قلبه کولو لپاره، خلکو پر دې خبره د تعجب اظهار وکړ او وه يې ويل سبحان الله غوا هم خبري کوي، ددې اوريدو سره رسول الله ﷺ وفرمايل:

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِنِّي أُومِنُ بِهِ أَنَا وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ وَمَا هُمَا ثَمَّ وقَالَ وَبَيْنَمَا

زه پر دې خبره (د غوا پر خبرو کولو) ايمان راوړم، او ابوبكر رضي الله عنه او عمر رضي الله عنه هم ايمان راوړي حال دا چي هغه وخت ابوبكر او عمر رضي الله عنهما هلته موجود نه وه، د ابوهريره رضي الله عنه بيان

رَجُلٌ فِي غَنَمٍ له إِذْ عَدَا الذِّئْبُ عَلَى شَاةٍ مِنْهَا فاخذها فادركها صاحبها

دی چي نبي كريم ﷺ وفرمايل: يو وخت يو سړي د خپلو پسو په رمه کي وو چي يو شرموښ پر يو پسه حمله وکړه او وه يې تښتول، بيا د پسو خاوند هلته ورورسيدی

فَاسْتَنْقَذَهَا فَقَالَ لَهُ الذِّئْبُ فَمَنْ لَهَا يَوْمَ السَّبُعِ يَوْمَ لَا رَاعِيَ لَهَا غَيْرِي

او د شرموښ څخه يې پسه خلاص کړی، هغه شرموښ شپانه ته وويل د غه پسه به د سبع په ورځ (يوم السبع) هر کله چي انسانان ختم سي او حيوانان پاته سي ځوک به ساتونکی وي، چي په هغه ورځ به زما څخه پرته د پسو لپاره بل راعي نه وي،

فَقَالَ النَّاسُ سُبْحَانَ اللّٰهِ ذِئْبٌ يَتَكَلَّمُ فَقَالَ أُومِنُ بِهِ أَنَا وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ وَمَا

هُمَا ثَمَّ. متفق عليه.

ددې پېښي اوريدو سره خلکو وويل: سبحان الله شرموښ هم خبري کوي؛ نبي كريم ﷺ ددې اوريدو سره وفرمايل: ما، ابوبكر او عمر پر دې ايمان راوړی دی او دغه وخت ابوبكر او عمر رضي الله عنهما موجود نه وه. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٥١٢، رقم: ٣٤٧١، ومسلم ١٨٥٧\٤، رقم: ١٣- ٢٣٨٨.

**د لغاتو حل**: اعيي: اي تعب. ثم: اي وليس في المكان (نه سته).

**تشريح**: زموږ تخليق د دغه کار لپاره نه دی، ددې څخه دا خبره ثابتيږي چي پر غوا باندي

سپرتیا او بار باندي وړل مناسب نه دي، علامه ابن حجر رحمه الله لیکلي دي: علماؤ د حدیث د دغه الفاظو څخه استدلال کړی دی چي څاروی باید د هغه مقصد څخه ماسوا د بل کار لپاره استعمال نه کړل سي کوم چي په عامه توګه د هغوی سره منسوب ګڼل کیږي او د څه لپاره چي د هغوی استعمال د عادت سره سم وي ، مګر دا احتمال هم دی چي ددې خبري مقصد محض غوره والي او افضیلت ته اشاره کول دي نه حصر کول یعني غوره داده چي د څارویو څخه هغه کار واخیستل سي چي د هغه لپاره پیدا سوي دي او په کوم کار کي چي استعمالول د هغوی په عادت کي شامل وي، نوکوم حیوان چي د حلالولو لپاره وي د هغه پر ذبح کولو باندي سوال کول نه دی پکار ځکه چي د انساني خوراک لپاره غوښه تیارول د هغه حیوان په مقصد تخلیق کي شامل دی او په ذبح کولو سره د هغه غوښه خوړل د عادت او معمول مطابق دی .

زه پر دې خبره ایمان راوړم، یعني زه په دغه خبره کي خپل کامل یقین ښکاره کوم چي د الله جل جلاله قدرت او د هغه په حکم سره غوا د انسان په ژبه خبري کولای سي، یا دا خبره په زړه منم چي غوا په حقیقت کي د کښت او انساني خوراک لپاره پیدا سوې ده نه د سپرلۍ او بار وړلو لپاره،

ابوبکر او عمر رضي الله عنهما هم ایمان راوړي: یوازي د دوی په ذکر کولو کي دې ته اشاره وه چي د ټینګ ایمان او عقیدې خاصه درجه هغوی ته حاصله ده ، دلته باید دا سوال پیدا نه سي چي ابوبکر او عمر رضي الله عنهما هلته موجود نه وه ، نه هغوی دغه پېښه لیدلې وه او نه یې اورېدلې وه او نه یې په دغه خبره د خپل یقین او عقیدې اظهار کړی وو، نو بیا د هغوی په اړه یې ولي وفرمایل چي ابوبکر او عمر رضي الله عنهما هم ایمان راوړ، په اصل کي رسول الله صلی الله علیه وسلم دغه خبره ددې لپاره کړې وه چي دغه پېښه یعني د غوا خبري کول یو داسي حقیقت دی که د ابوبکر او عمر رضي الله عنهما مخته راسي نو هغوی به هم سمدستي ایمان پر راوړي ، د دغه پېښي په حقیقت کي هغوی دواړو ته د ذرې په اندازه شک هم نه پیدا کیږي .

ابوبکر او عمر رضي الله عنهما په هغه مجلس کي موجود نه وه، یعني کله چي رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغه دواړو په اړه ذکر سوی ارشاد وفرمایه هغه وخت دوی دواړه موجود نه وه نو دهغوی په نه موجودتیا کي د رسول الله صلی الله علیه وسلم داسي فرمایل د هغو دواړو د قوي ایمان او عقیدې په تعریف او توصیف کي وو، په وضاحت سره داسي ویل کیږي چي هغو دواړو حضراتو ته د ایمان او اعتقاد په تعلق سره د رسالت په دربار کي د تقرب چي کوم خاص مقام حاصل وو د هغه د صفت او ستاینې یو عام صورت خو دا وو چي د نورو سره دغه دواړه حضرات هم هغه وخت په مجلس کي حاضر وي او رسول الله صلی الله علیه وسلم پر ذکر سوې پېښه باندي د عقیدې او یقین په اظهار کي د ځان

هم په ذکر کولو سره د ایمان او یقین متعلق د هغوی خاص حیثیت او دهغوی سره ددوی دواړو په ذکر کولو سره د ایمان او یقین متعلق د هغوی خاص حیثیت او دهغوی مرتبه څرګنده کړل مګر کله چي رسول الله ﷺ د هغوی دواړو په غیر موجودتیا کي ذکر سوي الفاظ وفرمایل نو ګویا دهغوی د مدح او ستاینې هغه غیر معمولي صورت څرګند سو چي په هغه سره د هغو دواړو پر نورو ټولو صحابه کرامو باندي افضیلت هم معلوم سو او صراحتا دا هم ثابته سول چي د دواړو په یقین او ایمان کي تر ټولو لوړه درجه ده.

د سبع ورځ، دا د یوم السبع معنی ده ، د سبع لفظ د باء په جزم سره هم نقل سوی دی او په پېښ سره هم، د سبع په وضاحت کي مختلف قولونه بیان سوي دي، ځینو حضراتو لیکلي دي چي د سبع او سباع معنی د تښتولو ده یعني د یو شي بیکاره او پالتو ګڼلو سره پرېښودل او بل ځوک هغه یوسي، د سبع لفظ د بېکاره او پالتو شی په معنی کي هم استعمال سوی دی، په دې اعتبار د یوم السبع، (د باء په جزم) څخه مراد فتنه او فساد دي یعني کله چي په خلګو کي اختلاف او انتشار خپور سي او په خپلو کي د جګړې میدان ګرم سي نو نه چا ته د خپلو څارویو خیال کول پاته کیږي او نه دخپلو پسو، هغه وخت پسونه د خپلو ګلو څخه بېل آخوا او دېخوا ګرځي د هغوی هیڅوک سرپرست او وارث نه وي، نو شرموښ د قادر مطلق په حکم سره د انسانانو په ژبه شپون په هغه مصیبتو خبر کړ چي په راتلونکو زمانو کي پېښېدونکي دي، شرموښ پیغور ورکړ چي هغه وخت بهووینم چي په تاسو کي به ځوک دخپلو پسو ساتونکی یې ، ټول خلګ به په خپلو جګړو کي اخته وي او دهغوی پر پسو به زه څارونکی یم او په خوند سره به یې خورم ، د ځینو حضراتو وینا ده چي یوم السبع یوې میلې ته وایي چي د جاهلیت په زمانه کي عربو جوړول، یوه ورځ به یوه خاص مېله جوړېدل او ټول خلګ به هغه میلې ته راتلل ، بیا به هغوی ته د هیڅ شي خبر نه وو، څاروي به یې همداسي خلاص پرېښودل چي په ځنګل او دښت کي به ګرځېدل او شرموښانو به په ډېر اطمینان سره هغه خوړل، نو شرموښ د جاهلیت د زمانې هغه میله ور په یاد کړل چي په هغه ورځ به د پسو ساتنه څوک کوي چي نن ورځ یې ته دومره ساتونکی یې، یا دا چي د اختر ورځ خوس اوس هم هر کال راځي اوس چي د اختر ورځ راسي او تاسو په اختر کي بوخت سئ نو بیا به ووینم چي ستاسو د پسو ساتنه څوک کوي او زما څخه یې څرنګه خلاصوي.

سبُع، د باء په پېښ سره درنده ته وایي، په دغه صورت کي هم د یوم السبع مطلب ذکر سوی مفهوم کیږي، یعني دا چي کله د فتنې او فساد زور سي او خلګ په خپلو جګړو کي اخته وي یا د فتنې او فساد د بیري څخه د مال او سامان په پرېښودو سره د خپلو کورو څخه وتښتي نو

پسونه به د خپل وارث څخه پرته ګرځي هغه وخت به درنده يعني شرموښ د هغوی ساتونکي وي او په خوند سره به يې خوري، په دې اعتبار سره به هغه ته د درندو ورځ ويل کيږي، او ځيني حضرات وايي چي سَبُع معنی هم د ميلې د ورځې ده، په مشارق کي ليکلي دي چي دغه لفظ په اصل کي يوم السيع (په پاء سره) دی چي د هغه څخه مراد د تاوان ورځ ده ځکه چي د سيع لفظ د ضياع په معنی کي هم راځي.

**د قدم، قدم ملګري**

﴿۵۸۰۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ إِنِّي لَوَاقِفٌ فِي قَوْمٍ فَدَعَوُا اللّٰهَ لِعُمَرَ بْنِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي زه د خلکو په منځ کي ولاړ وم چي خلکو د عمر رضي الله عنه لپاره

الْخَطَّابِ وَقَدْ وُضِعَ عَلَى سَرِيرِهِ إِذَا رَجُلٌ مِنْ خَلْفِي قَدْ وَضَعَ مِرْفَقَهُ عَلَى

د خير دعاء وکړل (يعني د هغه پر وفات) دغه وخت د عمر رضي الله عنه بدن د غسل ورکولو لپاره پر تخته اېښودل سوی وو، زه ولاړ وم چي يو سړی زما وروسته راغلی او خپل څنګل يې

مَنْكِبِي يَقُولُ رَحِمَكَ اللّٰهُ اني لَأَرْجُو أَنْ يَجْعَلَكَ اللّٰهُ مَعَ صَاحِبَيْكَ لِأَنِّي

زما پر اوږه کښېښودی او وه يې ويل: اې عمر! خدای دي پر تا رحم وکړي زه اميد لرم چي الله تعالی به تا ستاسو دواړو دوستانو (رسول الله ﷺ او ابوبکر رضي الله عنه) ته ورسوي،

كَثِيرًا مَا كُنْتُ أَسْمَعُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ كُنْتُ وَأَبُو بَكْرٍ

ځکه چي ما د رسول الله ﷺ څخه اورېدلي دي چي زه وم او ابوبکر

وَعُمَرُ وَفَعَلْتُ وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ وَانْطَلَقْتُ وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ فَإِنْ كُنْتُ لَأَرْجُو أَنْ يَجْعَلَكَ اللّٰهُ مَعَهُمَا فَالْتَفَتُّ فَإِذَا هُوَ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ. متفق عليه.

او عمر، زه ولاړم ابوبکر او عمر زه داخل سوم، ابوبکر او عمر زه ووتلم ابوبکر او عمر (يعني رسول الله ﷺ به په خپل هر کار کي هغوی د ځان سره ګډول)، ما چي وروسته وکتل نو هغه ويونکی علي ابن اطالب رضي الله عنه وو. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۷\۲۲، رقم: ۳۶۷۷، ومسلم ۴\۱۸۵۸، رقم: ۱۴- ۲۳۸۹.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### په عليين كي لوړ مقام

﴿٥٨٠١﴾: عَنْ أَبِي سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ أَهْلَ

د حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

الْجَنَّةِ لَيَتَرَاءُوْنَ أَهْلَ عِلِّيِّيْنَ كَمَا تَرَوْنَ الْكَوْكَبَ الدُّرِّيَّ فِيْ أُفُقِ السَّمَاءِ وَإِنَّ

په جنت كي دننه به جنتيان عليين داسيويني لكه څرنگه چي تاسو د آسمان پر غاړه ځلانده

أَبَا بَكْرٍ وَعُمَرَ مِنْهُمْ وَأَنْعَمَا. رواه في شرح السنة، و روى نحوه ابوداؤد والترمذي وابن ماجه.

ستوري وينئ، او ابوبكر او عمر د عليين والاوو څخه دي بلكه هغوى تر دې درجې هم زيات وي. شرح السنه.

**تخريج**: سنن الترمذي ٥\ ٥٦٧، رقم: ٣٦٥٨، وابوداؤد ٤\ ٢٨٧، رقم: ٣٩٨٧، والبغوي في شرح السنة ١٤\ ١٠٠، رقم: ٣٨٩٣، سنن ابن ماجه ١\ ٣٧، رقم: ٩٦.

**د لغاتو حل**: ليترادون: اي يرى بعضهم بعضا. انعما: اي زادا في الدرجة والرتبة.

**تشريح**: عليين په اووم آسمان كي د يوم ځاى نوم دى چي هلته د نيكو بندگانو روحونه خيژي، ځينو حضراتو ويلي دي چي عليين د حفظه ملائكي د دفتر نوم دى چيري چي د نيكو خلگو اعمال رسول كيږي يا دا چي عليين د جنت هغه درجې ته وايي چي تر نورو ټولو درجو زياته لوړه او الله جل جلاله ته نژدې ده.

ډېر ځلانده ستوري، دا د الكواب الدري، معنى ده، په دري كي ياء د نسبت ده او د در معنى د ملغلري ده، د ستوري په لوى ملغلري يادول د هغه د رڼا او ځلا په اعتبار دي.

### د جنتيانو سرداران

﴿٥٨٠٢﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبُوْبَكْرٍ وَعُمَرُ سَيِّدَا كُهُوْلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ مِنَ الْأَوَّلِيْنَ وَالْآخِرِيْنَ إِلَّا النَّبِيِّيْنَ وَالْمُرْسَلِيْنَ.

رواه الترمذي وابن ماجه عن علي.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په جنت کي د ننه مخکني او وروستني ځومره خلک چي وي د هغه ټولو سرداران به ابوبکر او عمر وي، پرته د نبيانو او رسولانو څخه چي د هغوی سرداران به نه وي. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۷۰، رقم: ۳۶۶۴.

**تشريح**: ځرګنده ده چي په جنت کي به هيڅوک د پاخه عمر نه وي، ټول به ځوانان وي ځکه د پاخه عمر والا څخه مراد هغه خلک دي چي په پاخه عمر کي له دنيا څخه رخصت سوي وي.

د مخکنيو څخه مراد تېرو امتو خلک دي چي په هغوی کي اصحاب کهف، آل فرعون، اهل ايمان او حضرت خضر عليه السلام هم دی، په شرط ددې چي هغه قول صحيح وي چي د هغه مطابق حضرت خضر عليه السلام نبي نه دی بلکه ولي دي، او د وروستنيو خلکو څخه مراد ددغه امت خلک دي چي په هغه کي ټول اولياء الله او شهيدان هم شامل دي.

ماسوا د نبيانو او رسولانو څخه، ددغه قيد څخه د حضرت عيسی عليه السلام او نورو نبيانو او رسولانو استثنی هم وسول او د هغه حضراتو مطابق حضرت خضر عليه السلام هم مستثنی سو چي د هغه وينا ده چي حضرت خضر عليه السلام نبي نه دی.

﴿۵۸۰۳﴾: وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي لَا أَدْرِي مَا بَقَائِي فِيكُمْ فَاقْتَدُوا بِاللَّذَيْنِ مِنْ بَعْدِي أَبُوبَكْرٍ وَعُمَرَ. رواه الترمذي.

د حضرت حذيفه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ما ته نه ده معلومه چي تر څو پوري به ستاسو په منځ کي يم زما څخه وروسته تاسو د ابوبکر او عمر پيروي کوئ. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۷۰، رقم: ۳۶۶۳.

## يو بل خصوصيت

﴿۵۸۰۴﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ الْمَسْجِدَ لَمْ يَرْفَعْ أَحَدٌ رَأْسَهُ غَيْرَ أَبِي بَكْرٍ وَّعُمَر كَانَا يَتَبَسَّمَانِ إِلَيْهِ

وَيَتَبَسَّمُ إِلَيْهِمَا. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دی چي کله به رسول الله ﷺ مسجد ته تشريف راوړ نو پرته د ابوبکر رضی الله عنه او عمر رضی الله عنه څخه به بل چا سر نه سو پورته کولای، دوی دواړو چي به رسول الله ﷺ ته کتل نو مسکا کيدل به او نبي کريم ﷺ به د دوی طرف په کتلو سره مسکا کيدی. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۷۱، رقم: ۳۶۶۸.

**تشريح**: دا د ميني ځانګړتيا او په خپلو کي د ميني لرونکو عادت دی چي کله په خپلو کي يو بل ووينی نو بې اختياره په مسکا سي او خوشحاله سي.

## د قيامت په ورځ

﴿۵۸۰۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ ذَاتَ يَوْمٍ

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه روايت دی چي يوه ورځ رسول الله ﷺ د حجرې مبارکي څخه راووتی

وَدَخَلَ الْمَسْجِدَ وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ أَحَدُهُمَا عَنْ يَمِينِهِ وَالْآخَرُ عَنْ شِمَالِهِ وَهُوَ

او مسجد ته يې داسي تشريف يووړ چي ابوبکر رضی الله عنه او عمر رضی الله عنه او يو نفر يې راسته طرف ته وو

آخِذٌ بِأَيْدِيهِمَا وَقَالَ هَكَذَا نُبْعَثُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

او بل چپه طرف ته، او رسول الله ﷺ د دواړو لاسونه په خپلو لاسونو مبارکو کي نيولي وه او وه يې فرمايل: د قيامت په ورځ به موږ همداسي د قبرونو څخه را پورته کيږو، ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دی.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۷۲، رقم: ۳۶۶۹.

## خصوصي حيثيت او اهميت

﴿۵۸۰۶﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ حَنْطَبٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى أَبَا بَكْرٍ وَعُمَرَ فَقَالَ هَذَانِ السَّمْعُ وَالْبَصَرُ. رواه الترمذي مرسلا.

د حضرت عبد الله بن حنطب ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د ابوبکر ﷛ او عمر ﷛ په لیدو سره وفرمایل: دا دواړه (د مسلمانانو لپاره) په منزله د غوږو او سترګو دي. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ٥\٥٧٢، رقم: ٣٦٧١.

**تشريح**: مطلب دا چي څرنګه دبدن په اندامو کي غوږ او سترګه د خپل خاص اهمیت او حیثیت په وجه پر نورو ټولو اندامو باندي ښېګڼه لري همدارنګه دغه دواړه حضرات یعني حضرت ابوبکر صدیق او عمر فاروق ﷠ د خپل خاص اهمیت او حیثیت په اعتبار په ملت اسلامیه کي تر ټولو زیات شرف او فضیلت لري، او ځینو حضراتو تقریبا دا مطلب داسي لیکلي دي چي په دین کي د دغه دواړو هغه حیثیت او اهمیت دی کوم چي دبدن په اندامو کي د غوږ او سترګي دی، یا د دغه ارشاد یو مطلب دا هم کیدای سي چي دغه دواړه زما لپاره د غوږ او سترګي په درجه کي دي چي زه د دوی په واسطه لیدل او اورېدل کوم، دا مطلب دې خبري ته اشاره کوي چي رسول الله ﷺ دغه دواړه حضرات په خپل غوږ او سترګه تعبیر کولو سره دا څرګنده کړل چي دغه دواړه زما وزیر، زمانائب او زما وکیلان دي، یا دا چي دواړه په منزله د غوږ او سترګي ګرځول په حقیقت کي دې ته اشاره کول دي چي په حق اورېدو او د هغه په اتباع کي د حق په مشاهده کي دغه دواړه زیات حریص دي.

## د نبي وزیران

﴿۵۸۰۷﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوسعید خدري ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

مَا مِنْ نَبِيٍّ إِلَّا لَهُ وَزِيرَانِ مِنْ أَهْلِ السَّمَاءِ وَوَزِيرَانِ مِنْ أَهْلِ الْأَرْضِ فَأَمَّا

هیڅ یو نبي داسي نه دی تیر سوی چي د هغه دوه وزیران د آسمان او دوه وزیران په مځکه کي نه

وَزِيرَايَ مِنْ أَهْلِ السَّمَاءِ فَجِبْرِيلُ وَمِيكَائِيلُ وَأَمَّا وَزِيرَايَ مِنْ أَهْلِ الْأَرْضِ فَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ. رواه الترمذي.

وي، زما دوه وزیران د آسمان جبرائیل او میکائیل علیهما السلام دي او د مځکي دوه وزیران مي ابوبکر ﷛ او عمر ﷛ دي. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ٥\٥٧٦، رقم: ٣٦٧٠.

**تشريح**: د آسمان والا څخه مراد ملائكي دي، په هغه ملائكو كي چي كومي دوې ملائكي د نبي او رسول وزيران ټاكل كيږي د هغوى كار د عالم ملكوت څخه د هغه نبي او رسول مرسته كول وي، د مځكي والا څخه مراد د هغه نبي او رسول د امت خلګ او د هغه ملګري او محبين وي، د هغه ملګرو او محبينو څخه چي كوم دوه كسان د هغه نبي او رسول ډېر نژدې او ډېر زيات پوه او باصلاحيته وي د هغوى هغه مقام او مرتبه وي كوم چي د يو پاچا د وزيرانو وي، په عالم ناسوت كي د خپل نبي او رسول خدمت او مرسته كول وي او كله چي يوه مشوره غوښتونكې پيښه رامنځته سي نو نبي او رسول د هغوى څخه مشوره اخلي.

ددغه حديث څخه څرګنده سول چي رسول الله ﷺ د حضرت جبرائيل عليه السلام، او حضرت ميكائيل عليه السلام بلكه ټولو ملائكو څخه افضل او اعلى دى، دا خبره هم ثابته سول چي حضرت ابوبكر صديق او حضرت عمر فاروق رضي الله عنهما د ټولو صحابه كرامو څخه افضل او اعلى دى، او ټول صحابه كرامو د ټولو خلګو څخه افضل او اعلى دى، د ابوبكر او عمر الفاظ ددې دليل دى چي حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه د حضرت عمر رضي الله عنه څخه افضل دى ځكه چي په دغه الفاظو كي د واو حرف كه څه هم د مطلق جمع لپاره دى مګر دا خبره بايد په ذهن كي وي چي دا د صاحب حكمت او پوهي كلام دى او ممكن نه ده چي ددغه دوو نومو په ذكر كولو كي ذكر سوى ترتيب (چي اول حضرت ابوبكر رضي الله عنه ذكر سو او بيا د حضرت عمر رضي الله عنه يادونه وسول) حكمت او مصلحت څخه خالي نه دي او حكمت ددې څخه ماسوا بل څه كيداى سي چي كله دوه نومونه يو ځاى ذكر كيږي نو مخكي هغه نوم راځي چي تر دوهم افضل او اعلي وي.

## د خلافت نبوت دور

﴿۵۸۰۸﴾: وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ أَنَّ رَجُلاً قَالَ لِرَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوبكره رضي الله عنه څخه روايت دى چي يو سړي رسول الله ﷺ ته عرض وكړ چي

رَأَيْتُ كَأَنَّ مِيزَانًا نَزَلَ مِنَ السَّمَاءِ فَوُزِنْتَ أَنْتَ وَأَبُو بَكْرٍ فَرَجَحْتَ أَنْتَ

ما په خوب كي وليدل چي يو ترازو د آسمان څخه راكښته سوى دى په هغه كي تاسو او ابوبكر وتلل سو استنو ستاسو وزن زيات سو،

وَوُزِنَ عُمَرُ وَأَبُو بَكْرٍ فَرَجَحَ أَبُو بَكْرٍ وَوُزِنَ عُمَرُ وَعُثْمَانُ فَرَجَحَ عُمَرُ ثُمَّ رُفِعَ

بیا عمر رضی اللہ عنہ او ابوبکر رضی اللہ عنہ وتلل سوه نو ابوبکر رضی اللہ عنہ زيات سو بيا عمر رضی اللہ عنہ او عثمان ووتل سول نو د عمر وزن زيات سو بيا ترازو پورته کړل سو ،

الْمِيزَانُ فاستاءلها رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْنِي فَسَاءَهُ ذَلِكَ

ددې خوب اوريدو سره رسول الله ﷺ غمگين سو ، بيا يې وفرمايل تا چي څه ليدلي دي دا

فَقَالَ خِلَافَةُ نُبُوَّةٍ ثُمَّ يُؤْتِي اللَّهُ الْمُلْكَ مَنْ يَشَاءُ. رواه الترمذي وابوداؤد.

خلافت نبوت دى يعني تر حضرت عمر رضی اللہ عنہ پوري خلافت نبوت دى ددې څخه وروسته چي الله جل جلاله چا ته وغواړي حکومت به ورکړي . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۴۶۸، رقم: ۲۲۸۷، وابوداود ۵\۲۹، رقم: ۴۶۳۵.

**تشريح**: غمجن سو ، يعني رسول الله ﷺ ددغه خوب په اوريدو سره دا تعبير وکړ چي د عمر رضی اللہ عنہ د خلافت څخه وروسته به د فتنو دور پيل سي ، په ديني او ملي چارو کي به کمزوري او انتشار پيدا سي او د عالم اسلام دغه شان او شوکت ته به د تاوان رسولو هڅه پيل سي چي په خلافت عمر کي به خپل عروج ته رسيدلی وي .

دا خلافت نبوي دى، يعني د ابوبکر او عمر رضی اللہ عنہما خلافت په حقيقت کي د خاص خلافت نبوت ويلو مستحق دى چي په هغه کي د پاچاهۍ او ملوکيت هيڅ امکان نسته او دهغوی دخلافت څخه اختلاف او انکار کوونکي به هيڅوک نه وي، يعني رسول الله ﷺ د ترازو پورته کېدو تعبير دا وکړ چي حقيقي، خاص او متفق عليه خلافت به پر ابوبکر او عمر رضی اللہ عنہما باندي کامل او منتهي وي، د عمر رضی اللہ عنہ څخه وروسته چي دخلافت کوم دور راځي په هغه کي به د ملوکيت ځای وي، د نبوت او خلافت نبوت د طريقې خلاف خبري به پکښي شامل سي او دحکومت او ملت انتظامي غالب کي به ځيني بې قانونۍ لار پيدا کړي او بيا به د خلافت اربعه څخه وروسته په پوره توګه ملکويت قائم سي چي هغه په پاچاهۍ سره تعبير کيدای سي، پاته سوه دا خبره چي د ترازو په پورته کېدو سره ذکر سوی تعبير په کومه وجه وګڼل سو نو هغه په دغه سياق کي کتل پکار دي چي د يو بل سره هغه شيان تلل کيږي چي په خپلو کي د يو بل سره نژدې وي کوم شی چي په خپلو کي ليري او متباين وي د هغه د يو بل سره تلل څه معنی نه لري ځکه د ترازو پورته کېدل او په خپلو کي د يو بل سره د تللو لړۍ موقوف کيدل ددې خبري نښه ده چي کوم شيان په خپلو کي د يو بل سره نژدې سي او دهغوی تلل مقصد کيدای سي هغه ختم

سوي دي په دې وجه رسول الله ﷺ تعبير وکړ چي دغه خوب د ابوبکر او عمر رضي الله عنهما ځخه وروسته په خلافت کي انحطاط ته اشاره کول دي.

د ابوبکر رضي الله عنه وزن زيات سو، ددې ځخه دا مطلب راووتی چي حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه تر حضرت عمر رضي الله عنه افضل دی.

خوب ليدونکي د حضرت عثمان او حضرت علي رضي الله عنهما تلل ونه ليدل، دا دې ته اشاره کوي چي د حضرت عثمان او حضرت علي رضي الله عنهما د تفاضل مسئله د سلفو په منځ کي مختلف فيه راغلې ده لکه ځرنګه چي په ځينو کتابو کي مذکور هم دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث　(دريم فصل)

### د حضرت ابوبکر او حضرت عمر (رض) د جنتي کېدو زيری

﴿۵۸۰۹﴾: عَنِ بْنِ مَسْعُودٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَطَّلِعُ عَلَيْكُمْ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَاطَّلَعَ أَبُو بَكْرٍ ثُمَّ قَالَ يَطَّلِعُ عَلَيْكُمْ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَاطَّلَعَ عُمَرُ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه ځخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: تاسو ته به يو سړی د جنتيانو ځخه راښکاره سي، نو ابوبکر رضي الله عنه راښکاره سو، بيا رسول الله ﷺ وفرمايل تاسو ته به يو بل د جنتيانو ځخه را ښکاره سي نو عمر رضي الله عنه را ښکاره سو. ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دی

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۸۱، رقم: ۳۶۹۴.

**د لغاتو حل**: ضاحية: مي مقمرة. (د سپوږمۍ په شپه)

**تشريح**: د جنت زيری په مختلفو حديثو کي د ډېرو صحابه کرامو لپاره راغلی دی، په دغه حديث کي دغه زيری د حضرت ابوبکرصديق او حضرت عمر رضي الله عنهما لپاره يو ځای مذکور دی ځکه دا حديث دلته نقل کړل سو.

### د ابوبکر او عمر (رض) نيکۍ

﴿۵۸۱۰﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ بَيْنَا رَأْسُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ

د حضرت عائشې (رض) ځخه روايت دی چي د سپوږمۍ په يوه شپه کي چي د رسول الله ﷺ سر

حَجْرِيْ فِيْ لَيْلَةٍ ضَاحِيَةٍ إِذْ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ هَلْ يَكُوْنُ لِأَحَدٍ مِّنَ

زما په غيږ کي وو ما عرض وکړ اې د الله رسوله ! ايا د چا دومره نيکي هم سته څومره چي د

الْحَسَنَاتِ عَدَدَ نُجُوْمِ السَّمَاءِ ؟ قَالَ نَعَمْ عُمَرُ . قُلْتُ فَأَيْنَ حَسَنَات أَبِيْ بَكْرٍ

آسمان ستوري دي؟ رسول الله ﷺ راته وفرمايل : هو د عمر رضي الله عنه، بيا ما پوښتنه وکړه او دابوبکر د نيکيو څه حال دی ؟

قَالَ إِنَّمَا جَمِيْعُ حَسَنَاتِ عُمَرَ كَحَسَنَةٍ وَّاحِدَةٍ مِنْ حَسَنَاتِ أَبِيْ بَكْرٍ . رواه رزين

رسول الله ﷺ وفرمايل د عمر رضي الله عنه د ټول عمر نيکي د ابوبکر رضي الله عنه د يوې نيکۍ برابر ده .رزين

**تخريج**: رواه رزين.

**د لغاتو حل**: ضاحية: اي مقمرة (د سپوږمۍ شپه)

**تشريح**: د يوې نيکۍ برابر دی، مطلب دا چي د ابوبکر رضي الله عنه نيکي د عمر رضي الله عنه تر نيکيو ډيري زياتي دي او که داهم ومنل سي چي د عمر رضي الله عنه نيکۍ د ابوبکر رضي الله عنه تر نيکيو زياتي دي نو بيا هم ابوبکر صديق رضي الله عنه افضل دی ځکه چي هغه ته د کمال اخلاص او شهود معرفت کومه خاص مرتبه تر لاسه ده هغه د هغه د نيکيو د کيفيت او حقيقت په اعتبار تر ټولو زيات د قدر وړ او د لوړي مرتبې دي، لکه څرنگه چي په يو حديث کي فرمايل سوي دي: ابوبکر ته پر تا باندي چي کوم فضيلت او غوره والی تر لاسه دی هغه په دې وجه نه دی چي د هغه لمونځونه ستا تر لمونځو زيات دي او هغه روژې ستا تر روژو زياتي دي بلکه د هغه جوهر په وجه دي چي د هغه په زړه کي اېښودل سوی دی .

==========

# بَابُ مَنَاقِبِ عُثْمَانَ رضي الله عنه

## (د حضرت عثمان رضي الله عنه د مناقبو بیان)

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

﴿۵۸۱۱﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُضْطَجِعًا فِيْ

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ په خپل کور کي څملاست وه او

بَيْتِهِ كاشفا عَنْ فَخِذَيْهِ اَوْ سَاقَيْهِ فَاسْتَأْذَنَ اَبُوْبَكْرٍ فَأَذِنَ لَهُ وَهُوَ عَلٰى تِلْكَ

ورنونه يا پنډۍ يې لوڅي کړي وې او ابوبکر رضي الله عنه د راتللو اجازه وغوښتل ، رسول الله ﷺ هغه ته اجازه ورکړل او رسول الله ﷺ په هغه حالت کي وو ،

الْحَالِ فَتَحَدَّثَ ثُمَّ اسْتَأْذَنَ عُمَرُ فَأَذِنَ لَهُ وَهُوَ كَذَلِكَ فَتَحَدَّثَ ثُمَّ اسْتَأْذَنَ

بیا عمر رضي الله عنه اجازه وغوښتل نو رسول الله ﷺ هغه هم را وغوښتی او رسول الله ﷺ هم هغسي وو

عُثْمَانُ فَجَلَسَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسَوّٰى ثِيَابَهُ فَلَمَّا خَرَجَ

، بیا عثمان رضي الله عنه اجازه وغوښتل رسول الله ﷺ کښېنستی او جامې یې سمي کړې، بیا چي دا

قَالَتْ عَائِشَةُ دَخَلَ اَبُو بَكْرٍ فَلَمْ تَهْتَشَّ لَهُ وَلَمْ تُبَالِهِ ثُمَّ دَخَلَ عُمَرُ فَلَمْ

خلک ولاړل نو بی بي عائشې رضي الله عنها پوښتنه وکړه اې دالله رسوله ! ابوبکر رضي الله عنه راغلی نو تاسو حرکت ونه کړ او پروا دي ونه کړل بیا عمر رضي الله عنه راغلی

تَهْتَشَّ لَهُ وَلَمْ تُبَالِهِ ثُمَّ دَخَلَ عُثْمَانُ فَجَلَسْتَ وَسَوَّيْتَ ثِيَابَكَ فَقَالَ اَلَا

تاسو څه حرکت ونه کړ او پروا دي ونه کړل ، بیا چي عثمان رضي الله عنه راغلی نو ته کښېنستلې جامې دي سمي کړې، رسول الله ﷺ و فرمایل ایا

أَسْتَحِي مِنْ رَجُلٍ تَسْتَحِي مِنْهُ الْمَلَائِكَةُ، وفي رواية قَالَ إِنَّ عُثْمَانَ رَجُلٌ

زه د هغه سړي څخه حيا ونه کړم چي د هغه څخه ملائکي هم حيا کوي، او په يوه روايت کي راځي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: عثمان رضي الله عنه

حَيِيٌّ وَإِنِّي خَشِيتُ إِنْ أَذِنْتُ لَهُ عَلَى تِلْكَ الْحَالِ أَنْ لَا يَبْلُغَ إِلَيَّ فِي حَاجَتِهِ. رواه مسلم.

حياناک سړی دی زما سره دا خيال پيدا سو که زه په دې حالت کي هغه راوغواړم نو هغه د حيا او شرم څخه ونه ګرزي او کوم کار ته چي هغه راتلی هغه به ونه ويلای سي.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۸۶۶\۴، رقم: ۲۶- ۲۴۰۱.

**د لغاتو حل**: تهتش: اي لم تتحرک لاجله. (ونه ښوريدی)

**تشريح**: خپل ورنونه يا پنډۍ يې لوڅ کړې وه، د حديث په تشريح کي د دغه عبارت په اړه امام نووي رحمة الله عليه ليکلي دي چي مالکي او نورو حضراتو د دغه حديث څخه استدلال کړی دی چي ورون د بدن هغه برخه نه ده چي هغه په ستر کي شمېرل کيږي مګر دغه استدلال صحيح نه دی ځکه چي اول خو دا خبره يقيني نه وه چي هغه وخت رسول الله ﷺ خپل ورنونه لوڅ کړي پروت وو، او که چيري دا يقيني وي نو د حديث راوي ته د ورنونو يا پنډۍ د الفاظو څخه د دغه شک او تردد ظاهرولو ضرورت نه و چي هغه وخت رسول الله ﷺ د خپل بدن مبارک کومه برخه لوڅه کړې پروت وو، ايا هغه ورنونه وه که پنډۍ؟ او د حديث د الفاظو څخه د ورنو لوڅېدل په يقيني توګه ثابت نه دي نو بيا د ورنو ستر کېدل يعني د ورنو لوڅولو جواز د دغه حديث څخه ثابتول غير مناسب خبره ده، دوهم د دې خبري قوي امکان دی چي د ورنو لوڅولو څخه مراد دادی چي د ورنو څخه د قميص لمن اخوا سوې وه يعني د دغه الفاظو دا مطلب نه دی چي د رسول الله ﷺ ورنونه بالکل لوڅ سوي وه چي پر هغه لونګ نه وو او نه د قميص لمن وه، بلکه مطلب دادی چي رسول الله ﷺ لونګ تړلی وو چي په هغه کي ورنونه پټ وه مګر د ورنو سربېره د قميص لمن ليري سوې وه، د دغه تائيد څخه نه يوازي دا چي مخکنی عبارت په پوهه کي راځي بلکه د رسول الله ﷺ د عادت او معمول سره سم دا خبره زياته مناسب معلوميږي چي د آل او اصحاب سره د مخالطت او مجالست په وخت کي د رسول الله ﷺ وه.

او جامې يې سمي کړلې، په دغه الفاظو کي دې ته اشاره ده چي د رسول الله ﷺ د ورنو يا پنډۍ يوه برخه هم په پوره توګه لوڅه نه وه بلکه د لونګ څخه ماسوا بله جامه پر ورنو يا پنډۍ

باندي نه وه ، ددې دليل دادی چي د رسول الله ﷺ ورنونه په پوره توګه لوڅ وه نو دلته د (وسوی ثيابه) او خپل ورنونه يې پټ کړل، پر ځای د دغه الفاظ دي چي خپل ورون يې پټ کړ، چي د هغه څخه ملائکي هم حياء کوي ، امام نووي رحمة الله عليه ليکلي دي چي دغه ارشاد د حضرت عثمان رضی الله عنه فضيلت څرګندوي ځکه چي حياء د ملائکو يو ستر صفت دی چي د ذکر سوو الفاظو په ذريعه په حضرت عثمان رضی الله عنه کي ثابت کړل سو ، او مظهر ليکلي دي چي دغه الفاظ د حضرت عثمان رضی الله عنه هغه عزت او توقير څرګندوي کوم چي د رسول الله ﷺ په نزد وو مګر ددې څخه نه خو د حضرت ابوبکر صديق او حضرت عمر رضی الله عنهما پر هغه مقام او مرتبې فرق اچوي کوم چي د نبي کريم ﷺ په نزد هغوی ته حاصل وو او نه دا لازميږي چي رسول الله ﷺ د حضرت عثمان رضی الله عنه په نسبت حضرت ابوبکر او حضرت عمر رضی الله عنهما ته زيات اهميت ور نه کړ، په اصل کي حضرت ابوبکر او حضرت عمر رضی الله عنهما ته چي د تعلق او ميني کوم خاص مقام تر لاسه وو هغه د بې تکلفۍ متقاضي وو چي دهغو اظهار د هغه دواړو په راتګ سره رسول الله ﷺ وکړ چي څرنګه پروت وو هم هغسي پروت پاته سو ، ټول پوهيږي چي کله محبت کامل او زيات سي نو د تکلف حجاب له منځه پورته سي او بې تکلفي او همنشينۍ جذباتي تقاضا جوړه سي لکه چي ويلي يې دي: اذا حصلت الالفة بطلت الکلفة، په دې اعتبار که وکتل سي نو دغه حديث د فضليت عثمان څخه زيات د ابوبکر او عمر رضی الله عنهما سره تعلق لرونکی معلوميږي مګر د حديث ظاهري مفهوم او د هغه سياق او سباق د حضرت عثمان رضی الله عنه پر تعظيم باندي دلالت کوي ځکه دغه حديث د حضرت عثمان رضی الله عنه د مناقبو په باب کي ذکر کول زيات مناسب دي ، دا حقيقت هم بايد په ذهن کي وي چي د رسول الله ﷺ د ملګرو او صحابه کرامو څخه کوم څوک چي به د کوم صفت زيات خاوند وو او د چا پر طبيعت او مزاج چي به د کوم خصلت او خوبې غلبه وه ، رسول الله ﷺ به د هغه صفت او خصلت په رعايت کولو سره د هغه سره هم هغسي چلن کوی ، پر حضرت عثمان رضی الله عنه باندي د صفت حياء غلبه وه ځکه رسول الله ﷺ به تل د هغه د حجاب لحاظ کوی ، حال دا چي د حضرت ابوبکر صديق او حضرت عمر رضی الله عنهما سره رسول الله ﷺ بې تکلفه وو ، ځکه دهغوی سره يې د تکلفۍ معامله کول .

ملائکو چي د حضرت عثمان رضی الله عنه څخه په کومو ځايو کي حياء کړې ده په هغو کي يو دا نقل سوي دي چي په مدينه کي د يوې معاملې په دوران کي حضرت عثمان رضی الله عنه چي مخکي سو نو دهغه سينه خلاصه سول ، نو ملائکي سمدستي تر شا سوې ، هغه وخت رسول الله ﷺ ، حضرت عثمان رضی الله عنه خبر کړ چي خپله سينه پټه کړي ، ددې څخه وروسته ملائکي خپل ځای ته

بهرته راغلې، رسول الله ﷺ د هغه ملائکو څخه د وروسته کېدو د سبب پوښتنه وکړل نو هغوی وویل چي د عثمان ﷛ د حياء څخه موږ تر شا سوو او کله چي هغه ستاسو په خبردار کولو باندي خپله سينه پټه کړل نو موږ خپل ځای ته بېرته راغلو .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### حضرت عثمان ﷛ د رسول الله ﷺ رفيق جنت دی

﴿۵۸۱۲﴾: وَعَنْ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِكُلِّ

د حضرت طلحه بن عبيدالله ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د هر

نَبِيٍّ رَفِيقٌ وَرَفِيقِي يَعْنِي فِي الْجَنَّةِ عُثْمَانُ. رواه الترمذي ورواه ابن ماجه

نبي يو ملګری وي او زما ملګری (په جنت کي) عثمان ﷛ دی، ترمذي ، ابن ماجه د

عن ابي هريرة وقال الترمذي هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ وَهُوَ مُنْقَطِعٌ. رواه الترمذي.

ابو هريره ﷛ څخه روايت کړی او ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دی ددې اسناد قوي نه دي او دا منقطع دی . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۸۳، رقم: ۳۶۹۸.

**تشريح**: يعني په جنت کي، د (يعني في الجنة) جمله معترضه ده چي د مبتدا او خبر په منځ کي واقع سوې ده، او دا د رسول الله ﷺ الفاظ نه دي بلکه د حضرت طلحه ﷛ يا بل راوي الفاظ دي چي زما رفيق عثمان ﷛ دی، ددې څخه د رسول الله ﷺ مراد دا وو چي په جنت کي زما رفيق عثمان ﷛ دی، په هر حال د حديث د الفاظو څخه دا خبره هيڅکله نه مفهوم کيږي چي د حضرت عثمان ﷛ څخه ما سوا بل څوک رسول الله ﷺ خپل رفيق نه دی ګرځولی او ځکه د غه حديث ته د هغه روايت خلاف نه سي ويل کيدای کوم چي طبراني د حضرت ابن مسعود ﷛ څخه نقل کړی دی او په هغه کي بيان سوی دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر نبي د خپلو ملګرو څخه يو څوک خپل مقرب او خاص دوست جوړ کړی دی زما په اصحابو کي زما مقرب او خاص دوست ابوبکر او عمر ﷠ دي ، مګر دا خبره خامخا معلومه سول چي هر نبي يو رفيق

درلود ، حال دا چي د رسول الله ﷺ د پر رفیقان وه .

دغه حدیث غریب دی، مګر دغه غرابت د مضمون حدیث د صحیح کېدو خلاف نه دی ځکه چي ترمذي وضاحت وکړ چي د دغه په اسنادو کي ضعف دی او د اسناد په اعتبار دې ته منقطع ویل سوي دي، په هر حال د ترمذي د وینا مطلب دادی چي دغه روایت ضعیف دی مګر د فضائلو په اړه د ضعیف روایت هم اعتبار کېږي ، ددې څخه ماسوا ددغه حدیث تائید د هغه روایت څخه هم کېږي کوم چي ابن عساکر د حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه نقل کړی دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: لکل نبي خلیل في امته وان خلیلي عثمان ابن عفان، هر نبي په خپل امت کي یو خلیل جوړ کړی وي او زما خاص دوست عثمان رضي الله عنه دی .

## د الله جل جلاله په لار کي مالي قرباني

﴿۵۸۱۳﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ خَبَّابٍ قَالَ شَهِدْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د عبد الرحمن بن خباب رضي الله عنه څخه روایت دی چي زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم

وَسَلَّمَ وَهُوَ يَحُثُّ عَلَى جَيْشِ الْعُسْرَةِ فَقَامَ عُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ فَقَالَ يَا رَسُولَ

کله چي رسول الله ﷺ د جیش عسرت د مرستي لپاره خلکو ته جذبه ورکول ، د رسول الله ﷺ جذبه ناکو الفاظو اوریدو سره حضرت عثمان رضي الله عنه ولاړ سو او عرض یې وکړ اې د الله رسوله !

اللَّهِ عَلَيَّ مِائَةُ بَعِيرٍ بِأَحْلَاسِهَا وَأَقْتَابِهَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ ثُمَّ حَضَّ عَلَى الْجَيْشِ

سل اوښان چي ځلونه او کتي ورسره وي پر ما دي د الله جل جلاله په لار کي ، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ د لښکر دَ سامان برابرولو لپاره خلکو ته بلنه ورکول ،

فَقَامَ عُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ فَقَالَ عَلَيَّ مِائَتَا بَعِيرٍ بِأَحْلَاسِهَا وَأَقْتَابِهَا فِي سَبِيلِ

حضرت عثمان رضي الله عنه ولاړ سو او عرض یې وکړ اې د الله رسوله ! دوه سوه اوښان سره د ځلونو او کتو د خدای جل جلاله په لار کي ورکوم،

اللَّهِ ثُمَّ حَضَّ عَلَى الْجَيْشِ فَقَامَ عُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ فَقَالَ عَلَيَّ ثَلَاثُ مِائَةِ

ددې څخه وروسته رسول الله جل جلاله خلک د سامان راوړلو لپاره وهڅول حضرت عثمان رضي الله عنه ولاړ سو او عرض یې وکړ اې د الله رسوله ! درې سوه اوښان د

بَعِيرٍ بِأَحْلَاسِهَا وَأَقْتَابِهَا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ فَأَنَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

ځلونو او کتو سره د خدای ﷻ په لار کي ورکوم، بیا ما ولیدل چي رسول الله ﷺ د منبر څخه

وَسَلَّمَ يَنْزِلُ عَنِ الْمِنْبَرِ وَهُوَ يَقُولُ مَا عَلَى عُثْمَانَ مَا عَمِلَ بَعْدَ هٰذِهِ مَا عَلَى عُثْمَانَ مَا عَمِلَ بَعْدَ هٰذِهِ. رواه الترمذي.

راکښته سو او فرمایل یې اوس به عثمان رضي الله عنه ته هغه شی تاوان نه رسوي چي ددې څخه وروسته یې کوي اوس به عثمان رضي الله عنه ته عمل هیڅ تاوان نه رسوي چي ددې وروسته یې کوي، او هیڅ بدي به هغه ته ضرر نه رسوي. ترمذي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\ ۵۸۴، رقم: ۳۷۰۰.

**د لغاتو حل**: احلاسها: اي اجلالها (ځلونه). اقتابها: اي رحالها. (کجاوه)

**تشریح**: جیش عسرة، هغه اسلامي لښکر ته وایي چي د تبوک د غزا لپاره تیار سوی وو، عسرة تنګی او مالي بدحالی ته وایي او هغه زمانه کله چي د تبوک جګړه رامنځته سول د مسلمانانو لپاره د سختي تنګی زمانه وه، یوې خوا ته د وچ کالی څخه نه یوازي دا چي د خوراک او اوبو د کموالي په وجه انسانانو د درختي بلګونه او د خولې د وچ والي دفع کولو لپاره د اوښانو پر کولمو نستېړلو باندي مجبور کړي وه، بلي خوا ته د مسلمانانو کمي او دهغوی په مقابله کي د دښمنانو زیاتوب د جنګ د ځای ډېر لیري والی، د سامان او خوراک کمي، د ګرمی سختوالي او د سامان نه درلودو پریشانی ډیري سخت حالت پیدا کړی وو ځکه د تبوک د غزا د لښکر نوم جیش عسرة سو.

ددغه روایت مطابق حضرت عثمان رضي الله عنه شپږ سوه اوښان د هغه لښکر لپاره د الله ﷻ په لاره کي ورکړل، په لومړي ځل یې سل اوښان ورکړل بیا دوه سوه اوښان بیا درې سوه اوښان همدارنګه ټول اوښان شپږ سوه سول، په ځینو روایتو کي راغلي دي چي حضرت عثمان رضي الله عنه د تبوک د غزا په وخت کي نهه نیم سوه اوښان د خپل ځان څخه ورکړي وه او د زرو شمېر پوره کولو لپاره یې پنځوس آسونه هم ورکړي وه.

د حضرت عثمان رضي الله عنه ددغه ستري مالي مرستي او دهغه د حوصلې لپاره چي رسول الله ﷺ کوم الفاظ وفرمایل او دهغه د ارزښت څرګندولو لپاره چي یې په وار وار ارشاد وفرمایه د هغه خلاصه دا وه چي د عثمان رضي الله عنه دغه عمل نه یوازي دا چي د هغه تیرو ګناهو کفاره سوه بلکه په

راتلونکي کي هم که چیري د هغه څخه یوه خطا وسي نو هغه به د دغه عمل په سبب معاف سي نو په دغه الفاظو کي دغه زیري ته اشاره وه چي عثمان رضی الله عنه ته به د خاتمة بالخیر سعادت تر لاسه کیږي ، یو شارح لیکلي دي چي د رسول الله ﷺ د دغه الفاظو مطلب دا وو چي د دغه عمل څخه وروسته عثمان رضی الله عنه اوس که د نفل څخه څه عبادت او نیک کار هم ونه کړي نو د هغه تاوان نسته ځکه چي د هغه د دغه عظیم عمل د ټولو نفلي عبادتو او نیکو کارو لپاره کافي سوی دی .

## د عثمان رضی الله عنه قرباني

﴿۵۸۱۴﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ جَاءَ عُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ إِلَى النَّبِيِّ

د حضرت عبد الرحمن بن سمره رضی الله عنه څخه روایت دی چي حضرت عثمان رضی الله عنه د جیش عسره د

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَلْفِ دِينَارٍ فِي كُمِّهِ حِينَ جَهَّزَ جَيْشَ الْعُسْرَةِ فَنَثَرَهَا

تیاری په زمانه کي زر دیناره د خپل قمیص په لستوڼي کي راوړل او هغه یې د رسول الله ﷺ په

فِيْ حَجْرِهِ فرایت النبي صلى الله عليه وسلم يقبلها في حجره وَهُوَ يَقُولُ مَا ضَرَّ ابْنُ عَفَّانَ مَا عَمِلَ بَعْدَ الْيَوْمِ مَرَّتَيْنِ. رواه احمد.

غیږ مبارکه کي کښېښودل، ما ولیدل چي رسول الله ﷺ هغه دینار په خپل غیږ کي اړول راړول او کتل یې او وه یې فرمایل د نن څخه وروسته چي عثمان رضی الله عنه څه عمل کوي هغه به ورته تاوان نه رسوي ، دوه واره رسول الله ﷺ دا الفاظ وفرمایل. احمد

**تخریج**: الامام احمد في مسنده ۵\۶۳.

**تشریح**: د عبد الرحمن بن عوف رضی الله عنه څخه هم روایت سوی دی چي هغه بیان وکړ: زه د نبي کریم ﷺ په خدمت کي هغه وخت حاضر وم کله چي حضرت عثمان رضی الله عنه د جیش عسره لپاره د سروزرو نهه سوه اوقیې راوړلې ، همدارنګه د جیش عسره لپاره د حضرت عثمان رضی الله عنه د مالي مرستي او معاونت په اړه ډېر روایتونه راغلي دي چي په خپلو کي مختلف دي او د تناقض ګمان کیدای سي ځکه په دغه روایتو کي د تطبیق لپاره دا وضاحت ضروري دی چي په اصل کي حضرت عثمان رضی الله عنه مخکي خو شپږ سوه اوښان سره له سامان د رسول الله ﷺ په خدمت کي وړاندي کړل لکه چي په لومړني حدیث کي تېر سول ، بیا د لښکر د خلکو د نورو اړتیاوو لپاره هغه نقده مرسته هم ضروري وګڼله او زر دیناره یې د رسول الله ﷺ په خدمت کي راوړل ، د دې څخه

وروسته هغه محسوسه کړل چي د لبنکر لپاره د سپرلۍ نوره اړتیا ده او د نورو اړتیاوو پوره کولو لپاره نوره مرسته هم ضروري ده نو هغه یوې خوا ته یه نورو اونبانوا و پنځوس آسونو د زر شمېر پوره کړ او بلې خوا ته یې نور نهه اوقیه د سرو زرو په ورکولو سره په زرو دینارو کي هم زیاتوب وکړ.

## د حضرت عثمان رضي الله عنه فضيلت

﴿۵۸۱۵﴾: وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ لَمَّا أَمَرَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِبَيْعَةِ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی کله چي رسول الله ﷺ د بیعت رضوان حکم وکړ

الرِّضْوَانِ كَانَ عُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ رَسُولَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى

نو هغه وخت حضرت عثمان رضي الله عنه د رسول الله ﷺ د قاصد په حیثیت مکې ته تللی وو ،

مَكَّةَ فَبَايَعَ النَّاسَ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ عُثْمَانَ فِي حَاجَةِ

خلکو د رسول الله ﷺ په لاس بیعت وکړ، نو رسول الله ﷺ وفرمایل: عثمان رضي الله عنه د خدای جل جلاله

اللّٰهِ وَحَاجَةِ رَسُولِهِ فَضَرَبَ بِإِحْدَى يَدَيْهِ عَلَى الْأُخْرَى فَكَانَتْ يَدُ رَسُولِ اللّٰهِ

او رسول ﷺ په کار پسي تللی دی بیا یې خپل یو لاس پر بل لاس ووهی (یعني د حضرت عثمان رضي الله عنه د طرفه یې بیعت وکړ) نو د رسول الله ﷺ لاس مبارک د

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعُثْمَانَ خَيْرًا مِنْ أَيْدِيهِمْ لِأَنْفُسِهِمْ. رواه الترمذي.

عثمان رضي الله عنه لپاره د هغوی دلاسونو څخه غوره وو چي هغوی په خپلو لاسونو سره د ځان لپاره بیعت کړی وو. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۸۵، رقم: ۳۷۰۲.

**تشريح** بیعت رضوان، هغه بیعت ته وایي چي د مکې څخه تقریبا پر پنځلس یا شپاړلس میله فاصله باندي د حدیبیه پر ځای د یوې درختي لاندي په ناسته سره رسول الله ﷺ د ټولو مسلمانانو څخه اخیستی وو، دغه نوم د قرآن کریم د دغه آیت څخه اخیستل سوی دی چي د دغه پیښي په اړه نازل سوی وو:

لَقَدْ رَضِيَ اللّٰهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ

ژباړه: په تحقیق سره الله ﷻ د هغه مسلمانانو څخه راضي سو کله چي دغه کسانو ستاسو سره تر درختي لاندي بیعت کوی.

ددغه پېښي لنډ تفصیل دادی چي په شپږم هجري کال د ذي قعده په میاشت کي رسول الله ﷺ د مسلمانانو د یو ډېر شمېر سره د عمرې لپاره مکې ته روان سول، کله چي حدیبیې ته نژدې ورسېدل نو معلومه سول چي د مکې قریشو د مسلمانانو د عمرې لپاره په مکه کي د داخلېدو د اجازې څخه انکار کړی دی، رسول الله ﷺ د حضرت عثمان ﷜ په خپل خاص نمائنده ګرځولو سره د مکې قریشو ته واستوی چي هغوی پوهه کړي چي د مسلمانانو د راتګ مقصد جنګ نه دی بلکه یوازي عمره کول دي، نو باید د مکې اوسېدونکي مسلمانان په مکه کي داخلېدو ته پرېږدي، حضرت عثمان ﷜ په مکه کي وو چي په حدیبیه کي مشهوره سوه چي حضرت عثمان ﷜ د مکې د اوسېدونکو له خوا وژل سوی دی، ددغه خبر په اورېدو سره په مسلمانانو کي سخت اضطراب پیدا سو او فیصله وسول چي د عثمان ﷜ بدله به اخیستل کیږي، په دغه وخت کي رسول الله ﷺ د یوې درختي لاندي ناست له ټولو مسلمانانو څخه ددې خبري عهد او اقرار واخیست چي د خپلو ځانونو په لګولو سره به د حضرت عثمان ﷜ دویني بدله اخلو، په صحابه کرامو کي یو یو سړی راتلی او د رسول الله ﷺ پر لاس مبارک باندي د لاس په اېښودو سره به یې بیعت کوی، کله چي ټولو خلګو بیعت وکړ نو رسول الله ﷺ په خپلو دواړو لاسو کي یو لاس د حضرت عثمان ﷜ د لاس قائم مقام کړ او د هغه لاس پر بل لاس وهلو سره د حضرت عثمان ﷜ له خوا یې بیعت وکړ، همدارنګه حضرت عثمان ﷜ ته خاص فضیلت حاصل سو او که هغه خپله په دغه وخت کي موجود وای او خپل لاس یې د رسول الله ﷺ پر لاس مبارک په وهلو سره بیعت کړی وی لکه څرنګه چي نورو خلګو وکړ نو هغه ته به دا شرف نه تر لاسه کیدی چي د رسول الله ﷺ لاس مبارک د هغه د لاس قائم مقام سو، او له دې کبله د هغه بیعت د ټولو خلګو تر بیعت افضل او اشرف سو، نو په دې سره د هغه نه موجودتیا د هغه په مرتبه کي د تاوان سبب نه سو بلکه د هغه د فضیلت او منقبت سبب جوړ سو، دځینو حضراتو وینا ده چي رسول الله ﷺ کوم لاس د حضرت عثمان ﷜ قائم مقام کړی وو هغه چپه لاس وو مګر زیات صحیح قول دادی چي هغه راسته لاس وو.

## باغیانو ته خطاب

﴿۵۸۱٦﴾: وَعَنْ ثُمَامَةَ بْنِ حَزْنٍ الْقُشَيْرِيِّ قَالَ شَهِدْتُ الدَّارَ حِينَ أَشْرَفَ

د حضرت ثمامه بن حزن قشیري رضی الله عنه څخه روایت دی چې زه د حضرت عثمان رضی الله عنه په کور کې هغه وخت حاضر سوم چې باغیانو د هغه محاصره کړې وه ،

عَلَيْهِمْ عُثْمَانُ فَقَالَ أَنْشُدُكُمْ بِاللَّهِ وَالْإِسْلَامِ هَلْ تَعْلَمُونَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ

حضرت عثمان رضی الله عنه ښکاره سو او هغه خلکو ته چې دده وژل يې غوښتل وويل زه د خدای او اسلام واسطه درکولو سره ستاسو څخه دا پوښتنه کوم تاسو ته به دا خبره خو معلومه وي کله

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدِمَ الْمَدِينَةَ وَلَيْسَ بِهَا مَاءٌ يُسْتَعْذَبُ غَيْرَ بِئْرِ رُومَةَ

چې رسول الله ﷺ په هجرت مدينې ته تشريف راوړی هغه وخت په مدينه کې د رومه د څاه څخه پرته د خوږو اوبو بل څاه نه وو ،

فَقَالَ مَنْ يَشْتَرِي بِئْرَ رُومَةَ فَيَجْعَلَ دَلْوَهُ مَعَ دِلَاءِ الْمُسْلِمِينَ بِخَيْرٍ لَهُ مِنْهَا

رسول الله ﷺ هغه وخت وفرمايل څوک سته چې د رومي څاه رانيسي او خپل سلواغه د مسلمانانو د سلواغو سره په څاه کې واچوي ، او د هغه په ثواب کې به رانيونکی ته

فِي الْجَنَّةِ فَاشْتَرَيْتُهَا مِنْ صُلْبِ مَالِي فَأَنْتُمُ الْيَوْمَ تَمْنَعُونِي أَنْ أَشْرَبَ منها

جنت ورکول کيږي ، ما دا څاه په خپل خالص او اصلي مال سره رانيوی او نن تاسو د دغه څاه د اوبو څښلو څخه ما منع کوئ

حَتَّى أَشْرَبَ مِنْ مَاءِ الْبَحْرِ فَقَالُوا اللَّهُمَّ نَعَمْ فَقَالَ أَنْشُدُكُمْ بِاللَّهِ

تر دې چې زه د درياب اوبه څښم ، خلکو وويل :هو ، اې الله ! موږ په دې خبريو بيا يې وفرمايل : زه تاسو ته د الله جل جلاله

وَالْإِسْلَامِ هَلْ تَعْلَمُونَ أَنَّ الْمَسْجِدَ ضَاقَ بِأَهْلِهِ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

او اسلام واسطه درکولو سره پوښتنه کوم چې تاسو ته دا معلومه ده چې د مدينې مسجد د لمونځ کونکو د زياتوب په سبب تنګ سو نو رسول الله ﷺ وفرمايل :

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يَشْتَرِي بُقْعَةَ آلِ فُلَانٍ فَيَزِيدَهَا فِي الْمَسْجِدِ بِخَيْرٍ له

داسي څوک سته چي د فلاني سړي د اولاد مځکه رانيسي او هغه په مسجد کي ګډه کړي او مسجد پراخ کړي، د هغه د ثواب په بدله کي به تر دې ښه مځکه ورکول سي

مِنْهَا فِي الْجَنَّةِ فَاشْتَرَيْتُهَا مِنْ صُلْبِ مَالِي فَأَنْتُمُ الْيَوْمَ تَمْنَعُونِي أَنْ أُصَلِّيَ

په جنت کي، ما هغه مځکه په خپل خالص مال سره رانيول، او نن تاسو ما په دغه مسجد کي

فِيهَا رَكْعَتَيْنِ قَالُوا اللَّهُمَّ نَعَمْ قَالَ أَنْشُدُكُمُ اللَّهَ وَالْإِسْلَامَ هَلْ تَعْلَمُونَ

دوو رکعته لمونځ کولو څخه منع کوئ، خلکو ويل هو، اې الله! موږ ددې څخه خبر يو، بيا حضرت عثمان رضی الله عنه وفرمايل: زه ستاسو څخه د الله جل جلاله او اسلام په حق پوښتنه کوم ايا تاسو ددې څخه خبر ياست؟

أَنِّي جَهَّزْتُ جَيْشَ الْعُسْرَةِ مِنْ مَالِي قَالُوا اللَّهُمَّ نَعَمْ قَالَ أَنْشُدُكُمُ اللَّهَ

چي ما د جيش عسره سامان په خپل مال سره برابر کړ، خلکو وويل هو، اې الله! موږ په دې خبر يو، بيا حضرت عثمان رضی الله عنه وويل: زه تاسو ته د خداى

وَالْإِسْلَامَ هَلْ تَعْلَمُونَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ عَلَى ثَبِيرِ مَكَّةَ

او اسلام واسطه درکوم او دا پوښتنه در څخه کوم ايا تاسو ددې څخه خبر ياست چي رسول الله صلی الله علیه وسلم د مکې پر ثبير غونډۍ ولاړ وو

وَمَعَهُ أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ وَأَنَا فَتَحَرَّكَ الْجَبَلُ حَتَّى تَسَاقَطَتْ حِجَارَتُهُ بِالْحَضِيضِ

او ابوبکر رضی الله عنه او عمر رضی الله عنه هم ورسره وه، غره د رسول الله صلی الله علیه وسلم د وجود مبارک پر ځان باندي ليدو

فَرَكَضَهُ بِرِجْلِهِ قَالَ اسْكُنْ ثَبِيرُ فَإِنَّمَا عَلَيْكَ نَبِيٌّ وَصِدِّيقٌ وَشَهِيدَانِ قَالُوا

سره د خوښي څخه حرکت پيل کړ، تر دې چي د هغه ډبري پر مځکه لوېدلې، رسول الله صلی الله علیه وسلم غر په لغته وواهه او وه يې فرمايل: اې ثبير! کرار سه حرکت مه کوه پر تا يو نبي، يو صديق او دوه شهيدان دي، خلکو وويل:

اللَّهُمَّ نَعَمْ قَالَ اللَّهُ أَكْبَرُ شَهِدُوا وَرَبِّ الْكَعْبَةِ أَنِّي شَهِيدٌ ثَلَاثًا. رواه الترمذي والنسائي والدار قطني.

اې الله! دا صحيح ده، عثمان رضی الله عنه وويل الله اکبر، خلکو ريښتوني شاهدي ورکړه او د کعبي په رب دي مي قسم وي چي زه شهيد يم، درې واره يې دا الفاظ وفرمايل. ترمذي، نسائي او دار قطني.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۸۵، رقم: ۳۷، والنسائي ۶\۲۳۵، رقم: ۳۶۰۸، والدار قطني ۴\۱۹۶، رقم۲

**د لغاتو حل**: يستعذب: اي يعد عذبا اي حلوا . ثبير: جبل بمكة (په مكه كي يو غر)، ركض: اي ضربه.

**تشريح**: بئر رومه، يعني د رومه څاه، د مدينې منورې د هغه لوی څاه نوم دی چي په وادي عقيق کي د مسجد قبلتين شمال خوا ته واقع دی، ددغه څاه اوبه ډېري خوږې او پاکي دي، په دې مناسبت چي د رسول الله ﷺ د زيري سره سم ددغه څاه رانيولو او وقف کولو په سبب د حضرت عثمان رضي الله عنه جنتي کېدل ثابت سول، ددغه څاه يو نوم بئر جنت يعني د جنت په څاه سره هم مشهور دی، په هغه زمانه کي حضرت عثمان رضي الله عنه دغه څاه په يو لک درهم رانيولی وو .

او خپله سلواغه د مسلمانانو سلواغه وګرځوم، دا د وقف څخه کنايه ده يعني کوم څوک چي دغه څاه رانيسي او خپل ذاتي ملکيت يې ونه ګرځوي بلکه د عامي ګټي لپاره يې وقف کړي لکه څرنګه چي خپله هغه سړی ددغه څاه څخه ګټه ترلاسه کوي، ددې څخه معلومه سول چي د سقايات (يعني څاه، تالاب ، حوض او داسي نورو شيانو) وقف کول جائز دي، او دا چي وقف سوی شی د وقف کونکي د ملکيت څخه وځي .

هو ، اې الله! ددغه الفاظو په ذريعه هغه خلګو د حضرت عثمان رضي الله عنه تصديق وکړ چي تاسو څه واياست د هغه په صداقت کي موږ ته د ذرې په اندازه شک نسته، تر دې مخکي د اللهم، لفظ راوړل د الله جل جلاله په نامه سره د برکت تر لاسه کولو لپاره هم دی او په خپله خبره کي د زور پيدا کولو لپاره هم دی .

د فلاني سړي د اولاد څخه مراد د انصارو سره تعلق لرونکي د يوې کورنۍ هغه خلک وه چي د مسجد نبوي سره نژدې پراته وه او دهغوی په ملکيت کي يوه داسي مځکه وه چي په مسجد نبوي کي په شاملولو سره مسجد شريف پراخ کېدی، نو رسول الله ﷺ صحابه کرام متوجه کړل چي کوم څوک توان لري چي دا مځکه په رانيولو سره په مسجد کي د شاملولو لپاره وقف کړي نو حضرت عثمان غني رضي الله عنه د رسول الله ﷺ د غوښتني سره سم هغه مځکه په شل يا پنځه ويشت زره درهمه رانيول او په مسجد نبوي کي د شاملولو لپاره يې وقف کړل، د مسجد نبوي اصل جوړښت د رسول الله ﷺ په زمانه کي سوی وو او د رسول الله ﷺ د هجرت په لومړني کال له صحابه کرامو سره په خپل لاس مبارک سره د دغه مسجد جوړښت وکړ، بيا دهجرت په اووم کال رسول الله ﷺ په دغه مسجد کي په زياتوب کولو سره مربع شکل يې ورکړ ، هغه وخت ددغه مسجد دېوالونه د خښتو وه او بام يې د خرماد څانګو او بلګو څخه جوړ سوی وو او دهغه ستني د خرماو پر تنو مشتمل وې، د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د خلافت په زمانه کي په دغه

مسجد كي پراخي ونه سول ، بيا په ۱۷ هجري كال كي حضرت عمر رضی اللہ عنہ ددغه مسجد جوړښت او زياتوب وكړ ، ددې څخه وروسته په ۲۹ هجري كي حضرت عثمان رضی اللہ عنہ د نوي سره جوړ كړ او په پراخوالي كي يې هم زياتوب وكړ، هغه د مسجد دېوال او ستني په نقش لرونكو ډبرو او چونې سره جوړ كړل او بام يې د لرګيو څخه جوړ كړ، د حضرت عثمان رضی اللہ عنہ څخه وروسته خليفه ګانو او پاچاهانو په خپل خپل دور كي زياتوب كوي تر دې چي په ۱۲۶۵ هجري كال كي سلطان عبدالحميد عثماني په نوې نقشه سره ددغه مسجد ستر جوړښت وكړ او بيا ددغه جوړښت دوهم وار تجديد او پراخوالی په ۱۳۷۲هجري كال كي د شاه ابن مسعود مرحوم په حكم سره وسو.

او دوه (حقيقي) شهيدان دي، يعني رسول الله ﷺ وړاند وينه وفرمايل چي دغه وخت دلته پر غره باندي كوم څلور كسان موجود دي په هغو كي زما او د ابوبكر رضی اللہ عنہ څخه ماسوا دوه كسان يعني عمر او عثمان رضی اللہ عنہ ته به حقيقي شهادت تر لاسه سي نو دغه دواړه حضرات په حقيقي معنی كي شهيدان سول، چي حضرت عمر رضی اللہ عنہ خو د وږونكې حملې په نتيجه كي د خنجر په زخم سره شهادت تر لاسه كړ او حضرت عثمان رضی اللہ عنہ د باغيانو په كور كي ننوتلو سره په ډېره بې رحمي سره شهيد كړل سو ، نو د حديث دغه الفاظ ددې خبري خلاف نه دي چي شهادت حكمي رسول الله ﷺ او ابوبكر صديق رضی اللہ عنہ ته هم تر لاسه سو ځكه چي د رسول الله ﷺ مرګ هغه زهرو په اثر سره سوی دي چي رسول الله ﷺ ته ډېر وخت مخكي د خيبر د غزا په وخت كي يوې يهودۍ ښځي د پسه په غوښو كي وركړي وه او د حضرت ابوبكر صديق رضی اللہ عنہ مرګ د هغه مار د زهرو په اثر سره سوی وو چي د هجرت د سفر په دوران كي د ثور په غار كي يې چيچلی وو .

د الله اكبر نعره يې وكړل، يعني حضرت عثمان رضی اللہ عنہ تر دغه وخت مخكي الله اكبر وويل او بيا وروسته يې ذكر سوي الفاظ وفرمايل، او دغه الله اكبر ويل پر خپلو هغه باغيانو او دښمنانو باندي د زيات حجت قائمولو په نيت هم وو او پر دې امر اظهار تعجب هم وو چي دغه خلك يوې خوا ته زما د خبرو تصديق كوي او په خپله ژبه سره هغه حقائق مني چي د هغه څخه زما منقبت څرګنديږي او بلې خوا ته په خپلو مفسدانه او باغيانه كړنو كي لګيدلي دي او د فتنې او فساد خپرولو او زما هلاكولو لپاره د خپلو عزائمو څخه منع كېدو ته تيار نه دي .

## د حق ويني پيشګوئي

﴿۵۸۱۷﴾ : وَعَنْ مُرَّةَ بْنِ كَعْبٍ قَالَ سَمِعْتُ مِنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت مرة بن كعب رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه د فتنو په ذكر كولو كي

وَذَكَرَ الْفِتَنَ فَقَرَّبَهَا فَمَرَّ رَجُلٌ مُقَنَّعٌ فِي ثَوْبٍ فَقَالَ هَذَا يَوْمَئِذٍ عَلَى الْهُدَى

اوريدلي دي او هغه يې ډيرې نږدې وښودلې، په دې وخت كې يو سړى چې په جامه كې نغښتى وو د هغه په ليدو سره رسول الله ﷺ وفرمايل: دغه سړى به په هغه ورځو كې پر سيده لاروي،

فَقُمْتُ إِلَيْهِ فَإِذَا هُوَ عُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ قَالَ فَأَقْبَلْتُ عَلَيْهِ بِوَجْهِهِ فَقُلْتُ هَذَا

د مره بن كعب رضي الله عنه بيان دى چې د رسول الله ﷺ د الفاظو اوريدو سره زه ولاړ سوم او هغه پسي ولاړم نو هغه حضرت عثمان رضي الله عنه وو، بيا ما د حضرت عثمان رضي الله عنه مخ رسول الله ﷺ ته كړ او پوښتنه مي وكړه ايا دا سړى به پر سيده لاروي،

قَالَ نَعَمْ. رواه الترمذي وابن ماجه وقال الترمذي هذا حديث حسن صحيح

رسول الله ﷺ وفرمايل: هو، ترمذي او ابن مجه ترمذي ويلي دي دا حديث حسن صحيح دى.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۸۶، رقم: ۳۷۰۴، وابن ماجه ۱\۴۱، رقم: ۱۱

**د لغاتو حل**: قربها: اي قرب النبي ﷺ الفتن يعني وقوعها.

## د خلافت پيشګوئي

﴿۵۸۱۸﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَا عُثْمَانُ إِنَّهُ لَعَلَّ اللَّهَ يُقَمِّصُكَ قَمِيصًا فَإِنْ أَرَادُوكَ عَلَى خَلْعِهِ فَلَا تَخْلَعْهُ لَهُمْ. رواه الترمذي وابن ماجه وقال الترمذي في الحديث قصة طويلة.

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دى چې رسول الله ﷺ يوه ورځ حضرت عثمان رضي الله عنه ته وفرمايل: كيداى سي الله جل جلاله تا ته يو قميص در واغوندي، (يعني د خلافت خلعت به در كړي) بيا كه خلك ستا څخه غوښتنه كوي چې قميص وكاږه نو ته د هغوى پر خواهش دا قميص مه كاږه. (يعني خلافت مه پريږده). ترمذي او ابن ماجه.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۸۷، رقم: ۳۷۰۵، وابن ماجه ۱۴ رقم: ۱۱۳.

**تشريح**: كه خلك، د هغه هدايت مطلب دا وو چې ځيني خلك به ستا د خلافت او حكومت په اړه باغيانه رويه اختيار كړي او ستا څخه به غوښتنه كوي چې د خلافت منصب پريږده نو د هغه

د خلافت واک خلګو په وینا کي هیڅکله مه راځه او محض د هغوی پر مفسدانه غوښتنه باندي د خلافت واک او اختیار د خپل لاس څخه مه لیري کوه ځکه چي هغه خلګ به پر باطل باندي وي او ته به پر حق یې، د هغوی مقصد به ستا د خلافت په ختمولو سره په ملت اسلامیه کي افتراق او انتشار خپرول وي، حال دا چي ستا خلافت به د حق او صداقت نښه وي، نو دا هغه حدیث وو چي حضرت عثمان رضي الله عنه یې د باغیانو او مفسدانو په مخکي د سر کښېښته کولو څخه منع کړ، هغه د ظالمانو په محاصره کي د شهادت تر لاسه کولو ته ترجیح ورکړ مګر د رسول الله ﷺ د هغه ارشاد په عملي کولو کي د زړهاوو غوښتنو او تېنګار سربېره د خلافت څخه منع اختیار نه کړل.

یو اوږده قصه ده، د دغه الفاظو په ذریعه ترمذي هغه پېښنو او واقعو ته اشاره کړې ده چي د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت په آخري زمانه کي رامنځته سوې او په هغه سره د اسلام شان او شوکت او د مسلمانانو اتفاق ته ډېر تاوان ورسېدی، په مصر کي د حضرت عثمان رضي الله عنه تاکل سوی والي (عبدالله ابن ابي سرح) پر خلاف په شکایت کولو سره مصریانو حضرت عثمان رضي الله عنه ته راتلل، د مصریانو په شکایت او د صحابه کرامو په مشوره سره حضرت عثمان رضي الله عنه، عبدالله ابن سرح معزول کړ او د محمد ابن ابي بکر رضي الله عنه په نوي والي تاکلو سره یې مصر ته ولیږی، د مروان د سازش په نتیجه کي د محمد ابن ابي بکر رضي الله عنه مصر ته نه رسېدل او د لاري په منځ کي راستنېدل، د دې په نتیجه کي د مصریانو او د هغوی په جګړه اخته کېدل د حضرت عثمان رضي الله عنه د سرای محاصره کول او بیا د هغوی په لاس د حضرت عثمان رضي الله عنه مظلومانه شهادت هغه دردناکه پېښې دي چي په دې اړه هغه دردناکه اوږده قصه مشتمل ده چي په اصل کي د اسلام او ملت اسلامیه په تاریخ کي د فتنې او فساد پیل منل کیږي، د دې تفصیل د تاریخ په کتابو کي کتلای سئ.

## مظلومانه شهادت

﴿۵۸۱۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ ذَكَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِتْنَةً فَقَالَ يُقْتَلُ فِيهَا هَذَا مَظْلُومًا لِعُثْمَانَ. رواه الترمذي و قال هذا حديث حسن غريب اسنادا.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د فتنې په ذکر کولو کي وفرمایل: په دغه فتنه کي به دا سړی په داسي حال قتل کړل سي چي مظلوم به وي، د دې ویلو سره رسول الله ﷺ عثمان رضي الله عنه ته اشاره وکړل، ترمذي ویلي دي دا حدیث حسن دی او د اسناد له خوا غریب دی

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۸۸، رقم: ۳۶۹۸.

## د صبر او استقامت ښکارندونه

﴿۵۸۲۰﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَهْلَةَ قَالَ قَالَ لِيْ عُثْمَانُ يَوْمَ الدَّارِ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ عَهِدَ إِلَيَّ عَهْدًا وَأَنَا صَابِرٌ عَلَيْهِ. رواه الترمذي وقال هذا حديث حسن صحيح.

د حضرت ابو سهله رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما ته حضرت عثمان رضي الله عنه په يوم الدار (هغه ورځ په کومه ورځ چي شهيد کړل سو) وويل، رسول الله ﷺ ما ته وصيت کړی وو (چي خلافت مه پرېږده) او زه پر هغه وصيت په صبر سره قائم يم،. ترمذي ويلي دي دا حديث حسن صحيح دی.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۸۳، رقم: ۳۶۹۸.

**تشريح**: د دار د ورځي څخه مراد هغه ورځ ده په کومه ورځ چي حضرت عثمان رضي الله عنه ته د مظلومانه شهادت دردناکه پېښه رامنځته سوې وه، دغه ورځي ته يوم الدار، يعني د کور ورځ په دې اعتبار ويل کيږي چي مفسدانو د حضرت عثمان رضي الله عنه د کور سخته محاصره کړې وه او د هغه محاصرې په دوران کي په کور ورننوتلو سره يې هغه شهيد کړ.

صبر او تحمل مي اختيار کړی دی، دغه الفاظ په حقيقت کي اشاره کوي که چيري رسول الله ﷺ وصيت نه وای کړی او حضرت عثمان رضي الله عنه غوښتلای نو د طاقت په ذريعه يې د مفسدانو خاتمه کولای سول، ځينو صحابه کرامو مشوره ورکړې وه چي تاسو د وخت خليفه ياست، د مسلمانانو ستر طاقت ستاسو تر شا دی د کور څخه دباندي راووځئ او ددغه مفسدانو پر خلاف توره پورته کړئ، دغه خلګ به ستاسو دمقابلې توان ونه لري مګر حضرت عثمان رضي الله عنه هغه مشوره قبوله نه کړل او د صبر او تحمل لمن يې ټينګه نيولې وه تر دې چي د مفسدانو په لاس شهيد سو. انا لله وانا اليه راجعون.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### مخالفينو ته مسكت جواب

﴿۵۸۲۱﴾: عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِاللهِ ابْنِ مَوْهَبٍ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ مِصْرَ

د حضرت عثمان بن عبدالله بن موهب رضي الله عنه څخه روايت دی چي يو مصری سړی

يُرِيْدُ حَجَّ الْبَيْتِ فَرَأَى قَوْمًا جُلُوسًا فَقَالَ مَنْ هٰؤُلَاءِ الْقَوْمُ قَالُوا هٰؤُلَاءِ

د حج په اراده راغلی ، هغه يو ځای يو ډله ناسته وليدل ، پوښتنه يې وكړه دا كوم خلک دي، خلكو ورته وويل دا

قُرَيْشٌ قَالَ فَمَنِ الشَّيْخُ فِيهِمْ قَالُوا عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ قَالَ يَا ابْنَ عُمَرَ إِنِّي

قريش دي ، هغه پوښتنه وكړه د دوی مشر څوک دی؟ خلكو ورته وويل عبدالله بن عمر رضي الله عنه، هغه سړی عبدالله بن عمر رضي الله عنه ته متوجه سو ورته وه يې ويل : اې ابن عمر! زه

سَائِلُكَ عَنْ شَيْءٍ فَحَدِّثْنِي هَلْ تَعْلَمُ أَنَّ عُثْمَانَ فَرَّ يَوْمَ أُحُدٍ قَالَ نَعَمْ قَالَ

ستا څخه د يو شي پوښتنه كوم ته د هغه جواب راكړه، ايا تا ته معلومه ده چي حضرت عثمان رضي الله عنه د احد په جنگ كي تښتيدلی وو؟ ابن عمر رضي الله عنه وويل هو داسي سوي وه، بيا هغه سړي

هَلْ تَعْلَمُ أَنَّهُ تَغَيَّبَ عَنْ بَدْرٍ وَلَمْ يَشْهَدْهَا قَالَ نَعَمْ قَالَ هَلْ تَعْلَمُ أَنَّهُ

پوښتنه وكړه : ايا تا ته معلومه ده چي عثمان رضي الله عنه د بدر د غزا څخه غائب وو او د بدر په جنگ كي نه وو شريک سوی، ابن عمر رضي الله عنه ورته وويل هو د بدر په جنگ كي هغه موجود نه وو، بيا هغه سړي پوښتنه وكړه تا ته معلومه ده چي

تَغَيَّبَ عَنْ بَيْعَةِ الرِّضْوَانِ فَلَمْ يَشْهَدْهَا قَالَ نَعَمْ قَالَ اللهُ أَكْبَرُ قَالَ ابْنُ

حضرت عثمان رضي الله عنه په بيعت رضوان كي هم نه وو شريک سوی او پر دې موقع غائب وو ،ابن عمر رضي الله عنه ورته وويل : هو هغه په بيعت كي هم شامل نه وو ، هغه سړی چي د ابن عمر رضي الله عنه څخه د درو سره خبرو تصديق واوريدی نو الله اكبر يې وويل ، بيا

عُمَرَ تَعَالَ أُبَيِّنْ لَكَ أَمَّا فِرَارُهُ يَوْمَ أُحُدٍ فَأَشْهَدُ أَنَّ اللّٰهَ عَفَا عَنْهُ وَغَفَرَ لَهُ

ابن عمر رضي الله عنه هغه ته وويل : اوس درته زه حقيقت حال بيانوم: د احد په ورځ د حضرت عثمان رضي الله عنه د تيښتي په اړه دا درته وايم چي الله تعالى د هغه دا قصور معاف کړ لکه په قرآن کريم کي دا آيت شريف دی: (ان الذين تولو منكم يوم التقى الجمعان.... سورة آل عمران) ،

وَأَمَّا تَغَيُّبُهُ عَنْ بَدْرٍ فَإِنَّهُ كَانَتْ تَحْتَهُ رقية بِنْتُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

او د بدر په ورځ د حضرت عثمان رضي الله عنه د غائب کيدو واقعه داده چي بي بي رقيه د رسول الله ﷺ

وَسَلَّمَ وَكَانَتْ مَرِيضَةً فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ لَكَ أَجْرَ

لور مبارکه او د حضرت عثمان رضي الله عنه ښځه په هغه زمانه کي ناروغه وه، رسول الله ﷺ د هغې د خيال ساتلو لپاره په مدينه کي پريښود او فرمايلي يې وه چي عثمان رضي الله عنه ته په بدر کي د

رَجُلٍ مِمَّنْ شَهِدَ بَدْرًا وَسَهْمَهُ وَأَمَّا تَغَيُّبُهُ عَنْ بَيْعَةِ الرِّضْوَانِ فَلَوْ كَانَ أَحَدٌ

حاضريدونکو شخه د يو سړي ثواب تر لاسه کيږي او د غنيمت د مال شخه به هم د يو سړي برخه ورکول کيږي، پاته سو په بيعت رضوان کي د عثمان رضي الله عنه غائب کيدل، نو د هغه وجه داوه که په

أَعَزَّ بِبَطْنِ مَكَّةَ مِنْ عُثْمَانَ لَبَعَثَهُ فَبَعَثَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

مکه کي د عثمان رضي الله عنه شخه زيات هر باعزت سړی وای نو رسول الله ﷺ به هغه مکې ته ليږلی وای چي د رسول الله ﷺ د لوري د مکې د کفارو سره خبري اتري وکړي ،

عُثْمَانَ وَكَانَتْ بَيْعَةُ الرِّضْوَانِ بَعْدَ مَا ذَهَبَ عُثْمَانُ إِلَى مَكَّةَ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ

عثمان رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په حکم سره مکې ته ولاړی او د هغه په نه شتون کي د بيعت رضوان پېښه رامنځته سوه، او د بيعت رضوان په وخت کي رسول الله ﷺ خپل راسته لاس پورته کړ او وه

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ الْيُمْنَى هَذِهِ يَدُ عُثْمَانَ فَضَرَبَ بِهَا عَلَى يَدِهِ قَالَ هَذِهِ لِعُثْمَانَ ثم قَالَ ابْنُ عُمَرَ اذْهَبْ بِهَا الْآنَ مَعَكَ. رواه البخاري.

هي ويل دا د حضرت عثمان رضي الله عنه لاس دی بيا پر هغه لاس يې بل لاس راتير کړ او وه يې فرمايل دا

دعثمان رضي الله عنه بيعت دی، ددې څخه وروسته ابن عمر رضي الله عنه وويل :ته زما بيان هغه سړي ته اوس ور وړسوه . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۷\ ۵۴، رقم: ۳۶۹۸.

**د لغاتوحل**: اذهب بها : اي بالكمات التي اجبت لک عن اسئلتک.

**تشريح**: د هغه دغه خبره الله جل جلاله معاف کړې ده، حضرت ابن عمر رضي الله عنه ددغه الفاظو په ذريعه دغه آيت کريمه ته اشاره وکړل :

إِنَّ الَّذِينَ تَوَلَّوْا مِنكُمْ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعَانِ إِنَّمَا اسْتَزَلَّهُمُ الشَّيْطَانُ بِبَعْضِ مَا كَسَبُوا وَلَقَدْ عَفَا اللَّهُ عَنْهُمْ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ حَلِيمٌ

ژباړه: بېله شکه په تاسو کې چې کومو خلکو شا کرځولې وه په کومه ورځ چې دواړې ډلې په خپلو کې مخامخ سوې ، ددې څخه ماسوا بله څه خبره نه وه چې هغوی ته شيطان لړزه ورکړل د هغوی د ځينو اعمالو په سبب او يقين وکړئ چې الله هغوی معاف کړل ، په تحقيق سره الله جل جلاله لوی مغفرت کوونکی او د لوی حلم خاوند دی .

په اصل کې داسې سوي وه چې د احد د غزا په ورځ رسول الله صلی الله علیه وسلم د صحابه کرامو يوه ډله چې په هغه کې حضرت عثمان رضي الله عنه هم وو پر يوه ډېره مهمه مورچه باندې درولې وه او هغوی ته يې حکم ورکړی وو چې دغه مورچه په هيڅ حالت کې خالي مه پرېږدئ او هر سړی دې پر خپل ځای اوسي ، مګر کله چې دښمن ماته وخوړل او هغوی وتښتېدل نو اسلامي مجاهدينو دهغوي تعاقب پيل کړ، ددښمن تېښته او دمجاهدينو په تعاقب سره په هغه مورچه کې ناستو خلکو دا وګڼل چې جنګ ختم سوی دی او دښمن په پوره توګه ماته خوړلې ده او بيا د هغه خزې اکثره مجاهدين هم د خزې په پرېښودو سره د تښتېدونکو دښمنانو تعقب وکړ او دهغوی د غنيمت د مال په جمع کولو کې بوخت سول، د تښتېدونکي دښمن هوښيار قومندان چې د هغه خزې اهميت ورته معلوم وو اوس چې هغه خزه يې خالي وليدل نو د خپل لښکر سره تقريبا د يو ميل فاصلې په قطع کولو سره د شا له خوا هغه خزې ته ورسېدل او د هغه ځای څخه په ښه کولو سره يې د اسلام پر مجاهدينو حمله وکړل، د شا له خوا د دښمن دغه ناڅاپه حملې د جګړې پله بدله کړل او فتح د مسلمانانو په لاس راتللو سره بېرته واخيستل سول، د خزې پرېښودل د رسول الله صلی الله علیه وسلم د حکم خلاف ورزي وه او د هغه مجاهدينو کوتاهي او کمزوري وه ، ځکه الله جل جلاله خبرداری ورکړ مګر په خپل فضل او کرم سره يې هغه کوتاهي هم ور معاف کړل ،

نو د حضرت عثمان ﷛ سره عناد کوونکو دغه پېښه د حضرت عثمان ﷛ د سپکاوی او تنقیص ذریعه جوړه کړل، حال دا چي اول خو الله ﷻ چي د دغه واقعې عفوه وفرمایل نو اوس نورو ته د نیوکي یا پېغور ورکولو څه حق پاته سو، دوهمه خبره داده چي په پېښه کي یوازي د حضرت عثمان ﷛ ذات ماخوذ نه وو دا چي پرېښودونکي ټول صحابه کرام په دې کي شامل وه کله چي کوتاهي وسول نو د ټولو څخه وسول او بیا چي عفوه وسول نو ټولو ته وسول، یوازي حضرت عثمان ﷛ ننبه کول غیر منصفانه خبره وه.

تا ته به هم هغه ثواب او برخه درکول کیږي، د رسول الله ﷺ مطلب دا وو چي د بدر په جګړه کي ستا ګډون نه کول د عذر او زما د حکم په وجه دی ځکه ته د دنیا او آخرت دواړو په اعتبار د هغه خلګو په حکم کي ګڼل کیږي کوم چي په دغه جګړه کي یې ګډون کړی دی، نو د حضرت عثمان ﷛ د بدر په غزا کي ګډون نه کول د هغه په حق کي هیڅکله د تاوان سبب نه سو او نه په دې وجه د هغه د تنقیص کولو چا ته حق دی، په دغه غزا کي د هغه عدم شرکت داسي دی لکه څرنګه چي د تبوک په غزا کي رسول الله ﷺ، حضرت علي ﷛ د خپلي کورنۍ د ساتني لپاره په مدینه کي پرې ایښی وو او هغه د اسلامي لښکر سره تبوک ته نه وو تللی، بیا هم دا خبره په یقیني توګه معلومه نه ده چي رسول الله ﷺ د بدر د غزا په غنیمت کي د حضرت عثمان ﷛ برخه ورکړل که یا.

بي بي رقیه ﷞ د رسول الله ﷺ په لوڼو مبارکو کي تر ټولو مشره لور وه، د بدر په غزا کي هغه ناروغه وه او رسول الله ﷺ، حضرت عثمان ﷛ ته حکم ورکړی وو چي هغه دي د بدر په غزا کي ګډون نه کوي بلکه د بي بي رقیه ﷞ د خبر لپاره دي په مدینه کي وي، د رسول الله ﷺ له حضرت عثمان ﷛ سره څومره تعلق وو او رسول الله ﷺ څومره ځیني راضي او خوشحاله وو د دې اندازه د دې څخه لګېدای سي چي رسول الله ﷺ خپله یوه لور د هغه په نکاح کړل او بیا په هغه ناروغۍ کي چي بي بي رقیه ﷛ وفات سول نو بله لور ام کلثوم ﷞ یې هم حضرت عثمان ﷛ ته په نکاح ورکړل، په دې سبب حضرت عثمان ﷛ د ذوالنورین په لقب سره مشهور سو، او بیا کله چي بي بي ام کلثوم ﷞ هم وفات سول نو رسول الله ﷺ فرمایلي وه که زما بله لور وای نو هغه به مي هم عثمان ﷛ ته په نکاح ورکړې وای، په یوه روایت کي چي طبراني نقل کړی دی رسول الله ﷺ دا هم وفرمایل: ما د عثمان ﷛ سره د خپلو دواړو لوڼو نکاح د وحي په ذریعه د الله ﷻ د حکم په راتللو سره کړې وه.

عثمان ﷛ یې مکې ته واستوی، حضرت عثمان ﷛ د دې لپاره استول سوی وو چي هغه

د رسول الله ﷺ له خوا د اهل مکه سره خبري وکړي او هغوی دې ته اماده کړي چې هغوی دي رسول الله ﷺ او مسلمانان د عمرې کولو څخه نه منع کوي، د کوم حکمت په وجه چې حضرت عثمان رضی الله عنه ددغه کار لپاره تاکل سوی وو هغه صحیح ثابت سو، په مکه کې اسلام او د اهل اسلام معاندینو او مخالفینو ته د حضرت عثمان رضی الله عنه پر خلاف د داسې اقدام کولو جرئت ونه سو چې په هغه سره ځینو صحابه کرامو د خطرې اظهار کړی وو، د حضرت عثمان رضی الله عنه خپلوانو او قریبانو په مکه کې د هغه د راتګ په خبرېدو سره د هغه ډېر ښه استقبال وکړ، پر سپرلۍ باندې یې کښېنوی او د جلوس په شکل یې بوتلی، هغه ټولو خلګو دا اعلان هم وکړ چې عثمان زموږ ګران میلمه او زموږ په پناه کې دی، څوک دې ورسره د تعرض جرئت نه کوي نه یوازې دا بلکه هغه خلګو حضرت عثمان رضی الله عنه ته وویل: تاسو د عمرې په نیت د کعبې شریفې طواف هم کولای سئ، هیڅوک تاسو نه منع کوي، مګر عثمان رضی الله عنه د هغوی دغه وړاندیز رد کړ او وه یې ویل: نه، زه د رسول الله ﷺ څخه ماسوا د هغه په غیر موجودتیا کې یوازې طواف هیڅکله نه کوم.

د عثمان رضی الله عنه مکې ته تللو څخه وروسته، یعني د بیعت رضوان پېښېده د حضرت عثمان رضی الله عنه په موجودتیا کې نه وه پېښه سوې، چې په هغه کې د هغه د ګډون یا نه ګډون بحث راپورته سي، صورت حال دا وو چې کله حضرت عثمان رضی الله عنه مکې ته ورسېدی او هلته خبري پیل سوې نو هغه خبري اوږدې سوې او د حضرت عثمان رضی الله عنه په ستنېدو کې ځنډ وسو، په دې سره په مسلمانانو کې بې ارامي پیدا سول او دا خبر هم راغلی چې حضرت عثمان رضی الله عنه نه یوازې دا چې په دغه کار کې ناکام سوی دی بلکه اهل مکه تر دې حده شر ته اماده دي چې هغوی د خپل لښکر په جمع کولو سره پر مسلمانانو د حملې کولو په نیت حدیبیې ته را روان دي بلکه یو خبر دا هم راغلی چې هغوی حضرت عثمان رضی الله عنه شهید کړی دی، له دې کبله رسول الله ﷺ ټول صحابه کرام راجمع کړل او د دین دښمنانو په مقابله کې تیاري یې پیل کړل، رسول الله ﷺ د یوې درختې لاندې د یوه یوه مسلمان څخه دا بیعت واخیست چې هیڅوک به د دغه ځایه نه تښتي بلکه د خپل سر په بازي لګولو سره به د دښمن مقابله کوي او که عثمان رضی الله عنه په حقیقت کې وژل سوی وي نو د هغه د ویني بدله به اخلي.

دا له ځان سره یوسه، یعني د عثمان رضی الله عنه په اړه که ته زما څخه د معلومات جمع کول او وړل غواړې نو زما دا خبري د ځان سره یوسه، ستا سوالونه او زما جواب که چا ته تا وان رسولای سي نو تاسو ته تقصان رسیدای سي نه موږ ته، یا ددغه الفاظو څخه د ابن عمر رضی الله عنه مراد دا وو که ته د حق په پلټنه کې یې او د ریښتیا خواهش لرونکي یې نو ما په تفصیل سره کوم حقائق چې ستا

مخکي بیان کړې دي هغه د ځان سره په زړه او د دماغ کي یوسه او د حضرت عثمان رضی الله عنه په حق کي چي ته کوم بدخیالات او بدګماني لري د هغه څخه خپل ذهن پاک کړه.

## د عثمان رضی الله عنه ثابت قدمي

﴿۵۸۲۲﴾: وَعَنْ أَبِي سَهْلَةَ مَوْلَى عُثْمَانَ قَالَ جَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عثمان رضی الله عنه د ازاد کړل سوي غلام ابوسهله رضی الله عنه څخه روایت دی چي (یوه ورځ) رسول

يُسِرُّ إِلَى عُثْمَانَ وَلَوْنُ عُثْمَانَ يَتَغَيَّرُ فَلَمَّا كَانَ يَوْمُ الدَّارِ قُلْنَا أَلاَ نُقَاتِلُ؟ قَالَ

الله ﷺ د حضرت عثمان رضی الله عنه سره پټي خبري کولې او د خبرو اوریدو سره د حضرت عثمان رضی الله عنه د مخ رنګ متغیر کیدی، بیا چي هغه ورځ راغلل چي حضرت عثمان رضی الله عنه په خپل کور کي خلکو محاصره کړ نو موږ عثمان رضی الله عنه ته وویل ایا موږ ددې خلکو سره وجنګیږو نو عثمان رضی الله عنه وویل:

لاَ إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَهِدَ إِلَيَّ أَمْرًا فَأَنَا صَابِرٌ نَفْسِيْ عَلَيْهِ.

نه، ځکه چي رسول الله ﷺ ما ته وصیت کړی دی او زه پر هغه صابر او شاکر یم. بیهقي

**تخریج**: رواه البيهقي في دلائل النبوة.

## د امیر اطاعت

﴿۵۸۲۳﴾: وَعَنْ أَبِي حَبِيْبَةَ أَنَّهُ دَخَلَ الدَّارَ وَعُثْمَانُ مَحْصُوْرٌ فِيْهَا وَأَنَّهُ سَمِعَ

د حضرت ابو حبیبه رضی الله عنه څخه روایت دی چي زه د حضرت عثمان رضی الله عنه په سرای کي داخل سوم، کله چي خلکو د هغه محاصره کړې وه او حضرت عثمان رضی الله عنه بند کړل سوی وو، ما واوریدل چي

أَبَا هُرَيْرَةَ يَسْتَأْذِنُ عُثْمَانَ فِي الْكَلاَمِ فَأَذِنَ لَهُ فَقَامَ فَحَمِدَ اللهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ

ابوهریره رضی الله عنه حضرت عثمان رضی الله عنه څخه د څه ویلو اجازه غواړي، حضرت عثمان رضی الله عنه اجازه ورکړل، ابوهریره رضی الله عنه ولاړ سو اول یې د خدای حمد او ثناء وویل

ثُمَّ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ إِنَّكُمْ سَتَلْقَوْنَ بَعْدِيْ

بیا یې وویل: ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چي زما څخه وروسته به تاسو په

فِتْنَةً وَاخْتِلاَفًا أَوْ قَالَ اِخْتِلاَفًا وَفِتْنَةً فَقَالَ لَهُ قَائِلٌ مِنَ النَّاسِ فَمَنْ لَنَا

فتنو او په خپلو کي په جګړو اخته سئ ، ددې اوریدو سره یو سړي وویل :

يَا رَسُولَ اللهِ أَوْ مَا تَأْمُرُنَا بِهِ قَالَ عَلَيْكُمْ بِالْأَمِيْرِ وَأَصْحَابِهِ وَهُوَ يُشِيْرُ إِلَى عُثْمَانَ بِذٰلِكَ . رواهما البيهقي في دلائل النبوة.

اې دالله رسوله ! دغه وخت به موږ د چا پیروي کوو، یا دا چې په هغه زمانه کي موږ ته د څه کولو حکم راکوئ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: د امیر او د هغه د دوستانو اطاعت پر تاسو لازم دی، د امیر لفظ ویلو سره رسول الله ﷺ حضرت عثمان رضی الله عنه ته اشاره وکړ. بیهقي.

**تخریج**: رواه البیهقي في دلائل النبوة.

**تشریح**: حضرت عثمان رضی الله عنه ته اشاره وکړه، یعني حضرت ابوهریره رضی الله عنه د دغه حدیث څخه دا ثابته کړل چې دغه وخت د مسلمانانو امیر حضرت عثمان رضی الله عنه دی ځکه په هر حالت کي د هغه اطاعت پر هر مسلمان لازم دی.

**د حضرت عثمان غني رضی الله عنه مختصر حالات** : سیدنا عثمان غني رضی الله عنه د عام فیل په شپږم کال پیدا سو، د اسلام د دعوت په پیل کي په ایمان برخمن سوی وو او سیدنا ابوبکر صدیق رضی الله عنه په لاس یې اسلام قبول کړ، تر هغه وخته پوري نبي کریم ﷺ دارارقم ته نه وو تللی، حضرت عثمان رضی الله عنه دوه واره هجرت وکړ، لومړی حبشې ته او بیا مدینې ته، نوموړی میانه قده، سور او سپین رنګ، ښکلې او ګڼه ږیره او د ښکلي رنګ خاوند وو، د سیدنا عمر فاروق رضی الله عنه څخه وروسته دریم خلیفه سو او د محرم په لومړۍ نېټه په ۲ هجري کال کي یې د خلافت اقتدار سنبال کړ، د سخت انتشار په دوران کي په ۳۵ هجري کال کي د ذي الحجې په اتلسمه نېټه د مصر د باغیانو او مفسدانو له خوا یو سړي اسود بحنسي د خپلو څو ملګرو سره په محاصره کولو حضرت عثمان رضی الله عنه هغه وخت شهید کړ کله چې د کلام الله په تلاوت کي بوخت وو، ځینو حضراتو د حضرت عثمان رضی الله عنه د قاتل نوم بل څه ذکر کړی دی، تر درو ورځو پوري د حضرت عثمان رضی الله عنه مړی بېله کفن او دفن پروت وو، په پای کي د ځینو صحابه کرامو په هڅه سره تر درو ورځو وروسته د شپې په وخت کي د ماښام او ماخستن په منځ کي تدفین په عمل کي راغلی، حضرت جبیر ابن مطعم رضی الله عنه د جنازې لمونځ ورکړ، بېله غسل ورکولو د هغه په جامو کي یې دفن کړ، په هغه ورځ د حضرت عثمان رضی الله عنه عمر ۸۲ کاله یا د یوه قول مطابق ۸۸ کاله وو، د حضرت عثمان رضی الله عنه د خلافت زمانه یو څو ورځې کم دوولس کاله وو، او دصحابه کرامو او تابعینو یوې لوی ډلې د نوموړي څخه احادیث نبوي روایت کړي دي.

# بَابُ مَنَاقِبِ هٰؤُلاَءِ الثَّلٰثَةِ رضي الله عنهم

## (د دغه درو (يعني خلفاء ثلاثه) رضي الله عنهم د مناقبو بيان)

مخکي د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه پر مناقبو باندي مشتمل حديثونه نقل سول بيا د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د مناقبو سره اړوند حديثونه نقل کړل سو ، تر دې وروسته يو بېل باب قائم کړل سو او هغه حديثونه پکښي نقل سول چي په هغو کي د حضرت ابوبکر او حضرت عمر رضي الله عنهما مناقب يو ځای ذکر وه، بيا د حضرت عثمان رضي الله عنه د مناقبو حديثونه د تېر سوي باب لاندي نقل کړل سول او ځيني داسي حديثونه هم منقول دي چي په هغو کي د درو سره حضراتو يعني ابوبکر صديق، عمر فاروق او سيدنا عثمان رضي الله عنهم مناقب يو ځای مذکور دي نو د دغه حديثونو د نقل کولو لپاره ذکر سوی باب قائم سوی دی .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### يو نبي، يو صديق او دوه شهيدان

﴿۵۸۲۴﴾: عَنْ اَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَعِدَ أُحُدًا وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ وَعُثْمَانُ فَرَجَفَ بِهِمْ فضربه برجله فَقَالَ اثْبُتْ أُحُدُ فَإِنَّمَا عَلَيْكَ نَبِيٌّ وَصِدِّيقٌ وَشَهِيدَانِ. رواه البخاري.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي يوه ورځ نبي کريم صلى الله عليه وسلم ابوبکر، عمر او عثمان رضي الله عنهم د احد پر غره وختل ، د احد غره حرکت پيل کړ، رسول الله صلى الله عليه وسلم غر په پښه ووهی او وه يې فرمايل اې احد ! کرار سه پر تا يو نبي ، يو صديق او دوه شهيدان ولاړ دي . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۴۲، رقم: ۳۶۸۶.

### د جنت زيری

﴿۵۸۲۵﴾: وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْاَشْعَرِيِّ قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوموسی اشعري رضي الله عنه څخه روايت دی چي زه د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره

فِي حَائِطٍ مِنْ حِيطَانِ الْمَدِينَةِ فَجَاءَ رَجُلٌ فَاسْتَفْتَحَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ

د مديني په يو باغ کي وم ، يو سړی راغلی او د هغه باغ د دروازې خلاصولو طلب يې وکړ،

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ افْتَحْ لَهُ وَبَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ فَفَتَحْتُ لَهُ فَإِذَا أَبُو بَكْرٍ فَبَشَّرْتُهُ بِمَا

رسول الله ﷺ وفرمايل: دروازه خلاصه کړئ او راتلونکي سړي ته د جنت زيری ورکړئ ، ما دروازه خلاصه کړه وه مي ليدل چي هغه ابوبکر ﷛ وو ، څرنګه چي رسول الله ﷺ فرمايلي وه ما

قَالَ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَمِدَ اللهَ ثُمَّ جَاءَ رَجُلٌ فَاسْتَفْتَحَ

هغه ته د جنت زيری ورکړ، پر دې خبره ابوبکر ﷛ د خدای ﷻ حمد او ثناء او شکر ادا کړ، بيا يو بل سړی راغلی او د دروازې خلاصولو طلب يې وکړ،

فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ افْتَحْ لَهُ وَبَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ فَفَتَحْتُ لَهُ فَإِذَا هُوَ

رسول الله ﷺ وفرمايل : دروازه ور خلاصه کړئ او راتلونکي ته د جنت زيری ورکړئ، ما چي دروازه خلاصه کړه نو

عُمَرُ فَأَخْبَرْتُهُ بِمَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَمِدَ اللهَ ثُمَّ اسْتَفْتَحَ

عمر ﷛ مي وليدی هغه مي د رسول الله ﷺ د زيري څخه خبر کړ هغه د خدای ﷻ حمد ،ثناء او شکر ادا کړ ، بيا يو بل سړي د دروازې خلاصولو طلب وکړ،

رَجُلٌ فَقَالَ لِي افْتَحْ لَهُ وَبَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ عَلَى بَلْوَى تُصِيبُهُ فَإِذَا عُثْمَانُ

رسول الله ﷺ وفرمايل : دروازه ور خلاصه کړه او د جنت زيری ورکړه او د بلا او مصيبت څخه يې خبر کړه چي ده ته به ورسيږي ، ما دروازه ور خلاصه کړه نو هغه حضرت عثمان ﷛ وو ،

فَأَخْبَرْتُهُ بِمَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَمِدَ اللهَ ثُمَّ قَالَ اللهُ الْمُسْتَعَانُ. متفق عليه.

ما هغه د رسول الله ﷺ د ارشاد څخه خبر کړ ، هغه د خدای حمد ،ثناء او شکر ادا کړ ،بيا يې وويل : د الله ﷻ څخه پر هغه مصيبتونو مرسته غواړم . بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۷\۴۳، رقم: ۳۶۹۳، ومسلم ۴\۱۸۶۷، رقم: ۲۸-۲۴۰۳.

**د لغاتو حل**: حیطان: اي بستان (باغ).

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د اصحاب ثلاثه ذکر

﴿۵۸۲۶﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كُنَّا نَقُولُ وَرَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَيٌّ أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ وَعُثْمَانُ رضي الله عنهم. رواه الترمذي.

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه روایت دی چي موږ به د رسول الله ﷺ په ژوند کي دا ویل: ابوبکر ،عمر او عثمان، الله جل جلاله دي ددوی ټولو څخه راضي سي. ترمذي

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۵۸۸، رقم: ۳۷۰۷.

**تشریح**: مطلب دا چي درو سره صحابه کرامو د رسول الله ﷺ په دربار کي تر ټولو زیات تقرب او درجه درلودل او دخپل دغه حیثیت په وجه په ټولو صحابه کرامو کي د غوره او یوازیني شهرت خاوندان وه، د صحابه کرامو په مجلسو کي به زیات وختونه د دوی خبري کېدلې، د دوی د صفتو او ښېګڼو یادونه به کېدل او د اسلام او مسلمانانو په اړه چي به د یوې مسئلې او معاملې یادونه کېدل نو تر ټولو مخکي به ددغه درو کسانو یادونه کېدل او کله چي به ددغه درو کسانو ذکر کېدی نو د دوی نومونه به په دغه ترتیب سره اخیستل کیدل چي مخکي د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه بیا د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه او بیا به د حضرت عثمان غني رضی الله عنه نوم یادېدی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د خلافت ترتیب

﴿۵۸۲۷﴾: عَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أُرِيَ اللَّيْلَةَ رَجُلٌ

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: نن شپه یو صالح سړی ما ته په

صَالِحٌ كَانَ أَبَا بَكْرٍ نِيطَ بِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنِيطَ عُمَرُ بِأَبِي بَكْرٍ

خوب کي وېښو دل سو، ګويا ابوبکر رضي الله عنه پر رسول الله ﷺ متصل کړل سو او عمر رضي الله عنه د ابوبکر رضي الله عنه سره متصل کړل سوي دي

وَنِيطَ عُثْمَانُ بِعُمَرَ قَالَ جَابِرٌ فَلَمَّا قُمْنَا مِنْ عِنْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

او عثمان رضي الله عنه د حضرت عمر رضي الله عنه سره متصل کړل سوي دی، د جابر رضي الله عنه بيان دی چي موږ د رسول الله ﷺ څخه ولاړ سو او روان سو،

وَسَلَّمَ قُلْنَا أَمَّا الرَّجُلُ الصَّالِحُ فَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَمَّا نوط

نو موږ دا رايه قائمه کړه چي د صالح سړي څخه رسول الله ﷺ مراد دی او متصل کېدل يو په بل

بَعْضِهِمْ بِبَعْضٍ فَهُمْ وُلَاةُ الْأَمْرِ الَّذِي بَعَثَ اللَّهُ بِهِ نَبِيَّهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رواه ابوداؤد.

پسې نو د دوی څخه مراد خلافت دی، چي پر هغه الله جل جلاله رسول الله ﷺ ماموره کړی دی. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۳۰/۵، رقم: ۴۶۳۶.

**د لغاتو حل**: نيط: اي علق (متصل)

=========

# بَابُ مَنَاقِبِ عَلِيِّ بْنِ اَبِيْ طَالِبٍ رضي الله عنه

## (د حضرت علي رضي الله عنه بن ابي طالب د مناقبو بيان)

د سيدنا حضرت علي رضي الله عنه مناقب او فضائل بې شمېره دي، څومره زيات حديثونه چي د حضرت علي رضي الله عنه په تعريف او توصيف کي نقل سوي دي دومره حديثونه په صحابه کرامو کي د هيچا په اړه منقول نه دي، که څه هم په دې کي ډېر روايتونه موضوع (يعني دځان څخه جوړ سوي) هم دي، حضرت شيخ مجدالدين شيرازي رحمه الله د هغه ځينو روايتونو په اړه کوم چي د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په مناقبو کي نقل سوي دي، دا وضاحت کړی دی چي دا موضوع روايتونه دي ځکه ددې پر بې اصل او بې بنياده کېدو باندي معمولي عقل او فهم لرونکي هم پوهېدای سي، همدا رنګه هغه ليکلي دي چي د حضرت علي ابن ابي طالب رضي الله عنه په مناقبو کي

خلكو بې شمېره د دروا غو حديثونه جوړ كړي دي او ددغه درواغجنو حديثونو تر ټولو لويه ذخيره هغه ده چې په وصايا نامي كتاب كي يې جمع كړي دي او په هغه كي هر حديث د يا علي په الفاظو سره شروع كيږي ، مگر په هغو كي يوازي يو حديث (يا علي انت مني بمنزلة هارون من موسى) بېله شكه دغه حديث ثابت دى .

په هر حال د حضرت علي رضي الله عنه په مناقبو كي چې كوم صحيح حديثونه منقول دي د هغو په اړه امام احمد او امام نسائي او نورو ويلي دي چې د هغو شمېر د هغه حديثونو څخه ډېر زيات دى كوم چې د نورو صحابه كرامو په حق كي منقول دي، سيوطي رحمه الله د دې سبب دا بيان كړى دى چې سيدنا علي رضي الله عنه متاخر دى او دهغه په زمانه كي نه يوازي دا چې د مسلمانانو په منځ كي داختلاف او جگړې خراب صورت پيدا سوى وو بلكه خپله د سيدنا علي رضي الله عنه د مخالفت كوونكو يوه ډېره لويه ډله پيدا سوې وه چې هغوى د حضرت علي رضي الله عنه پر خلاف جگړې هم وكړلې او دهغه خلافت يې هم له منځه يووړ، نو علماؤ او محدثينو د مقام علي رضي الله عنه حفاظت او د مخالفين علي رضي الله عنه د ترديد او تغليظ په وجه د منقبت علي سره اړوند حديثونه جمع كړل او دهغه حديثونو په خپرولو كي يې ډېري هڅي وكړلې ، او كوم چې د خلفاء ثلاثه د مناقبو تعلق دى نو هغه خو په حقيقت كي د حضرت علي رضي الله عنه د مناقبو څخه هم زيات دي .

**نوم او نسب** : علي ابن ابي طالب بن عبد المطلب بن هاشم بن عبد مناف بن قصى بن كلاب بن مره بن كعب بن لوى بن غالب بن فهر بن مالك بن نضر ابن كنانه .

د نوموړي يو نوم حيدر هم دى، حيدر په اصل كي د حضرت علي رضي الله عنه د نيكه اسد نوم وو، كله چې حضرت علي رضي الله عنه پيدا سو نو هغه وخت د هغه مور فاطمه بن اسد د نوموړي نوم د خپل پلار پر نامه (حيدر) كښېښود ، بيا وروسته ابو طالب د خپل ځانه د زوى نوم علي كښېښود ، او څرنگه چې په يوه روايت كي راغلي دي چې حضرت علي رضي الله عنه به فرمايل: زما په نزد د ابوتراب څخه غوره نوم نسته .

**كنيت** : ابوتراب د سيدنا علي رضي الله عنه كنيت دى، او دغه كنيت داسي كښېښودل سو چې يوه ورځ رسول الله صلى الله عليه وسلم د بي بي فاطمې رضي الله عنها كورته ورغلى نو وه يې ليدل چې حضرت علي رضي الله عنه په كور كي نسته ، پوښتنه يې وكړل چې علي رضي الله عنه چيري دى؟ بي بي فاطمې رضي الله عنها ورته وويل: نن زما او د هغه په منځ كي خوا بدتيا رامنځته سوه، په همدغه غصه كي هغه د كور څخه وتلى دى ، نن خو هغه په كور كي قيلوله (د غرمې خوب) هم ونه كړ، رسول الله صلى الله عليه وسلم ، حضرت انس رضي الله عنه ته حكم وكړ چې ولاړ سه او وگوره علي رضي الله عنه چيري دى، حضرت انس رضي الله عنه وښودل چې اې د الله رسوله! هغه په

ه سوی دی، رسول الله ﷺ سمدستي مسجد ته ولاړی نو وه یې لیدل چي حضرت
جد د دیوال سره پر وچه مځکه پروت او بیده دی، څادر یې د اوږې څخه ښیل
ښا او بغل یې خاوري لګیدلي دي، هغه وخت رسول الله ﷺ د هغه د بدن څخه
و فرمایل یې: ولاړ سه، اې ابوتراب! پورته سه، نو د هغه وخت څخه د حضرت
په ابوتراب مشهور سو.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### علي رضي الله عنه او هارون علیه السلام

نْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
نِّي بِمَنْزِلَةِ هَارُونَ مِنْ مُوسَى إِلَّا أَنَّهُ لَا نَبِيَّ بَعْدِي. متفق عليه.

بن ابي وقاص رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د حضرت علي علیه السلام په اړه
ما لپاره داسي یې لکه څرنګه چي د موسی علیه السلام لپاره هارون علیه السلام وو، البته دومره
ا څخه وروسته به هیڅوک نبي نه وي، بخاري.

ح البخاري (فتح الباري): ۷۱\۱۷، رقم: ۳۷۰۶، ومسلم ۱۸۷۰\۱۴. رقم: ۳۰- ۲۴۰۴.

چي رسول الله ﷺ د خپلي آخري غزا، تبوک لپاره ولاړی نو حضرت علي رضي الله عنه یې د
ساتني لپاره په مدینه کي پرېښود، پر دې خبره منافقینو هغه ته پېغور ورکړ چي
ته بې قدره وګڼلې او په مدینه کي یې پرېښودلې، حضرت علي رضي الله عنه چي د
پېغور واورېدل نو ډېر غیرت یې محسوس کړ او سمدستي د وسلې په اخیستلو
جرف نامي ځای ته ورسېدی چي د مدینې منورې څخه تقریبا پر درې میله فاصله
اقع دی، هلته رسول الله ﷺ د اسلام لښکر سره کښېنته سوي وه، هغه د رسول الله
کي په حاضرېدو سره عرض وکړ چي دالله رسوله! منافقین زما په اړه داسي او
وي، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: هغوی دروغجن دي، ما ته په مدینه کي د
خلیفه ټاکلی یې، او بیا هغه وخت رسول الله ﷺ دا هم فرمایلي وه چي اې علي!
شحاله نه یې چي ستا زما سره هغه تعلق دی کوم چي دهارون او موسی علیهما السلام
سی علیه السلام د طور غره ته ولاړی نو په خپل قوم کي یې هارون علیه السلام خپل خلیفه ټاکلی وو.

**د شیعه ګانو غلطه وینا:** حضرت علي ﷺ ته د رسول الله ﷺ د ویل سوو الفاظو څخه شیعه ګانو دغه بې بنیاده عقیده دلیل وګرځوی چي ددغه ارشاد په ذریعه رسول الله ﷺ په هغه وخت کي حضرت علي ﷺ ته د خلافت دنده سپارلې وه، نو د رسول الله ﷺ د وصال څخه وروسته د خلافت لومړنی مستحق حضرت علي ﷺ وو، یوازي دا نه بلکه روافض خو تر دې حده تللي دي چي ټولو صحابه کرامو ته کافر وایي، له دې کبله چي د هغوی په قول هغهٔ صحابه کرامو د رسول الله ﷺ د وصیت څخه مخ وګرځوی او د خلافت په اړه یې پر حضرت علي ﷺ نور مقدم کړل، بلکه په هغوی کي ځینو جاهلانو حضرت علي ﷺ هم نه دی پرې ایښی او ویلي یې دي چي حضرت علي ﷺ خپل حق طلب نه کړ او د خلافت د دعوې لپاره په ټینګه ولاړ نه سو نو هغه هم کافر دی، داسي ناپوهانو ته داویل ضروري دي چي ستاسو څخه زیات کافر بل څوک کیدای سي کوم چي ټول امت ته کافر وایي په خاصه توګه پر طبقه اول (صحابه کرامو ﷺ) باندي د کفر اطلاق کوي او دا ثابتوي چي هغوی پوره شریعت غیر معتبر ګرځوي او د اسلام ټول عمارت نړوي نو د هغوی په کفر کي به څا ته شک وي.

په هر حال علماء اهل سنت والجماعت ددغه حدیث څخه د شیعه ګانو ذکر سوی استدلال د عقل څخه لیري ګرځولی دی او وایي چي د حدیث د الفاظو څخه کومه خبره مفهوم کیږي هغه داده چي رسول الله ﷺ، حضرت علي ﷺ خپل خلیفه محض تر هغه وخته پوري ټاکلی وو چي د تبوک د غزا لپاره رسول الله ﷺ د مدینې څخه دباندي وي لکه څرنګه چي حضرت موسی ﷺ، حضرت هارون ﷺ تر هغه وخته پوري پر خپل قوم خلیفه ګرځولی وو چي هغه د طور غره چله (څلوېښت ورځي) تیري کړي، که چیري د هغه وخت لپاره د حضرت علي ﷺ خپل خلیفه جوړولو څخه د رسول الله ﷺ ددغه خبري وصیت کول یا دې ته اشاره کول وای چي همدارنګه زما د وصال څخه وروسته به لومړنی خلیفه علي ﷺ وي نو رسول الله ﷺ به په هغه وخت کي حضرت علي ﷺ ته د حضرت هارون ﷺ سره تشبیه هیڅکله نه ورکولای ځکه چي حضرت هارون ﷺ د حضرت موسی ﷺ د وفات څخه وروسته د هغه خلیفه نه وو، هغه د حضرت موسی ﷺ د وفات څخه څلوېښت کاله مخکي وفات سوی وو، ددې څخه ماسوا رسول الله ﷺ په مدینه کي د خپل نه موجودتیا په زمانه کي په وخت کي د امامت لپاره خپل خلیفه بل صحابي حضرت ام مکتوم ﷺ جوړ کړی وو، په دغه وخت کي که چیري د حضرت علي ﷺ د خپلي کورنۍ خلیفه ګرځول او د حضرت ام مکتوم ﷺ د خلګو امام کولو څخه مراد مطلق خلافت وای نو د اصولو مطابق به رسول الله ﷺ د امامت ذمه داري هم حضرت علي ﷺ ته سپارلې

وای او دهغه لپاره به یې دوهم سړی نه ټاکلای.

**د تشبیه وجه**: رسول اللهﷺ، حضرت علي ﷺ ته فرمایلي وه: ته زما لپاره داسي یې لکه ځرنګه چي د موسی ﷺ لپاره هارون ﷺ وو، ددغه الفاظو په ذریعه حضرت علي ﷺ ته د حضرت هارون ﷺ سره تشبیه ورکولو باندي هر څوک پوهیږي مګر د تشبیه وجه ظاهر سوې نه وه چي رسول الله ﷺ هغه ته د حضرت هارون ﷺ سره په کوم اعتبار تشبیه ورکړل، ددې خبري د وضاحت لپاره رسول الله ﷺ مخکي وفرمایل چي فرق دادی چي زما څخه وروسته به څوک نبي نه وي یعني که چیري په تاسو دواړو کي فرق سته نو هغه دادی چي هارون ﷺ نبي وو او ته نبي نه یې، نو معلومه سول چي د حضرت موسی ﷺ او حضرت هارون ﷺ د قرابت او یووالي د مثال په ذریعه رسول الله ﷺ خپل او د حضرت علي ﷺ په منځ کي چي کوم قرابت او یووالی ظاهر کړ هغه د نبوت په اعتبار نه وو بلکه د خلافت په اعتبار وه چي په مرتبه کي خلافت ته نژدې وو، مګر د خلافت اعتبار هم په دواړو صورتو کي متحمل کیدای سو چي یا خو د رسول الله ﷺ مراد په خپل ژوند کي د یو خاص وخت لپاره د حضرت علي ﷺ خپل خلیفه ټاکل او دهغه په اړه د خپل قرابت او یووالي اعتماد ظاهرول وو، یا د خپل وفات څخه وروسته د هغه د خلافت وړتیا ته په اشاره کولو سره د قرابت او یووالي ظاهرول وو، کوم چي د دوهم صورت تعلق دی نو دا داسي د امکان څخه لیري ګرځول کیږي چي حضرت هارون ﷺ خو د حضرت موسی ﷺ څخه مخکي وفات سوی وو او هغه د حضرت موسی ﷺ څخه وروسته کله خلیفه سو، ددغه مثال په ذریعه رسول الله ﷺ د خپل وفات څخه وروسته د حضرت علي ﷺ خلافت ته اشاره کول لامحاله ده چي د رسول الله ﷺ د ذکر سوو الفاظو څخه چي کوم مفهوم ثابتیږي هغه دادی کوم چي په مخکي صورت کي بیان سو، یعني دا چي رسول الله ﷺ په دغه وخت کي حضرت علي ﷺ یوازي د هغه وخت لپاره خلیفه وګرځوی چي د تبوک د غزا لپاره رسول الله ﷺ د مدینې څخه دباندي وي، د خلاصې په توګه دا خبره داسي هم ویل کیږي چي د رسول الله ﷺ د حکم سره سم د حضرت علي ﷺ هغه خلافت او د وختي انتظام په توګه په عمل کي راغلی وو، په دغه صورت کي چي د هغه وخت پر ختمېدو باندي یعني د تبوک د غزا څخه د رسول الله ﷺ د ستنېدو څخه وروسته هغه خلافت هم ختم سوی وو، هغه جزوي خلافت د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته د هغه د کلي خلافت دلیل ځرنګه کیدای سي.

ځینو حضراتو لیکلي دي چي د رسول الله ﷺ دغه ارشاد (زما څخه وروسته به څوک نبي نه وي) ددې خبري دلیل هم دی چي حضرت عیسی بن مریم ﷺ چي د آسمان څخه راکښته سي

نو دنبي په توګه به نه وي بلکه د دین محمدي جاري کوونکی او د اسلامي امیرانو او حاکمانو څخه یو امیر او حاکم به وي او د هغه کار به دا وي چې خلک د شریعت محمدي پابند او پیروان جوړ کړي ، مګر د ملا علي قاري رحمه الله وینا ده چې د حدیث الفاظ د دې خبري خلاف نه دي چې حضرت عیسی علیه السلام به د نبي په حیثیت کي را کښته کیږي او زموږ د نبي ﷺ د شریعت د متبع په توګه به د دین محمدي اجراء او نفاذ او د اسوه رسالت محمدي د ترویج او خپرېدو دنده به سرته رسوي او په دې کي هم څه استبعاد نسته چې د هغه د دندي په ادا کولو کي د هغه لارښوونه به د وحي په ذریعه وي ، په دغه صورت کي به د (زما څخه وروسته به څوک نبي نه وي) دغه مراد دا بیان کړل سي چې د رسول الله ﷺ څخه وروسته بل نوی نبي نه پیدا کیږي او رسول الله ﷺ خاتم النبیین په دې اعتبار دی چې د نوي پیدا کېدونکو نبیانو لړۍ پر رسول الله ﷺ ختمه سوې ده ، د رسول الله ﷺ څخه وروسته به او س بل یو نوی نبي دنیا ته نه راځي .

په دغه حدیث کي چې د حضرت علي رضی الله عنه کوم فضیلت ته اشاره سوې ده که چیري رسول الله ﷺ خاتم النبیین نه وای او د رسول الله ﷺ څخه وروسته د نبوت دروازه بنده سوې نه وای نو حضرت علي رضی الله عنه به هم یو نبي وای مګر د دې مطلب دا نه دی چې دغه حدیث د هغه حدیث خلاف سي کوم چې په صراحت سره د حضرت عمر رضی الله عنه په حق کي نقل سوی دی که چیري زما څخه وروسته نبي وای نو هغه به حضرت عمر رضی الله عنه وای، په حقیقت کي د دغه دواړو حدیثونو مفهوم فرضي او تقدیري دی یعني رسول الله ﷺ د یو امر محال په فرض کولو سره داسي وفرمایل که چیري بالفرض زما څخه وروسته د نبوت دروازه خلاصه وای نو زما په صحابه کرامو کي به ډېر خلک نبیان وای مګر دغه حقیقت پر خپل ځای محکم دی چې زما څخه وروسته به هیڅ نبي نه پیدا کیږي .

**د یوې غلط فهمۍ دفع** : د یو حدیث : (علماء امتي کانبیاء بني اسرائیل) یعني زما د امت علماء د بني اسرائیلو د نبیانو په ډول دي، دغه حدیث ډېر ویل کیږي او ښه پوهان خلک هم د دغه غلط فهمۍ ښکار دي چې دغه په حقیقت کي حدیث دی مګر څرنګه چې د حدیثو حافظانو لکه زرکشي، عسقلاني، دمیري او سیوطي رحمهم الله څرګندونه کړې ده چې د دغه حدیث هیڅ اصل نسته .

### د علي رضی الله عنه سره مینه د ایمان علامه ده

﴿۵۸۲۹﴾ : وَعَنْ زِرِّ بْنِ حُبَيْشٍ قَالَ قَالَ عَلِيٌّ وَالَّذِي فَلَقَ الْحَبَّةَ وَبَرَأَ النَّسَمَةَ

إِنَّهُ لَعَهْدُ النَّبِيِّ الْأُمِّيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيَّ أَنْ لَا يُحِبَّنِي إِلَّا مُؤْمِنٌ وَلَا يُبْغِضَنِي إِلَّا مُنَافِقٌ. رواه مسلم.

د حضرت رزين حبيش رضي الله عنه څخه روايت دی چي حضرت علي رضي الله عنه ويلي دي په هغه ذات دي مي قسم وي چي دانې يې شنې کړې او ذي روح يې پيدا کړل چي نبئ کريم ﷺ ما ته حکم راکړ او وصيت يې وکړ چي زما سره به هغه سړي محبت کوي (يعني حضرت علي رضي الله عنه سره) چي مؤمن وي او زما سره به هغه سړی بغض او عداوت ساتي کوم چي منافق وي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\۸۶، رقم: ۱۳۱- ۷۸.

**تشريح**: د محبت څخه مراد هغه محبت دی چي د شرعي تقاضاوو مطابق او د تاوان څخه پرته وي لکه څرنګه چي هغه خلک چي د حضرت علي رضي الله عنه حقيقي مقام او مرتبه کموي لکه د فرقه خارجيه خلک د حب علي د محرومۍ په سبب په دغه حديث کي د ذکر سوي مؤمن مصداق نه سي جوړيدای، همدارنګه هغه خلک هم چي د حضرت علي رضي الله عنه په محبت کي غير شرعي او غير حقيقي کارونه کوي او د هغه کړنو په نتيجه کي د حضرت ابوبکر صديق او حضرت عمر فاروق رضي الله عنهما سره بغض او عداوت کوي لکه د شيعه ګانو ځيني ډلي، په دغه حديث کي د ذکر سوي مؤمن مصداق هيڅکله نه سي ګرځېدای، په هر حال د حضرت علي رضي الله عنه سره مينه درلودل د ايمان نښه ده او د هغه سره دښمني کول د نفاق نښه ده، په يو بل روايت کي چي د حضرت علي رضي الله عنه څخه منقول دی، داسي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

من احبني واحب هذين واباهما وامهما كان معي في درجتي يوم القيامة،

ژباړه: کوم څوک چي زما سره او د هغه دوو (حسن او حسين رضي الله عنهما) سره او د هغه دواړو له پلار او مور سره مينه وکړي نو هغه به د قيامت په ورځ زما سره وي. (احمد او ترمذي).

مګر د رسول الله ﷺ، حضرت علي رضي الله عنه او اهل بيت سره د مينې تقاضا داده چي د هغه ټولو صحابه کرامو سره مينه وکړل سي کوم چي له هغوی ټولو سره رسول الله ﷺ، حضرت علي رضي الله عنه او اهل بيتو مينه او تعلق درلود، لکه څرنګه چي د حضرت علي رضي الله عنه مينه د ايمان علامه ده همدارنګه د ټولو صحابه کرامو مينه د ايمان نښه ده او څرنګه چي د حضرت علي رضي الله عنه سره بغض او دښمني د نفاق نښه ده همدارنګه د هر صحابي رضي الله عنه سره دښمني کول د نفاق نښه ده، ابن عساکر د حضرت جابر رضي الله عنه څخه د رسول الله ﷺ دغه ارشاد نقل کړی دی:

حب ابي بكر وعمر من الايمان و بغضهما كفر وحب الانصار مِنَ الايمان وبغضهم كفر وحب العرب من الايمان وبغضهم كفر ومن سب اصحابي فعليه لعنة الله ومن حفظني فيهم انا احفظه يوم القيامة.

ژباړه: د ابوبكر او عمر رضي الله عنهما سره مينه لرل د ايمان برخه ده او د هغوی سره بغض كول كفر دی، د انصارو سره مينه درلودل د ايمان برخه ده او د هغوی سره بغض كول كفر دی، كوم څوک چي زما صحابي ته بد وو ايي پر هغه دي د الله جل جلاله لعنت وي او كوم څوک چي صحابه كرامو د نورو د بد ويلو څخه منع كړي نو هغه به د قيامت په ورځ د سختيو څخه زه وساتم.

## د خيبر فتح

﴿۵۸۳۰﴾: وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَوْمَ

د حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلى الله عليه وسلم د خيبر په ورځ وفرمايل:

خَيْبَرَ لَأُعْطِيَنَّ هَذِهِ الرَّايَةَ غَدًا رَجُلًا يَفْتَحُ اللَّهُ عَلَى يَدَيْهِ يُحِبُّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ

زه به دا بيرغ يو داسي سړي ته وركوم چي د هغه په لاس به الله تعالى د خيبر قلعه فتح كړي، او هغه سړی د الله جل جلاله او رسول صلى الله عليه وسلم سره مينه لري،

وَيُحِبُّهُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ فَلَمَّا أَصْبَحَ النَّاسُ غَدَوْا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

او الله جل جلاله او د هغه رسول صلى الله عليه وسلم هم د هغه سره مينه لري، كله چي سبا سو نو ټول خلک په دې اميد د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر سوه چي

وَسَلَّمَ كُلُّهُمْ يَرْجُو أَنْ يُعْطَاهَا فَقَالَ أَيْنَ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ فَقَالُوا هُوَ يَا

بيرغ به په هغوی كي يو چا ته وركړل سي، رسول الله صلى الله عليه وسلم پوښتنه وكړه: علي بن ابي طالب رضي الله عنه چيري دی؟ خلكو عرض وكړ اې

رَسُولَ اللَّهِ يَشْتَكِي عَيْنَيْهِ قَالَ فَأَرْسِلُوا إِلَيْهِ فَأُتِيَ بِهِ فَبَصَقَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى

د الله رسوله! هغه دی د هغه خو ستركي خوږيږي، رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: يو څوک يې راولئ، نو هغه راوستل سو، رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغه پر ستركو د خپلي خولې مباركي ناړي ومو ږلې،

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي عَيْنَيْهِ فَبَرَأَ حَتَّى كَأَنْ لَمْ يَكُنْ بِهِ وَجَعٌ فَأَعْطَاهُ الرَّايَةَ

او هغه ښه سوې داسي لکه بالکل چي خوږ سوي نه وي، بیا يې بیرغ ورکړ ،

فَقَالَ عَلِيٌّ يَا رَسُولَ اللهِ أُقَاتِلُهُمْ حَتَّى يَكُونُوا مِثْلَنَا قَالَ انْفُذْ عَلَى رِسْلِكَ

حضرت علي رضی الله عنه عرض وکړ اې د الله رسوله ! زه به د هغه خلکو سره تر هغه وخته پوري جنګیږم تر څو پوري چي زموږ په ډول (مسلمانان) سي، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : ولاړ سه او د خپلي فطري نرمۍ څخه کار واخله،

حَتَّى تَنْزِلَ بِسَاحَتِهِمْ ثُمَّ ادْعُهُمْ إِلَى الْإِسْلَامِ وَأَخْبِرْهُمْ بِمَا يَجِبُ عَلَيْهِمْ

هر کله چي د جنګ میدان ته ورسیږې نو اول د ښمنانو ته دعوت ورکړه او هغوی ته وښیه چي د اسلام قبلولو څخه وروسته د اسلام د مخه پر هغوی

مِنْ حَقِّ اللهِ فِيهِ فَوَاللهِ لَأَنْ يَهْدِيَ اللهُ بِكَ رَجُلًا وَاحِدًا خَيْرٌ لَكَ مِنْ أَنْ

د خدای جل جلاله حق دی ، په خدای جل جلاله دي مي قسم وي که ستا د تحریک او تبلیغ په وجه الله تعالی د یوه سړي هم هدایت په برخه کړي نو دا به ستا لپاره

يَكُونَ لَكَ حُمْرُ النَّعَمِ. متفق عليه وذكر حديث البراء قال لعلي انت مني وانا منك في باب بلوغ الصغير.

د سرو اوښانو څخه هم ډیر غوره وي، بخاري او مسلم او د حضرت براء رضی الله عنه حدیث چي حضرت علي رضی الله عنه ته يې وفرمایل : ته زما څخه يې او زه ستا څخه یم په باب د بلوغ الصغیر کي ذکر دی .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴۷۶\۷، رقم: ۴۲۱۰، ومسلم ۱۸۷۳\۱۴، رقم: ۳۴- ۲۴۰۶.

**د لغاتو حل**: رِسلک: اي رفقک ولینک (نرمي)

**تشریح**: خیبر د یو ځای نوم دی چي د مدینې منورې څخه شپېته میله لیري د شام په لور واقع دی، دغه غزا د هجرت په اووم کال رامنځته سوې وه ، نو (اې علي!) قسم په خدای، رسول الله ﷺ چي د حضرت علي رضی الله عنه کومه لارښوونه کړې وه چي کفارو ته د اسلام دعوت ورکړه نو د هغه د تاکید لپاره رسول الله ﷺ ذکر سوې جمله په قسم کولو سره وفرمایل، د هغه تاکید او لارښوونې وجه دا احساس وو چي د جګړې او قتال په صورت کي که څه هم د غنیمت مال او نور شیان تر لاسه کیږي مګر کله چي کفارو ته په نرمۍ او حلم سره د اسلام دعوت ورکول کیږي نو

هغه دعوت زیات وختونه گټه کوونکی سي او د مخالفینو ډېر زیات خلک د جگړې څخه پرته مسلمانان کیږي چي د اسلام اصل مقصد دی، علامه ابن همام رحمة الله عليه له همدې کبله ډېره خوږه خبره کړې ده چي د یوه مؤمن پیدا کېدل د زرو کفارو تر معدوم کولو غوره دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د کمال قرب او تعلق اظهار

﴿۵۸۳۱﴾: عَنْ عِمْرَانَ بْنِ ارقم اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ عَلِيًّا مِنِّي وَأَنَا مِنْهُ وَهُوَ وَلِيُّ كُلِّ مُؤْمِنٍ. رواه الترمذي.

د حضرت عمران بن ارقم رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: علي رضي الله عنه زما څخه دی او زه د علي رضي الله عنه څخه یم او علي رضي الله عنه د هر مؤمن دوست او مرستیال دی. ترمذي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\ ۵۹۰، رقم: ۳۷۱۲.

**تشریح**: علي رضي الله عنه زما څخه دی....: دغه اشاد په اصل کي د کمال قرب او تعلق، په نسب او نسل کي د اشتراک څخه کنایه ده، هغه (علي رضي الله عنه) د ټولو مؤمنانو....: په دغه الفاظو کي د قرآن کریم دغه آیت ته اشاره ده:

إِنَّمَا وَلِيُّكُمُ اللّٰهُ وَرَسُولُهُ وَالَّذِينَ آمَنُواْ الَّذِينَ يُقِيمُونَ الصَّلاَةَ وَيُؤْتُونَ الزَّكَاةَ وَهُمْ رَاكِعُونَ.

ژباړه: بېله شکه ستاسو دوست او مرستیال خو الله جل جلاله او د هغه رسول (ﷺ) او مؤمنان دي، داسي چي د لمانځه پابندي کوي او زکوة ورکوي او عاجزي کوونکي وي.

﴿۵۸۳۲﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ حُصَيْنٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ كُنْتُ مَوْلَاهُ فَعَلِيٌّ مَوْلَاهُ. رواه احمد والترمذي.

د حضرت زید بن حصین رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د چا چي زه دوست یم، علي رضي الله عنه هم د هغه دوست دی، احمد او ترمذي.

**تخریج**: الامام احمد في مسنده ۴\ ۳۶۸، وسنن الترمذي ۵\ ۵۹۱، رقم: ۳۷۱۳.

**تشریح**: د دغه حدیث یو مطلب خو دادی چي له کوم چا سره زه مینه لرم هغه د علي رضي الله عنه سره هم مینه لري او یو مطلب داهم کیدای سي چي کوم څوک زما حمایت کوونکی او مرسته کوونکي

وي د هغه مرسته کوونکی او حمایت کوونکی علي رضی الله عنه هم دی، ددغه حدیث نور وضاحت په دریم فصل کي راځي.

﴿۵۸۳۳﴾: وَعَنْ حُبْشِيِّ بْنِ جُنَادَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلِيٌّ مِنِّي وَأَنَا مِنْ عَلِيٍّ وَلَا يُؤَدِّي عَنِّي إِلَّا أَنَا أَوْ عَلِيٌّ. رواه الترمذي و رواه احمد عن ابي جنادة.

د حضرت حبشي بن جناده رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: علي رضی الله عنه زما څخه دی او زه د علي څخه یم او زما د جانب څخه دي څوک وعده نه کوي خو زه په خپله یا زما د لوري علي رضی الله عنه. ترمذي او احمد

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\ ۵۹۴، رقم: ۳۷۱۹، واحمد في مسنده ۴\ ۱۶۴.

**تشریح**: د یوې معاهدې داسي ماتول چي دوهمه ډله د مخکي څخه خبرداره سوې وي، نبد عهد ورته ویل کیږي، په عربو کي دا اصل وو چي کله به د دوو ډلو په منځ کي یوه صلح یا معاهده کېدل او یا به صلح او معاهده ماتېدل نو ددغه لړۍ او ضروري کړنو ذمه دار به په هره ډله کي هغه څوک وو چي دخپل قوم او ډلي مشر به وو، یا بیا د هغه په نه موجودتیا کي د هغه نیابت یوازي هغه سړی کولای سو چي دهغه مشر او سردار نژدې قریب وو، ددغه حدیث پېښه داده چي د مکې د فتح څخه وروسته په نهم هجري کال کي د حج په وخت کي د ځینو ضروري دیني او ملي بوختیاوو په وجه رسول الله صلی الله علیه وسلم د حج لپاره تشریف نه یووړ، نو پر خپل ځای یې حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د حج امیر کړ او هغه یې ولیږی، او هغه ته یې د خپلي خوا دا ذمه داري ورکړل چي هغه د حج په وخت کي د هغه صلح نامې او معاهدې د منسوخۍ اعلان وکړي کوم چي درې کاله مخکي په شپږم هجري کال کي د حدیبیې په ځای کي د رسول الله صلی الله علیه وسلم او د مکې د قریشو په منځ کي په عمل کي راغلې وه، چي سورة براة (سورة توبة) مشرکانو ته وواياست چي په هغه کي ددغه خبري اړوند آیاتونه نازل سوي وه او دا اعلان وکړئ چي مشرکان نجس او ناپاک دي، ددې څخه وروسته به هیڅ یو مشرک مسجد حرام ته نه راځي او په دې ضمن کي چي نور احکام او فرمانونه نازل سوي دي د هغو ټولو څخه به یې خبردار کړې.

په دغه وخت کي رسول الله صلی الله علیه وسلم ذکر سوی حدیث وفرمایه چي د هغه مقصد د حضرت علي رضی الله عنه د عزت ښوونه هم وه او په حقیقت کي ذکر سوې ذمه داري حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته د

نه سپارلو عذر بيانول هم وو چي د حج د امير په حيثيت په دغه سفر كي د رسول الله ﷺ لومړني نمائنده خو ابوبكر رضي الله عنه دی مگر په عربو كي د رواجي اصولو په وجه د نقض عهد (عهد ماتولو) د منسوخۍ د اعلان ذمه داري علي رضي الله عنه ته سپارل سوې ده ځكه حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه حضرت علي رضي الله عنه ته هغه وخت وضاحت كړی وو كله چي هغه په وروسته راتګ سره د هغوی په قافله كي شامل سو چي ايا ته د امير كېدو سره راغلی يې او كه د مامور كېدو سره، حضرت علي رضي الله عنه څرګنده كړل چي زه په امير كېدو سره نه يم راغلی بلكه په مامور كېدو سره راغلی يم.

د دغه پېښي څخه محققين د دغه نتيجې په اخيستلو مجبوره سوي دي چي په دغه پېښه كي دې ته اشاره وه چي د حضرت علي رضي الله عنه خلافت به د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه د خلافت وروسته قائميږي.

﴿۵۸۳۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ آخَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ أَصْحَابِهِ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د صحابه كرامو په منځ كي وروروليي

فَجَاءَ عَلِيٌّ تَدْمَعُ عَيْنَاهُ فَقَالَ آخَيْتَ بَيْنَ أَصْحَابِكَ وَلَمْ تُؤَاخِ بَيْنِي وَبَيْنَ

قائمه كړې وه، بيا حضرت علي رضي الله عنه راغلی په داسي حال كي چي د سترګو څخه يې اوښكي رواني وې، او رسول الله ﷺ ته يې عرض وكړ چي تاسو د صحابه كرامو په منځ كي اخوت (ورورګلوي) قائمه كړل مگر زه مو د چا ورور نه يم جوړ كړی،

أَحَدٍ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْتَ أَخِي فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ.

رواه الترمذي وقال هذا حديث حسن غريب.

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: په دنيا او آخرت دواړو كي ته زما ورور يې. ترمذي ويلي دي دا حديث حسن غريب دی.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۹۵، رقم: ۳۷۲۰.

**تشريح**: رسول الله ﷺ د مكې مكرمې څخه په هجرت كولو سره مدينې منورې ته په راتللو سره چي تر ټولو مخكي كوم شي ته خاصه توجه وكړل هغه د مدينې د اوسېدونكو يعني انصارو او مكې څخه راتلونكو مهاجرينو په منځ كي د وروروګلوۍ پر بنياد باندي د مخلصانه او ټينګ تعلق قائمول وو، نو مدينې ته د رسېدو په پنځمه مياشت رسول الله ﷺ يو ورځ هغه ټول انصار

او مهاجرين راجمع كړل او د اخوت اسلامي فلسفه يې ورته وړاندي كړل او په انفرادي توګه يې د يوه يوه مهاجر او يوه يوه انصاري په منځ كي ورورولي قائمه كړل.

حضرت علي رضي الله عنه د هغه صحابه كرامو څخه وو چي د چا سره يې ورورګلوي نه وه قائمه سوې، په دې خبره حضرت علي رضي الله عنه سخت غمجن سو او هغه پوه سو چي كيداى سي زه نظر انداز كړل سوى يم نو هغه په ژړا د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سو او ګېله يې وكړل چي تاسو د نورو صحابه كرامو لكه حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه او خارجه ابن زبير انصاري رضي الله عنه په منځ كي ، د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه او حضرت عتبان بن مالك انصاري رضي الله عنه په منځ كي، د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه او حضرت عتبان بن مالك انصاري رضي الله عنه په منځ كي، د حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه او حضرت ثابت بن منذر انصاري رضي الله عنه په منځ كي، د حضرت سلمان رضي الله عنه او حضرت ابودرداء انصاري رضي الله عنه په منځ كي او داسي نورو صحابه كرامو په منځ كي د ورورګلوۍ په قائمولو سره د يو بلديني وروڼه ګرځولي دي مګر د يو انصاري صحابي سره مو زما ورورګلوي نه ده قائمه كړې، پردغه خبره باندي رسول الله ﷺ هغه ته وفرمايل: زه خو ستا ورور موجود يم ، د دنيوي قرابت په اعتبار هم ، نو بيا تا ته څه اړتيا ده چي د بل چا سره ستا ورورګلوي قائمه كړم.

## حضرت علي رضي الله عنه د الله جل جلاله محبوب بنده دى

﴿۵۸۳۵﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَيْرٌ فَقَالَ اللَّهُمَّ ائْتِنِي بِأَحَبِّ خَلْقِكَ إِلَيْكَ يَأْكُلُ مَعِي هَذَا الطَّيْرَ فَجَاءَ عَلِيٌّ فَأَكَلَ مَعَهُ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دى چي د رسول الله ﷺ په مخكي يو (پوخ) مرغه پروت و، رسول الله ﷺ دغه دعاء وكړل اې الله! ما ته هغه سړى راوليږې چي تا ته په خپل مخلوق كي ډير خوږ وي چي زما سره دغه مرغه وخوري،ددې دعاء څخه وروسته د رسول الله ﷺ په خدمت كي حضرت علي رضي الله عنه حاضر سو او د رسول الله ﷺ سره يې د مرغه غوښه وخوړل. ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دى.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۹۵، رقم: ۳۷۲۱،

**تشريح**: د ابن جوزي رحمة الله عليه وينا ده چي دغه حديث موضوع دى او حاكم رحمة الله عليه هم دا موضوع

ګرځولی دی او په مختصر کي لیکلي دي چي دغه روایت که څه هم په ډېروطریقو منقول دی مګر هغه ټولي طریقې ضعیفي دي، په هر حال دغه حدیث ددې خبري دلیل دی چي سیدنا علي رضی الله عنه د الله جل جلاله په نزد د هغه په مخلوق کي محبوب بنده وو، مګر شارحینو د حدیث دغه مطلب د ځینو تخصیصاتو او قیودو سره بیان کړی دی د مثال په توګه دا چي سیدنا علي رضی الله عنه د الله جل جلاله محبوب بنده وو، ددې څخه مراد دادی چي هغه د الله جل جلاله د محبوبو بندګانو څخه یو وو، یا دا چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم د اکا په زامنو یا د رسول الله صلی الله علیه وسلم په قریبانو کي د الله جل جلاله محبوب بنده حضرت علي رضی الله عنه وو، یا دا مراد دی چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ښه چلن او ترجیحي بنیاد په وجه تر ټولو زیات استحقاق لرونکو کي د الله جل جلاله په نزد محبوب بنده حضرت علي رضی الله عنه وو، ددغه تخصیصاتو او قیودو څخه د شارحینو مقصد دادی چي د حدیث د الفاظو څخه دا مطلب واخیستل سي چي سیدنا علي رضی الله عنه د حضرت ابوبکر صدیق او حضرت عمر فاروق رضی الله عنهما څخه هم زیات محبوبیت درلود حال دا چي په حقیقت کي ددغه تخصیصاتو او قیودو ضرورت نسته ځکه چي اول خو دا یقیني خبره ده چي په حدیث کي د مخلوق څخه علی العموم ټول مخلوق مراد نه دی که علی العموم ټول مخلوق مراد واخیستل سي نو دا مطلب به وي چي د سیدنا علي رضی الله عنه مرتبه د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه هم زیاته سوې وه چي نه یوازي علی الاطلاق هغه محبوب بنده دی بلکه سید المحبوبین او افضل المخلوقین هم دی، نو په رسول الله صلی الله علیه وسلم باندي سیدنا علي رضی الله عنه ته هیڅ ډول فضیلت نصیب کیدای نه سي، دوهم دا که چیري د یو خاص نسبت او خاص حیثیت په اعتبار حضرت علي رضی الله عنه د حضرت ابوبکر صدیق او حضرت عمر فاروق رضی الله عنهما څخه هم محبوب بنده کېدل ثابت وي نو بجمیع وجوه مراد نه کېدو په سبب دې ته به پر ابوبکر او عمر رضی الله عنهما باندي د علي رضی الله عنه جزوي فضیلت وایو، نو دغه جزوي فضیلت به د هغو دواړو د کلي فضیلت هیڅکله برابر نه وي چي د کثرت اجر او ثواب په وجه او بجمیع وجوه هغه ته حاصل دی نو روافض که ددغه حدیث څخه د حضرت علي رضی الله عنه خلافت پر بلا فضل باندي دلیل اخلي او پر حضرت ابوبکر او حضرت عمر رضی الله عنهما باندي د حضرت علي رضی الله عنه کلي فضیلت او غوره والی ثابتول غواړي نو دا د هغوی ناپوهي ده،

هغوی باید وګوري چي داسي الفاظ د حضرت عمر رضی الله عنه په منقبت کي هم دي لکه څرنګه چي په یو حدیث کي فرمایل سوي دي: ماطلعت الشمس علی خیر من عمر، یعني تر عمر رضی الله عنه غوره پر هیڅ انسان باندي لمر راختلی نه دی، یا په یو حدیث کي دغه الفاظ دي چي: ارفع درجة في الجنة عمر، یعني په جنت کي به د عمر رضی الله عنه درجه لوړه وي، نو ایا ددغه حدیثونو الفاظ د هغه پر

ظاهري معنی باندي په محمولو کولو سره روافض او شیعه ګان دا مني چي علي العموم په ټولو انسانانو کي تر ټولو زیات افضل او اعلی حضرت عمر رضی الله عنه دی ځکه چي د دغه حدیثونو څخه دا مطلب راوځي چي د مځکي پر مخ باندي د عمر رضی الله عنه څخه غوره هیڅ انسان نسته او په جنت کي به د هیڅا درجه د عمر رضی الله عنه تر درجې لوړه نه وي ، څرګنده ده چي اهل رفض او تشیع دا خبره منلای نه سي ځکه چي دا مطلب خو اهل سنت هم مراد نه اخلي بلکه په ځو تخصیصاتو او قیدو سره د حدیث د الفاظو مطلب بیانوي نو بیا د حضرت علي رضی الله عنه سره اړوند دغه روایت مطلق د هغه پر ظاهري معنی باندي په محمول کولو سره علی الاطلاق د هغه پر افضیلت باندي روافضو او شیعه ګانو ته ټینګار ولی دی، یوه خبره اهل سنتو ته کول هم ضروري دي چي د دغه فضیلت مسئله ظني ده دا د ایمان او کفر معامله ګرځول نه دي پکار ، همدارنګه د دغه روایت پر موضوع ګرځولو باندي زور کول پکار دي ، په فني او تحقیقي توګه هر څومره چي صحیح وي خو په ظاهري توګه دغه سختي او تنګي بلکه پر تعصب باندي محمول کول لیري نه دي .

### دور کړي او بخښني خاصه معامله

﴿۵۸۳۶﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ كُنْتُ إِذَا سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْطَانِي وَإِذَا سَكَتُّ ابْتَدَأَنِي. رواه الترمذي وقال هذا حديث حسن غريب.

د حضرت علي رضی الله عنه څخه روایت دی چي کله به ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه یو شی غوښتی نو ما ته به یې راکوی او که به زه چپه خوله وم نو خپله به یې راکوی ، ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دی.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\ ۵۹۵، رقم: ۳۷۲۲.

### د علم او حکمت دروازه

﴿۵۸۳۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا دَارُ الْحِكْمَةِ

د حضرت علي رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : زه د حکمت کور یم

وَعَلِيٌّ بَابُهَا. رواه الترمذي وقال هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وقال رَوَى بَعْضُهُمْ

او علي رضی الله عنه د حکمت د کور دروازه ده، ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دی او ویلي یې دي

هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ شَرِيكٍ وَلَمْ يَذْكُرُوا فِيهِ عَنِ الصُّنَابِحِيِّ وَلَا نَعْرِفُ هَذَا

الْحَدِيثَ عَنْ اَحَدٍ مِنَ الثِّقَاتِ غَيْرَ شَرِيكٍ.

چي ځينو دا د شريک څخه روايت کړی دی او د صنابحي ذکر يې ونه کړ او موږ د شريک څخه پرته دا حديث د يو ثقه سړي څخه نه پيژنو .

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۹۶، رقم: ۳۷۲۳،

**تشريح**: په يوه روايت کي داسي راغلي دي: انا مدينة العلم وعلي بابها ، يعني زه د علم ښار يم او علي رضي الله عنه د دغه ښار دروازه ده، په يو بل روايت کي دغه الفاظ هم دي: فمن اراد العلم فلياته من بابه، يعني څوک چي د علم تر لاسه کول غواړي نو هغه دي د دغه دروازې په ذريعه راسي .

په هر حال علي رضي الله عنه دروازه ده، ددې څخه دا مراد نه دی چي يوازي حضرت علي رضي الله عنه دروازه ده بلکه دا معنی مراد ده چي علي رضي الله عنه د دروازو څخه يوه دروازه ده مګر په دې معنی کي هم د حضرت علي رضي الله عنه يادونه د هغه فضيلت او تکريم ظاهروي او په حقيقت کي حضرت علي رضي الله عنه داسي مرتبه لري ، په دې کي هيڅ شک نسته چي په صحابه کرامو کي د علم او حکمت کومه خاص درجه سيدنا علي رضي الله عنه ته تر لاسه وه هغه يو څو صحابه کرامو ته په برخه سوه او په دې اعتبار سيدنا علي رضي الله عنه ته که د اکثرو صحابه کرامو په نسبت تر ټولو زيات علمي فضيلت لرونکي وويل سي نو غير مناسب به نه وي، پاته سوه دا خبره چي د دغه روايت د ظاهري معنی مطابق يوازي علي رضي الله عنه د دغه دروازې ولي نه ګرځول کيږي، او نورو صحابه کرامو د دغه دروزې ولي و ګرځول سي، نو په دې اړه دا حقيقت بايد په ذهن کي وي چي د رسول الله ﷺ څخه د فيض تر لاسه کوونکو ټولو صحابه کرامو په اړه داسي نه سي ويل کيدای چي امت ته علم نبوت يوازي هغه منتقل کړی دی او د رسول الله ﷺ څخه وروسته د علوم دين واحد مدار هغه دی ، ددې په دليل کي ډېر حديثونه وړاندي کيدای سي ، په هغو کي يو حديث خو د رسول الله ﷺ دغه ارشاد دی چي : اصحابي کالنجوم بايهم اقتديتم اهتديتم، زما ټول صحابه کرامو د آسمان ستوري په هغوی کي چي د چا اقتداء وکړئ نو هدايت به تر لاسه کړئ، د دغه څخه ماسوا دا خبره په تاريخي او واقعي توګه ثابته ده چي تابعينو د دين او شريعت کوم مختلف علوم او فنون اخذ کړل بلکه قرائت او تجويد، تفسير، حديث ، فقه او نور هغه ټول هغوی يوازي د حضرت علي رضي الله عنه څخه نه دي اخذ کړي بلکه د ټولو صحابه کرامو څخه يې اخذ کړي دي، نو ددې څخه ماسوا بله چاره نسته چي د علم او حکمت د ښار دروازه کېدل يوازي د حضرت علي رضي الله عنه په حق کي منحصر نه کړل سي ، مګر که د قضا، عدالت او منصفي، علم او فن سره

مخصوص كولو سره د حضرت علي رضي الله عنه په اړه دا وويل سي چي د هغه ذات بې مثاله وو او په دې اړه هغه پر ټولو صحابه کرامو باندي فضيلت درلود نو يقينا پر ځای به وي ځکه چي د هغه په حق کي په څرګنده فرمايل سوي دي : انه اقضاکم، يعني علي رضي الله عنه په تاسو ټولو کي لوی قاضي دی لکه څرنګه چي د حضرت ابی په حق کي يې وفرمايل: انه اقراکم، أبی په تاسو کي تر ټولو لوی قاري دی، او دحضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه په حق کي يې وفرمايل: انه اعلمکم بالحلال والحرام، يعني حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه په تاسو کي د حلال او حرام په علم کي تر ټولو زيات دی .

علامه طيبي رحمة الله عليه ليکلي دي: شيعه ګان په دغه حديث کي د ذکر سوي تمثيل څخه تمسک کوي چي د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه د علم او حکمت د رسېدو يوازينی ذريعه حضرت علي رضي الله عنه دی، د هغه څخه ماسوا بل چا ته په دغه (علم او حکمت) کي هيڅ هم تر لاسه کيدای نه سي ځکه چي په کور کي د داخلېدو اصل ذريعه دروازه کيدای سي لکه څرنګه چي په قرآن کريم کي هم فرمايل سوي دي: واتوا البيوت من ابوابها، او رسول الله صلى الله عليه وسلم خپل ځان د علم او حکمت کور ښودلی دی او د دغه کور دروازه يې حضرت علي رضي الله عنه ګرځولی دی، ځکه خضرت علي رضي الله عنه هغه دروازه ده چي د هغه په ذريعه د علم او حکمت په کور کي داخلېدل کيدای سي، مګر حقيقت دا دی چي شيعه ګان څه وايي د هغه هيڅ دليل په دغه حديث کي نسته ، بېله شکه د حضرت علي رضي الله عنه د علم او حکمت کور د جنت تر کور زيات پراخ نه دی حال دا چي د جنت اته دروازې دي نو د علم او حکمت د کور دروازې تر دې زياتي ولي نه سي .

په پای کي دا يادونه کول ضروري ده چي د دغه حديث اصل ناقل ابی الصلت عبد السلام بن صلاح هروي دی ، که څه هم شيعه دی مګر د محدثينو په نزد رېښتونی دی، د دې څخه ماسوا د دغه حديث په اړه د محدثينو اختلافي اقوال دی ، ځينو محدثينو دغه حديث ته صحيح ويلي دي او ځينو ورته حسن ، همدارنګه ځينو ضعيف ورته ويلي دي ، او ځيني ويلي دي چي منکر دی، يحيی بن معين ويلي دي: د دغه حديث هيڅ بنياد نسته ، ځينو خلکو د دغه حديث د موضوع ګرځولو هڅه هم کړې ده مګر حافظ ابو سعيد رحمة الله عليه وضاحت کړی دی چي دغه حديث د طريقو په اعتبار حسن دی ، نه صحيح دی او نه ضعيف دی او نه موضوع، محدثينو دغه حديث په دغه الفاظو کي نقل کړی دی: انا مدينة العلم وابوبکر اساسها وعمر حيطانها وعثمان سقفها وعلي بابها، يعني زه د علم ښار يم، ابوبکر رضي الله عنه د دغه ښار بنياد دی، عمر رضي الله عنه د دغه ښار فصيل دی، عثمان رضي الله عنه د دغه ښار بام دی او علي رضي الله عنه د دغه ښار دروازه ده .

## خاص فضيلت

﴿۵۸۳۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ دَعَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلِيًّا يَوْمَ الطَّائِفِ فَانْتَجَاهُ فَقَالَ النَّاسُ لَقَدْ طَالَ نَجْوَاهُ مَعَ ابْنِ عَمِّهِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا انْتَجَيْتُهُ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ انْتَجَاهُ. رواه الترمذي.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د طائف په ورځ حضرت علي رضي الله عنه راوغوښتی او د هغه سره يې په غوږ كي خبري وكړې ، (دغه خبرو ډير وخت واخيستی) نو خلكو وويل : رسول الله ﷺ د خپل اكا زوی سره تر ډيره وخته پوري خبري وكړې، ددې اوريدو سره رسول الله ﷺ وفرمايل : ما ورسره د راز خبري نه دي كړي بلكه الله تعالى ورسره د راز خبري كړي دي. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۹۷، رقم: ۳۷۲۶.

**د لغاتو حل**: انتجاه: من النجوى اي ساره. (د راز خبري)

**تشريح**: بلكه الله تعالى ورسره د راز خبري كړي دي: يعني الله جل جلاله ما ته حكم كړی وو چي ځيني خبري په پټه علي رضي الله عنه ته ورسوه ځكه د حكم الهي په عملي كولو كي ما د هغه سره پټې خبري وكړلې نه دا چي ما د هغه سره په غوږ كي خبري كولې چي د مجلس د ادب خلاف دی او هغه په غوږ كي خبري د الله جل جلاله د حكم په تعميل كي وې، نو په دغه صورت كي الله جل جلاله د هغه سره پټې خبري وكړلې ، ددغه مصداق په اعتبار دغه جمله داسي ده لكه چي د قرآن كريم دغه جمله ده:

وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ رَمٰى.

ژباړه: او تا شيګي ونه غورځولې بلكه هغه الله جل جلاله وغورځولې .

په دې اړه دا ويل زيات صحيح دي چي حضرت علي رضي الله عنه ته د رسول الله ﷺ د هغه پټو خبرو موضوع په اصل كي د هغه غزا په اړه داسي نكتې او د راز خبري ښودل وو چي د هغه تعلق د دين په ضمن كي د راتلونكو دنيوي انتظام او معاملاتو سره وو چي د هغه عامه يادونه د حكمت خلاف وه ، دا نه چي رسول الله ﷺ د الله جل جلاله له لوري د نازل سوي ديني خبري يا ديني چارو سره اړوند احكام د ټولو خلكو څخه پټ كړل او حضرت علي رضي الله عنه ته يې وركړل ، خپله حضرت علي

ﷺ د داسي خيال ترديد كړى دى ، د بخاري په روايت كي دي چي كله ځينو خلكو د حضرت علي ﷺ څخه پوښتنه وكړل : ايا ستاسو سره يو داسي شى سته چي د هغه ذكر په قرآن كريم كي نسته؟ حضرت علي ﷺ جواب وركړ : په هغه ذات دي مي قسم وي چي د مځكي څخه يې دانه را شنه كړې ده او ژوندي شيان يې پيدا كړي دي زما سره ددې څخه ماسوا بل هيڅ نسته ، څه چي په قرآن كريم كي موجود دي ، مګر د كتاب هغه پوهه ما ته تر لاسه ده چي (د الله ﷻ د خاص فضل او كرم په وجه ) بل چا ته ترلاسه وي، او دغه يوه صحيفه زما سره ده (چي په هغه كي د وراثت، ديت او نورو شيانو اړوند احكام ليكلي دي ) .

## خصوصي فضيلت

﴿۵۸۳۹﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعَلِيٍّ يَا

د حضرت ابوسعيد ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ حضرت علي ﷺ ته وفرمايل :

عَلِيُّ لَا يَحِلُّ لِأَحَدٍ أَنْ يُجْنِبَ فِي هَذَا الْمَسْجِدِ غَيْرِي وَغَيْرِكَ قَالَ عَلِيُّ بْنُ

زما او ستا څخه پرته هيڅ چا ته جائز نه ده چي هغه په جنابت كي مسجد ته دننه راسي، علی بن

الْمُنْذِرِ فَقُلْتُ لِضِرَارِ بْنِ صُرَدٍ مَا مَعْنَى هَذَا الْحَدِيثِ قَالَ لَا يَحِلُّ لِأَحَدٍ

منذر وايي ما د ضرار بن صرد څخه پوښتنه وكړه ددې حديث څه مطلب دى؟ هغه وويل : دا

يَسْتَطْرِقُهُ جُنُبًا غَيْرِي وَغَيْرِكَ. رواه الترمذي وقَالَ هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ

معنا يې ده چي زما او ستا څخه پرته هيچا ته د جنابت په حالت كي په دغه مسجد كي دننه تيريدل جائز نه دي، ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دى.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۹۷، رقم: ۳۷۲۷،

**تشريح**: اتفاقا د رسول الله ﷺ او حضرت علي ﷺ د كورو دروازې په مسجد نبوي كي دننه واقع وې او خپلو كورو ته د تللو يا راتللو په وخت كي هغوى په مسجد كي تېرېدل .

علي ابن منذر رحمه الله د دريمي هجري پېړۍ يو ستر شخصيت دى ، لوړ علمي مقام يې درلود مګر د عابد او زاهد كېدو په اعتبار هم ستر شخصيت وو ، ويل كيږي چي هغه پنځه پنځوس حجونه كړي وه ، د حديث د امامانو د يوې لوې ډلي څخه د حديثو د اورېدو او روايت كولو شرف يې په برخه وو ، كه څه هم شيعه وو مګر مستند فقيه او د محدثينو په اصطلاح

صدوق منل سوی دی او ابن حبان دهغه یادونه د حدیثو په باوري راویانو کې کړې ده .

**د خدای ﷻ محبوب رسول**

﴿۵۸۴۰﴾: وَعَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ قَالَتْ بَعَثَ رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَيْشًا فِيهِمْ عَلِيٌّ قَالَتْ فَسَمِعْتُ رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ رَافِعٌ يَدَيْهِ يَقُولُ اللَّهُمَّ لَا تُمِتْنِي حَتَّى تُرِيَنِي عَلِيًّا. رواه الترمذي.

د حضرت ام عطیه (رض) څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ یو ځای ته لښکر ولیږی چې حضرت علي رضي الله عنه هم په هغه کې وو، د بي بي ام عطیه بیان دی چې د علي رضي الله عنه د تلو څخه وروسته ما رسول الله ﷺ ولیدی چې لاسونه یې پورته کړي وه ویل یې چې اې الله ! ما ته تر هغه وخته پوري مرګ مه راولې تر څو پوري چې علي رضي الله عنه ونه وینم . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۰۱، رقم: ۳۷۳۷.

**تشريح**: د دغه حدیث څخه په ښه توګه اندازه لګیدای سي چې د رسول الله ﷺ له حضرت علي رضي الله عنه سره د کومې درجې تعلق او څومره زیاته مینه وه چې د هغه په بېلوالي غمجن کېدی .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ (دریم فصل)

**د علي رضي الله عنه سره بغض کونکی منافق دی**

﴿۵۸۴۱﴾: عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُحِبُّ عَلِيًّا مُنَافِقٌ وَلَا يَبْغَضُهُ مُؤْمِنٌ. رواه احمد والترمذي وقال هذا حديث حسن غريب اسنادا.

د حضرت ام سلمة (رض) څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل : د علي رضي الله عنه سره منافق محبت نه لري او د علي رضي الله عنه سره مؤمن بغض او دښمني نه لري ، احمد او ترمذي، ترمذي ویلي دي دا حدیث حسن دی او د اسناد له مخه غریب دی.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۹۳، رقم: ۳۷۱۷.

﴿۵۸۴۲﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ سَبَّ عَلِيًّا فَقَدْ سَبَّنِي. رواه احمد.

د حضرت ام سلمه (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: چا چي علي رضي الله عنه ته بد وويل نو هغه ما ته بد وويل. احمد.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ٦\٣٢٣.

**تشريح**: مطلب دا چي د حضرت علي رضي الله عنه په اړه بد ويل لکه د رسول الله ﷺ په شان کي بد ويل دي نو د حديث مقتضى داده چي کوم څوک د حضرت علي رضي الله عنه په شان کي بد ويل وکړي نو هغه بايد کافر کړل سي، يا دا چي بد ويونکي په هغه صورت کي کافر وګرځول سي کله چي هغه دغه بد ويل حلال وګڼي.

دغه روايت حاکم هم نقل کړی دی او طبراني د حضرت ابن اعباس رضي الله عنه په حواله دغه حديث نقل کړی دی چي: من سب اصحابي فعليه لعنة الله والملائكة والناس اجمعين، چا چي زما اصحابو ته بد وويل نو پر هغه دي د الله جل جلاله، د ملائکو او ټولو خلکو لعنت وي.

او طبراني د حضرت علي رضي الله عنه څخه داسي نقل کړي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: من سب الانبياء قتل ومن سب اصحابي جلد. څوک چي د انبياؤ په اړه بد ويل وکړي نو هغه دي ووژل سي او څوک چي زما د اصحابو په اړه بد ويل وکړي نو هغه دي په دُرو ووهل سي.

## يو مثال او يوه پشګوئي

﴿۵۸۴۳﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيكَ مَثَلٌ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ ما ته وفرمايل: په تا کي

مِنْ عِيسَى أَبْغَضَتْهُ الْيَهُودُ حَتَّى بَهَتُوا أُمَّهُ وَأَحَبَّتْهُ النَّصَارَى حَتَّى أَنْزَلُوهُ

د حضرت عيسى عليه السلام سره يو مشابهت دی، يهوديانو هغه بد وګڼل تر دې چي د هغه پر مور بي بي ېې د زنا تهمت ولګوی او نصاراوو دومره محبوب او خوښ وګرځوی چي هغه يې هغه

بِالْمَنْزِلَةِ الَّتِي لَيْسَ بِهِ ثُمَّ قَالَ يَهْلِكُ فِيَّ رَجُلَانِ مُحِبٌّ مُفْرِطٌ يُقَرِّظُنِي بِمَا لَيْسَ فِيَّ وَمُبْغِضٌ يَحْمِلُهُ شَنَآنِي عَلَى أَنْ يَبْهَتَنِي. رواه احمد.

درجې ته ورسوی چي د هغه لپاره ثابته نه ده ، (یعني د خدای زوی)، ددې څخه وروسته نبي کریم ﷺ وفرمایل : زما (یعني د علي) په معامله کي به دوه کسان هلاک سي ، یو خو هغه ډله چي زما سره ډیره مینه لري چي زما ښېګڼه ښیي کومي چي په ما کي نه وي، دویم هغه چي زما دښمن وي او زما سره له دې کبله دښمني کوي چي هغه پر ما تهمت وتړي. احمد.

**تخریج**: الامام احمد في مسنده ۱/۱۶۰.

**د لغاتو حل**: یقرطني: یمدحني.

**تشریح**: د حضرت عیسی علیه السلام د مثال په ذریعه رسول الله ﷺ چي د حضرت عیسی علیه السلام په حق کي کومه وړاند وینه وفرمایل او هغه ته یې خپله د حضرت علي رضی الله عنه سره اشاره وکړل نو هغه پوره سول ، روافضو او شیعه ګانو د علي رضی الله عنه په مینه کي د حد څخه دومره تجاوز وکړ چي پر ټولو اصحابو تر دې چي پر نبیانو هم د هغه د فضیلت قائل سول بلکه ځینو ډلو (لکه نصیریانو او داسي نورو) د حضرت علي رضی الله عنه مقام الوهیت ته ورسوی ، دهغوی په مقابله کي بله ډله د خارجیانو پیدا سول ، هغوی د حضرت علي رضی الله عنه په دښمني کي دغه حد ته ورسېدل چي لوی لوی بهتانونه یې د هغه پر شخصیت لګولي دي.

څرګنده سول چي محبت او عقیده هغه مستحسن او مطلوب دی چي نه د حد څخه متجاوز وي او د عقل او شریعت مسلمه مطابق وي، داسي محبت او عقیدت چي تر حد زیات وي په حقیقت کي ګمراهي ته بېول کوي او د غیر معتدل کېدو په سبب د سیده لاري څخه وځي، ددې نتیجه دا وي چي د عیسی علیه السلام مینه او عقیده لرونکي خلګ که څه هم په ظاهره مسلمان او دینداره معلومېږي ، پر ګمراه انسان ویلو باندي مجبوره کېږي.

اهل سنت والجماعت چي کوم شی پر سیده لاره روان کړی دی هغه د میني او عقیدې په اړه اعتدال او توازن دی چي د افراط او تفریط دواړو څخه خوندي وي، په هر حال د مؤمنانو د ژوند سرمایه دوه شیان دي یو د نبي کریم ﷺ د کورنۍ مینه او بل د اصحاب نبي تعظیم، کوم څوک چي ددغه سعادت په تر لاسه کولو سره دنیا او آخرت جوړول غواړي نو هغه باید ددغه دواړو په منځ کي اعتدال او توازن وساتي او په دغه اعتدال او توازن سره د دواړو مینه په خپله زړه کي ځای کړي.

امام احمد رحمه الله یو روایت نقل کړی دیچي سیدنا علي رضی الله عنه وفرمایل: یحبني اقوام حتی یدخلوا النار في حبي ویبغضني اقوام حتی یدخلوا النار في بغضي. ځیني ډلي به زما سره مینه

لري تر دې چي زما په مينه کي به د تجاوز په وجه په دوږخ کي واچول سي او ځيني ډلي به زما سره دښمني کوي تر دې چي زما د دښمنۍ په وجه به په دوږخ کي واچول سي.

امام احمد رحمة الله عليه د حضرت علي رضي الله عنه دغه دعاء نقل کړې ده: اللهم العن کل مبغض لنا وکل محب لنا غال، اې الله! زما سره پر دښمني کونکي باندي لعنت وکړې او زموږ سره پر تجاوز کوونکيو مينه کونکو باندي لعنت وکړې.

## د غدير خم واقعه

﴿۵۸۴۴﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ وَزَيْدِ بْنِ اَرْقَمَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت براء بن عازب او زيد بن ارقم (رضي الله عنهما) څخه روايت دی چي کله رسول الله

وَسَلَّمَ لَمَّا نَزَلَ بِغَدِيرِ خُمٍّ أَخَذَ بِيَدِ عَلِيٍّ فَقَالَ أَلَسْتُمْ تَعْلَمُونَ أَنِّي أَوْلَى

صلى الله عليه وسلم په غدير خم نامي ځای کي تم سو نو د علي رضي الله عنه لاس يې په خپل مبارک لاس کي واخيست او ورته وه يې فرمايل: ايا تاسو خلکو ته معلومه نه ده چي د مؤمنانو په نزد

وَسَلَّمَ لَمَّا نَزَلَ بِغَدِيرِ خُمٍّ أَخَذَ بِيَدِ عَلِيٍّ فَقَالَ أَلَسْتُمْ تَعْلَمُونَ أَنِّي أَوْلَى

زه (محمد صلى الله عليه وسلم) د هغوی د ځانونو څخه زيات عزيز او غوره يم. خلکو عرض وکړ هو، بيا رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ايا تاسو ته معلومه نه ده چي زه

بِالْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنْفُسِهِمْ قَالُوا بَلَى قَالَ أَلَسْتُمْ تَعْلَمُونَ أَنِّي أَوْلَى بِكُلِّ مُؤْمِنٍ

د هر مؤمن په نزد د هغه د ځان څخه زيات غوره او محبوب يم، خلکو وويل هو، بيا رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: آيا تاسو نه پوهېږئ چي زه د هر مؤمن په نزد

مِنْ نَفْسِهِ قَالُوا بَلَى فَقَالَ اللهم مَنْ كُنْتُ مَوْلَاهُ فَعَلِيٌّ مَوْلَاهُ اللَّهُمَّ وَالِ مَنْ

د هغه تر ځان غوره يم؟ خلکو وويل: هو. بيا رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: اې الله! د چا چي زه دوست يم علی د هغه دوست دی، اې الله دوستي وکړې

وَالَاهُ وَعَادِ مَنْ عَادَاهُ فَلَقِيَهُ عُمَرُ بَعْدَ ذٰلِكَ فَقَالَ هَنِيئًا يَا ابْنَ أَبِي طَالِبٍ أَصْبَحْتَ وَأَمْسَيْتَ مَوْلَى كُلِّ مُؤْمِنٍ وَمُؤْمِنَةٍ. رواه احمد.

له هغه سره چي دوستي کوي له علي رضي الله عنه سره او دښمني وکړي له هغه سره چي دښمني کوي له ده سره، ددې واقعې څخه وروسته حضرت علي رضي الله عنه د حضرت عمر رضي الله عنه سره ملاقات وکړ، حضرت عمر رضي الله عنه ورته وويل اې دابوطالب زويه! ته سهار او ماښام هر وخت خوشحاله اوسه د هر مؤمن سړي او هرې مؤمني ښځي دوست او محبوب يې. احمد.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۴\۲۸۱.

**د لغاتو حل**: غديرخم: اسم لغيضة على ثلاثة اميال من الجحفة.

**تشريح**: غدير خم د يو ځای نوم دی چي د مکې او مدينې په منځ کي حجفه ته نژدې واقع دی، د مکې څخه د جحفه فاصله تقريبا پنځوس يا شپېته ميله ده او د حجفه څخه غدير خم پر درې ميله فاصله باندي واقع دی، د هجرت په لسم کال رسول الله ﷺ د حجة الوداع د سفر څخه په ستنېدو دلته قيام کړی وو او هغه وخت ډېر صحابه کرام له رسول الله ﷺ سره ملګري وه چي رسول الله ﷺ را جمع کړل او د حضرت علي رضي الله عنه په اړه يې ذکر سوي الفاظ وفرمايل.

په دې خو تاسو پوهېږئ چي د مؤمنانو په نزد ......: د دغه الفاظو په ذريعه رسول الله ﷺ صحابه کرام د قرآن کريم دغه آيت: (النبي اولى بالمؤمنين من انفسهم...) يعني نبي د مؤمنانو په نزد د هغوی تر خپلو ځانو هم زيات محبوب وي، ته متوجه کړل او په يوه روايت کي راغلي دي چي رسول الله ﷺ دغه الفاظ درې ځله وفرمايل.

زه د هر مؤمن په نزد ...: مخکي خو رسول الله ﷺ په عامه توګه د مؤمنانو لفظ وفرمايه، او بيا يې دغه خبره په دوهم وار کولو سره د نور زيات وضاحت په وجه د هر مؤمن لفظ استعمال کړ، په هر حال د دغه الفاظو په ذريعه رسول الله ﷺ دې ته اشاره وفرمايل چي هر مؤمن چي زما سره تر خپل ځان زياته مينه لري، نو ددې يوه خاصه وجه داده چي زه مؤمنانو ته د هغه خبرو حکم ورکوم چي د هغوی د ديني او دنيوي غوره والي او خير ضامن دی، حال دا چي دهغوی خپل نفس د بشريت له غوښتني سره سم هغوی تباهي ته بېول غواړي او د انسان د فطرت سليمه غوښتنه ده چي هغه کوم ذات هر وخت خپل خير خواه ګڼي نو هغه د هغه ذات زيات عزيز او محبوب وګڼي کله چي هغه پر خپله خيرخواهي اماده ويني.

الهي! ته د هغه سره مينه ولرې.....: او په يوه روايت کي دلته د رسول الله ﷺ دغه ارشاد منقول دي: اللهم احب من حبه وابغض من ابغضه وانصر من نصره واخذل من خذله وادر الحق معه حيث دار، اې الله! ته د هغه چا سره مينه ولرې چي د علي رضي الله عنه سره مينه لري او د هغه چا سره بغض وکړې چي د علي رضي الله عنه سره بغض کوي او دهغه چا مرسته وکړې چي د علي رضي الله عنه مرسته

كوي او دهغه چا مرسته مه كوې چې د علي رضي الله عنه مرسته نه كوي او حق د علي رضي الله عنه سره دى چې كومې خوا ته علي رضي الله عنه وي هغه خوا ته حق وي.

**د شيعه ګانو باطل استدلال** : شيعه ګان چې د كومو حديثونو او روايتونو څخه د حضرت علي رضي الله عنه د بلافصل خلافت او د هغه پر فضيلت باندي استدلال كوي په هغو كي د غه حديث ته هغوى ډېر ټينګ او قوي دليل وركوي، دهغوى وينا ده چې : من كنت مولاه فعلي مولاه، د مولا معنى د عزيز او محبوب او مرسته كونكي نه ده بلكه د غه لفظ د اولى بالخلافت په معنى كي دى، هغوى په خپل دغه دليل كي د ماقبل عبارت الفاظ اولى بالمؤمنين وړاندي كوي او وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د خپل ځان په اړه كوم الفاظ فرمايلي وه د هغه معنى ده چې زه پر مؤمنانو باندي خپله د هغه د ځان څخه زيات د تصرف او حكومت حق لرم، هغوى وايي كه د دغه الفاظو معنى د مؤمنانو په نزد د هغوى تر ځانو هم زيات عزيز او محبوب مراد وي نو محض د دغه خبري د بيانولو لپاره د صحابه كرامو په دومره پاملرنه راجمع كول، هغوى ته په دومره اهميت سره د مخاطب كولو او د حضرت علي رضي الله عنه په حق كي د ذكر سوې دعاء كولو ضرورت نه وو، ځكه چې دغه خبره دومره څرګنده او عامه وه چې ټول صحابه كرام په پوهېدل او منل يې، د دې څخه ماسوا كومه دعاء چې يې د حضرت علي رضي الله عنه په حق كي وكړل هغه د دغه ذات څخه ماسوا د بل چا په حق كي كيداى نه سي چې امام معصوم مفروض الطاعة وي، همدارنګه شيعه ګان دا نيتجه اخلي چې د دغه حديث څخه د پوره امت په حق كي چې د (ولا) د ځان لپاره بيان كړ هغه (ولا) د حضرت علي رضي الله عنه لپاره په څرګنده توګه ثابت سو نو دغه حديث د حضرت علي رضي الله عنه د خلافت بلافصل په حق كي نص قطعي او صريح دى.

**الزامي جواب** : دا بايد ومنل سي چې دغه حديث صحيح دى، د حديثو د امامانو لكه امام ترمذي، امام نسائي، امام احمد او نورو دغه حديث نقل كړى دى، د دې طريقې هم ډېري دي او د اسناد ډېر والي صحاح او حسان دى، شپاړلس صحابه كرام د دغه حديث راويان دي بلكه امام احمد رحمه الله په يوه روايت كي نقل كړي دي چې حضرت علي رضي الله عنه خپله د خلافت په زمانه كي په يو ځاى كي كله چې دهغه د مخالفينو ډله د هغه خلافت د جګړې مسئله جوړه كړې وه، خلګ په يو ميدان كي راجمع كړل او هغوى ته يې وفرمايل چې په تاسو كي هر يوه ته قسم دركوم او پوښتنه كوم چې تاسو د غدير خم په ځاى كي د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه څه اورېدلي دي، هغه بيان كړئ، نو پر دې خبره ډېرشو صحابه كرامو دغه حديث بيان كړ او د خلافت علي رضي الله عنه په حق كي يې شاهدي وركړل، نو د دې خبري زيات ارزښت نسته چې ځينو حضراتو د دغه حديث په صحيح

کېدو کي کلام کړی دی، یا دا یې ویلي دي چي د حدیث آخري برخه: اللهم وال من والاه...الخ،
په حقیقت کي د دغه حدیث جزء نه دی او وروسته د دغه حدیث جزء جوړ سوی دی، په دې کي
هیڅ شک نسته چي دغه برخه هم د حدیث برخه ده او په ډېرو طریقو سره نقل سوی دی چي په
هغه کي اکثر ذهبي رحمة الله عليه صحیح ګرځولي دي، مګر کوم چي د دغه حدیث سره د شیعه ګانو د
ذکر سوي استدلال تعلق دی نو د هغه یقینا څه بنیاد نسته، هغوي چي څه وایي نو هغوی ته د
ناپوهۍ یا غلط فهمۍ څخه ماسوا نور څه نه سي ویل کېدای، د الزامي جواب په توګه تر ټولو
مخکي خبره خو شیعه ګانو ته دا ویل کیږي چي خپله تاسو پر دې خبره متفق یاست چي د امامت
په مسئله کي د دلیل په توګه د تواتر اعتبار وي یعني د امامت او خلافت د استحقاق ثابتولو
لپاره هغه حدیث معتبر ګرځول کیږي چي متواتر وي، کوم حدیث چي متواتر نه وي په هغه سره
د امامت پر صحت باندي استدلال نه کیږي، او دغه حدیث چي تاسو یې د نص قطعي او صحیح
په ګرځولو سره خپل استدلال ګرځوئ په یقیني توګه متواتر نه دی او یوازي دا نه بلکه د دغه
حدیث په صحیح کیدو کي هم اختلاف دی، دا بېله خبره ده چي دغه اختلاف قبول نه کړل سو،
کومو حضراتو چي دغه حدیث مطعون ګرځولی دی په هغوی کي د ابوداؤد سجستاني او
ابوحاتم رازي په ډول د حدیثو امامان او ارباب عدل هم شامل دي، چي هغوی ته په علم حدیث
کي رجوع کیږي، او د هغوی ذات د محدثینو په نزد مرجع منل کیږي،

د دې څخه ماسوا اهل حفظ واتقان مثلا بخاري، مسلم، واقدي او نورو اکابرو محدثینو
رحمهم الله کي هیڅا دغه حدیث نقل کړی نه دی حال دا چي دغه حضرات د حدیث په طلب او پلټنه
کي ښار په ښار او کلي په کلي ګرځېدل او د صحیح حدیثونو په یو ځای کولو سره به یې جمع
کول، یعني دغه خبره نه په فني توګه د دغه حدیث په صحت کي خنډ اچوي او نه موږ د دغه
حدیث د صحیح کېدو څخه انکار کوو مګر ایا دا د حیرت او تعجب خبره نه ده چي داسي حدیث
د حدیث متواتر ګرځولو هڅه وکړل سي، حال دا چي شیعه ګان د صحت امامت په دلیل کي د
حدیث متواتر کېدل شرط مني نو د دې صاف مطلب د دې څخه ماسوا نو رڅه دی چي هغوی دغه
حدیث د نص قطعي او صریح په منلو سره دغه حدیث متواتر ګرځي.

**د مولا لفظ معنی**: اوس راځئ چي دا وګورو چي شیعه ګانو د مولا لفظ پر بنیاد دغه حدیث
د حضرت علي رضي الله عنه د خلافت پر استحقاق باندي نص صریح ګرځوي، د دې حقیقت څه دی، د
مولا لفظ یوه او دوې نه بلکه ډېري معناوي دي، رب، مالک، بادار، مرسته کونکي، دوست،
تابع، پیروي کوونکی، همسایه، د اکا زوی، حلیف، زوم، ازاد سوی غلام، احسان مند او

داسي نوري معناوي يې دي، دا منل سوي اصول دي كه په يو كلام كي يو داسي لفظ استعمال سي چي مختلفي معناوي ولري او په هغه كي يوه معنى د بل سره ورته والى او اشتراک هم ولري نو په هغه كي د يو خاص معنى متعين كول او مراد اخيستل به په هغه صورت كي معتبر وي كله چي د هغه يو دليل او ثرگنده قرينه موجود وي، يا كه چيري هغه لفظ اختلافي سوى وي نو هغه معنى مراد اخيستل به زيات صحيح گڼل كيږي چي په هغه كي لږ غوندي اشتراک ترلاسه كيږي، ددغه اصولو سره سم اهل سنت والجماعت وايي چي د مولا لفظ معنى د حاكم او والي مراد اخيستل صحيح نه دي ، صحيح معنى يې د دوست او مرسته كونكي اخيستل دي، ځكه چي اول خو د حديث سياق او ثرگنده قرينه ددې معنى په حق كي دى ،

دوهم دليل دا چي لفظ دمولا د امام يعني حاكم او والي په معنى كي مستعمل كېدل معهود او معلوم نه دى ، نه په لغت كي او نه په شريعت كي، د لغاتو په امامانو كي هيچا دا يادونه نه ده كړې چي مفعل بمعنى مولا راځي يعني دا خو ويل كيږي چي دغه شى د فلاني شي ثخخه غوره دى مگر دا نه ويل كيږي چي دغه شى د فلانى شى ثخخه مولا دى، دوهم دا چي خپله شيعه گان حضرت علي رضي الله عنه ته د ټول امت دوست او مرسته كوونكى وايي نو ددغه قدر مشترک په اعتبار ددغه لفظ دا معنى مراد اخيستل زيات مناسب دي ، پاته سوه دا خبره كه چيري رسول الله ﷺ دغه مفهوم مراد اخيستى واى نو بيا په دومره پابندۍ سره د بيانولو ثخه ارتيا وه حال دا چي دغه خبره ټولو ته معلومه وه نو ددغه موالات په بيانولو سره د رسول الله ﷺ اصل مقصد خلک پر دې خبره باندي متنبه كول وو چي هيڅوک دي د علي رضي الله عنه سره بغض او عناد نه كوي،

ددغه خبرداري د اظهار لپاره اړينه وه چي خلک جمع كړل سي او بيا د علي رضي الله عنه د عظمت او بزرگۍ ثابتولو لپاره په دغه الفاظو سره د هغه منقبت بيان كړل سي، ځكه رسول الله ﷺ مخكي داسي وفرمايل: الستم تعلمون اني اولى بالمؤمنين، او بيا وروسته چي يې كومه دعاء وكړل هغه هم ددغه الفاظو په مناسبت سره وه ، ثرگنده دي وي چي دغه روايت په كومو نورو طريقو سره منقول دى په هغو كي په ځينو طريقو كي مخكي خو داهل بيت نبوت ذكر دى او بيا د حضرت علي رضي الله عنه خاص ذكر دى ، ددې ثخخه هم دا ثابتيږي چي د رسول الله ﷺ اصل مقصد د ټولو اهل بيتو په خاصه توگه د حضرت علي رضي الله عنه مينه او توقير ته خلک متوجه كول او په دې باره كي تاكيد كول وو ، يعني د روايتو ثخخه هم دا ثابته ده چي دغه ارشاد په اصل كي د هغه ضرورت لپاره وو چي ځينو صحابه كرامو ته پر هغه شكايت باندي خبرداري وركړل سي چي هغوى د حضرت علي رضي الله عنه پر خلاف اظهار كړى وو ، دا هغه صحابه كرام وه چي د يو پټ عمليات

لپاره د حضرت علي رضي الله عنه سره يمن ته تللي وه ، كله چي دغه صحابه كرامو د حضرت علي رضي الله عنه سره د حجة الوداع په موقع کي يمن ته راغلل او د رسول الله ﷺ سره په حج کي شريک سول نو هغوی د حضرت علي رضي الله عنه نسبت په ځينو معاملاتو کي رسول الله ﷺ ځيني شكايتونه بيان كړل چي د اهل يمن د ځينو غلط فهميو په وجه پيدا سوي وه، نه يوازي دا بلكه ځينو صحابه كرامو د حضرت علي رضي الله عنه د ځينو خبري انكار هم كړی وو، په هغه صحابه كرامو کي يو صحابي بريده اسلمي رضي الله عنه هم وو ، د صحيح بخاري په روايت کي چي ذهبي صحيح گرځولی دی داسي دي چي كله رسول الله ﷺ د حضرت علي رضي الله عنه په شان کي د هغه صحابه كرامو شكايت واوريدی نو (د غصي له موخي يې ) مخ مبارک بدل سو او وه يې فرمايل: اې بريده! ايا تا ته معلومه نه ده چي د مؤمنانو په نزد زه د هغوی تر ځانو هم زيات نژدې او محبوب يم، او بيا يې هغه الفاظ وفرمايل كوم چي په حديث کي تېر سول، خبره ډېره ارزښتناكه وه ځكه رسول الله ﷺ ټول صحابه كرام راجمع كړل او د تاكيد په توگه يې هغوی ته دغه ارشاد وفرمايه .

**دعوه بيا هم نه ثابتيږي** : داهل سنت والجماعت علماء وايي چي موږ ومنل چي په دغه حديث کي دمولا لفظ د اولی په معنی دی مگر دا چيري لازميږي چي په امامت او حكومت کي اولی مراد دی، داهم كيدای سي چي په قرابت او اتباع کي د اولی معنی مراد وي ، ددې قرينه د قرآن كريم په دغه آيت کي هم موجود ده:

إِنَّ أَوْلَى النَّاسِ بِإِبْرَاهِيمَ لَلَّذِينَ اتَّبَعُوهُ

ژباړه: بېله شكه چي د ابراهيم عليه السلام سره تر ټولو زياته ځانگړتيا او قرابت هغه خلكو درلود چا چي د هغه اتباع كړې وه .

د شيعه گانو سره دليل قطعي خو څه يو ظاهر داسي دليل هم نسته چي ددغه احتمال نفي كوونكی وي، او بيا كه موږ دا هم ومنو چي په امامت او حكومت کي اولی مراد دی مگر دا خو دي ونښيي چي ددغه لفظ څخه ښكاره نور وضاحته د في الحال او بلافصل د قيد لزوم د كوم دليل څخه منل سوي دي ، داسي هيڅ دليل او څرگنده قرينه موجود نه ده چي دا ثابته كړي كه ددغه لفظ څخه رسول الله ﷺ اولی بالحكومت مراد اخيستي وي نو د رسول الله ﷺ مراد دا هم وو چي علي رضي الله عنه په دغه وخت کي زما ولي عهد دی او زما لومړنی خليفه ټاكل سوی دی، داهم كيدای سي چي رسول الله ﷺ د مال په اعتبار اولی بالحكومت مراد اخيستی وي ، يعني رسول الله ﷺ ددغه لفظ په ذريعه دې ته اشاره كړې وي چي يو وخت به داسي راسي چي حضرت علي

رضی اللہ عنہ به په ټولو مسلمانانو کي افضل او غوره وي او د امامت او خلافت دنده به سنبال کړي، په دې کي شک نسته چي په دغه معنی کي خو اهل سنت والجماعت هم د حضرت علي رضی اللہ عنہ اولی بالخلافت مني کله چي د هغه وخت راغلی نو د مسلمانانو هغه د اولی بالخلافت په ګرځولو سره د خلافت پر دنده باندي متمکن کړ او هغه وخت په مسلمانانو کي تر ټولو افضل او غوره وګرځېدی، لنډه دا چي مولا د اولی په معنی کي منلو څخه وروسته هم د شیعه ګانو دعوه په هیڅ ډول نه ثابتیږي.

**خپله د حضرت علي رضی اللہ عنہ څخه د چا تائید ثابتیږي**: د شیعه ګانو دا خبره خو وروسته ده چي هغوی دغه حدیث د حضرت علي رضی اللہ عنہ پر خلافت بلافصل باندي نص قطعي مني او د مولی لفظ هغه معنی مراد اخلي چي په لغوي، نقلي او عقلي توګه په هیڅ ډول هم نه ثابتیږي، تر دې مخکي خو د حضرت علي رضی اللہ عنہ ذات دی چي د دغه حدیث سره د هغه تعلق دی او هغه صاحب معامله هم دی نو باید وکتل سي چي خپله حضرت علي رضی اللہ عنہ هم د دغه حدیث هغه مفهوم مراد اخیستی دی کوم چي شیعه علماء بیانوي یا د هغوی په نزد د دغه حدیث هغه معنی ده کوم چي اهل سنت والجماعت مراد اخلي تر څو چي د تحقیق او د روایت تعلق دی نو بېله شکه دغه نتیجه اخیستل کیږي چي د حضرت علي رضی اللہ عنہ په نزد د دغه حدیث هغه مفهوم او مطلب نه وو کوم چي شیعه علماء یې بیانوي.

لومړی دلیل خو دادی چي حضرت ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ، حضرت عمر رضی اللہ عنہ او حضرت عثمان رضی اللہ عنہ په ترتیب سره خلافت د حضرت علي رضی اللہ عنہ د خلافت څخه مقدم وو او دغه خلافت د امت په اجماع قائم سوی وو او حضرت علي رضی اللہ عنہ هم په دغه اجماع کي شامل وو، قطع نظر د دې خبري چي ځیني صریح روایتونه د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم څخه وروسته د حضرت ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ خلیفه کېدل څرګندوي، که په دغه حدیث کي د حضرت علي رضی اللہ عنہ خلافت بلافصل او د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم څخه وروسته پر ټول امت باندي د هغه فضیلت ته صراحتا اشاره کول وي نو حضرت علي رضی اللہ عنہ به په هیڅ اجماع کي ګډون نه کولای، نه یوازي دا چي حضرت ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ لومړی خلیفه وټاکی بلکه وروسته حضرت عمر رضی اللہ عنہ او بیا د حضرت عثمان رضی اللہ عنہ خلافت یې قائم کړ، دوهم دلیل دادی که چیري د شیعه علماؤ په قول دغه حدیث د حضرت علي رضی اللہ عنہ په اړه د خلافت بلافصل نص قطعي وي نو حضرت علي رضی اللہ عنہ یا حضرت عباس رضی اللہ عنہ یا د اهل بیتو څخه بل څوک د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم د وصال څخه سمدستي وروسته کله چي د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم د خلافت مسئله مشورې ته وړاندي سول، دغه حدیث به یې وړاندي کړی وای او په دې وجه به یې د استحقاق علي

دعوه کړې وه، مګر داسي وسول چي حضرت علي رضی الله عنه د تقويت او حمايت ترلاسه کولو لپاره دغه حديث که د مثال په توګه وړاندي هم کړنو هغه وخت يې وړاندي کړ کله چي هغه د خلافت پر دنده فائز سوی وو او نورو ډلو د هغه د خلافت څخه مخ ګرځوی، دا ددې خبري څرګند ثبوت دی چي حضرت علي رضی الله عنه ښه پوهېدی چي دغه حديث د رسول الله ﷺ د سمدستي وصال څخه وروسته د هغه پر استحقاق خلافت باندي نص نه وړاندي کوي، دريم دليل دا چي د ځينو صحيح روايتونو مطابق خپله حضرت علي رضی الله عنه وضاحت کړی وو چي د رسول الله ﷺ څخه هيڅ داسي شی منصوص نه دی چي د هغه څخه د هغه يا بل چا خلافت ثابتيږي،

دلته يوازي پر دغه نکته باندي مرکوز کېدل دي چي حضرت علي رضی الله عنه دغه حديث پر خپل خلافت بلا فصل باندي نص نه منی ، څلورم دليل هغه روايت دی چي په صحيح بخاري او نورو کتابو کي راغلی دی چي رسول الله ﷺ په مرض الموت کي يوه ورځ چي حضرت علي رضی الله عنه او حضرت عباس رضی الله عنهما رسول الله ﷺ ته راغلل نو حضرت عباس رضی الله عنه، حضرت علي رضی الله عنه ته وويل: رسول الله ﷺ ته ذدغه امر يعني خلافت په غوښتنه کولو سره وګوره، که دغه عزت زموږ په کورنۍ کي پاته سي نو ښه به وي، چي موږ ته ددې علم خپله د رسول الله ﷺ د ارشاد په ذريعه وسي مګر حضرت علي رضی الله عنه د حضرت عباس رضی الله عنه دغه خبره ونه منل او انکار يې وکړ چي زه داسي هيڅ غوښتنه د رسول الله ﷺ څخه نه کوم، ددې څخه هم په ښه ډول ثابته سول چي د شيعه ګانو دعوه هيڅ ارزښت نه لري که دغه حديث د حضرت علي رضی الله عنه د خلافت بلا فصل په حق کي نص وي نو په دې اړه رسول الله ﷺ ته د رجوع کولو ضرورت به ولي پېښېدی، او حضرت عباس رضی الله عنه به دغه خبره ولي کول چي ښه به وي، چي موږ ته ددې علم خپله د رسول الله ﷺ د ارشاد په ذريعه وسي، په داسي حال کي چي ددغه حديث او غدير خم پېښه دوې يا دوې نيمې مياشتي مخکي پېښه سوې وه او بالکل د نژدې پېښېدو په وجه د هغه دواړو حضراتو په ذهن کي په پوره توګه تازه وه.

**د مولی لفظ معنی ټولو صحابه کرامو څه ګڼلې ده؟** د غدير خم د پېښې په ورځ تقريبا يونيم لک مؤمنان موجود وه او په هغه اجماع کي زيات هغه صحابه کرام موجود وه چي د هغوی د ايمان او عمل، او د صدق او امانت شهادت په کلام الله او کلام رسول کي په زياتوب سره وارد دی، ددغه ټولي ډلي مورنۍ ژبه عربي وه او په هغه ډله کي لوی لوی فصيحان او اديبان هم موجود وه ، دلته يو لوی ارزښتناکه سوال پيدا کيږي چي هغه ټولو دغه حديث د رسول الله ﷺ د ژبي مبارکي څخه واورېدی او د هغه په مطلب پوه سوي وه او مولا لفظ څه معنی

هغوی مراد اخیستې وه، ایا په هغه اجتماع کي ددغه کلام هغه مطلب اخذ کړل سوی وو کوم چي اهل سنت والجماعت يې بيانوي يعني د حضرت علي ﷺ د میني او تاکید، یا هغه مطلب اخیستل سوی وو کوم چي شیعه ګان يې بيانوي يعني د رسول الله ﷺ خلافت بلافصل او د رسول الله ﷺ د ولي عهدی اعلان، ددغه سوال څرګند جواب د نه رد کېدونکو وجهو پر بناء دادی چي دغدیر په ورځ ټولو حاضرينو ددغه حدیث مطلب او د مولا لفظ معنی هغه اخیستې وه چي اهل سنت والجماعت يې بيانوي، هغه ټولو خلګو د رسول الله ﷺ دوفات څخه وروسته چي په اتفاق سره د حضرت ابوبکر صدیق ﷺ بیعت وکړ هغه يې د رسول الله ﷺ لومړی خلیفه ومنی او د حضرت علي ﷺ د بیعت خلافت هغوی هیڅ یادونه ونه کړل نو دا ددې خبري ټینګ دلیل دی چي هغوی په ښه ډول پوهېدل چي ددغه حدیث څخه د حضرت علي ﷺ خلافت بلا فصل مراد نه دی، نه دا خبره قیاس ته نژدې ده چي د غدیر د پېښي محص دوې یا دوې نیمي میاشتي وروسته تقریبا د یو نیم لکو کسانو جماعت د حضرت ابوبکر صدیق ﷺ په لاس بیعت وکړ او دغه حدیث يې هېر کړ او نه عقل دا منلای سي چي یو نیم لک مؤمنان په دین او دیانت کي ټول ددغه ارشاد څخه منحرف سوي وي، یا هغوی دغه حدیث د غفلت په وجه پرې ایښی وي، ددې څخه ماسوا دا حقیقت هم باید په مخکي وي چي په ځینو روایتو کي راغلي دي چي د غدیر د پېښي څخه وروسته یوه ورځ رسول الله ﷺ د صحابه کرامو په مخکي خطبه وفرمایل او په هغه کي د حضرت ابوبکر صدیق او حضرت عمر فاروق ﷺ شان فضیلت او د هغوی د استحقاق ښکاره کولو لپاره هغه دواړو ته په مخاطب کولو سره وفرمایل: زما څخه وروسته پر تاسو هیڅ حاکم حکومت نه کوي، څرګنده ده که د ذکر سوي حدیث څخه د رسول الله ﷺ مراد د حضرت علي ﷺ خلیفه ټاکل وي نو بیا وروسته په حدیث کي د حضرت ابوبکر صدیق او حضرت عمر فاروق ﷺ په مخاطب کولو سره به يې داسي هیڅکله نه فرمایل چي زما څخه وروسته به پر تاسو هیڅ حاکم حکومت نه کوي، (یعني تاسو به حاکمان یاست)، د څرګنده دلیلونو او براهینو په ذریعه ثابته ده چي ددغه حدیث څخه د رسول الله ﷺ اصل مقصد د حضرت علي ﷺ محبت او د هغه سره د ښه تعلق قائمولو تلقین او تائید کول دي او د اهل بیتو په اړه دا تلقین او تاکید رسول الله ﷺ پر ډېرو ځایو باندي فرمایلی دی مګر د محبت او خلافت په منځ کي په هرحال چي کوم فرق دی هغه د اهل نظر څخه پټ دی.

**پر ټولو صحابه کرامو باندي د ارتداد الزام** : د شیعه ګانو وینا ده چي د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته او د حضرت ابوبکر صدیق ﷺ د بیعت په وخت کي دغه حدیث د ټولو

صحابه کرامو په ذهن کي وو، هيڅا هېر کړی نه وو مګر هغوی ټولو د ظلم او تيري، بغض او عناد په وجه د رسول الله ﷺ د دغه ارشاد څخه په ډاګه انحراف وکړ، دا په اصل کي د شيعه ګانو يوه مستقله عقيده ده، هغوی صحابه کرامو ته ګمراه وايي بلکه روافض خو د هغوی د ارتداد او کفر قائل دي، دهغوی وينا ده چي د رسول الله ﷺ د وفات کېدو سره ټول مسلمانان مرتد سوي وه او علي رضي الله عنه او د هغوی څو ملګرو څخه ماسوا نور ټول صحابه کرام له دنيا څخه د کفر په حالت کي رخصت سول (معاذ الله).

**پر حضرت علي رضي الله عنه باندي تهمت**: شيعه ګان دا هم وايي چي امير المؤمنين حضرت علي رضي الله عنه د خلفاء ثلاثه په بيعت کي چي ګډون وکړ يا هغه په دغه وخت کي د خپل خلافت دعوه ونه کړل يا هغه د خلافت بلافصل ثابتولو لپاره ددغه حديث څخه استدلال ونه کړ نو د هغه سبب تقيه وه، يعني هغه د ظلم او بيري څخه حق پټ کړ، د مجبورۍ او زور په وجه يې د خلفاء ثلاثه په بيعت کي ګډون وکړ او د عامو مسلمانانو د ټولنيز او سياسي طاقت سره سم د غاصبينو يعني د ابوبکر صديق، عمر فاروق او عثمان رضي الله عنهم د خلافت څخه يې انحراف ونه کړ، او همدا رنګه دغه ناپوهان د درواغو او افتراء په ذريعه د حضرت علي رضي الله عنه پر ذات د بې غيرتۍ او کم همتۍ ويلو مرتکب سو، ځکه چي سيدنا علي رضي الله عنه خو مره ستر افرادي او ذاتي طاقت درلود او د کوم بې مثال مېړانه خاوند وو د هغه په وجه دا خبره ممکن نه ده چي هغه د خپل خلافت بلافصل لپاره دغه نص او رېدلی وي او د ضرورت په وخت کي د وړاندي کولو او په دې باندي د عمل کولو څخه منع سوی وي.

**هغوی ته دا احساس نسته چي د صحابه کرامو په اړه خبره رسول الله ﷺ ته رسيږي**: د صحابه کرامو او صدر اول مؤمنانو په اړه دومره جارحانه او سختې عقيدې درلودلو په صورت کي روافضو چي کوم نظر اختيار کړی دی ددې سبب د دين او اسلام باطل ګرځول لازميږي ځکه چي هغه سترو کسانو چي ددين او شريعت د نقل او روايت مدار دي که د شيعه او رافضي ډلي په قول محض د نفسياتي جذباتو او خواهشاتو سره نصوص پټولای سي د ظلم او تيري لار اختيارولای سي پر حق باندي د درواغو او افتراء پرده اچولې سي نو بيا څه شی پاته کيږي چي په څرګنده ثابت کړي چي دغه کسانو موږ ته اسلام را رسولی دی او د حديثونو او روايتونو په صورت کي د دين او شريعت کومه بنيادي سرمايه چي موږ ته منتقل سوې ده هغه ټول لغو او باطل دي، معاذ الله، بلکه په حقيقت کي خو خبره رسول الله ﷺ ته رسيږي چي (معاذ الله) د غير معتبرو، بد ديانته او داسي بې کرداره خلګو دومره لويه ډله د رسول الله ﷺ

په صحبت کي ډېر وخت پاته وه چي هغه ته د رسول الله ﷺ د يو ربع صدۍ د پرله پسې تبليغي هڅي او تربيتي هڅو هم ددين او مذهب او د اخلاقو او کړنو پر سيده لاره باندي په تللو کي کامياب نه سو، والله ان هذا لشئ عجاب، او بيا څرنګه چي مخکي يادونه وسول چي خپله د سيدنا علي رضي الله عنه ذات هم خوندي پاته نه سو، يو لوی الزام خو پر هغه هم راځي چي هغه د حق په تاکيد کولو او د حق په غوښتلو کي سستي او کمزوري وښودل او د سستۍ لاري يې اختيار کړل.

## د بي بي فاطمې (رض) نکاح

﴿۵۸۴۵﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ خَطَبَ أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا فَاطِمَةَ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّهَا صَغِيرَةٌ فَخَطَبَهَا عَلِيٌّ فَزَوَّجَهَا مِنْهُ. رواه النسائي.

د حضرت بريده رضي الله عنه څخه روايت دی چي ابوبکر او عمر رضي الله عنهما د بي بي فاطمې لپاره خپل پيغام وليږی (يعني دواده) ددې پيغام په جواب کي رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: فاطمه اوس کوچنۍ ده، بيا علي رضي الله عنه خپل پيغام ورولیږی او رسول الله ﷺ د بي بي فاطمې او حضرت علي رضي الله عنه نکاح سره وکړل. نسائي.

**تخريج**: سنن النسائي ٦\٦٢، رقم: ٣٢٢١.

**تشريح**: هغه کم عمره ده، او په يوه روايت کي د (فسکت) الفاظ دي يعني رسول الله ﷺ د هغه پر پيغام پټه خوله سو او جواب يې نه ورکړ، کېدای سي چي دغه جواب ورکول په بل وار پيغام ورکولو باندي سوی وي يعني په اول وار خو رسول الله ﷺ سکوت اختيار کړی وي بيا کله هغه په دوهم وار پيغام ورکړی وي نو رسول الله ﷺ دغه جواب ورکړی وي چي فاطمه رضي الله عنها کم عمره ده

بيا چي حضرت علي رضي الله عنه .... : په ځينو روايتو کي راغلي دي چي ام ايمن رضي الله عنها، حضرت علي رضي الله عنه ته وويل چي د فاطمې رضي الله عنها لپاره ته ولي د رسول الله ﷺ څخه غوښتنه نه کوې، ته خو د رسول الله ﷺ د اکا زوی يې ستا د غوښتني منلو زيات امکان دی، حضرت علي رضي الله عنه د دې په اورېدو سره جواب ورکړ چي ددغه خبري په کولو سره ما ته شرم محسوسيږي، بيا په يوه بله ذريعه دغه خبره رسول الله ﷺ ته ورسېدل نو رسول الله ﷺ د خوښۍ اظهار وکړ او کله چي حضرت علي رضي الله عنه ته د رسول الله ﷺ خوښي معلومه سول نو هغه خپله غوښتنه د رسول الله ﷺ په وړاندي وکړل او رسول الله ﷺ د بي بي فاطمې رضي الله عنها نکاح د هغه سره وکړل.

په يو بل روايت كي چي ابو الخير قزويني د حضرت انس بن مالك رضي الله عنه څخه نقل كړى دى د بي بي فاطمې رضي الله عنها د نكاح پېښه په تفصيل سره داسي بيان سوې ده چي مخكي ابوبكر صديق رضي الله عنه د بي بي فاطمې رضي الله عنها لپاره رسول الله ﷺ ته درخواست وكړ نو رسول الله ﷺ هغه ته جواب وركړ چي اې ابوبكر! د فاطمې په اړه تر څو الهي فيصله نه ده نازل سوې، بيا حضرت عمر رضي الله عنه او بيا نورو قريشو درخواست وكړ نو رسول الله ﷺ ټولو ته دغه جواب وركړ كوم چي يې ابوبكر صديق رضي الله عنه ته وركړى وو، بيا وروسته ځينو خلكو حضرت علي رضي الله عنه ته وويل كه چيري ته د فاطمې رضي الله عنها لپاره رسول الله ﷺ ته درخواست وكړې نو كيداى سي چي رسول الله ﷺ د هغې نكاح ستا سره وكړي، حضرت علي رضي الله عنه ورته وويل چي كله د قريشو عزتمندو خلكو ددغه درخواست قبوليت تر لاسه نه كړ نو بيا زه د خپل درخواست اميد څرنگه ولرم، په پاى كي حضرت علي رضي الله عنه پيغام وليږى او د هغه د پيغام په اړه رسول الله ﷺ وفرمايل: زما پروردګار ما ته دا حكم راكړى دى، حضرت انس رضي الله عنه وايي چي څو ورځي وروسته رسول الله ﷺ زه وغوښتلم او راته يې وفرمايل: ولاړ سه او ابوبكر، عمربن خطاب، عثمان بن عفان، عبد الرحمن بن عوف، سعد بن ابي وقاص، طلحه، زبير رضي الله عنهم او په انصارو فلانى او فلانى ما ته راوغواړه، انس رضي الله عنه وايي ما هغه ټول راوبلل او ټول د رسول الله ﷺ په مخكي پر خپلو خپلو ځايو كښېنستل، هغه وخت حضرت علي رضي الله عنه د يو كار لپاره تللى وو، رسول الله ﷺ دغه خطبه وفرمايل:

الحمد لله المحمود بنعمته المعبود بقدرته المطاع بسلطانه المرهوب من عذابه وسطوته النافذ امره في سمائه وارضه الذي خلق الخلق بقدرته وميزهم باحكامه واعزهم بدينه واكرمهم بنبيه محمد ﷺ، ان الله تبارك وتعالى اسمه وعظمته جعل المصاهرة سببا لاحقا وامرا مفترضا او شج به الارحام والزمه للانام فقال عز من قائل وهو الذي خلق من الماء بشرا فجعله نسبا وصهرا وكان ربك قديرا وامر الله تعالى يجري الى قضائه وقضاوه يجري الى قدره ولكل قضاء قدر ولكل قدر اجل ولكل اجل كتاب يمحو الله مايشاء ويثبت وعنده ام الكتاب.

بيا يې وفرمايل: الله جل جلاله ما ته حكم كړى دى چي زه د خپلي لور فاطمه بنت خديجة رضي الله عنها نكاح د علي بن ابي طالب رضي الله عنه سره وكړم، نو تاسو خلک شاهدان اوسئ چي ما د فاطمې رضي الله عنها نكاح په څلور سوه مثقاله سپينو زرو وكړل، كه علي رضي الله عنه راضي وي، بيا رسول الله ﷺ يو غاب راوغوښتى او زموږ مخكي يې كښېښود اووه يې فرمايل: وه يې خورئ، موږ هغه خوړل چي ناڅاپه علي رضي الله عنه هم راغلى او د رسول الله ﷺ نژدې كښېنستى، رسول الله ﷺ د هغه په لېدو سره وخندل او بيا يې هغه ته په كتلو سره وفرمايل: الله جل جلاله ما ته حكم راكړى دى چي ستا سره د

فاطمې ﷞ نكاح په څلور سوه مثقاله سپينو زرو وكړم كه ته راضي يې، حضرت علي ﷜ جواب وركړ: يقينا زه په دې راضي يم اې دالله رسوله! ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ دغه دعاء وفرمايل:

جمع الله شملكما واسعد جدكما وبارک عليكما واخرج منكما كثيرا طيبا .

ژباړه: الله ﷻ دې تاسو دواړو ته د زړه مينه او ښه ملګرتيا دركړي، تاسو دواړه دې خوشبخته وګرځوي، پر تاسو دواړو دې بركتونه نازل كړي او تاسو دواړو ته دې پاک اولادونه دركړي.

حضرت انس ﷜ وويل: قسم په خداى! د رسول الله ﷺ ددغه دعاء په بركت الله ﷻ هغوى دواړه په ډېرو پاكو اولادو ونازول.

## په مسجد كې د حضرت علي ﷜ دروازه

﴿۵۸۴۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ بِسَدِّ الْأَبْوَابِ إِلَّا بَابَ عَلِيٍّ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

د حضرت ابن عباس ﷜ څخه روايت دى چې (په مسجد نبوي) كې رسول الله ﷺ د ټولو خلكو دروازې بندي كړې مګر د علي ﷜ د كور دروازه يې د مسجد خوا ته پرېښودل. ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دى.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵۹۹\۵، رقم: ۳۷۳۲.

**تشريح**: د ځينو صحابه كرامو د كورو دروازې په مسجد نبوي كې دننه وې، ددغه احتياط له موخې چې حائضه ښځه يا جنب سړى د هغه دروازو په ذريعه خپلو كورو ته د تللو او راتللو په وخت كې په مسجد كې تېر نه سي نو رسول الله ﷺ هغه ټولو صحابه كرامو ته حكم وكړ چې هغوى دخپلو كورو هغه دروازې چې په مسجد كې دننه واقع وې، بندي كړي، مګر حضرت علي ﷜ ددغه حكم څخه مستثنى دى، او د هغه دروازه يې په مسجد كې دننه پرېښودل، همدارنګه د رسول الله ﷺ په حكم سره هغه دا خاص اجازه وه چې هغه د جنابت په حالت كې هم په مسجد كې دننه تېرېداى سي، پاته سوه د هغه حديث خبره چې د مناقب ابوبكر ﷜ په باب كې نقل سوې ده او په هغه كې دادي چې رسول الله ﷺ د حضرت ابوبكر صديق ﷜ د كلكين څخه ماسوا د نورو ټولو صحابه كرامو د كورو د كلكينانو بندولو حكم وكړ چې په مسجد كې دننه خلاص وه، نو ددغه حديث او هغه حديث په منځ كې هيڅ اختلاف نسته ځكه چې د حضرت

ابوبکر صدیق ﷜ په اړه دا وضاحت دی چې رسول الله ﷺ هغه حکم د مرض الموت په زمانه کې ورکړی وو ، حال دا چې د حضرت علي ﷜ په اړه حدیث کې داسې وضاحت نسته ځکه نو دا ویل کیږي چې دغه حکم رسول الله ﷺ مخکې ورکړی وو، او دا خبره چې د حضرت ابوبکر صدیق ﷜ د فضیلت څرګندونکې حکم د مرض الموت د زمانې دی، دعلماؤ دغه قول ټینګ ګرځوي چې ددغه حکم په ذریعه د رسول الله ﷺ اصل مقصد د حضرت ابوبکر صدیق ﷜ خلافت ته اشاره وه ، ددې څخه ماسوا د حضرت ابوبکر صدیق ﷜ سره تعلق لرونکی حدیث زیات صحیح او زیات مشهور دی ځکه چې هغه بخاري او مسلم نقل کړی دی او د حضرت علي ﷜ سره تعلق لرونکی دغه حدیث ترمذي نقل کړی دی او دا یې هم ویلي دي چې دغه حدیث غریب دی ، که څه هم د متن او اسنادو په اعتبار دغه حدیث هغه غریب ګرځولی دی یا د معنی او مفهوم په اعتبار .

ملا علي قاري رحمة الله عليه ددغه حدیث په اړه بحث کړی دی او د هغه څخه د ترمذي دغه حدیث ته غریب ویل محل نظر معلومیږي ، هغه د امام احمد اونورو په حواله سره د حضرت زید ابن ارقم ﷜ دغه روایت نقل کړی دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: ما ته حکم سوی دی چې د علي ﷜ د دروازې څخه ماسوا نوري ټولي دروازې بندي کړم ، د ریاض په حواله یې لیکلي دي چې په دې کې احمد د حضرت زید ابن ارقم ﷜ څخه داسې نقل کړي دي چې د رسول الله ﷺ د ځینو اصحابو دروازو مسجد هغوی لاره جوړه کړې وه نو یوه ورځ رسول الله ﷺ حکم وکړ چې د علي ﷜ د دروازې څخه ماسوا نوري ټولي دروازې دي بندي کړل سي ، زید ﷜ بیان وکړ چې د رسول الله ﷺ د حکم په اوریدو سره ځینو خلکو خبري وکړلې نو رسول الله ﷺ د خطبې لپاره ولاړ سو او د حمد و ثناء وروسته یې وفرمایل: حقیقت دادی چې ما ته د الله ﷻ له خوا حکم سوی دی چې د علي ﷜ د دروازې څخه ماسوا نوري ټولي دروازې بندي کړم ، اوس په تاسو کې ځینو خلک خبري کوي ، نو زه د الله ﷻ په قسم کولو سره وایم چې ما د بندولو حکم د خپل ځان څخه نه دی کړی او نه مې د یوې دروازې د خلاصولو استثناء د خپل ځان څخه کړې ده، ما ته چې کوم حکم څرنګه راکړل سوی دی هم هغسې ما جاري کړی دی، ملا علي قاري رحمة الله عليه دا هم لیکلي دي چې ذکر سوی حدیث د ابن عباس ﷜ څخه ماسوا د حضرت جابر ﷜ څخه هم منقول دی ، ملا علي قاري رحمة الله عليه وضاحت کړی دی چې دغه حدیث صحیح نه دی، صحیح هغه حدیث دی چې د ابوسعید ﷜ څخه بخاري او مسلم نقل کړی دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: د ابوبکر ﷜ د دروازې یا کلکین څخه ماسوا بله دروازه یا کلکین دې په مسجد نبوي کې

خلاص نه پرېښودل سي ، او که چیري د حضرت علي ﷺ سره تعلق لرونکی حدیث صحیح هم وي نو دغه دواړه حدیثونه به د بېلو حالاتو محمول وګرځول سي چي د دغه دواړو روایتو په منځ کي تضاد او اختلاف معلوم نه وي .

## د قربت خاص مقام

﴿۵۸۴۷﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ كَانَتْ لِي مَنْزِلَةٌ مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ تَكُنْ لِأَحَدٍ مِنَ الْخَلَائِقِ فَكُنْتُ آتِيهِ كُلَّ سَحَرٍ فَأَقُولُ السَّلَامُ عَلَيْكَ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ فَإِنْ تَنَحْنَحَ انْصَرَفْتُ إِلَى أَهْلِي وَإِلَّا دَخَلْتُ عَلَيْهِ. رواه النسائي.

د حضرت علي ﷺ څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ په نظر کي زما مرتبه دومره وه چي په مخلوق کي دومره مرتبه د هیچا نه وه، زه به سهار وختي د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضرېدم او ویل به مي السلام علیکم یانبي الله! که نبئ کریم ﷺ به د سلام په جواب کي غاړي تازه کړې نو زه به خپل کور ته وګرځېدم او که رسول الله ﷺ به غاړي تازه نه کړې نو زه به کور ته دننه ورغلم . نسائي

**تخریج**: سنن النسائي ۳\۱۳، رقم: ۱۲۱۱.

**د لغاتو حل**: سحر: اي باول اوقاته. (په لومړي وخت کي)

**تشریح**: د علماؤ ددغه قول مطابق د یو چا کور ته د ننه وتلو د اجازې غوښتلو لپاره چي کوم سلام ادا کیږي د هغه په جواب کي د سلام کول د کور د خاوند لپاره ضروري دي، دا وضاحت کیږي چي د حضرت علي ﷺ د سلام په اورېدو سره به رسول الله ﷺ مخکي د هغه پر سلام جوابي سلام ادا کوی او بیا به یې غاړه تازه کول ، او د کومو علماؤ مطابق چي د کور پر خاوند باندي جوابي سلام ضروري نه دی د هغوی په نزد ددغه وضاحت ضرورت نسته.

د سیدنا علي ﷺ ددغه روایت په ذریعه چي رسول الله ﷺ د خپل کوم قربت او بې تکلفي ذکر کړی دی هغه یقینا د هغه خاص مرتبه وه چي د هغه څخه ماسوا بل چا ته تر لاسه نه ده ځکه چي هغه د بي بي فاطمې ﷺ په نسبت سره او د رسول الله ﷺ د اکا د زوی کېدو په حیثیت سره د رسول الله ﷺ کور ته بې تکلفه تګ راتګ او د غیر معمولي مجالست حق ترېنولو زیات درلود .

## هغه دعاء چي مستجابه سوه

﴿۵۸۴۸﴾: وَعَنْهُ قَالَ كُنْتُ شَاكِيًا فَمَرَّ بِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا

د حضرت علي ﷛ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ راغلى او زه ناروغه وم او

أَقُولُ اللّٰهُمَّ إِنْ كَانَ أَجَلِي قَدْ حَضَرَ فَأَرِحْنِي وَإِنْ كَانَ مُتَأَخِّرًا فَارْفَغْنِي وَإِنْ

ويل مي اې خدايه! كه زما دمرګ وخت راغلى وي نو په مرګ راكولو سره راحت راكړې او كه اوس لا دمرګ وخت نه وي راغلى نو زما په ژوند كي پراخي راولې او كه دا ناروغي امتحان وي

كَانَ بَلَاءً فَصَبِّرْنِي فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَيْفَ قُلْتَ فَأَعَادَ

نو ما ته صبر راكړې، رسول الله ﷺ وفرمايل: تا څنګه ويلي دي بيا ووايه، ما د دعاء الفاظ بيا

عَلَيْهِ قَالَ فَضَرَبَهُ بِرِجْلِهِ فَقَالَ اللّٰهُمَّ عَافِهِ أَوْ اشْفِهِ شك الراوي قَالَ فَمَا اشْتَكَيْتُ وَجَعِي بَعْدُ. رواه الترمذي وقَالَ هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

تكرار كړل، رسول الله ﷺ په پښې وهلو سره وفرمايل: اې الله! ده ته عافيت وركړې يا شفاء وركړې، راوي ته شک دى چي رسول الله ﷺ كوم الفاظ وفرمايل، د علي ﷛ بيان دى ددې دعاء څخه وروسته بيا ما ته دا شكايت يا ناروغي هيڅكله پېښه نه سول. ترمذي ويلي دي دا حديث حسن صحيح دى.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۲۳، رقم: ۳۵۶۴.

**د لغاتو حل**: ارفغني: وسع لي في المعيشة باعطاء الصحة. (په روغتيا سره په ژوند كي پراخي)

**تشريح**: فارفغني، د فاء په زور او د غين په جزم سره منقول دى چي د رفاغه څخه دى، او معنى يې د پراختيا او فراغت ده، په يوه صحيح نسخه كي دغه لفظ په عين سره (فارفعني) منقول دى چي په خپله پښه يې علي ﷛ پوري واهه چي په دغه معامله كي پر خپل غفلت باندي خبردار سي او د شكايت پر ژبه راوړلو څخه منع سي، د پښې مباركي د وهلو په بركت برخمن سي او د رسول الله ﷺ قدم په قدم متابعت ورپه برخه سي.

دا د راوي شک دى، دغه جمله د يوبل راوي ده چي هغه څرګنده كړې ده چي په دغه وخت كي راوي خپل شک ظاهر كړى دى چي رسول الله ﷺ يا خو (اللهم عافه) الفاظ وفرمايل او يا

(اللهم اشفه) الفاظ، په هر حال د رسول الله ﷺ په دعاء كي دا تعليم او تلقين پټ دی چي ناروغ لره دغه دعاء كول پكار دي چي اې الله! ما ته عافيت راكړې، اې دالله! ما ته شفاء راكړې، په دعاء كي د ترديد اړخ اختيارول يعني داسي ويل چي يا دا وكړې او يا هغه وكړې لكه څرنګه چي د حضرت علي ﷺ دعاء وه، دا غير مناسب خبره ده ځكه چي د ترديد اړخ د يو ډول زور او جبر مفهوم ظاهروي.

**مختصر حالات**: امير المؤمنين سيدنا علي ﷺ بن ابو طالب قريشي دی كنيت يې ابو الحسن هم وو او ابو تراب هم، په كم عمر كي تر ټولو لومړنی اسلام راوړونكی دی، د اسلام قبلېدو په وخت كي د نوموړي په عمر كي اختلاف دی ، يو قول دادی چي د اسلام قبلېدو په ورځ يې پنځلس كاله عمر وو، ځينو حضراتو اته كاله او ځينو لس كاله بيان كړي دي، سيدنا علي ﷺ د تبوک د غزا څخه وروسته په نورو ټولو غزاوو كي د رسول الله ﷺ سره ګډون كړی دی ، د تبوک د غزا په وخت كي رسول الله ﷺ هغه د خپلي كورنۍ خليفه وټاكی او په مدينه كي يې پرېښود ، او دا يې ورته فرمايلي وه چي ايا ته په دې خبره خوشحاله نه يې چي زما په نزد ستا هغه درجه ده كوم چي د موسى ﷺ په نزد د هارون ﷺ ده، حضرت علي ﷺ غنم رنګه وو، ستركي يې غټي وې، قد يې ميانه، نس يې غټ او د سر وېښتان يې لږ پورته وه، ږيره يې ګڼه او اوږده وه، خوله يې پراخه وه او د سر او ږيري وېښتان يې سپين سوي وه، د ذي الحجه ۱۸ نېټه ، ۳۵ هجري كال د جمعې ورځ د حضرت عثمان ﷺ د شهادت ورځ ده د حضرت علي ﷺ مسند خلافت وسو او د رمضان په اووه لسمه نېټه په ۴۰ هجري كال كي د جمعې په ورځ د سهار د لمانځه پر وخت په مسجد كي يو شقي عبد الرحمن ابن ملجم په توري سره وژونكې حمله وكړل چي د هغه څخه درې شپې وروسته واصل بحق سو او د شهادت په درجه ونازول سو، ځينو تاريخ پوهانو د وفات نېټه د رمضان المبارک ۱۹ نېټه ۴۰ هجري كال بيان كړی دی او د وژونكې حملې پېښه د دغه نېټې څخه دوې ورځي مخكي بيان كړې ده، په غسل وركونكو كي دواړه زامن حضرت حسن او حضرت حسين ﷺ څخه ماسوا حضرت عبد الله بن جعفر ﷺ هم وو.

حضرت حسن ﷺ د جنازې لمونځ وركړ او په تياره كي يې دفن كړ، د حضرت علي ﷺ عمر ۶۳ كاله او د ځينو حضراتو مطابق ۶۵ كاله او د يوه قول مطابق ۷۰ كاله وو، خلافت يې څلور كاله او نهه مياشتي وو.

==========

# بَابُ مَنَاقِبِ الْعَشَرَةِ الْمُبَشَّرَةِ رضي الله عنهم

## (د عشره مبشره رضي الله عنهم د مناقبيو بيان)

عشره مبشره د هغه لسو سترو صحابه کرامو ډلي ته وايي چي رسول الله ﷺ په ژوند کي د جنت خاص زيري وزکړی وواو هغه دادي: ۱- حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه، ۲- حضرت عمر فاروق رضي الله عنه، ۳- حضرت عثمان غني رضي الله عنه، ۴- حضرت علي رضي الله عنه، ۵- حضرت طلحه رضي الله عنه، ۶-حضرت زبير رضي الله عنه، ۷- حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه، ۸- حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه، ۹- حضرت ابو عبيده بن الجراح رضي الله عنه، ۱۰- او حضرت سعيد بن زيد رضي الله عنه.

دغه ټول حضرات قريش دي او د دوی په اړه چي کوم افضيلت، مناقب او حديثونه منقول دي هغه د نورو په حق کي منقول نه دي، دلته دا ځرګندول ضروري دي چي د جنت دغه خاص زيری يوازي ددغه لسو صحابه کرامو په اړه منقول نه دی بلکه اهل بيت يعني د رسول الله ﷺ اولاد او ازواج مطهراتو په حق کي هم او د دوی څخه ماسوا د نورو صحابه کرامو په حق کي هم منقول دی.

يوازي ددغه لسو صحابه کرامو ذيادوني لپاره د دغه باب قائمولو وجه ددې څخه ماسوا بل هيڅ نه ده چي په يو حديث کي يا په بېلو بېلو حديثونو کي په مختلفو حيثيتو سره د دوی چي کوم ذکر راغلی دی هغه يو ځای سي او په دغه باب کي دې ته اشاره ده چي د صحابه کرامو دغه مبارکي ډلي (عشره مبشره) ته په دغه ترتيب سره پر ټولو صحابه کرامو باندي فضيلت او غوره والی تر لاسه دی چي مخکي خلفاء اربعه تر ټولو افضل دي او بيا پاته شپږ صحابه کرام تر نورو ټولو افضل دي.

### اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

**د حضرت عمر رضي الله عنه په نزد د خلافت مستحقين**

﴿۵۸۴۹﴾: عَنْ عُمَرَ قَالَ مَا أَحَدٌ أَحَقَّ بِهَذَا الْأَمْرِ مِنْ هَؤُلَاءِ النَّفَرِ الَّذِينَ تُوُفِّيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ عَنْهُمْ رَاضٍ فَسَمَّى عَلِيًّا وَعُثْمَانَ وَالزُّبَيْرَ وَطَلْحَةَ وَسَعْدًا وَعَبْدَ الرَّحْمَنِ. رواه البخاري.

د حضرت عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي هغه وويل: ددې امر (يعني خلافت) د هغه خلکو څخه زيات مستحق څوک نسته د چا څخه چي رسول الله ﷺ د وفات تر وخت پوري راضي او خوشحاله وو، ددې څخه وروسته حضرت عمر رضي الله عنه دا نومونه واخيستل علي، عثمان، زبير، طلحه، سعد، عبدالرحمن. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵۹\۷، رقم: ۳۷۰۰.

**د لغاتو حل**: الامر: اي امر الخلافة (د خلافت چاري).

**تشريح**: .... راضي او خوشحاله له دنيا څخه ولاړی، يعني هسي خو رسول الله ﷺ د خپلو ټولو اصحابو څخه راضي او خوشحاله وو مگر په خاصه توگه ددغه خلکو څخه زيات راضي او-خوشحاله وو، او د دوی څخه د رسول الله ﷺ راضي او خوشحاله کېدل په يقين سره ټولو خلکو ته معلوم هم وه، يا د حضرت عمر رضي الله عنه مراد ددغه خلکو په اړه د رسول الله ﷺ يو داسي خاص رضا ته اشاره کول وو چي د هغه په سبب د هغوی د خلافت مستحقين کېدل ثابت کېدل په هر حال ددغه الفاظو اصل مقصد د ذکر سوو حضراتو ترجيحي حيثيت ظاهرول وو چي د هغه په وجه حضرت عمر رضي الله عنه دا بيان وکړ چي ددغه کسانو د عشره مبشره کېدو په وجه رسول الله ﷺ د نورو صحابه کرامو په نسبت ددغه خلکو څخه زيات راضي او خوشحاله وو، حضرت عمر رضي الله عنه په دغه وخت کي د عشره مبشره څخه محض شپږ حضرات ذکر کړي دي چي د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه او خپله د حضرت عمر رضي الله عنه تر ټولو زيات افضل کېدل خو ټولو ته معلوم وو، ځکه نو ددغه دواړو د نومو ذکر کولو اړتيا نه وه، دريم کس حضرت ابو عبيده بن الجراح رضي الله عنه چي رسول الله ﷺ امين امت، او امين حق الامين ويلي وه، د حضرت عمر رضي الله عنه څخه مخکي وفات سوی وو او څلورم کس حضرت سعيد بن زيد رضي الله عنه د حضرت عمر رضي الله عنه اخښی وو ځکه حضرت عمر رضي الله عنه ددغه احتياط په وجه د هغه يادونه ونه کړل چي خلک دا تهمت ونه وايي چي د خلافت د مستحقينو په فهرست کي د سعيد رضي الله عنه نوم د قريب والي په وجه راغلی دی، په ځينو روايتو کي راغلي دي چي حضرت عمر رضي الله عنه د سعيد رضي الله عنه نوم د هغه خلکو په ډله کي ذکر کړی وو چي د هغوی څخه رسول الله ﷺ له دنيا څخه خوشحاله او راضي تشريف يوور، مگر ارباب حل وعقد او اصحاب شوری کي د هغه نوم نه وو.

**قيام خلافت** : څرګنده دي وي چي امامت او خلافت په شرعي توګه جائز او قانوني يا خو په هغه صورت کي وي چي ارباب حل وعقد هغه سړی امام او خليفه وټاکي چي ددغه عظيم منصب اهل او مستحق وي لکه څرنګه چي د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه خلافت قائم سو، يا په

هغه صورت کي وي چي امام او خليفه په تعين او صراحت سره يو داسي سړی خپل ځای ناستي وټاکي چي د خلافت د سنبالولو اهليت او وړتيا ولري لکه د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه پر ټاکنه باندي د حضرت عمر رضي الله عنه خلافت قائم سو او که يو داسي څوک خليفه وټاکل سي چي د خپل وجاهت او حيثيت په اعتبار معقول وي او تر هغه افضل سړی موجود وي نو د هغه خلافت به په شرعي او قانوني توګه جائز منل کيږي ځکه چي د خلفاء راشدينو څخه وروسته په قريشو کي د ځينو داسي خلګو پر خلافت باندي علماؤ اجتماع ثابته ده چي تر ځان د افضلو خلګو په موجودتيا کي خليفه ټاکل سوي دي او د دې وجه داده چي کله يو غير افضل سړی په حکومتي او سياسي چارو کي د افضل سړي څخه زيات باصلاحيته ثابتيږي او د دغه خاص صلاحيت په وجه داسي سړی د ديني چارو په ښه توګه نګراني کولای سي، د حکومت چاري او طريقې په ښه توګه سرته رسولای سي ، د رعيت او خلګو خبر ښه اخيستلای سي ، هيواد او ملت د تاوان رسونکو فتنو او فلانو څخه خوندي کولای سي او دا چي ملکي او ملي استحکام په ښه توګه برقرار ساتلای سي، پاته سوه دا خبره چي ځيني خلګ دا وايي چي د امامت او خلافت وړ هغه ذات کيدای سي چي معصوم وي، هاشمي وي او د هغه په لاس يوه کړنه څرګنده سي چي د هغه څخه د هغه صداقت و پېژندل سي نو دا محض د شيعه ګانو نظريه ده او د هغوی د جهالت بلکه حقيقت خو دادی چي دغه نظريه د هغوی د ګمراهي تمهيد او مقدمه ده چي د هغه په ذريعه هغوی په ملت اسلاميه کي د افتراق او انتشار بنياد اچوي، په دې کي يوه لويه ګمراهي د هغوی دا ده چي هغوی د حضرت علي رضي الله عنه څخه ماسوا د نورو ټولو خليفه ګانو امامت او خلافت بې اصله او باطل ګڼي .

## د طلحه رضي الله عنه قرباني

﴿۵۸۵۰﴾: وَعَنْ قَيْسِ ابْنِ اَبِيْ حَازِمٍ قَالَ رَأَيْتُ يَدَ طَلْحَةَ شَلَّاءَ وَقَى بِهَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ أُحُدٍ . رواه البخاري.

د حضرت قيس بن ابي حازم رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د طلحه لاس شل وليدی ، هغه په لاس سره د اُحد د غزا په ورځ رسول الله صلى الله عليه وسلم د کفارو د حملو څخه ساتئ . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\ ۳۵۹، رقم: ۴۰۶۳.

**د لغاتو حل**: شلاء: من الشلل وهو نقص في الكف وبطلان العمل.

**تشریح**: د اُحد د غزا په ورځ حضرت طلحه رضی الله عنه د قرباني ثبوت ورکړی وو او د رسول الله ﷺ د کفارو د حملو څخه د ساتني لپاره يې خپل ځان سپر جوړ کړی وو، هغه به توري په خپل لاس سره دفع کولې او رسول الله ﷺ يې د هر تاوان څخه ژغوری، نه يوازې دا چي د هغه لاس د ټول عمر لپاره بې کاره سوی وو بلکه د هغه پر ټول بدن باندي اتيا زخمونه لګيدلي وه او خاص اندام يې هم ژوبل سوی وو، کله چي به صحابه کرامو د اُحد د ورځي يادونه کول نو ويل به يې: هغه ورځ خو په حقيقت کي د طلحه رضی الله عنه د قرباني څخه ډکه ورځ ده.

حضرت طلحه رضی الله عنه د عبيد الله زوی او قريشي دی، کنيت يې ابو محمد (يا د يوه قول مطابق ابو عمر) وو، قديم الاسلام دی، د بدر د غزا څخه ماسوا په نورو ټولو غزاوو کي يې د رسول الله ﷺ سره ګډون کړی دی، د بدر په غزا کي په دې وجه پاته سو چي د رسول الله ﷺ د يو کار لپاره تللی وو، د حضرت طلحه رضی الله عنه رنګ غنم رنګه وو، او وېښتان يې ګڼ وه، ډېر ښکلی سړی وو، د ۶۴ کالو په عمر کي د جنګ جمل په موقع کي د جمادي الثاني په ۲۰ نېټه په ۳۶ هجري کال کي د پنجشنبې په ورځ شهيد سو او په بصره کي دفن کړل سو.

## د حضرت زبير رضی الله عنه فضيلت

﴿۵۸۵۱﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يَأْتِينِي بِخَبَرِ الْقَوْمِ يَوْمَ الْأَحْزَابِ قَالَ الزُّبَيْرُ أَنَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ لِكُلِّ نَبِيٍّ حَوَارِيًّا وَحَوَارِيَّ الزُّبَيْرُ. رواه البخاري.

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د احزاب په ورځ وفرمايل: د دښمن خبر به ما ته څوک راوړي؟ زبير رضی الله عنه وويل زه به يې راوړم، نبي کريم ﷺ وفرمايل: د هر نبي يو حواري وي او زما حواري زبير دی. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۶\۵۲۱، رقم: ۲۸۴۶، ومسلم ۱۸۷۹\۴، رقم: ۴۸–۲۴۱۵.

**تشریح**: احزاب د حزب جمع ده چي معنی يې د ډلي ده، په دغه وخت کي مختلفي د اسلام دښمني ډلي يعني قريش او غير قريش قبائل او د مدينې هغه يهوديان چي د هغوی تعلق د بنو قريظه او بنو نضير سره وو، په متحد او جمع کېدو سره د رسول الله ﷺ په مقابله کي د جنګ لپاره راغلي وه ځکه دغه غزا ته غزوه احزاب ويل کيږي، په دغه جګړه کي د دښمن د لښکر شمېر دوولس زره وو او مجاهدين ټول درې زره کسان وه، دښمن په اصل کي د اسلام د مرکز

ختمولو لپاره حمله کړې وه او دهغوی زيات لښکر تر يوې مياشتي پوري د مديني شاوخوا پراو اچولی وو، رسول الله ﷺ د ټولو مجاهدينو په مرسته د دفاعې کړنو په توګه دمديني منورې شاوخوا خندق کښلی وو، او په دغه مناسبت سره دغه غزا ته د خندق غزا هم ويل کيږي، هغه ډيري سختي ورځي وې او مسلمانان په ډېرو پريشانيو کي راګير سوي وه، د باقاعده جګړې کولو نوبت نه وو راغلی مګر د ډېرو ويشتلو او غشي ويشتلو پيښي به رامنځته کېدلې، په پای کي الله ﷻ د ملائکو لښکر نازل کړ او داسي طوفان يې راوليږی چي د دښمن خيمې وختلې، په نغريو کي ديګونه چپه سول، ځای پر ځای اوربل سو او هيبت ناکه تياره خپره سول، د دښمن لښکر د خوف او بيري ښخه په همدغه شپه په تېښته سو، په هغه ورځو کي د يهوديانو او منافقانو په سبب په مدينه کي دننه د محاصرې په سبب هري خوا ته داسي خطرناک صورت وو چي د جنګي مصالحو او مفادو سره متعلق معلومات تر لاسه کول او د دښمنانو په اړه خبرونه راوړل سخت کار وو، ځکه حضرت زبير رضي الله عنه د دغه ټولو خطرو سربېره دغه خدمت د ځان لپاره خوښ کړ نو رسول الله ﷺ د هغه ستر تحسين وفرمايه او هغه ته يې د خپل حواري کېدو شرف ورکړ.

**حضرت زبير** رضي الله عنه: حضرت زبير رضي الله عنه د عوام زوی او د ابوعبدالله قرشي په کنيت سره مشهور دی، دده مور بي بي صفيه رضي الله عنها بنت عبدالمطلب د رسول الله ﷺ سکه خاله وه، زبير بن العوام رضي الله عنه قديم الاسلام دی، يعني په پيل کي يې اسلام راوړی دی، هغه وخت د شپاړلسو کالو وو، په دغه عمر کي چي اسلام يې قبول کړ نو د هغه اکا ډېر ظلمونه پر وکړل تر دې چي په دود کي بند کړل سو چي د دغه عذاب ښخه په بېره کي اسلام پرېږدي مګر هغه په ډېر استقامت سره دغه عذاب وزغمی او د اسلام ښخه ونه ګرځېدی، د رسول الله ﷺ سره يې په ټولو غزاوو کي ګډون کړی دی او تر ټولو مخکي د اسلام په لار کي رابلونکی دغه زبير بن عوام رضي الله عنه وو، د احد د غزا په ورځ په ډېر استقلال او ثابت قدمی سره د رسول الله ﷺ سره د جنګ په ميدان کي ولاړ وو او د مېړاني جوهر يې وښودی، حضرت زبير رضي الله عنه جګ، نحيف الجثه او سور او سپين رنګ يې وو، په ۳۶ هجري کال کي د صفين د جګړې ښخه په ستنېدو باندي په لاره کي د بصری په سيمه کي پر سفوان باندي عمرو بن جرموز هغه شهيد کړ، هغه وخت يې عمر ۶۴ کاله وو، په وادي اسباع کي دفن کړل سو او بيا يې مړی مبارک بصری ته منتقل کړل سو، او مشهوره ده چي د نوموړي قبر هلته په بصره کي دی.

## د زبير رضي الله عنه مقام

﴿۵۸۵۲﴾: وَعَنِ الزُّبَيْرِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يَأْتِينِي بَنِي قُرَيْظَةَ فَيَأْتِينِي بِخَبَرِهِمْ فَانْطَلَقْتُ فَلَمَّا رَجَعْتُ جَمَعَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبَوَيْهِ فَقَالَ فِدَاكَ أَبِي وَأُمِّي. متفق عليه.

د حضرت زبير رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک به بني قريظو ته ورسي او د هغوی خبر ما ته راوړي، ددې اوريدو سره زه (زبير) روان سوم، بيا چي راغلم نو رسول الله ﷺ وفرمايل زما مور او پلار دي دربانديي قربان وي. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۸۰، رقم: ۳۷۳۰، ومسلم ۴\۱۸۷۹، رقم: ۴۹- ۲۴۱۶.

**تشريح**: د بني قريظه يهوديانو د احزاب د غزا په وخت کي داسي د وعدې ماتول او بد چلن وکړ چي رسول الله ﷺ د هغوی سرونه پرې کول ضروري وګڼل، د احزاب د غزا څخه د فارغه کېدو وروسته هغوی ته متوجه سول، رسول الله ﷺ تر پنځلسو ورځو پوري او د يوه روايت مطابق تر پنځه ويشت ورځو پوري د هغوی محاصره وکړل، په پای کي يې په خپله سزا ورسول، په دغه وخت کي رسول الله ﷺ دغه ارشاد فرمايلی وو: کوم زړه ور دی چي د بنو قريظه په اړه د هغوي معلومات ما ته راوړي يا دا چي د احزاب په غزا کي هم بنوقريظه د دښمن سره يو ځای سوي وه او د مسلمانانو پر خلاف يې جګړه کول، کيدای سي چي په دغه وخت کي د بنو قريظه په اړه ضروري معلومات رسول الله ﷺ په کار وه او رسول الله ﷺ دغه خبره فرمايلې وه،

زما مور او پلار دي پر تاسو قربان وي، دا د رسول الله ﷺ له خوا د حضرت زبير رضي الله عنه د قدر او منزلت توثيق کول او هغه ته پر دغه کړنه تحسين ورکول وو چي هغه په ډېره ميړانه سره سرته ورسوی، په دې کي شک نسته ځکه چي يو سړی داسي الفاظ د هغه چا په حق کي استعمالوي چي هغه ډېر معزز او مکرم ګڼي او د هغه تعظيم کوي، په دې اعتبار د حضرت زبير رضي الله عنه په شان کي د رسول الله ﷺ دغه جمله فرمايل د هغه تعظيم او تکريم کول وو، په يوه روايت کي حضرت زبير رضي الله عنه بيان کړی دی چي رسول الله ﷺ دوه واره خپل مور او پلار پر ما جمع کړل (يعني قربان کړل)، يو وار د احد د غزا په وخت کي او دوهم وار د بني قريظه پر خلاف د عملياتو په وخت کي، په يوه روايت کي راغلي دي چي حضرت زبير رضي الله عنه خپل زوی حضرت عروه رضي الله عنه ته وويل: اې زويه! زما د بدن هيڅ برخه داسي نسته چي د رسول الله ﷺ په ملګرتيا کي د جګړو په دوران

کي ژوبل سوې نه وي.

## د حضرت سعد رضی اللہ عنہ فضیلت

﴿۵۸۵۳﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ مَا سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَمَعَ أَبَوَيْهِ لِأَحَدٍ إِلَّا لِسَعْدِ بْنِ مَالِكٍ فَإِنِّي سَمِعْتُهُ يَقُولُ يَوْمَ أُحُدٍ يَا سَعْدُ ارْمِ فِدَاكَ أَبِي وَأُمِّي. متفق عليه.

د حضرت علي رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي ما د سعد بن مالک څخه پرته د هیڅا لپاره د نبي کریم صلی اللہ علیہ وسلم د خپل مور او پلار جمع کول نه دي اوریدلي، د احد په ورځ ما د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم څخه واوریدل اې سعد! غشي وله زما مور او پلار دي پر تا قربان وي. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۳۵۸، رقم: ۴۰۵۹، ومسلم ۴\۱۸۷۶، رقم: ۴۱- ۲۴۱۱.

**تشریح**: د سعد بن مالک رضی اللہ عنہ څخه مراد سعد بن ابي وقاص رضی اللہ عنہ دی، په اصل کي د ابي وقاص نوم مالک ابن وهب وو او په دې اعتبار سعد بن ابي وقاص ته سعد بن مالک هم ویل کېدل.

په ذکر سوي حدیث کي د مور او پلار قربانوي د حضرت زبیر رضی اللہ عنہ په حق کي هم منقول دي او دلته حضرت علي رضی اللہ عنہ وایي چي د سعد بن مالک رضی اللہ عنہ څخه ماسوا د بل چا لپاره رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم مور او پلار نه دي قربان کړي نو په ذکر سوي روایت او د حضرت علي رضی اللہ عنہ په دغه روایت کي د مطابقت لپاره ویل کیږي چي په اصل کي حضرت علي رضی اللہ عنہ ته معلومه نه وه چي رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم د حضرت زبیر رضی اللہ عنہ په حق کي هم دغه جمله فرمایلې ده یا دا چي د حضرت علي رضی اللہ عنہ مراد دا وو چي خپله ما د واسطې ماسوا د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم د ژبي مبارکي څخه دغه جمله د سعد رضی اللہ عنہ څخه ماسوا د بل چا په حق کي نه ده اورېدلې نو د هغه دا ویل د دې خبري خلاف نه دی چي رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم دغه جمله د حضرت زبیر رضی اللہ عنہ په حق کي هم وفرمایل او د دې علم حضرت علي رضی اللہ عنہ ته بالواسطه سوی وي،

**حضرت سعد بن ابي وقاص** رضی اللہ عنہ : د حضرت سعد رضی اللہ عنہ کنیت ابو اسحاق دی، په زهري او قرشي هم مشهور دی، قدیم الاسلام دی یعني د اسلام د دعوت په پیل کي داووه لسو کالو په عمر په اسلام مشرف سوی دی، هغه به خپله ویل: زه دریم مسلمان یم، زما څخه مخکي یوازي دوو کسانو اسلام راوړی وو او د الله جل جلالہ په لاره کي د اسلام له طرفه تر ټولو لومړی غشی ویشتونکی زه یم، حضرت سعد رضی اللہ عنہ د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم په ملګرتیا کي په ټولو غزاوو کي ګډون کړی دی او مستجاب الدعوات منل کیږي، د هغه دغه حیثیت په عامو او خاص کي دومره

مشهور وو چي خلک به د هغه د ښېرا څخه بېرېدل او د هغه د نیکو دعاوو غوښتونکي به وه، په اصل کي هغه ته دا مقام له دې کبله تر لاسه سوی وو چي رسول الله ﷺ د هغه په حق کي دغه دعاء کړې وه: اې الله! د سعد رضي الله عنه دعاوي قبولي کړې، د حضرت زبیر رضي الله عنه څخه ماسوا یوازي حضرت سعد رضي الله عنه هغه خوشبخته ذات دی چي د هغه لپاره رسول الله ﷺ خپل مور او پلار قربان کړي یعني په بېلو وختونو کي د دواړو په مخاطب کولو سره یې ورته فرمايلي دي چي زما مور او پلار دي پر تا صدقه وي، دغه عظیم اعزاز ددغه دواړو څخه ماسوا بل هیچا ته حاصل نه سو، حضرت سعد رضي الله عنه غنم رنګه وو، پر بدن یې ډېر وېښتان وه، په ۵۵ هجري کال کي په هغه محل کي وفات سو چي هغه د مدینې ښار ته نژدې په وادي عقیق کي جوړ کړی وو، جنازه یې مدینې منورې ته راوړل سول او د هغه وخت حاکم ابن الحکم د جنازې لمونځ ورکړ او په جنت البقیع کي ښخ کړل سو، هغه وخت د حضرت سعد رضي الله عنه عمر تقریبا اویا کاله وو، او په عشره مبشره کي تر ټولو وروسته وفات سو، حضرت عمر رضي الله عنه د کوفې حاکم ټاکلی وو بیا وروسته حضرت عثمان رضي الله عنه خپله هم پر دغه منصب باندي دوهم وار کوفې ته لیږلی وو، د صحابه کرامو او تابعینو ډېرو کسانو دده څخه حدیثونه او روایتونه نقل کړي دي.

**د الله جل جلاله په لار کي تر ټولو مخکي حضرت سعد رضي الله عنه غشی وویشتی**

﴿۵۸۵۴﴾: وَعَنْ سَعْدِبْنِ اَبِيْ وَقَاصٍ قَالَ إِنِّي لَأَوَّلُ الْعَرَبِ رَمَى بِسَهْمٍ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ. متفق علیه.

د حضرت سعد بي ابي وقاص رضي الله عنه څخه روایت دی چي زه په عربو کي لومړنی سړی یم چي د خدای تعالي په لار کي مي غشي ویشتلي دي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۸۳، رقم: ۳۷۲۸، ومسلم ۴\۲۲۷۷، رقم: ۱٦– ۲۹٦٦.

**تشریح**: یعني زه هغه کس یم چا چي په اسلام کي تر ټولو لومړی غشی د الله جل جلاله پر دښمنانو وویشتی، زما څخه مخکي هیچا د الله جل جلاله په لاره کي غشی ویشتلی نه وو، دا د اول هجري کال پېښه ده، رسول الله ﷺ د ابوعبیده بن الحارث رضي الله عنه په مشرتابه کي د شپېتو سپرو یو کوچنی لښکر د ابوسفیان بن حرب او د هغه مشرکینو په مقابله کي لېږلی وو، د جنګ نوبت نه راغلی یوازي دومره وسول چي سعد ابن ابي وقاص رضي الله عنه د اسلام پر دښمنانو باندي یوه غشی وویشتل او هغه تر ټولو اول غشی وو چي د مسلمانانو له خوا د اسلام پر دښمنانو باندي وچلول سو.

## د سعد ﷺ وفاداري

﴿۵۸۵۵﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَهِرَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَقْدَمَهُ

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دی چي يووار رسول الله ﷺ ته د يوې غزا څخه

الْمَدِينَةَ لَيْلَةً فَقَالَ لَيْتَ رَجُلًا صَالِحًا يَحْرُسُنِي إِذْ سَمِعْنَا صَوْتَ سِلَاحٍ فَقَالَ

مدينې ته په راتلو سره (د دښمن دبيري څخه) يوه شپه ويښ وو نو وه يې فرمايل: کاش چي يو صالح سړی وای چي زما چوکيداري يې کړې وای، ناڅاپه موږ د وسلې آواز واوريدی، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه:

مَنْ هَذَا قَالَ اَنَا سَعْدٌ قَالَ مَا جَاءَ بِكَ قَالَ وَقَعَ فِي نَفْسِي خَوْفٌ عَلَى رَسُولِ

څوک دی؟ آواز راغلی چي زه سعد يم، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه څنګه راغلې؟ سعيد وويل:

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجِئْتُ أَحْرُسُهُ فَدَعَا لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ نَامَ. متفق عليه.

زما په زړه کي د رسول الله ﷺ لپاره بيره پيدا سوه او زه ستاسو د چوکيدارۍ لپاره راغلی يم، نو رسول الله ﷺ د سعد ﷺ لپاره دعاء وکړه او بيا بيده سو، بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۶\۸۱، رقم: ۲۸۸۵، ومسلم ۴\۱۸۷۵، رقم: ۴۰- ۲۴۱۰.

## حضرت ابو عبيده ﷺ ته د امين الامت خطاب

﴿۵۸۵۶﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِكُلِّ أُمَّةٍ أَمِينٌ وَأَمِينُ هَذِهِ الْأُمَّةِ أَبُو عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ. متفق عليه.

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د هر امت يو امانت دار وي او ددې امت امانت دار ابو عبيده بن الجراح دی. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\۹۴، رقم: ۴۳۸۲، ومسلم ۴\۱۸۸۱، رقم: ۵۳- ۲۴۱۹.

**تشريح**: که څه هم ټول صحابه کرام د امانت خاوندان وه مګر يوازي حضرت ابو عبيده ﷺ ته

ددغه امت امين په دې اعتبار وفرمايل سول چي يا خو په هغه کي دغه وصف د نورو صحابه کرامو په نسبت زيات غالب وو يا دا چي د هغه د نورو اوصافو په نسبت دغه وصف پر هغه باندي زيات غالب وو، په هر حال حضرت ابوعبيده رضي الله عنه د خپل ذاتي ښېګڼو او کمالاتو په وجه ستر صحابي دی او دهغه په مناقبو او فضائلو کي نور هم ډېر روايتونه منقول دي چي د مختلفو پندونو او نصيحتونو په کتابو کي مذکور دي، په هغو کي دغه يو نصيحت ډېر ارزښتناکه دی:

بادروا السيئات القديمات بالحسنات الحادثات والارب مبيض لثيابه مدلس لدينه والارب مكرم لنفسه وهولها مهين.

ژباړه: پر تېرو ګناهو باندي (د سزا تر لاسه کولو مخکي) نوي نيکۍ زياتي کړه او په ياد ولره چي داسي خلک هم سته چي خپلي جامې ښه ساتي مګر خپل دين خيرن ساتي او دا هم په ياد ولره چي ځيني خلک خپل ځان عزتمند ګڼي حال دا چي د انجام په اعتبار هغوی د خپل ځان په ذلت او خوارۍ کي اچوونکي دي.

**حضرت ابوعبيده** رضي الله عنه: د حضرت ابوعبيده رضي الله عنه اصلي نوم عامر بن عبدالله بن جراح دی، فهري قرشي هم ورته ويل کيږي، د حضرت عثمان بن مظعون رضي الله عنه سره په اسلام او ايمان کي داخل سوی وو، مخکي يې حبشې ته هجرت وکړ بيا په دوهم وار هجرت کولو سره مدينې ته راغلی وو، نوموړي په ټولو غزاوو کي له رسول الله صلی الله عليه وسلم سره ګډون کړی دی او د احد په غزا کي د رسول الله صلی الله عليه وسلم سره د جنګ په ميدان کي ثابت قدمه پاته سوی دی، کله چي په دغه غزا کي رسول الله صلی الله عليه وسلم زخمي سو او د جنګي خولۍ کړۍ د رسول الله صلی الله عليه وسلم په مخ کي بندي سوې نو حضرت ابوعبيده رضي الله عنه هغه کړۍ په خپلو غاښو سره راوکښلې او له دې کبله د هغه د مخ دوه غاښونه وتلي وه، د حضرت ابوعبيده رضي الله عنه قد جګ، ښکلی او سپک بدن يې وو، په ۱۸ هجري کال کي په طاعون امواس کي په اخته کېدو سره په اردن کي وفات سو، او د نبيانو په مقام کي دفن کړل سو هغه وخت د نوموړي عمر اته پنځوس کاله وو او د جنازې لمونځ يې حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه ورکړ.

### د حضرت ابوعبيده بن الجراح رضي الله عنه فضيلت

﴿۵۸۵۷﴾: وَعَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ قَالَ سَمِعْتُ عَائِشَةَ وَسُئِلَتْ مَنْ كَانَ رَسُولُ

د ابن ابي مليکه رضي الله عنه څخه روايت دی ما واورېدل چي د بي بي عائشې څخه پوښتنه وسول که

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُسْتَخْلِفًا لَوِ اسْتَخْلَفَهُ قَالَتْ أَبُو بَكْرٍ فَقِيلَ ثُمَّ

رسول الله ﷺ په خپل ژوند کي خليفه جوړولای نو څوک به يې خليفه کړی وای؟ دې وويل چي ابوبکر ؓ، بيا پوښتنه وسول چي

مَنْ بَعْدَ أَبِي بَكْرٍ قَالَتْ عُمَرُ قِيلَ مَنْ بَعْدَ عُمَرَ قَالَتْ أَبُو عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ. رواه مسلم.

د ابوبکر ؓ څخه وروسته څوک به يې خليفه جوړ کړی وای؟ بي بي عائشې ؓ وويل عمر ؓ، بيا پوښتنه وسول د عمر ؓ څخه وروسته؟ عائشې ؓ وويل ابو عبيده بن الجراح. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۸۵۶\۴، رقم: ۹– ۲۳۸۵.

**تشريح**: ابو عبيده ؓ امين الامت وو، او د خلافت د ذمه دارۍ سنبالولو وړتيا يې درلودل ځکه د هغه د خلافت په وړو کسانو کي شمېرل مناسب وو، د رسول الله ﷺ د وصال وروسته کله چي د رسول الله ﷺ د خليفه توب د ټاکني مسئله وړاندي سول او خلکو صديق اکبر ؓ خوښوی نو نوموړي ورته وويل: تاسو د خلافت لپاره ما ولي وړاندي کوئ، ستاسو په منځ کي عمر ؓ دی، علي ؓ دی او ابو عبيده بن الجراح ؓ دی، په دوی کي چي څوک غواړئ خليفه يې وګرځوئ مګر د حل و عقد او عمائدينو وينا وه چي ستاسو (ابوبکر ؓ) څخه زيات لائق او وړ بل هيڅوک کيدای نه سي، کله چي رسول الله ﷺ په خپل مرض الموت کي زموږ د ديني قيادت (يعني د لمانځه د امامت لپاره) تاسو مخکي کړي ياست نو بيا د چا مجال دی چي زموږ د دنيوي او ملي قيادت لپاره تاسو ته ترجيح در نه کړي،

په هر حال د حديث څخه معلومه سول چي بي بي عائشې ؓ دا نظر درلود چي د حضرت ابوبکر صديق ؓ او حضرت عمر ؓ څخه وروسته په پاته اصحاب شورى کي حضرت ابو عبيده بن الجراح ؓ د خلافت تر ټولو زيات اهل او وړ وو.

## د حراء پر غره باندي يو نبي، يو صديق او پنځه شهيدان

﴿۵۸۵۸﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ عَلَى حِرَاءٍ

د حضرت ابوهريره ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د حراء پر غره ولاړ وو

هُوَ وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ وَعُثْمَانُ وَعَلِيٌّ وَطَلْحَةُ وَالزُّبَيْرُ فَتَحَرَّكَتِ الصَّخْرَةُ فَقَالَ

او ابوبکر، عمر، عثمان، علي، طلحه او زبير رضي الله عنهم هم ورسره وه چي د هغه يوه ډبره چي ټول پر

ولاړ وه په حرکت کي راغلل، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :

رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اهْدَأْ فَمَا عَلَيْكَ إِلَّا نَبِيٌّ أَوْ صِدِّيقٌ أَوْ شَهِيدٌ.

وزاد بعضهم وسعد بن ابي وقاص ولم يذكر عليا. رواه مسلم.

ودريږه پرتا باندي ځوک نسته مګر يو نبي دی، صديق دی او شهيد دی، او په ځينو رواياتو کي دا الفاظ زيات ليکلي دي او سعد بن ابي وقاص دی او د علي رضي الله عنه ذکر يې نه دی کړی. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۱۸۸۰، رقم: ۵۰- ۲۴۱۷.

**تشريح**: د شهداء څخه حضرت عمر، حضرت عثمان، حضرت علي، حضرت طلحه او حضرت زبير رضي الله عنهم مراد دي، دغه ټولو حضراتو ته د شهادت مرګ په برخه سو، په دوی کي حضرت طلحه او حضرت زبير رضي الله عنهما د جنګ جمل په وخت کي شهيد کړل سول، که څه هم د هغوی مرګ عين د جنګ په وخت کي واقع سوی نه وو بلکه د جنګ څخه د باندي په ظلم قتل کړل سول، مګر دا ثابته ده چي کوم ځوک په ظلم قتل کړل سي نو هغه شهيد دی ځکه دغه دواړو ته د شهادت مرتبه په برخه سول.

او د علي رضي الله عنه يادونه يې نه ده کړې: په مخکني جمله کي د زاد لفظ د يو ناقل ستړکي پټول ظاهروي ځکه چي د هغه راوي په روايت کي د حضرت علي رضي الله عنه پر ځای د حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه ذکر د معاوضه او مبادله په صورت کي دی نه د اضافې په صورت کي، په هر حال په هغه روايت کي چي په هغه کي د حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه ذکر دی دا سوال پيدا کيږي چي هغه ته خو د شهادت مرګ نه دی تر لاسه سوی بلکه هغه خو په وادي عقيق کي په خپل محل کي وفات سوی وو، ددغه سوال دفع کولو لپاره يا خو دا توجيه کيږي چي رسول الله ﷺ دغه ټولو حضراتو ته د غالب په توګه شهيدان فرمايلي دي، يعني د رسول الله ﷺ مراد دا وو چي د يوه نبي، يو صديق څخه پرته نور ټول هغه خلګ دي چي په هغوی کي به اکثر شهيدان وي، يا څرنګه چي سيد جمال الدين رحمه الله ليکلي دي چي دا ويل کيږي چي د حضرت سعد رضي الله عنه مرګ د داسي ناروغۍ په وجه سوی دی چي په هغه کي په اخته کېدو سره مړکيدونکی د شهيدانو په حکم کي راځي لکه د نس ناروغي او داسي نور.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### عشره مبشره ته د جنت زيرى

﴿۵۸۵۹﴾: عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَبُو

د حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

بَكْرٍ فِي الْجَنَّةِ وَعُمَرُ فِي الْجَنَّةِ وَعُثْمَانُ فِي الْجَنَّةِ وَعَلِيٌّ فِي الْجَنَّةِ وَطَلْحَةُ فِي

ابوبکر رضی الله عنه په جنت کي دی، عمر رضی الله عنه په جنت کي دی، عثمان رضی الله عنه په جنت کي دی، علي رضی الله عنه په جنت کي دی، طلحه رضی الله عنه په جنت کي دی،

الْجَنَّةِ وَالزُّبَيْرُ فِي الْجَنَّةِ وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ فِي الْجَنَّةِ وَسَعْد بن ابي

زبير رضی الله عنه په جنت کي دی، عبد الرحمن بن عوف رضی الله عنه په جنت کي دی، سعد بن ابي وقاص رضی الله عنه په

وقاص فِي الْجَنَّةِ وَسَعِيد بن زيد فِي الْجَنَّةِ وَاَبُو عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ فِي الْجَنَّةِ.

رواه الترمذي ورواه ابن ماجة عن سعيد بن زيد.

جنت کي دی، سعيد بن زيد رضی الله عنه په جنت کي دی، ابو عبيده بن الجراح رضی الله عنه په جنت کي دی. (يعني دا ټول لس جنتيان دي دغه لسو صحابه کرامو ته عشره مبشره ويل کيږي). ترمذي.

**تخريج:** سنن الترمذي ۵\۶۰۵، رقم: ۳۷۴۷.

**تشريح:** حضرت سعيد بن زيد رضی الله عنه چي د عشره مبشره څخه يو دی د حضرت عمر رضی الله عنه اخښى دی، د حضرت عمر رضی الله عنه خور بي بي فاطمه رضی الله عنها د هغه سره منسوب وه او دا هغه فاطمه رضی الله عنها وه چي د حضرت عمر رضی الله عنه د اسلام منلو ذريعه ګرځېدلې وه، حضرت سعيد رضی الله عنه په ۵۱ هجري کال کي د اوويا کالو په عمر وفات سو او په بقيع کي دفن سو.

په حديث کي ذکر سوي لس ستر صحابه کرام د جنت په زيري سره چي ډېر زيات مشهور او ممتاز دي نو دهغه په مختلفو وجوهاتو کي يوه خاص وجه دا هم ده چي د دغه ټولو حضراتو د جنت زيرى يو ځای په يوه حديث کي بيان سوی دی کنه نو دا خبره نه ده چي د جنت دغه زيرى د دوی څخه ماسوا د بل چا لپاره منقول نه دی نور هم په دغه زيري سره نازول سوي دي.

**يوه نكته چي ارزښتناكه ده** : دلته دغه نكتې ته توجه كول ډېر ضروري دي چي په حديثو كي هر ځاى د خلفاء اربعه يادونه راغلې ده هلته په دغه ترتيب سره راغلې ده كوم چي په ذكر سوي حديث كي دى، يعني مخكي د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه نوم، بيا د حضرت عمر رضي الله عنه نوم ، بيا د حضرت عثمان رضي الله عنه نوم او بيا د حضرت علي رضي الله عنه نوم، د دې څخه د اهل سنت والجماعت د عقيدې او مذهب صحيح كېدل او پر حق كېدل ثابتيږي، په دې اړه دا گمان كول چي كيداى سي د حديث راويانو د خپلي عقيدې او مذهب په رعايت كولو سره په هغه حديثو كي د خلفاء اربعه په ترتيب كي رد او بدل كړى وي، ډېره نا انصافي به وي، هيڅكله نه ، راوي په هيڅ وخت كي د حديث په ترتيب كي تبديلي او تقديم او تاخير نه كوي نو په دغه صورت كي كله چي د حديث په مفهوم او مقصد كي معمولي فرق هم پيدا نه سي ، په دغه صورت كي تصور هم نه سي كيداى چي هغوى په دومره نازكه مسئله كي د تبديلي او تقديم او تاخير كار كړى وي ، د رسول الله صلى الله عليه وسلم د ژبي مباركي څخه چي په كوم ترتيب سره د خلفاء اربعه ذكر كيږي بعينه په هغه ترتيب سره راوي بيان كوي .

## د يو څو صحابه كرامو خاص حيثيتونه

﴿۵۸۶۰﴾: وَعَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَرْحَمُ أُمَّتِي بِأُمَّتِي

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : زما په امت كي ابوبكر رضي الله عنه زما پر امت ترټولو زيات مهربانه دى

أَبُو بَكْرٍ وَأَشَدُّهُمْ فِي أَمْرِ اللَّهِ عُمَرُ وَأَصْدَقُهُمْ حَيَاءً عُثْمَانُ وَأَفْرَضُهُمْ زَيْدُ

او عمر رضي الله عنه د خداى په كارونو كي ترټولو زيات سخت دى، او رښتونى او حيادار ه عثمان رضي الله عنه دى،او د فرائضو زيات علم لرونكى زيد

بْنُ ثَابِتٍ وَأَقْرَؤُهُمْ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ وَأَعْلَمُهُمْ بِالْحَلَالِ وَالْحَرَامِ مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ

بن ثابت رضي الله عنه دى، او ترټولو لوى قاري ابي بن كعب رضي الله عنه دى او په حرام او حلال زيات پوهيدونكى معاذ بن جبل رضي الله عنه دى

أَلَا وَ لِكُلِّ أُمَّةٍ أَمِينٍ وَأَمِينَ هَذِهِ الْأُمَّةِ أَبُو عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ. رواه احمد والترمذي وقال هذا حديث حسن صحيح. و روي عن معمر عن قتادة

مرسلا وفيه واقضاهم علي.

او په هر امت كي يو امين وي او ددې امت امين ابوعبيده بن الجراح دی. احمد او ترمذي ، ترمذي ويلي دي چي دا حديث حسن صحيح دی او د معمر څخه د قتاده په ذريعه دا حديث مرسل روايت سوی دی چي پکښې دا واقضاهم علي، جمله زياته ذكر سوې ده .

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۳\۲۸۱، والترمذي ۵\۲۶۳، رقم: ۳۷۹۱.

**تشريح**: عثمان ﷺ تر ټولو ريښتوني حياء لرونكی دی، د حياء وصف چي د ايمان يو لوی ښاخ دی د حضرت عثمان ﷺ سره يې يو ډول خاص او امتيازي نسبت درلود ، د هغه د حياء او غيرت مثالي وو ، پاته سوه دا خبره چي د ريښتوني حياء لرونكي څخه څه مراد دی، نو دلته دې ته اشاره ده چي ډېر واره د حياء او غيرت اظهار د طبعي تقاضا سره سم په داسي ځای كي هم كيږي چي د شرعي نكتې څخه د حياء او غيرت تقاضا نه كوي او نه پر هغه موقع حياء كول د دين په اعتبار حق او صحيح وي، ريښتونې او معتبره حياء هغه ده چي د دين او شريعت د غوښتني سره سم او د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ د حكم مطابق وي، نو حضرت عثمان ﷺ ددغه ريښتوني او معتبري حياء خاوند وو .

تر ټولو زيات فرائض (ميراث) پېژندونكی زيد بن ثابت ﷺ دی، يعني فرائض او د ميراث علم په فني او تحقيقي توګه په زيد بن ثابت ﷺ كي ډېر زيات دی ، بېله شكه حضرت زيد بن ثابت ﷺ د سترو فقهاوو څخه وو او د علم ميراث ماهر ګڼل كېدی، د وحي د ليكني شرف هم هغه ته تر لاسه وو هغه د حضرت ابوبكر صديق ﷺ او بيا د حضرت عثمان ﷺ په زمانه كي د قرآن ليكلو او جمع كولو خدمت په ډېره ښه توګه سرته ورسوی .

تر ټولو زيات د قرآن كريم د تجويد ماهر اُبي بن كعب ﷺ دی، حضرت ابی بن كعب ﷺ انصاري خزرجي دی، د رسول الله ﷺ د وحي ليكوال هم وو ، كومو شپږو صحابه كرامو چي د رسول الله ﷺ په زمانه كي ټول قرآن كريم ياد كړی وو په هغوی كي دی هم دی، د رسول الله ﷺ په زمانه كي ده ته سيد القراء ويل كيدی او خپله رسول الله ﷺ ده ته د سيد الانصار لقب وركړی وو ، حضرت عمر فاروق ﷺ به د سيد المسلمين په لقب سره يادوی ، په روايتو كي راځي چي كله به يو سورة نازل سو نو رسول الله ﷺ اُبی بن كعب ﷺ ته وفرمايل: الله ﷻ ما ته حكم كړی دی چي دغه سورت ستا په وړاندي ووايم او ستا څخه يې واورم، ابی پوښتنه وكړل ايا الله ﷻ زما نوم اخيستی دی؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: هو ، الله ﷻ ستا نوم اخيستی دی، ددې په

اوربدو سره ابی رضی الله عنه په ژړا سو او د هغه سره رسول الله صلی الله علیه وسلم هم وژړل، په ۱۹ هجري کال کي په مدينه منوره کي وفات سو ، ډېرو کسانو ته د حديثو د روايت کولو شرف ځيني په برخه دی .

د حلال او حرام تر ټولو زيات پېژندونکی معاذ بن جبل رضی الله عنه دی، نوموړی د انصارو څخه دی او هغه د اويا خوش بختو څخه يو دی چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم د مدينې د هجرت څخه مخکي مکې ته راغلي وه او په بيعت عقبه ثانيه کي شريک سو ، په مدينه چي رسول الله صلی الله علیه وسلم د مهاجرينو او انصارو په منځ کي کومه عامه ورورګلوي کړې وه د هغه سره سم د حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه ورورګلوي يې د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه سره او د يوه روايت سره سم د حضرت جعفر بن ابي طالب رضی الله عنه سره قائمه سوې وه، رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه د قاضي او معلم په توګه يمن ته ليږلی وو ، هغه وخت د نوموړي عمر اتلس کاله وو ، په طاعون عمواس کي د ۳۸ کالو په عمر وفات سو ، د وفات پر وخت به يې په وار وار ويل: اې الله! دغه (سخت طاعون) په حقيقت کي ستا پر بندګانو رحمت دی، اې الله! معاذ او دهغه کورنۍ ددغه رحمت څخه محروم مه کړې، په ځينو روايتو کي راغلي چي د زکندن په وخت کي د حضرت معاذ رضی الله عنه پر ژبه دغه الفاظ وه چي اې الله! د مرګ سختي کمه کړې څومره چي ته غواړې، قسم ستا په عزت ته ښه پوهېږې چي زه ستا سره مينه لرم ، حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه وايي چي موږ به معاذ رضی الله عنه ته ددغه آيت (كان امة قانتا لله حنيفا) په مضمون کي د حضرت ابراهيم علیه السلام سره تشبيه ورکول ، د حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه د علمي فضيلت او بزرګۍ اندازه دده څخه لګېدای سي چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کي هم د فتوی ورکولو ستره دنده ده ته حواله وه او د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه د خلافت په زمانه کي هم، کله چي د قاضي او معلم په توګه يمن ته ولېږل سو نو حضرت عمر فاروق رضی الله عنه به فرمايل: معاذ رضی الله عنه يمن ته په تللو سره په اهل مدينه کي د فقه خلاء پيدا کړې ده، حضرت معاذ رضی الله عنه د بدر په غزا کي هم ګډون کړی دی او په نورو غزاوو کي هم د مجاهدينو سره اوږه پر اوږه ملګری وو ، نقل سوي دي چي د رحلت په وخت کي د نوموړي ملګري په ژړا سول نو د هغوی څخه يې پوښتنه وکړل چي تاسو ولي ژاړئ؟ هغه ټولو ورته وويل: موږ پر علم ژاړو چي ستاسو د مرګ په وجه منقطع کيږي، حضرت معاذ رضی الله عنه ورته وويل: علم او ايمان لازوال دی ، او تر قيامته پوري پاته کېدونکی دی، حق چي چيري نه تر لاسه کيږئ نو تر لاسه کوئ يې، پر باطل چي هر څوک وي د هغه ترديد او مخالفت کوئ.

ددغه امت امين عبيده بن الجراح رضی الله عنه دی، حضرت ابو عبيده بن الجراح رضی الله عنه د الله جل جلاله او د هغه د رسول د ميني په لوی امتحان کي خپل پلار په خپل لاس ووژی چي د اسلام د دښمنانو له

خوا د مسلمانانو پر خلاف د جنگ میدان ته راغلی وو، د احد په جنگ کي په مېړانه او ثابت قدمۍ سره د جنگ په میدان کي مقابله کول او د رسول الله ﷺ د دښمن د حملو څخه په ساتنه کي یې د قربانۍ جوهر وښودی، د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه په خلافت کي د بیت المال مسئول وو، حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه پر ځای د اسلامي لښکر امیر وټاکی او د شام او فلسطین زیات فتوحات د دغه تر مشرۍ لاندي تر لاسه سول، حضرت عمر رضی الله عنه د خپل وفات په ورځ فرمایلي وه که نن ابوعبیده رضی الله عنه ژوندی وای نو په دې اړه (یعني خلافت) زما کار به ما هغه ته حواله کړی وای، حضرت ابوعبیده رضی الله عنه چي د زهد او قناعت کومه درجه درلودل د هغه اندازه د دغه روایت څخه کیدای سي چي په ځینو مستندو کتابو کي د عروه بن زبیر رضی الله عنه څخه منقول دی چي کله امیر المؤمنین عمر فاروق رضی الله عنه د شام او فلسطین د لیدني لپاره راغلی نو د هغه ځایو د اسلامي لښکر مشران او لوی لوی کارکوونکي د امیر المؤمنین د استقبال لپاره موجود وه، حضرت ابوعبیده بن الجراح رضی الله عنه چي په شام او فلسطین کي د اسلامي لښکر ستر امیر وو تر هغه وخته پوري هلته رسېدلی نه وو، حضرت عمر رضی الله عنه د استقبال کوونکو امیرانو او مشرانو څخه پوښتنه وکړل چي زما ورور چیري دی؟ خلګو پوښتنه وکړل چي ستاسو ورور څوک دی؟ فاروق اعظم رضی الله عنه ورته وویل: ابوعبیده بن الجراح رضی الله عنه، کله چي ابوعبیده رضی الله عنه راغلی نو امیر المؤمنین د سپرلۍ څخه راکښته سو او د هغه غاړه په غاړه سو، د هغه کور ته په رسېدو سره یې ولېدل چي هلته د یوې کوچنۍ توري او یوه سپر څخه ماسوا نور هیڅ نه معلومېدل، په یوه روایت کي داسي دي چي امیر المؤمنین د حضرت ابوعبیده رضی الله عنه کور ته راغلی نو هلته په رسېدو سره یې ولېدل چي ټول سرای خالي دی هیڅ شی ورته معلوم نه سو، امیر المؤمنین په حیرت سره پوښتنه وکړل چي اې ابوعبیده! ستا سامان چیري دی، دلته د یوې کمبلي، کاسې او یوې توري څخه ماسوا بل هیڅ نه معلومېږي حال دا چي ته د دغه سیمي والي او د اسلامي لښکر امیر یې، ایا ستا سره د خوراک یو شی سته که یا؟ حضرت ابوعبیده رضی الله عنه ددې په اورېدو سره د کور یو کونج ته ورغلی او د هغه ځایه یې د ډوډۍ یو څو وچي ټوټې راوړلې، فاروق اعظم رضی الله عنه چي دا ولېدل نو بې اختیاره په ژړا سو او وه یې ویل: اې ابوعبیده! یوازي ته یو ښه سړی یاته سوې یاته موږ ټول خو دنیا د خپلو فریبو ښکار کړي یو.

په حق کي تر ټولو ښه پرېکړه کوونکی علي رضی الله عنه دی، بېله شکه حضرت علي رضی الله عنه د دغه امت تر ټولو لوی قاضي دی او د حق په فیصله کولو کي هیڅوک ثاني نه لري، ځکه حضرت عمر رضی الله عنه د هغه د مشورې او فتوا څخه ماسوا هیڅ حکم او فیصله نه کول، کله چي به حضرت علي رضی الله عنه

موجود نه وو نو د هغه تر راتللو پوري به يې فيصله ځنډول، په هر حال د حديث د الفاظو (اقضاهم) په ظاهره دا معنى ده چي علي رضي الله عنه په قضيو او مقدمو كي په شرعي او عدالتي احكامو او قوانينو كي تر ټولو زيات پوه وو او تر ټولو ښه فيصله يې كول، مګر په دې سره پر حضرت عمر رضي الله عنه باندي د حضرت علي رضي الله عنه فضيلت نه ثابتيږي ځكه چي دا د حضرت علي رضي الله عنه جزوي فضيلت دی او جزئي فضيلت د كلي فضيلت خلاف نه وي بلكه د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه په شان كي چي كوم نصوص موجود دي د هغه څخه د دواړو حضراتو د ټول امت څخه افضل كېدل ثابت دي، د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه د فضيلت يو صريح دليل خو دغه آيت دی:

لَا يَسْتَوِي مِنكُم مَّنْ أَنفَقَ مِن قَبْلِ الْفَتْحِ وَقَاتَلَ أُولَٰئِكَ أَعْظَمُ دَرَجَةً مِّنَ الَّذِينَ أَنفَقُوا مِن بَعْدُ وَقَاتَلُوا

دغه آيت خاص د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه په حق كي نازل سوی دی ځكه چي يوازي د هغه د مكې د فتح څخه مخكي خپل مال په جهاد كي لګولی وو، نو الله جل جلاله وفرمايل: هيڅ مسلمان د هغه برابر كېدای نه سي، په دې باره كي هم شبه ده چي په دې اړه حديثونه متعارض او دليلونه متناقض دي او د رواياتو او دلائلو دغه تعارض او تناقض د دې خبري مقتضي دی چي هغه نكته ومنل سي چي پر هغه جمهورو صحابه كرامو اتفاق كړی دی نو پر كومه نكته چي جمهورو صحابه كرامو اتفاق كړی دی هغه هم هغه دی چي د اهل سنت والجماعت ور باندي اجماع ده يعني دا چي د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه وروسته د اجر او ثواب د كثرت په اعتبار حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه افضل دی بيا حضرت عمر فاروق رضي الله عنه، بيا حضرت عثمان رضي الله عنه او بيا حضرت علي رضي الله عنه

**د سيدنا حضرت علي او امير معاويه رضي الله عنهما معامله**: دلته دا ښكاره كول ضروري دي چي د سيدنا علي رضي الله عنه او امير معاويه رضي الله عنه په منځ كي چي كومه جګړه رامنځته سول هغه پر اجتهادي اختلاف باندي محمول كول پكار دي، حضرت علي رضي الله عنه په ديني او شرعي توګه خپل ځان د خلافت مستحق وګڼی او امير معاويه رضي الله عنه خپل خلافت پر حق ګڼی، دواړو په خپل خپل حق كي اجتهاد وكړ، دا بېله خبره ده چي د حضرت علي رضي الله عنه اجتهاد صحيح او ثابت سو چي هغه وخت په ټولو خلكو كي د امت اسلاميه تر ټولو لوی سړی او تر ټولو افضل وو، د هغه پر خلاف امير معاويه رضي الله عنه په خپل اجتهاد كي صحيح نه سو ځكه چي د حضرت علي رضي الله عنه په موجودتيا كي هغه د خلافت هيڅكله مستحق نه وو مګر د دې سربېره په دواړو ډلو كي هيڅ يو هم خپل مخالف نه

کافرونه ویل ، دواړي ډلي په بېلو بېلو ډلو کي ویشل سوي وه ، د دواړو په منځ کي سخته جګړه هم وسول ، په دواړو ډلو کي ځینو خلګو یو بل ته بد وویل مګر په هغوی کي هیڅ یوه بل د اسلام څخه خارج ونه ګڼی ، که څه هم په هغوی کي ځیني خلک د جهالت ، ناپوهی او تعصب په وجه د داسي امورو مرتکب سول چي په هغه سره ګناه کار کېدل یقینا ثابتیږي نو هیڅ مؤمن لره روا نه ده چي په هغوی کي یوه ته هم د کفر نسبت وکړي او د هغوی په اړه داسي عقیده ولري چي د یو مؤمن په حق کي درلودل پکار نه دي .

## د حضرت طلحه رضي الله عنه لپاره د جنت زیری

﴿۵۸۶۱﴾: وَعَنِ الزُّبَيْرِ قَالَ كَانَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ أُحُدٍ دِرْعَانِ

د حضرت زبیر رضي الله عنه څخه روایت دی چي د احد په ورځ د رسول الله ﷺ پر بدن دوې زغري وې ،

فَنَهَضَ إِلَى صَخْرَةٍ فَلَمْ يَسْتَطِعْ فَقَعَدَ طَلْحَةَ تَحْتَه حَتّٰى اسْتَوٰى عَلَى الصَّخْرَةِ

رسول الله ﷺ پر یو لوی کاڼي ختی مګر و نه ختلای سو ، نو طلحه کښېنستی او رسول الله ﷺ پر هغه سر بیره وختی او کاڼي ته وختی ،

فَسَمِعْتُ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ أَوْجَبَ طَلْحَةُ. رواه الترمذي.

بیا ما د رسول الله ﷺ څخه دا واوریدل چي طلحه واجب کړ ، یعني طلحه د ځان لپاره جنت واجب کړ . ترمذي .

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۰۱، رقم: ۳۷۳۸.

**تشريح**: د الله جل جلاله ارشاد : (خذوا حذركم...) اې مؤمنانو احتیاط کوئ ، د زیات عملي کولو لپاره رسول الله ﷺ دوې زغري په هغه ورځ اغوستي وې ځکه چي زغره او سپر د جنګي سامان څخه دي او د جنګ په میدان کي د دښمن د حملې څخه د ساتني لپاره لازمي شیان دي ، ددې څخه معلومه سول چي د دښمن په مقابله کي د وسلو استعمالول او د ساتني ذرائع اختیارول د توکل خلاف نه دی ، دا هم کیدای سي چي رسول الله ﷺ په دغه وخت کي د دوو زغرو په اغوستلو سره امت ته دا وښودل چي د دښمن په مقابله کي د خپل ساتني هر ډول تدبیر پکار واچوي .

طلحه رضي الله عنه جنت واجب کړ ، د جنت لفظ په ځینو روایتو کي صریح راغلی دی ، ددې جملې مطلب دا وو چي طلحه رضي الله عنه د خپل دغه یو عمل په ذریعه یا د خپلو مجاهدانه کړنو په ذریعه چي

هغه په دغه جنګ کې سرته رسولي دي د ځان لپاره د جنت استحقاق او وجوب پیدا کړی دی، بېله شکه په دغه جنګ کې د حضرت طلحه رضي الله عنه قرباني او فداکاري داسې وه چې رسول الله ﷺ هغه په زيري ونازوی، هغه خپل بدن د رسول الله ﷺ لپاره سپر ګرځولی وو او د رسول الله ﷺ څخه راتلونکې غشي يې په خپل بدن سره منع کولې، د هغه ټول بدن په غشو سوري سوی وو، د هغه لاس خو ـ ټول عمر لپاره شل او بې کاره سو، تر اتيا زيات زخمونه يې پر بدن وه، تر دې چې خاص اندام يې هم د زخمي کېدو څخه ژغورل سوی نه وو، وروسته کله چې به صحابهٔ کرامو د اُحد د غزا يادونه کول نو ويل به يې چې د جنګ هغه ټوله ورځ د طلحه رضي الله عنه د قربانۍ ورځ ده.

**د اُحد د غزا په ورځ پر رسول الله ﷺ څه تېر سول؟** حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه په يوه روايت کې بيان کړی دی چې د اُحد دغزا په ورځ يو دښمن، عتبه بن وقاص، رسول الله ﷺ په ډبره وويشتی چې په هغه سره د رسول الله ﷺ د راسته خوا غاښ مبارک شهيد سو او لاندې شونډه مبارکه يې زخمي سول، د يو بل بدبخت عبدالله بن شهاب زهري د حملې په نتيجه کې د رسول الله ﷺ تندی مبارک سخت زخمي سو او جنګي خوله يې په مخ مبارک ننوتل، دښمنانو د جنګ په ميدان کې کندې کنېلې وې او هغه يې سربېره داسې برابري کړې وې چې په نافهمي کې د يو مسلمان پښه پر هغه راسي او په هغه کنده کې ولوېږي، نو همدارنګه په يوه کنده کې رسول الله ﷺ خپله لوېدونکی وو چې سمدستي حضرت علي رضي الله عنه را وړاندې سو او رسول الله ﷺ يې تر لاس مبارک ونيوی او را وه يې کښې، د مخ مبارک څخه يې وينه بهېدل چې حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه په خپل خوله سره وڅوښل، نو رسول الله ﷺ وفرمايل: چا چې زما وينه په څکلو سره پاکه کړې ده هغه د دوږخ اور نه سي مسه کولای.

## د حضرت طلحه رضي الله عنه فضيلت

﴿۵۸۶۲﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ نَظَرَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلٰى طَلْحَةَ بْنِ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ طلحه بن عبيدالله رضي الله عنه ته وکتل

عُبَيْدِ اللهِ قَالَ مَنْ أَحَبَّ أَنْ يَّنْظُرَ إِلٰى رَجُلٍ يَّمْشِيْ عَلٰى وَجْهِ الْأَرْضِ وَقَدْ

او وه يې فرمايل: څوک چې دا غواړي چې يو داسې سړي ته وګوري چې پر ځمکه ګرځي مګر

قَضٰى نَحْبَهُ فَلْيَنْظُرْ إِلٰى هٰذَا . وفي رواية مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَّنْظُرَ إِلٰى شَهِيْدٍ يَّمْشِيْ

عَلٰى وَجْهِ الْأَرْضِ فَلْيَنْظُرْ إِلٰى طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللهِ .رواه الترمذي.

په حقيقت کي هغه خپل حاجت پوره کړی وي نو هغه دي دغه سړي ته وګوري ، او په يوه روايت کي دا الفاظ دي ځوک چي دا سي شهيد ليدل غواړي چي پر مځکه ګرځي نو طلحه بن عبيد الله ته دي وګوري . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۰۲، رقم: ۳۷۳۹.

**تشريح**: په حقيقت کي هغه مړ دی، دا د (قضى نحبه) معنى ده ، د نحب معنى د نذر منلو او عهد کولو ده مګر ددې يوه معنى د مرګ او اجل هم ده، د قرآن کريم دغه آيت (من المؤمنين رجال صدقوا ماعاهدو الله عليه فمنهم من قضى نحبه ومنهم من ينتظر) کي مفسرينو د قضى نحبه، په تفسير کي دواړي معناوي مراد اخيستي دي، په دغه حديث کي قضى نحبه که څه هم پر دواړو معناوو محمول کيدای سي مګر دوهمه معنى زياته صحيح او مناسب ده، لکه چي په بل روايت کي (شهيد يمشي على وجه الارض) څخه هم ښکاريږي، په هر حال د دغه ارشاد څخه د رسول الله ﷺ مقصد خلګو ته دا ښودل وو چي طلحه رضي الله عنه هغه سړی دی چي هغه د الله جل جلاله په لاره کي او د الله جل جلاله د دين د سرلوړي لپاره د قرباني کوم عهد چي کړی وو هغه يې پوره کړ او د جنګ په ميدان کي هغه د مېړاني په ذريعه د مرګ خوند وڅکی، دا بېله خبره ده چي هغه تر اوسه ژوندی معلوميږي، دا معلومه ده چي د احد د غزا په ورځ حضرت طلحه رضي الله عنه خپل ځان د رسول الله ﷺ سپر جوړ کړی وو او د هغه په نتيجه کي د هغه د بدن مبارک هيڅ يوه برخه او هيڅ يو اندام د زخمي کېدو څخه پاته سوی نه وو.

ځينو حضراتو ليکلي دي چي په دغه حديث کي د حضرت طلحه رضي الله عنه په اړه چي څه فرمايل سوي دي په دې کي د هغه اختياري مرګ ته اشاره ده چي اهل سلوک او ارباب فناء ته ترلاسه کيږي، يا د مړه کېدو څخه الله جل جلاله ته د انجذاب او ذکر الهي او مشاهده په ملکوت کي په پوره توګه د مستغرق کېدو په وجه د عالم شهادت څخه غائب کېدل دي چي په اصل کي د اختياري مرګ نتيجه وي، او دا هم کيدای سي چي رسول الله ﷺ د مړي په ويلو سره دې ته اشاره کړې وي چي د حضرت طلحه رضي الله عنه به د شهادت مرګ او ښه خاتمه په برخه سي،نو همدا رنګه وسول چي حضرت طلحه رضي الله عنه په جنګ جمل کي شهيد کړل سو .

## د حضرت طلحه او حضرت زبیر (رض) فضیلت

﴿۵۸۶۳﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ سَمِعت أُذنِي مِنْ فِي رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ طَلْحَةُ وَالزُّبَيْرُ جَارَايَ فِي الْجَنَّةِ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روایت دی چي زما غوږونو د رسول الله ﷺ څخه دا الفاظ اوریدلي دي چي طلحه او زبیر په جنت کي زما همسایګان دي. ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دی.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۶۰۳، رقم: ۳۷۴۱.

**تشریح**: ددغه الفاظو په ذریعه کنایةً هغه کمال قرب او تعلق ظاهر سوی دی چي ددغه دواړو حضراتو او نبي کریم ﷺ په منځ کي وو.

## د سعد رضي الله عنه لپاره دعاء

﴿۵۸۶۴﴾: وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَوْمَئِذٍ يَعْنِي يَوْمَ أُحُدٍ اَللّٰهُمَّ اشْدُدْ رَمْيَتَهُ وَأَجِبْ دَعْوَتَهُ. رواه في شرح السنة

د حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د احد په ورځ د سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه په حق کي وفرمایل اې الله ! دده نښه ویشتل قوي او ټینګ کړې او دده دعاء قبوله کړې . شرح السنه

**تخریج**: البغوي في شرح السنة ۱۴\۱۲۴، رقم: ۳۹۲۳.

**تشریح**: په دغه وخت کي د غشي په ویشتلو کي د سختۍ او په قوت سره د اجابت دعاء یادونه له دې کبله وه چي په عامه اصطلاح کي د غشي او دعاء په منځ کي ژور تعلق دی، د غشي دعاء ته استعاره ویل کیږي نو په دې مناسبت د نکتې په حیث دا خبره کیږي چي د حضرت سعد رضي الله عنه مستجاب الدعوات کېدل ګویا د هغه غشي اثر وي کوم چي د الله جل جلاله په لاره کي لومړنی غشی ویشتونکی وو .

﴿۵۸۶۵﴾: وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَللّٰهُمَّ اسْتَجِبْ لِسَعْدٍ إِذَا دَعَاكَ. رواه الترمذي.

د حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ دعاء وکړل اې الله ! کله چي سعد

در څخه دعاء وغواړي نو دده دعاء قبوله کړې. ترمذي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۶۰۷، رقم: ۳۷۵۱.

## د سعد رضی الله عنه فضیلت

﴿۵۸۶۶﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ مَا جَمَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبَاهُ وَأُمَّهُ إِلَّا لِسَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ قَالَ لَهُ يَوْمَ أُحُدٍ ارْمِ فِدَاكَ أَبِي وَأُمِّي وَقَالَ لَهُ ارْمِ أَيُّهَا الْغُلَامُ الْحَزَوَّرُ. رواه الترمذي.

د حضرت علي رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ پرته د سعد بن ابي وقاص رضی الله عنه څخه خپل مور او پلار پر بل هیچا نه دي جمع کړي، د احد په ورځ یې هغه ته وفرمایل: غشي چلوه زما مور او پلار دې پر تا قربان وي، او د سعد رضی الله عنه لپاره رسول الله ﷺ دا هم وفرمایل اې قوي زلمیه! غشي وله. ترمذي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۶۰۷، رقم: ۳۷۵۱.

**د لغاتو حل**: الحزور: ولد الاسد (د زمري بچې)

**تشریح**: او دغه کس چې د ابوبکر صدیق رضی الله عنه په لاس یې اسلام قبول کړی وو، نو هغه وخت د هغه عمر اووه لس کاله وو، د هغه ځیني حالات مخکي تېر سوي دي، هغه د خپل اسلام د زمانې هره معامله او پېښه کي داسي برخه اخیستې وه او د دین د سرلوړي لپاره یې لوی لوی قرباني ورکړي دي، په پای کي چې ملت د انتشار او جګړو په صورت کي راګیر سو او د خلافت پر مسئله باندي د مختلفو ډلو جګړه رامنځته سول نو هغه د ټولو معاملو څخه بېلوالی اختیار کړ او ځان یې په کور کي د ننه په محصور کولو سره تر یو قبر پوري محدود کړی وو، او د خپل کور خلکو ته یې هدایت کړی وو چې د دباندي څخه هیڅ یو خبر ما ته مه راوړئ تر دې چې امت پر یو امام باندي متفق او متحد نه سي.

﴿۵۸۶۷﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ أَقْبَلَ سَعْدٌ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذَا

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دی چې د رسول الله ﷺ په خدمت کي سعد بن ابي وقاص رضی الله عنه

خَالِي فَلْيُرِنِي امْرُؤٌ خَالَهُ. رواه الترمذي وقال كَانَ سَعْدُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ مِنْ

حاضر سو، نبي كريم ﷺ وفرمايل: دا زما ماما دى نو پكار ده چي يو څوک خپل داسي ماما ما ته وښيي، د ترمذي بيان دى چي حضرت سعد رضی الله عنه د قبيله

بَنِي زُهْرَةَ وَكَانَتْ أُمُّ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ من بني زهرة فلذالك قال النبي ﷺ هَذَا خَالِي. وَفِي الْمَصابيح فليكرم من بدل فَلْيُرِنِي. رواه الترمذي

بن زهره څخه وو چي د قريشو يو ښاخ دى او د نبي كريم ﷺ مور بي بي د دغه قبيلې څخه وه د دې تعلق پر بنسټ نبي كريم ﷺ سعد رضی الله عنه ته خپل ماما وويل او په مصابيح كي د فليرني پر ځاى فليكرمن راغلى دى. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۰۷، رقم: ۳۷۵۲.

**تشريح**: نو هغه دې ما ته وښيي، يعني كه څيري د چا ګمان وي چي د هغه ماما زما د ماما په ډول دى دا نه سي كيداى.

زهره د يوې ښځي نوم دى چي د كلاب بن مره بن كعب بن لوى بن غالب ښځه وه، د هغې اولاد ته بنوزهره ويل كيږي او دا د قريشو يو مشهور ښاخ وو، د رسول الله ﷺ د مور مباركي نوم بي بي آمنه او د حضرت سعد بن ابي وقاص رضی الله عنه نسبي تعلق د دغه ښاخ سره وو او په دې اعتبار بي بي آمنه او سعد بن ابي وقاص رضی الله عنه خور او ورور سول.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### په اسلام كي تر ټولو اول غشى حضرت سعد رضی الله عنه وويشتى

﴿۵۸۶۸﴾: عَنْ قَيْسِ بْنِ اَبِيْ حَازِمٍ قَالَ سَمِعْتُ سَعْدَ بْنَ أَبِي وَقَّاصٍ يَقُولُ إِنِّي

د حضرت قيس بن ابي حازم رضی الله عنه څخه روايت دى چي ما د سعد بن ابي وقاص رضی الله عنه څخه واوريدلي

لَأَوَّلُ رَجُلٍ مِنَ الْعَرَبِ رَمَى بِسَهْمٍ فِي سَبِيلِ اللهِ وَرَأَيْتُنَا نَغْزُو مَعَ رَسُولِ

دي چي زه په عربو كي لومړنى سړى يم چي د خداى په لار كي مي غشي ويشتلي دي، او موږ د

اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ مَا لَنَا طَعَامٌ إِلَّا الْحُبْلَةِ وَ وَرَقُ السُّمْرِ وَإِنْ كَانَ

رسول الله ﷺ سره جهاد كوى او زموږ سره به خوراک نه وو، مګر د كيكر پاڼي به مو خوړلې او

اَحَدُنَا لَيَضَعُ كَمَا تَضَعُ الشَّاةُ مَالَهُ خِلْطٌ ثُمَّ أَصْبَحَتْ بَنُو أَسَدٍ تُعَزِّرُنِي عَلَى

په موږ کي خلکو قضاء حاجت به داسي کوی لکه پسه چي پوچي کوي او ددئ ځيني اجزاء به د ځينو سره نه مخلوط کيدل، بيا د قبيله بنو اسد خلکو به د اسلام په خبرو ما ته بد رد ويل،

الْاِسْلَامِ لَقَدْ خِبْتُ إِذًا وَضَلَّ عَمَلِي وَكَانُوا وَ شَوَابِهِ اِلٰى عُمَرَ وَقَالُوا لَا يُحْسِنُ يُصَلِّيْ. متفق عليه

او زه هغه وخت سخت نا اميده سوم او زما ټول اعمال ورک سول چي بنو اسد عمر رضي الله عنه ته ورغلل دا شکايت يې ورته وکړ چي سعد رضي الله عنه په ښه ډول لمونځ نه کوي . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۸۳، رقم: ۳۷۲۸، ومسلم ۴\۲۲۷۷، رقم: ۱۲- ۲۹۶۶.

**د لغاتو حل**: الحبلة: ثمر السمر يشبه اللوبيا.

**تشريح**: د بنو اسد څخه د زبير بن العوام بن خويلد بن اسد اولاد او کورنۍ مراد ده، په هغه زمانه کي چي حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه د امير المؤمنين حضرت عمر فاروق رضي الله عنه له خوا د کوفې والي وو، بنو اسد به د خلکو زباني يا تحريري شکايت حضرت عمر رضي الله عنه ته ليږي چي سعد رضي الله عنه لمونځ په ښه ډول نه کوي يعني يا خو د لمانځه شرائط او ارکان يا د سنتو ادا کول په ښه توګه نه کوي او د هغه ادبونو رعايت نه کوي، پر دغه شکايت باندي حضرت عمر رضي الله عنه د سعد رضي الله عنه څخه جواب وغوښتی او هغه يې ته خبرداری ورکړ ، حضرت سعد رضي الله عنه د صورت حال وضاحت وکړ او امير المؤمنين ته يې وښودل چي زه د رسول الله ﷺ د لمانځه مطابق دغه خلکو ته لمونځ ورکوم، لومړني دوه رکعته اوږده کوم او وروستني دوه رکعته لنډ کوم، حضرت عمر رضي الله عنه د سعد رضي الله عنه وضاحت قبول کړ، په لمانځه ورکولو کي د هغه د طريقې تصويب يې وکړ او وه يې فرمايل: زما خيال دی چي تا کوم بيان کړی دی هغه صحيح دی، د بنو اسد د حضرت سعد رضي الله عنه پر خلاف شکايت کول او په ښه توګه د لمانځه نه ورکولو الزام پر هغه لګول يوه غيرمعمولي واقعه وه چي د حضرت سعد رضي الله عنه جذباتو او احساساتو ته يې سخت تاوان ورسوی او د مجبورۍ څخه هغه د خپل دغه افتخار اظهار وکړ چي هغه ته د رسول الله ﷺ سره د اول دور هغه انقلابي هڅو کي د ګډون اعزاز تر لاسه دی چي د اسلام د نامه اخيستونکو لپاره د سختۍ او امتحانو موجب وو ، لکه حضرت سعد رضي الله عنه چي ددغه تاثر اظهار وکړ چي کله په سختو

وختو كي هم زما په ديني ژوند كي كمزوري او سستي پيدا نه سول او د سختو تكليفو او پرېشانيو په زغملو سره ما د اسلام فرائض په ښه توګه ادا كول نو اوس د لمانځه غوندي ارزښتناكه عبادت كي سستي څرنګه كولای سم، دا څومره د ناانصافی خبره ده چي بنواسد زما د اسلام په قبلولو كي مخته والی، د اسلام لپاره زما هڅي او قربانۍ او ددين په لاره كي زما ثابت قدمي او زما ټول طاعات او عبادات په نظر انداز كولو سره پر ما باندي داسي الزام لګوي چي زما لپاره د پېغور باعث دی، او زما لپاره په سخت ذهني او روحاني تكليف كي اخته كوونكی دی، حضرت سعد رضي الله عنه چي په كومو الفاظو كي د خپلو احساساتو اظهار وكړ د هغه څخه معلومه سول چي د ديني حكمت سره سم د معاندانه عيب ويني او تنقيص د دفع لپاره د خپل علم او فضل صفتونه او كمالات څرګندول جائز دي نو دا ثابته ده چي صحابه كرامو به د صحت مندانه مقاصدو لپاره د خپلو صفتو او كمالاتو اظهار كوی.

## د حضرت سعد رضي الله عنه افتخار

﴿۵۸۶۹﴾: وَعَنْ سَعْدٍ قَالَ رَأَيْتُنِي وَأَنَا ثَالِثُ الْإِسْلَامِ وَمَا أَسْلَمَ أَحَدٌ إِلَّا فِي الْيَوْمِ الَّذِي أَسْلَمْتُ فِيهِ وَلَقَدْ مَكَثْتُ سَبْعَةَ أَيَّامٍ وَإِنِّي لَثُلُثُ الْإِسْلَامِ. رواه البخاري.

د حضرت سعد رضي الله عنه څخه روايت دی چي زه د خپل ځان څخه په ښه ډول خبر يم، زه دريم سړی يم چي په اسلام كي داخل سوی يم، بل هيڅ اسلام نه وو راوړی مګر په هغه ورځ په كومه ورځ چي ما اسلام قبول كړی وو، (يعني زما د اسلام راوړلو څخه اووه ورځي وروسته نور خلك مسلمانان سوي دي او اووه ورځي مي په داسي حال كي تيري كړې چي د مسلمانانو د شمير دريمه برخه وم. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۸۳، رقم: ۳۷۲۷.

**تشريح**: د حضرت سعد رضي الله عنه مطلب دا وو چي تر ټولو مخكي په اوله ورځ چي كومو درو كسانو تر ټولو مخكي اسلام قبول كړ په هغوی كي دوه كسان بي بي خديجه رضي الله عنها او حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه وه او دريم كس زه خپله وم، همدارنګه كه چيري بي بي خديجې او حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنهما تر ما مخكي اسلام قبول كړی دی مګر زموږ د درو سره د اسلام قبلولو ورځ يوه وه، بيا زما د اسلام قبلولو څخه وروسته تر اوو ورځو پوري هيڅا اسلام قبول نه كړ، زما څخه

وروسته چي كوم خلک مسلمانان سول هغوى ټول ددغه اوو ورځو څخه وروسته مسلمانان سول، دلته دا وضاحت ضروري دي چي د حضرت سعد رضي الله عنه مراد دا وو چي په آزاد او بالغو خلګو کي زموږ درو کسانو څخه ماسوا بل څوک په دغه اوو ورځو کي مسلمان نه سو، يا دا چي حضرت سعد رضي الله عنه ته د نورو خلګو د اسلام راوړلو خبر نه وي سوی، ددې وضاحت څخه نه خو دا سوال پيدا کيږي چي د حضرت علي رضي الله عنه او حضرت زيد بن حارثه رضي الله عنه په اړه ثابته وه چي دغه دواړو هم په لومړۍ ورځ اسلام قبول کړی وو، نو حضرت سعد رضي الله عنه دا خبره څرنګه وکړل، او نه د حضرت عمار رضي الله عنه ددغه روايت څخه د حضرت سعد رضي الله عنه ددغه روايت تناقض لازميږي چي په هغه کي يې وويل: کله چي ما په اوله ورځ د رسول الله صلى الله عليه وسلم زيارت وکړ نو هغه وخت د پنځو غلامانو، دوو ښځو او ابوبکر صديق رضي الله عنه څخه ماسوا بل سړی د رسول الله صلى الله عليه وسلم په لاس مسلمان سوی نه وو.

## د حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه فضيلت

﴿۵۸۷۰﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ لِنِسَائِهِ

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دی چي رسول الله صلى الله عليه وسلم خپلو بيبيانو ته وفرمايل:

إِنَّ أَمْرَكُنَّ مِمَّا يُهِمُّنِي مِنْ بَعْدِي وَلَنْ يَصْبِرَ عَلَيْكُنَّ إِلَّا الصَّابِرُونَ

ستاسو کار له هغه قسمه دی چي زما سره يې غم را سره دی يعني زما څخه وروسته به ستاسو ګزاره څنګه وي؟ او صبر به و نه کړی پر تاسي مګر صابرين

الْمُتَصَدِّقُونَ قَالَتْ عَائِشَةُ يَعْنِي الْمُتَصَدِّقِينَ ثُمَّ قَالَتْ عَائِشَةُ لِأَبِي سَلَمَةَ

او صديقين، بي بي عائشه وايي د صابر او صديق څخه مراد د رسول الله صلى الله عليه وسلم په نزد هغه خلک دي چي صدقه او خيرات کونکي دي، ددې څخه وروسته بي بي عائشې ابوسلمه بن

بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ سَقَى اللّٰهُ أَبَاكَ مِنْ سَلْسَبِيلِ الْجَنَّةِ وَكَانَ ابْنُ عَوْفٍ قَدْ تَصَدَّقَ عَلٰى أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِينَ بِحَدِيقَةٍ بِيعَتْ بِأَرْبَعِينَ أَلْفًا. رواه الترمذي.

عبدالرحمن ته وويل خدای دي ستا پلار د جنت په سلسبيل اوبه کړي، عبدالرحمن بن عوف د بيبيانو مبارکو د مصارفو لپاره يو باغ ورکړی وو چي په څلوېښت زره درهمه باندي خرڅ کړل سوی وو.

**تخریج**: سنن الترمذي ٥\٦١٦،٦٠٦، رقم: ٣٧٤٩.

**تشريح**: چي صابر دی، يعني هغه خلک چي د الله ﷻ د رضا او خوښۍ دپاره خپل مال او شتمني مصرفوي، د صدقې او خیرات په ذريعه د دنيا سرمايه کموي مګر د آخرت په سرمايه کي زياتوب کوي، او همدارنګه د مال او شتمنۍ په مصرفولو باندي نفس چي کوم ناخوښي کيږي پر هغه صبر کوي.

صديقين دی، يعني هغه خلک چي د صدقې په اړه کامل وي د حقوقو په ادا کولو کي تر ټولو مخکي وي او په سخا کي كثير الصدق دي.

رسول الله ﷺ چي ازواج مطهراتو ته څه وفرمايل د هغه خلاصه دا وه چي کله الله ﷻ تاسو ته اختيار درکړی وو چي تاسو د زوجيت رسول د شرف په صورت کي آخرت اختيار کړئ يا د آرام ژوند تېرولو لپاره دغه شرف پرېښودل اختيار کړئ، نو هغه وخت که څه هم تاسو پر دنيا باندي آخرت ته ترجيح ورکړې وه او زما په ملګرتيا او زوجيت کي د اوسېدو فيصله مو په کامل يقين سره برقرار ساتلې وه چي د دغه عظيم شرف لپاره د دنيا لوی مصيبتونه او سختۍ مو د زړه په خوښي سره زغملي وې، بيا هم ما ته کله نا کله دا خيال راځي چي زه ستاسو دپاره مېراث نه پرېږدم، څرګنده نه ده چي زما د وفات وروسته به تاسو د کومو حالاتو سره مخامخ کيږئ، ستاسو سره به خلک څه چلن او معامله کوي، څوک به ستاسو د مصارفو متکفل جوړيږي او کوم چا ته به ستاسو د خبر اخيستني توفيق په برخه کيږي او څوک چي ستاسو د مصارفو دپاره خپل مال او خپل جائيداد وړاندي کوي د هغه به هغه مقام او مرتبه وي کوم چي د الله ﷻ په نزد د صابر او صديق وي، بي بي عائشې ﷞ د ارشاد نبوي په سياق کي د صابر او صديق معنی بيان کړل او بيا د حضرت عبدالرحمن بن عوف ﷛ په اړه چي يې کوم الفاظ وفرمايل د هغه څخه د حضرت عبدالرحمن بن عوف ﷛ هغه فضيلت ظاهر سو چي هغه د ازواج مطهراتو دپاره د خپل جائيداد او مال په وړاندي کولو سره د دغه حديث مطابق فضيلت تر لاسه کړ.

**د الله ﷻ په لاره کي د حضرت عبدالرحمن بن عوف ﷛ مالي قرباني**: په ذکر سوي حديث خو دادي چي حضرت عبدالرحمن بن عوف ﷛ خپل باغ د ازواجو مطهراتو لپاره ورکړی وو، هغه په څلوېښت زره ديناره وپلورل سو مګر د ترمذي په يو بل روايت کي چي ترمذي ورته حسن غريب ويلي دي، داسي دي چي عبدالرحمن بن عوف ﷛ د ازواج مطهراتو د مصرف دپاره خپل ټول باغ د الله ﷻ په لاره کي ورکړ چي په څلور لکه ديناره وپلورل سو، دا خو د ابن عوف ﷛ د مالي قربانۍ يو مثال دی، هغه ډېر لوی تجار وو، او د خپل تجارت په

ذریعه چي به یې څومره مال او سامان پیدا کوی هغومره به یې د الله ﷻ په لاره کي مصرف کوی، حقیقت خو دادی که چیري د هغه ژوند او د هغه حالاتو ته وکتل سي نو دا ویل به مبالغه نه وي چي د هغه ټول تجارت او کسب د الله ﷻ په لاره کي او د دین د سرلوړی لپاره مصرفېدی، په یوه روایت کي راغلي دي چي حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په زمانه کي خپل نیم مال او سامان او څلور زره دیناره یا درهمه وړاندي کړل، بیا هغه څلوېښت زره دیناره صدقه کړل، بیا پنځه سوه اسونه یې د جهاد لپاره د الله ﷻ په لاره کي ورکړل، بیا یې د جهاد لپاره د الله ﷻ په لاره کي پنځه سوه اوښي ورکړې، او په دغه ټول مال او سامان کي زیاته برخه د هغه تجارتي مال او سرمایه وو او د یوه روایت مطابق یو وار حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه یو نیم لک دیناره د الله ﷻ د رضا لپاره صحابه کرامو ته ورکړل،

بیا کله چي شپه راغلل نو په کور کي د قلم او کاغذ په را اخیستلو سره کښېنست او د خپل ټول مال د مهاجرینو او انصارو په منځ کي د وېشلو لپاره یې فهرست جوړ کړ، په هغه فهرست کي یې د خپل بدن جامې هم ولیکلې چي زما پر بدن کوم قمیص دی هغه د فلاني لپاره دی او زما لنګوټه د فلاني لپاره ده، ګمدارنګه په خپل مال او سامان کي یې هیڅ شی نه پرېښود، هر شی یې د اړو کسانو په نامه ولیکی، ددغه لیکني وروسته بېده سو، کله چي سهار سو نو د سهار د لمانځه لپاره مسجد ته ورسېدی او په رسول الله ﷺ پسي یې لمونځ ادا کړ، په دغه وخت کي حضرت جبرائیل علیه السلام نازل سو او رسول الله ﷺ ته یې وویل: اې محمد! الله ﷻ فرمایي چي عبدالرحمن ته زما له خوا سلام ووایه او هغه فهرست (چي هغه نن شپه جوړ کړی دی) د هغه څخه په قبلولو سره بېرته هغه ته ورکړه، او هغه ته ووایه چي الله ﷻ ستا صدقه قبوله کړل، په دغه ټول مال او سامان کي ته د الله ﷻ او د هغه د رسول له خوا وکیل یې، په خپله خوښه راکړه او ورکړه کوه او د پخوا په ډول مصرف کوه، ددې به ستا سره هیڅ حساب نه کیږي، ددې سره هغه ته د جنت زیری هم ورکړل سو، په یوه روایت کي راغلي دي چي هغه دېرش زره غلامان ازاد کړل او څلور ښځي یې پاته سوې، منقول دي چي د هري ښځي په برخه کي اتیا زره درهم راغلي وه، په یوه روایت کي داسي دي چي د عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه میراث په شپاړلسو برخو وویشل سو او د هري ښځي په برخه کي دوه لکه درهم راغلل.

**اې الله! عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه د جنت په ویاله اوبه کړې**

﴿۵۸۷۱﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ

لِأَزْوَاجِهِ إِنَّ الَّذِي يَحْثو عَلَيْكُنَّ بَعْدِي هُوَ الصَّادِقُ الْبَارُّ اللَّهُمَّ اسْقِ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ عَوْفٍ مِنْ سَلْسَبِيلِ الْجَنَّةِ. رواه احمد.

د حضرت ام سلمه (رض) څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي خپلو بيبيانو ته يې فرمايل : کوم سړی چي زما څخه وروسته تاسو ته په لپو مال درکړي هغه صادق الايمان دی، اې الله ! د جنت په سلسبيل عبدالرحمن بن عوف اوبه کړې . احمد.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ٦\٢٩٩.

**د لغاتو حل**: يحثو : يجود وينثر (پارول)

**تشريح**: څرګنده ده چي دعائيه الفاظ د بي بي ام سلمه ﷺ خپل الفاظ دي لکه څرنګه چي په تېر روايت کي د بي بي عائشې ﷺ څخه منقول دي، مګر د ځينو حضراتو وينا ده چي دغه الفاظ هم د رسول الله ﷺ د ارشاد برخه ده ، په اصل کي رسول الله ﷺ ته د مخکي څخه معلومه سوې وه چي عبدالرحمن بن عوف ﷺ به زما د بيبيانو سره ځومره لوی احسان کوي او ځکه رسول الله ﷺ د هغه په حق کي دغه دعاء وفرمايل، په دې اعتبار سره دغه حديث د رسول الله ﷺ اعجاز څرګندوي.

## د حضرت ابو عبيده ﷺ فضيلت

﴿۵۸۷۲﴾: وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ جاءِ أَهْلُ نَجْرَانَ إِلى رَسُولِ اللّهِ صَلَّى اللّهُ عَلَيْهِ

د حضرت حذيفه ﷺ څخه روايت دی چي د نجران خلک د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر

وَسَلَّمَ فقالوا يا رسول الله ابعث الينا رَجُلًا أَمِينًا فقال لابعثن اليكم

سول او عرض يې وکړ اې د الله رسوله ! موږ ته يو امانت دار سړی راوليږئ ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : زه تاسو ته يو حاکم درليږم چي

رجلا حَقَّ أَمِينٍ فَاسْتَشْرَفَ لَهَا الناس قال فَبَعَثَ أَبَا عُبَيْدَةَ ابن الجراح. رواه البخاري.

امين به وي او ددې وړ به وي چي هغه ته امانت دار وويل سي ، ددې اوريدو سره خلکو د امارت انتظار کوئ چي چا ته به ورکول کيږي ، وايي چي رسول الله ﷺ ابو عبيده بن جراح ﷺ ور وليږی . بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۹۳، رقم: ۳۷۴۵، ومسلم ۴\۱۸۸۲، رقم: ۵۵- ۲۴۲۰

**د لغاتو حل**: استشرف: طمع.

**تشريح**: نجران په یمن کي د یو ځای نوم دی چي په لسم هجري کال فتح سوی وو، یو قول دادی چي نجران د حجاز او شام په منځ کي واقع د یو ځای نوم دی.

تمني او انتظار کوی: ددغه تمني او اظهار تعلق د عزت او منصب خواهش هیڅکله نه وو بلکه ددغه تمني او شوق بنیاد په امانت سره د متصف کېدو غوښتنه او خواهش وو.

## د امارت او خلافت په باره کي یو سوال او د هغه جواب

﴿۵۸۴۳﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قِيلَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ مَنْ يُؤَمَّرُ بَعْدَكَ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ ته عرض وسو اې د الله رسوله! ستاسو څخه وروسته موږ څوک خپل امیر جوړ کړو؟

قَالَ إِنْ تُؤَمِّرُوا أَبَا بَكْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ تَجِدُوهُ أَمِينًا زَاهِدًا فِي الدُّنْيَا رَاغِبًا فِي

رسول الله ﷺ وفرمایل که تاسو ابوبکر رضي الله عنه خپل امیر جوړ کړئ نو هغه به د دنیا څخه بې پروا او

الْآخِرَةِ وَإِنْ تُؤَمِّرُوا عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ تَجِدُوهُ قَوِيًّا أَمِينًا لَا يَخَافُ فِي اللّٰهِ

د آخرت راغب وي او که تاسو عمر رضي الله عنه خپل امیر جوړ کړئ نو هغه به قوي او امانتدار وي، د

لَوْمَةَ لَائِمٍ وَإِنْ تُؤَمِّرُوا عَلِيًّا رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وَلَا أُرَاكُمْ فَاعِلِينَ تَجِدُوهُ هَادِيًا مَهْدِيًّا يَأْخُذُ بِكُمُ الطَّرِيقَ الْمُسْتَقِيمَ. رواه احمد.

الله جل جلاله په احکامو کي هغه د هیچا څخه نه بیرېږي، او که تاسو علي رضي الله عنه خپل امیر جوړ کړئ او زما خیال دی چي تاسو به هغه امیر جوړ نه کړئ نو تاسو به هغه سیده لار ښونکی او هدایت یافته ووینئ او هغه به تاسو پر سیده لار بوځي. احمد.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۱\۱۰۹.

**تشريح**: امانتدار، د دنیا څخه بې پروا، یعني د دین د حقوقو په ادا کولو کي به د هغه څخه هیڅ خیانت نه کیږي، هغه چي د دین او ملت په معامله کي کوم حکم او فیصله کوي د هغه بنیاد به عدل او دیانت وي، همدارنګه د هغه به له دنیا سره هیڅ شوق نه وي بلکه د هغه ټوله توجه او

فکر به اخرت ته وي، ددغه الفاظو په ذریعه رسول الله ﷺ دې ته اشاره وفرمایل چي زما څخه وروسته د خلافت او امارت د وړتیا دپاره دغه صفتونه د مخکي څخه خپل معیار جوړول پکار دي ځکه چي په کوم چا کي دغه صفتونه وي هغه به اصل کي د اخلاص پر درجه باندي فائز وي، او اخلاص هغه جوهر دی چي خلاصون لازموي، په یوه روایت کي د تجدوه مسلما امينا، الفاظ دی او په یوه روایت کي دا الفاظ دي: تجدوه قويا في امر الله ضعيفا في نفسه، یعني تاسو به هغه د الله ﷻ په معامله کي ډېر سخت او د خپل ځان په اړه ډېر کمزوری وینئ.

د ملامت کوونکو د بیري څخه بې خوفه، یعني ددین په معامله کي به هغه د هر ډول خارجي بیري او مصلحت څخه بې نیازه وي، د شریعت په جاري کولو کي به د چا رعایت نه کوي، ددین او ملت په ګټو کي چي کوم قدم پورته کوي او کومه کړنه کوي په هغه کي به د پوره استقلال ثبوت ورکوي، نه به د چا په مخالفت سره هغه ته بېره وي او نه به د چا په ملامتیا متاثر کیږي، نه به د چا پر اعتراض پر هغه اثر کیږي، او نه به د ملامت کوونکي ملامتیا د هغه په استقلال کي لړزه پیدا کولای سي، په یوه روایت کي دا الفاظ دي: تجدوه قويا في امر الله قويا في نفسه،

یعني تاسو به هغه د الله ﷻ په لاره کي ټیک او خپله د خپل ځان په اړه هم ټینګ تر لاسه کړئ.

په دغه حدیث کي د حضرت عثمان رضي الله عنه یادونه نسته، یا خو د هغه یادونه یې نه وه کړې او یا رسول الله ﷺ یادونه کړې وه مګر د راوي څخه د هغه یادونه هېره سول، ځینو حضراتو دا لیکلي دي چي تر ټولو مخکي د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه یادونه کول د خلافت په اړه د هغه تقدم او فوقیت ته اشاره کوي، او رسول الله ﷺ که څه هم د عثمان رضي الله عنه یادونه صریحا ونه کړل مګر د حضرت علي رضي الله عنه په یادونه کي (لا اراکم فاعلین) یعني تاسو به هغه خپل امیر او مشر نه جوړوئ، په دغه الفاظو کي پر حضرت علي رضي الله عنه باندي د حضرت عثمان رضي الله عنه تقدم ته اشاره ده، ددغه الفاظو (لا اراکم فاعلین) یو مطلب خو هغه دی چي هغه ته په ترجمه کي اشاره سوې ده یعني دا چي زما خیال دی چي د هغه پر خلافت باندي به د ټولو مسلمانانو اجماع نه وي بلکه د هغه سره به د اختلاف کوونکو ډېر لویه ډله موجود وي، او یو مطلب دا هم کېدای سي چي زما خیال دی چي تاسو خلک به زما د وفات څخه وروسته تر ټولو مخکي علي رضي الله عنه خپل خلیفه او امیر جوړوئ ځکه چي د قضاء او قدر الهي څخه ما ته دا معلومه سوې ده چي د علي رضي الله عنه عمر به اوږد وي او هغه به د ذکر سوو دواړو کسانو یعني ابوبکر او عمر رضي الله عنهما څخه زیات ژوندی وي، که زما څخه وروسته تر ټولو مخکي علي رضي الله عنه خلیفه او امیر وټاکل سي نو ددغه دواړو د خلافت

قائمېدو صورت نسته چي د علي رضی اللہ عنہ څخه مخکي وفات کېدونکي دي، حال دا چي ددغه خلکو خليفه کېدل هم مقدر سوی دی، ددغه مطلب په صورت کې به ظن د يقين په معنی کي اخيستل کيږي يعني رسول الله ﷺ داسي وفرمايل: ما ته يقين دی چي تاسو به زما څخه وروسته تر ټولو مخکي عني رضی اللہ عنہ خپل خليفه او امير نه جوړوئ ، په هر حال رسول الله ﷺ د پوښتنه کوونکي په جواب کي چي څه وفرمايل د هغه خلاصه دا وه چي اې مسلمانانو! زما څخه وروسته د مسلمانانو قيادت او د ملي مشرۍ يعني خلافت او امارت معامله په حقيقت کي خپله پر تاسو باندي موقوف ده تاسو ددين او ملت په اړه امين هم یاست او مجتهد هم یاست، الله جل جلاله تاسو ته دومره بصيرت او حق ته د رسېدو داسي ايماني قوت درکړی دی چي د حالاتو او تقاضو سره سم صحيح فيصلې ته رسېدلای سئ، نو زما څخه وروسته تاسو د خپل اجتهاد په ذريعه د کوم چا پر امارت او خلافت چي متفق او متحد سئ هغه بهٔ ستاسو امير او خليفه وي، ځکه چي زه پوهېږم چي ستاسو اجماع او اتحاد د حق او صداقت څخه ماسوا پر بل هيڅ شی نه کيږي، شيخ عبدالحق دهلوي رحمۃ اللہ علیہ ليکلي دي: دغه حديث ددې خبري دليل دی چي رسول الله ﷺ د نص صريح په صورت کي هيڅوک هم خپل خليفه ټاکلی نه وو .

## د څلورو خليفه ګانو فضائل

﴿۵۸۷۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَحِمَ اللّٰهُ أَبَا بَكْرٍ

د حضرت علي رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : خدای تعالی دي پر ابوبکر رضی اللہ عنہ

زَوَّجَنِيَ ابْنَتَهُ وَحَمَلَنِي إِلَى دَارِ الْهِجْرَةِ وصحبني في الغار وَأَعْتَقَ بِلَالًا مِنْ

رحم وکړي هغه خپله لور ما ته په نکاح راکړه ، زه یې د هجرت کور ته بوتلم او په غار کي يې ملګرتيا را سره وکړه او په خپل مال سره يې بلال آزاد کړ

مَالِهِ رَحِمَ اللّٰهُ عُمَرَ يَقُولُ الْحَقَّ وَإِنْ كَانَ مُرًّا تَرَكَهُ الْحَقُّ وَمَا لَهُ صَدِيقٌ

او خدای تعالی دي پر عمر رحم وکړي چي حقه خبره کوي که څه هم هغه ترخه وي، حق ويل هغه دې حال ته ورسوی چي د هغه هيڅوک دوست نسته،

رَحِمَ اللّٰهُ عُثْمَانَ تَسْتَحْيِيهِ الْمَلَائِكَةُ رَحِمَ اللّٰهُ عَلِيًّا اللّٰهُمَّ أَدِرِ الْحَقَّ مَعَهُ

حَيْثُ دَارَ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

او الله جَلَّ جَلَالُهُ دي پر عثمان رضي الله عنه رحم وکړي چي ملائکي هم حيا ځيني کوي او الله تعالى دي پر علي رحم وکړي ، اې الله ! حق ته د علي رضي الله عنه سره ګردش ورکړې يعني چيري چي علي وي هلته حق وي . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۹۱، رقم: ۳۷۱۴.

**تشريح**: پر خپلي اوښي باندي په سپرولو سره، په ځينو روايتو کي راغلي دي چي حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه دوې اوښي ساتلي وې چي معلومه نه ده کله به د هجرت حکم راځي ، کله چي د هجرت حکم راغلی نو يوه اوښه يې د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضره کړل او عرض يې وکړ چي اې د الله رسوله! د هجرت په سفر کي د سپرلۍ لپاره دغه اوښه قبوله کړه، رسول الله ﷺ وفرمايل: زه دغه اوښه د سپرلۍ دپاره په هغه صورت کي اخلم چي ته يې پر ما وپلورې، په پای کي حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه هغه اوښه په رسول الله ﷺ وپلورل او رسول الله ﷺ د اته سوه درهمو په عوض کي هغه اوښه رانيول .

د هغه هيڅوک دوست نسته، يعني د هغه هيڅوک داسي دوست نسته چي د دوستۍ اميد ځيني ولري، او کوم چي د مطلق دوستۍ تعلق دی نو ټول مخلص او رښتوني مسلمانان د هغه دوستان وه او تر ټولو زيات خو صديق اکبر رضي الله عنه د هغه رښتونی دوست وو .

پر کومه خوا چي علي رضي الله عنه وي هغه خوا حق وي، دغه الفاظ داسي دي لکه په يوه روايت کي چي سيوطي په جمع الجوامع کي نقل کړي دي، فرمايل سوي دي: القرآن مع علي وعلي مع القرآن، يعني قرآن د علي رضي الله عنه سره دی او علي رضي الله عنه د قرآن سره دی .

===========

# بَابُ مَنَاقِبِ اَهْلِ بَيْتِ النَّبِيِّ ﷺ

## (د نبي کريم ﷺ د کورنۍ د مناقبو بيان)

**د اهل بيتو اطلاق پر کومو خلکو باندي کيږي**: اهل بيت يعني د نبي کريم ﷺ د کورنۍ څخه کوم خلک مرا ددي؟ په دې اړه مختلف روايتونه دي، د اهل بيتو اطلاق پر هغه کسانو باندي هم کيږي چا ته چي د زکوة مال اخيستل حرام دي، يعني بنوهاشم او په هغوی کي

آل عباس، آل علي، آل جعفر او آل عقیل شامل دي، په ځینو روایتو کي د رسول الله ﷺ کورنۍ ته اهل بیت ویل سوي دي چي په هغوی کي ازواج مطهرات په یقیني توګه شاملي دي، کوم خلک چي ازواج مطهرات د اهل بیتو څخه خارج ګرځوي هغوی د مکابره (زور، کبر او فساد) ښکار دي، او د قرآن کریم د دغه آیت:

إِنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيُذْهِبَ عَنكُمُ الرِّجْسَ أَهْلَ الْبَيْتِ وَيُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيرًا

څخه خپل اختلاف ظاهرونکی دي ځکه چي تر دې مخکي او وروسته ازواج مطهرات مخاطب کړل سوي دي، نو بیا ازواج مطهرات د آیت د منځ څخه د دغه عبارتي لړۍ او معنوي سیاق و سباق څخه بېلول دي، امام فخر الدین رازي رحمه الله لیکلي دي چي دغه آیت د رسول الله ﷺ ازواج مطهراتو ته شامل دی ځکه چي د آیت سیاق او سباق په پوره شدت سره د دې متقاضي دی نو ازواج مطهرات د اهل بیتو د مصداق څخه ایستل او د دوی څخه ماسوا نور خلک د دغه مصداق سره مختص کول به صحیح نه وي، امام رازي رحمه الله وړاندي لیکي: دا ویل زیات غوره دي چي دا هل بیتو مصداق د رسول الله ﷺ پر اولاد او ازواج مطهرات دی او په هغوی کي حضرت امام حسن او حضرت امام حسین رضي الله عنهما هم شامل دي، او حضرت علي رضي الله عنه هم د رسول الله ﷺ سره د خاص نسبت او تعلق په سبب د اهل بیتو څخه دی، بیا هم په ځینو ځایو کي د اهل بیتو اطلاق داسي هم راغلی دی چي د هغه څخه په ظاهره دا مفهوم اخیستل کیږي چي د دې مصداق یوازي فاطمة زهرا رضي الله عنها، علي مرتضی رضي الله عنه، حسن رضي الله عنه او حسین رضي الله عنه دي لکه څرنګه چي د حضرت انس رضي الله عنه په روایت کي دي چي رسول الله ﷺ به د سهار د لمانځه لپاره مسجد ته راتلی نو په لاره کي د بي بي فاطمې رضي الله عنها د کور مخته په تېرېدو سره به يې داسي فرمایل: الصلوة یا اهل البیت انما یرید الله لیذهب عنکم الرجس اهل البیت ویطهرکم تطهیرا، دغه روایت ترمذي نقل کړی دی، همدارنګه ام المؤمنین بي بي ام سلمه رضي الله عنها روایت کوي چي یوه ورځ زه د رسول الله ﷺ سره په کور کي ناسته وم چي خادم راغلی او عرض يې وکړ چي علي او فاطمه رضي الله عنهما د باندي له دروازې سره ولاړ دي، رسول الله ﷺ ما ته وفرمایل: ته یوې خوا ته سه، نو زه د کوریو کونج ته ولاړم، علي او فاطمه رضي الله عنهما دننه راغلل او دهغوی سره حسن او حسین رضي الله عنهما هم وه، چي هغه وخت ماشومان وه، رسول الله ﷺ، حسین او حسین رضي الله عنهما په غېږ کي کښېنول او په یوه لاس يې علي رضي الله عنه او په بل لاس يې فاطمه رضي الله عنها د خپل بدن سره جخت کړل، بیا يې خپله توره کمبله پر هغوی ټولو باندي واچول چي هغه وخت يې پر بدن مبارک وو او وه يې فرمایل: اې

الله! دا زما اهل بیت دي ، ما او زما اهل بیت ځان ته وبولې نه اور ته، د بي بي ام سلمه ﷺ څخه دا هم منقول دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل: زما دغه مسجد (مسجد نبوي) پر هري حائضې ښځي او هر جنب سړي باندي حرام دی مگر پر محمد ﷺ او د هغه پر اهل بیتو باندي، چي هغه علي، فاطمه، حسن او حسین ﷺ دي، دغه روایت بیهقي نقل کړی دی او ضعیف یې گرځولی دی،

په هر حال یوې خوا ته هغه روایتونه دي چي د هغو څخه بنوهاشم او د رسول الله ﷺ پر کورنۍ باندي د اهل بیتو اطلاق ثابتیږي او بلې خوا ته هغه روایتونه دي چي د هغه څخه د اهل بیتو مصداق یوازي پر حضرت علي، بي بي فاطمه، حضرت حسن او حضرت حسین ﷺ باندي کیږي بلکه پر دغه څلورو باندي د اهل بیتو اطلاق شائع او مشهور دی، ځکه علماؤ ددغه ټولو روایتو تطبیق او د اطلاق په توجیه کي دا ویلي دي چي د اهل بیت درې ډولونه دي، بیت نسب، بیت سکن، بیت ولادت، نو بني هاشم یعني د عبدالمطلب اولاد ته به د نسب او کورنۍ په اعتبار د رسول الله ﷺ اهل بیت ویل کیږي، په عربو کي د جد قریب اولاد ته بیت یا کورنۍ هم ویل کیدل، او خپله په پښتو کي هم داسي دي چي د فلاني کورنۍ ډېره عزتمنده ده یا فلانی سړی د ښه کورنۍ څخه دی، نو د کورنۍ یا خاندان څخه د هغه سړي د پلار او نیکه اولاد مراد وي ، د رسول الله ﷺ ازواج مطهراتو ته به اهل بیت سکنی ویل کیږي ، په عامه اصطلاح کي د یو سړي ښځي د هغه اهل بیتو سره تعبیر کېدل مشهور دي او د رسول الله ﷺ اولاد ته به اهل بیت ولادت ویل کیږي که څه هم د رسول الله ﷺ پر ټول اولاد باندي د اهل بیت ولادت اطلاق کېدل پکار دي مگر په ټول اولاد کي حضرت علي ، بي بي فاطمه، حسن او حسین ﷺ ته چي کوم خاص فضل او شرف تر لاسه وو او دا چي د هغوی فضائل او مناقب په کوم کثرت سره په حدیثو کي وارد دي د هغو په وجه به د اهل بیتو ولادت خاص او امتیازي مصداق یوازي د څلورو کسانو منل کیږي.

څرگنده دي وي چي په دغه باب کي د مشکوة مؤلف چي کوم حدیثونه او روایتونه نقل کړي دي د اهل بیتو په نسبت سره د هغو تعلق د ځینو بني هاشمو سره هم دی او د علي ، فاطمه، حسن او حسین ﷺ سره هم دی، ددې څخه ماسوا په ضمن کي حضرت زید بن حارثه ﷺ او دهغه د زوی حضرت اسامه ﷺ یادونه هم راغلې ده ، او ددغه دواړو خو غالبا په دې وجه دی چي ددغه دواړو سره د رسول الله ﷺ ډېره مینه او عنایت وو ، یا په دې سبب دی چي کیدای سي دغه دواړه د مشکوة مؤلف په اهل بیتو کي شمېرلي وي، همدارنگه د مشکوة مؤلف چي په دغه باب کي د ازواج مطهراتو یادونه نه ده کړې بلکه د هغوی لپاره یې بېل باب قائم کړی دی نو

دهغه وجه هم يا خو داده چي د هغوى خاص مناقب او فضائل په اعتبار د هغوى ځانته باب قائمول يې مناسب وګڼل يا د عامي اصطلاح په وجه د هغوى يادونه يې د اهل بيتو څخه بېله وکړل ځکه چي په عامه توګه د اهل بيتو اطلاق پر دغه څلورو تنو باندي کيږي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

### آيت مباهله او اهل بيت

﴿۵۸۷۵﴾: عَنْ سَعْدِ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ نَدْعُ أَبْنَاءَنَا وَأَبْنَاءَكُمْ دَعَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلِيًّا وَفَاطِمَةَ وَحَسَنًا وَحُسَيْنًا فَقَالَ اللّٰهُمَّ هٰؤُلَاءِ أَهْلُ بَيْتِيْ. رواه مسلم.

د حضرت سعد بن ابي وقاص رضی الله عنه څخه روايت دى چي کله دا آيت نازل سو (فقل تعالوا ندعُ ابناءنا وابناءكم.....)، (يعني راځئ چي موږ خپل زامن او ستاسو زامن راوبلو) نو رسول الله ﷺ علي، فاطمه، حسن او حسين رضي الله عنهم راوستل او وه يې فرمايل اې الله ! دا زما اهل بيت دي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۸۷۱\۴، رقم: ۳۲- ۲۴۰۴.

**تشريح**: پوره آيت دادى :

فَمَنْ حَآجَّكَ فِيهِ مِن بَعْدِ مَا جَاءَكَ مِنَ الْعِلْمِ فَقُلْ تَعَالَوْا نَدْعُ أَبْنَاءَنَا وَأَبْنَاءَكُمْ وَنِسَاءَنَا وَنِسَاءَكُمْ وَأَنفُسَنَا وَأَنفُسَكُمْ ثُمَّ نَبْتَهِلْ فَنَجْعَل لَّعْنَتَ اللّٰهِ عَلَى الْكَاذِبِينَ.

ژباړه: نو کوم څوک چي ستا سره (د قرآن يا دين) په اړه حجت کوي وروسته تر دې چي تا ته قطعي علم راغلى دى نو ته ورته ووايه راځئ چي موږ او تاسو راوبولو خپل زامن او ستاسو زامن، خپلي ښځي او ستاسو ښځي ، خپل ځانونه او ستاسو ځانونه، بيا موږ ټول په يو ځاى کېدو سره د زړه په اخلاص دعاء وغواړو په دې توګه چي الله ﷻ لعنت وليږي پر هغه چا چي ناحقه وي، دغه آيت ته آيت مباهله ويل کيږي، مباهله لفظ د بهل يا بهلة څخه اخيستل سوى دى چي معنى يې د لعنت ليږلو او لعنت ده، د مباهله مطلب پر يو بل باندي لعنت ليږل او د ملعون کېدو ښېرا کول دي، د دغه لفظ د مفهوم ادا کولو لپاره د ابتهال لفظ وو مګر وروسته د دغه لفظ

ابتهال اطلاق پر هغه دعاء باندي كېدل پيل سول چي په هغه كي تضرع، خشوع، او خضوع او عاجزي صورت ډېر زيات اختيار كړل سوی وي، په هر حال د عربو دا عادت وو چي كله به په يوه معامله كي دوو ډلو په خپلو كي د يو بل مخالفت او تكذيب كوی او پر يو بل باندي به يې د ظلم الزام عائد كوی نو په پای كي به د خپلو خپلو كورو څخه د باندي راووتل او پر يو خاص ځای به راجمع سول او د يو بل خلاف به يې ښېرا كول، پر يو بل به يې لعنت كوی او داسي دعاء به يې كول: ای الله! په موږ كي چي ثوک ناحقه وي يا ظالم وي پر هغه لعنت وكړې .

كله چي نصارا (مسيحانو) د اسلام يا قرآن د حقانيت او صداقت په اړه د رسول الله ﷺ سره د بحث او مباحثې دروازه خلاصه كړل او د اسلام د پيغمبر مخالفت او تكذيب يې وكړ نو الله ﷻ، رسول الله ﷺ ته د ذكر سوي آيت په ذريعه حكم وكړ چي ته دغه مسيحانو ته د مباهلې دعوت وركړه او دوی ته ووايه راځئ چي په عامه توګه خپله فيصله وكړو چي په موږ كي ثوک پر حق دی او ثوک پر ناحقه، په روايتو كي راځي چي د دغه آيت په نازلېدو سره رسول الله ﷺ خپل قريبان او اهل بيت د مباهلې لپاره راوستل په داسي توګه چي حضرت حسن او حضرت حسين رضي الله عنهما چي هغه وخت ډېر كوچنيان وه د رسول الله ﷺ په غېږ مباركه كي وه ، بي بي فاطمه رضي الله عنها د رسول الله ﷺ تر شا وه او حضرت علي رضي الله عنه د بي بي فاطمې رضي الله عنها تر شا وو، رسول الله ﷺ هغوی ته وفرمايل: كله چي زه په مباهله كي ښېرا كوم نو تاسو ټول په يو ځای امين واياست، د مسيحانو د مشر نظر چي پر هغه نوراني مخونو ولوېدی نو خپلو ملګرو ته يې بې اختياره ووېل: پر تاسو افسوس دی ، زه خو دغه نوراني مخونه داسي وينم كه چيري دغه كسان الله ﷻ ته داسي خواست وكړي چي غر د هغه ځای څخه وباسي نو يقينا الله ﷻ به د دوی خواست قبول كړي او غر به د هغه ځايه ليري سي، بيا هغه خپلو ملګرو ته مشوره وركړل چي د دغه خلګو سره مباهله هيڅكله مه كوئ كنه نو بيخ به مو وباسي، په پای كي مسيحانو د رسول الله ﷺ سره مباهله ونه كړل او د جزيې په قبلولو سره د رسول الله ﷺ پر سياسي اطاعت مجبور سول، مګر په هغوی كي د اسلام او پيغمبر سره د زړه تعلق او مناسب نه وو ځكه هغوی د اسلام د دائرې څخه محروم پاته سول، په يوه روايت كي دا هم راغلي دي چي وروسته رسول الله ﷺ فرمايلي وه: كه چيري هغه خلګو مباهله كړې وي نو د نتيجې په توګه به د هغوی صورتونه مسخ سوي وای او د بېزو ګانو او خنزيرانو په ډول به سوي وای، ټول ځنګل به اور سوی وای او هغه اور به نه يوازي هغوی نيستي كړي وای بلكه درختي او مرغان به يې هم سوځلي وای .

## په قران کریم کي د اهل بیتو مصداق

﴿۵۸۷۶﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَدَاةً وَعَلَيْهِ

د حضرت عائشي (رض) څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ یوه ورځ سهار وختي یو

مِرْطٌ مُرَحَّلٌ مِنْ شَعْرٍ أَسْوَدَ فَجَاءَ الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ فَأَدْخَلَهُ ثُمَّ جَاءَ

تور ورېښتو لرونکی کمبل اچولی دباندي تشریف راوړ چي په خدمت کي یې حسن بن علي رضي الله عنه حاضر سو ، رسول الله ﷺ هغه په کمبل کي دننه کښېنوی ، بیا

الْحُسَيْنُ فَدَخَلَ مَعَهُ ثُمَّ جَاءَتْ فَاطِمَةُ فَأَدْخَلَهَا ثُمَّ جَاءَ عَلِيٌّ فَأَدْخَلَهُ ثُمَّ

حسین رضي الله عنه راغی هغه یې هم په کمبل کي دننه کښېنوی ، بیا فاطمه رضي الله عنها راغلل هغه یې هم په کمبل کي دننه کښېنول ، بیا علي رضي الله عنه راغلی هغه یې هم په کمبل کي داخل کړ

قَالَ إِنَّمَا يُرِيدُ اللّٰهُ لِيُذْهِبَ عَنْكُمُ الرِّجْسَ أَهْلَ الْبَيْتِ وَيُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيرًا.

رواه مسلم .

او دا آیت یې تلاوت کړ : (انما یرید الله لیذهب عنکم .....)، (اې اهل بیتو ! الله تعالی غواړي چي ستاسو څخه د ګناهونو ناپاکي لیري کړي او تاسو پاک او صاف کړي ) مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۴\۱۸۸۳، رقم: ۶۱ - ۲۴۲۴.

**د لغاتو حل**: المرط : کساء یکون من خز وصوف فیه علم. مرحل: ضرب من برود الیمن (یمني څادر)

**تشریح**: د دغه آیت سیاق او سباق په پوره وضاحت سره د دې خبري دلیل دی چي د رسول الله ﷺ ازواج مطهرات هم د اهل بیتو څخه دي ځکه چي تر دې په مخکي آیت کي هم : (یانساء النبي لستن کاحد من النساء) په ذریعه ازواج مطهراتو ته خطاب سوی دی او په وروسته آیت کي هم (واذکرن ما یتلی في بیوتکن) د دوی یادونه ده، پاته سوه دا خبره چي په (عنکم الرجس) کي د جمع مذکر ضمیر ولي راوړل سوی دی، نو د دې وجه یا خو د عظمت اظهار دی او یا د اهل بیتو د نارینوو فوقیت او غوره والي ته اشاره کول مقصد دي .

## ابراهيم بن محمد رسول الله ﷺ

﴿۵۸۷۷﴾: وَعَنِ الْبَرَاءَ قَالَ لَمَّا تُوُفِّيَ إِبْرَاهِيمُ عَلَيْهِ السَّلَامُ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ لَهُ مُرْضِعًا فِي الْجَنَّةِ. رواه البخاري.

د حضرت براء رضي الله عنه څخه روايت دى چي کله د رسول الله ﷺ زوى ابراهيم وفات سو نو رسول الله ﷺ وفرمايل: په جنت کي د هغه لپاره تى ورکونکې ده. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۲۴۴، رقم: ۱۳۸۲.

**تشريح**: ځينو شارحينو د شېدو څښلو څخه دا مراد اخيستى دى چي الله جل جلاله د هغه لپاره د جنت ټول نعمتونه تيار کړي دي او هغه په جنت کي خوند اخلي، مگر حقيقت دادى چي ددغه تاويل هيڅ ضرورت نسته، کله چي د يو لفظ د حقيقي معنى امکان وي نو د هغه مجازي معنى مراد اخيستل جائز نه دي.

د مرضعا لفظ په زياتو نسخو کي د ميم په پېښ او د ضاد په زېر سره منقول دى چي معنى يې د دايه (تي ورکوونکې) ده، او په يوه نسخه کي د ميم او ضاد په زور سره دى چي نقلي معنى يې د شېدو څښلو د ځاى ده، په دغه صورت کي د مرضعا في الجنة مطلب به دا وي چي د هغه د شېدو رودلو د وخت پوره کېدو ځاى جنت دى، او مرضعا مصدر يعني د شېدو څښل هم کرځول کيداى سي.

دغه حديث په ښکاره ددې خبري دليل دى چي پاک خلک د مړ کېدو څخه وروسته هم هغه وخت جنت ته رسول کيږي او په دغه حديث کي دا هم ثابت سول چي جنت په وجود کي راغلى دى او موجود دى.

## د بي بي فاطمې رضي الله عنها فضيلت

﴿۵۸۷۸﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ كُنَّا أَزْوَاجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روايت دى چي موږ د رسول الله ﷺ سره ناستي وو چي

وَسَلَّمَ عِنْدَهُ فَأَقْبَلَتْ فَاطِمَةُ تَخفي مِشْيَتَهَا من مَشْي رسول الله صَلَّى اللّٰهُ

بي بي فاطمه رضي الله عنها راغلل، د هغې کړني او د تګ هيئت بيخي د رسول الله ﷺ سره مشابه وو،

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فلما راٰها قال مَرْحَبًا بِابْنَتِي ثُمَّ أَجْلَسَهَا ثُمَّ سارها فَبَكَتْ بكاء

رسول الله ﷺ چي بي بي فاطمه ﷺ وليدل نو وه يې فرمايل اې زما لوري ! په خوشحالي راسې، ددې څخه وروسته يې دځان سره کښېنول ، بيا يې په کرار کرار ورسره خبري وکړې، نو بي بي فاطمه په چغو چغو په ژړا سوه ،

شديدا فلما راى حزنها سارها لِمَ تَبْكِينَ ثُمَّ أَسَرَّ إِلَيْهَا حَدِيثًا فَضَحِكَتْ

رسول الله ﷺ چي هغه غمجنه وليدل نو بيا يې کرار ورسره څه خبري وکړې نو هغه په خندا سوه ،

فَقُلْتُ مَا رَأَيْتُ كَالْيَوْمِ فَرَحًا أَقْرَبَ مِنْ حُزْنٍ فَسَأَلْتُهَا عَمَّا قَالَ فَقَالَتْ مَا

بيا چي رسول الله ﷺ د هغه ځای څخه ولاړی نو ما د بي بي فاطمې ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي رسول الله ﷺ ستا سره څه خبري وکړې ، بي بي فاطمې وويل :

كُنْتُ لِأُفْشِيَ سِرَّ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى قُبِضَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

زه د رسول الله ﷺ راز ښکاره کول نه خوښوم، (بي بي عائشه وايي) هر کله چي رسول الله ﷺ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلْتُهَا فَقَالَتْ أَسَرَّ إِلَيَّ إِنَّ جِبْرِيلَ كَانَ يُعَارِضُنِي الْقُرْآنَ كُلَّ

وفات سو نو ما بي بي فاطمې ته وويل زه تا ته د حق واسطه او قسم درکوم چي زما پر تا دی (يعني ستا موريم) ته ما د هغه راز څخه خبره کړه کوم چي رسول الله ﷺ پر تا ښکاره کړی وو، بي بي فاطمې وويل : اوس په هغه راز ښکاره کولو کي څه حرج نسته، واقعه دا وه چي رسول الله ﷺ په لومړي وار ما ته دا فرمايلي وه چي جبرائيل علیہ السلام به تهول کال زما سره يو وار د قرآن پاک

سَنَةٍ مَرَّةً وَإِنَّهُ عَارَضَنِي الْعَامَ مَرَّتَيْنِ وَلَا أُرَاهُ إِلَّا حَضَرَ أَجَلِي وَإِنَّكِ أَوَّلُ أَهْلِ

تکرار کوی ، سږ کال يې راسره دوه واره تکرار وکړ ، زما خيال دی چي زما د مرګ وخت رانژدې سوی دی ، نو اې فاطمې ! ته د خدای څخه وېرېږه او صبر اختيار کړه، ځکه چي زه ستا لپاره

بَيْتِي لَحَاقًا بِي فَبَكَيْتُ فَقَالَ أَمَا تَرْضَيْنَ أَنْ تَكُونِي سَيِّدَةَ نِسَاءِ أَهْلِ الْجَنَّةِ أَوْ

غوره مخکي تلونکی يم، ددې اوريدو سره زه په ژړا سوم ، بيا چي رسول الله ﷺ وليدل چي زه ډېره غمجنه سوم نو دويم وار يې راسره خبري وکړې او دا واريې دا وفرمايل اې فاطمې ! ايا ته په دې خبره

راضي نه يې چي ته د جنت د ټولو ښځو سرداره جوړه کړل سې یا

نِسَاءِ الْمُؤْمِنِينَ. وفي رواية فَسَارَّنِي أَنَّهُ يُقْبَضُ فِي وَجعِهِ فَبَكَيْتُ ثُمَّ سَارَّنِي فَأَخْبَرَنِي أَنِّي أَوَّلُ أَهْلِ بَيْتِهِ أَتْبَعُهُ فَضَحِكْتُ. متفق عليه.

ته د ټولو مؤمنانو د ښځو سرداره کړل سې ، او په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي په لومړي وار یې ما ته دا الفاظ وفرمایل چي رسول الله ﷺ به په دغه ناروغۍ کي وفات سي ، ددې اوریدو سره زه په ژړا سوم، بیا رسول الله ﷺ راته وفرمایل چي په اهل بیتو کي به تر ټولو مخکي ته زما سره یو ځای کیږې نو زه خوشحاله سوم او په خندا سوم. بخاري او مسلم.

**تخریج:** صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۷۹، رقم: ۶۲۸۵، ومسلم ۱۴\۱۹۰۴، رقم: ۹۸- ۲۴۵۰.

**د لغاتو حل:** ماتخفی: اي تمتاز.

**تشریح:** د راز ښکاره کوونکی نه یم، یعني کومه خبره چي رسول الله ﷺ پټه کړل زه هغه ښکاره کړم، ځکه که چیري د رسول الله ﷺ په نزد د دغه خبري اظهار مناسب وای نو ما ته به یې پټه نه کولای بلکه د ټولو په مخکي په لوړ اواز به یې کولای، ددې څخه معلومه سول چي د خپلو مشرانو او قریبانو رازونه پټ ساتل مستحب دي.

دوه واره تکرار وکړ: یعني په کال کي چي به څومره قرآن کریم نازلیدی د هغه تکرار به حضرت جبرائیل علیه السلام د رمضان په میاشت کي له رسول الله ﷺ سره کوی ، ددې لپاره چي د رسول الله ﷺ په ذهن کي د قرآن کریم یو یو لفظ او یو یو حرف په پوره توګه خوندي سي او دوهم دا څرګنده سي چي کوم آیت ناسخ نازل سوی دی او کوم آیت منسوخ سوی دی، د حدیث د دغه برخي څخه دا معلومه سول چي د قرآن کریم تکرار مستحب دی ، او دا هم څرګنده سول چي دغه حدیث د رسول الله ﷺ د عمر په پای کي د رمضان څخه وروسته ارشاد فرمایلی وو.

ددې مطلب ما دا اخیستی دی: یعني جبرائیل علیه السلام سږ کال د معمول خلاف دوه واره د قرآن کریم تکرار وکړ، دا ددې خبري خبرداری دی چي د قرآن د تکرار په صورت کي د نزول هدایت لړۍ پای ته رسېدلې ده او د دین تکمیل او نعمت پوره سوی دی نو اوس باید قرآن کریم په ذهن کي پوره خوندي وي او د احکامو ښهٔ په یاد ساتل پکار دي.

ایا ته په دې خوشحاله نه یې: یعني په دې پوهېدو سره چي زه له دنیا څخه ژر رخصت کېدونکی یم، ته باید پریشانه نه سې ، د الله جل جلاله په حکم او فیصله باندي راضي اوسه او په دې

خبره د هغه شکر ادا کوه چي هغه تا ته دومره لويه رتبه درکړې ده.

**د بي بي فاطمة الزهرا ﷺ فضيلت**: دغه حديث ددې خبرې دليل دی چي بي بي فاطمه ﷺ تر ټولو ښځو افضله ده تر دې چي پر بي بي مريم، بي بي خديجه او بي بي عائشې ﷺ باندي هم هغې ته خاص فضيلت حاصل وو، سيوطي رحمه الله همداسي ليکلي دي، پاته سوه د هغه حديث خبره چي د هغه څخه څرګنديږي چي فاطمه الزهرا ﷺ د بي بي مريم بنت عمران عليها السلام څخه ماسوا پر نورو ټولو ښځو باندي فضيلت لري،

يا هغه حديث چي په هغه کي فرمايل سوي دي چي په دغه امت کي د فاطمې ﷺ هغه مرتبه ده کوم چي بي بي مريم عليها السلام ته په خپل قوم کي حاصله وه، يعني څرنګه چي بي بي مريم عليها السلام د خپل قوم په ټولو ښځو کي افضله وه همدارنګه ددغه امت په ټولو ښځو کي تر ټولو افضله فاطمه ﷺ ده، نو د روايتو اختلاف کيدای سي له دې کبله وي چي د بي بي فاطمې ﷺ رتبه په تدريجي توګه زياتېدل او په دغه تدريج سره د هغې دغه افضيلت د الله ﷻ له خوا د وحي او د هغه ملائکي په ذريعه رسول الله ﷺ ته حاصل سوی وی چي د هغه اظهار د مختلفو احاديثو په ذريعه کيدی، او بيا په پای کي د بي بي فاطمې ﷺ رتبه تر اخري درجې پوره زياته سول، نو بېله استثناء د عالم پر ټولو ښځو باندي د هغې فضيلت ثابت سو، ځينو علماؤ بي بي عائشه ﷺ تر بي بي فاطمې ﷺ افضله ګرځولې ده او په دليل کي دا خبره وړاندي کوي چي په جنت کي به بي بي عائشه ﷺ د رسول الله ﷺ سره وي او بي بي فاطمه ﷺ به د حضرت علي ﷺ سره وي، او دا څرګنده ده چي د رسول الله ﷺ درجه او محل د حضرت علي ﷺ تر درجې او محل اعلی او اشرف دی، مګر دغه دليل د هغه حديثونو په وړاندي بې معنی ګرځي چي په هغه کي بيان سوی دی چي رسول الله ﷺ بي بي فاطمې ﷺ ته په خطاب کولو سره وفرمايل: ته علي، حسن او حسين ﷺ به په جنت کي په يوه درجه او محل کي ياست، د بي بي عائشې ﷺ د افضيلت د قائلينو له خوا يو دليل دا هم ورکول کيږي چي هغې ته د اجتهاد مقام حاصل وو او مجتهده ګڼل کېدل، د خلفاء اربعه په زمانه کي يې فتوا ورکول، سيوطي رحمه الله په فتاوی کي ليکلي دي چي په دغه مسئله کي درې مذهبه دي، او په درو سره مذهبو کي تر ټولو صحيح مذهب دادی چي فاطمه ﷺ تر عائشې ﷺ افضله ده، ځيني حضرات دا هم وايي چي فاطمه او عائشه ﷺ دواړي په رتبه کي يو ډول دي، او ځيني حضرات په دې اړه پټه خوله کېدل غوره ګڼي، ځيني حنفي او ځيني شافعي علماء دې ته مائل دي، د امام مالک رحمه الله په اړه نقل سوي دي چي د هغه څخه پوښتنه وسول: تاسو بي بي فاطمه ﷺ افضله ګڼئ او که بي بي عائشه ﷺ؟

نو هغه جواب ورکړ چي فاطمه رضی الله عنها د رسول الله ﷺ د غوښو ټوټه ده او زه د رسول الله ﷺ د غوښو پر ټوټې باندې هيڅ ته فضيلت نه ورکوم.

امام سبکي رحمة الله عليه ليکلي دي: زموږ په نزد او زموږ د مذهب په اعتبار چي کومه خبره زيات ته معتبره او صحيح ده، هغه داده چي تر ټولو افضله بي بي عائشه رضی الله عنها ده، د هغې څخه وروسته د هغې مور بي بي خديجه رضی الله عنها او تر هغې وروسته بي بي عائشه صديقه رضی الله عنها ده، د بي بي خديجې او بي بي عائشې رضی الله عنهما په اړه هم د علماؤ اختلاف دی، ځينو بي بي خديجې رضی الله عنها ته افضل ويلي دي او ځينو بي بي عائشې رضی الله عنها ته، په هر حال هري يوې ته د خپل حيثيت او خصوصيت په اعتبار فضيلت تر لاسه دی، ځينو حضراتو د ثواب زياتوب د فضيلت بنياد ګرځولی دی چي د هغه علماؤ په نزد اعتبار هم دی او د دغه حيثيت څخه بي بي فاطمه رضی الله عنها تر ټولو افضله ده، مګر په دې کي هيڅ شک نسته چي د ذات د شرف او پاکۍ په اعتبار هيڅوک هم د بي بي فاطمې رضی الله عنها څخه افضل کيدای سي. والله اعلم بالصواب.

**بي بي فاطمه زهرا** رضی الله عنها: بي بي فاطمه زهرا رضی الله عنها د ام المؤمنين بي بي خديجې رضی الله عنها د نس څخه د رسول الله ﷺ تر ټولو کشره لور ده، د ټولي نړۍ د ښځو سرداره ده، د هجرت په دوهم کال د رمضان په مياشت کي يې له حضرت علي رضی الله عنه سره نکاح وسول او په ذي الحجه کي په رخصت کېدو سره د حضرت علي رضی الله عنه کور ته راغلل، د هغې د نس څخه حسن، حسين، محسن، زينب، ام کلثوم، او رقيه رضی الله عنهم پيدا سول، د رسول الله ﷺ څخه د وصال څخه شپږ مياشتي وروسته يا د يوه قول مطابق درې مياشتي وروسته په مدينه کي وفات سول او هغه وخت يې عمر اته ويشت کاله وو، حضرت علي رضی الله عنه غسل ورکړ او د جنازې لمونځ يې ورکړ، د بي بي فاطمې رضی الله عنها څخه چي کومو حضراتو د حديثونو روايت کړی دی په هغوی کي حضرت علي، حضرت حسن، حضرت حسين رضی الله عنهم او نور ډېر خلګ شامل دي، بي بي عائشې رضی الله عنها به فرمايل: ما د بي بي فاطمې رضی الله عنها څخه زيات صادق القول د هغې د پلار ﷺ څخه ماسوا بل هيڅوک نه دی ليدلی.

## چا چي فاطمه خفه کړه هغه زه خفه کړم

﴿۵۸۷۹﴾: وَعَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَاطِمَةُ بَضْعَةٌ مِنِّي فَمَنْ أَغْضَبَهَا أَغْضَبَنِي. وفي رواية يريبني ما ارابها ويؤذيني ما اذاها. متفق عليه.

د حضرت مسور بن مخرمه ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : فاطمه زما د بدن يوه ټوټه ده چا چي دا غضب ناكه كړه نو هغه زه غضب ناكه كړم ، او په يوه روايت كي داسي دي چي كوم شى فاطمه پريشانه كوي هغه شى ما پريشانه كوي او كوم شى چي فاطمې ته تكليف وركوي هغه ما ته تكليف راكوي . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۱۰۵، رقم: ۳۷۶۷، ومسلم ۴\۱۹۰۲، رقم: ۹۳- ۲۴۴۹.

**تشريح**: هغه زه خفه كړم، يعني فاطمه ﷞ زما د غوښي يوه ټوټه ده، او په دې اعتبار زما او د هغې په منځ كي ورته والى دى، له دې كبله د فاطمې ﷞ خفه كول يا فاطمې ته تكليف وركول د رسول الله ﷺ خفه كول او تكليف وركول دي، نو په دغه ارشاد كي يو ډول تشبيه ده او په دې اعتبار ويل كيږي چي د ځينو علماؤ د دغه حديث څخه دا استدلال كول مناسب نه دي چي څوك فاطمې ﷞ ته بد ووايي نو هغه كافر سو، ځكه چي دغه ډول حديثونه په اصل كي د اتحاد او اختلاف د زيات تعلق اظهار دى، له دې ډلي څخه هغه حديث هم دى چي په هغه كي رسول الله ﷺ وفرمايل: چا چي يو مسلمان ته تكليف وركړ نو هغه لكه ما ته چي تكليف راكړ، او چا چي ما تكليف راكړ نو هغه لكه الله ﷻ ته چي تكليف وركړ، يا هغه روايت چي په هغه كي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوك چي د انصارو سره مينه ولري نو هغه د الله ﷻ سره مينه ودرلودل او چا چي د انصارو سره دښمني وكړل نو هغه د الله ﷻ سره دښمني وكړل، همدارنګه د رسول الله ﷺ دغه ارشاد: د قريشو سره مينه كول ايمان دى او دهغوى سره دښمني كول كفر دى، او د عربو سره مينه لرل ايمان دى او دهغوى سره دښمني كول كفر دى، چا چي د عربو سره مينه وكړل نو هغه زما سره مينه وكړل او چا چي د عربو سره دښمني وكړل نو هغه زما سره دښمني وكړل .

هغه ما ته تكليف رسوي: په ځينو روايتو كي راغلي دي چي د ابوجهل ورور حارث بن هشام وغوښتل چي د ابوجهل د لور ځورا نكاح د حضرت علي ﷛ سره وكړي او په يوه روايت كي دي چي خپله د حضرت علي ﷛ خواهش وو چي د ځوراء سره نكاح وكړه .

په هر حال كله چي د رسول الله ﷺ څخه د اجازې غوښتلو نوبت راغلى نو رسول الله ﷺ وفرمايل: زه ددې خبري اجازه نه وركوم ، او بيا يې دغه حديث وفرمايله: زه حرام حلال او حلال حرام نه ګرځوم مګر دا ضروري ده چي د الله ﷻ د دوست لور د الله ﷻ د دښمن د لور سره يو ځاى كېداى نه سي، حضرت علي ﷛ چي د رسول الله ﷺ دغه سخت تاثرات واورېدل نو سمدستي د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سو او عرض يې وكړ چي اې د الله رسوله! زه هغه

کار هیڅکله نه کوم چي ستاسو خوښ نه وي، څرګنده دي وي چي د حضرت مسور رضي الله عنه دغه حديث په مختلفو طريقو سره منقول دی او په یوه روایت کي دغه حديث داسي نقل سوی دی چي حضرت مسور رضي الله عنه وايي ما د رسول الله ﷺ څخه پر منبر واورېدل چي د هشام ابن مغيره زوی حارث زما څخه دا غوښتنه وکړل چي د ابوجهل د لور نکاح د علي ابن طالب رضي الله عنه سره وکړي، مګر دا خبره نه منم او په تکرار سره وايم چي زه يې نه منم، هو که چيري ابن ابي طالب اراده کړې وي نو بيا زما لور ته دي طلاق ورکړي او د ابوجهل د لور سره دي نکاح وکړي، فاطمه رضي الله عنها زما د غوښو ټوټه ده چا چي فاطمه رضي الله عنها خفه کړل نو هغه زه خفه کړم.

## د بي بي فاطمې رضي الله عنها په موجودتيا کي حضرت علي رضي الله عنه ته د بلي ښځي سره دنکاح منعه:

د مسلم په شرح کي ددغه حديث په اړه ليکلي دي چي ددغه حديث څخه معلومه سول چي يو داسي کار کول چي په هغه سره رسول الله ﷺ ته تکليف ورسيږي په هر صورت حرام دی که څه هم هغه کار مباح وي او دا د رسول الله ﷺ له خصائصو څخه دی، دا چي رسول الله ﷺ، حضرت علي رضي الله عنه ته د ابوجهل د لور سره د نکاح کولو اجازه ور نه کړل نو دهغه دوې وجهي دي، يو خو دا چي په هغه سره بي بي فاطمې رضي الله عنها ته ناخوښي وه او يو ډول تکليف ورته رسېدی، او د بي بي فاطمې رضي الله عنها په تکليف سره رسول الله ﷺ ته تکليف رسېدی او دا خبره د حضرت علي رضي الله عنه لپاره د تباهۍ سبب کېدل نو خپله د حضرت علي رضي الله عنه په اړه د خيرخواهۍ او د رسول الله ﷺ د شفقت تقاضا داوه چي هغه د نکاح څخه منع کړل سي، دوهمه وجه د رسول الله ﷺ بېره وه چي په دغه نکاح سره د فاطمې د غيرت او حميت خلاف کېدو په سبب د سخت امتحان سره مخامخ نه سي، ځيني حضرات دا هم وايي چي زه دا خبره نه منم، ددې څخه د رسول الله ﷺ دا مراد نه وو چي د فاطمې رضي الله عنها په موجودتيا کي د بلي ښځي سره نکاح کول د علي رضي الله عنه لپاره منع دي بلکه ددغه الفاظو په ذريعه رسول الله ﷺ ددې خبري اعلان وکړ چي قضاء او قدر داسي دی چي د علي رضي الله عنه په نکاح کي فاطمه رضي الله عنها او د ابوجهل لور يو ځای کېدای نه سي مګر د نورو روايتو او قولو څخه ددغه قول تائيد نه کېږي مثلاً د يحيى بن سعيد بن القطان څخه منقول دي چي هغه وويل: ما د عبدالله بن داؤد څخه د رسول الله ﷺ ددغه الفاظو (زه دا خبره نه منم مګر که چيري ابن ابي طالب اراده کړې وي نو هغه دي زما لور ته طلاق ورکړي او د ابوجهل د لور سره دي نکاح وکړي) په اړه يادونه وکړل نو هغه وويل: د الله جل جلاله له خوا پر حضرت علي رضي الله عنه حرام وه

چي هغه دې د فاطمې په ژوند کي د بلي ښځي سره نکاح وکړي او دغه حرمت د قرآن کريم د آيت: (وما اتکم الرسول فخذوه وما نهاکم عنه فانتهوا) اې مؤمنانو! رسول چي څه درکړي نو هغه قبول کړئ او د کوم شي څخه چي تاسو منع کړي نو دهغه څخه منع سئ، ددې څخه دا ثابتيږي چي رسول الله ﷺ دا وفرمايل: زه يې نه منم، نو د علي رضي الله عنه لپاره حلال او جائز نه وو چي هغه د رسول الله ﷺ د اجازې څخه پرته د فاطمې رضي الله عنها په موجودتيا کي د بلي ښځي سره نکاح وکړي، همدارنګه د يحيی بن سعيد څخه دا هم منقول دي چي هغه وويل: د عمر بن داؤد څخه واورېدل چي هغه ويل: کله چي رسول الله ﷺ دا فرمايلي وه چي فاطمه رضي الله عنها زما د غوښو ټوټه ده، کوم شی چي فاطمې رضي الله عنها ته بد معلوميږي هغه ما ته هم بد معلوميږي او کوم شی چي فاطمې رضي الله عنها ته تکليف ورکوي هغه ما ته هم تکليف راکوي نو بيا د الله جل جلاله له خوا پر حضرت علي رضي الله عنه حرام سوي وه چي هغه د فاطمې په موجودتيا کي د بلي ښځي سره په نکاح کولو رسول الله ﷺ ته تکليف ورسوي، لکه څرنګه چي په قرآن کريم کي فرمايل سوي دي: (ما کان لکم ان تؤذوا رسول الله) يعني ستاسو لپاره دا روا نه ده چي رسول الله ﷺ ته تکليف ورکړئ، د يحيی بن سعيد دغه دواړه روايتونه حافظ ابو القاسم دمشقي نقل کړي دي.

په يوه روايت کي داسي راغلي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کوم شی چي فاطمه رضي الله عنها خفه کوي هغه ما هم خفه کوي، او کوم شی چي فاطمه رضي الله عنها خوشحاله کوي هغه ما هم خوشحاله کوي، پوه سئ! د قيامت په ورځ به ټولي نسبي تعلقات ختم سي يوازي زما نسبي قرابت به پاته سي او په يوه روايت کي دي چي د حضرت ابو ايوب رضي الله عنه څخه منقول دی، دا بيان سوی دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د قيامت په ورځ به د عرش څخه يو آواز راسي لکه اعلان کوونکی چي اعلان کوي: يا اهل الجمع نکسوا رءوسکم وغضوا ابصارکم حتی مرت فاطمة بنت محمد علی الصراط، اې اهل محشر! خپل سرکښته کړئ او سترګي بندي کړئ چي د حضرت محمد ﷺ لور بي بي فاطمه رضي الله عنها پر پل صراط تېره سي.

تر دې وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل: فتمر مع سبعين الف جارئة من الحور العين کمر البرق، نو فاطمه رضي الله عنها به د اويا زره حور عين سره پر پل صراط باندي د برېښنا په ډول تېره سي.

په روايتو کي دا هم راځي چي کله به رسول الله ﷺ په سفر روانېدی نو د ټولو څخه د رخصت کېدو وروسته به بي بي فاطمې رضي الله عنها ته راتلی او کله چي به د سفر څخه راغلی نو تر ټولو مخکي به بي بي فاطمې رضي الله عنها ته ورتلی.

**یو وضاحت** : دلته دا خبره څرګندول ضروري دي چي رسول الله ﷺ ، حضرت علي رضي الله عنه ته د بي بي فاطمې رضي الله عنها د خفګان په وجه د دوهمي نکاح څخه منع کړ، نو ددې مطلب دا نه دی که چیري د یو چا ښځه د خاوند په بلي نکاح کولو سره ناراضه او خفه کیږي نو هغه دي بله نکاح نه کوي، دا یوازي د رسول الله د خصائصو څخه دی یعني ددغه خاص معاملې په وجه چي رسول الله ﷺ ته تکلیف ونه رسیږي د حضرت علي رضي الله عنه په اړه دا منع وو لکه څرنګه چي د نورو روایتو څخه څرګندیږي ، ددې څخه ماسوا نه یوه ښځه د بي بي فاطمې رضي الله عنها برابره ده او نه د یوې ښځي پلار د بي بي فاطمې رضي الله عنها د پلار ، رسول الله ﷺ برابر کېدای سي، چي د هغه د خفګان په وجه دوهمه نکاح کول چي د قرآن کریم د آیت (فانکحوا ما طاب لکم من النساء مثنی وثلث ورباع) څخه ثابته ده ، هغه پر خپل ځای لوی دلیل دی او دغه عمومي جواز په حدیث کي د ذکر سوي خاص نوعیت په وجه نه متاثر کیږي .

## د هغه عذاب څخه و بېرېږئ چي د اهل بیتو د حقوقو د کوتاهۍ په سبب وي

﴿۵۸۸۰﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ قَالَ قَامَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا

د حضرت زید بن ارقم رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ یو ورځ زموږ په منځ کي ودریدی

فِينَا خَطِيبًا بِمَاءٍ يُدْعَى خُمًّا بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِينَةِ فَحَمِدَ اللّٰهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ

او د مقام خم د چینې یا اوبو سره چي د مکې او مدینې په منځ کي واقع ده خطبه ویونکی، لومړی یې د خدای جل جلاله حمد او ثناء بیان کړل

وَوَعَظَ وَذَكَّرَ ثُمَّ قَالَ أَمَّا بَعْدُ أَلَا أَيُّهَا النَّاسُ فَإِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ يُوشِكُ أَنْ يَأْتِيَ

بیا یې خلکو ته نصیحت وکړ او ثواب او عذاب یې ورته یاد کړل ، ددې څخه وروسته یې وفرمایل : د حمد او ثناء څخه وروسته اې خلکو ! خبردار سئ ! چي زه ستاسو په ډول یو انسان

رَسُولُ رَبِّي فَأُجِيبَ وَأَنَا تَارِكٌ فِيكُمْ ثَقَلَيْنِ أَوَّلُهُمَا كِتَابُ اللّٰهِ فِيهِ الْهُدَى

یم او هغه وخت نژدې دی چي زما د پروردګار رالیږل سوې ملائکه راسي او زه به د خدای تعالی حکم قبول کړم ، زه ستاسو په منځ کي دوه درانه شیان پرېښودونکی یم : هغه کي لومړنی شي د خدای کتاب دی چي په هغه کي هدایت دی

وَالنُّورُ فَخُذُوا بِكِتَابِ اللّٰهِ وَاسْتَمْسِكُوا بِهِ فَحَثَّ عَلَى كِتَابِ اللّٰهِ وَرَغَّبَ فِيهِ

او نور دی تاسو د خدای کتاب ټینګ ونیسئ عمل په وکړئ او منګولې پرې ښخې کړئ، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ د قرآن مجید په لور خلکو ته ډیر رغبت پیدا کړ او د هغه د ټینګ نیولو او عمل کولو لپاره یې خلک په جوش کې راوستل،

ثُمَّ قَالَ وَأَهْلُ بَيْتِي أُذَكِّرُكُمُ اللّٰهَ فِي أَهْلِ بَيْتِي، أُذَكِّرُكُمُ اللّٰهَ فِي أَهْلِ بَيْتِي،

بیا یې فرمایل: دویم شی زما اهل بیت دی زه تاسو د خدای څخه بیروم او خدای درته یادوم چې تاسو زما اهل بیت هیر نه کړې زه درته بیا یادوم چې زما د هل بیتو حق هیر نه کړئ،

وفي رواية كتاب الله هو حبل الله من اتبعه كان على الهدى ومن تركه كان على الضلالة. رواه مسلم.

او په یوه روایت کې دا الفاظ دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل: د خدای ﷻ کتاب د خدای ﷻ رسۍ ده څوک چې د خدای د کتاب اطاعت کوي هغه به پر سمه لار وي او څوک چې یې پریږدي ګمراه به سي. مسلم

**تخریج:** صحیح مسلم ۴\۱۸۷۳، رقم: ۳۷-۲۴۰۸.

**د لغاتو حل:** خما: هو موضع بالجحفه. الثقلین: اي الامرين العظيمين. (دوه ستر کارونه)

**تشریح:** خم د مکې او مدینې په منځ کې جحفه ته نژدې د یو مشهور ځای نوم دی چې غدیر خم هم ورته ویل کیږي، غدیر په اصل کې د اوبو حوض ته وایي او په هغه ځای کې د تالاب او حوض په شکل کې اوبه موجود وې، په دغه مناسبت سره هغه ځای ته غدیر خم ویل کېدل، لکه څرنګه چې د حضرت علي رضي الله عنه په مناقبو کې بیان سوی دی، د عام خطاب دغه صورت هغه وخت پېښ سوی وو کله چې رسول الله ﷺ د حجة الوداع څخه د فارغه کېدو وروسته مدینې ته بېرته راغلی او په غدیر خم کې یې پړاو واچوی.

او زه د خپل پروردګار حکم قبول کړم: دا ددې خبرې اشاره وه چې له دنیا څخه د رسول الله ﷺ د رخصت کېدو وخت نژدې سوی دی نو دا خبره رسول الله ﷺ د حجة الوداع د سفر څخه د ستنېدو په دوران کې د ذي الحجې په آخري کې په لسم هجري کې فرمایلې وه او تقریبا درې میاشتې وروسته د ربیع الاول په میاشت کې په یوولسم هجري کال د رسول الله ﷺ وصال وسو.

دوه عظیم او غوره شیان: دا د ثقلین معنی ده، د ثقل (د ثاء په زبر) معنی د درونه او بار ده، او د ثقل (د ثاء په زور) معنی د مسافر د سامان ده او غوره شي ته هم وایي، دلته په حدیث کي د دغه لفظ معنی د غوره شي مراد ده او ځینو حضراتو ویلي دي چي د ثقلینو څخه دوه غوره شیان مراد دي او کتاب الله او اهل بیتو ته دوه غوره شیان یا خو د هغوی د لوړي مرتبې کېدو په اعتبار وفرمایل سول یا ددې وجه ورته وویل سول چي په هغه عمل کول مشکل او درونه دی، هر سړی د هغه بار نه سي پورته کولای، جن او انس ته هم ثقلین په دې اعتبار ویل کیږي چي هغه د مځکي بار دی، یعني څرنګه چي د حیوانانو پر شا بار اچوي همدارنګه مځکه ددغه دواړو بار پر خپله شا پورته کوي، ځینو حضراتو دا هم لیکلي دي چي دغه دواړه یعني کتاب الله او اهل بیت ددین متاع دي، ددې په ذریعه د دین اصلاح او ابادي وي لکه څرنګه چي ثقلین یعني جن او انس د مځکي متاع دي چي په هغه سره دنیا اباده وي.

چي په هغه کي هدایت او نور دی: یعني په کتاب الله کي د هغه احکامو او اعمالو بیان دی چي په هغه سره حق لاره روښانه کیږي او طالب مقصود منزل ته رسوي او د هغه په علم او عرفان کي هغه نور وي چي د ذهن او فکر د استقامت او سلامتیا ذریعه جوړیږي او دغه نور به د قیامت په ورځ لاربنود ګرځي، څرګنده دي وي چي نور د قرآن کریم یو نوم هم دی.

کتاب الله په ټینګه ونیسئ: یعني د خپل فکر، عقیدې او عمل بنیاد کتاب الله وګرځوئ، په دې عقیده او یقین ولرئ په هغه عمل وکړئ، دا خبره باید په ذهن کي وي چي د رسول الله ﷺ په حدیثونو باندي عمل کول هم د کتاب الله څخه دی، ځکه چي الله ﷻ فرمایلي دي: (ما اتاکم الرسول فخذوه وما نهاکم عنه فانتهوا) اې مؤمنانو! څه چي رسول درکړي هغه قبول کړئ او د کوم شي څخه چي تاسو منع کړي نو د هغه څخه منع سئ، او فرمایي: (ومن یطع الرسول فقد اطاع الله) یعني چا چي د رسول اطاعت وکړ نو هغه په حقیقت کي د الله ﷻ اطاعت وکړ، او فرمایي: (قل ان کنتم تحبون الله فاتبعوني یحببکم الله) اې پیغمبره! ته دوی ته ووایه که تاسو د الله ﷻ سره مینه لرئ نو تاسو زما پیروي وکړئ، الله ﷻ به ستاسو سره مینه وکړئ، په یوه روایت کي دلته د حدیث دغه جمله داسي نقل سوې ده: فتمسکوا بکتاب الله وخذوا، نو کتاب الله ټینګ ونیسئ او دا اختیار کړئ، یعني حاضرین یې دې ته په ډېر تاکید او سختۍ سره متوجه کړل چي د کتاب الله په ویلو، د هغه په یادولو، د هغه په الفاظو او معنی کي فکر کولو او کوم احکام او مضامین چي په هغه کي په هغه عمل کولو کي د ذرې په اندازه غفلت او کوتاهي ونه کړل سي.

راغب کړل: يعني رسول الله ﷺ کتاب الله ته د رغبت کوونکو خبرو يادونه وکړل، کوم څوک چي د الله ﷻ کتاب په ټينګه ونيسي او خپل ټول فکري او عملي ژوند همدغه جوړ کړي هغه ته د دين او دنيا کاميابي په برخه کيږي و لوړي درجې تر لاسه کوي، دلته که څه هم دا احتمال سته چي رسول الله ﷺ رغبت کونکو زيرو والا خبرو سره د هغه عذاب څخه بېرونکي خبري هم ذکر کړې چي د کتاب الله په احکامو باندي د عمل نه کونکو لپاره دي مګر دا ممکن ده چي رسول الله ﷺ يوازي پر زيری ورکونکو خبرو باندي په اکتفاء کولو سره رحمت الهي او خپل امت مرحومه کېدو ته اشاره کړې وي.

زه تاسو ته د الله ﷻ هغه عذاب دريادم، دغه جمله رسول الله ﷺ د تاکيد او زيات ارزښت لپاره دوه واره وفرمايل مګر دا خبره هم د امکان څخه ليري نه ده چي په اوله جمله کي د اهل بيتو څخه مراد اولاد او په دوهمه جمله کي ازواج مطهرات مراد وي مخکي هم بيان سوی دی چي د اهل بيت اطلاق پر اولاد او زواج دواړو باندي کيږي او په يوه روايت کي دلته د قاله ثلاث مرات الفاظ دي يعني رسول الله ﷺ دغه جمله درې واره وفرمايل.

کتاب الله د الله ﷻ رسۍ ده: د حبل لغوي معنی د رسۍ ده او دلته مراد عهد، آمان او هغه شی چي بنده خپل رب ته رسوي، او دهغه د قرب او رضا وسيله وي، مطلب دا چي قرآن کريم د بنده د فلاح او کاميابۍ د الله ﷻ له خوا عهد او اقرار دی، د هغه د عذاب څخه امان دی او د هغه د قرب وسيله ده، د هغه ټينګ نيونکی د عذاب څخه خوندي وي، قرب الهي تر لاسه کوي او د اخروي کاميابيو لوړو درجو ته رسيږي، ددې پر خلاف کوم څوک چي خپله عقيده او د عملي ژوند محور کتاب الله ونه ګرځوي او د قرآن کريم په احکامو او هداياتو باندي عمل ونه کړي نو د ګمراهۍ يعني د دين او دنيا د محرومو او نامرادو څخه پرته به بل هيڅ تر لاسه نه کړي، نو قرآن کريم په دواړو اعتبارو د رسۍ په ډول دی چي هدايت غوښتونکی درجو ته رسوي او سرکښي کونکی د محرومو او نامراد کښته سطح ته غورځوي، يضل به کثيرا ويهدي به کثيرا، په يوه حديث کي فرمايل سوي دي چي: القرآن حجة لک او عليک، يعني قرآن کريم يا خو ستا سند دی (چي تا ته به خلاصون درکړي) او يا ستا په مقابله کي سند دی (چي تا به په عذاب اخته کړي).

او خپله الله ﷻ فرمايي:

وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْآنِ مَا هُوَ شِفَاءٌ وَرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِينَ وَلَا يَزِيدُ الظَّالِمِينَ إِلَّا خَسَارًا

او موږ په قرآن کي داسي شيان نازلوو چي د مؤمنانو په حق کي خو شفاء او رحمت دی او نا انصافو ته دديږ برعکس تاوان رسيږي.

## د حضرت جعفر رضي الله عنه لقب

﴿۵۸۸۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا أَنَّهُ كَانَ إِذَا سَلَّمَ عَلَى ابْنِ جَعْفَرٍ قَالَ السَّلَامُ عَلَيْكَ يَا ابْنَ ذِي الْجَنَاحَيْنِ. رواه البخاري.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي هغه به عبد الله بن جعفر بن ابي طالب ته سلام کوی نو داسي به يې کوی (السلام عليک يا ابن ذي الجناحين). (يعني د دوو وزرو والا زويه! پرتا دي سلام وي) ذوالجناحين د جعفر رضي الله عنه لقب وو. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۷۵، رقم: ۳۷۰۹.

**تشريح**: دوه وزره والا، دا د ذوالجناحين معنی ده، ذوالجناحين د حضرت جعفر طيار لقب وو چي د ابوطالب زوی او د رسول الله ﷺ د اکا زوی وو، حضرت جعفر رضي الله عنه په جنگ موته کي په ډېره مېړانه جگړه وکړل او شهيد سو، دغه جگړه د عيسايانو پر خلاف د مسلمانانو لومړی جگړه وه چي د شام په سيمه کي رامنځته سوې وه، او د روم د قيصر جرار د لښکر په مقابله کي وه، ددغه جگړې په دوران کي يوه ورځ رسول الله ﷺ په مدينه کي د معجزې په توگه وليدل چي جعفر رضي الله عنه ته لس وزرونه ورکړل سوي دي چي د هغه په ذريعه د ملائکو سره الوځي، رسول الله ﷺ سخت حيران سو چي دديږ څه مطلب دی، بيا کله چي د هغه د شهادت خبر مدينې ته راورسېدی نو عقده (غوټه) خلاصه سول نو د هغه ورځي څخه هغه ته جعفر طيار ويل پيل سول او د ذوالجناحين لقب ورکړل سو، په يوه روايت کي داسي هم راغلي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ما جعفر رضي الله عنه د جنت په فضاء کي د ملائکو سره الوتونکی ليدلی دی نو د هغه ورځي څخه هغه په ذوالجناحين او طيار لقب سره ونومول سو.

حضرت جعفر طيار رضي الله عنه قديم الاسلام دی د هغه څخه مخکي يوازي يو دېرش کسانو اسلام راوړی وو، حضرت جعفر رضي الله عنه د خپل ورور حضرت علي بن ابي طالب رضي الله عنه څخه لس کاله مشر وو او په تخليق کي د رسول الله ﷺ ډېر مشابه وو، په اتم هجري کي د موته په غزا کي شهيد سو، هغه وخت يې عمر يو څلوېښت کاله وو، پر ټول بدن يې د تورو او غشو نيوي زخمونه وه، د جعفر طيار رضي الله عنه څخه د حديثو په روايت کونکو کي د نورو صحابه کرامو څخه ماسوا د هغه زوی حضرت عبد الله رضي الله عنه هم شامل دی.

## د حضرت حسن رضی اللہ عنہ لپاره دعاء

﴿۵۸۸۲﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ عَلَى عَاتِقِهِ يَقُولُ اللّٰهُمَّ إِنِّي أُحِبُّهُ فَأَحِبَّهُ. متفق عليه.

د حضرت براء رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چي ما نبي کريم ﷺ وليدی چي حسن بن علي رضی اللہ عنہ يې پر اوږه مبارکه وو او دا يې فرمايل اې الله ! زه دده سره مينه کوم ته هم ورسره مينه وکړې. بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\ ۹۴، رقم: ۳۷۴۹، ومسلم ۴\ ۱۸۸۳، رقم: ۵۸- ۲۴۲۲.

**تشريح:** ته هم دده سره مينه وکړې: ښکاره شکه د رسول الله ﷺ دغه دعاء قبوله سول، او الله جل جلاله حضرت حسن رضی اللہ عنہ ډېر خوږ او خوښ بنده وګرځوی، کله چي الله جل جلاله او د هغه رسول ﷺ حضرت حسن رضی اللہ عنہ ډېر محبوب وګرځوی نو پر هر مسلمان لازم ده چي د حسن رضی اللہ عنہ سره مينه ولري.

**حضرت حسن او حضرت حسين** رضی اللہ عنہما : حضرت حسن رضی اللہ عنہ د بي بي فاطمې علیہا السلام د نس څخه د حضرت علي رضی اللہ عنہ زوی او د رسول الله ﷺ لمسی دی، او د ټولو ځوانانو جنتيانو سردار دی، د حضرت حسن رضی اللہ عنہ کنيت ابو محمد وو، د صحيح روايت مطابق په دريم هجري کال د رمضان د مياشتي په پنځلسمه نېټه پيدا سو او په ۵۵ هجري کال کي وفات سو، ځينو حضراتو د وفات نېټه ۵۸ هجري کال او ځينو ۴۹ هجري کال او ځينو ۴۴ هجري کال ليکلې ده، په بقيع کي دفن کړل سو، د ده څخه يوې لوی ډلي ته د روايت شرف حاصل دی چي په هغو کي د هغه زوی حضرت حسن ابن حسن او حضرت ابو هريره رضی اللہ عنہ هم شامل دی، د تاريخي رواياتو مطابق د حضرت علي رضی اللہ عنہ د شهادت څخه وروسته په کوفه کي چي کومو خلکو حضرت حسن رضی اللہ عنہ خليفه جوړ کړ او د هغه په لاس يې بيعت وکړ نو دهغوی شمېر څلوېښت زره وو، مګر هغه د امت د افتراق او انتشار څخه ژغورني لپاره شپږ مياشتي وروسته په ۱۵ جمادي الاول ۴۱ هجري کال کي د حضرت معاويه په حق کي د خلافت څخه لاس واخيست.

د سيد الشهداء حضرت حسين رضی اللہ عنہ کنيت ابو عبد الله دی، په څلورم هجري کال د شعبان د مياشتي په پنځمه نېټه پيدا سو، د ډېر مشر ورور حضرت حسن رضی اللہ عنہ څخه يو ازي لس مياشتي او درې ورځي کشر وو، په ۱۰ د محرم ۶۱ هجري کال کي د جمعې په ورځ په کربلا کي د يزيد بن معاويه د فوج په لاس شهيد سو، يو روايت خو دادی چي سنان ابن انس نخعي شهيد کړ، او ځيني حضرات وايي چي شمر ذي الجوش شهيد کړ او د حضرت حسين رضی اللہ عنہ جسد مبارک او د

هغه اهل بيت يې د كربلا د ميدان څخه عبدالله ابن زياد ته راوستل ، په روايتو كي راځي چي د كربلا په ميدان كي د حضرت حسين رضي الله عنه سره د هغه اولاد ، د هغه ورونه او اهل بيتو څخه درويشت كسان شهيدان كړل سول، دشهادت په ورځ د حضرت حسين رضي الله عنه عمر ۵۸ كاله وو.

## د حضرت حسن رضي الله عنه سره تعلق

﴿۵۸۸۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ خَرَجْتُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دى چي زه د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره دباندي ووتلم

فِي طَائِفَةٍ مِنَ النَّهَارِ حَتَّى أَتَى خِبَاءَ فَاطِمَةَ فَقَالَ أَثَمَّ لُكَعُ أَثَمَّ لُكَعُ يَعْنِي

د ورځي په يوه برخه كي چي د بي بي فاطمې رضي الله عنها خيمې ته ورسيدو نو وه يې فرمايل : ايا دلته هلك سته ؟ ايا دلته هلك سته؟ يعني

حَسَنًا فَلَمْ يَلْبَثْ أَنْ جَاءَ يَسْعَى حَتَّى اعْتَنَقَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا صَاحِبَهُ فَقَالَ

حسن رضي الله عنه، ډېر وخت نه وو تېر سوى چي حضرت حسن رضي الله عنه په منډه راغلى او د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره

رَسُولُ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم اللّٰهُمَّ إِنِّي أُحِبُّهُ فَأَحِبَّهُ وَأَحْبِبْ مَنْ يُحِبُّهُ. متفق عليه.

ورغاړه سو ، رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : اې الله ! زه دده سره مينه كوم ته هم ورسره مينه وكړه او هغه سړي سره هم مينه وكړه څوک چي دده سره مينه كوي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴\۳۳۹، رقم: ۲۱۲۲، ومسلم ۴\۱۸۸۲، رقم: ۵۷- ۲۴۲۱.

**د لغاتو حل**: خباء: اي بيتها . لكع: اي صار خسيسا.

**تشريح**: ددغه حديث څخه يو خو د معانقې (غاړه په غاړه كېدل) جائز كېدل ثابت سول دوهم دا چي څرنګه نووي رحمه الله ليكلي دي چي دا هم معلومه سول چي د كوچنيانو سره د نيني، شفقت او نرمۍ چلن كول يعني له هغوى سره غاړه په غاړه كېدل او په غېږ كي اخيستل او د هغوى سره مينه كول مستحب دي او د كوچنيانو او خپلو ماشومانو په مخكي هم خاكساري اختيارول او دهغوى سره ښه چلن كول مستحب دي .

## د امام حسن رضي الله عنه فضيلت

﴿۵۸۸۴﴾: وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْمِنْبَرِ

د حضرت ابوبکره رضی الله عنه څخه روایت دی چې ما رسول الله ﷺ په هغه حال کې پر منبر ولیدی چې

وَالْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ إِلَى جَنْبِهِ وَهُوَ يُقْبِلُ عَلَى النَّاسِ مَرَّةً وَعَلَيْهِ أُخْرَى وَيَقُولُ

حسن بن علي رضی الله عنه یې په بغل کې وو، رسول الله ﷺ به کله خلکو ته متوجه کیدی او کله به حسن

إِنَّ ابْنِي هَذَا سَيِّدٌ وَلَعَلَّ اللَّهَ أَنْ يُصْلِحَ بِهِ بَيْنَ فِئَتَيْنِ عَظِيمَتَيْنِ مِنَ الْمُسْلِمِينَ. رواه البخاري.

رضی الله عنه ته او فرمایل به یې زما دا زوی (لمسی) سردار دی او کیدای سي الله تعالی دده په ذریعه د مسلمانانو ددوو لویو ډلو اختلاف ختم کړي. بخاري

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۳۰۶\۵، رقم: ۲۷۰۴.

**تشریح**: د سید معنی د هغه چا ده چې په نیکۍ کې فائق وي او ځیني حضرات وایي چې سید هغه سړي ته وایي چې د غصې څخه نه مغلوب کیږي یعني حلیم الطبع وي، د سید اطلاق پر څو معناوو باندې کیږئ د مثال په توګه مربي، مالک، شریف، فاضیل، کریم، حلیم، د خپل قوم پر تکلیف باندې تحمل کوونکی، رئیس، سردار او پېشوا.

د دوو لویو ډلو په منځ کې به صلح کوي: دغه ارشاد په اصل کې د هغه پېښو او حالاتو رښتونې وړاند وینه ده چې د حضرت علي رضی الله عنه د خلافت څخه وروسته به رامنځته سي، هغه وخت د ملت اسلامیه لویه برخه په څرګنده توګه په دوو ډلو کې ویشل سوې وه، یوه ډله د حضرت امام حسن رضی الله عنه د خلافت او امارت قائله وه او بله ډله د حضرت امام معاویه د امارت او حکمرانۍ منونکې وه، په دې کې شک نسته چې په هغه زمانه کې د خلافت او امارت لپاره لوی حقدار حضرت امام حسن رضی الله عنه وو ځکه نه یوازي په ذاتي، نسبي او دیني عظمت او بزرګۍ سره هغه ته غوره والی تر لاسه وو بلکه د هغه یو لوی دلیل دغه حدیث هم دی چې هغه ته یې ستر حمایت او طاقت تر لاسه وو او د څلوېښت زره ځوانانو لښکر سره په عهد کولو سره د امیر معاویه سره پر جنګ کولو او مړ کېدو باندې حلف کړی وو مګر ددغه استحقاق او طاقت سربېره هغه محض ددغه بیرې څخه چې د رسول الله ﷺ امت د افتراق او انتشار ښکار نه سي هغه د خلافت څخه لاس واخیست او د آخرت کامیابۍ یې خپل مقصد وګرځول نو دا یې د کمزورۍ په وجه ونه کړل بلکه د اتحاد امت لپاره یې په خپله خوښه د امیر معاویه رضی الله عنه سره صلح

وکړل او د هغه په حق کي یې د خلافت څخه لاس واخیست، حضرت امام حسن ﷛ به په هغه زمانه کي ویل: قسم په خدای! زه دا نه خوښوم چي په امت محمدیه کي د چا دویني یو څاڅکی هم پر مځکه ولویږي ، د امت د ویني تویولو څخه د ساتني لپاره د خلافت څخه د لاس اخیستلو فیصله د حضرت امام حسن ﷛ د ډېرو ملګرو لپاره ناخوښه وه، ځینو کسانو سیدنا حسن ﷛ تر دې حده د ملامتیا وړ وګرځوی چي د هغه مجلس ته په رسېدو سره به یې داسي خطاب کوی: السلام علیکم یا عار المؤمنین، او سیدنا حسن ﷛ به په ډېر تحمل سره هغه ته ویل: العار خیر من النار ، یعني پېغور تر اور غوره دی .

د حضرت حسن ﷛ په حق کي د رسول الله ﷺ دغه ارشاد چي الله ﷻ به دده په ذریعه د مسلمانانو د دوو ډلو په منځ کي صلح وکړي ، ددې خبري څرګند دلیل دی چي هغه دواړي ډلي د ملت اسلامیه جز او مسلمانان وه، سره ددې چي یوه ډله پر حق وه او بله پر خطا ، او د سیدنا حسن ﷛ د امیر معاویه په حق کي د خلافت څخه لاس اخیستل او د هغه سره صلح کول د اهل سنت والجماعت په نزد ددې دلیل دی چي ددغه صلح څخه وروسته د حضرت معاویه ﷛ خلافت او امارت په شرعي توګه قانوني او جائز وو ، دلته دا خبرداری ضروري دی چي په هغه زمانه کي څه وسول یعني د صحابه کرامو په منځ کي د اختلاف او جګړې کوم صورت چي رامنځته سو او په ځینو وختو کي د هغوی په منځ کي د جنګ نوبت هم راغلی او هغه په مشاجرات صحابه سره تعبیر کیږي ، د هغه په اړه ټول سلف او بزرګان تل خپله ژبه بنده ساتلې ده ، د صحابه کرامو مقدس ذات د ملامتیا نښه خو څه چي د هغوی په اړه ددغه پېښو تنقید او تبصره موضوع جوړول هم په اسلافو کي هیڅ عالم ته خوښه نه وه ، دهغوی وینا ده کله چي الله ﷻ زموږ لاسونه د هغوی د ویني څخه منع کړي دي نو بیا موږ په خپله ژبه سره پر هغوی تنقید کولو سره ولي ملوث کړو .

په هرحال د سیدنا حسن ﷛ فضل او شرف ددې خبري څخه څرګند دی چي رسول اله ﷺ هغه ته سید وفرمایل ، حضرت ابوبکره ﷛ په یو بل روایت کي بیان کوي چي رسول الله ﷺ موږ ته په لمانځه راکولو کي بوخت و ، حسن ﷛ چي هغه وخت کوچنی وو مسجد ته راغلی، کله چي به رسول الله ﷺ سجدې ته تلی نو د رسول الله ﷺ پر اوږو به کښېنستی ، بیا کله چي به رسول الله ﷺ د سجدې څخه خپل سر مبارک دومره کرار او په احتیاط سره را پورته کوی چي حسن ﷛ به کښته سو ، (یوه ورځ ) صحابه کرامو وویل: اې دالله رسوله! موږ ستاسو سره هغه معامله وینو چي د بل چا سره مو نه ده لیدلې، رسول الله ﷺ جواب ورکړ: دغه کوچنی زما د

دنيا ګل دی ، بېله شکه زما دغه زوی (يعني لمسی) سيد دی، بايد اميد ولرو چي الله ﷻ به دده په ذريعه د مسلمانانو د دوو ډلو په منځ کي صلح وکړي ، امام احمد د حضرت امير معاويه ﷛ دغه روايت نقل کړی دی چي رسول الله ﷺ به د حسن ﷛ ژبه يا شونډه رودل، او په دې کي هيڅ شک نسته چي الله ﷻ به هغه ژبه يا شونډه هيڅکله د عذاب سره مخامخ نه کوي کوم چي رسول الله ﷺ رودلي وي .

## حسن او حسين زما د دنيا دوه ګلونه دي

﴿۵۸۸۵﴾: وَعَنْ عَبْدِالرَّحْمٰنِ ابْنِ أَبِي نُعْمٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ

د عبدالرحمن بن ابو نعم ﷛ څخه روايت دی چي اوريدلي مي دي د عبدالله بن عمر ﷛ څخه

سَأَلَهُ رَجُلٌ عَنِ الْمُحْرِمِ قَالَ شُعْبَةُ أَحْسِبُهُ يَقْتُلُ الذُّبَابَ فَقَالَ أَهْلُ

يو عراقي سړي پوښتنه وکړه شعبه وايي چي ګمان کوم مُحرِم (د حج احرام تړونکي) مچ ووژني نو د دې څه حکم دی؟. عبدالله بن عمر ﷛ وويل :

الْعِرَاقِ يَسْأَلُونَ عَنِ الذُّبَابِ وَقَدْ قَتَلُوا ابْنَ بِنْتِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

دعراق خلک زما څخه د مچ وژلو حکم پوښتي حال دا چي هغوی د رسول الله ﷺ د لور زوی

وَسَلَّمَ وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُمَا رَيْحَانَيَّ مِنَ الدُّنْيَا. رواه البخاري

وژلی دی او د هغوی په حق کي رسول الله ﷺ فرمايلي وه چي دا دواړه (يعني حسن او حسين) زما د دنيا دوه ګلونه دي . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۷\۹۵، رقم: ۳۷۵۳،

**د لغاتو حل**: ريحانيّ: اي من روق الله رزقنيه من الدنيا.

**تشريح**: کيدای سي يو کوفي سړي د حضرت ابن عمر ﷛ څخه پوښتنه کړې وي که په موږ کي يو څوک محرم وي يعني د حج احرام يې تړلی وي او په هغه حالت کي مچ مړ کړي نو د دې بدله څه ده، ايا پر هغه دم لازم ده که صدقه او که هيڅ نه پر لازميږي؟ پر دغه پوښتنه باندي حضرت ابن عمر ﷛ په ډېر ژور انداز کي وفرمايل: دغه د کوفې خلک زما څخه د مچ وژلو په اړه شرعي حکم پوښتي يعني دا څرګندوي چي موږ د شريعت ډېر لحاظ ساتو او د تقوا او احتياط لمن هيڅکله د لاس څخه نه ورکوو ، حال دا چي دا هغه خلک دي چي دوی په ډېره بې دردي سره د

رسول الله ﷺ لمسی (حضرت حسین رضی الله عنه) شهید کړ او خپل نوم یې د ظالمانو په فهرست کې تر ټولو لوړ ولیکی.

دا زما د دنیا دوه ګلونه دي، په لغت کې د ریحان څو معناوي دي، رحمت، راحت، روزي، رزق، آرام او په دې مناسبت سره زوی ته هم ریحان وایي، چې په هغه سره زړه ته راحت او سترګو ته یخ والی تر لاسه کیږي او خوشبویي لرونکي ګل ته هم ریحان ویل کیږي او د تشبیه له موخې ددې معنی اطلاق پر زوی او اولاد باندې هم کیږي لکه څرنګه چې خوشبویي لرونکی ګل بویول کیږي همدا رنګه خلک اولاد هم بویوي او ښکلوي او خپل زړه په خوشحاله کوي.

## د رسول الله ﷺ سره د حسنینو مشابهت

﴿۵۸۸۶﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ لَمْ يَكُنْ اَحَدٌ اَشْبَهُ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ وَقَالَ فِي الْحُسَيْنِ اَيْضًا كَانَ أَشْبَهَهُمْ بِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رواه البخاري.

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دی چې د رسول الله ﷺ سره تر حسن بن علي رضی الله عنه زیات مشابه بل څوک نه وو، او د حسین رضی الله عنه په اړه یې هم دا وویل چې هغه هم د رسول الله ﷺ سره زیات مشابه وو. بخاري

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۷\۵۹۱، رقم: ۳۷۵۲.

**تشریح**: په راتلونکي دوهم فصل کې د حضرت علي رضی الله عنه روایت راځي چې په هغه کې په تفصیل سره بیان سوی دی چې د سر څخه تر سینې پورې خو حسن رضی الله عنه د رسول الله ﷺ زیات مشابه وو او لاندې په بدن کې حسین رضی الله عنه د رسول الله ﷺ سره زیات مشابه وو.

## ابن عباس رضی الله عنه ته دعاء

﴿۵۸۸۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ ضَمَّنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى صَدْرِهِ فَقَالَ اللّٰهُمَّ عَلِّمْهُ الْحِكْمَةَ. وفي رواية علمه الكتاب. رواه البخاري.

د حضرت ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ زه د خپل سینې سره جخت کړم او وه یې فرمایل: اې الله! ده ته حکمت ورکړې او په یوه روایت کې دا الفاظ دي چې اې الله! ده ته د

كتاب (قرآن كريم) علم وركړې . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۷\۱۰۰، رقم: ۳۷۵٦.

**تشريح**: د سينې سره پېوست كول دې ته اشاره ده چې د علم منبع او مصدر او د حكمت مخزن او معدن دغه سينه مباركه ده .

علماؤ ليكلي دي چې د حكمت څخه مراد حكمت فلسفه نه ده بلكه اتقان علم و عمل يعني په علم كې ټول اوصاف او محاسنو سره تكميل كول او په امور دين كې فهم صحيح مراد دى او دانسان لپاره دا هغه نعمت دى چې هغه ته د قرآن كريم په دغه آيت كې اشاره سوې ده : (يؤتى الحكمة من يشاء ومن يوتي الحكمة فقد اوتي خيرا كثيرا) ، ځينو حضراتو ليكلي دي چې په ذكر سوې دعاء كې د حكمت څخه مراد حقائق اشياء پېژندل او په هغه شي باندې عمل كول دي چې د عمل لائق وي، ځينو حضراتو ويلي دي چې د حكمت څخه مراد صحيح وينا ده او ځينو د حكمت مصداق سنت نبوي گرځولي دي لكه څرنگه چې د الله ﷻ ارشاد دى : (ويعلمهم الكتاب والحكمة) .

خلاصه دا چې رسول الله ﷺ د حضرت ابن عباس رضي الله عنه لپاره د علم او حكمت او فهم كتاب دعاء وفرمايل، او هغه د دغه امت ستر عالم وو ، د هغه د علم او فضل ، حكمت او پوهې لويو صحابه كرامو اعتراف او اقرار كړى دى ، نبي كريم ﷺ د هغه لپاره د علم او حكمت دعاء كړې ده .

حضرت ابن عباس رضي الله عنه د هجرت څخه درې كاله مخكې په مكه كې پيدا سو او كله چې د رسول الله ﷺ وصال وسو نو هغه وخت ابن عباس رضي الله عنه د ديارلسو كالو عمر ته رسېدلى وو ، ويل كيږي چې هغه وخت هغه د پنځلسو كالو وو او دا هم ويل سوي دي چې هغه د رسول الله ﷺ د وصال پر وخت د لسو كالو وو ، هغه دوه واره حضرت جبرائيل عليه السلام ليدلى دى او دوه واره رسول الله ﷺ د هغه لپاره دعاء كړې ده ، د عمر په پاى كې په سترگو ړوند سوى وو ، په ۶۸ هجري كال كې په طائف كې د ابن زبير رضي الله عنه د خلافت په زمانه كې د يو اويا (۷۱) كالو په عمر وفات سو .

﴿۵۸۸۸﴾: وَعَنْهُ قَالَ اِنَّ النَّبِيَّ ﷺ دَخَلَ الْخَلَاءَ فَوَضَعْتُ لَهُ وَضُوءًا فَلَمَّا خَرَجَ قَالَ مَنْ وَضَعَ هٰذَا فَأُخْبِرَ فَقَالَ اللّٰهُمَّ فَقِّهْهُ فِي الدِّينِ. متفق عليه.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دى چې رسول الله ﷺ د قضاء حاجت لپاره دننه ننوتى، ما د اوداسه لپاره اوبه ورته كښېښودلې رسول الله ﷺ چې دباندې تشريف راوړ (او لوښى يې د

اوبو څخه ډک ولیدی نو پوښتنه یې وکړه) دا اوبه چا ایښي دي؟ رسول الله ﷺ ته وښودل سول چي ابن عباس رضي الله عنه ایښي دي، نو رسول الله ﷺ زما په حق کي دعاء وکړل چي اې الله ! ده ته ددین پوهه ورکړې . بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۱\ ۲۴۴، رقم: ۱۴۳، ومسلم ۱۴\ ۱۹۲۷، رقم: ۱۳۸- ۲۴۷۷.

**تشریح**: دغه پېښه د هغه شپې ده په کومه شپه چي حضرت عبد الله ابن عباس رضي الله عنه د خپلي خاله ام المؤمنین بي بي میمونې رضي الله عنها په کور کي پاته سوی وو چي د رسول الله ﷺ د تهجد طریقه معلومه کړي ، دغه ټوله پېښه په باب قیام اللیل کي راغلې ده .

ددغه دعاء مطلب دادی چي اې الله! دغه (ابن عباس) داسي عالم جوړ کړې چي ددین اصول او فروع او کلیات په ښه ډول و پېژني او د اعلی درجې علمي فقاهت او په دین کي پوهه ورپه برخه سي .

ددغه فقه څخه مراد یوازي هغه متعارفه فقه نه ده چي د هغه تعلق د فروعي مسائلو، معاملاتو ، صوري عبارت او فصل خصومت سره دی بلکه ددې څخه ددین مکمل پوهه او کامل مهارت مرا د دی .

امام نووي رحمة الله علیه فرمایي : ددغه حدیث څخه د فقهي فضیلت ثابتیږي او د غائبانه دعاء مستحب کېدل څرګندیږي او کوم ثوک چي یو خدمت وکړي یا نیکي وکړي د هغه په حق کي د دعاء کولو استحباب مفهوم کیږي ، د رسول الله ﷺ د دعاء په برکت ابن عباس رضي الله عنه ته په علم کي داسي لوړه درجه ترلاسه سوه او دا د حضرت ابن عباس رضي الله عنه د خدمت صله وه .

که مردان ز خدمت بجائي رسند .

## اسامه بن زید او حسن ته دعاء

﴿۵۸۸۹﴾: وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَأْخُذُهُ

د حضرت اسامه بن زید رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به هغه (یعني اسامه)

وَالْحَسَنَ فَيَقُولُ اللَّهُمَّ أَحِبَّهُمَا فَإِنِّي أُحِبُّهُمَا. وفي رواية قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ

او حسین رضي الله عنه په خپل غیږ کي اخیستل یا به یې دځان سره کښېنول او فرمایل به یې اې الله ! زه د دوی دواړو سره مینه کوم ته ورسره هم مینه وکړې ، او په یوه روایت کي داسي دي چي رسول

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْخُذُنِي فَيُقْعِدُنِي عَلَى فَخِذِهِ وَيُقْعِدُ الْحَسَنَ عَلَى فَخِذِهِ

الله ﷺ به زه پر خپل يوه ورانه كښېنولم او پر دويم به يې حسن بن علي كښېنوی بيا به يې دواړه

الْأُخْرَى ثُمَّ يَضُمُّهُمَا ثُمَّ يَقُولُ اللَّهُمَّ ارْحَمْهُمَا فَإِنِّي أَرْحَمُهُمَا. رواه البخاري

را جوخت کړه او فرمايل به يې اې الله! پر دوی دواړو رحمت وکړې ځکه چې زه د دوی سره مهرباني کوم. بخاري.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۸۸، رقم: ۳۷۳۵،

**تشريح:** د حضرت اسامه رضی الله عنه پلار حضرت زيد بن حارثه رضی الله عنه د رسول الله ﷺ ازاد سوی غلام او د رسول الله ﷺ متبنى (زوی کړی) وو، رسول الله ﷺ د هغه نکاح د خپلي خاصي خادمي ام ايمن رضی الله عنها سره کړې وه، دغه ښځه د رسول الله ﷺ د پلار عبد الله بن عبد المطلب ازاده سوې مينزه وه، د هغې د نس څخه د حضرت زيد بن حارثه رضی الله عنه زوی اسامه رضی الله عنه پيدا سوی وو، د رسول الله ﷺ د حضرت زيد او د هغه د زوی اسامه رضی الله عنه سره ډېره مينه وه.

حضرت اسامه رضی الله عنه چې د هغه پر مور او پلار د غلامۍ وخت تېر سوی وو هغه د خپل لمسي سره پر خپل ورانه مبارک کښېنولی وو او دعاوي يې ورته کولې کوم چې دده د شان مهرباني څرګندوي، د دوی دوو حضراتو لوړالی، جلاليت او عظمت دده د طرز عمل څخه څرګندېږي:

زانکه ترا برمن مسکين نظرست اثارم از افتاب مشهور ترست

د رسول الله ﷺ د وصال او له دنيا څخه د رخصت کېدو په وخت کې د اسامه رضی الله عنه عمر شل کاله ته نژدې وو، هغه په وادي القراء کې هستوګنه اختيار کړل او هلته د حضرت عثمان رضی الله عنه د شهادت وروسته وفات سوی دی، د ځينو قول دی چې هغه په ۵۴ هجري کال کې وفات سوی دی او علامه ابن عبد البر دغه قول ته ترجيح ورکړې ده.

## اسامه بن زيد رضی الله عنه د لښکر امير جوړول

﴿۵۸۹۰﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ بَعْثًا وَأَمَّرَ عَلَيْهِمْ أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ فَطَعَنَ النَّاسُ فِي إِمَارَتِهِ

يو لښکر ولېږی او د هغه سردار يې اسامه بن زيد رضی الله عنه وټاکی، ځينو خلکو پر دې اعتراض وکړ،

فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنْ كُنتُم تَطْعَنُونَ فِي إِمَارَتِهِ فَقَدْ

نو رسول الله ﷺ وفرمایل : که تاسو داسامه بن زید ﷺ پر سرداری اعتراض کوئ نو

كُنْتُمْ تَطْعَنُونَ فِي إِمَارَةِ أَبِيهِ مِنْ قَبْلُ وَايْمُ اللَّهِ إِنْ كَانَ لَخَلِيقًا لِلْإِمَارَةِ وَإِنْ

دنن څخه مخکي تاسو دده پر پلار د زید بن حارثه ﷺ پر سرداری هم اعتراض کړی دی او قسم په خدای هغه دامارت او سرداری وړ وو،

كَانَ لَمِنْ أَحَبِّ النَّاسِ إِلَيَّ وَإِنَّ هَذَا لَمِنْ أَحَبِّ النَّاسِ إِلَيَّ بَعْدَهُ. متفق عليه

وفي رواية لمسلم نحوه وفي اخره اوصيكم فانه من صالحيكم.

او دده پلار ما ته د ډیرو خلکو څخه عزیز وو، او اسامه هم د هغه د پلار د مرګ څخه وروسته ما ته د ډیرو خلکو څخه زیات عزیز دی . بخاري او مسلم او د مسلم په یوه روایت کي دا الفاظ زیات دي چي زه تاسو ته وصیت کوم چي د اسامه سره هم ښېګڼه کوئ ځکه چي دی ستاسو څخه نیک سړی دی .

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۸۶/۷، رقم: ۳۷۳۰، ومسلم ۱۸۸۴/۱۴، رقم: ۶۳- ۲۴۲۶.

**تشریح**: پېغور ورکونکي او اعتراض کونکي خلک یا خو منافقان وه چي د هغوی طریقه دا وه چي هغوی د موقع په لاس راتللو په انتظار وه او چیري چي به یې موقع تر لاسه کړل نو ژبه به یې خلاصه کړل، او یا پېغور ورکوونکي نوی مسلمان وو چي د جاهلیت د زماني د طریقو عادي وو او د هغه په نزد د انسان قدر او قیمت د ذاتي صلاحیت او علمي قابلیت پر ځای د کورنۍ او مال پر بنیاد دی،

د اسامه ﷺ پلار حضرت زید بن حارثه ﷺ ډیر ستر صحابي او سابق الایمان بزرګ وو ، رسول الله ﷺ ورسره ډېره مینه درلودل او په ذاتي توګه هم ډیر قابل شخصیت وو، د هغه د صلاحیت اندازه ددې څخه لګول کیږي چي د بي بي عائشي ﷺ منقول دي چي کله به رسول الله ﷺ لښکر ولیږی او په هغه کي به زید بن حارثه ﷺ وو نو هغه به یې د لښکر امیر ټاکی .

په اتم هجري کال کي د شام پر سرحدو باندي رومي لښکر جمع سوی وو ځکه رسول الله ﷺ یو لښکر هغه خوا ته واستوی او د هغه امیر یې زید ﷺ وټاکی، هغه شام ته ولاړی او د نصراني لښکر سره مقابله وسول، حضرت زید، حضرت جعفر طیار او عبدالله بن رواحه ﷺ شهیدان سول ، دغه جنګ ته د موته جنګ ویل کیږي ، په دغه وخت کي خلکو د حضرت زید ﷺ

پر امارت اعتراض وکړ، په راتلونکي کال کي د حضرت زید ﷛ زوی حضرت اسامه ﷛ د لښکر امیر جوړ سو او هغه سرحد ته ولېږل سو، نو ځینو خلکو اعتراض وکړ او دا خبره یې د اعتراض بنیاد جوړه کړل چي یو خو یې عمر کم دی او بل دا چي دده پر مور او پلار باندي د غلامۍ حالت تېر سوی دی، لنډه دا چي کله منافقانو دا ولېدل چي د اسامه ﷛ په مشرۍ کي ستر صحابه کرام موجود دي نو هغوی ته نوره هم د اعتراض موقع په لاس ورغلل، هغوی ته څه معلومه وه چي اسلام رنګ و نسل، مال او شتمني ختمولو سره د شرافت او بزرګۍ بنیاد ذاتي قابلیت، علم او عمل او تقوا او ښه اخلاق ګرځوي.

په قسم په خدای! هغه د امارت وړ وو: ددې څخه مراد دادی چي هغه د خپل صلاحیت، تقوا او پرهیزګارۍ په وجه یقینا د امارت اهل او د سیادت وړ وو، او دهغه څخه وروسته اسامه ﷛ هم ددې قابل دی چي هغه پر ملکي چارو او اهمو خدماتو باندي مامور کړل سي، هغه هم د خپل پلار څخه وروسته ما ته تر ټولو زیات ګران او زما په نزد ددغه دندي قابل او زیات د باور وړ دی.

### د زید بن محمد ویلو څخه منع

﴿۵۸۹۱﴾: وَعَنْهُ قَالَ اِنَّ زَيْدَ بْنَ حَارِثَةَ مَوْلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا كُنَّا نَدْعُوهُ إِلَّا زَيْدَ بْنَ مُحَمَّدٍ حَتَّى نَزَلَ الْقُرْآنُ ادْعُوهُمْ لِآبَائِهِمْ. متفق عليه وذكر حديث البراء قال لعلي انت مني في باب بلوغ الصغير وحضانته

د حضرت عبدالله بن عمر ﷛ څخه روایت دی چي زید بن حارث د رسول الله ﷺ ازاد کړي غلام ته به موږ زید بن محمد ویل تر دې چي د قرآن کریم دا آیت نازل سو (ادعوهم لاباهم)، (یعني د خپلو پلرونو په نامه یې بولئ)، بخاري او مسلم او د براء ﷛ حدیث: قال لعلي انت مني، په باب بلوغ الصغیر کي بیان سوی دی.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۸\۵۱۷، رقم: ۴۷۸۲، ومسلم ۴\۱۸۸۴، رقم: ۶۲ - ۲۴۲۵.

**تشریح**: پوره آیت داسي دی:

وَمَا جَعَلَ أَدْعِيَاءَكُمْ أَبْنَاءَكُمْ ذَٰلِكُمْ قَوْلُكُم بِأَفْوَاهِكُمْ وَاللّٰهُ يَقُولُ الْحَقَّ وَهُوَ يَهْدِي السَّبِيلَ ادْعُوهُمْ لِآبَائِهِمْ هُوَ أَقْسَطُ عِندَ اللّٰهِ فَإِن لَّمْ تَعْلَمُوا آبَاءَهُمْ فَإِخْوَانُكُمْ فِي الدِّينِ وَمَوَالِيكُمْ

ژباړه: او الله ﷻ ستاسو په خولو جوړ کړي زامن ستاسو زامن نه دي ګرځولي، دا خو ستاسو د خپلي خولې خبره ده او الله ﷻ سمه خبره کوي او صحيح لار ښيي، تاسو هغوی د پلرونو د نامه په نسبت بولئ ځکه چي دا خبره د الله ﷻ په نزد د عدل او انصاف مظهر ده او که د هغوی پلرونه تاسو ته معلوم نه وي نو بيا هغوی ستاسو ديني وروڼه او ستاسو دوستان دي.

د دغه آيت د نازلېدو وروسته خلګو هغه ته زيد بن حارثه رضي الله عنه ويل پيل کړل، د دغه روايت څخه څرګندېږي چي رسول الله ﷺ ته د زيد بن حارثه رضي الله عنه سره څومره مينه وه.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

﴿۵۸۹۲﴾: عَنْ جَابِرٍ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّتِهِ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما په حجة الوداع کي رسول الله ﷺ وليدی

يَوْمَ عَرَفَةَ وَهُوَ عَلَى نَاقَتِهِ الْقَصْوَاءِ يَخْطُبُ فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنِّي

د عرفات په ورځ په داسي حال کي چي پر قصوا نامي اوښي باندي سپور وو او خطبه يې ويل: ما ځيني واوريدل چي دا يې فرمايل: ای خلکو! ما

تَرَكْتُ فِيكُمْ مَا إِنْ أَخَذْتُمْ بِهِ لَنْ تَضِلُّوا كِتَابَ اللهِ وَعِتْرَتِي أَهْلَ بَيْتِي. رواه الترمذي.

ستاسو په منځ کي هغه شی پرې ايښی دی که تاسو يې ټينګ ونيسئ نو هيڅکله به ګمراه نه سئ او هغه د خدای کتاب او عترت زما چي اهل بيت دي. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۲۱، رقم: ۳۷۸۶.

**د لغاتو حل**: القصواء: مجدوعة الاذن.

**تشريح**: قصواء هغي اوښي ته وايي چي د هغې د غوږ يوه برخه پرې سوې وي، د رسول الله ﷺ د اوښي غوږ پيدائشي همداسي وو او پرې سوی نه وو، دغه وجه د تسميې هم کيدای سي چي قصواء په معنی د ليري وي، نقل سوي دي چي د رسول الله ﷺ دغه اوښه ډېره تېزه او تر ډېر ليري ځايه به په تيزي سره تلل.

اخذتم به: تاسو يې په ټينګه نيسئ، د نيولو څخه مراد اطاعت او عمل دى ، ابن ملک رحمه الله ويلي دي: د كتاب نيولو مطلب دادى چې په هغه عمل وكړل سي او عترت ، يعني د اولاد نيولو مفهوم دادى چې د هغوى سره مينه وكړل سي د هغوى سيرت اختيار كړل سي او هغوى ته قولا او فعلا هيڅ ډول تكليف ونه رسول سي .

د عترت څخه د رسول الله ﷺ اولاد مراد دي او د اهل بيتو څخه د رسول الله ﷺ خپلوان او د نيكه نژدې اولاد هم دي او د رسول الله ﷺ ازواج مطهرات هم دي، نن په اسلامي نړۍ كي چې څومره پرېشانۍ موجود دي د هغو يوازينۍ حل دادى چې اهل اسلام د رسول الله ﷺ دغه فرمان بالكل هېر كړى دى .

## د رسول الله ﷺ وصيت

﴿۵۸۹۳﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي

د حضرت زيد بن ارقم رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زه

تَارِكٌ فِيكُمْ مَا إِنْ تَمَسَّكْتُمْ بِهِ لَنْ تَضِلُّوا بَعْدِي أَحَدُهُمَا أَعْظَمُ مِنَ الْآخَرِ

تاسو ته دوه شيان پرېږدم كه تاسو يې ټينګ ونيسئ او په هغه عمل كونكي پاته سئ نو زما څخه وروسته به هيڅكله ګمراه نه سئ او هغه دوه شيان دادي چي په هغه كي يو د بل څخه لوى

كِتَابُ اللَّهِ حَبْلٌ مَمْدُودٌ مِنَ السَّمَاءِ إِلَى الْأَرْضِ وَعِتْرَتِي أَهْلُ بَيْتِي وَلَنْ

دى يعني د خداى كتاب د يوې رسۍ په ډول چي د آسمان څخه تر مځكي پوري راغلى دى او دويم شى زما د اهل بيتو څخه زما عترت دى

يَتَفَرَّقَا حَتَّى يَرِدَا عَلَيَّ الْحَوْضَ فَانْظُرُوا كَيْفَ تَخْلُفُونِي فِيهِمَا. رواه الترمذي

او د خداى كتاب او زما عترت به د قيامت تر ورځي پوري د يو بل څخه هيڅكله بيل نه سي تر دې چي پر حوض كوثر به راسي اوس تاسو ګورئ چي زما څخه وروسته تاسو دواړه شيانو سره څه چلن كوئ . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۲۲، رقم: ۳۷۸۸.

**تشريح**: ددغه پېښي بيانونكي زيد بن ارقم الانصاري الخزرجي يو مشهور صحابي دى، د احد په غزا كي د كم عمرۍ په وجه رسول الله ﷺ په غزا كي شريک نه كړ ، د خندق په غزا كي او

د هغه ځخه وروسته په ټولو کي غزاوو کي يې ګډون کړی دی ، هغه د عبدالله بن ابي سلول منافقانه اقوال (چي د هغه يادونه د قرآن کريم په دغه آيت کي : لئن رجعنا الى المدينة ليخرجن الاعز منها الاذل، کی دی مګر عبدالله انکار وکړ او زيد صحابه کرامو رښتوني ونه ګڼی، ددې ځخه روسته سورة منافقين نازل سو چي په هغه کي د زيد تصديق وسو ، زيد له رسول الله ﷺ سره په اووه لس غزاوو کي ګډون کړی دی ، په ۶۶ هجري کال کي وفات سو ، په ټولو صحيح کتابو کي د نوموړي ځخه زيات حديثونه روايت سوي دي ، لنډه دا چي نوموړی يو ستر صحابي او بزرګ وو .

په دغه حديث کي يې هم کتاب الله ته د خپل امت توجه ګرځولې ده او د خپل اهل حقوقو يادونه يې هم کړې ده او د اهل بيتو عظمت يې بيان کړی دی چي تاسو زما د نسبت خيال د هغوی د حقوقو په ادا کولو کي چي ځومره زياته هڅه کوئ او دهغوی هر ډول خبر اخلئ او ځومره زياته برخه چي اخلئ هغومره به ستاسو لپاره غوره وي، او تاسو ته به په دنيا او آخرت کي خير او عافيت په برخه کيږي ، د رسول الله ﷺ دغه فرمان داسي دی لکه ځرنګه چي يو شفيق پلار د رخصت کېدو په وخت کي د خپل اولاد په اړه چا ته وصيت کوي چي زه خپل دغه اولاد پرېږدم تاسو د دوی ښه ځارنه کوئ او د دوی حقوق ادا کوئ .

او دغه دواړه به بېل بېل نه وي، يعني د قيامت پر ټولو مواقفو او پړاوو باندي دغه دواړه يعني کتاب الله او عترت رسول به يو ځای وي ، د يو بل ځخه به بېل نه وي تر دې چي دغه دواړه په يو ځای کېدو سره حوض کوثر ته راسي او په دنيا کي چا چي ددغه دواړو حقوق په ښه ډول ادا کړی وي د هر يوه د نامه په اخيستلو سره به زما په مخکي د هغوی شکريه ادا کوي او بيا به زه په بدله کي هغوی ټولو سره ډېره ښه چلن او احسان کوم او الله ﷻ به هم هغوی ټولو ته پوره جزاء او انعام ورکوي او کومو خلکو چي په دنيا کي د هغوی حقوق تر پښو لاندي کړي وي او د دواړو ناشکري يې کړې وي نو د هغوی سره به ددې برعکس معامله کيږي .

نو تاسو وګورئ! يعني ما ددغه دواړو حيثيت او اهميت تاسو ته واضح کړی دی اوس تاسو ته د خپل ځان سره حساب کول پکار دي چي ددغه دواړو يعني کتاب الله او زما د عترت په اړه تاسو زما تر شا صاق کيږئ که يا ، که تاسو زما ځخه وروسته دواړه ټينګه ونيسئ او د هغه سره مو تعلق وساتئ چي د هغوی حق دی نو زما خلف الصدق به وګرځول سئ او که د هغوی سره مو ښه تعلق ونه ساتئ او د هغوی په اړه مو ښه رويه اختيار نه کړل نو ناخلف به ګڼل کيږي .

## د اهل بيت دښمن د رسول الله ﷺ د ښمن دی

﴿۵۸۹۴﴾: وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِعَلِيٍّ وَفَاطِمَةَ وَالْحَسَنِ وَالْحُسَيْنِ أَنَا حَرْبٌ لِمَنْ حَارَبَهُمْ وَسِلْمٌ لِمَنْ سَالَمَهُمْ. رواه الترمذي

د حضرت زيد بن ارقم رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د علي، فاطمې، حسن او حسين په اړه وفرمايل: زه جنګ يم د هغه چا لپاره چي د دوی سره جنګ کوي او زه صلح يم د هغه چا لپاره چي د دوی سره صلح کوي . ترمذي .

**تخريج**: سنن الترمذي ۶۱۵\۵، رقم: ۳۸۷۰.

**تشريح**: ددغه ارشاد مطلب دادی چي څوک ددغه څلورو کسانو سره مينه ولري نو هغه د رسول الله ﷺ سره مينه ودرلودل او چا چي ددغه څلورو کسانو سره دښمني وکړل نو هغه د رسول الله ﷺ سره دښمني وکړل ، په يوه روايت کي د حضرت علي رضي الله عنه څخه منقول دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: چا چي زما سره مينه ودرلودل نو ددغه دواړو يعني حسن او حسين رضي الله عنهما سره يې مينه ودرلودل او د دوی د پلار او مور يعني علي او فاطمې رضي الله عنهما سره يې مينه ودرلودل نو هغه به د قيامت په ورځ زما په درجه کي زما سره وي (احمد) ، او ترمذي هم دغه روايت نقل کړی دی چي د هغه آخري الفاظ داسي : نو هغه به په جنت کي زما سره وي .

## د حضرت علي او فاطمې فضيلت

﴿۵۸۹۵﴾: وَعَنْ جُمَيْعِ بْنِ عُمَيْرٍ قَالَ دَخَلْتُ مَعَ عَمَّتِي عَلَى عَائِشَةَ فَسَئَلْتُ أَيُّ النَّاسِ كَانَ أَحَبَّ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ فَاطِمَةُ فَقِيلَ مِنَ الرِّجَالِ قَالَتْ زَوْجُهَا. رواه الترمذي.

د حضرت جميع بن عمير رضي الله عنه څخه روايت دی چي زه د خپلي عمه سره د بي بي عائشې رضي الله عنها په خدمت کي حاضر سوم ، ما پوښتنه وکړه د رسول الله ﷺ تر ټولو زيات محبت د چا سره وو ؟ بي بي عائشې راته وفرمايل : د بي بي فاطمې سره، بي بي عائشې رضي الله عنها ته وويل سول او په خلکو کي د چا سره؟ بي بي عائشې رضي الله عنها وفرمايل د هغې د خاوند (حضرت علي رضي الله عنه) سره . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۶۵۸\۵، رقم: ۳۸۷۴.

**تشريح**: دلته د بي بي عائشې ﷺ انصاف او صدق د يادوني وړ دی چي هغې په اخلاص سره رښتيا خبره بيان کړل حال دا که چيري هغې غوښتلای نو دا يې ويلای سول چي د رسول الله ﷺ تر ټولو زياته مينه زما سره او زما د پلار سره وه اوس ددغه حديث په رڼا کي هغه متعصب او ګمراه خپل ځان ته وګوري چي د بي بي عائشې او بي بي فاطمې ﷺ په منځ کي د اختلاف او عناد ثابتولو هڅه کوي، په هر حال دا خبره بايد په ذهن کي وي چي تر ټولو زيات محبوب کېدو مطلب تر ټولو افضل کېدل هيڅکله نه دي ، د اولاد او نژدې خپلوانو سره زياته مينه کول يو طبعي شی دی ، يو څوک په پوره توګه پوهيږي چي په غير اولاد کي فلانی فلانی سړی د هغه د اولاد څخه زيات فضيلت لري مګر ددې سربېره د خپل اولاد سره زياته مينه لري ، مګر د خپل اولاد د غير اولاد څخه افضل کېدل دا خبره لازموي چي د هغه سره مينه هم زياته وي .

## چا چي زما اکا ته تکليف ورکړی هغه ما ته تکليف راکړی

﴿۵۸۹۶﴾: وَعَنْ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ بْنِ رَبِيعَةَ اَنَّ الْعَبَّاسَ دَخَلَ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ

د حضرت عبد المطلب بن ربيعه ﷺ څخه روايت دی چي زه د رسول الله ﷺ سره ناست وم چي

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُغْضَبًا وَأَنَا عِنْدَهُ فَقَالَ مَا أَغْضَبَكَ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ

عباس ﷺ په غصه کي راغلی، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه چي ته څه شي په غصه کړی يې؟
عباس ﷺ وويل اې د الله رسوله !

مَا لَنَا وَلِقُرَيْشٍ إِذَا تَلَاقَوْا بَيْنَهُمْ تَلَاقَوْا بِوُجُوهٍ مُبْشَرَةٍ وَإِذَا لَقُونَا لَقُونَا بِغَيْرِ

زموږ (يعني د بنو هاشم) او قريشو په منځ کي څه فرق دی هر کله چي هغوی په خپلو کي يو ځای کيږي نو په ورين تندي او په خوشحالي د يو بل سره يو ځای کيږي خو کله چي موږ ورسره يو ځای کيږو نو هغوی راسره نه يو ځای کيږي ،

ذَلِكَ قَالَ فَغَضِبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى احْمَرَّ وَجْهُهُ ثُمَّ قَالَ

ددې اوريدو سره رسول الله ﷺ غضبناک سو تر دې چي د ډيري غصې څخه يې مخ مبارک سور سو، بيا يې وفرمايل :

وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَا يَدْخُلُ قَلْبَ رَجُلٍ الْإِيمَانُ حَتَّى يُحِبَّكُمْ لِلَّهِ وَلِرَسُولِهِ

په هغه ذات دې مې قسم وي د چا په لاس کې چې د محمد ﷺ ساه ده د چا په زړه کې چې ایمان وي هغه به تا د خدای او د هغه د رسول ﷺ د رضا حاصلولو لپاره دوست گڼي ،

ثُمَّ قَالَ يَا أَيُّهَا النَّاسُ مَنْ آذَى عَمِّي فَقَدْ آذَانِي فَإِنَّمَا عَمُّ الرَّجُلِ صِنْوُ أَبِيهِ.

رواه الترمذي.

ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ وفرمایل اې خلکو ! څوک چې زما اکا ته تکلیف رسوي هغه گویا ما ته تکلیف رسوي ځکه چې اکا د پلار په ډول دی . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۶۱۰، رقم: ۳۸۱۹.

**د لغاتو حل**: صنو ابيه: اي مثله.

**تشريح**: په ایمان کې نه داخلیږي: یا خو مطلق ایمان مراد دی ، په دغه صورت کې به ارشاد پر سخت وعید باندې محمول کیږي ، او یا کامل ایمان مراد دی ، په دغه صورت کې به ویل کیږي چې د رسول الله ﷺ مقصد په تاکید سره دې ته متوجه کول دي چې زړه او دماغ د اهل بیتو د مینې او عقیدې څخه معمور کولو پرته د ایمان کامله درجه نه په برخه کیږي .

د قریشو ډېر ښاخونه وه، په هغوی کې بنوهاشم تر ټولو باعزته ښاخ وو، همدارنگه اکثر مناصب چې ټولنیز عزت به ورکول کیدی هغه د دغه ښاخ خلکو ته حواله وو، بیا تر ټولو لوی شرف یعنې د نبوت او رسالت منصب عظمی هم د دغه ښاخ نصیب سو ، د دغه وجوهاتو څخه د قریشو نورو ښاخو به د بنو هاشم سره یو ډول کینه درلودل او هغوی یې خپل حریف گرځول ، نو ابوجهل د رسول الله ﷺ د نبوت په انکار کولو سره دا ویل چې د مکې او قریشو سرداري بنوهاشم اخیستې ده، حاجیانو ته د زمزم اوبه ورکولو دنده د بنوهاشم ده که په بنوهاشم کې نبوت او رسالت هم راسې نو بیا به پاته قریشو سره څه پاته کیږي .

## د حضرت عباس رضي الله عنه فضيلت

﴿۵۸۹۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ الْعَبَّاسُ مِنِّي وَأَنَا مِنْهُ.

رواه الترمذي.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل : عباس رضي الله عنه زما څخه دی او زه د عباس رضي الله عنه څخه یم . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۱۰، رقم: ۳۷۵۹.

**تشريح** عباس رضي الله عنه زما څخه دی، يعني زما د خاص خپلوانو څخه دی يا دا چي زما د اهل بيتو څخه دی، علماؤ ليکلي دي چي د شرف، فضل او نبوت په اعتبار خو د رسول الله ﷺ ذات اصل دی، او د اکا کېدو په اعتبار حضرت عباس رضي الله عنه اصل دی او څرګنده ده چي ذکر سوی ارشاد په اصل کي د کمال محبت او تعلق څخه کنايه ده لکه څرنګه چي رسول الله ﷺ د حضرت علي رضي الله عنه په اړه فرمايلي دي چي: (اې علي!) زه ستا څخه يم او ته زما څخه يې.

**حضرت عباس** رضي الله عنه: حضرت عباس ابن عبدالمطلب د رسول الله ﷺ اکا دی، دهغه زوکړه د فيل د پېښې څخه يو کال مخکي سوې ده، د هغه مور د نمربن قاسط قبيلې سره تعلق درلود او هغه لومړنۍ ښځه وه چي پر کعبې شريفي يې د رېښمو او ديباج او ډول ډول جامو پوښ واچوی، ويل کيږي چي حضرت عباس رضي الله عنه په کوچنيوالي کي ورک سوی وو، د ډيري پلټني څخه وروسته کله چي پيدا سو نو د هغه مور نذر منلی وو که زما زوی پيدا سو نو زه به پر بيت الحرام باندي پوښ اچوم، د حضرت عباس رضي الله عنه معلومات وسو او هغه کور ته راغلی، نو مور يې په ډېره پابندي سره نذر پوره کړ، حضرت عباس رضي الله عنه د جاهليت په زمانه کي هم په مکه او قريشو کي ډېر نوم درلود او يو لوی مشر منل کېدی، د عماره او سقايه ستري دندي هغه ته سپارل سوي وې، نومړي د رسول الله ﷺ څخه دوه کاله مشر دی او د اکا کېدو سربېره يې د رسول الله ﷺ ډېر احترام کوی، نقل سوي دي چي يوه ورځ يو چا پوښتنه وکړل: انت اکبر او النبي ﷺ؟ ته مشر يې که رسول الله ﷺ؟ نو هغه جواب ورکړ: هو اکبر وانا اسن، يعني رسول الله ﷺ لوی دی او عمر زما زيات دی، د حضرت عباس رضي الله عنه دغه بليغ جواب د هغه د سلامت طبع او ذهانت غمازي کوي، حضرت عباس رضي الله عنه ډېر مخکي اسلام قبول کړی وو مګر د ځينو حکمتو په وجه يې د خپل اسلام اظهار ونه کړ، د بدر په غزا کي هغه په ډېر کراهت او مجبورۍ سره د مشرکينو سره شريک وو او رسول الله ﷺ مجاهدينو ته فرمايلي وه: کوم څوک چي د حضرت عباس رضي الله عنه سره مخامخ سي نو هغه دي نه وژني ځکه هغه د مجبورۍ له کبله جنګ ته راغلی دی، د جنګ په پای کي حضرت عباس رضي الله عنه هم په بنديانو کي شامل وو، او ابواليسير بن کعب بن عمر هغه بندي کړ، بيا يې د مالي معاوضې په بدله کي ايله کړ او مکې ته بېرته راغلی، وروسته د هغه ځای څخه په هجرت کولو سره مدينې ته راغلی، په ۳۶ هجري کال کي د جمعې په ورځ په ۱۲ د رجب وفات سو، هغه وخت يې عمر اته اتيا کاله وو او په جنت البقيع کي دفن کړل سو، په روايتو کي راځي چي هغه د خپل وفات پر وخت اوويا غلامان ازاد کړل.

## د عباس رضي الله عنه او کورنۍ لپاره دعاء

﴿۵۸۹۸﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْعَبَّاسِ إِذَا كَانَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ عباس رضي الله عنه ته وفرمایل :

غَدَاةَ الاِثْنَيْنِ فَأْتِنِي أَنْتَ وَوَلَدُكَ حَتَّى أَدْعُوَ لَكَ بِدَعْوَةٍ يَنْفَعُكَ اللّٰهُ بِهَا

د دوشنبې په ورځ سهار وختي ته د خپل اولاد سره ما ته راسه چي ستاسو لپاره دعاء وغواړم چي تا او ستا اولاد ته الله جل جلاله په هغه سره ګټه ورسوي ،

وَوَلَدَكَ فَغَدَا وَغَدَوْنَا مَعَهُ وَأَلْبَسَنَا كِسَاءً ثُمَّ قَالَ اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِلْعَبَّاسِ

بیا د دوشنبې په ورځ سهار وختي هغوی راغلل، او رسول الله ﷺ پر موږ خپل ځادر مبارک واچوی بیا یې وفرمایل اې الله ! عباس او دده اولاد وبخښې ،

وَوَلَدِهِ مَغْفِرَةً ظَاهِرَةً وَبَاطِنَةً لَا تُغَادِرُ ذَنْبًا اللّٰهُمَّ احْفَظْهُ فِي وَلَدِهِ. رواه

ظاهر او باطن دواړو حالتو کي دوی پاک کړې او ددې دواړو (عباس او ابن عباس) هیڅ ګناه مه پرېږدې ، اې الله ! عباس دده په اولاد کي قائم او محفوظ لرې ،

الترمذي وزاد رزين واجعل الخلافة باقية في عقبه وقال الترمذي هذا حديث غريب.

ترمذي او د رزین په روایت کي دا الفاظ زیات دي چي رسول الله ﷺ په دعاء کي دا هم وفرمایل : چي خلافت او امیري دده په اولاد کي باقي ولرې . ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دی .

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۱۱، رقم: ۲۷۶۲.

**تشريح**: خپل ځادر مبارک یې پر موږ واچوی: دا ددې خبرې څخه کنایه ده چي څرنګه ما پر دغه ټولو خپل ځادر واچوی همدارنګه د الله جل جلاله د رحمت سایه دې هم پر دوی ټولو خپره سي .

عباس رضي الله عنه د هغه په اولاد کي قائم او خوندي ولرې : یعني اې الله! ته عباس رضي الله عنه ته عزت او شوکت ورکړې او هغه د ټولو آفتو او مصیبتو څخه خوندي وساتې ددې لپاره چي هغه د خپل اولاد د حقوقو ساتنه وکړي .

امارت او پاچاهي هم دده په اولاد كي پاته ولرې: يعني تر ډېره وخته پوري د عباس رضي الله عنه اولاد حكم الهي سره سم او سيادت او ثروت سره ونازوې، نو دغه دعاء قبوله سول، هغه زمانه راغلل چي تر پېړيو پوري د خلافت او حكمرانۍ شرف په عباسيانو كي پاته وو، دغه د دعاء الفاظ په اصل كي د امت لپاره يو هدايت دى چي د خلافت او امارت استحقاق د عباس رضي الله عنه اولاد ته هم حاصل دى، د خليفه او امير ټاكلو په وخت كي د دوى ترجيحي استحقاق په فهم كي لرل پكار دي.

## د ابن عباس رضي الله عنه او د هغه د اولاد فضيلت

﴿۵۸۹۹﴾: وَعَنْهُ أَنَّهُ رَأَى جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَامِ مَرَّتَيْنِ وَدَعَا لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّتَيْنِ. رواه الترمذي.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دى چي ما دوه واره جبرائيل عليه السلام وليدى او رسول الله صلى الله عليه وسلم دوه واره زما لپاره دعاء كړې ده، ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۳۷، رقم: ۳۸۲۲.

**تشريح**: دوه واره يې حضرت جبرائيل عليه السلام وليدى، دغه تفصيلي روايت په جمع الجوامع كي داسي نقل سوى دى چي حضرت عباس رضي الله عنه بيان وكړ چي يوه ورځ ما تكي سپيني جامې اغوستې وې او د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره تېر سوم، نو ما ولېدل چي رسول الله صلى الله عليه وسلم د دحيه كلبي رضي الله عنه په غوږ كي خبري كوي، حال دا چي په حقيقت كي هغه دحيه كلبي رضي الله عنه نه وو بلكه د هغه په صورت كي حضرت جبرائيل عليه السلام وو، مګر هغه وخت ما ته معلومه نه وه چي دا جبرائيل عليه السلام دى، زه د هغوى سره تېرېدم نو حضرت جبرائيل عليه السلام، رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وويل: اې د الله رسوله! كه ابن عباس رضي الله عنه موږ ته سلام ادا كړى واى نو ما به دده د سلام جواب وركړى واى، ابن عباس رضي الله عنه خو په ډېرو سپينو جامو كي دى مګر دده څخه وروسته به دده اولاد د تورو جامو په اغوستلو مجبور وي، كله چي جبرائيل عليه السلام آسمان ته ولاړى نو رسول الله صلى الله عليه وسلم په راستنېدو سره ما ته وفرمايل: زموږ سره د تېرېدو په وخت كي تا ولي سلام ادا نه كړ؟ ما وويل: اې د الله رسوله! تاسو هغه وخت د دحيه كلبي رضي الله عنه په غوږ كي په خبرو كولو بوخت واست، ما مناسبه ونه ګڼل چي تاسو زما د سلام جواب راكړئ، او همدارنګه زه ستاسو په خبرو كي خنډ جوړ سم، بيا رسول الله صلى الله عليه وسلم ما ته وفرمايل چي هغه دحيه كلبي رضي الله عنه نه وو بلكه جبرائيل عليه السلام وو، (ابن عساكر دغه

روایت نقل کړی دی) او ترمذي ویلي دي چي دغه پېښه دوه واره رامنځته سوې ده .
شیخ عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله په دې اړه لیکلي دي چي دلته سوال پیدا کیږي چي د رسول الله ﷺ سره د حضرت جبرائیل علیه السلام راتګ به په عامه توګه د دحیه کلبي رضی الله عنه په شکل کي وو او نورو صحابه کرامو به هم هغه لیدی ، نو بیا په خاصه توګه د ابن عباس رضی الله عنه په اړه دا خبره په خاصه توګه ولي بیان سوې ده چي هغه حضرت جبرائیل علیه السلام دوه واره لیدلی دی؟ ددې جواب شیخ رحمه الله دا لیکلی دی چي حضرت ابن عباس رضی الله عنه هم حضرت جبرائیل علیه السلام دوه واره د دحیه کلبي په شکل کي لیدلی وو مګر د هغه لیدل په عالم ملکوت کي وو ، حال دا چي د هغه څخه ماسوا بل صحابي حضرت جبرائیل علیه السلام په عالم ملکوت کي نه وو لیدلی ، نورو صحابه کرامو هغه په عالم ناسوت کي لیدلی دی، په یوه روایت کي راغلي دي چي رسول الله ﷺ، ابن عباس رضی الله عنه ته فرمایلي وه : د نبي او رسول څخه ماسوا بل څوک چي جبرائیل علیه السلام ویني نو د هغه دید له منځه ځي ، نو اې ابن عباس ! ستا سترګي به هم کار پرېږدي مګر د مرګ په ورځ به ستا دید بېرته تا ته راسي نو دا خو معلومه وه چي حضرت ابن عباس رضی الله عنهړوند سوی وو، او منقول دي چي کله هغه وفات سو او د هغه بدن په کفن کي ونغښتل سو نو ناڅاپه یو سپین مرغه څرګند سو او هغه مړي ته په راتلو سره په کفن کي ننوتی او غائب سو، خلګو هر څه پلټنه وکړل ، اخوا او دېخوا یې وکتل مګر د هغه سپین مرغه معلومات ونه سو، په پای کي د حضرت ابن عباس رضی الله عنه ازاد سوي غلام ، حضرت عکرمه رضی الله عنه وویل: ایا تاسو خلګ بې عقل سوي یاست، هغه مرغه نه وو بلکه د هغه دید وو چي د هغه په اړه رسول الله ﷺ فرمایلي وه چي د مرګ په ورځ به هغه ته بېرته راځي ، په روایت کي دا هم راغلي دي چي کله حضرت ابن عباس رضی الله عنه په لحد کي کښېښودل سو نو د غیب څخه یو آواز راغلی چي ټولو واورېدی: یا ایتها النفس المطمئنة ارجعي الی ربک راضیة مرضیة، اې مطمئن نفسه! خپل رب ته ولاړ سه ، ته د هغه څخه راضي یې او هغه ستا څخه راضي دی .

او د هغه لپاره یې دوه واره دعاء وفرمایل: یعني یو وار یې هغه دعاء وفرمایل چي د هغه ذکر په تېر فصل کي په یو حدیث کي وسو چي رسول الله ﷺ، ابن عباس رضی الله عنه د خپلي سینې مبارکي سره پیوست کړ او د غه دعاء یې ورته وکړل: اللهم علمه الحکمة، اې الله! ده ته د کتاب الله علم ورکړې، دوهم وار دعاء هغه ده چي د هغه په اړه هم د حضرت ابن عباس رضی الله عنه روایت مخکي تېر سوی دی چي رسول الله ﷺ د استنجاء لپاره تشریف یوووړ نو ما د اوداسه لپاره اوبه ورته کښېښودلې، کله چي رسول الله ﷺ ته وښودل سول چي ابن عباس رضی الله عنه د غه اوبه اېښې دي

نو هغه وخت رسول الله ﷺ دغه دعاء وفرمایل: اللهم فقه في الدين، اې الله! ابن عباس رضي الله عنه ته د دين پوهه ورکړې، مګر دا احتمال هم سته چي يو وار دعاء خو هغه مراد وي چي رسول الله ﷺ د اوبو په ايښودو باندي خوشحاله سو او دعاء يې ورته وکړل او د دوهم وار دعاء څخه هغه دعاء مراد وي چي رسول الله ﷺ د حضرت ابن عباس رضي الله عنه او د هغه د اولاد په حق کي فرمايلې وه

## د ابن عباس رضي الله عنه لپاره دعاوي

﴿۵۹۰۰﴾: وَعَنْهُ أَنَّهُ قَالَ دَعَا لِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُؤْتِيَنِي اللّٰهُ الْحِكْمَةَ مَرَّتَيْنِ. رواه الترمذي.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ زما لپاره دعاء وکړل چي الله تعالى ما ته دوه واره حکمت را کړې، ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۳۸، رقم: ۳۸۲۳.

**تشريح**: يعني د دغه مفهوم دعاء چي الله جل جلاله ما ته د دين او شريعت علم اصول او فروع راکړې، يو وار خو لفظ د حکمت سره او يو وار فقه لفظ سره او څرګنده ده چي رسول الله ﷺ دغه دواړې دعاوي په جلا جلا وختو کي وکړلې لکه چي مخکي تېر سول.

## د حضرت جعفر رضي الله عنه کنيت

﴿۵۹۰۱﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ جَعْفَرٌ يُحِبُّ الْمَسَاكِينَ وَيَجْلِسُ إِلَيْهِمْ وَيُحَدِّثُهُمْ وَيُحَدِّثُونَهُ وَكَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَكْنِيهِ بِأَبِي الْمَسَاكِينِ. رواه الترمذي.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دى چي جعفر رضي الله عنه به د مسکينانو سره ډېره مينه کول د هغوى سره به کښېنستى او مسکينانو به د هغه سره او هغه به د مسکينانو سره خبري کولې، پر دې بنياد رسول الله ﷺ د ده کنيت ابو المساکين ايښى وو، ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۱۳، رقم: ۳۷۶۶.

**تشريح**: مطلب دا چي حضرت جعفر رضي الله عنه ډېر زيات مسکين نواز وو، د هغه کنيت ابو المساکين ايښودل سوى وو، لکه څرنګه چي د حضرت علي رضي الله عنه کنيت ابو تراب له دې کبله ايښول سوى

وو چي هغه به د ناستي او پروتي په وخت کي د خاورو فرش زیات خوښوی او پر مځکه به بېله تکلفه کښېنستی او پرېوتی، یا څرنګه چي مسافر ته ابن السبیل او صوفي ته ابو الوقت د خاص معناوو په نسبت سره ویل کېږي.

## د حضرت جعفر رضي الله عنه فضیلت

﴿۵۹۰۲﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَيْتُ جَعْفَرًا يَطِيرُ فِي الْجَنَّةِ مَعَ الْمَلَائِكَةِ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: ما جعفر رضي الله عنه په جنت کي د ملائکو سره په الوتلو ولیدی، ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دی

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۶۱۲، رقم: ۳۷۶۸.

**تشریح**: حضرت جعفر رضي الله عنه د موته په غزا کي د اسلامي لښکر امیر وو او د اسلام بیرغ د هغه په لاس کي وو، په دغه غزا کي هغه د شهادت جام نوش کړ، په اصل کي خو ددغه غزا اسلامي مشر حضرت زید بن حارثه رضي الله عنه وو مګر د جنګ په دوران کي د هغه د شهید کېدو څخه وروسته د اسلامي لښکر مشرتوب او د اسلام بیرغ د حضرت جعفر رضي الله عنه لاس ته راغلی نو حضرت جعفر رضي الله عنه په ډېره مېړانه د الله جل جلاله په لاره کي جګړه وکړل، مخکي د هغه یو لاس په کار راغلی بیا دوهم لاس یې هم پرې سو بیا یې پښې هم قربان سوې تر دې چي شهید سو، یوې خوا ته د جنګ په میدان کي حضرت جعفر رضي الله عنه شهید سو بلي خوا ته په مدینه منوره کي رسول الله صلی الله علیه وسلم ته په مکاشفه یا په خوب کي وښودل سول چي د جعفر رضي الله عنه دوه وزرونه دي او د هغه دوو وزرو په ذریعه د ملائکو سره په جنت کي الوځي.

## د جنت د ځوانانو سردار

﴿۵۹۰۳﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْحَسَنُ وَالْحُسَيْنُ سَيِّدَا شَبَابِ أَهْلِ الْجَنَّةِ. رواه الترمذي.

د حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: حسن او حسین د جنت د ځوانانو سرداران دي. ترمذي

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۶۴۴، رقم: ۳۷۶۸.

**تشریح**: د طيبي رحمة الله عليه د قول مطابق د حديث د الفاظو مطلب دادی چي حسن او حسين رضي الله عنهما د هغه ټولو مسلمانانو څخه افضل دي چي د الله جل جلاله په لاره کي د ځوانۍ په حالت کي وفات سوي دي مګر دا خبره محل کلام ده ځکه چي دوی دواړو ته يوازي د هغه مسلمانانو څخه د افضل ګرځولو د تخصيص يوه وجه نسته کوم چي ځوانان مړه سول بلکه حقيقت خو دادی چي حسن او حسين رضي الله عنهما د هغه ډېرو مسلمانانو څخه هم افضل دي چي په لوی عمر کي وفات سوي دي نو د ځينو حضراتو دغه قول زيات صحيح دی چي د دغه حديث څخه مراد دادی چي حسن او حسين رضي الله عنهما د ټولو جنتيانو سرداران دي ځکه چي ټول جنتيان به ځوانان وي مګر انبياء عليهم السلام او خلفاء راشدين د دوی څخه مستثنی دي يعني دوی دواړه به تر هغوی افضل نه وي.

ځينو حضراتو ليکلي دي چي دلته د شباب يعني ځوان لفظ د جوان العمر په مفهوم کي نه دی بلکه د فتوت يعني د ځواني، سخي او کريم کېدو په معنی کي دی، په دغه صورت کي به مطلب دا وي چي دغه دواړه د ټولو ځوانانو سرداران دي، پرته د انبياء او خلفاء راشدينو څخه، يا دا چي د جنت د ځوانانو څخه مراد ټول جنتيان دي او هغوی د شباب په لفظ سره تعبير کول د اظهار محبت او شفقت په وجه دي لکه څرنګه چي په عامه توګه کېږي چي پلار د خپل زوی ذکر کوي نو هغه په هلک، بچي او يا بل نامه سره تعبير کوي که څه هم هغه د هر څو عمر وي.

## د دنيا دوه ګلونه

﴿۵۹۰۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ الْحَسَنَ وَالْحُسَيْنَ هُمَا رَيْحَانَيَّ مِنَ الدُّنْيَا. رواه الترمذي. وقد سبق في الفصل الاول

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: حسن او حسين زما د دنيا دوه ګلونه دي. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۱۵، رقم: ۳۷۷۰.

**تشريح**: سيد جمال الدين رحمة الله عليه د دغه حديث په اړه ليکلي دي چي د مشکوة شريف په دغه الفاظو کي پر صاحب مصابيح باندي اعتراضاتو ته اشاره ده مګر ملا علي قاري رحمة الله عليه ليکلي دي چي زما په نزد دغه اعتراض کالعدم دی، د اول فصل روايت د بخاري دی چي پر خپل ځای يې نقل کړی دی او دغه روايت د ترمذي دي چي دلته نقل سوی دی، حال دا چي د دغه دواړو روايتو په الفاظو کي في الجمله تغاير دی.

## د حسین رضي الله عنه سره مینه

﴿۵۹۰۵﴾: وَعَنْ أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ قَالَ طَرَقْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ

د حضرت اسامه بن زید رضي الله عنه څخه روایت دی چي زه د یو ضرورت لپاره د شپې د نبي کریم ﷺ په خدمت کي حاضر سوم ،

لَيْلَةٍ فِي بَعْضِ الْحَاجَةِ فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُشْتَمِلٌ عَلَى

نبي کریم ﷺ د کور څخه په داسي حال کي راووتی چي یو شئ یې د ځان سره پټ نیولی وو چي

شَيْءٍ لَا أَدْرِي مَا هُوَ فَلَمَّا فَرَغْتُ مِنْ حَاجَتِي قُلْتُ مَا هَذَا الَّذِي أَنْتَ

په هغه زه ناخبر وم چي هغه څه شي دي، کله چي رسول الله ﷺ ته ما خپل ضرورت عرض کړ او د خپل حاجت څخه فارغ سوم نو ما پوښتنه وکړه ای د الله رسوله !

مُشْتَمِلٌ عَلَيْهِ فَكَشَفَهُ فَإِذَا حَسَنٌ وَحُسَيْنٌ عَلَى وَرِكَيْهِ فَقَالَ هَذَانِ ابْنَايَ

دا تاسو څه شي راخیستی دی ؟ رسول الله ﷺ هغه شی ښکاره کړ نو حسن او حسین وه چي د رسول الله ﷺ په دواړو ارخونو کي وه (او څادر یې پر اچولی وو) او وه یې فرمایل : دا زما

وَابْنَا ابْنَتِيَ اللَّهُمَّ إِنِّي أُحِبُّهُمَا فَأَحِبَّهُمَا وَأَحِبَّ مَنْ يُحِبُّهُمَا. رواه الترمذي.

زامن دي او زما د لور زامن دي ، ای الله ! زه د دوی سره مینه کوم ته ورسره هم مینه وکړې او څوک چي د دوی سره مینه کوي ته د هغه سره هم مینه وکړې . ترمذي

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\ ۶۱۴، رقم: ۳۷۶۹.

**تشریح**: دغه دواړه (په حکم کي) زما زامن دي، ددې څخه معلومیږي چي د لور زوی د خپل زوی په حکم کي داخل دی لکه څرنګه چي د زوی زوی یعني لمسي د خپل زوی په حکم کي دی او دغه حدیث ددې خبري دلیل دی چي د نسب شرف د مور له خوا هم ثابتیږي .

د حضرت اسامه رضي الله عنه په مخکي د رسول الله ﷺ ذکر سوې دعاء کول کیدای سي د هغه او نورو دې ته متوجه کولو لپاره وو چي د حسین رضي الله عنه سره زیاته مینه وکړل سي .

## د حسین ﷺ شهادت او د ام سلمه خوب

﴿۵۹۰۶﴾: وَعَنْ سَلْمَى قَالَتْ دَخَلْتُ عَلَى أُمِّ سَلَمَةَ وَهِيَ تَبْكِي فَقُلْتُ مَا يُبْكِيكِ

د حضرت سلمی (رض) څخه روایت دی چي زه د رسول الله ﷺ کوروالا ام سلمه ته راغلم چي هغې ژړل، ما پوښتنه وکړل اې بي بي ولي ژاړې؟

قَالَتْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعْنِي فِي الْمَنَامِ وَعَلَى رَأْسِهِ وَلِحْيَتِهِ

هغې وویل: ما رسول الله ﷺ په خوب کي په داسي حال کي ولیدی چي پر سر او ږیره مبارکه یې

التُّرَابُ فَقُلْتُ مَا لَكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ شَهِدْتُ قَتْلَ الْحُسَيْنِ آنِفًا. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

دوړي پرتې وې، ما پوښتنه وکړه اې دالله رسوله! څه وسو ل؟ رسول الله ﷺ راته وفرمایل: زه اوس د حسین ﷺ د قتل د ځای څخه راغلم، ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دی.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۶۱۵، رقم: ۳۷۷۱.

**تشریح**: ام المؤمنین بي بي سلمه ﷺ په ۵۹م هجري کال کي وفات سوې ده او ځینو حضراتو د هغې د وفات نېټه ۶۳م هجري لیکلې ده، مګر زیات صحیح قول مخکنی دی، یوې خوا ته د حضرت امام حسین ﷺد شهادت سانحه په ۶۱ هجري کال کي پېښه سوې ده او که د بي بي ام سلمه ﷺ د وفات په اړه دوهم قول صحیح ومنل سي نو د دغه حدیث څخه سوال نه پیدا کیږي مګر په دغه تاویل سره دا سوال هم دفع کیږي چي د حضرت امام حسین ﷺ د شهادت د پېښي څخه مخکي د بي بي ام سلمه ﷺ په خوب کي د هغه واقع کېدل ښودل سوې وو، په دغه صورت کي د انفا لفظ توجیه به دا کیږي چي د دغه لفظ استعمال د دغه صورت حال د تحقیق په اعتبار دی چي د جسین ﷺ د شهادت په صورت کي د رسول الله ﷺ په خوب کي هغه وخت لېدل ښودل سوي وه.

## د حسنینو سره مینه

﴿۵۹۰۷﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ سُئِلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّ أَهْلِ بَيْتِكَ أَحَبُّ إِلَيْكَ قَالَ الْحَسَنُ وَالْحُسَيْنُ وَكَانَ يَقُولُ لِفَاطِمَةَ ادْعِي لِيَ ابْنَيَّ

فَيَشُمُّهُمَا وَيَضُمُّهُمَا إِلَيْهِ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسول چي په اهل بيتو کي ستاسو ځوک زيات خوښ دی ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : حسن او حسين، رسول الله ﷺ به بي بي فاطمې ﷺ ته فرمايل : زما دواړه زامن راوله، بيا به رسول الله ﷺ د حسن او حسين دواړو بدن بويوی او د ځان سره به يې پيوست کړل . ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دی .

**تخريج:** سنن الترمذي ۵\۶۱۵، رقم: ۳۷۷۲.

﴿۵۹۰۸﴾ : وَعَنْ بُرَيْدَةَ يَقُولُ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُنَا إِذْ

د حضرت بريده رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ موږ ته خطبه فرمايل چي ناڅاپه

جَاءَ الْحَسَنُ وَالْحُسَيْنُ عَلَيْهِمَا قَمِيصَانِ أَحْمَرَانِ يَمْشِيَانِ وَيَعْثُرَانِ فَنَزَلَ

حسن او حسين راغلل چي سره قميصونه يې اغوستي وه چي په تګ کي به غوځاړېدل ، ددې

رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْمِنْبَرِ فَحَمَلَهُمَا وَوَضَعَهُمَا بَيْنَ يَدَيْهِ

ليدو سره رسول الله ﷺ د منبر څخه راکښته سو دواړه ماشومان يې په غېږ کي واخيستل بيا يې خپل مخته دواړه کښېښول

ثُمَّ قَالَ صَدَقَ اللّٰهُ إِنَّمَا أَمْوَالُكُمْ وَأَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ نَظَرْتُ إِلَى هَذَيْنِ الصَّبِيَّيْنِ

او وه يې فرمايل : الله تعالی رښتيا فرمايلي دي چي ستاسو مال او اولاد فتنه ده، ما دواړه ماشومان وليدل

يَمْشِيَانِ وَيَعْثُرَانِ فَلَمْ أَصْبِرْ حَتَّى قَطَعْتُ حَدِيثِي وَرَفَعْتُهُمَا. رواه الترمذي وابوداؤد والنسائي.

چي راځي او غوځاړېدل نو ماصبر ونه کړلای سو تر دې چي ما خپله خبره قطع کړه او دا دواړه ماشومان مي راپورته کړل . ترمذي ، ابوداؤد او نسائي

**تشریح**: د رسول الله ﷺ د خطبې په دوران کي د منبر څخه راکښته کېدل او حسنین ﷺ پورته کول دا په اصل کي یو داسي عمل وو چي د هغه محرک شفقت، ترحم او میني هغه جذبه وه چي د هغوی په حال کي لېدو سره په نبوي زړه کي را پورته سوې وه، پر اولاد او کوچنیانو باندي شفقت او مهرباني کول یو ښه او غوره کار دی او دخطبې په دوران کي خطیب لره د یو وخت لپاره یو نیک عمل ته متوجه کېدل جائز دي ځکه د خطبې په دوران کي رسول الله ﷺ دغه عمل ته به تداخل في العبادت یو ډول ویل کیږي، رسول الله ﷺ چي ددغه عمل عذر بیان کړ نو هغه خو یو د خاکسارۍ په وجه وو دوهم د اورېدونکو او حاضرو خلکو خبردار کول هم مقصد وو چي زما دغه عمل د راتلونکي لپاره په دلیل ګرځولو سره ځان ددې عادي مه جوړوئ او دا ونه ګڼئ چي کله ما داسي وکړل نو هر سړی چي غواړي داسي کولای سي.

﴿۵۹۰۹﴾: وَعَنْ يَعْلَى بْنِ مُرَّةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُسَيْنٌ مِنِّي وَأَنَا مِنْ حُسَيْنٍ أَحَبَّ اللَّهُ مَنْ أَحَبَّ حُسَيْنًا حُسَيْنٌ سِبْطٌ مِنَ الْأَسْبَاطِ. رواه الترمذي.

د حضرت یعلي بن مره ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: حسین زما څخه دی او زه د حسین څخه یم، څوک چي د حسین سره مینه کوي خدای دي دهغه سره مینه وکړي او حسین زما یو اولاد دی. ترمذي

**تخریج**: سنن الترمذي ۶۱۷/۵، رقم: ۳۷۷۵.

**د لغاتو حل**: سبط: ولد ابنتي.

**تشریح**: یو شارح لیکلي دي چي کله رسول الله ﷺ دغه الفاظ وفرمایل نو هغه وخت لکه رسول الله ﷺ چي هغه پېښه د مخکي څخه ادراک کړې وه چي تقریبا نیمه پېړۍ وروسته د شهادت په صورت کي پېښېدونکې وه، رسول الله ﷺ په دغه ارشاد کي په خاصه توګه یوازي د حضرت حسین ﷺ یادونه وکړل او څرګنده یې کړل چي زه او زما حسین یو ځان او دوه بدنه یو، په موږ دواړو کي یو بدني او روحاني قرب او اتصال دی، لکه څرنګه چي زما سره مینه کول واجب دي همدارنګه د حسین ﷺ سره مینه کول واجب دي او څرنګه چي زما سره مخالفت او دښمني او زما سره جګړه کول حرام دي همدارنګه د حسین ﷺ سره مخالفت، دښمني او جګړه کول حرام دي.

هغه د الله ﷻ سره مينه و درلودل: ځکه چي د حسين رضي الله عنه سره مينه درلودل د رسول الله ﷺ سره مينه درلودل دي او د رسول الله ﷺ سره مينه درلودل د الله ﷻ سره مينه درلودل دي ، څرګنده دي وي چي په (احب الله) کي که چيري حاء په زور سره وويل سي نو معنی به يې هغه وي کوم چي ذکر سول او که د حاء په پېښ سره وويل سي نو معنی به يې دا وي چي کوم څوک د حسين رضي الله عنه سره مينه ولري نو الله ﷻ د هغه سره مينه لري .

حسين رضي الله عنه د اسباطو څخه يو سبط دی: يعني حسين رضي الله عنه زما زوی دی، سَبط (د سين په زور) په اصل کي سِبط دی او سبط هغه درختي ته وايي چي د هغه رېښې يو وي مګر ښاخونه يې ډېر وي، نو پلار د درختي په ډول سو او اولاد د هغه د ښاخو په ډول، ځينو حضراتو د سبط من الاسباط معنی دا ليکلې ده چي حسين رضي الله عنه په امتونو کي يو امت دی يعني د خير، ښېګڼې، شرف او سعادت په اعتبار د يوه پوره امت برابر دی ، يو شارح ليکلي دي چي د سبط لفظ د ولد په معنی کی دی، په دغه صورت کي د ذکر سوې جملې معنی به دا وي چي حسين رضي الله عنه زما اولاد دی ، د سبط يوه معنی د قبيلې هم راځي لکه څرنګه چي په قرآن کريم کي دغه آيت دی : (وقطعناهم اثنتی عشرة اسباطا) او موږ هغوی په دوولس کورنيو يا قبيلو کي وويشل، د دغه معنی په مناسبت ويل کيدای سي چي د دغه جملې څخه کيدای سي دا مراد وي چي حسين رضي الله عنه به د يوې لوی قبيلې او لوی نسل مورث وګرځي، الله ﷻ به د هغه په اولاد کي ډېر برکت واچوي او د هغه د اولاد لړۍ به نه يوازي دا چي ډېره خپره سي بلکه قائمه او باقي به پاته سي نو همدارنګه وسول چي د حضرت حسين رضي الله عنه نسل ډېر زيات خپور سو ، د هغه په اولاد کي بې شمېره صحيح النسب سادات موجود دي .

شيخ عبدالحق محدث دهلوي رحمة الله عليه د دغه حديث په اړه ليکلي دي چي سبط (د سين په زور او د باء په جزم) معنی د اولاد ده، اسباط يې جمع ده لکه څرنګه چي د حضرت يعقوب عليه السلام ټول اولاد ته اسباط ويل کيږي ، په اصل کي د يهوديانو لپاره د اسباط لفظ استعماليږي په کومه معنی کي چي د عربو لپاره د قبيلې لفظ استعماليږي، او د سَبط معنی د هغه درختي ده چي د هغې ښاخونه ډېر وي او رېښه يې يوه وي، نو د حضرت حسين رضي الله عنه په سبط سره تعبير کول دې ته اشاره ده چي د هغه د نسل څخه به بې شمېره خلک پيدا سي .

## د حسنينو د رسول ﷺ سره مشابهت

﴿۵۹۱۰﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ الْحَسَنُ أَشْبَهُ بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا

بَيْنَ الصَّدْرِ إِلَى الرَّأْسِ وَالْحُسَيْنُ أَشْبَهُ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا كَانَ أَسْفَلَ مِنْ ذٰلِكَ. رواه الترمذي.

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روایت دی چي حسن رضي الله عنه د رسول الله ﷺ سره زیات مشابه دی د سر څخه تر سینې پوري ، او حسین رضي الله عنه د رسول الله ﷺ سره تر سینې لاندي زیات مشابه دی . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۱۸، رقم: ۳۷۷۹.

**تشريح**: يعني دواړه حضرات په یو ځای کېدو سره د رسول الله ﷺ د پر مشابه وه او د رسول الله ﷺ بدن مبارک د دوی دواړو په منځ کي منقسم وو .

### د بي بي فاطمې او حسنينو فضيلت

﴿۵۹۱۱﴾: وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ قُلْتُ لِأُمِّي دَعِينِي آتِي النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت حذيفه رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما خپل مور ته وویل چي اجازه راکړه چي د ماښام لمونځ د رسول الله ﷺ سره وکړم

فَأُصَلِّيَ مَعَهُ الْمَغْرِبَ وَأَسْأَلُهُ أَنْ يَسْتَغْفِرَ لِي وَلَكِ فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ

او رسول الله ﷺ ته خواست وکړم چي زما او ستا لپاره د بخښني دعاء وغواړي، نو زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلَّيْتُ مَعَهُ الْمَغْرِبَ فَصَلَّى حَتَّى صَلَّى الْعِشَاءَ ثُمَّ انْفَتَلَ فَتَبِعْتُهُ

د ماښام لمونځ مي د رسول الله ﷺ سره وکړ بیا رسول الله ﷺ نفلونه وکړل ، د هغه څخه وروسته یې د ماخستن لمونځ وکړ بیا چي رسول الله ﷺ د لمانځه څخه فارغ سو او تلی نو زه هم ورپسي

فَسَمِعَ صَوْتِي فَقَالَ مَنْ هٰذَا حُذَيْفَةُ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ مَا حَاجَتُكَ غَفَرَ اللّٰهُ لَكَ

ورغلم ، رسول الله ﷺ چي زما د پښو اواز واوریدی نو پوښتنه یې وکړه څوک یې ؟ ایا ته حذیفه یې ؟ ما عرض وکړ هو ، رسول الله ﷺ وفرمایل ولي څه کار دي دی ؟ خدای دي تا او ستا

وَلِأُمِّكَ قَالَ إِنَّ هٰذَا مَلَكٌ لَمْ يَنْزِلِ الْأَرْضَ قَطُّ قَبْلَ هٰذِهِ اللَّيْلَةِ اسْتَأْذَنَ رَبَّهُ

مور و بخښي ، (یعني د کوم مقصد لپاره چي راغلی وم هغه بې ویلو پوره سو)، ګوره دا یوه ملائکه ده

(رسول الله ﷺ وفرمایل) چي ددغه شپې څخه مخکي هیڅکله مځکي ته نه وه راکښته سوې، دغه ملائکي خپل پروردګار څخه ما ته د حاضرېدو

أَنْ يُسَلِّمَ عَلَيَّ وَيُبَشِّرَنِي بِأَنَّ فَاطِمَةَ سَيِّدَةُ نِسَاءِ أَهْلِ الْجَنَّةِ وَأَنَّ الْحَسَنَ

او سلام کولو اجازه غوښتې وه نو اجازه ورکړل سوه، دغه ملائکي ما ته زیری راکړی دی چي فاطمه د جنت د ښځو سرداره ده او حسن

وَالْحُسَيْنَ سَيِّدَا شَبَابِ أَهْلِ الْجَنَّةِ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب

او حسین د زلمیانو جنتیانو سرداران دي. ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دی.

**تخريج:** سنن الترمذي ۵\۶۱۹، رقم: ۳۷۸۱.

**تشریح:** ما ته اجازه راکړه: کیدای سي د حذیفه رضي الله عنه سرای د مسجد نبوي څخه لیري وو، او د هغه موریا خو خپله د ډېر احتیاط په وجه یا د حذیفه رضي الله عنه په اړه د احتیاط لپاره هغه وخت د لیري تللو څخه منع کوی.

تر دې چي بیا د ماخستن لمونځ یې وکړ: ددې څخه د ماښام او ماخستن په منځ کي د نوافلو کولو فضیلت ثابت سو چي د مشائخو په نزد ورته احیاء مابین العشائین ویل کیږي.

مخکي هیڅکله مځکي ته نه وه راکښته سوې: په دې کي مقصد اهمیت او عظمت ته اشاره ده چي ددې لپاره هغه ملائکه مځکه ته راکښته سوې وه.

## ښه سپرلی او ښه سپور

﴿۵۹۱۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَامِلَ الْحُسَيْنِ بْنِ عَلِيٍّ عَلَى عَاتِقِهِ فَقَالَ رَجُلٌ نِعْمَ الْمَرْكَبُ رَكِبْتَ يَا غُلَامُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنِعْمَ الرَّاكِبُ هُوَ. رواه الترمذي.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دیچي رسول الله ﷺ حسن بن علي رضي الله عنه پر خپل اوږه مبارکه اخیستی وو، یو سړي وویل: هلکه ته پر څنګه ښه سپرلی باندي سپور یې، نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل او دا هم ښه سپور دی. ترمذي

**تخريج:** سنن الترمذي ۵\۶۲۰، رقم: ۳۷۸۴.

**تشریح**: د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دا وو چي سپرلی خو ښه ده مگر خپله سپور هم ډېر ښه دی نو ددغه الفاظو څخه د حضرت حسن رضی الله عنه د کمال توصیف او منقبت او ډېر فضیلت اظهار کیږي.

## د حضرت اسامه رضی الله عنه فضیلت

﴿۵۹۱۳﴾: وَعَنْ عُمَرَ أَنَّهُ فَرَضَ لِأُسَامَةَ فِي ثَلَاثَةِ آلَافٍ وَخَمْسِ مِائَةٍ وَفَرَضَ

د حضرت عمر رضی الله عنه څخه روایت دی چي هغه د اسامه بن زید رضی الله عنه لپاره (د بیت المال څخه) درې نیم زره درهمه تنخواه وټاکل،

لِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ فِي ثَلَاثَةِ آلَافٍ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ لِأَبِيهِ لِمَ فَضَّلْتَ

او عبدالله بن عمر رضی الله عنه (یعني خپل زوی) لپاره یې درې زره درهمه تنخواه وټاکل، عبدالله بن عمر رضی الله عنه خپل پلار ته ووېل تاسو اسامه ته پر ما ولي ترجیح ورکړل،

أُسَامَةَ عَلَيَّ فَوَاللّٰهِ مَا سَبَقَنِي إِلَى مَشْهَدٍ قَالَ لِأَنَّ زَيْدًا كَانَ أَحَبَّ إِلَى رَسُولِ

قسم په خدای هغه په هیڅ یو غزا کي زما څخه مخکي سوی نه دی، حضرت عمر رضی الله عنه ورته وفرمایل ما د اسامه تنخواه له دې کبله زیاته وټاکل چي د رسول الله ﷺ دده

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ أَبِيكَ وَكَانَ أُسَامَةُ أَحَبَّ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د پلار سره ستا تر پلار زیات محبت وو، او بیا خپله اسامه سره د رسول الله ﷺ ستا څخه زیاته

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْكَ فَآثَرْتُ حُبَّ رَسُولِ اللّٰهِ ﷺ عَلَى حُبِّي. رواه الترمذي.

مینه وه په دې وجه ما د رسول الله ﷺ محبوب ته پر خپل محبوب ترجیح ورکړل. ترمذي

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\ ۶۳۴، رقم: ۳۸۱۵.

**تشریح**: د مشهد معنی د حاضرېدو د ځای ده چیري چي په یو ښه یا ښه خبري کي برخه واخیستل سي، مگر دلته دغه لفظ د شهید کېدو ځای یعني د جنګ میدان په معنی کي استعمال سوی دی.

د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه شکایت له دې کبله وو چي د اسامه رضی الله عنه تنخواه زما د تنخواه څخه زیاته ټاکل سوې ده نو ددې مطلب دا سو چي اسامه رضی الله عنه ته پر ما فضیلت حاصل دی حال دا

چي د علمي ، ديني او خدماتي لحاظ څخه د اسامه ﷜ مرتبه يقينا زما څخه کمه ده ، پر دغه خبره باندي حضرت عمر ﷜ هغه پوه کړ چي د اسامه ﷜ تنخواه په دې وجه زياته نه ده چي هغه د علم ، عمل او خدمت په اعتبار تر تا افضل دی بلکه د هغه د خاص محبت رعايت دی چي د رسول الله ﷺ د هغه سره وو، او د نورو په مقابله کي زيات محبوب کېدل دا خبره نه مستلزم کوي چي هغه دې د نورو څخه افضل هم وي، پاته سوه دا خبره چي حضرت اسامه ﷜ او دهغه پلار حضرت زيد ﷜ رسول الله ﷺ ته زيات محبوب وو مگر د هغه يوه ظاهره وجه خو داده چي هغوی دواړه په دې اعتبار د رسول الله ﷺ د اهل بيتو څخه وه چي د رسول الله ﷺ ازاد سوی غلام وو او د يو چا ازاد سوی غلام د هغه په کورني کي شمېرل کيږي .

## د حضرت زيد ﷜ د رسول الله ﷺ د پرېښودو څخه انکار

﴿۵۹۱۴﴾: وَعَنْ جَبَلَةَ بْنِ حَارِثَةَ قَالَ قَدِمْتُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت جبله بن حارثه ﷜ څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ په خدمت کي عرض وکړ

فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ ابْعَثْ مَعِي أَخِي زَيْدًا قَالَ هُوَ ذَا قَالَ فَإِنِ انْطَلَقَ مَعَكَ

اې دالله رسوله ! زما سره زما ورور زيد ولېږی، رسول الله ﷺ وفرمايل : زيد موجود دی که دی ستا سره تلل غواړي

لَمْ أَمْنَعْهُ قَالَ زَيْدٌ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَاللَّهِ لَا أَخْتَارُ عَلَيْكَ أَحَدًا قَالَ فَرَأَيْتُ رَأْيَ أَخِي أَفْضَلَ مِنْ رَأْيِي. رواه الترمذي.

نو زه يې نه منع کوم ، زيد عرض وکړ اې دالله رسوله ! زه ستاسو څخه پرته بل هيڅوک نه خوښوم ، دجبله بن حارثه بيان دی چي ما په دې اړه د خپل ورور (يعني زيد) رايه د خپل رايه څخه غوره وليدل (يعني چي هغه زموږ سره او سيدل خوښ نه کړل او د رسول الله ﷺ خدمت کول يې خوښ کړل) . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۶۳۴، رقم: ۳۸۱۳.

**تشريح**: زه ددې څخه منع کوم: يعني کله چي ما دی ازاد کړی دی نو د خپل مستقبل فيصله کولو حق ده ته حاصل سوی دی اوس زه دی د تللو څخه نه سم منع کولای چي ولاړ سه ، که دی تلل غواړي نو ولاړ دې سي او که تلل نه غواړي نو زما سره دې پاته سي .

زما د عقل څخه زيات دی: د جبله رضی الله عنه د وينا مطلب دا وو چي مخکي خو زما دا رايه وه چي زيد رضی الله عنه خپل کور ته بېرته بوځم مگر د زيد رضی الله عنه د فيصلې اورېدو څخه وروسته د هغه د رايي د صحيح والي او غوره والي زه قائل سوم ځکه چي د رسول الله ﷺ په ملګرتيا او خدمت کي پاته کېدونکي هيڅوک د دنيوي او اخروي سعادت او عظمت پرېښودو ته اماده کيدای نه سي ، د رسول الله ﷺ په خدمت کيد حضرت زيد رضی الله عنه د ورور راتګ او هغه وطن ته د بېولو درخواست کولو دغه پېښه د هغه وخت ده کله چي حضرت زيد رضی الله عنه غلام نه وو، بلکه رسول الله ﷺ هغه ازاد کړی وو او هغه د خپلي خوښي مختار وو، مگر څرګنده ده چي د خدمت بابرکت او د صحبت پر سعادت لذت هغه چيري پرېښودی .

د حضرت زيد بن حارثه رضی الله عنه په اړه مخکي هم ښودل سوي دي چي هغه د يمن اوسېدونکی وو ، په کوچنيوالي کي چي د هغه عمر اته کاله وو د مکې قريشو هغه نيولی وو او د غلام په توګه يې په بازار کي پلورلی وو، د بي بي خديجې رضی الله عنها وراره حکيم بن حزام د خپلي خاله لپاره رانيولی وو ، کله چي بي بي خديجه رضی الله عنها د رسول الله ﷺ په نکاح کي راغلل نو هغې زيد رضی الله عنه د تحفې په توګه د رسول الله ﷺ په خدمت کي وړاندي کړ ، رسول الله ﷺ هغه خپل متنبي (زوی) وګرځوی او د خپلي ازاد سوي مينزي ام ايمن سره يې د هغه نکاح وکړل، د ام ايمن د نس څخه حضرت اسامه رضی الله عنه پيدا سو ، بيا رسول الله ﷺ د زيد رضی الله عنه دوهمه نکاح د بي بي زينت بنت جحس سره وکړل چي څو ورځي وروسته زيد رضی الله عنه طلاق ورکړ ، د ځينو حضراتو د قول مطابق د شلو کالو وو چي د بدر او نورو غزاوو کي يې ګډون وکړ، رسول الله ﷺ په مدينه کي د هغه او ورور ګلوي د حضرت جعفر بن ابي طالب رضی الله عنه سره قائمه کړې وه ، په غزوه موته کي په ۸ م هجري کال د ۵۵ کالو په عمر شهيد سو .

## د حضرت اسامه رضی الله عنه سره شفقت او محبت

﴿۵۹۱۵﴾: وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ لَمَّا ثَقُلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت اسامه بن زيد رضی الله عنه څخه روايت دی چي کله رسول الله ﷺ ډېر کمزوری سو نو

هَبَطْتُ وَهَبَطَ النَّاسُ الْمَدِينَةَ فَدَخَلْتُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

زه او نور خلک مدينې ته راغلو او زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم

وَقَدْ أُصْمِتَ فَلَمْ يَتَكَلَّمْ فَجَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضَعُ يَدَيْهِ

خو هغه پټه خوله وو، (یعني خبري یې نه سوای کولای) رسول الله ﷺ چي زه ولیدم نو خپل دواړه مبارک لاسونه یې پر ما اېښودل

عَلَيَّ وَيَرْفَعُهُمَا فَأَعْرِفُ أَنَّهُ يَدْعُو لِي. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب

بیا یې هغه پورته کول، زه پوه سوم چي رسول الله ﷺ زما لپاره دعاء فرمایي. ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دی

**تخريج:** سنن الترمذي ٥\٦٣٥، رقم: ٣٨١٧.

**د لغاتو حل:** اصمت: يقال اصمت العليل، اذا اعتقل لسانه.

**تشريح:** رسول الله ﷺ د حضرت اسامه رضي الله عنه په مشرۍ کي د مهاجرينو او انصارو يو لښکر تيار کړی وو چي جنګ ته د روانېدو لپاره یې د مدينې څخه دباندي پړاو اچولی وو، مګر د رسول الله ﷺ د مرض وفات د خبر په اورېدو سره دغه لښکر بېرته مدينې ته راغلی، ددغه موقع یادونه حضرت اسامه رضي الله عنه کړې ده.

مدينې ته راتلل چي حضرت اسامه رضي الله عنه په هبوط سره تعبير کړ چي د هغه معنی د لوړ څخه کښته کېدو ده، نو هغه په دې مناسبت سره ده چي لښکر په کوم ځای کي موجود وو هغه د نواح مدينه لوړه سيمه وه چي هغه ته جوف ويل کيږي لکه څرنګه چي د عرفات ميدان د مکې په لوړه خوا کي واقع دی، د عربو دا اسلوب دی چي هغوی په داسي خبرو او کلام کي د لوړې او کښته لفظونو رعايت کوي که هغوی ته دا ويل وي که موږ عرفات ته ولاړو نو داسي به وايي: هبطنا الى مكة، يعني موږ د مکې څخه عرفات ته وختلو، همدارنګه د مدينې څخه جوف ته راتلل به په صعود سره تعبير کېدل او د جوف څخه مدينې ته راتلل به په هبوط سره تعبير کېدل، ددې يو مثال دا هم دی که يو سړی د مسجد حرام دننه څخه باب السلام ته ځي چي د عرفات خوا ته دی نو داسي وايي: صعدنا الى باب السلام.

ملا علي قاري رحمه الله د (هبطت وهبط الناس المدينة) معنی دا بيان کړې ده چي زه خپل سرای ته په مدينه کي راکښته سوم او نور خلګ هم د خپلو ځايو څخه په مدينه کي راکښته سول

زما په اړه دعاء کوي، يعني د رسول الله ﷺ په زړه کي چي د اسامه رضي الله عنه کومه مينه او دهغه د خدمت اطاعت کوم قدر وو د هغه په وجه رسول الله ﷺ د هغه لپاره دعاء وفرمايل، په دې سره د حضرت اسامه رضي الله عنه په اړه د رسول الله ﷺ د کمال کرم او شفقت اظهار کيږي چي رسول الله ﷺ په داسي سخت حالت کي هم هغه په خپلو دعاوو سره ونازوی.

﴿۵۹۱۶﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ أَرَادَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُنَحِّيَ مُخَاطَ أُسَامَةَ قَالَتْ عَائِشَةُ دَعْنِي حَتَّى أَكُونَ أَنَا الَّذِي أَفْعَلُ قَالَ يَا عَائِشَةُ أَحِبِّيهِ فَإِنِّي أُحِبُّهُ. رواه الترمذي.

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د اسامه ﷛ پزه پاکول غوښتل، ما عرض وکړ تاسو یې پرېږدئ دا کار به زه وکړم. رسول الله ﷺ وفرمایل: اې عائشې ! ته د اسامه سره محبت کوه ځکه چي زه ور سره محبت کوم. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۳۵، رقم: ۳۸۱۸.

**تشريح**: رسول الله ﷺ، بي بي عائشه ﷛ دې ته متوجه کړل که د اسامه ﷛ سره ستا طبعي مینه نه وي نو بیا هم له دې کبله چي محبوب هم محبوب کېدل دی اسامه محبوب وګڼه ځکه چي زه د هغه سره مینه لرم، په حقیقت کي کمال محبت دا دی چي د محبوب سره په تېرېدو سره د هغه متعلقین او د هغه سره اړوند شیانو پوري سرایت وکړل سي که هغه سړی وي یا سرای یا بل څه.

﴿۵۹۱۷﴾: وَعَنْ أُسَامَةَ قَالَ كُنْتُ جَالِسًا إِذْ جَاءَ عَلِيٌّ وَالْعَبَّاسُ يَسْتَأْذِنَانِ

د حضرت اسامه ﷛ څخه روایت دی چي زه د رسول الله ﷺ پر دروازه ناست وم، علي او عباس رضي الله عنهما راغلل او د رسول الله ﷺ په خدمت کي یې اجازه غوښتل

فَقَالَ لِأُسَامَةِ اسْتَأْذِنْ لَنَا عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ يَا

هغوی ما اسامه ته وویل ته زموږ لپاره د رسول الله ﷺ څخه اجازه وغواړه، ما عرض وکړ اې

رَسُولَ اللّٰهِ عَلِيٌّ وَالْعَبَّاسُ يَسْتَأْذِنَانِ فَقَالَ أَتَدْرِي مَا جَاءَ بِهِمَا قُلْتُ لَا قَالَ

دالله رسوله ! علي او عباس اجازه غواړي، رسول الله ﷺ ما ته وفرمایل اې اسامه ! تا ته معلومه ده چي دا دواړه ما ته ولي راغلي دي، ما عرض وکړ ما ته نه ده معلومه، رسول الله ﷺ

لَكِنِّي أَدْرِي إِئْذَنْ لَهُمَا فَدَخَلَا فَقَالَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ جِئْنَاكَ نَسْأَلُكَ أَيُّ أَهْلِكَ

وفرمایل: مګر ما ته معلومه ده، ښه دی دوی را وغواړه نو دواړه دننه راغلل او عرض یې وکړ اې دالله رسوله ! موږ ستاسو په خدمت کي د پوښتني کولو لپاره راغلي یو چي تاسو ته په خپل

أَحَبُّ إِلَيْكَ قَالَ فَاطِمَةُ بِنْتُ مُحَمَّدٍ فَقَالَا مَا جِئْنَاكَ نَسْأَلُكَ عَنْ أَهْلِكَ قَالَ

اهل كي څوک تر ټولو زيات عزيز دی؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : فاطمه بنت محمد ﷺ پر ما تر ټولو ګرانه ده ، علي او عباس رضي الله عنهما عرض وکړ موږ ستا د کورنۍ په اړه پوښتنه نه کوو ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :

أَحَبُّ أَهْلِي إِلَيَّ مَنْ قَدْ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِ وَأَنْعَمْتُ عَلَيْهِ أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ قَالَا ثُمَّ

زما د اهل بيتو څخه ما ته تر ټولو هغه سړی زيات محبوب دی چي خدای ﷻ خپل فضل او انعام پر کړی دی او ما هم پر هغه انعام او احسان کړی دی او هغه اسامه بن زيد رضي الله عنه دی، علي او عباس رضي الله عنهما عرض وکړ:

مَنْ قَالَ ثُمَّ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ قَالَ الْعَبَّاسُ يَا رَسُولَ اللَّهِ جَعَلْتَ عَمَّكَ آخِرَهُمْ قَالَ لِأَنَّ عَلِيًّا قَدْ سَبَقَكَ بِالْهِجْرَةِ. رواه الترمذي.

داسامه څخه وروسته ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : بيا علي بن ابو طالب رضي الله عنه ، عباس رضي الله عنه عرض وکړ اې دالله رسوله ! تاسو خپل اکا په اهل بيتو کي په اخر کي وساتی ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : بېشکه علي رضي الله عنه په هجرت کي ستا څخه مخته والی وړی دی . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ٥\٦٣٦، رقم: ٣٨١٩.

**تشريح**: الله ﷻ پر هغه خپل فضل او انعام وکړ او ما هم، د الله ﷻ د انعام او فضل څخه مراد د اسلام منلو توفيق دی ، د هدايت او سمي لاري په دولت سره نازول او دعزت تر لاسه کېدل دي، د رسول الله ﷺ د انعام او احسان څخه مراد ازاد کېدل دي، د متبنی رسول شرف تر لاسه کول او د عزت تر لاسه کول دي، څرګنده دي وي چي د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ دا هغه انعام او احسان دی چي په اصل کي خو د حضرت اسامه رضي الله عنه د پلار حضرت زيد رضي الله عنه نسبت دی ، په قرآن کريم کي ذکر سوي دي مګر پلار ته تر لاسه کېدونکي انعامات د هغه زوی ته هم په هر صورت رسيږي، په دي اعتبار رسول الله ﷺ دغه آيت کريمه که څه هم د زيد رضي الله عنه په حق کي نازل سوی دی مګر په هغه کي چي د کومو انعاماتو ذکر دی هغه خو زيد رضي الله عنه ته حاصل وه مګر د زيد رضي الله عنه زوی او د هغه د تابع کېدو په حيثيت سره هغه انعامات اسامه رضي الله عنه ته هم حاصل دی او ځکه پلار او زوی دواړو ما ته محبوب دي .

بیا علي بن ابي طالب رضي الله عنه، یعني رسول الله ﷺ په خپل نزد په محبوب کېدو کي حضرت علي رضي الله عنه ته د حضرت اسامه رضي الله عنه څخه وروسته درجه ورکړل او دا د اهل سنت والجماعت ددغه مذهب څرګند دلیل دی چي زیات محبوب کېدل د افضیلت مترادف نه دی یعني کوم څوک چي تر ټولو زیات محبوب وګڼل سي نو دا ضروري نه ده چي هغه دي تر ټولو افضل هم وي، دا خبره په اتفاق او اجماع منل سوې ده چي حضرت علي رضي الله عنه تر حضرت اسامه رضي الله عنه افضل دی، ددې څخه ماسوا دا خبره باید په ذهن کي وي چي رسول الله ﷺ د حضرت اسامه رضي الله عنه د زیات محبوب کېدو وجه بیان کړل د هغه مطابق دا نتیجه اخیستل صحیح نه دي چي په محبت او تعلق کي د رسول الله ﷺ په نزد حضرت اسامه رضي الله عنه ته پر حضرت علي رضي الله عنه علی الاطلاق فوقیت او ترجیح حاصل وه بلکه حقیقت دادی چي دلته د تعدد وجوه او حیثیت په اعتبار مدنظر ساتل ضروري دي، ددې مطلب به دا وي چي حضرت اسامه رضي الله عنه د خدمت په وجه زیات محبوب وو او په ځینو وجهو حضرت علي رضي الله عنه ورته د قرابت او علم په اعتبار زیات محبوب وو، نو رسول الله ﷺ په ځینو وجهو حضرت اسامه رضي الله عنه ډېر زیات خوښوی او په ځینو وجهو یې حضرت علي رضي الله عنه.

رسول الله ﷺ خپل اکا ته، د حضرت عباس رضي الله عنه مطلب دا وو که چیري زه اوس سوال وکړم چي د علي رضي الله عنه څخه وروسته په اهل بیتو کي کوم څوک تاسو ته زیات خوښ دی نو یقینا د رسول الله ﷺ جواب به زما په اړه وي ، معنی دا چي زما درجه د علي رضي الله عنه څخه وروسته ده، رسول الله ﷺ څرګنده کړل چي ستا څخه مخکي د علي رضي الله عنه محبوب کېدل د خپلوۍ د طبعي غوښتني په وجه نه دي بلکه دده د هغه فضیلت په وجه دی چي هغه په اسلام منلو کي پر تا سبقت وکړ ، همدارنګه په هجرت کي هم هغه پر تا مخته سوی دی، ددې مثال هغه روایت دی چي په هغه کې بیان سوی دی چي یوه ورځ حضرت عباس رضي الله عنه، حضرت ابوسفیان، حضرت بلال حبشي او حضرت سلمان رضي الله عنهم، و حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ته راغلل او له دروازې سره نژدې د ننوتلو اجازه یې وغوښتل، خادم دننه راغلی او حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ته یې ددغه حضراتو د راتګ خبر ورکړ، بیا دباندي راووتی او وه یې ویل: تر ټولو مخکي بلال رضي الله عنه ته د ننوتلو اجازه ده ، حضرت ابوسفیان رضي الله عنه ته دا خبره ناخوښه سول چي زما او د عباس رضي الله عنه په موجودتیا کي بلال رضي الله عنه ته د ننوتلو اجازه څرنګه ورکړل سول، هغه حضرت عباس رضي الله عنه ته وویل: تا ولېدل چي عمر رضي الله عنه ازاد کړل سوو غلامانو ته پر موږ فوقیت ورکوي مګر حضرت عباس رضي الله عنه جواب ورکړ چي موږ (د اسلام په منلو کي او په هجرت کي) تر شا پاته سوي یو او دا د هغه نتیجه ده.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

﴿۵۹۱۸﴾: عَنْ عُقْبَةَ بْنِ الْحَارِثِ قَالَ صَلَّى أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ الْعَصْرَ ثُمَّ

د حضرت عقبه بن حارث رضي الله عنه څخه روايت دی چي ابو بکر صديق رضي الله عنه د مازديګر لمونځ وکړ بيا

خَرَجَ يَمْشِي ومعه عَلِيّ فَرَأَى الْحَسَنَ يَلْعَبُ مَعَ الصِّبْيَانِ فَحَمَلَهُ عَلَى

ګرځيدو ته ووتی، حضرت علي رضي الله عنه هم ورسره وو، حضرت ابو بکر رضي الله عنه حضرت حسن رضي الله عنه د
ماشومانو سره په لوبو کولو وليدی نو هغه يې پورته کړ

عَاتِقِهِ وَقَالَ بِأَبِي شَبِيهٌ بِالنَّبِيِّ لَيس شَبِيهٌ بِعَلِيٍّ وَعَلِيٌّ يَضْحَكُ. رواه البخاري

او پر خپله اوږه يې کښينوی او وه يې ويل: په خپل پلار دي مي قسم وي دی د نبي کريم ﷺ سره
زيات مشابه دی د علي رضي الله عنه سره مشابه نه دی، حضرت علي رضي الله عنه دا واوريدل او خندل يې. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۷\۹۴، رقم: ۳۷۵۰.

### د شهيد اعظم سر مبارک او د ابن زياد استهزاء

﴿۵۹۱۹﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ أُتِيَ عُبَيْدُ اللهِ بْنُ زِيَادٍ بِرَأْسِ الْحُسَيْنِ عَلَيْهِ السَّلَام

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي د عبيد الله بن زياد مخته د حضرت حسين رضي الله عنه سر
مبارک راوړل سو

فَجُعِلَ فِي طَسْتٍ فَجَعَلَ يَنْكُتُ وَقَالَ فِي حُسْنِهِ شَيْئًا قَالَ أَنَسٌ فقلت والله انه

او په تالی کي کښېښودل سو، عبيد الله سر مبارک ته په لرګي سره حرکت ورکولو سره ويل ده ده
په حسن (ښائست) کي څه خبره ده، د انس رضي الله عنه بيان دی ما هغه ته وويل: قسم په خدای

كَانَ أَشْبَهَهُمْ بِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَ مَخْضُوبًا بِالْوَسْمَةِ. رواه

په اهل بيتو کي حسين رضي الله عنه د رسول الله ﷺ سره زيات مشابه وو، دغه وخت د حضرت حسين رضي الله عنه سر
مبارک په وسمه رنګ کړل سوی وو،

البخاري وفي رواية الترمذي قَالَ كُنْتُ عِنْدَ ابْنِ زِيَادٍ فَجِيءَ بِرَأْسِ الْحُسَيْنِ

بخاري او د ترمذي په روايت کي دا الفاظ دي چي زه د ابن زياد سره ناست وم چي د حسين رضي الله عنه سر مبارک راوړل سو،

فَجَعَلَ يَضْرِبُ بِقَضِيبٍ فِي أَنْفِهِ وَيَقُولُ مَا رَأَيْتُ مِثْلَ هَذَا حُسْنًا فَقُلْتُ أَمَا إِنَّهُ

ابن زياد به د حسين رضي الله عنه په پزه کي لرګی راتيروی او دا به يې ويل حسين رضي الله عنه

كَانَ مِنْ أَشْبَهِهِمْ بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وقال هذا حديث صحيح حسن غريب.

د رسول الله ﷺ سره زيات مشابه وو، ترمذي ويلي دي دا حديث صحيح حسن غريب دی.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۷\۹۴، رقم: ۳۷۴۸، والترمذي ۵\۶۱۸، رقم: ۳۷۷۸.

**د لغاتو حل**: ينکت: اي يضرب براس القضب في انفه.

**تشريح**: طبراني د حضرت انس رضي الله عنه الفاظ داسي نقل کړي دي چي کله عبيدالله بن زياد په خپله لکړه چي د هغه په لاس کي وه، د حضرت حسين رضي الله عنه ستر که او پزه ووهل نو ما ورته وويل: اې بدبخته! خپله لکړه ليري کړه، کوم ځايونه چي ته په خپلي لکړي سره وهې هلته ما د رسول الله ﷺ خوله مبارکه ايښې ليدلې ده او د براز په روايت کي د حضرت انس رضي الله عنه الفاظ دادي چي ما عبدالله بن زياد ته وويل: کوم ځای چي ته خپله لکړه وهې هغه ما د رسول الله ﷺ په بويولو ليدلي دي زما په وينا ابن زياد خپله لکړه ايسته کړل.

په هر حال عبيدالله بن زياد هغه سړی دی چي په کوفه کي د زيد ابن معاويه والي وو، او يزيد هغه د لښکر امير جوړ کړی وو چي د حضرت حسين رضي الله عنه د شهيد کولو لپاره تاکل سوی وو، دغه سړي چي په ډېر ظلم او بې درديۍ سره امام حسين رضي الله عنه او د هغه ملګري او خپلوان قتل کړل او بيا وروسته يې د امام حسين رضي الله عنه د سر مبارک سره خنداوي کولې بلکه د سپکاوي او نفرت چلن يې وکړ، دا د هغه د سخت زړه توب ثبوت دی، خپله هغه د قدرت له خوا د انتقام داسي ښکار سو چي په ۶۶ هجري کال کي د مختار ابن ابي عبيد په زمانه کي د موصل په ځای کي د ابراهيم بن مالک بن الاشتر النخعي په لاس د نخپلو ډېرو خلکو سره ووژل سو، په ذخائر کي د عمارة بن عمير روايت دی چي کله چي د جنګ د ميدان څخه د ابن زياد او د هغه د ملګرو سرونه د بدن څخه بېل کړل سول او د ښار مسجد ته راوړل سول نو هغه وخت د موجود پر د کانچه زه هم

موجود وم ، د ابن زياد پرې کړی سر هلته اېښودل سوی وو ، ناڅاپه خلګو يوې خوا ته په کتلو سره چغې کړې چې درغلی، درغلی، ما چې ولېدل نو يو مار په تيزي سره د ابن زياد سر ته روان وو او سمدستي د هغه په پزه ننوتی، لږ ګړی هلته دننه وو او بېرته په راوتلو سره ولاړی، لږ وخت وروسته بيا هغه راغلی او په تيزي سره د ابن زياد په پزه ننوتی او لږ وخت وروسته بېرته راووتی او ولاړی، دغه عجيبه او غريبه پېښه دوه واره پېښه سول .

بيا هغه د هغوی د ښکلا په اړه څه وويل: د دغه جملې يو مطلب خو دا کيدای سي چې ابن زياد د حضرت حسين رضي الله عنه د سر مبارک په لېدو سره د هغه د ښکلا په اړه يوه عيب داره خبره وکړل مګر يو مطلب چې د ترمذي د روايت څخه هم څرګندېږي ، دا کيدای سي چې ابن زياد هغه وخت د حضرت حسين رضي الله عنه د ښکلا په اړه د تعريف او تحسين داسي الفاظ استعمال کړي وي لکه يو څوک چې يې د مسخرو په توګه کوي، هغه الفاظ په ښکاره د تعريف وه مګر په حقيقت کي د هغه د خوشحالۍ د اظهار لپاره چې هغه بدبخت ته د حضرت حسين رضي الله عنه په وژلو سره تر لاسه سوي وه د خندا او مسخرو په توګه وه .

## د حضرت حسين رضي الله عنه په اړه يو خوب او يو پيشګوئي

﴿۵۹۲۰﴾ : وَعَنْ أُمِّ الْفَضْلِ بِنْتِ الْحَارِثِ أَنَّهَا دَخَلَتْ عَلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ

د ام الفصل بنت الحارث (رض) څخه روايت دی چې هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کي حاضره

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَارَسُوْلَ اللهِ إِنِّيْ رَأَيْتُ حُلْمًا مُنْكَرًا اللَّيْلَةَ قَالَ وَمَا هُوَ

سوه او عرض يې وکړ اې د الله رسول ! ما نن ډېر خراب خوب ليدلی دی، رسول الله صلی الله علیه وسلم پوښتنه وکړه څه رنګه دی ؟

قَالَتْ إِنَّهُ شَدِيْدٌ قَالَ وَمَا هُوَ قَالَتْ رَأَيْتُ كَأَنَّ قِطْعَةً مِّنْ جَسَدِكَ قُطِعَتْ

هغې وويل هغه ډېر بد خوب دی، رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل څه شي دی؟ هغې وويل ما وليدل چې ستاسو د بدن مبارک څخه يوه ټوټه پرې کړل سوې ده

وَوُضِعَتْ فِيْ حَجْرِيْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَيْتُ خَيْرًا تَلِدُ

او زما په غېږ کي اېښودل سوې ده ، رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمايل : تا ښه خوب ليدلی دی

فَاطِمَةُ إِنْ شَاءَ اللهُ غُلَامًا يَكُوْنُ فِيْ حَجْرِكِ فَوَلَدَتْ فَاطِمَةُ الْحُسَيْنَ وَكَانَ فِيْ

انشاء الله د فاطمې ﷺ به زوی پیدا سي چي ستا په غیږ کي به کښېښودل سي ، نو د بي بي فاطمې ﷺ زوی پیدا سو

حَجْرِيْ كَمَا قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَخَلْتُ يَوْمًا عَلٰى رَسُوْلِ

او زما په غیږ کي کښېښودل سو لکه څرنګه چي رسول الله ﷺ فرمایلي وه ، بیا زه یوه ورځ د نبي کریم ﷺ په خدمت کي حاضره سوم

اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَضَعْتُهُ فِيْ حَجْرِهٖ ثُمَّ كَانَتْ مِنِّيْ الْتِفَاتَةٌ فَإِذَا عَيْنَا

او حسین ﷺ مي رسول الله ﷺ ته په غیږ کي ورکړ بیا ما بلي خوا ته وکتل ناڅاپه ما ولیدل چي د رسول الله ﷺ د سترګو څخه اوښکي رواني دي ،

رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُهْرِيْقَانِ الدُّمُوْعَ قَالَتْ فَقُلْتُ يَا نَبِيَّ اللهِ

ما عرض وکړ اې د الله رسوله ! زما مور او پلار دي پر تاسو قربان وي څه خبره ده ؟

بِأَبِيْ أَنْتَ وَأُمِّيْ مَالَكَ قَالَ أَتَانِيْ جِبْرِيْلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ فَأَخْبَرَنِيْ أَنَّ أُمَّتِيْ سَتَقْتُلُ ابْنِيْ هٰذَا فَقُلْتُ هٰذَا قَالَ نَعَمْ وَأَتَانِيْ بِتُرْبَةٍ مِّنْ تُرْبَتِهٖ حَمْرَاءَ .

رسول الله ﷺ وفرمایل : اوس جبرائیل علیه السلام ما ته راغلی وو خبر یې کړلم چي ډېر ژر به ستا امت دا زوی قتل کړي، ما عرض وکړ دا زوی، رسول الله ﷺ وفرمایل هو، او ما ته یې د هغه ځای خاوره هم راوړې وه په کوم ځای کي چي به قتل کیږي او هغه سره خاوره وه . بیهقي.

**تخریج**: رواه البیهقي في دلائل النبوة

**تشریح**: د ذخائر په یوه روایت کي د بي بي سلمی ﷺ څخه منقول دي چي یوه ورځ زه د ام المؤمنین بي بي ام سلمه ﷺ په خدمت کي حاضره سوم نو ما ولیدل چي هغه ژاړي، ماد ژړا سبب وپوښتی نو هغې وویل: ما (په خوب کي) رسول الله ﷺ په داسي حال کي ولیدی چي د رسول الله ﷺ سر او ږیره مبارکه په خاورو ده، ما پوښتنه وکړل چي اې د الله رسوله! تاسو ولي په دغه حالت کي یاست ، نو رسول الله ﷺ وفرمایل: زه اوس د حسین ﷺ د وژني د ځای څخه راغلی

يم، دغه روايت ترمذي نقل کړی دی او ويلي يې دي چي دغه حديث غريب دی او بغوي هم دغه روايت په احسان کي نقل کړی دی.

## د حسين رضي الله عنه شهادت او د ابن عباس رضي الله عنه خوب

﴿۵۹۲۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْمَا يَرَى

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما يوه ورځ رسول الله ﷺ په خوب کي په داسي

النَّائِمُ ذَاتَ يَوْمٍ بِنِصْفِ النَّهَارِ أَشْعَثَ أَغْبَرَ بِيَدِهِ قَارُوْرَةٌ فِيْهَا دَمٌ فَقُلْتُ بِأَبِيْ

حال کي وليدی چي د غرمې وخت وو او رسول الله ﷺ پريشان حاله په ګرد لړلی يوه شيشه يې په لاس کي اخيستې وه چي د وينو څخه ډکه وه، ما عرض وکړ زما مور او پلار دي

أَنْتَ وَأُمِّيْ مَا هٰذَا قَالَ هٰذَا دَمُ الْحُسَيْنِ وَأَصْحَابِهِ وَلَمْ أَزَلْ أَلْتَقِطُهُ مُنْذُ

پر تاسو قربان وي دا څه شي دي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: دا د حسين او د هغه د ملګرو وينه ده چي تر نن ورځي پوري مي را ټولولې،

الْيَوْمِ فَأُحْصِيْ ذٰلِكَ الْوَقْتَ فَأَجِدُ قُتِلَ ذٰلِكَ الْوَقْتُ. رواهما البيهقي في دلائل النبوة وأحمد الأخير.

ابن عباس رضي الله عنه وايي په خوب کي چي رسول الله ﷺ هغه وخت راته ښودلي وو ما هغه ياد ساتلی وو نو امام حسين رضي الله عنه هم هغه وخت شهيد کړل سو. بيهقي او احمد

**تخريج**: مسند الامام احمد ۱\۲۴۲.

## اهل بيت محبوب لرئ

﴿۵۹۲۲﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحِبُّوا اللهَ لِمَا يَغْذُوْكُمْ مِنْ نِعَمِهِ وَأَحِبُّوْنِيْ بِحُبِّ اللهِ وَأَحِبُّوْا أَهْلَ بَيْتِيْ لِحُبِّيْ. رواه الترمذي.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: تاسو د خدای جل جلاله سره محبت کوئ ځکه چي هغه غذا او خپل نعمتونه در کوي او زما سره ځکه محبت کوئ چي تاسو د

خدای ﷻ سره محبت كوئ او زما اهل بيت زما د محبت په وجه محبوب گڼئ . ترمذي.

**تخريج:** سنن الترمذي ۵\۶۲۲، رقم: ۳۷۸۹.

**د لغاتو حل:** يغذوكم نعمه: اي من اي نعمة.

**تشريح:** د خپلو نعمتونو څخه رزق رسوي: يعني تاسو په داسي ډول ډول نعمتو سره نازوي چي په هغه سره ستاسو روزنه هم كيږي او تاسو ته ډول ډول خوندونه هم تر لاسه كيږي ، كه الله ﷻ پر تاسو د خپلو نعمتو دروازې بندي كړي او د خپلو خزانو څخه تاسو ته رزق نه دركوي نو نه تاسو ژوندي پاته كيداى سئ او نه د خوراك او څښاك خوند تر لاسه كولاى سئ، تاسو چي څه خورئ او څښئ هغه ټول د هغه له خوا تاسو ته رسيږي، په قرآن كريم كي دي: فما بكم من نعمة فمن الله، خلاصه دا كه.كه چيري تاسو د الله ﷻ سره مينه يوازي له دې كبله كوئ چي هغه ستاسو پالونكى دى نو د هغه سره به خامخا مينه وكړئ كنه نو الله ﷻ د عارفينو په نزد محبوب لذاته وصفاته دى د هغه سره په هر حالت كي مينه درلودل پكار دي كه څه هم هغه نعمتونه دركړي يا نه، نو دغه حديث د معنوي طرز په اعتبار داسي دى لكه څرنگه چي د الله ﷻ دغه ارشاد : (فليعبدوا رب هذا البيت) .

او له دې كبله چي تاسو د الله ﷻ سره مينه لرئ: يعني كله چي هغه سبب ثابت او ظاهر سو چي د هغه په وجه د الله ﷻ سره مينه كول لازمي كيږئ او په دې وجه تاسو د الله ﷻ سره مينه لرئ نو بيا زما سره هم مينه كوئ ځكه چي د محبوب، محبوب خپل محبوب وي او ځكه الله ﷻ په قرآن كريم كي فرمايلي دي : (قل ان كنتم تحبون الله فاتبعوني يحببكم الله) .

شيخ عبدالحق دهلوي رحمه الله په خپله شرح كي د (لحب الله) په اړه داسي ليكلي دي چي تاسو زما سره له دې كبله مينه كوئ چي تاسو د الله ﷻ سره مينه كوئ يا دا چي زما سره له دې كبله مينه كوئ چي الله ﷻ زما سره مينه كوي . زما اهل بيتو ته زما د ميني په وجه: ددې يو مطلب خو دادى چي زه د خپلو اهل بيتو سره مينه لرم نو تاسو هم زما د اهل بيتو سره مينه ولرئ او دوهم مطلب دا چي تاسو زما سره مينه وكړئ نو زما د اهل بيتو سره هم مينه وكړئ .

## په اهل بيت او د نوح عليه السلام په كښتۍ كي مماثلت

﴿۵۹۲۳﴾: وَعَنْ أَبِيْ ذَرٍ أَنَّهُ قَالَ وَهُوَ آخِذٌ بِبَابِ الْكَعْبَةِ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ أَلاَ إِنَّ مَثَلَ أَهْلِ بَيْتِيْ فِيْكُمْ مَثَلُ سَفِيْنَةِ نُوْحٍ مَنْ رَكِبَهَا

نَجَا وَمَنْ تَخَلَّفَ عَنْهَا هَلَكَ . رواه أحمد.

د حضرت ابوذر رضي الله عنه څخه روايت دى په داسي حال كي چي ده د كعبې دروازه نيولې وه دا بيان يې وكړ چي ما د نبي كريم ﷺ څخه اوريدلي دي چي خبردار سئ ! زما اهل بيت ستاسو لپاره د نوح عليه السلام د كښتۍ په ډول دي څوك چي په كښتۍ كي سپور سو نو هغه خلاصون تر لاسه كړ او څوك چي په كښتۍ كي د سپريدو څخه پاته سو هغه هلاك سو . احمد

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۱۵۷/۳.

**تشريح**: مطلب دا چي د طوفان نوح په وخت كي هغه كسان ژوندي او سلامت پاته سول چي حضرت نوح عليه السلام په كښتۍ كي سپاره سول او څوك چي په كښتۍ كي سپور نه سو نو هغه د هلاك كېدو څخه ونه ساتل سو، د طوفان لوړو څپو د هغه نوم او نښام ختم كړ، همدارنګه د امت محمديه په حق كي اهل بيت محمد يو داسي پناه ګاه دى چي كوم څوك د هغوى د مهربانۍ لمن ونيسي ، څوك چي د هغوى اكرام او احترام او دهغوى مينه لازم كړي نو هغه په دارينو كي خلاصون تر لاسه كړ، او كوم څوك چي د هغوى د ميني لمن او متابعت پرېږدي نو هغه په دواړو جهانو كي د هلاكېدو څخه ژغورل كېداى نه سي كه څه هم هر څومره مال مصرف كړي، هر څومره ستر طاقت د ځان سره يو ځاى كړي ، نو رسول الله ﷺ د دنيا او د دنيا د شيانو يعني ددغه ځاى د فريب ، كفر، شرك، ګمراهيو ، بدعاتو او جهالت تيارو او فاسدو خواهشاتو ته داسي د ژور درياب سره تشبيه وركړل چي دهغه پر سطحه باندي څپې وي، د هغه سربېره په فضاء كي توري وريځي جمع وي، ځلورو خواوو ته تياره وي او هغه درياب ټولي مځكي راګير كړي وي او بيا رسول الله ﷺ خبردار كړ چي د هغه درياب د هلاكت څخه هغه څوك ژوندى پاته كېداى سي او خلاصون تر لاسه كولاى سي چي زما د اهل بيتو د ميني په كښتۍ كي سپور سي،

ددې په معنوي سياق كي كه وكتل سي نو دغه حديث چي په هغه كي فرمايل سوي دي: اصحابي مثل النجوم من اقتدى بشئ منه اهتدى، او كمال قال ، او دغه ارشاد چي زما اهل بيت د نوح عليه السلام د كښتۍ په ډول دى، د دغه دواړو روايتو په منځ كي ژور تعلق پيدا كيږي او دغه تعلق مخته په ابښودو سره امام فخر الدين رازي رحمه الله په خپل تفسير كي ډېره خوږه خبره ليكلې ده چي موږ اهل سنت والجماعت، الحمد لله، د اهل بيتو د ميني په كښتۍ كي سپاره سوو او هدايت د لاري د ستورو يعني اصحاب محمد ﷺ په ذريعه مو لاره تر لاسه كړل نو موږ د هلاكت د تيارو او د دوږخ څخه د خلاصون او د هغه ځاى د هميشني نعمتونو ته د رسېدو د لاري تر

لاسه کولو امید لرو، ددې څخه دا نتیجه راوځي چې کوم څوک په دغه کښتئ کې بالکل سپور سوی نه وي لکه خوارج، نو هغه د هلاکېدونکو سره په اول پړاو کې هلاک سول، او کوم څوک چې په غه کښتئ کې سپور سو مګر د هدایت د ستورو په ذریعه د لارې څخه محروم سو لکه روافض نو هغوی په ګمراهۍ او تاریکۍ کې داسې پاته سول چې ژوند او سلامت راوتل یې ناممکن دي.

===========

# بَابُ مَنَاقِبِ اَزْوَاجِ النَّبِيِّ ﷺ و رضي الله عنهن

## (د نبي کريم ﷺ د بيبيانو د مناقبو بيان)

نبي کريم ﷺ لومړنی نکاح په مکه مکرمه کې د بي بي خديجې رضي الله عنها بنت خويلد رضي الله عنها سره وکړل، هغه وخت د رسول الله ﷺ عمر پنځه ويشت (۲۵) کاله او د بي بي خديجې رضي الله عنها عمر څلوېښت (۴۰) کاله وو، بي بي خديجه رضي الله عنها د هجرت څخه درې کاله مخکې وفات سول، د هغې څخه وروسته په مکه کې رسول الله ﷺ د يوې پنځوس کلنې ښځې بي بي سوده بنت زمعه رضي الله عنها سره نکاح وکړل او هغه وخت د رسول الله ﷺ عمر تقريبا پنځوس (۵۰) کاله وو، د بي بي سوده رضي الله عنها د وفات کال ۵۴ هجري يا د يوه قول مطابق ۴۱ هجري کال دی، د بي بي عائشې بنت ابوبکر رضي الله عنهما سره د رسول الله ﷺ نکاح په مکه کې په لسم هجري نبوي کال کې وسول کله چې هغه د شپږو کالو وه او کله چې هغه په رخصت کېدو سره د رسول الله ﷺ کور ته راغلل نو هغه وخت يې عمر نهه کاله وو، د هغې د وفات نېټه ۵۵ هجري کال يا ۵۸ هجري کال دی، د بي بي حفصه بنت عمر رضي الله عنهما سره د رسول الله ﷺ نکاح په دوهم يا دريم هجري کال کې وسول او هغه په ۴۱ يا ۴۵ هجري کال کې وفات سوه، د بي بي زينت بنت خزيمه رضي الله عنها سره د رسول الله ﷺ نکاح په دريم هجري کال کې وسول او د نکاح څخه ځو مياشتي وروسته په ۴ هجري کال کې او د يوه روايت مطابق په دريم هجري کال کې وفات سول.

د بي بي ام سلمه بنت اميه مخزومي رضي الله عنها سره د رسول الله ﷺ نکاح په دريم يا څلورم هجري کال کې وسول او په ۵۹ هجري کال کې وفات سول، اد يوه قول مطابق په ۶۲ هجري کال کې وفات سول، بي بي زينب بنت جحش په پنځم هجري کې د رسول الله ﷺ په زوجيت کې راغلل او په ۲۰ هجري کال يا ۲۱ کې وفات سول، د رسول الله ﷺ د وصال څخه وروسته تر ټولو مخکې

چي کومه بي بي وفات سوې ده هغه هم بي بي زينب ﷺ ده، بي بي ام حبيبه ﷺ چي د سفيان لور او د معاويه خور ده مخکي د عبدالله بن جحش په نکاح کي وه ، دواړه ښځه او خاوند د مکې څخه په هجرت کولو حبشې ته ولاړل ، هلته عبدالله بن جحش عيسائي مذهب قبول کړ او هم هلته مړ سو، بي بي ام حبيبه ﷺ پر خپل مذهب اسلام باندي قائمه وه، په شپږم هجري کال کي د نجاشي پاچا د هغې نکاح د رسول الله ﷺ سره وکړل او د خپل ځانه يې د هغې مهر چي څلور زره درهمه وو ادا کړ، بي بي ام حبيبه ﷺ په ۴۴ هجري کال کي وفات سول، بي بي جويريه ﷺ د مريسيع په غزا کي چي غزوه بني مصطلق هم ورته وايي او په ۶ م هجري کي کال کي وفات سوې ده، نوموړي په بنديانو کي راغلل او رسول الله ﷺ هغه ازاده کړل او بيا يې ورسره نکاح وکړل، هغه په ۵۶م هجري کال کي وفات سوه، بي بي ميمونه ﷺ چي د حضرت ابن عباس ﷺ خاله ده په اووم هجري کال کي د رسول الله ﷺ په زوجيت مشرفه سول ، هغه په ۶۱ يا ۵۱ هجري کال کي وفات سول، بي بي صفيه بنت حيى بن اخطب په اووم هجري کال کي د خيبر په غزا کي په بنديانو کي راغلل، هغه وخت د هغې عمر اووه لس کاله وو ، رسول الله ﷺ هغه ازاده کړل او بيا يې ورسره نکاح وکړل، نوموړې په ۵۰ هجري کي يا د يوه روايت مطابق په ۵۲ هجري کي وفات سول، د رسول الله ﷺ د يوولس بيبيانو دا هغه شمېر دی چي پر هغه د روايات‌و اتفاق دی ، د دوولسمي زوجې يعني بي بي ريحانه ﷺ په اړه اختلاف دی، ځينو حضراتو مينزه گرځولې ده مگر په ځينو نورو روايتو کي دي چي بي بي ريحانه ﷺ د يو يهودي کورنۍ ښځه وه چي په بنديانو کي راغلې وه ، رسول الله ﷺ هغه ازاده کړل او په شپږم کال کي يې د هغې سره نکاح وکړل، په هر حال رسول الله ﷺ د دغه ټولو ښځو سره چي د امت مينځي دي نکاح وکړل او د ټولو سره يې دخول هم وکړ.

د شلو يا تر شلو زياتو داسي ښځو ذکر هم په روايتو کي راغلى دى چي د هغوى سره رسول الله ﷺ نکاح وکړل مگر د دخول (کوروالى) کولو مخکي د بېلوالي نوبت راغلى، ځيني داسي ښځي هم وې چي د هغوى سره د نکاح خبري وسوې مگر د هغوى سره نکاح ونه سول، همدارنګه په ځينو روايتو کي د داسي ښځو ذکر هم راغلى دى چي د رسول الله ﷺ په نکاح کي وې او کوم وخت چي دغه آيت کريمه : (يا ايها النبي قل لازواجک...الخ) نازل سو نو هغوى دنيا ته پر آخرت ترجيح ورکړل او د رسول الله ﷺ څخه يې بېلوالى اختيار کړ، او کوم چي د رسول الله ﷺ د مينځو تعلق دى نو د هغوى شمېر څلور بيانيږي چي په هغوى کي تر ټولو مشهوره بي بي ماريه قطبيه ﷺ ده چي د هغې د نس څخه ابراهيم بن محمد رسول الله ﷺ پيدا سوى وو ، په ۱۶ هجري

کال کي وفات سول ، دوهمه هغه بي بي ريحانه بنت سمون يا بنت زيد وه چي دهغې په اړه د ځينو وينا ده چي هغه د رسول الله ﷺ په نكاح كي نه وه بلكه مينزه وه ، رسول الله ﷺ هغه ازاده كړې نه وه او په سبب د ملک يمين يې د هغې سره كوروالي كول، په پاته دوو كي يوه خو هغه مينزه وه چي ام المؤمنين بي بي زينب بنت جحش د تحفې په توګه رسول الله ﷺ ته وركړې وه او يوه مينزه هغه وه چي په يوې غزا كي په بندي كېدو سره راغلې وه.

ذكر سوى تفصيل د شيخ عبدالحق دهلوي رحمه الله د شرح مشكوة څخه اخيستل سوى دى چي هغه د جامع الاصول په حواله سره جمع كړى دى، په دې كي شک نسته چي د رسول الله ﷺ د بيبيانو شمېر د هغوى د نكاح ترتيب او د رسول الله ﷺ د وصال څخه وروسته د وفات كېدونكو بيبيانو عمرونه ، د كومو بيبيانو سره چي يې دخول ونه كړ يا كومو ښځو ته يې د نكاح پيغام وليږى مګر د هغوى سره نكاح ونه سول د هغوى ټولو د شمېر په اړه د علماؤ مختلف قولونه دي او په عامو روايتو كي لوى اختلاف لېدل كيږي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

### د بي بي خديجة الكبرى رضي الله عنها فضيلت

﴿۵۹۲۴﴾: عَنْ عَلِيٍّ قَالَ سَمِعْتُ رسول الله صَلَى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ خَيْرُ نِسَائِهَا مَرْيَمُ ابْنَةُ عِمْرَانَ وَخَيْرُ نِسَائِهَا خَدِيجَةُ بنت خويلد. متفق عليه وفي رواية قال ابو كريب واشار وكيع الى السماء والارض.

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دى چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي فرمايل يې : مريم بنت عمران د ټول امت په ښځو كي غوره وه، او ددې امت په ښځو كي بي بي خديجة بنت خويلد په ټولو كي غوره ده ، بخاري ، او مسلم او په يوه روايت كي ابو كريب وايي چي وكيع آسمان او ځمكي ته اشاره وكړه .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۶\۴۷۰، رقم: ۳۴۳۲، ومسلم ۴\۱۸۸۶، رقم: ۶۹- ۲۴۳۰.

**تشريح**: ددغه حديث څخه دا معلومه سول چي بي بي مريم عليها السلام چي د حضرت عيسى عليه السلام مور مباركه ده، په خپل امت كي او ام المؤمنين بي بي خديجه رحمه الله په خپل امت (امت محمديه) كي تر ټولو ښځو افضلي دي مګر ددې څخه دا نه څرګنديږي چي خپله په هغوى

دواړو کي کومه يوه تر بلي افضله ده ، ايا بي بي خديجه ﷺ افضله وه که بي بي مريم عليها السلام افضله وه؟ بيا هم په تفسير نسفي کي ليکلي دي چي د صحيح قول مطابق د بي بي مريم عليها السلام څخه بي بي خديجه او بي بي عائشه ﷺ افضلي دي ځکه چي بي بي مريم عليه السلام خو پيغمبر نه ده او دا هم فيصله سوې خبره ده چي دغه امت مرحومه د نورو ټولو امتونو څخه غوره او افضل دی، په دې اړه د علماؤ اختلاف دی ، همدارنګه پر بي بي عائشې ﷺ باندي د بي بي فاطمې ﷺ فضيلت هم مختلف فيه دی او د امام مالک ﷺ قول دی چي فاطمه ﷺ د پيغمبر د ځيګر ټوټه ده او زه د پيغمبر ﷺ د ځيګر پر ټوټې باندي هيچا ته فضيلت نه ورکوم.

﴿۵۹۲۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ أَتَى جِبْرِيلُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ

د حضرت ابوهريره ﷺ څخه روايت دی چي جبرائيل ﷺ رسول الله ﷺ ته راغلی

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ هَذِهِ خَدِيجَةُ قَدْ أَتَتْ مَعَهَا إِنَاءٌ فِيهِ إِدَامٌ أَوْ

او وه يې ويل : اي دالله رسوله ! بي بي خديجه را روانه ده (يعني غار حرا ته) د هغې سره لوښی دی چي په هغه کي خوراک دی

طَعَامٌ أَوْ شَرَابٌ فَإِذَا هِيَ أَتَتْكَ فَاقْرَأْ عَلَيْهَا السَّلَامَ مِنْ رَبِّهَا وَمِنِّي وَبَشِّرْهَا بِبَيْتٍ فِي الْجَنَّةِ مِنْ قَصَبٍ لَا صَخَبَ فِيهِ وَلَا نَصَبَ. متفق عليه.

کله چي هغه تاسو ته راسي نو تاسو هغې ته د هغې د پروردګار د لوري او زما د لوري سلام ورسوئ، او دا زيری ورکړئ چي د هغې لپاره په جنت کي د ملغلرو يو محل دی چي په هغه کي نه شور سته او نه غم. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۷\۱۳۳، رقم: ۳۸۲۰، ومسلم ۴\۱۸۸۷، رقم: ۲۴۳۲.

**دلغاتوحل**: ادام: اي مع خبز. نصب: اي لايکون لها شاغل يشغلها من لذائذ الجنة.

**تشريح**: دغه پېښه د هغه وخت ده کله چي به رسول الله ﷺ د خلوت لپاره غار حراء ته تلی او څو ورځي به هم هلته په عبادت او ذکر بوخت وو ، رسول الله ﷺ به د ځان سره د خوراک او څښناک شيان وړل چي د لوږي او تندي غلبه په خلوت کي خنډ نه سي، يوه ورځ بي بي خديجې ﷺ د

خوراک او څښاک د سامان سره غار حراء ته ورسېدل او په ذکر سوې سعادت او زيري مشرفه سول، څرګنده دي وي چي په عامه توګه خو دا ثابته ده چي د رسول الله ﷺ د خلوت لپاره د حراء غار ته تلل او هلته په ذکر کي بوخت کېدل د هغه زمانې معمول وو کله چي رسول الله ﷺ په نبوت سره مشرف سوی نه وو، او رسول الله ﷺ ته د حضرت جبرائيل عليه السلام تګ راتګ پيل سوی نه وو، مګر په دې کي استبعاد نسته چي د نبوت پر مرتبې باندي د فائز کېدو او د حضرت جبرائيل عليه السلام د راتګ څخه وروسته هم تر څو ورځو پوري رسول الله ﷺ دغه معمول جاري ساتلی وي او په هغه ورځو کي به بي بي خديجې رضي الله عنها يوه ورځ د رسول الله ﷺ په خوراک اخيستلو غار حراء ته ورغلې وي.

هغې ته سلام ووايه: علماؤ ليکلي دي چي د رب العالمين سلام داسي مشرف دی چي د بي بي خديجې رضي الله عنها څخه ماسوا په دنيا کي هيڅ يوې ښځي ته تر لاسه نه دی، يو وار حضرت جبرائيل عليه السلام هم بي بي عائشې رضي الله عنها ته سلام ويلي وو مګر يوازي د خپل ځانه ځکه دغه حديث پر بي بي عائشې رضي الله عنها باندي د بي بي خديجې رضي الله عنها د فضيلت دليل ګرځول کيږي.

چي د هغې لپاره په جنت کي د ملغلرو يو محل دی: د قصب اطلاق پر هغه ملغلري باندي کيږي چي ډيره لويه وي او دننه خالي وي، په روايتو کي راغلي دي چي د جنت پر ماڼيو باندي کومه ګنبده وي هغه به اصل کي د قبې (ګنبدي) په ډول د لوی ملغلري وي چي د هغه مينځ کي به خالي وي، ددې جملې يو مطلب خو دا کيدای سي چي د هغه ماڼي ګنبده به يوه ملغلره وي يا دا چي هغه ټول محل به د ملغلرو وي، يعني دومره لويه ملغلره به وي چي د هغې دننه خلاء به پر يوه محل باندي محيط وي.

چي په هغه کي نه شور سته او نه غم: په خاصه توګه ددغه دواړو شيانو نفي ځکه سوې ده چي په دنيوي کورو کي او سېدونکو ته د ناخوښو شيانو سره مخامخ کېدل وي هغه شور او هغه تکليف او غم دی چي د کور په جوړولو کي رائحي، نو الله جل جلاله وښودل چي د جنت محلونه به د ناخوښو شيانو څخه خالي وي او علماؤ ليکلي دي چي د بي بي خديجې رضي الله عنها په حق کي دغه زيری د هغه مقام اعلان وو چي هغې ته ددغه خبري په بدله کي ورکړل سو چي هغې د رسول الله ﷺ دعوت تر ټولو مخکي د زړه له اخلاصه ومنی، هغې پر الهي اواز باندي لبيک ووايه او خپل پلرنی مذهب يې پرېښود چي نه خو د شور سبب سو او نه د بحث، تکرار او جګړې.

## د بي بي خديجې ﷺ خاص فضيلت

﴿۵۹۲۶﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ مَا غِرْتُ عَلَى أَحَدٍ مِنْ نِسَاءِ

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دی چې د نبي کريم ﷺ په بيبيانو کې ما د يوې بي بي سره

النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا غِرْتُ عَلَى خَدِيجَةَ وَمَا رَأَيْتُهَا وَلَكِنْ كَانَ يُكْثِرُ

هم دومره سيالي نه ده کړې لکه د بي بي خديجې سره حال دا چې هغه ما ليدلې هم نه وه مګر

ذِكْرَهَا وَرُبَّمَا ذَبَحَ الشَّاةَ ثُمَّ يُقَطِّعُهَا أَعْضَاءً ثُمَّ يَبْعَثُهَا فِي صَدَائِقِ خَدِيجَةَ

رسول الله ﷺ به هغه ډيره يادول، او کله چې به رسول الله ﷺ يو پسه ذبح کړی نو د هغه غوښه به يې ټوټې ټوټې کړه او د بي بي خديجې ملګرو ته به يې ليږل ،

فَرُبَّمَا قُلْتُ لَهُ كَأَنَّهُ لَمْ يَكُنْ فِي الدُّنْيَا امْرَأَةٌ إِلَّا خَدِيجَةُ فَيَقُولُ إِنَّهَا كَانَتْ وَكَانَتْ وَكَانَ لِي مِنْهَا وَلَدٌ. متفق عليه.

ما به رسول الله ﷺ ته ځيني وخت ويل ستاسو په خيال کې د خديجې څخه پرته په دنيا کې بله ښځه نسته، رسول الله ﷺ به ددې په جواب کې فرمايل : خديجه داسې وه او خديجه داسې وه او د هغې څخه زما اولاد دی (يعني دهغې تعريف به يې کوی) . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۱۳۳، رقم: ۳۸۱۸، ومسلم ۴\۱۸۸۸، رقم: ۷۵- ۲۴۳۵.

**د لغاتو حل**: صدائق: اي اصدقائها (ملګري يې).

**تشريح**: داسې وه، يعني ډېره عابده او پرهيزګاره وه، روژې به يې نيولې ، د شپې به يې عبادت کوی ، زما په خدمت او مرسته کې يې ډېر تکليفونه زغمل، ښه چلن او احسان به يې کوی او داسې نور، مقصد د هغې حيثيت او فضيلت په زيات بليغ انداز کې وړاندې کول او دې ته اشاره کول وو چې د هغې اوصاف او ښېګڼې د شمېر او قياس څخه وتلې دي .

زما اولاد هم د هغې د نس څخه دی: په دې سره د بي بي خديجې ﷺ هغه خاص فضيلت ته اشاره کول مقصد وو چې د هغې د همسرۍ دعوه د رسول الله ﷺ هيڅ يوې بي بي نسوه کولای، د رسول الله ﷺ ټول اولاد د بي بي خديجې ﷺ د نس څخه وو او ماسوا د ابراهيم بن محمد څخه چې د ماريه قبطيه له انس څخه وو ، او هغه هم د رسول الله ﷺ مينزه وه او اولاد هم داسې چې په

هغه کي د بي بي فاطمې ﷺ په ډول لور هم شامله وه چي د هغې د فضائلو او مناقبو شمېر نسته، په حديث کي بلي خوا ته دا نکته هم موجود ده چي د ښځو خاص مقصد او لويه ګټه د هغوی څخه اولاد کېدل دي.

**بي بي خديجة الكبرى** ﷺ: ام المؤمنين بي بي خديجة الكبرى ﷺ د خويلد بن اسد لور ده چي د عربو مشهور تجار او د قريشو نامتو سړی وو، د بي بي خديجې ﷺ اوله نکاح د ابن هاله بن زراره سره سوې وه، د هغه د وفات کېدو وروسته دوهمه نکاح يې د عتيق بن عائذ سره سوې وه، او دريمه نکاح يې د رسول الله ﷺ سره وسول او هغه وخت يې عمر ۴۰ کالو وو، او د نبي کريم ﷺ دغه اوله نکاح وه، رسول الله ﷺ نه تر هغې مخکي د بلي ښځي سره نکاح کړې وه او نه يې د هغې په موجودتيا کي د بلي ښځي سره نکاح وکړل.

بي بي خديجې ﷺ ته د اول مسلمانېدو شرف حاصل دی يعني په ټولو نارينوو او ښځينوو کي تر ټولو مخکي هغې اسلام قبول کړی دی، د هغې وفات د ۶۵ کالو په عمر د رسول الله ﷺ د مدينې د هجرت څخه پنځه کاله مخکي په مکه معظمه کي وسو، ځينو حضراتو د هغې د وفات کال د هجرت څخه څلور کاله مخکي او ځينو درې کاله مخکي يعني په لسم نبوي کال کي ليکلی دی، د رسول الله ﷺ سره د هغې د ملګرتيا وخت ۲۴ کاله او شپږ يا پنځه مياشتي وو.

## د بي بي عائشې ﷺ فضيلت

﴿۵۹۲۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ إِنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا عَائِشَةُ هَذَا جِبْرِيلُ يُقْرِئُكِ السَّلَامَ قَالت وَعَلَيْهِ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهُ تَرَى مَا لَا أَرَى. متفق عليه.

د حضرت ابو سلمه ﷺ څخه روايت دی چي د بي بي عائشې (رض) بيان دی چي رسول الله ﷺ يوه ورځ ما ته وفرمايل: اې عائشې! دا جبرائيل ﷺ دی تا ته سلام وايي، بي بي عائشه وايي ما وويل وعليه السلام ورحمة الله، بي بي عائشه ﷺ وايي رسول الله ﷺ هغه ليدی کوم چي ما نه ليدی. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۱۰٦، رقم: ۳۷٦۸، ومسلم ۴\۱۸۹۵، رقم: ۹۰- ۲۴۴۷.

## بي بي عائشه رضي الله عنها په خوب ليدل

﴿۵۹۲۸﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَيْتُكِ

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ يوه ورځ ما ته وفرمايل : ما

فِي الْمَنَامِ ثلث ليال يَجِيءُ بِكِ الْمَلَكُ فِي سَرَقَةٍ مِنْ حَرِيرٍ فَقَالَ لِي هٰذِهِ

درې شپې پر له پسې په خوب کي وليدل چي ته به ملائکي د ريښم په يوې ټوټې کي راوړلې او

امْرَأَتُكَ فَكَشَفْتُ عَنْ وَجْهِكِ الثَّوْبَ فَإِذَا أَنْتِ هِيَ فَقُلْتُ إِنْ يَكُ هٰذَا مِنْ

عِنْدِ اللّٰهِ يُمْضِهِ. متفق عليه.

ما ته به يې ويل دا ستا ښځه ده ما به ستا د مخ څخه پلو ليري کړ او بعينه ته به مي ليدلې، بيا به ما په خپل زړه کي ويل که دا خوب د خداى جل جلاله د لوري وي نو خداى جل جلاله به يې پوره کړي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۷\۲۲۳، رقم: ۳۸۹۵، ومسلم ۴\۱۸۸۹، رقم: ۷۹ – ۲۴۳۸.

**د لغاتو حل**: سرقة: اي قطعة من جيد الحرير (د ورېښم يوه ښه ټوټه).

**تشريح**: د ريښم په يوې ټوټې کي: په يوه روايت کي بي بي عائشې رضي الله عنها داسي بيان کړى دى چي کله د الله جل جلاله له خوا رسول الله ﷺ ته حکم وسو چي زما (عائشې) سره نکاح وکړي نو حضرت جبرائيل عليه السلام پر خپل ورغوي باندي زما عکس رسول الله ﷺ ته (په خوب کي) راوړ، نو د دغه دواړو روايتو تطبيق دادى چي عکس د ريښمو پر يوې ټوټې باندي وو او هغه د ريښمو ټوټه د حضرت جبرائيل عليه السلام پر ورغوي وه، او دا هم کيداى سي چي حضرت جبرائيل عليه السلام د بي بي عائشې رضي الله عنها عکس دوه راوړى وي يو وار يې د ريښمو په يوې ټوټې کي او بل وار پر خپل ورغوي باندي، او دا هم کيداى سي چي حضرت جبرائيل عليه السلام خو پر خپل ورغوي باندي عکس راوړى دى او بلي ملائکي د ريښمو پر يوې ټوټې باندي راوړى وي.

د دغه جملې يوه معنى خو هغه ده چي مخکي تېره سول او دوهمه معنى يې دا هم کېداى سي چي (د نکاح او واده څخه وروسته) کله چي ما ستا د مخ څخه پرده پورته کړل نو وه مي لېدل چي دا خو ستا مخ دى (کوم چي ما په خوب کي لېدلى وو).

که دغه خوب د الله جل جلاله له خوا وي: که چيري دلته دا سوال پيدا سي چي په دغه خوب کي د

شک څرګندول څه معنی لري، ځکه د انبياء عليهم السلام، په خاصه توګه د نبي كريم ﷺ خوب د وحي يو صورت وي چي د هغه په حقيقت کي هيڅ شک و شبه نه وي، نو ددې جواب علماؤ دا ليکلی دی که چيري د خوب دغه پېښه د رسول الله ﷺ د نبوت څخه مخکي ومنل سي نو بيا خو سوال نه پيدا کيږي ، مګر په هغه صورت کي به دا سوال پيدا کيږي چي د ملائکي راتلل ددې خبري خلاف دي چي رسول الله ﷺ دغه خوب دنبوت څخه مخکي لېدلی وو ، مګر که چيري دا خبره په ذهن کي وي چي ملائکه په خوب لېدل د خاص خوب لېدلو سره مخصوص نه وي ، د نبي سره چي کوم شی مخصوص دی هغه د ملائکي د الله ﷻ له خوا وحي راوړل دي نو دا سوال هم معنی نه لري، او که دغه خوب د نبوت څخه وروسته سي نو بيا دا ويل کيږي چي رسول الله ﷺ دغه الفاظ د شک څرګندولو لپاره نه بلکه ددغه پېښي د يقيني کېدو او د هغه د ثابتولو لپاره فرمايلي دي، دغه ډول جمله په داسي وخت کي استعماليږي کله چي يوه خبره متحقق او ثابت سوې وي، لکه يو حاکم داسي ووايي: که زه حاکم يم نو وګورئ چي زه به څه نه کوم، او ځينو حضراتو دا ليکلي دي چي په دغه جمله کي کوم شک دی هغه په اصل کي د خوب سره متعلق نه دی بلکه دتعبير په اړه دی ، يا دا چي معلومه نه ده چي دښځي څخه مراد دنيا ښځه ده که د آخرت.

**بي بي عائشه صديقه ؓ** : بي بي عائشه صديقه ؓ د حضرت ابوبکر صديق ؓ لور ده، نبي کريم ﷺ هغې ته پيغام وليږی او د هجرت څخه درې کاله مخکي په ۱۰م نبوي کال کي په مکه کي د هغې سره نکاح وکړل، کله چي بي بي عائشه ؓ د شوال په مياشت کي په دوهم هجري کال په رخصت کېدو سره په مدينه کي د رسول الله ﷺ کور ته راغلل نو هغه وخت د هغې عمر نهه کاله وو، ځينو حضراتو دا ليکلي دي چي د رسول الله ﷺ مدينې ته د راتلو څخه اووه مياشتي وروسته د بي بي عائشې ؓ په رخصت کېدو سره په مدينه منوره کي د رسول الله ﷺ کور ته راغلل ، د رسول الله ﷺ ملګرتيا هغې ته نهه کاله په برخه سول ، د رسول الله ﷺ د وفات په وخت کي د هغې عمر اتلس کاله وو، په امهات المؤمنين کي دا هغه پاکه ښځه ده چي د هغې اوله نکاح د رسول الله ﷺ سره وسول ، رسول الله ﷺ ددې څخه ماسوا د بلي هيڅ پيغلي ښځي سره نکاح نه وه کړې.

بي بي عائشه ؓ د علم او پوهي، ذاتي ښېګڼو او کمالاتو په اعتبار يوازينی مقام لري، ستره عالمه، فاضله، فصيحه او فقيه وه، د رسول الله ﷺ ډېر زيات حديثونه د هغې په ياد وه او ډېر حديثونه روايت کوي، د شعر او ادب سره يې هم مينه درلودل ، د نامتو شاعرانو پر کلام باندي د هغې پوره نظر وو، او د اشعارو او ادبياتو يوه لويه برخه د هغې په ذهن کي وه، د

نوموړي څخه زيات شمېر صحابه كرامو او تابعينو حديثونه روايت كړي دي، د رمضان المبارك په اووه لسمه نېټه په ۵۷ يا ۵۸ م هجري كال كي او د يوه روايت مطابق د رمضان په اووه لسمه نېټه په ۵۷ م هجري كال كي د سه شنبې په شپه د ۶۳ كالو په عمر په مدينه منوره كي وفات سول، نوموړي د شپې د دفن كولو وصيت كړى وو نو د شپې په جنت البقيع كي دفن كړل سول ، حضرت ابو هريره ﷜ د جنازې لمونځ وركړ ، په هغه وخت كي د امير معاويه ﷜ له خوا مروان د مدينې منورې والي وو .

## د بي بي عائشې ﷞ امتيازي فضيلت

﴿۵۹۲۹﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ اِنَّ النَّاسَ كَانُوْا يَتَحَرَّوْنَ بِهَدَايَاهُمْ يَوْمَ عَائِشَةَ

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دى چي خلكو به رسول الله ﷺ ته د تحفو راوړلو لپاره د هغه ورځي انتظار كوى په كومه ورځ چي به رسول الله ﷺ د عائشې ﷞ سره وو .

يَبْتَغُوْنَ بِذَالِكَ مَرْضَاةَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَتْ اِنَّ نِسَاءَ

او ددې څخه د هغوى مقصد صرف د رسول الله ﷺ رضا وه، بي بي عائشه ﷞ وايي د رسول الله

رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُنَّ حِزْبَيْنِ فَحِزْبٌ فِيهِ عَائِشَةُ وَحَفْصَةُ

ﷺ د بيبيانو دوې ډلې وې ، په يوه ډله كي بي بي عائشه، بي بي حفصه،

وَصَفِيَّةُ وَسَوْدَةُ وَالْحِزْبُ الْآخَرُ أُمُّ سَلَمَةَ وَسَائِرُ نِسَاءِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

بي بي صفيه، او بي بي سوده وه او په دويمه ډله كي بي بي ام سلمه او نوري بيبياني وې، يو وار

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَلَّمَ حِزْبُ أُمِّ سَلَمَةَ فَقُلْنَ لَهَا كَلِّمِي رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د بي بي ام سلمه ډلي ام سلمه ته وويل چي هغه رسول الله ﷺ ته دا ووايي چي رسول الله ﷺ دي

وَسَلَّمَ يُكَلِّمُ النَّاسَ فَيَقُولُ مَنْ أَرَادَ أَنْ يُهْدِيَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

خلكو ته دا ووايي چي څوك رسول الله ﷺ ته تحفه را استوي نو را استوي دي پر كه څه هم

وَسَلَّمَ فَلْيُهْدِهِ إِلَيْهِ حَيْثُ كَانَ فَكَلَّمَتْهُ فَقَالَ لَهَا لَا تُؤْذِينِي فِي عَائِشَةَ فَإِنَّ

رسول الله ﷺ هغه وخت د هري بي بي سره وي، نو ام سلمه د رسول الله ﷺ سره په دې باره كي خبري وكړې رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: تاسو ما ته د عائشې ﷵ په اړه تكليف مه راكوئ

الْوَحْيَ لَمْ يَأْتِنِي وَأَنَا فِي ثَوْبِ امْرَأَةٍ إِلَّا عَائِشَةَ قَالَتْ فَقَالَتْ أَتُوبُ إِلَى اللهِ مِنْ

ځكه چي د عائشې ﷵ څخه پرته ما ته د هيڅ يوې بلې بي بي په جامو (بستر وغيره) كي وحي نه راځي ددې اوريدو سره ام سلمه وويل توبه كاږم خداى ﷻ ته

أَذَاكَ يَا رَسُولَ اللهِ ثُمَّ إِنَّهُنَّ دَعَوْنَ فَاطِمَةَ فَأَرْسَلْنَ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ

له خفګان ستا څخه اې د الله رسوله، بيا دام سلمه ډلې بي بي فاطمه ﷵ راوغوښتل او د هغې په ذريعه يې خپل دغه خواهش رسول الله ﷺ ته ورسوى،

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَلَّمَتْهُ فَقَالَ يَا بُنَيَّةُ أَلَا تُحِبِّينَ مَا أُحِبُّ قَالَتْ بَلَى قَالَ فَأَحِبِّي

په دې په باره كي بي بي فاطمې د رسول الله ﷺ سره خبري وكړې ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : اې لوري! ايا ته د هغې سره محبت نه كوې د چا سره چي زه محبت كوم، فاطمې وويل : هو، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : ته د عائشې سره مينه كوه ،

هٰذِهِ. متفق عليه وذكر حديث انس فضل عائشة على النساء في باب بدء الخلق برواية ابي موسى.

بخاري او مسلم، او د حضرت انس ﷛ حديث (فضل عائشة على النساء) په باب بداء الخلق كي په روايت د ابو موسى تير سوى دى .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲۰۵\۵، رقم: ۲۵۸۱، ومسلم ۱۸۹۱\۴، رقم: ۸۳- ۲۴۴۲.

**د لغاتو حل**: ارسلن: اي فبعثها .

**تشريح**: د بي بي عائشې ﷵ په ټولي كي چي كومي بيبياني وې د هغوى ټولو سرداره بي بي عائشه ﷵ وه، ځكه چي په ټولو ازواج مطهراتو كي د رسول الله ﷺ تر ټولو زياته خوښه بي بي عائشه ﷵ وه ، دا نكته د يادوني وړ ده چي ام المؤمنين بي بي حفصه بنت عمر فاروق ﷠ هم نه يوازي د بي بي عائشې ﷵ په ډله كي وه بلكه د هغې او بي بي عائشې ﷵ په منځ كي هغه ملګرتيا ، دوستي او اتفاق وو كوم چي د هغوى دواړو د پلرونو يعني حضرت ابوبكر صديق او

حضرت عمر فاروق رضي الله عنه په منځ کي وو، د بي بي ام سلمه رضي الله عنها په ډله کي چي کومي بيبياني وې د هغوی سرداره ام سلمه رضي الله عنها وه، دلته دا وضاحت کول ضروري دی چي خلکو د رسول الله ﷺ په خدمت کي د تحفو وړاندي کولو لپاره د بي بي عائشې رضي الله عنها د نوبت تخصيص کړی وو هغه د رسول الله ﷺ په اشاره سره نه وو او دا معامله د ازواج مطهراتو د حقوقو اړوند نه وه ځکه رسول الله ﷺ خلک له دې څخه نه منع کول. ماسوا د عائشې رضي الله عنها څخه: يعني يوازي عائشه رضي الله عنها زما داسي ښځه ده که زه د هغې په بستر کي يم نو هغه وخت هم پر ما وحي نازليږي، بي بي عائشه رضي الله عنها په يوه روايت کي فرمايي چي کله دغه آيت کريمه: (انک لا تهدي من احببت ....الخ) نازل سو نو هغه وخت زه د نبي کريم ﷺ سره په تلتک کي وم.

او د حضرت انس رضي الله عنه روايت سوی حديث يعني صاحب مصابيح دغه حديث د حضرت انس رضي الله عنه د روايت څخه دلته په دغه باب کي نقل کړی وو چي صاحب مشکوٰة هغه د حضرت موسی رضي الله عنه د روايت څخه په بدء الخلق کي شامل کړی دی، څرګنده دي وي چي په دغه حديث کي فرمايل سوي دي چي د عائشې رضي الله عنها فضيلت پر نورو ښځو باندي، دا مخکي بيان سوی دی، په دې اړه مختلف اقوال دي چي د ښځو څخه څه مراد دی، يو قول دادی چي د ښځو جنس يعني ټولي ښځي مراد دي، يو قول دادی چي ازواج مطهرات مراد دي او په دې کي هم اختلاف دی چي ايا ټولي ازواج مطهرات مراد دي او که د بي بي خديجې رضي الله عنها څخه ماسوا نوري ازواج مطهرات، مګر صحيح خبره دا معلوميږي چي بي بي عائشه رضي الله عنها د ټولو ښځو څخه افضله وه او د بي بي عائشې رضي الله عنها د علمي او عملي کمالاتو د جامع کېدو په سبب چي رسول الله ﷺ د ثريد (ښوروا) د مشابهت په ذريعه څرګنده کړل، په ښکاره توګه اطلاق هم پر دې دلالت کوي.

د باب په پيل کي د ازواج مطهراتو په اړه چي کومي خبري ذکر سوي دي او په خاصه توګه د بي بي خديجې او بي بي عائشې رضي الله عنهما په اړه يو څه تفصيل هم سوی دی، نو مناسبه ده چي د پاته ازواجو مطهراتو په اړه هم ځيني احوال ذکر کړل سي.

**بي بي سوده** رضي الله عنها: بي بي سوده بن زمعه رضي الله عنها د سکران بن عمرو بن عبدور په نکاح کي وه چي د هغې د اکا زوی وو، هغې مخکي اسلام قبول کړ بيا د هغې په ترغيب سره سکران هم مسلمان سو. دواړو ښځي او خاوند حبشې ته هجرت وکړ، په حبشه کي سکران وفات سو نو رسول الله ﷺ د هغې د زړه لپاره د بي بي خديجې رضي الله عنها د وفات څخه وروسته په لسم نبوي کال کي د هغې سره نکاح وکړل، تر هغه وخته پوري د رسول الله ﷺ او بي بي عائشې رضي الله عنها نکاح نه وه سوې، د بي بي سوده رضي الله عنها عمر پنځوس کاله وو، په يوه زمانه کي د ځينو حالاتو سره سم رسول

رسول الله ﷺ هغې ته طلاق ورکول وغوښتل مګر بیا د هغې په غوښتنه باندې رسول الله ﷺ خپله اراده منسوخ کړل، او د هغه وخت څخه هغې خپل نوبت بي بي عائشې ﷺ ته ورکړ، نوموړې په نولسم هجري کال کې د شوال په میاشت کې په مدینه کې وفات سول ، او په یوه روایت کې د هغې د وفات نېټه ۵۴م هجري کال او په یوه روایت کې ۴۱ م هجري کال منقول دی.

**بي بي حفصه** ﷺ : بي بي حفصه ﷺ د امیر المؤمنین حضرت عمر فاروق ﷺ لور ده، د مور نوم یې زینب بنت مظعون وو، نوموړې مخکې د حبیش بن عقافه سهمي په نکاح کې وه، د خپل خاوند حضرت حبیش ﷺ سره د مکې څخه په هجرت کولو مدینې ته راغلې وه، د بدر په غزا کې چې کله حبیش ﷺ شهید سو نو حضرت عمر فاروق ﷺ د هغې نکاح د حضرت ابوبکر صدیق یا حضرت عثمان ﷺ سره کول وغوښتل مګر هغوی دواړو انکار وکړ، بیا رسول الله ﷺ د نکاح پیغام ور ولیږی نو د شعبان په میاشت کې په دریم هجري کال کې یې د هغې سره نکاح وکړل، یو وخت رسول الله ﷺ هغې ته یو طلاق ورکړی وو مګر کله چې رسول الله ﷺ ته وحي راغلل چې حفصه ﷺ ته رجوع وکړه ځکه چې هغه ډېره عبادت کونکې، ډېره روژه نیونکې ښځه وه او هغه په جنت کې ستا ښځه ده، نو رسول الله ﷺ بېرته رجوع ورته وکړل، د صحابه کرامو او تابعینو یوې ډلې د هغې څخه د رسول الله ﷺ حدیثونه نقل کوي ، د ۶۰ کالو په عمر د شعبان په میاشت کې په ۴۵ م هجري کال کې وفات سول .

**بي بي زینب بنت خزیمه** ﷺ: د جاهلیت د زمانې څخه د ام المساکین په لقب مشهوره وه، اوله نکاح یې د عقیل سره او دوهمه نکاح یې د عبیده سره وسول، د دواړو څخه وروسته دریمه نکاح یې د حضرت عبدالله بن جحش ﷺ سره وسول، عبدالله بن جحش ﷺ د احد په غزا کې شهید سو نو په دریم هجري کال کې رسول الله ﷺ د زینب سره نکاح وکړل مګر د نکاح څخه دوه میاشتې وروسته وفات سول .

**بي بي ام سلمه** ﷺ : اصلي نوم یې هنده وو د نبي کریم ﷺ څخه مخکې د حضرت ابوسلمه عبدالله بن عبدالاسد په نکاح کې وه، د ابوسلمه ﷺ د وفات څخه وروسته په هم هغه کال یا په څلورم کال کې رسول الله ﷺ له هغې سره نکاح وکړل ، نوموړې د ۸۴ کالو په عمر په مدینه منوره کې په ۵۹ م هجري کال یا د یوه روایت مطابق په ۶۰ م هجري کال کې وفات سوه او په بقیع کې دفن کړل سول .

**بي بي زینب بنت جحش** ﷺ: د نوموړې مور، امیمه د عبدالمطلب لور او د رسول الله ﷺ عمه وه، مخکې زینب ﷺ د زید بن حارثه ﷺ په نکاح کې وه چې د رسول الله ﷺ ازاد سوی

غلام وو، د زید ﷺ د طلاق څخه وروسته رسول الله ﷺ د هغې سره نکاح وکړل، د هغې اصل نوم بره وو چې رسول الله ﷺ د هغې نوم بدل کړ او زینب یې کښېښود، د ۵۲ کالو په عمر کې یا د یوه روایت مطابق د ۵۷ کالو په عمر کې په مدینه منوره کې وفات سول، ددې په باره کې د بي بي عائشې ﷺ وینا ده چې ما هیڅ یوه ښځه داسې نه ده لیدلې چې په دین کې تر زینب غوره او د الله ﷻ څخه زیاته بېره لرونکې وي، د هغې څخه زیات رښتیا ویونکې وي، دخپلوانو سره زیاته ښه چلن کونکې وي، د الله ﷻ په لاره کې او د الله ﷻ د رضا لپاره د خپل او خپل نفس لګوونکې وي.

**بي بي ام حبيبه** ﷺ: اصلي نوم یې رمله وو، د ابوسفیان بن صخر لور ده، د مور نوم یې صفیه بنت ابو العاص وو چې د حضرت عثمان بن عفان ﷺ عمه ده، د دې د اول خاوند عبید الله بن جحش د مرګ څخه وروسته چې حبشې ته په تللو سره عیسائي سوی وو او د ارتداد په حالت کې مړ سو د حبشې پاچا نجاشي په شپږ هجري کال کې د هغې نکاح د رسول الله ﷺ سره وکړل، په ۴۴ م هجري کال کې په مدینه منوره کې وفات سول.

**بي بي جويريه** ﷺ: بي بي جویریه بنت الحارث په مریسیع غزا کې په بندیانو کې د حضرت ثابت بن قیس ﷺ په برخه راغلل ځکه هغه دا بندي کړې وه، بیا حضرت ثابت بن قیس ﷺ هغه مکاتبه کړې وه، رسول الله ﷺ د هغې د کتابت په ادا کولو سره هغه ازاده کړل او بیا یې ورسره نکاح وکړل، د هغې اصل نوم بره وو چې رسول الله ﷺ په جویریه بدل کړ، په ۵۶ م هجري کال کې د ۶۵ کالو په عمر وفات سول.

**بي بي صفيه** ﷺ: بي بي صفیه بنت حي بن اخطب بن شعبه د سبط هارون ﷺ څخه ده، د هغې اوله نکاح د کنانه بن ابي الحقیق (یهودي) سره سوې وه، د خیبر په غزا کې د محرم په میاشت په ۷ هجري کال کې کنانه ووژل سو او صفیه په بندیانو کې راغلل، رسول الله ﷺ د خپل ځان لپاره مخصوص کړل مګر ځیني حضرات وایي چې د حضرت دحیه کلبي ﷺ په برخه کې راغلې وه، وروسته رسول الله ﷺ د دحیه کلبي ﷺ څخه رانیول او بیا هغې اسلام قبول کړ نو رسول الله ﷺ ورسره نکاح وکړل، د هغې ازادي رسول الله ﷺ د هغې مهر وګرځوی، په ۵۰ م هجري کال کې وفات سول او په بقیع کې دفن سول.

**بي بي ميمونه** ﷺ: اصل نوم یې هره وو، رسول الله ﷺ د هغې نوم بدل کړ او دمیمونې نوم یې پر کښېښود، مخکې د مسعود بن عمرو ثقفي په نکاح کې وه، د څو ورځو وروسته هغه پرېښودل، بیا د ابودرهم د مرګ څخه وروسته رسول الله ﷺ د هغې سره په سرف کې نکاح

وكړل، كله چي رسول الله ﷺ د عمرة القضاء په سفر كي وو، او دا د اتفاق خبره ده چي په ٦١ م هجري كال كي يا د يوه روايت مطابق په ٥١ م هجري كال كي په هم هغه سرف نامي ځاى كي وفات سول، ام المؤمنين بي بي ميمونه رضي الله عنها د نبي كريم ﷺ آخري زوجه مباركه وه، د هغې يوه خور ام الفضل ده چي د حضرت عباس رضي الله عنه ښځه او حضرت عبد الله ابن عباس رضي الله عنه مور ده، او بله خوريې بي بي اسماء بنت عميس رضي الله عنها ده چي د جضرت جعفر طيار رضي الله عنه په كور كي وه.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي　(دوهم فصل)

### د دنيا څلور غوره ښځي

﴿٥٩٣٠﴾: عَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ حَسْبُكَ مِنْ نِسَاءِ الْعَالَمِينَ مَرْيَمُ ابْنَةُ عِمْرَانَ وَخَدِيجَةُ بِنْتُ خُوَيْلِدٍ وَفَاطِمَةُ بِنْتُ مُحَمَّدٍ وَآسِيَةُ امْرَأَةُ فِرْعَوْنَ. رواه الترمذي.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د ټولي دنيا د ښځو څخه د دغه څلورو ښځو فضائل ستاسو لپاره كافي دي: بي بي مريم بنت عمران، بي بي خديجه بنت خويلد، بي بي فاطمه بنت محمد ﷺ او بي بي آسيه د فرعون ښځه. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ٥\٦٦٠، رقم: ٣٨٧٨.

**تشريح**: څرګنده ده چي د ټولي نړۍ په غوره ښځو كي د دغه څلورو ښځو ذكر په دغه حديث كي په كوم ترتيب سره راغلى دى په هم هغه ترتيب سره د څلورو په منځ كي د مرتبو فرق هم دى، پاته سوه دا خبره چي دلته د بي بي عائشي رضي الله عنها يادونه ولي ونه سول نو د هغې يوه وجه دا كيداى سي چي د هغې هم د افضلو ښځو څخه كېدل په ځينو روايتو كي مذكور دي ځكه دلته د هغې د يادوني ضرورت ونه ګڼل سو، او دوهمه وجه دا كيداى سي چي رسول الله ﷺ دغه حديث كيداى سي هغه وخت فرمايلي وي چي بي بي عائشي رضي الله عنها ته دغه مقام او د رسول الله ﷺ سره د نكاح شرف تر لاسه سوى نه وو چي په هغه سره د هغې د افضيلت تعين سوى واى، بيا هم بايد هغه حديث په ذهن كي وي چي احمد، بخاري، مسلم، ترمذي او ابن ماجه د حضرت ابو موسى اشعري رضي الله عنه څخه مرفوعا نقل كړى دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په نارينوو كي ډېر خلګ د كمال درجې ته ورسېدل مګر په ښځو كي د فرعون د ښځي، بي بي آسيه رضي الله عنها، او مريم بنت عمران

ځکه ماسوا بله ښځه کامله نه سول او په دې کې شک نسته چې په ټولو ښځو کې د عائشې رضي الله عنها افضیلت پر نورو ښځو باندې داسې دی لکه څرنګه چې د ښوروا فضیلت پر نورو خوراکونو دی

سیوطي رحمة الله علیه په نقایه کې لیکلي دي چې زموږ عقیده ده چې د ټولې نړۍ په ښځو کې تر ټولو افضله مریم او فاطمه رضي الله عنهما دي او د رسول الله صلی الله علیه وسلم په ازواجو مطهراتو کې تر ټولو افضله خدیجه او عائشه رضي الله عنهما دي ، په دوی کې دوو کومه یوه افضله ده، په دې اړه یو قول د بي بي خدیجې رضي الله عنها د افضیلت دی او بل قول د بي بي عائشې رضي الله عنها د افضلیت دی او دریم قول د توقف دی، ملا علي قاري رحمة الله علیه د سیوطي رحمة الله علیه د دغه الفاظو نقل کولو وروسته لیکلي دي: زما وینا ده چې یوازې د خدیجې رضي الله عنها او عائشې رضي الله عنها په اړه نه بلکه د ټولو ذکر سوو ښځو په اړه توقف (یعني پټه خوله کېدل) غوره دي، ځکه چې په دغه مسئله کې یو قطعي دلیل نسته چې د هغه په وجه په حتمي توګه وویل سي چې په دوی کې فلانۍ ښځه زیاته افضله ده ، او کوم ګماني دلیلونه چې موجود دي په هغو کې خپله اختلاف دی او د هغه عقیدو په اړه چې پر یقیناتو باندې مبني دي، څه کټه نسته .

## د بي بي عائشې رضي الله عنها فضیلت

﴿۵۹۳۱﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ جِبْرِيلَ جَاءَ بِصُورَتِهَا فِي خِرْقَةِ حَرِيرٍ خَضْرَاءَ إِلَى رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنَّ هَذِهِ زَوْجَتُكَ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ. رواه الترمذي.

د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روایت دی چې جبرائیل علیه السلام د هغې په شکل او صورت کې یو شی په شنو ریښمو کې نغښتی رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راوړ او وه یې ویل دا په دنیا او آخرت کې ستا ښځه ده. ترمذي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۶۶۱، رقم: ۳۸۸۰.

**تشریح**: پر شنه ریښمینه جامه باندې: د دې څخه معلومه سول چې په تېر سوي حدیث کې د خرقة من حریر، کوم الفاظ چې تېر سول د هغه مراد د سپینو ریښمینو جامو اخیستل صحیح نه دي (لکه څرنګه چې ځینو حضراتو بیان کړی دی) مګر که چیرې دا وویل سي چې دا ډول خوب رسول الله صلی الله علیه وسلم ډېر واره ولیدی نو بیا په دغه مراد اخیستلو کې سوال نه کیږي او دا هم ویل کیدای سي چې د خرقة من حریر، الفاظ نقل کېدل د راوي اشتباه ده .

## د بي بي صفيې فخر

﴿۵۹۳۲﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ بَلَغَ صَفِيَّةَ أَنَّ حَفْصَةَ قَالَتْ بِنْتُ يَهُودِيٍّ فَبَكَتْ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چي بي بي صفيې ته دا خبره ورسيدل چي بي بي حفصې ويلي دي چي صفيه د يهودي لور وه، ددې اوريدو سره هغه په ژړا سوه،

فَدَخَلَ عَلَيْهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهِيَ تَبْكِي فَقَالَ مَا يُبْكِيكِ

په دغه وخت كي رسول الله ﷺ تشريف راوړ پوښتنه يې وكړه چي ولي ژاړې؟ بي بي صفيې رضي الله عنها

فَقَالَتْ قَالَتْ لِي حَفْصَةُ إِنِّي بِنْتُ يَهُودِيٍّ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ورته وويل ما ته حفصې د يهودي لور ويلي دي، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل

إِنَّكِ لَابْنَةُ نَبِيٍّ وَإِنَّ عَمَّكِ لَنَبِيٌّ وَإِنَّكِ لَتَحْتَ نَبِيٍّ فَفِيمَ تَفْخَرُ عَلَيْكِ ثُمَّ قَالَ اتَّقِي اللَّهَ يَا حَفْصَةُ. رواه الترمذي والنسائي.

ته د نبي لور يې او ستا اكا هم نبي وو، او اوس ته د يو نبي ښځه يې بيا حفصه پر كومه خبره پر تا فخر كوي. ددې وروسته رسول الله ﷺ حفصې ته وفرمايل: اې حفصې! د خداى جل جلاله څخه وبيريږه. ترمذي او نسائي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۶۶، رقم: ۳۸۹۴، والنسائي في الكبرى ۵\۲۹۱، رقم: ۸۹۱۹.

**تشريح**: د بي بي صفيې رضي الله عنها پلار حي بن اخطب په اصل كي د حضرت هارون عليه السلام د اولاد څخه وو او حضرت هارون عليه السلام د حضرت موسى عليه السلام ورور وو، په دې اعتبار د صفيې رضي الله عنها پلار يعني جداعلى هم پيغمبر سو او د هغه اكا هم پيغمبر سو، يا دا خبره يې د خپل جد اكبر يعني حضرت اسحاق عليه السلام په اعتبار وفرمايل، يعني بي بي صفيې رضي الله عنها ته يې د حضرت اسحاق عليه السلام لور وويل او حضرت اسماعيل عليه السلام ته يې د هغې اكا وويل.

او اوس ته د يو پيغمبر ښځه يې: يعني حفصې رضي الله عنها لره فكر كول پكار دي چي ستا ددغه نسب اعلى او شرف په مقابله كي هغې ته بل كوم لوى نسبت حاصل دى او داسي كوم فضيلت هغه لري چي هغه پر تا فخر كوي، او په نسب كي ځان تر تا كمه ګڼي، څرګنده دي وي چي د رسول الله ﷺ ددغه ارشاد مقصد د بي بي صفيې رضي الله عنها زړه ښه كول او د هغې د سپكاوي ازاله

کول وو چي د بي بي حفصې رضي الله عنها په الفاظو سره بي بي صفيې رضي الله عنها محسوس کړي وه، بي بي صفيه رضي الله عنها نه يوازي دا چي د خپل ذات په اعتبار د يوې ستري کورنۍ ښځه وه بلکه د خپلو دينو ښېګڼو او صفتو په اعتبار هم يو جامع ښځه وه، او دا نه دي چي د رسول الله ﷺ د بي بي صفيه رضي الله عنها په حق کي دغه خبري پر نورو ازواجو مطهراتو باندي د هغې فضيلت او لويي ثرګندوي ځکه چي د نسبتونو دغه شرف يوازي د بي بي صفيې رضي الله عنها نه وو ، په دغه شرف کي خو نوري ټولي ازواج مطهرات هم شاملي وې چي هغوی هم د يو پيغمبر حضرت اسماعيل عليه السلام د اولاد ښځه وې، چي د حضرت اسحاق عليه السلام ورور وو، او هغوی ټولي هم د رسول الله ﷺ بيبياني وې.

ته بايد د الله جل جلاله ښځه و بيرېږې: يعني د صفيې رضي الله عنها د مخالفت يا دښمنۍ په وجه ته دا سي خبري د خولې ښځه مه باسه کوم چي د جاهليت د زمانې کار دی او الله جل جلاله يې په هيڅ حالت کي نه خوښوي.

## د بي بي مريم عليها السلام ذکر

﴿۵۹۳۳﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعَا فَاطِمَةَ عَامَ

د ام سلمه (رض) ښځه روايت دی چي د مکې د فتحې په کال رسول الله ﷺ بي بي فاطمه رضي الله عنها

الْفَتْحِ فَنَاجَاهَا فَبَكَتْ ثُمَّ حَدَّثَهَا فَضَحِكَتْ فَلَمَّا تُوُفِّيَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

راوغوښتل او کراريې د هغه سره خبري وکړې چي د هغه په اوريدو سره هغه په ژړا سوه، بيا يې دويم وار د هغې سره خبري وکړې نو هغې وخندل، بيا چي رسول الله ﷺ وفات سو

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَأَلْتُهَا عَنْ بُكَائِهَا وَضَحِكِهَا قَالَتْ أَخْبَرَنِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

نو ما د هغې د ژړا او خندا سبب وپوښتی، نو بي بي فاطمې وويل رسول الله ﷺ زه خبره کړې وم

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ يَمُوتُ فَبَكَيْتُ ثُمَّ أَخْبَرَنِي أَنِّي سَيِّدَةُ نِسَاءِ أَهْلِ الْجَنَّةِ إِلَّا مَرْيَمَ بِنْتَ عِمْرَانَ فَضَحِكْتُ. رواه الترمذي.

چي رسول الله ﷺ به وفات کيږي د هغه په اوريدو سره زه په ژړا سوم ، بيا رسول الله ﷺ زه خبره کړم چي زه به د جنت د ټولو ښځو سرداره يم پرته د مريم بنت عمران ښځه نو ما وخندل . ترمذي.

**تخريج:** سنن الترمذي ۵/۶۵۸، رقم: ۳۸۷۳.

**تشريح**: همدارنګه روايت مخکي هم تېر سوی دی چي په هغه کي د بي بي عائشې ﷺ يادونه ده چي هغې د بي بي فاطمې ﷺ څخه د ژړا او خندا سبب وپوښتی، نو هغې د ښودلو څخه انکار وکړ مګر د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته بي بي فاطمې ﷺ وښودل او دلته هم بي بي ام سلمه ﷺ دا يادونه وکړل چي د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته بي بي فاطمې ﷺ وښودل، بيا هم په دغه حديث کي د بي بي ام سلمه ﷺ دغه پېښه د مکې د فتح د کال ذکر کول يوه لويه هېره ده ځکه چي په تحقيقي او تاريخي توګه د دغه پېښي واقع کېدل د مکې د فتح په کال نه وه بلکه دغه پېښه يا خو د رسول الله ﷺ د حجة الوداع د زمانې ده يا د مرض الموت د وخت ده، دوهمه خبره دا چي په دغه روايت کي د بي بي فاطمې ﷺ دغه الفاظ چي رسول الله ﷺ ما ته وښودل چي زه د مريم بنت عمران څخه ماسوا د جنت د ټولو ښځو سرداره يم ځکه نو زه په خندا سوم، د ذکر سوي روايت خلاف نه دی چي په هغه کي دادي چي رسول الله ﷺ بي بي فاطمې ﷺ ته دا هم ويلي وه چي زما د اهل بيتو څخه به ته تر ټولو مخکي زما سره يو ځای کېږې.

د دغه روايت په اړه يو سوال پيدا کيږي چي د دغه حديث د باب سره څه مناسبت دی، په دې کي د بي بي فاطمې ﷺ د منقبت او فضيلت ذکر دی نو دغه حديث د مناقب اهل بيت په باب کي نقل کول پکار وو نه په دغه باب کي چي د ازواج مطهراتو د مناقبو سره مخصوص دی، نو پېښه داده چي په ظاهري توګه څه مناسبت نه معلوميږي يوازي دا ويل کيږي چي دغه روايت ضمناً د هغه روايت سره متعلق دی چي د دوهم فصل په اول روايت کي دی او په هغه کي د بي بي خديجې او بي بي مريم سره د بي بي فاطمې رضي الله عنهن ذکر هم دی، دې ته به داسي ووايو چي د دغه فصل په شروع کي چي کوم روايت نقل سوی دی د هغې لپاره ځيني نوري خبري د دغه حديث څخه معلوميږي ځکه هغه دلته نقل کړل سو، که څه هم دغه حديث په اصل کي له دې سره تعلق نه لري او دا هم ليري نه ده چي دغه حديث په دغه باب کي په نقل کولو سره دې ته اشاره سوې ده چي د بي بي مريم ﷺ په اړه نقل سوي دي چي هغه به په جنت کي د رسول الله ﷺ ښځه وي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د بي بي عائشې ﷺ فضيلت

﴿۵۹۳۴﴾: عَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ مَا أَشْكَلَ عَلَيْنَا أَصْحَابَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدِيثٌ قَطُّ فَسَأَلْنَا عَائِشَةَ إِلَّا وَجَدْنَا عِنْدَهَا مِنْهُ عِلْمًا. رواه

الترمذي وقال هذا حديث حسن صحيح غريب.

د حضرت ابو موسی رضي الله عنه څخه روايت دی چي هر کله به موږ اصحاب د رسول الله ﷺ پر يو خبره مشتبه سول يا ديو حديث مطلب به مو په پوهه کي نه راغلی نو موږ به د بي بي عائشي رضي الله عنها څخه پوښتنه کول نو د هغه خبري پوره علم به موږ ځيني تر لاسه کړی، ترمذي ويلي دي دا حديث حسن صحيح غريب دی.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۶۲، رقم: ۳۸۸۳.

**د لغاتو حل**: اشتكل: اي ما اشتبه. (دېر ورته)

**تشريح**: مطلب دا چي بي بي عائشي رضي الله عنها کوم علم د رسول الله ﷺ څخه په اوريدو سره او په خپل قوت اجتهاد سره تر لاسه کړی وو د هغه په ذريعه به هغې د صحابه کرامو مشکل سوالونه حل کول او د حديث په اړه چي کوم اشکال چي به هغوی ته پيښيدی نو هغه به يې حل کوی

**د بي بي عائشي رضي الله عنها فصاحت**

﴿۵۹۳۵﴾: وَعَنْ مُوسَى بْنِ طَلْحَةَ قَالَ مَا رَأَيْتُ أَحَدًا أَفْصَحَ مِنْ عَائِشَةَ. رواه الترمذي وقال هذا حديث حسن صحيح غريب.

د حضرت موسی بن طلحه رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د بي بي عائشي رضي الله عنها څخه زيات فصيح هيڅوک نه دی ليدلی، ترمذي ويلي دي دا حديث حسن صحيح غريب دی.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۶۳، رقم: ۳۸۸۴.

**تشريح**: ابن طلحه رضي الله عنه دغه خبره يا خو د بي بي عائشي رضي الله عنها په زيات تعريف کي کړې ده او يا په حقيقت کي هغه د بي بي عائشي رضي الله عنها څخه زيات فصيح هيڅوک نه دی ليدی.

==========

# بَابُ جَامِعُ الْمَنَاقِبِ

## (د مناقبو جامع بيان)

په دغه باب کي مؤلف د يوې خاص ډلي د تخصيص څخه پرته او د بېل باب قائمولو پر ځای په مجموعي توګه د يو څو مشهورو صحابه کرامو رضي الله عنهم پر فضائلو او مناقبو باندي مشتمل حديثونه نقل کړي دي، په مشهورو کي خلفاء راشدين، عشره مبشره ، اهل بيت، ازواج مطهرات، مهاجرين او انصار هم دي او د دوی څخه ماسوا نور صحابه کرام رضي الله عنهم هم دي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه فضيلت

﴿۵۹۳۶﴾: عَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ رَأَيْتُ فِي الْمَنَامِ كَأَنَّ فِي يَدِي سَرَقَةً مِنْ

د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما په خوب کي وليدل چي په لاس کي مي د

حَرِيرٍ لَا أَهْوِي بِهَا إِلَى مَكَانٍ فِي الْجَنَّةِ إِلَّا طَارَتْ بِي إِلَيْهِ فَقَصَصْتُهَا عَلَى

ريښمني جامې يوه ټوټه ده او زه چي په جنت کي کومي خوا ته د تلو اراده کوم هغه ټوټه ما هلته الوځوي او هلته مې رسوي، ما دا خوب

حَفْصَةَ فَقَصَّتْهَا حَفْصَةُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنَّ أَخَاكِ رَجُلٌ صَالِحٌ أَوْ قَالَ إِنَّ عَبْدَ اللهِ رَجُلٌ صَالِحٌ. متفق عليه.

خپل خور بي بي حفصې ته ووايه او هغې نبي کريم صلی الله عليه وسلم ته بيان کړ، د خوب اوريدو سره رسول الله صلی الله عليه وسلم ارشاد وفرمايه چي ستا ورور صالح سړی دی ، يا داسي يې وفرمايل چي عبدالله صالح سړی دی .، بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۴۰۳، رقم: ۷۰۱۵. ومسلم ۴\۱۹۲۷، رقم: ۱۳۹– ۲۴۷۸.

**تشريح**: يعني رسول الله صلی الله عليه وسلم دا تعبير وکړ چي هغه د ريښمو ټوټه په اصل کي د عبدالله رضي الله عنه نېک اعمال د هغه پاک ژوند دی چي هغه د جنت لوړو مرتبو او درجو ته رسوي .

**حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنه** : حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنه د امير المؤمنين حضرت عمر

فاروق ﷺ زوی دی، په کوم کال چي رسول الله ﷺ په نبوت سره مشرف سو د هغه کال څخه یو کال مخکي حضرت عبدالله ﷺ پیدا سو ، د لږ عمر په وخت کي یې د خپل پلار محترم حضرت عمر فاروق ﷺ سره په مکه کي اسلام قبول کړ، د خندق د غزا څخه وروسته په ټولو غزاوو کي یې ګډون کړی دی، په علم، پوهې او تقوا کي پوره منل کیږي ، حضرت جابر بن عبدالله ﷺ به فرمایل: ما منا احد الا مالت به الدنيا ومال اليها ما خلا عمرو ابنه عبد الله. حضرت نافع ﷺ بیان کوي چي عبدالله ابن عمر ﷺ تر مرګ پوري چي کوم غلامان ازاد کړي دي د هغوی شمېر زرو بلکه تر دې هم زیات دی، د نبي کریم ﷺ په پیروی او مینه کي د ابن عمر ﷺ خاص مقام دی چي کله به حج ته تلی نو پر هغه ځایو به دربدی چیري چي رسول لالله ﷺ تم سوی دی لکه عرفات او داسي نور ځایونه، او تر ټولو حاجیانو به مخکي رسیدی، نقل سوي دي چي یوه ورځ حجاج ابن یوسف د سهار یا مازدیګر په لمانځه کي ځنډ وکړ نو حضرت عبدالله ابن عمر ﷺ هغه ته وویل: لمونځ وکړه کنه نو لمر ستا انتظار نه کوي، پر حجاج باندي دهغه دغه وینا سخته سول نو هغه وویل: زړه مي غواړي چي ستا سترګي وباسم یا داسي یې وویل چي ستا سر قلم کړم ، حضرت عبدالله ﷺ ددې په اوریدو سره ورته وفرمایل: که ته داسي وکړې نو څه لیري خبره ده ځکه چي ته د یو ناپوه حاکم په صورت کي پر موږ مسلط یې ، ځینو حضراتو دا نقل کړي دي چي حضرت عبدالله ابن عمر ﷺ دا خبره په کراره کړې وه او حجاج نه وه اوریدلې، په هر حال د حضرت عبدالله ابن عمر ﷺ د حق ویني په سبب یا په بله وجه حجاج د هغه څخه سخت ناراضه سو او هغه یو سړي ته حکم وکړ چي د ابن عمر ﷺ نیزه قبضه کړي او هغه بې وسلې کړي، او بیا نه یوازي دا چي هغه یې په لاره کي په ډېرو وویشتی بلکه په زهرو لړلې یوې آلې سره یې د هغه پر ملا باندي سخت وار وکړ چي د هغه په وجه حضرت ابن عمر ﷺ تر څو ورځو پوري ناروغ سو او بیا وفات سو ، دغه پېښه د حضرت ابن زبیر ﷺ د شهادت د پېښي څخه درې میاشتي وروسته په ۷۳ هجري کال کي پېښه سوه ، په دغه وخت کي حضرت ابن عمر ﷺ د ۸۴ کالو وو ، د نوموړي مړی په ذي طوی کي خاورو ته وسپارل سو . رضي الله عنه .

## د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فضيلت

﴿۵۹۳۷﴾: وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ إِنَّ أَشْبَهَ النَّاسِ دَلًّا وَسَمْتًا وَهَدْيًا بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَابْنُ أُمِّ عَبْدٍ مِنْ حِينِ يَخْرُجُ مِنْ بَيْتِهِ إِلَى أَنْ يَرْجِعَ

إِلَيْهِ لَا نَدْرِي مَا يَصْنَعُ فِي أَهْلِهِ إِذَا خَلَا. رواه البخاري.

د حضرت حذيفه رضي الله عنه څخه روايت دی چي په حالت طريقه او خوی کي تر ټولو عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د رسول الله ﷺ زيات مشابه وو، کله چي هغه د کور څخه راووځي بيا تر هغه وخته پوري چي هغه کور ته ځي او د کور دننه حال يې موږ ته معلوم نه دی چي هغه په يوازيوالي کي څه کوي. بخاري

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۵۰۹، رقم: ۶۰۹۷.

**د لغاتو حل:** دلا: اي طريقة: (لاره). سمتا: اي سيرة (تګ)

**تشريح:** د أم عبد د زوی څخه مراد حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه دی، د نوموړي د مور کنيت ام عبد وو،

(دل) د سيرت، حالت او هيئت په معنی هم راځي او ځينو حضراتو ددغه لفظ معنی د خوش کلامی هم بيان کړې ده چي دغه لفظ د دلالت څخه ماخوذ دی چي دهغه په ذريعه د يو انسان د ظاهري حالت او ښېګڼي تعبير کيږي چي د هغه پر ښه کړنو او نيکو عاداتو باندي دلالت کوي، په قاموس کي ليکلي دي چي د دل معنی د هدي ده مګر دلته په حديث کي د سکينت معنی مراد ده او په مجمع البحار کي ليکلي دي چي د دل لفظ د شکل او شمائل معنی لري.

د سمت معنی د لاري او ميانه روی ده، ددغه لفظ استعمال د اهل خير او صلاح په توګه او د هغه د هيئت او حالت لپاره هم استعماليږي، په قاموس کي د سمت معنی د طريق يعني لاري او د اهل خير د هيئت ليکلې ده او په صراح کي ليکلي دي چي د سمت معنی د نېک چلن ده.

د هدي معنی د طريقې، سيرت او اهل خير د هيئت او حالت ده، خلاصه دا چي دغه درې سره الفاظ يعني دل، سمت او هدي په معنی کي سره نژدې دي او په عامه توګه درې سره د يو بل سره استعماليږي.

د هغه وخت څخه چي....: يعني د عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه چي کوم ظاهري ژوند زموږ په مخکي دی او دهغه کوم حالات چي موږ ته ښکاره دي دهغه څخه ثابتيږي چي هغه ډېر پاک او نيک دی او موږ د ظاهري احوالو په اړه شاهدي ورکولای سو، د باطن حال موږ ته معلوم نه دی چي دننه حال الله جل جلاله ته معلوم دی.

﴿۵۹۳۸﴾: وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ قَدِمْتُ أَنَا وَأَخِي مِنَ الْيَمَنِ فَمَكُثْنَا

د حضرت ابو موسی اشعري رضي الله عنه څخه روایت دی چې زه او زما ورور د یمن څخه مدینې ته

حِينًا مَا نُرَى إِلَّا أَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ مَسْعُودٍ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ بَيْتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

راغلو او تریو وخته مو په مدینه کي قیام وکړ، موږ همېشه دا خیال کوی چې عبد الله بن مسعود رضي الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د اهل بیتو څخه یو کس دی،

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِمَا نَرَى مِنْ دُخُولِهِ وَدُخُولِ أُمِّهِ عَلَى النَّبِيِّ صلی الله علیه وسلم. متفق علیه.

ځکه چې موږ به عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه او د هغه مور بي اکثر د نبي کریم صلی الله علیه وسلم کره تلونکي راتلونکي لیدل. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۷\۱۰۲، رقم: ۳۷۶۳، ومسلم ۱۴\۱۹۱۱، رقم: ۱۱۰- ۲۴۶۰.

**تشريح**: په یوه روایت کي راغلي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم، عبد الله بن مسعود رضي الله عنه ته ویلي وه که چیري ته زما سره یو یا دوه کسان ووینې نو د اجازې غوښتلو څخه پرته ما ته راځه، په یوه روایت کي حضرت عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه دا بیان کړی دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ما ته فرمایلي دي: کله چې پرده زړېدلې نه وي او ته زما آواز واورې نو ستالپاره اجازه ده ترڅو چې زه تا منع نه کړم.

**حضرت عبدالله ابن مسعود** رضي الله عنه: د نوموړي کنیت ابو عبد الرحمن وو، هذلي دی، د صاحب السواد والمسواک په لقب سره مشهور وو، هغه ته په لومړني دعوت کي د اسلام منلو توفیق په برخه سوی وو، د رسول الله صلی الله علیه وسلم دار ارقم ته د منتقل کېدو څخه مخکي مسلمان سوی وو، تر هغه وخته حضرت عمر رضي الله عنه اسلام قبول کړی نه وو، ځیني حضرات وایي چې دی شپږم مسلمان دی، دده څخه مخکي یوازي پنځو کسانو اسلام قبول کړی وو، د اسلام قبلولو څخه وروسته رسول الله صلی الله علیه وسلم د ځان سره ساتلی وو او خپل بې شمېره خدمتونه یې ور سپارلي وه، د رسول الله صلی الله علیه وسلم مسواک به د هغه سره وو، رسول الله صلی الله علیه وسلم ته به یې څپلۍ سمولې، په سفر کي به یې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د پاکۍ، اوداسه او نورو شیانو لپاره اوبه ساتلې او کله چې به رسول الله صلی الله علیه وسلم غسل کوی نو ده به پرده جوړول، حضرت عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه حبشې ته هم هجرت کړی وو، بیا یې مدینې ته هم هجرت وکړ، په بدر او نورو غزاوو کي له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره وو، رسول الله صلی الله علیه وسلم د جنت زیری ورکړی وو او فرمایلي یې وه: زه د خپل امت لپاره هغه شی خوښوم کوم چې ابن ام عبد (عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه) ته خوښ دي، او زه د خپل امت په اړه هغه شی نه خوښوم

کوم چي ابن ام عبد ته ناخوښه وي، حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه غنم رنګه وو او دهغه بدن دومره نرى او ډنګر وو چي ناست اوږد سړی به دهغه برابر معلومېدی، فاروق رضي الله عنه د خپل خلافت په زمانه کي هغه د کوفې قاضي او د هغه ځای د بيت المال نګران ټاکلی وو، د عثماني خلافت تر لومړنۍ زمانې پوري پر دغه منصب فائز وو بيا مدينې ته راغلی او په مدينه کي په ۳۲ هجري کال کي وفات سو، د نوموړي عمر تقريبا شپېته کاله وو، د نوموړي څخه د حديث په روايت کونکو کي د صحابه کرامو او تابعينو د يوې لوی ډلې څخه ماسوا حضرت ابوبکر صديق، حضرت عمر او حضرت عثمان رضي الله عنهم هم شامل دي، زموږ د امامانو وينا ده چي د خلفاء اربعه څخه وروسته په ټولو صحابه کرامو کي لوی فقيه حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه وو.

## څلور قاريان

﴿۵۹۳۹﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اسْتَقْرِئُوا الْقُرْآنَ مِنْ أَرْبَعَةٍ مِنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ وَسَالِمٍ مَوْلَى أَبِي حُذَيْفَةَ وَأُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ وَمُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ. متفق عليه

د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د څلورو کسانو څخه قرآن کريم زده کوئ يعني عبدالله بن مسعود، سالم مولى ابو حذيفه، ابی بن کعب او معاذ بن جبل رضي الله عنهم څخه. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۱۰۲، رقم: ۳۷۶۰، ومسلم ۴\۱۹۱۳، رقم: ۱۱۷- ۲۴۶۴.

**تشريح**: دغه څلورو صحابه کرامو رضي الله عنهم د رسول الله ﷺ څخه په ژوندی بڼه قرآن کريم زده کړی وو حال دا چي نورو صحابه کرامو د نورو کسانو څخه قرآن کريم زده کړی او تر لاسه کړی وو، دغه څلور حضرات د قرآن کريم حافظان وه، په صحابه کرامو کي لوی قاريان هم وه، رسول الله ﷺ د دغه څلورو کسانو د خاص فضيلت څخه خلک خبر کړل.

**حضرت سالم** رضي الله عنه: نوم يې سالم بن معقل رضي الله عنه دی، د حضرت ابو حذيفه بن عتبه بن ربيعه بن عبدشمس ازاد سوی غلام دی، د فارس (ايران) ښار اصطرخ اوسېدونکی وو، په سترو صحابه کرامو کي شمېرل کېږي، د بدر په غزا کي يې ګډون کړی وو، په مدينه کي د مهاجرينو د لمانځه د امامت شرف يې په برخه وو کوم چي د رسول الله ﷺ څخه مخکي په هجرت کولو سره راغلي وه، سره له دې چي په هغوی کي عمر او حضرت ابو سلمه رضي الله عنهما هم موجود وه، د حضرت

ابو حذیفه رضی الله عنه اصل نوم هشام وو، د صحابه کرامو، فضلاؤ او لومړنیو مهاجرینو څخه دی، د رسول الله ﷺ دارارقم ته د راتلو څخه مخکي په اسلام مشرف سوی وو.

**حضرت أبی بن کعب رضی الله عنه**: حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه د انصارو صحابه کرامو څخه دی، لوی قاري دی، سيدالقراء ورته ویل کېدل، حضرت عمر فاروق رضی الله عنه به د سيدالمسلمين په لقب یادوی او د رسول الله ﷺ د وحي لیکوال وو.

**حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه**: حضرت معاذ رضی الله عنه هم د انصارو څخه دی، فضائل او مناقب یې بې شمېره دي، رسول الله ﷺ دده او عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په منځ کي ورو ګلوي قائمه کړې وه.

**د ابن مسعود، عمار او حذیفه (رض) فضیلت**

﴿۵۹۴۰﴾: وَعَنْ عَلْقَمَةَ قَالَ قَدِمْتُ الشَّأْمَ فَصَلَّيْتُ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ قُلْتُ اللَّهُمَّ

د حضرت علقمه رضی الله عنه څخه روایت دی چي زه د شام هیواد ته راغلم ما دوه رکعته لمونځ وکړ او دعاء مي وکړه چي اې الله!

يَسِّرْ لِي جَلِيسًا صَالِحًا فَأَتَيْتُ قَوْمًا فَجَلَسْتُ إِلَيْهِمْ فَإِذَا شَيْخٌ قَدْ جَاءَ حَتَّى

ما ته یو صالح ملګری راکړې، بیا زه یو ډلي ته ورسیدم او ورسره کښېنستم، ناڅاپه یو سپین ږیری سړی راغلی او!

جَلَسَ إِلَى جَنْبِي قُلْتُ مَنْ هَذَا قَالُوا أَبُو الدَّرْدَاءِ فَقُلْتُ إِنِّي دَعَوْتُ اللَّهَ أَنْ

زما په خوا کي کښېنستی، ما د خلکو څخه پوښتنه وکړه دا څوک دی؟ خلکو راته وویل: ابو درداء رضی الله عنه دی، ما هغه ته وویل ما د خدای تعالی څخه سوال کړی وو چي

يُيَسِّرَ لِي جَلِيسًا صَالِحًا فَيَسَّرَكَ لِي قَالَ مَنْ أَنْتَ قُلْتُ مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ قَالَ

ما ته یو صالح ملګری راکړې نو خدای تعالی ته ما ته برابر کړلې، ابو درداء رضی الله عنه زما څخه پوښتنه وکړه ته څوک یې؟ ما ورته وویل زه د کوفې او سیدونکی یم، ابو درداء رضی الله عنه وویل:

أَوَلَيْسَ عِنْدَكُمْ ابْنُ أُمِّ عَبْدٍ صَاحِبُ النَّعْلَيْنِ وَالْوِسَادِ وَالْمِطْهَرَةِ وَفِيكُمْ

ایا ستاسو سره ابن ام عبد (یعني عبدالله بن مسعود رضی الله عنه) نسته چي د رسول الله ﷺ څپلی، بالښت او د اوداسه لوښی یې د ځان سره ساتل، او ایا ستاسو سره

الَّذِي أَجَارَهُ اللّٰهُ مِنَ الشَّيْطَانِ عَلَى لِسَانِ نَبِيِّهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْنِيْ

هغه سړی نسته چي خدای تعالی هغه ته د نبي په ژبه د شیطان څخه پناه ورکړې ده (یعني عمار

عَمَّارًا وَلَيْسَ فِيكُمْ صَاحِبُ سِرِّ الَّذِي لَا يَعْلَمُهُ غَيْرُهُ يَعْنِيْ حُذَيْفَةَ. رواه البخاري

رضي الله عنه)، او ایا په تاسو کي هغه سړی نسته چي د رسول الله ﷺ رازونه پیژندونکي دی چي د هغه څخه پرته د هغه بل څوک خبر نه دی یعني حذیفه رضي الله عنه. بخاري.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۷\۹۰، رقم: ۳۷۴۲.

**تشریح:** په (نېک خلیفه) کي د نیک څخه مراد یا خو عالم باعمل دی یا هغه سړی چي د الله جل جلاله حقوق هم ادا کړي او د الله جل جلاله د بندګانو حقوق هم ادا کړي.

راغلی او زما په څنګ کي کښېښست: دا په اصل کي د الله جل جلاله له خوا د هغه د دعاء جواب وو چي هغه د نیک خلیفه مخلصانه درخواست وکړ او الله جل جلاله د صحابي په ډول ستر کس هغوی ته راولیږی، دلته باید هغه روایت په فکر کي وي چي په هغه کي فرمایل سوي دي: ان لله ملائکة تجر الاهل الی الاهل.

او د پټک ساتلو شرف ورپه برخه وو: د حضرت ابودرداء رضي الله عنه مراد د حضرت عبیدالله ابن مسعود رضي الله عنه هغه ځانګړتیا ته اشاره کول مقصد وو چي هغه د رسول الله ﷺ د ذاتي خادم په حیثیت تل د رسول الله ﷺ په خدمت کي موجود وو، په سفر او حضر کي به له رسول الله ﷺ سره وو، چیري چي به رسول الله ﷺ کښېښستی نو د هغه ﷺ څپلۍ به یې له ځان سره ایښودلې، کله چي به رسول الله ﷺ د مجلس څخه ولاړ سو نو د رسول الله ﷺ څپلۍ به یې ورپه پښو کولې، کله چي به رسول الله ﷺ د بېده کېدو اراده وکړل نو هغه به د رسول الله ﷺ بستره سمول، او د رسول الله ﷺ بالښت به یې راوړی، کله چي به رسول الله ﷺ د اوداسه لپاره ولاړېدی نو هغه به د اوداسه اوبه تیاري ایښودلې، په سفر او نورو وختو کي د رسول الله ﷺ د اوبو پټک به یې له ځان سره ساتی او د ضرورت په وخت کي به یې رسول الله ﷺ ته ورکوی، نو حضرت ابودرداء رضي الله عنه حضرت علقمه رضي الله عنه ته توجه ورکړل چي حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه ته د رسول الله ﷺ په ملګرتیا او خدمت کي چي کوم قربت او لزوم تر لاسه وو هغه د دین او شریعت په علم کي یقینا دومره لائق او دومره کامل جوړ کړی دی چي هیڅ طالب علم د هغه په پرېښودو سره بل چا ته د تللو ضرورت نه محسوسوي، په دې سره یو خو د دې خبري تائید کیږي چي علماؤ د شاګرد

د علم په ادبو کي بیان کړی دی چي شاګرد لره تر ټولو وړاندي د خپل ښار او خپلي سیمي د علماؤ څخه علم تر لاسه کول او د هغوی څخه ښه استفاده کول پکار دي، که د نور زیات علم تر لاسه کولو اراده وي نو بیا د نورو ښارو او سیمو سفر دي اختیار کړي.

دوهمه دا خبره معلومه سول که چیري یو عالم بل عالم تر ځان افضل ګڼي نو شاګرد ته دي د هغه حواله ورکړي،

یعني عمار رضی الله عنه، رسول الله ﷺ د حضرت عمار رضی الله عنه په طیب او مطیب سره تعبیر وکړ، هغه ته یې د جنت زیری ورکړی وو، او کله چي د دین دښمنانو هغه ته سخت تکلیفونه ورسول تر دې چي یو واریې په اور کي غورځولی وو نو هغه وخت رسول الله ﷺ فرمایلي وه: اې اوره! د عمار لپاره یخ او د سلامتیا ذریعه جوړ سه، لکه څرنګه چي ته د ابراهیم علیه السلام لپاره یخ او د سلامتیا ذریعه جوړ سوې وې، یو وار رسول الله ﷺ هغه ته فرمایلي وه چي تا به د باغیانو ډله قتل کړي، ته به هغوی جنت ته رابولې او هغوی به تا اور ته رابولي، نو د حضرت عمار رضی الله عنه په حق کي د رسول الله ﷺ د دغه ارشاداتو او زیرو مطلب دا وو چي هغه پر حق لاره ثابت او سي او شیطاني وسوسې د هغه لار خطا نه کړي، او حضرت ابو درداء رضی الله عنه یې په دغه خبري سره تعبیر کړ چي الله جل جلاله د خپل پیغمبر ﷺ د ژبي مبارکي په ذریعه عمار رضی الله عنه ته د شیطان څخه پناه او امان ورکړی دی.

د حضرت عمار رضی الله عنه د پلار نوم یاسر رضی الله عنه او د مور نوم یې سمیه دی، د یاسر هیواد یمن وو مګر مکې ته په راتللو سره دلته اوسېدی او دلته د ابو حذیفه بن مغیره سره چي د بنو مخزوم څخه وو دوستي کړې وه او د هغه د مینزي سمیه سره یې نکاح کړې وه، حضرت عمار رضی الله عنه د همدغه سمیه رضی الله عنها څخه پیدا سو، د هغه د پېدا کېدو وروسته ابو حذیفه هغه ازاد کړی وو او په دې اعتبار حضرت عمار رضی الله عنه ته د بنو مخزوم ازاد سوی غلام ویل کیږي، حضرت عمار بن یاسر رضی الله عنه د هغه خلګو څخه دی چي تر ټولو مخکي یې اسلام قبول کړی دی، د اسلام په پیل کي د مکې کفارو چي کوم مسلمانان د خپل ظلم او ستم ښنبه ګرځولي وه او د هغوی اسلام نه راوړلو لپاره یې سخت سخت تکلیفونه ورکول په هغوی کي حضرت عمار رضی الله عنه هم وو، شقي القلب مشرکانو به هغه د اور په عذاب اخته کوی، رسول الله ﷺ به هغه ته ورتلی او د هغه پر سر او بدن به یې خپل مبارک لاس تېروی او فرمایل یې: یا نار کوني بردا وسلاما علی عمار کما کنت علی ابراهیم، اې اوره! پر عمار باندي یخ سه لکه څرنګه چي ته پر ابراهیم علیه السلام یخ سوی وې، حضرت عمار رضی الله عنه د لومړنیو مهاجرینو څخه دی، د بدر په غزا او نورو ټولو غزاوو کي یې ګډون کړی دی، په ۳۷ هجري کال کي په جنګ صفین کي د حضرت علي رضی الله عنه له خوا په جنګ کولو کي په شهادت

ورسېدی او هغه وخت یې عمر ۹۳ کاله وو .

یعني حذیفه، حضرت حذیفه رضي الله عنه ته صاحب سر رسول الله ﷺ ویل کیږي، ځکه چي رسول الله ﷺ هغه ته ډېر رازونه څرگند کړي وه، چي د هغه عام انکشاف ددیني او علمي حکمت په وجه مناسب نه وو، په هغه رازو کي یو راز دا وو چي رسول الله ﷺ د اسلام د هغه منافقینو نومونه د هغوی نسب او د نفاق نښې ښودلي وې ، له دې کبله هغه ته په پوره توگه معلومه وه چي کوم سړی مخلص مسلمان نه دی بلکه منافق دی ، منقول دی چي یوه ورځ حضرت عمر فاروق رضي الله عنه پوښتنه ور څخه وکړل چي اې حذیفه! ایا ته په ما کي د نفاق یوه نښه وینې؟ حذیفه رضي الله عنه جواب ورکړ: نه، قسم په خدای! په تاسو کي ما ته هیڅ د نفاق نښه نه معلومیږي، مگر خلک دا وایي چي ستاسو پر دسترخوان ډول ډول خوراکونه وي، مگر کله چي د هغه پلټنه وسول نو معلومه سول چي پر دسترخوان باندي یو څو هگۍ پرتې وې چي د ماتولو څخه وروسته د ژړ او سپین رنگ په صورت کي بېل بېل شیان معلومېدل، حضرت حذیفه رضي الله عنه په ۳۵ هجري کال کي د مدائن په ځای کي وفات سو او هلته دفن سو .

## د ام سلمه او بلال رضي الله عنه فضیلت

﴿۵۹۴۱﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أُرِيتُ الْجَنَّةَ فَرَأَيْتُ امْرَأَةَ أَبِي طَلْحَةَ ثُمَّ سَمِعْتُ خَشْخَشَةً أَمَامِي فَإِذَا بِلَالٌ. رواه مسلم .

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : ما ته جنت وښودل سو ما هلته د ابوطلحه رضي الله عنه ښځه ولیدل او خپل تر مخه مي د پښو آواز واورېدی چي هغه بلال رضي الله عنه وو . مسلم .

**تخریج**: صحیح مسلم ۴\۱۹۰۸، رقم: ۱۰۶– ۲۴۵۷.

**تشریح**: د ابوطلحه د ښځي څخه مراد بي بي ام سلیم رضي الله عنها ده، چي د حضرت انس رضي الله عنه مور ده، د هغې د نامه په اړه مختلف اقوال دي، د هغې لومړی نکاح د مالک بن نضر سره سوې وه او د هغې څخه حضرت انس رضي الله عنه پیدا سو، مالک بن نضر مشرک وو او د شرک په حالت کي ووژل سو، د هغه څخه وروسته ام سلیم رضي الله عنها مسلمانه سول او ابوطلحه رضي الله عنه هغې ته د نکاح پیغام ولیږی ، تر هغه وخته پوري ابوطلحه رضي الله عنه اسلام نه وو قبول کړی، ام سلیم د هغه پیغام رد کړ او هغه ته یې د اسلام دعوت ورکړ، ابوطلحه رضي الله عنه اسلام قبول کړ نو ام سلمه رضي الله عنها ورسره نکاح وکړل او ورته یې وویل: زه خپل ځان ستا د اسلام په عوض کي ستا په زوجیت کي ورکوم، ستا د اسلام قبلول

زما مهر دی . رضي الله عنها .

حضرت بلال رضی الله عنه د ابورباح زوی او د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه ازاد سوی غلام دی، ډېر قديم الاسلام دی، په مکه کي تر ټولو مخکي د خپل اسلام اعلان کوونکی دی، د رسول الله ﷺ خاص مؤذن وو، د بدر په غزا کي او دهغه څخه وروسته په نورو غزاوو کي يې ګډون کړی دی، په پای کي شام ته ولاړ او هلته يې هستوګنه اختيار کړل، په ۲۰ هجري کال، دمشق کي وفات سو او په باب الصغير کي دفن کړل سو، هغه وخت د نوموړي عمر ۶۳ کاله وو، د هغه هيڅوک وارث پاته نه سو ، د صحابه کرامو او تابعينو يوې ډلي ته د هغه څخه د روايت کولو شرف حاصل دی، حضرت بلال رضی الله عنه هم په هغه خلګو کي دی چي د اسلام قبلولو په بدله کي يې د مکې د کفارو په لاس سخت تکليفونه وزغمل، اميه بن خلف ورته سخت تکليفونه ورسول، او د تقدير الهي سره داسي وسول چي د بدر په غزا کي هغه د حضرت بلال رضی الله عنه په لاس دوږخ ته ورسېدی، په يوه روايت کي حضرت جابر رضی الله عنه بيان کوي چي حضرت عمر فاروق رضی الله عنه به فرمايل: ابوبکر سيدنا واعتق سيدنا ، يعني ابوبکر رضی الله عنه زموږ بادار دی او هغه زموږ بادار (بلال رضی الله عنه) ازاد کړ، امام احمد په خپل مسند کي نقل کړی دی چي تر ټولو مخکي کومو خلګو د اسلام ښکاره کوونه وکړل هغه اووه دي: ۱: رسول الله ﷺ، ۲: حضرتِ ابوبکر صديق رضی الله عنه، ۳: حضرت عمار رضی الله عنه، ۴: د حضرت عمار رضی الله عنه مور بي بي سميه رضی الله عنها، ۵: حضرت صهيب رضی الله عنه، ۶: حضرت بلال رضی الله عنه، ۷: او حضرت مقداد رضی الله عنه. نو الله جل جلاله ، رسول الله ﷺ د دين د دښمنانو د تکليفو څخه د رسول الله ﷺ د اکا ابو طالب په ذريعه خوندي وساتی او حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه ته د هغه د قبيلې او کورنۍ په سبب تحفظ تر لاسه سو، پاته پنځه کسان د مشرکانو د ظلم او ستم ښکار سول، هغوی ظالمانو به هغوی ته سختي سزاوي ورکولې تر دې چي په هغوی به يې د اوسپني زغري واغوستلې او په لمر کي به يې وغورځول، بيا په دغه پنځو کسانو کي ماسوا د حضرت بلال رضی الله عنه څخه هر يوه ته الله جل جلاله د مشرکانو څخه خلاصون ورکړ او هغوی يې عزتمند وګرځول مګر بلال رضی الله عنه کمزوری او لاچاره وو، د الله جل جلاله په لاره کي د سختيو او تکليفو څخه د هغه ساتونکې کورنۍ او قبيله نه وه، د مشرکينو د ظلم څخه هغه سخت په تکليف وو ، هغه د مکې بدمعاشانو ته وسپارل سو او هغوی د مکې په کوڅو کي کشوی مګر د هغه پر ژبه د احد احد (الله جل جلاله يو دی) نعره وه .

﴿۵۹۴۲﴾: وَعَنْ سَعْدٍ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سِتَّةَ نَفَرٍ فَقَالَ

د حضرت سعد رضي الله عنه څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ سره موږ شپږ کسان وو ،

اَلْمُشْرِكُونَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُطْرُدْ هٰؤُلَاءِ لَا يَجْتَرِئُونَ عَلَيْنَا قَالَ

مشرکانو نبي کریم ﷺ ته وویل ته دا خلک د خپل مجلس څخه ولاړ کړه چي دوی پر موږ زړه ور نسي، سعد رضي الله عنه وایي

وَكُنْتُ أَنَا وَابْنُ مَسْعُودٍ وَرَجُلٌ مِنْ هُذَيْلٍ وَبِلَالٌ وَرَجُلَانِ لَسْتُ أُسَمِّيهِمَا

زه په هغه صحبت کي وم ، ابن مسعود رضي الله عنه د قبیله هذیله یو سړی وو او بلال رضي الله عنه وو او دوه خلک نور وه چي د هغوی نوم ما وانه خیست،

فَوَقَعَ فِي نَفْسِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا شَاءَ اللّٰهُ أَنْ يَقَعَ فَحَدَّثَ

د کفارو د دغي غوښتني سره د رسول الله ﷺ په زړه کي یوه خبره پیدا سوه یعني هغه خبره کومه چي خدای جل جلاله وغوښتل ، رسول الله ﷺ په خپل زړه کي فکر وکړ او غوریې وکړ چي

نَفْسَهُ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ وَلَا تَطْرُدِ الَّذِينَ يَدْعُونَ رَبَّهُمْ بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيدُونَ وَجْهَهُ. رواه مسلم.

دا آیت نازل سو (ولا تطرد الذين يدعون ربهم .....)، (او هغه د خپل مجلس څخه مه ولاړوه چي سهار او ماښام د خدای جل جلاله د رضا تر لاسه کولو لپاره خپل پروردګار یادوي). مسلم

**تخريج**: صححي مسلم ۴\۱۸۷۸، رقم: ۴۶ – ۲۴۱۳.

**تشريح**: دوه کسان نور: په دې اړه شارحینو لیکلي دي چي هغه دوه کسان حضرت خباب بن ارت رضي الله عنه او حضرت عمار بن یاسر رضي الله عنه وو، او بیان کوونکي چي دا وویل چي د هغوی نومونه زه نه ښیم نو دا خبره هغه له دې کبله وکړل چي د خپل یو حکمت په وجه د هغوی نومونه یادول یې نه غوښتل یا څرنګه چي ځینو حضراتو لیکلي دي چي هغه دغه دواړه نومونه ځکه ونه ښودل چي د حدیث د روایت په وخت کي هغه ته یاد نه وه چي هغه دوه کسان څوک وه ، د روایت د الفاظو څخه لومړی قول زیات صحیح معلومیږي.

د رسول الله ﷺ په فکر کي هغه خبره راغلل ، یعني د قریشو د هغه مشرانو او د خپل ټولنیز غوره والي او عزت په زعم کي دا خبره یې نه خوښول چي هغوی د الله جل جلاله رسول ته راسي او د

رسول الله ﷺ په مجلس کي کښيني او په هغه مجلس کي دي هغه مسلمانان هم موجود وي او د برابرۍ پر سطح دي په مجلس کي ګډون کونکي وي چي هغوی يو وخت غلامان وه، او په دې اعتبار د مکې د قريشو په ټولنيز ژوند کي هغوی سپک ګڼل کېدل نو رسول الله ﷺ په دې فکر کي چي کيدای سي د قريشو مشرانو ته د اسلام د قبوليت توفيق په برخه سي، د هغوی د خبري د خيال ساتلو اراده وفرمايل، په دې کي هيڅ شک نسته چي مسئله ډېره اهمه وه، يوې خوا ته خو د رسول الله ﷺ دا سخت خواهش وو چي دومره لوی لوی مشران اسلام قبول کړي، بلې خوا ته د هغوی غوښتنه داسي وه چي په هغه سره د ځينو مخلصو او ځان قربانونکو مسلمانانو سپکاوی کېدی، نو رسول الله ﷺ داسي تدبير وکړ چي په هغه سره د سرذارانو تاليف قلب هم وسي چي په پای کي د هغوی د اسلام قبلولو باعث سي او د اسلام په نظر کي د هغه مخلصو مسلمانانو چي کوم عزت او توقير دی هغه ته هم خونديتوب په برخه وي، دغه صورت به د رسول الله ﷺ په ذهن کي راغلی وي چي کله هغه د قريشو مشران د رسول الله ﷺ په مجلس کي ناست وي نو هغه مسلمانان دي خپله مجلس ته نه راځي يا که چيري هغوی د مخکي څخه په مجلس کي موجود وي او د قريشو سرداران راسِي نو هغوی دي خپله ولاړ سي، مګر الله ﷻ د هغه مخلصو او رېښتينو مسلمانانو د عزت او توقير قائم ساتلو دپاره دغه صورت هم ناخوښه کړ او د ذکر سوي آيت په ذريعه يې څرګنده کړل چي ددغه قريشو د سردارانو مطالبه په هيڅ صورت کي د قبلولو وړ نه ده.

《۵۹۴۳》: وَعَنْ أَبِي مُوسَى اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُ يَا أَبَا مُوسَى لَقَدْ أُعطيت مِزْمَارًا مِنْ مَزَامِيرِ آلِ دَاوُدَ. متفق عليه.

د حضرت ابو موسى ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ هغه ته وفرمايل: اې ابو موسى! تا ته د داؤد ﷷ خوش آوازي درکړل سوې ده. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹۲۱۹، رقم: ۵۰۴۸، ومسلم ۵۴۶۱۱، رقم: ۲۳۵-۷۹۳.

**تشريح**: مزمار په اصل کي سروز يعني تولی (نل) ته وايي او دف د دريه يا بل شي سره غزلي ويلو ته وايي نه محض په آواز سره غزلي ويلو ته، مګر دلته په حديث کي ددغه لفظ څخه يوازي خوش آوازي او خوش الحاني مراد ده او د آل داؤد څخه مراد خپله د حضرت داؤد عليه السلام ذات دی، د آل لفظ زائد دی ځکه چي د خوش آوازۍ صفت د حضرت داؤد ﷷ سره خاص دی نه

د آل داؤد سره، ځينو حضراتو ليکلي دي چي دلته د آل لفظ د شخص واحد په معنی کي دی او
هغه خپله د حضرت داؤد عليه السلام ذات دی، په هر حال مشهور پيغمبر حضرت داؤد عليه السلام ډېر خوش
آوازه وو، الله جل جلاله، حضرت ابوموسی اشعري رضي الله عنه ته هم د خوش آوازۍ صفت ورکړی وو، کله
چي هغه په خپل ښکلي آواز کي د قرآن کريم تلاوت کوی نو رسول الله ﷺ به په ډېر شوق سره
هغه تلاوت اورېدی.

**حضرت ابوموسی** رضي الله عنه: د نوموړي اصلي نوم عبدالله بن قيس اشعري دی، د ابوموسی په
کنيت سره مشهور دی، هغه په مکه کي اسلام قبول کړی وو او حبشې ته په هجرت کوونکو کي
شامل وو، وروسته د حبشې څخه د رسول الله ﷺ په خدمت کي هغه وخت راغلی کله چي رسول
الله ﷺ په خيبر کي وو، امير المؤمنين حضرت عمر رضي الله عنه په ۲۰ هجري کال کي هغه د بصرې
حاکم ټاکلی وو، او بيا په معزول کېدو سره د بصرې هستوګنه يې پرېښودل او کوفې ته راغلی،
کله چي د کوفې اوسېدونکو سعيد بن عاص د هغه ځای څخه وايستی او حضرت عثمان غني
رضي الله عنه ته يې درخواست وکړ چي ابوموسی رضي الله عنه زموږ حاکم وټاکي نو حضرت عثمان رضي الله عنه هغه په
دوهم وار د کوفې حاکم وټاکی، د حضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت څخه وروسته حضرت علي رضي الله عنه
هغه معزول کړ او بيا د تحکيم د پېښې څخه وروسته حضرت ابوموسی رضي الله عنه مکې ته منتقل سو
او هلته په ۵۴ هجري کال کي وفات سو.

## د څلورو حافظانو ذکر

﴿۵۹۴۴﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ جَمَعَ الْقُرْآنَ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعَةٌ أُبَيّ بن كعب وَمُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ وَزَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ وَأَبُو زَيْدٍ قِيلَ لِأَنَسٍ مَنْ أَبُو زَيْدٍ قَالَ أَحَدُ عُمُومَتِي. متفق عليه.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي څلورو کسانو قرآن کريم
جمع کړ يعني ابی بن کعب، معاذبن جبل، زيدبن ثابت او ا بوزيد رضي الله عنهم، د انس رضي الله عنه
څخه پوښتنه وسول چي ابوزيد رضي الله عنه څوک دی؟ هغه ورته وويل زما يو اکا دی. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲۷/۷، رقم: ۳۸۱۰، ومسلم ۱۹۱۴/۴، رقم: ۱۱۹- ۲۴۶۵.

**تشريح**: د حضرت ابوزيد رضي الله عنه په نامه کي اختلاف دی ځينو سعيد بن عمير ليکلی دی او ځينو
قيس بن سکن. دغه څلور صحابه کرام د مدينې د انصارو د خزرج قبيلې سره تعلق درلود چي د

حضرت انس رضی اللہ عنہ قبیله ده ، له دې کبله ویل کیږي چي حضرت انس رضی اللہ عنہ کومه خبره کړې ده هغه به د فخر په توګه کړې ده چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي زموږ د قبیلې څلورو کسانو ته د ټول قرآن کریم د یادېدو سعادت په برخه وو ، او که د هغه الفاظ پر-فخر نه بلکه پر عام بیان باندي محمول کړل سي نو بیا هم په دغه الفاظو کي داسي تصریح نسته چي د هغه په وجه دا وویل سي چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي د ذکر سوو څلورو صحابه کرامو څخه ماسوا بل صحابي د ټول قرآن کریم حافظ نه وو ، یوه خبره خو داده چي په داسي ځایو کي د عدد مفهوم خاص اعتبار نه لري، دوهم دا چي د صحابه کرامو یوې لوی ډلي ته د قرآن کریم حافظ کېدل د صحیح حدیثونو څخه ثابت دي، په هغو کي یو حدیث خو هغه دی چي په هغه کي ذکر سوي دي چي په یمامه کي کوم اوویا صحابه کرام شهیدان کړل سول په هغوی کي هغه صحابه کرام هم وه چي هغوی ټول قرآن کریم یاد کړی وو ، او خپله خلفاء اربعه هم د قرآن کریم په حافظانو کي شامل دي .

## د معصب بن عمیر رضی اللہ عنہ فضیلت

﴿۵۹۴۵﴾: وَعَنْ خَبَّابِ بْنِ الْاَرَتِ قَالَ هَاجَرْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت خباب بن ارت رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي موږ د رسول الله ﷺ سره هجرت کړی وو

وَسَلَّمَ نَبْتَغِي وَجَهَ اللّٰهِ تعالى فوقع أَجْرُنَا عَلَى اللّٰهِ فَمِنَّا مَنْ مَضَى لَمْ يَأْكُلْ

د خدای جل جلالہ د رضا تر لاسه کولو لپاره نو زموږ اجر پر خدای جل جلالہ ثابت او قائم سو ، بیا ځیني خلک په موږ کي داسي دي چي تر دنیا تېر سول او د دنیاوي اجر څخه هیڅ په لاس ورنه غلل

مِنْ أَجْرِهِ شَيْئًا مِنْهُمْ مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ قُتِلَ يَوْمَ أُحُدٍ فَلَمْ نَجِدْ شَيْئًا ما

لکه مصعب بن عمیر چي د احد د غزا په ورځ شهید سو او د هغه لپاره پرته د تور کمبل څخه د

يكفن فِيهِ إِلَّا نَمِرَةً كُنَّا إِذَا غَطَّيْنَا رَأْسَهُ خَرَجَتْ رِجْلَاهُ فَإِذَا غَطَّيْنَا رِجْلَيْهِ

کفن لپاره بله هیڅ جامه پیدا نه سوه او هغه کمبل هم داسي وه چي موږ سر ور پټوی نو پښې به یې ښکاره سوې او که به مو پښې ور پټولې

خَرَجَ رَأْسُهُ فقال النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ غطوا بِهَا رَأْسَهُ وجعلوا عَلَى رِجْلَيْهِ مِنَ الاذْخِرِ وَمِنَّا مَنْ أَيْنَعَتْ لَهُ ثَمَرَتُهُ فَهُوَ يَهْدِبُهَا. متفق عليه.

نو سر به یې ښکاره سو ، ددې لیدو سره رسول الله ﷺ وفرمایل : سر په کمبل ور پټ کړئ او پر پښو وابنه ور واچوئ، او ځیني په موږ کې هغه دي چې د هغوی میوه پخه سوه او هغوی هغه میوه خوري . بخاري او مسلم .

**تخریج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٧\٢٢٦، رقم: ٣٨٩٨، ومسلم ٢\٦٤٩، رقم: ٤٤- ٩٤٠.

**د لغاتو حل**: نمرة: اي كساء غليظ فيه خطوط بيض وسود الاذخر: نبت طيب الرائحة.

**تشریح**: هیڅوک د اجر او انعام تر لاسه کولو پرته: یعني هغه خلک د دین په لاره کې د سختو تکلیفو وروسته له دنیا څخه په داسې حال کې رخصت سول چې تر اوسه د فتوحاتو او د مسلمانانو د پراختیا پیل سوی نه وو او دهغه په نتیجه کې تر لاسه کېدونکې مالونه د هغوی په برخه نه سول کوم چې په دغه زمانه کې خلکو ته تر لاسه کیږي نو دهغوی پوره اجر به هغوی ته په آخرت کې ورکول کیږي .

او هغوی میوه چڼ کوي: دا د غنیمت د مال څخه کنایه ده یعني دا هغه خلک دي چې د فتوحاتو او پراختیا زمانه یې تر لاسه نه کړل او د هغه په نتیجه کې چې کوم د غنیمت مال ورپه برخه سو د هغه څخه خپله برخه تر لاسه کوي، د حضرت خباب رضي الله عنه د وینا مطلب دادی چې په موږ کې ځیني خلک خو هغه دي چې هغوی د الله جل جلاله په لاره کې جهاد وکړ ، قرباني یې ورکړل او بیا د اسلام د عظیمو او پراخو فتوحاتو څخه وروسته په مال او زر سره ونازول سول نو د هغه څخه د ګټې اخستنې موقع په لاس ورغلل، او د هغوی په مقابله کې ځیني خلک هغه دي چې هغوی د الله جل جلاله په لاره کې ستري قرباني ورکړې او سخت تکلیفونه یې پر ځان وګالل او د هغو ثمره په دنیا کې تر لاسه کولو څخه مخکې له دنیا څخه رخصت سول او همدارنګه د هغوی ټول ثواب پاته سو چې هغوی ته به په آخرت کې ورکول کیږي او په هغه خلکو کې معصب بن عمیر رضي الله عنه هم دی، ددغه حدیث د حضرت معصب بن عمیر رضي الله عنه د فضیلت بیان دی چې هغه د هغو خلکو څخه دی چې د هغوی اخروي ثواب هم قائم دی او د هغه څخه هیڅ هم کم نه سول ، په یوه حدیث کې راغلي دي چې کوم مجاهدین د الله جل جلاله په لاره کې جهاد کوي او په هغه جهاد کې د غنیمت مال تر لاسه کړي نو هغوی ته دوې برخې ثواب په دنیا کې تر لاسه کیږي او یوه برخه ثواب به یې پاته کیږي چې هغه ته به په آخرت کې ورکول کیږي .

**حضرت معصب بن عمیر** رضي الله عنه : حضرت معصب بن عمیر رضي الله عنه قرشي عبدري دی، د سترو صحابه کرامو څخه دی، هغه د رسول الله ﷺ دارارقم ته د راتلو څخه مخکې په مکه کې اسلام قبول کړی وو او په هجرت کولو سره حبشې ولاړی، بیا یې د بدر په غزا کې ګډون وکړ ، رسول

الله ﷺ هغه د عقبه ثانيه څخه وروسته مدينې ته واستوى او هلته د مدينې خلګو ته د قرآن كريم او دين ښودني خدمت يې هغه ته وسپارى، د هجرت نبوي څخه مخكې په مدينه كې چا چې تر ټولو مخكې د جمعې خطبه وويل هغه معصب بن عمير ﷺ دى، د جاهليت په زمانه كې معصب بن عمير ﷺ ډېر د عيش او آرام ژوند تېروى، غوره جامې يې اغوستلې، مګر كله چې مسلمان سو نو زهد يې اختيار كړ او ددنيا هر ډول عيش او آرام څخه يې لاس واخيست، په حديث كې راغلي دي چې د هغه پر بدن يوازې يوه كمبله وه او پر ملا يې د پسه د پوست تسمه تړلې وه، رسول الله ﷺ چې هغه ولېدى نو ناستو كسانو ته يې وفرمايل: دغه سړي ته وګورئ، د ده زړه د الله جل جلاله په نور سره روښانه سوى دى، ما دغه سړى په مكه كې په داسې حال ليدلى دى چې دده مور او پلار په ده غوره شيان خوړل او ما دده پر بدن داسې جامې ليدلي دي چې په دوه درهمه رانيول كېدى، مګر اوس الله جل جلاله او د هغه د رسول مينې دغه حالت ته رسولى دى چې تاسو يې وينئ، ځينو حضراتو ويلي دي چې رسول الله ﷺ، حضرت معصب بن عمير ﷺ د عقبه اولى څخه وروسته مدينې ته لېږلى وو، هلته د اسلام د دعوت لپاره كور په كور ګرځېدى او هغوى ته يې تبليغ كوى او د هغوى د مسلمان كېدو پوره هڅه يې كول، د هغه د هڅو په نتيجه كې يو يو، دوه دوه به مسلمانان كېدل تر دې چې په مدينه كې د اسلام نور خپور سو او د مدينې د اوسېدونكو ډېر خلګ د اسلام په دائره كې داخل سول، بيا هغه په مدينه كې جمعه قائمه كړل (يعني د جمعې دلمانځه) اجازه د رسول الله ﷺ څخه تر لاسه كړل، ددې وروسته حضرت معصب ﷺ له اوويا كسانو سره مكې ته راغلى، او د عقبه ثانيه په وخت كې د رسول الله ﷺ په خدمت كې حاضر سو، د قرآن كريم دغه آيت: (من المؤمنين رجال صدقوا ما عاهدوا الله عليه) دهمدغه معصب بن عمير ﷺ په شان كې نازل سوى دى.

## د سعد بن معاذ ﷺ فضيلت

﴿۵۹۴۶﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ اهْتَزَّ الْعَرْشُ لِمَوْتِ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ. وفي رواية اهْتَزَّ عَرْشُ الرَّحْمَنِ لِمَوْتِ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ. متفق عليه.

د حضرت جابر ﷺ څخه روايت دى چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي چې د سعد ﷺ پر مرګ عرش الهي حركت وكړ، او په يوه روايت كې دي چې د سعد بن معاذ ﷺ له مرګه د رحمان عرش

و شړقېدی. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۱۲۲، رقم: ۳۸۰۳، ومسلم ۴\۱۹۱۵، رقم: ۱۲۴- ۲۴۶۶.

**تشريح**: په دې اړه د حديث د شارحينو مختلف قولونه دي چي د عرش د ښورېدو څه معنی ده او د هغه د ښورېدو څه سبب وو؟ په يوه قول کي دا معنی بيان سوې ده چي کله حضرت سعد ﷺ وفات سو نو عرش الهي د خوشحالی څخه چي پاک روح راځي وښورېدی ، په يوه قول کي دا ويل سوي دي چي د عرش ښورېدو الفاظ په اصل کي د حضرت سعد ﷺ د پاک روح راتللو په سبب د عرش الهي د حقيقي يا مجازي فرح ونشاط څخه کنايه ده، مگر زياته صحيح خبره داده چي د ښورېدو الفاظ پر حقيقي معنی محمول کړل سي لکه څرنگه چي د لومړني قول څخه ثابتيږي او ددې بنياد دادی چي الله ﷻ په جماداتو کي هم د علم او تميز ماده ايښې ده چي د هغه ثبوت د قرآن کريم ددغه الفاظو : (وان منها لما يهبط من خشية الله) څخه هم حاصليږي او د رسول الله ﷺ ددغه ارشاد څخه هم چي رسول الله ﷺ د احد د غره په اړه فرمايلي وه : دا هغه غر دی چي زموږ سره مينه لري ، د ځينو حضراتو وينا ده چي د عرش د ښورېدو څخه مراد د اهل عرش يعني ملائکو خوشحاله کېدل دي ، ځيني حضرات وايي چي رسول الله ﷺ د حضرت سعد ﷺ د مرگ پېښه د عرش په ښورېدو سره تعبير کړل ، او ځيني حضرات وايي چي دغه الفاظ د حضرت سعد ﷺ د وفات د ستري پېښي څخه کنايه ده لکه څرنگه چي يو ډېر اهم او لوی کس وفات سي نو خلک وايي د هغه په وفات سره په دنيا کي تياره خپره سول ، يا داسي وايي چي د فلاني په مرگ قيامت راغلی .

**حضرت سعد بن معاذ ﷺ** : حضرت سعد بن معاذ بن نعمان ﷺ د مديني له انصارو څخه دی، نوموړی اشهلي اوسي دی، د هغه شمېر له سترو صحابه کرامو څخه کيږي ، نوموړي په مدينه کي د حضرت معصب بن عمير ﷺ په لاس اسلام راوړی وو چي رسول الله ﷺ د خپل هجرت څخه مخکي ددين د تبليغ او تعليم لپاره مديني ته استولی وو، د حضرت سعد ﷺ د اسلام راوړلو په سبب د هغه ټوله کورنۍ بني عبدالاشهل د اسلام په دائره کي داخل سول، رسول الله ﷺ هغه ته د سيدالانصار خطاب ورکړی وو، د بدر او أحد په غزاوو کي يې گډون کړی دی او د احد په ورځ په مېړانه سره ثابت قدمه پاته سو او د رسول الله ﷺ له خوا څخه به هيڅکله نه ليري کېدی، د خندق په غزا کي د هغه پر رگ غشی ولگېدی چي د هغه څخه وينه جاري سول او په هيڅ ډول بنده نه سول تر دې چي د هغه په سبب تقريبا يوه مياشت وروسته د ذي قعده په مياشت کي په پنځم هجري کال وفات سو ، هغه وخت د نوموړي عمر ۳۷ کاله وو او په

بقيع كي خاورو ته وسپارل سو، په دغه وخت کي رسول الله ﷺ وفرمايل: د سعد ؓ پر مرګ اوويا زره ملائکي راکښته سوې او عرش وښورېدی.

﴿۵۹۴۷﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ أُهْدِيَتْ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُلَّةُ حَرِيرٍ فَجَعَلَ أَصْحَابُهُ يَمَسُّونَهَا وَيَعْجَبُونَ مِنْ لِينِهَا فَقَالَ أَتَعْجَبُونَ مِنْ لِينِ هٰذِهِ لَمَنَادِيلُ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ فِي الجنة خَيْرٌ مِنْهَا وَأَلْيَنُ. متفق عليه

د حضرت براء ؓ څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ په خدمت کي د ريښمينو جامو يوه جوړه د تحفې په توګه راوليږل سوه، د رسول الله ﷺ صحابه کرامو به هغه جامه مس کول او د هغه پر نرمۍ به حيران وه، رسول الله ﷺ وفرمايل: تاسو ددې پر نرمۍ حيرانيږئ په جنت کي د سعد بن معاذ ؓ دسمالونه تر دې غوره او ډېر زيات نرم دي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\ ۱۲۲، رقم: ۳۸۰۲، ومسلم ۴\ ۱۹۱۶، رقم: ۱۲۶– ۲۴۶۸.

**تشريح**: د تعجب او حيرانۍ اظهار يې پيل کړ، په يوه روايت کي راغلي دي چي صحابه کرامو دومره غوره جامې هيڅکله ليدلي نه وې ځکه د هغه جامو په لېدو سره يې ډېر تعجب وکړ او وه يې ويل: دغه جامه پر رسول الله ﷺ باندي د آسمان څخه نازله سوې ده.

مناديل د منديل جمع ده او منديل هغه دستمال ته وايي چي د هغه څخه د لاس او نورو اندامو وچولو کار اخيستل کيږي، په دغه وخت کي رسول الله ﷺ د منديل په ذکر کولو سره څرګنده کړل چي د جنت د جامو داسي کوچني شيان د دنيا له قيمتي او غوره جامو څخه هم اعلی او افضل دي نو د هغه ځای د جامو به څه پوښتنه کوئ.

## د حضرت انس ؓ په حق کي دعاء

﴿۵۹۴۸﴾: وَعَنْ أُمِّ سُلَيْمٍ أَنَّهَا قَالَتْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَنَسٌ خَادِمُكَ ادْعُ اللّٰهَ لَهُ

د حضرت ام سليم (رض) څخه روايت دی چي هغې عرض وکړ اې د الله رسوله! انس ؓ ستاسو خادم دی دده لپاره د خدای ﷻ څخه دعاء وغواړئ،

قَالَ اللّٰهُمَّ أَكْثِرْ مَالَهُ وَوَلَدَهُ وَبَارِكْ لَهُ فِيمَا أَعْطَيْتَهُ قَالَ أَنَسٌ فَوَاللّٰهِ إِنَّ مَالِي

ته وركوې په هغه كي بركت واچوې، دانس رضي الله عنه بيان دی چي قسم په خدای زما مال

لَكَثِيرٌ وَإِنَّ وَلَدِي وَوَلَدَ وَلَدِي لَيَتَعَادُّونَ عَلَى نَحْوِ الْمِائَةِ الْيَوْمَ. متفق عليه

ډير دی او زما اولاد او د اولاد اولاد نن په شمير سلو ته نژدې دي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١١\١٣٦، رقم: ٦٣٣۴، ومسلم ۴\١٩٢٩، رقم: ١۴٣- ٢۴٨١.

**تشريح**: نن په شمېر كي سلو ته نژدې دی: حضرت انس رضي الله عنه د خپل بېله واسطې او بالواسطه دغه شمېر هغه وخت بيان كړ كله چي هغه ددې خبري ذكر كړی وو، ددې څخه وروسته د هغه په اولاد كي نور هم زياتوب وسو، ابن حجر د حضرت انس رضي الله عنه څخه هغه روايت نقل كړی دی چي د هغه ورځي څخه ډېر وخت وروسته يې بيان كړی وو او په هغه كي يې ويلي وه چي الله جل جلاله زما د اولاد د اولاد څخه ماسوا چي كوم اولاد بېله واسطې زما د ملا څخه ما ته راكړی دی هغوی په شمېر كي يو سل او پنځه ويشت دي چي په هغو كي دوې انجوني او پاته ټول هلكان دي او زما په مال كي د بركت دومره عالم دی چي زما باغونه په كال كي دوه واره ميوه كوي او د حضرت انس رضي الله عنه يو زوی بيان وكړ چي د والد محترم، حضرت انس رضي الله عنه د صلبي اولاد څخه چي ما ښخ كړي دي د هغوی شمېر د سلو شاوخوا دی.

ددې څخه معلومه سول چي مال او اولاد د الله جل جلاله لوی نعمت دی په شرط ددې چي هغه د ياد الهي څخه د غفلت او د ګناه سبب نه سي، امام نووي رحمة الله عليه ليكلي دي دا په اصل كي د رسول الله صلى الله عليه وسلم يوه معجزه ده او دغه حديث د هغه حضراتو په حق كي دی چي پر فقير او مفلس باندي د غني او شتمن د فضيلت قائل دي مګر د نورو حضراتو له خوا ددې په جواب كي دا ويل كيږي چي ددغه معاملې خاص نوعيت دی او هغه دا چي رسول الله صلى الله عليه وسلم د حضرت انس رضي الله عنه په حق كي دعاء وكړل او دهغه دعاء په وجه د هغه په مال كي بركت پيدا سو او كله چي د بركت الهي دخل وسو نو د هغه مال هغه اړخ ولاړی كوم ته چي د شريعت په نظر كي فتنه ويل كيږي نو هغه مال د حضرت انس رضي الله عنه په حق كي نه خو د تقصير او خرابۍ باعث جوړ سو او نه د الله جل جلاله په حقوقو كي د كوتاهۍ سبب، له دې كبله علماؤ ليكلي دي چي د دغه حديث څخه ددې خبري استحباب ثابتيږي چي كوم څوك له دنيا سره د تعلق لرونكي يو شي دعاء وغواړي نو په هغه دعاء كي دي بركت هم شامل كړي يعني د الله جل جلاله څخه دا سي شي غوښتنه دي هم وكړي چي اې الله! په دغه شي كي ما ته بركت راكړې او ما د هغه د فتنې او آفاتو څخه خوندي كړې.

**حضرت انس** رضي الله عنه: حضرت انس رضي الله عنه بن مالک بن نضر د مدينې اوسېدونكی او خزرجي دی،

ابو حمزه يې كنيت دى ، نوموړى خپلې مور د رسول الله ﷺ په خدمت كې هغه وخت وړاندې كړى وو كله چې هغه د دوولسو كالو وو، نوموړى د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت په زمانه كې د بصرې هستوګنه ددې لپاره اختيار كړل چې د هغه ځاى اوسېدونكو ته د دين علم وښيي او په بصره كې په ۹۱م هجري كال كې وفات سو ، هغه وخت يې عمر ۱۰۳ كاله وو، په بصره كې د وفات كېدونكو صحابه كرامو څخه انس رضي الله عنه اخري صحابي دى، ابن عبدالبر رحمة الله عليه نقل كړي دي چې د حضرت انس رضي الله عنه د زامنو شمېر سل وو، او دا قول زيات صحيح دى، ځينو حضراتو ليكلي دي چې د هغه د اولاد شمېر اتيا وو، چې په هغه كې ۷۸ زامن او دوې لوڼې وې، ددې مطلب دا سو چې ابن حجر رحمة الله عليه كوم روايت نقل كړى دى او په هغه كې د حضرت انس رضي الله عنه د اولاد شمېر ۱۲۵ بيان سوى دى ، نو دغه روايت نه يوازې دا چې د هغه روايتو خلاف ګرځي چې په هغه كې د اولاد شمېر سل او اتيا بيان سوى دى بلكه د ذكر سوي حديث هم مخالف معلومېږي ځكه د دغه الفاظ پر دې دلالت كوي چې د حضرت انس رضي الله عنه بلا واسطه او بالواسطه د اولاد مجموعي شمېر سل يا تر سلو زيات وو ، نه دا چې دغه شمېر يوازې د هغه بلاواسطه اولاد دى ، والله اعلم.

## د حضرت عبدالله بن سلام رضي الله عنه فضيلت

﴿۵۹۴۹﴾: وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ قَالَ مَا سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لِأَحَدٍ يَمْشِي عَلَى وجه الْأَرْضِ إِنَّهُ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ إِلَّا لِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَلَامٍ. متفق عليه

د حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه څخه روايت دى چې ما هيڅكله د يو سړي په اړه د رسول الله ﷺ څخه دا نه دي اورېدلي چې هغه پر مځكه ګرځي او جنتي وي، مګر د عبدالله بن سلام رضي الله عنه په اړه. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۷/ ۱۲۸، رقم: ۳۸۱۲، ومسلم ۴/ ۱۹۳۰. رقم: ۱۴۷- ۲۴۸۳.

**تشريح**: حضرت عبدالله بن سلام رضي الله عنه ډېر ستر صحابي دى، د هغه د نسب لړۍ د حضرت يوسف عليه السلام سره يو ځاى كېږي، نوموړى مخكې يهودي وو او په يهودو كې لوى عالم شمېرل كېدى، بيا الله جل جلاله هدايت ور په برخه كړ او د اسلام په دائره كې په داخلېدو سره د اسلام او مسلمانانو ستر خدمتونه يې وركړل، د حضرت عبدالله بن سلام رضي الله عنه په اړه حضرت سعد رضي الله عنه

وايي: مايوازي دده په اړه د رسول الله ﷺ د ژبې مبارکي څخه دغه زيرى اورېدلى دى چې عبدالله بن سلام رضي الله عنه جنتي دى.

پر مځکه باندي ګرځي: دغه صفت د اعزاز دى يعني حضرت سعد رضي الله عنه دغه الفاظ ځکه وويل چې د عشره مبشره څخه د هغه حضراتو استثنى وکړي کوم چې د حضرت عبدالله بن سلام رضي الله عنه څخه مخکي وفات سوي دي، يعني د هغه مطلب دا وو چې دغه وخت د مځکي پر مخ باندي کوم خلګ ژوندي دي په هغوى کي يوازي عبدالله بن سلام رضي الله عنه هغه کس دى چې هغه په اړه ما د رسول الله ﷺ څخه په خپلو غوږو اورېدلي دي چې هغه جنتي دى.

نووي رحمة الله عليه ليکلي دي: دغه حديث د هغه روايت خلاف نه دى چې په هغه کي د حضرت ابوبکر صديق، حضرت عمر او نورو لسو صحابه کرامو رضي الله عنهم په اړه د جنتي کېدو زيرى مذکور دى ځکه چې حضرت سعد رضي الله عنه محض د خپل اورېدو نفي کړې ده يعني هغه دا بيان کړى دى چې ما د رسول الله ﷺ د ژبې څخه دغه زيرى يوازي د عبدالله بن سلام رضي الله عنه په اړه اورېدلى دى او دبل چا په اړه مي نه دى اورېدلى نو دبل چا په اړه د هغه نه اورېدل ددې خبري دليل نه سي کيداى چې د جنتي کېدو زيرى د عبدالله بن سلام رضي الله عنه څخه ماسوا بل سړي ته ورکړل سوى نه دى، ددې څخه ماسوا دا خبره هم بايد په ذهن کي وي چې کله د يوې پېښې په اړه نفي او اثبات دواړه ځرګندونکي روايات موجود وي نو ترجيح به هغه روايت ته ورکول کيږي چې د هغه څخه اثبات معلوميږي.

په هر حال حقيقت دادى چې رسول الله ﷺ د حضرت عبدالله بن سلام رضي الله عنه څخه ماسوا د نورو ډېرو صحابه کرامو دجنتي کېدو زيرى ورکړى دى چې په هغوى کي تر ټولو زيات مشهور هغه لس صحابه کرام دي چې هغوى ددغه زيرى په وجه عشره مبشره سره نومول کيږي، او خپله حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه هم په هغوى کي شامل دى، نو ددغه حديث په اړه چې کوم سوال پيدا کيږي د هغه ازاله په ذکر سوي وضاحت سره کيږي، شارحينو نوري خبري هم ليکلي دي د مثال په توګه دا کيداى سي چې کله حضرت سعد رضي الله عنه د عبدالله بن سلام رضي الله عنه څخه ماسوا د بل چا په حق کي د ذکر سوي زيرى د اورېدو نفي کړې وي نو هغه وخت به دغه زيرى رسول الله ﷺ نورو ته نه وي ورکړى يا دا چې حضرت سعد رضي الله عنه دغه نفي هغه وخت کړې وي کله چې پاته زيرى ورکونکي صحابه کرام له دنيا څخه رخصت سوي وي. نو په تاريخي توګه ثابته ده چې حضرت عبدالله بن سلام رضي الله عنه د هغه صحابه کرامو څخه وروسته ژوندى وو او کله چې هغه وفات سو نو د عشره مبشره څخه د حضرت سعد او حضرت سعيد رضي الله عنهما څخه ماسوا بل څوک

ژوندی نه وو، ددې تائید د هغه روایت څخه هم کیږي چي دارقطني نقل کړی دی او په هغه کي د حضرت سعد رضی الله عنه الفاظ داسي دي چي ما د عبدالله بن سلام رضی الله عنه څخه ماسوا د بل چا په اړه چي اوس ژوندي دی او پر مځکه ګرځي د نبي کریم ﷺ څخه نه دي اورېدلي دي چي هغه جنتي دی، اوس پاته سو دغه سوال چي حضرت سعد رضی الله عنه د دغه خبري په کولو سره خپل ځان او حضرت سعید رضی الله عنه ولي ذکر نه کړل، نو ویل کیږي چي هغه خپل ذکر په دې وجه ونه کړ چي هغه ته په خپل حق کي د دغه زیری علم په بلي ذریعې سره سوی وي خپله هغه د رسول الله ﷺ څخه د دغه زیری نه وي اورېدلی یا دا چي هغه د خاکساری په وجه د خپل ځان یادونه کول مناسب نه وي ګڼلې او کوم چي د حضرت سعید رضی الله عنه تعلق دئ نو د هغه په اړه سوال په دغه وضاحت سره ختمیږي چي حضرت سعد رضی الله عنه د: یمشي علی وجه الارض، یعني پر مځکه باندي ګرځي، الفاظو په ویلو کي د هغه څخه دا مراد وي چي کله رسول الله ﷺ د حضرت عبدالله بن سلام رضی الله عنه په حق کي دغه زیری وفرمایه نو هغه وخت هغه پر مځکه ګرځېدی حال دا چي د نورو په حق کي دغه زیری په نورو حالاتو کي ویل سوی وو.

## د حضرت عبدالله بن سلام رضی الله عنه خوب او هغه ته د جنت زیری

﴿۵۹۵۰﴾: وَعَنْ قَيْسِ بْنِ عُبَادٍ قَالَ كُنْتُ جَالِسًا فِي مَسْجِدِ الْمَدِينَةِ فَدَخَلَ

د حضرت قیس بن عباد رضی الله عنه څخه روایت دی چي زه د مدینې په مسجد کي ناست وم چي یو

رَجُلٌ عَلَى وَجْهِهِ أَثَرُ الْخُشُوعِ فَقَالُوا هَذَا رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَصَلَّى

سړی راغلی چي د هغه په مخ کي د عاجزۍ علامه وه، خلکو وویل دا سړی جنتي دی، بیا هغه

رَكْعَتَيْنِ تَجَوَّزَ فِيهِمَا ثُمَّ خَرَجَ وَتَبِعْتُهُ فَقُلْتُ إِنَّكَ حِينَ دَخَلْتَ الْمَسْجِدَ

دوه رکعته کوتاه لمونځ وکړ بیا د مسجد څخه ولاړی، زه په هغه سړي پسي ولاړم هغه ته مي وویل کله چي تاسو په مسجد کي داخل سواست

قَالُوا هَذَا رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ قَالَ وَاللهِ مَا يَنْبَغِي لِأَحَدٍ أَنْ يَقُولَ مَا لَا

نو خلکو وویل چي دا سړی جنتي دی، هغه سړي وویل په خدای دي مي قسم وي هیچا ته دا خبره مناسبه نه ده چي هغه خبره وکړي په کومي چي

يَعْلَمُ وَسَأُحَدِّثُكَ لِمَ ذَاكَ رَأَيْتُ رُؤْيَا عَلَى عَهْدِ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

خبر نه وي، زه تا ته اوس دد ې واقعه بيانوم، ما د رسول الله ﷺ په زمانه کي يو خوب ليدلی وو

فَقَصَصْتُهَا عَلَيْهِ وَرَأَيْتُ كَأَنِّي فِي رَوْضَةٍ ذَكَرَ مِنْ سَعَتِهَا وَخُضْرَتِهَا وَسْطَهَا

هغه خوب ما رسول الله ﷺ ته بيان کړ، خوب دا وو چي زه په يو باغچه کي يم هغه سړي د هغه باغچې پراخي او تازګي بيان کړه او بيا يې وويل د باغچې په مينځ کي

عَمُودٌ مِنْ حَدِيدٍ أَسْفَلُهُ فِي الْأَرْضِ وَأَعْلَاهُ فِي السَّمَاءِ فِي أَعْلَاهُ عُرْوَةٌ فَقِيلَ لِي

د اوسپني يوه ستن ده چي د هغې يو سر په مځکه دی او دويم سر يې په آسمان کي دی، او د هغه ستن سربيره يوه حلقه ده، ما ته وويل سول چي

ارْقَ قُلْتُ لَا أَسْتَطِيعُ فَأَتَانِي مِنْصَفٌ فَرَفَعَ ثِيَابِي مِنْ خَلْفِي فَرَقِيتُ حَتَّى

پر دې ستن وخيژه، ما ورته وويل زه د ختلو توان نه لرم، بيا يو خادم ما ته راغلی چي هغه زما جامې د وروسته څخه پورته کړې او زه پر ستن وختلم تر دې چي

كُنْتُ فِي أَعْلَاهَا فَأَخَذْتُ بِالْعُرْوَةِ فَقِيلَ لَهُ اسْتَمْسِكْ فَاسْتَيْقَظْتُ وَإِنَّهَا لَفِي

هغه حلقه ما په لاس کي واخيستل بيا يې ما ته وويل دا ټينګه ونيسه، بيا زما سترګي ولغړېدې په داسي حال کي چي هغه حلقه زما په لاس کي وه،

يَدِي فَقَصَصْتُهَا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ تِلْكَ الرَّوْضَةُ

ما نبي کريم ﷺ ته خوب بيان کړ نو رسول الله ﷺ راته وفرمايل: هغه باغچه اسلام دی او هغه

الْإِسْلَامُ وَذَلِكَ الْعَمُودُ عَمُودُ الْإِسْلَامِ وَتِلْكَ الْعُرْوَةُ عُرْوَةُ الْوُثْقَى فَأَنْتَ عَلَى الْإِسْلَامِ حَتَّى تَمُوتَ وَذَاكَ الرَّجُلُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَلَامٍ. متفق عليه.

ستن د اسلام ستن ده، او ددې تعبير دا دی چي ته به تر مرګه پوري پر اسلام ثابت قدم اوسې، او هغه سړی چي د هغه ذکر په دې حديث کي دی عبد الله بن سلام ؓ دی. بخاري او مسلم. (د ستن څخه مراد د خوني ميل يا پايه ده).

**تخریج:** صحیح البخاري (فتح الباري): ۷\۱۲۹، رقم: ۳۸۱۳، ومسلم ۴\۱۹۳۰، رقم: ۱۴۸- ۲۴۸۴.

**د لغاتو حل:** تجوز: اي اختصر. ارقه: اصعد. المنصف: الخادم.

**تشریح:** د هیڅ لپاره مناسب نه ده چي د دغه الفاظو په ذریعه د هغه یعني حضرت عبد الله بن سلام رضي الله عنه د هغه خلګو د تصدیق کولو څخه انکار وکړ چي هغوی د هغه په اړه ویلي وه چي دغه صاحب جنتي دی، نووي رحمه الله لیکلي دي: عبد الله بن سلام رضي الله عنه د هغوی د تصدیق څخه انکار له دې کبله وکړ چي هغو خلګو په قطعي او یقیني انداز کي د هغه د جنتي کېدو خبره کړې وه، نو ویل کیدای سي چي هغو خلګو دغه خبره له دې کبله کړې وه چي د هغوی په علم کي د حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه هغه حدیث وو چي په هغه کي د رسول الله ﷺ له خوا د عبد الله بن سلام رضي الله عنه د جنتي کېدو د زیري ورکولو یادونه ده، او حضرت عبد الله بن سلام رضي الله عنه د هغوی د دغه خبري تصدیق ځکه ونه کړ چي هغه به د خپل ځان په اړه دغه زیری نه وي اورېدلی او حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه ذکر سوی روایت هغه ته نه وي رسېدلی، او دا هم ویل کیدای سي چي حضرت عبد الله بن سلام رضي الله عنه ته هم د خپل ځان په اړه د ذکر سوي زیری علم وو مګر هغه د خاکسارۍ په وجه دا خوښه نه کړل چي د هغه خلګو په تصدیق کولو سره د خپل عظمت او لويي سبب جوړ سي او د دغه زیري په وجه په خلګو کي شهرت تر لاسه کړي، یعني د هغه د انکار مطلب دا وو چي بېله شکه د رسول الله ﷺ د ورکړل سوي زیری سره سم زه د جنتي کېدو امید لرم مګر دا خبره نه خوښوم چي د دغه زیري په وجه زما عظمت او لوئي بیان کړل سي او زما ذات ته شهرت ورکړل سي، ځکه چي دا سي زیری زما څخه ماسوا نورو خلګو ته ورکړل سوی دی، نو بیا په ما کي څه خصوصیت دی چي د دغه زیري په ذریعه دي مشهور کړل سم او څرنګه چي طیبي رحمه الله لیکلي دي: دا سي هم ویل کیدای سي چي حضرت عبد الله بن سلام رضي الله عنه خپل دغه الفاظ: او زه تاسو ته د دې وجه ښیم، په ذریعه د هغه خلګو د تصدیق څخه انکار ته اشاره وکړل یعني هغه دا وویل چي زه د دغه خلګو تصدیق نه سم کولای او د تصدیق نه کولو وجه داده چي ما دغه خوب ولیدی او دغه خوب مي رسول الله ﷺ ته بیان کړ نو رسول الله ﷺ وفرمایل: زما د علم تر حد پوري خو خبره داده او دا خبره په دې امر کي چي زه په یقیني توګه جنتي یم، زما په نزد د رسول الله ﷺ له خوا د نص قطعي درجه هیڅکله نه لري لکه څرنګه چي د نورو په حق کي دا سي زیری د نص قطعي په صورت کي مذکور دی.

او ځینو شارحینو دا هم لیکلي دي چي د ذکر سوو الفاظو په ذریعه حضرت عبد الله بن سلام رضي الله عنه د هغه خلګو د خبري د تصدیق څخه انکار ونه کړ بلکه هغه د دې خبري تصدیق وکړ یعني

هغه دا وويل چي كوم څوک د رسول الله ﷺ د ملګرتيا څخه برخمن سوی وي يا كوم څوک چي د رسول الله ﷺ په حديثونو او د هغه ﷺ په ارشاداتو خبر وي نو هغه داسي خبره کولای نه سي چي د هغه د علم څخه وتلې وي، نو هغه خلګ به په دې خبره پوهيږي چي هغوی زما په اړه وايي چي زه جنتي يم او خپله زه هم په دې اړه چي په څه پوهيږم هغه بيانوم او هغه خوب دادی: په داسي حال کي چي ما په خوب کي هغه کړۍ نيولې وه چي هغه وخت زما سترګي خلاصي سوې نو ددغه جملې څخه دا مراد نه دی چي د سترګو لغړېدو وروسته هم هغه کړۍ د هغه په لاس کي وه ، که چيري د روايت الفاظ د هغه پر ظاهري معنی محمول کړل سي چي د ويښ کېدو څخه وروسته هم هغه کړۍ د هغه په لاس کي وه نو په دې کي څه ليري والي نسته ځکه چي د الله ﷻ په قدرت کي داسي کېدل ناممکن نه دي مګر په عامه توګه داسي نه کيږي، او ددغه الفاظو څخه د حضرت عبدالله بن سلام ﷛ دا مراد هم کيدای سي چي ددغه خوب اثر د ويښ کېدو څخه وروسته هم زما په لاس کي پاته وو، يعني کله چي سهار سو او زما سترګي خلاصي سوې نو زما موټ په هغه حالت کي بند وو لکه څرنګه چي ما په خوب کي هغه کړۍ نيولې وه.

او هغه کړۍ عروه وثقي ده، هغه په اصل کي د الله ﷻ ارشاد : (و من يؤمن بالله فقد استمسک بالعروة الوثقی) او کوم څوک چي په الله ﷻ باندي ايمان ولري نو هغه ټينګه کړۍ ونيول، ته اشاره وفرمايل، چي په خوب کي ستا پر ستن باندي ختل او د هغه کړۍ نيول دا ظاهروي چي ستا ايمان او اخلاص کامل دی او تا دين په دومره ټينګۍ سره نيولی دی چي ددرجو آخري لوړوالي ته رسېدلی يې.

هغه عبدالله بن سلام ﷛ وو: څرګنده خو داده چي دغه الفاظ د حضرت قيس بن عباد دي مګر دا هم ليري خبره نه ده چي دا خپله د حضرت عبدالله بن سلام ﷛ الفاظ وي چي د هغه په ذريعه هغه د خپل ځان په اړه وضاحت وکړ او ځان يې په غائب سره تعبير کړ.

## حضرت ثابت بن قيس ﷛ ته د جنت زيري

﴿۵۹۵۱﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ ثَابِتُ بْنُ قَيْسِ بْنِ شَمَّاسٍ خَطِيْبَ الْأَنْصَارِ

د حضرت انس ﷛ څخه روايت دی چي ثابت بن قيس ﷛ بن شماس د انصارو خطيب وو،

فَلَمَّا نَزَلَتْ: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَرْفَعُوا أَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ إِلَى

کله چي دا آيت نازل سو (يا ايها الذين آمنوا لاترفعوا .....)، (اې مؤمنانو ! خپل آوازونه د نبئ

کریم ﷺ پر آواز مه پورته کوئ.....الخ)

آخِرِ الْآيَةِ جَلَسَ ثَابِتٌ فِي بَيْتِهِ وَاحْتَبَسَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

نو ثابت بن قیس رضی اللہ عنہ خپل په کور کي کښېنستی او د رسول الله ﷺ په خدمت کي تلل راتلل يې

فَسَأَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَعْدَ بْنَ مُعَاذٍ مَا شَأْنُ ثَابِتٍ اَيَشْتَكِي

بند کړل، نبي کریم ﷺ د سعد بن معاذ رضی اللہ عنہ څخه پوښتنه وکړه چي ثابت په څه حال کي دی ایا هغه ناروغ دی؟

فَأَتَاهُ سَعْدٌ فَذَكَرَ لَهُ قَوْلَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ ثَابِتٌ أُنْزِلَتْ

سعد رضی اللہ عنہ ثابت رضی اللہ عنہ ته ورغلی او هغه ته يې د رسول الله ﷺ ارشاد بیان کړ، ثابت رضی اللہ عنہ وویل دا

هٰذِهِ الْآيَةُ وَلَقَدْ عَلِمْتُمْ أَنِّي مِنْ أَرْفَعِكُمْ صَوْتًا عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

آيت نازل سوی دی او تا ته معلومه ده چي زما آواز ستاسو د ټولو د آواز څخه لوړ دی په دې وجه

وَسَلَّمَ فَأَنَا مِنْ أَهْلِ النَّارِ فَذَكَرَ ذٰلِكَ سَعْدٌ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَلْ هُوَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ. رواه مسلم.

زه دوږخي يم ، سعد رضی اللہ عنہ ددې ذکر نبي کریم ﷺ ته وکړ، رسول الله ﷺ وفرمایل : بلکه هغه جنتي دی . مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۱/ ۱۱۰، رقم: ۱۸۷– ۱۱۹.

**تشریح**: ایا هغه ناروغ دی: څرګنده ده چي د حضرت ثابت رضی اللہ عنہ صدق حال تاثیر وکړ او د رسول الله ﷺ د پوښتني کولو سبب سو ، رسول الله ﷺ د هغه په اړه پوښتنه وکړل او تشویش يې ظاهر کړ چي هغه ناروغ خو نه دی چي زموږ مجلس ته تګ راتګ يې بند کړی دی.

حالت خویش چه حاجت که بوئي شرح دهم
گر مرا سوز دلي هست اثر خـــــواهد کرد

زه خو دوږخي یم: په اصل کي د حضرت ثابت رضی اللہ عنہ په طبعي توګه لوړ آواز وو ، نو په خبرو اترو کي د هغه آواز بې بېله قصد هم لوړ وو ، کله چي ذکر سوی آیت نازل سو ، نو هغه دا وګڼل چي زه د

خپل آواز پر كښته كولو قادر نه يم او د رسول الله ﷺ په مخكي زما آواز لوړ وي ځكه زه د دغه آيت نه عملي كوونكي يم او له دې كبله زما اعمال برباد سول او زه دوږخي سوم، هغه په دې پوه نه سو چي د دغه آيت مراد د رسول الله ﷺ په مخكي په هغه لوړ آواز كي د خبرو كولو څخه منع كوي چي په قصد سره وي او د هغه څخه بې ادبي ښكاريږي.

ثابت رضي الله عنه خو جنتي دى: يعني ثابت رضي الله عنه چي زما په ادب او احترام كي كوم احتياط اختيار كړ چي په طبعي توګه لوړ آواز يې هم ناجائز وګڼى او له دې كبله هغه د جنت استحقاق پيدا كړى دى او هغه به جنت ته ځي، نو د ثابت بن قيس رضي الله عنه جنتي كېدل په حقيقت كي هم داسي ثابت سول چي هغه د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه په ملګرتيا كي د يمايمه په غزا كي ګډون وكړ او د شهادت مرتبه يې تر لاسه كړل، نقل سوي دي چي كله حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه د مسيلمه كذاب پر خلاف د جهاد بېرغ پورته كړ او د اسلام مجاهدينو ته يې د تيارۍ حكم وركړ، نو حضرت ثابت بن قيس رضي الله عنه خپل كفن تيار كړ او د هغه كفن په اغوستلو سره د يمايمه په غزا كي د مسيلمه كذاب پر خلاف وجنګېدى تر دې چي هغه كفن اغوستى شهيد سو.

د دغه حديث په اړه يو سوال پيدا كيږي او هغه دا چي د ذكر سوي آيت نېټه نهم هجري كال بيان سوى دى حال دا چي حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه تر دې مخكي په پنځم هجري كال كي وفات سوى وو، د دې جواب شارحينو دا ليكلى دى چي په دغه حديث كي د حضرت ثابت رضي الله عنه سره اړوند كوم آيت چي ذكر سوى دى هغه يوازي هغه آيت دى چي په هغه كي يوازي د آواز نه لوړولو حكم مذكور دى يعني: (يا ايها الذين آمنوا لا ترفعوا اصواتكم ...الخ) نه د سورت اول آيت يعني: (يا ايها الذين امنوا لاتقدموا بين يدي الله ...الخ) نو د سورت اول آيت خو به په نهم هجري كال كي نازل سوى وي او په حديث كي ذكر سوى آيت به د حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه د وفات څخه مخكي نازل سوى وي.

## د حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه فضيلت

﴿۵۹۵۲﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ كُنَّا جُلُوسًا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دى چي موږ د نبي كريم ﷺ سره حاضر وو چي

اِذْ نَزَلَتْ سُورَةُ الْجُمُعَةِ فلما نزلت وَآخَرِينَ مِنْهُمْ لَمَّا يَلْحَقُوا بِهِمْ قَالُوا مَنْ

سورة جمعه نازل سو او هر كله چي په دغه سورة كي دا آيت نازل سو (وآخرين منهم لما يلحقوا

بهم)، (يعني د دې ډلي څخه چي خداى ورته پيغمبر راليږلى دى ځيني خلک دي چي او س لا د اصحابو د ډلي سره نه دي يوځاى سوي)، صحابه کرامو پوښتنه وکړه

**هُؤلاءِ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ وَفِينَا سَلْمَانُ الْفَارِسِيُّ قال فوَضَعَ النبي صَلَّى اللّٰهُ**

اې د الله رسوله! هغه کوم خلک دي؟ ابو هريره رضي الله عنه وايي په دغه وخت کي سلمان فارسي رضي الله عنه هم په موږ کي موجود وو، رسول الله ﷺ

**عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَهُ عَلَى سَلْمَانَ ثُمَّ قَالَ لَوْ كَانَ الإِيمَانُ عِنْدَ الثُّرَيَّا لَنَالَهُ رِجَالٌ مِنْ هَؤُلَاءِ. متفق عليه.**

خپل لاس مبارک پر سلمان فارسي رضي الله عنه کښېښود او وه يې فرمايل: که ايمان په ثريا کي واى نو رانيولى به واى هغه سړو له دغه کسانو څخه. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\۶۴۱، رقم: ۴۸۹۷، ومسلم ۴\۱۹۷۲، رقم: ۲۳۱- ۲۵۴۶.

**تشريح**: پوره آيت دادى:

هُوَالَّذِي بَعَثَ فِي الأُمِّيِّينَ رَسُولاً مِّنْهُمْ يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَإِن كَانُوا مِن قَبْلُ لَفِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ وَآخَرِينَ مِنْهُمْ لَمَّا يَلْحَقُوا بِهِمْ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ

ژباړه: الله جل جلاله هغه ذات دى چي په اميانو کي د دوى (د قوم) څخه يې يو پيغمبر راوليږى چي هغوى ته د الله جل جلاله د آياتونو په ويلو سره اوروي او هغوى (د خرابو عقيدو او خرابو عادتو څخه) پاکوي، او هغوى د کتاب او پوهي خبري ښيي او دغه خلک (د پيغمبر د راتلو څخه) مخکي په ښکاره ګمراهي کي وه او په دوى کي نور خلک هغه دي چي تر اوسه هم په هغوى کي شامل سوي نه دي او الله جل جلاله غالب او د حکمت خاوند دى.

په دغه آيت کي د اميين (يعني بې علمه) څخه مراد عرب دي او صحابه کرامو ته اشاره ده چي هغوى د ګمراهۍ او جهالت د لاري په پرېښودو سره د نبي اخرالزمان ﷺ په لاس مبارک اسلام قبول کړ، د آخرين (نورو خلکو) څخه مراد هغه خلک دي چي د قرآن کريم د نزول په وخت کي موجود نه وه بلکه په وروسته زمانه کي يعني د صحابه کرامو په وخت کي په اسلام راوړونکو کي شامل سول، يعني تابعينو ته اشاره ده، او تابعين هم په خاصه توګه هغه چي د هغوي تعلق د عجمو سره وي، د تابعينو زيات شمېر پر عجميانو مشتمل دى لکه څرنګه چي د

ځو کسانو ماسوا پاته ټول صحابه کرامو د عربو څخه دي ، په هر حال رسول الله ﷺ په دغه حدیث کي د حضرت سلمان رضی الله عنه تعریف وکړ چي غیر عرب یعني عجمی دی او د هغه په نسبت سره يې ځرګنده کړل چي په دغه آیت کي د (آخرینو) څخه مراد هغه خلګ دي چي تر اوسه د اسلام په دائره کي داخل نه دي ، یا خو په دې وجه چي هغوی تر اوسه پیدا سوي نه وي او یا په دې وجه چي هغوی ته تر اوسه د اسلام دعوت رسېدلی نه دی ، مګر وروسته به هغوی تاسو ته راځي او د اسلام په دائره کي به داخلېږي او په هغوی کي به اکثر عجمیان وي، هغه خلګ به د دین او علم داسي پلټنه کوي که چیري د دین او ایمان علم د ثریا پر لوړه باندي وي نو هلته په رسېدو سره به يې حاصل کړي، په دې کي شک نسته چي هغه تابعینو په کوم تکلیف سره دین حاصل کړ او د علم او اجتهاد په میدان کي يې ځرګنده کړني سرته ورسولې هغه د صحابه کرامو څخه وروسته د هغوی وصف دی .

**حضرت سلمان فارسي** رضی الله عنه : نوم يې سلمان او کنیت يې ابو عبدالله دی، د نوموړي تعلق د فارس (ایران) سره وو ، ځکه په فارسي نسبت سره مشهور دی، د رسول الله ﷺ آزاد سوی غلام دی ځکه چي رسول الله ﷺ د یو یهودي څخه رانیوی او آزاد يې کړ، حضرت سلمان فارسي رضی الله عنه د سترو صحابه کرامو څخه دی ، ویل کیږي چي نوموړی د فارس د مشهور نسل رام هرمز، څخه دی چي مجوسیان وه، او د ابلکو اسونو عبادت کونکي ګڼل کیږي، حضرت سلمان رضی الله عنه د شروع څخه د حق دین په پلټنه کي وو ، په دې اړه هغه خپل پلرنی مذهب پرې اینبی وو او عیسائیت يې اختیار کړی وو، او د هغه مذهبي کتابونو علم يې حاصل کړ، د هغه پلار او خپلوانو ته د هغه عیسائي کېدل خوښ نه سول نو هغه ته يې سختي سزاوي ورکولې مګر هغه هره سختي وزغمل او عیسائیت يې نه پرېښود، بیا د خپل هیواد په پرېښودو سره شام ته راغلی او دلته د عربو څخه د ځینو خلګو په لاس ورغلی او هغوی مدینې ته په راوستلو سره د یو یهودي په لاس وپلوری، ویل کیږي چي په هغه زمانه کي حضرت سلمان رضی الله عنه د یو بل په لاس په لسو کسانو وپلورل سو او د هغوی ټولو په غلامي کي وو، تر دې چي نبي کریم ﷺ د مکې څخه په هجرت کولو سره مدینې ته تشریف راوړ نو دی د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او د اسلام په دائره کي داخل سو، رسول الله ﷺ دده په اړه فرمایلي وه چي سلمان رضی الله عنه د جنتیانو څخه دی او د هغوی څخه یو دی چي جنت د هغوی په انتظار دی، د حضرت سلمان رضی الله عنه عمر ډېر اوږد وو ، ځیني حضرات وايي چي د وفات پر وخت د هغه عمر درې نیم سوه (۳۵۰) کاله وو، او ځیني وايي چي د دووه نیم سوه (۲۵۰) کالو په عمر کي وفات سو، زیات صحیح قول دادی چي هغه خپل دغه

اوږد عمر د حق دین په پلټنه کي تېر کړ تر دې چي په پای کي د نبي اخر الزمان ﷺ په خدمت کي په حاضرېدو سره خپل مقصد ته ورسېدی، حضرت سلمان رضی الله عنه به په محنت کولو سره خپله روزي تر لاسه کول او د خپلي ګټي زیاته برخه یې د الله جل جلاله په لاره کي مصرفول، د نوموړي فضائل او مناقب بې شمېره دي ، رسول الله ﷺ دهغه ډېر تعریف کړی دی ، نوموړي په ۳۵ م هجري کال کي د مدائن په ښار کي وفات سو .

## د حضرت ابوهریره رضی الله عنه لپاره دعاء

﴿۵۹۵۳﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللَّهُمَّ حَبِّبْ عُبَيْدَكَ هَذَا يَعْنِي أَبَا هُرَيْرَةَ وَأُمَّهُ إِلَى عِبَادِكَ الْمُؤْمِنِينَ وَحَبِّبْ إِلَيْهِم الْمُؤْمِنِينَ . رواه مسلم .

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : اې الله! خپل دا کوچنی بنده خپل محبوب وګرځوې (یعني ابوهریره) او اې الله ! دده مور د مسلمانانو محبوبه جوړه کړې او مسلمانان د هغې محبوب جوړ کړې . مسلم

**تخریج:** صحیح مسلم ۴\۱۹۳۸، رقم: ۱۵۸- ۲۴۹۱.

**تشریح:** یعني اې الله! دغه دواړه چي ډېر غریب او لاچاره دي، د مؤمنانو په نظر کي د نسبت او توجه مرکز جوړ کړې، او خپله دوی همداسي جوړ کړې چي ستا ټول مسلمانان بندګان یې خپل محبوب او غم خوار وګڼي .

## د کمزور او لاچارو حوصله افزایي

﴿۵۹۵۴﴾: وَعَنْ عَائِذِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ أَبَا سُفْيَانَ أَتَى عَلَى سَلْمَانَ وَصُهَيْبٍ وَبِلَالٍ

د حضرت عائذ بن عمرو رضی الله عنه څخه روایت دی چي ابوسفیان د امیر معاویه پلار (د کفر په حالت کي) د سلمان، صهیب او بلال سره تیر سو چي

فِي نَفَرٍ فَقَالُوا مَا أَخَذَتْ سُيُوفُ اللَّهِ مِنْ عُنُقِ عَدُوِّ اللَّهِ مَأْخَذَهَا فَقَالَ أَبُو

د صحابه کرامو په ډله کي ناست وو ، د هغه ډلي خلکو وویل د خدای تورو د خدای د دښمن غاړه لا نه ده وهلې، ددې اوریدو سره

بَكْرٍ أَتَقُولُونَ هٰذَا لِشَيْخِ قُرَيْشٍ وَسَيِّدِهِمْ فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ابوبکر رضي الله عنه وويل : تاسو ددغه قريشي مشر او سردار په باره کي دا خبره کوئ؟ ددئ ځخه وروسته ابوبکر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او د پيښي ځخه يې خبر کړ،

فَأَخْبَرَهُ فَقَالَ يَا أَبَا بَكْرٍ لَعَلَّكَ أَغْضَبْتَهُمْ لَئِنْ كُنْتَ أَغْضَبْتَهُمْ لَقَدْ

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : اې ابوبکر! کيداى سي تا هغوى ناراض کړي وي، قسم په خداى! که تا هغوى په غضب کړي وي نو په تحقيق سره

أَغْضَبْتَ رَبَّكَ فَأَتَاهُمْ فَقَالَ يَا إِخْوَتَاهُ أَغْضَبْتُكُمْ قَالُوا لَا يَغْفِرُ اللّٰهُ لَكَ يَا أُخَيَّ. رواه مسلم

په غضب کړی به دي وي رب خپل، د دې په اورېدو سره ابوبکر رضي الله عنه دوی ته راغلی او ورته وه يې ويل اې زما وړونو! ايا ما تاسو په غضب کړي ياست؟ هغوی وويل : يا، موږ نه يو خفه زموږ وروره خداى دي تا وبخښي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۴\۱۹۴۷، رقم: ۱۷۰- ۲۵۰۴.

**د لغاتو حل**: ماخذها : اي حقها. (خپل حق)

**تشريح** په مدينه کي د ابوسفيان د راتګ دغه پېښه د هغه وخت ده کله چي هغه مسلمان سوی نه وو او د حديبيه صلح د نوي کولو لپاره د مکې د قريشو په نمائندګۍ د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوی وو، د مکې قريشو چي د اسلام د دعوت په لاره کي د کوم جارحانه مزاحمت څرګندونه کول، مسلمانانو ته يې په ظالمانه طريقې سره تکليفونه رسول او خپله د صلح حديبيه د پېښو لاندي کولو او عهد ماتولو مرتکب وه، له همدې کبله دغه درو کسانو يعني سلمان، صهيب او بلال رضي الله عنهم د ابوسفيان په مدينه کي په لېدو سره د تاسف اظهار وکړ چي دومره لوی مشرک تر اوسه پوري زموږ په لاس وژل سوی نه دی، دا بالکل يو فطري امر وو، بيا هم ددغه درو کسانو پر څرګند اظهار باندي چي حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د ناخوښۍ اظهار وکړ هغه هم د تدبر او د وخت د مصلحت تقاضا وه ځکه چي اول خو ابوسفيان هغه وخت د يو نمائنده په صفت راغلی وو او هغه ته د ځان او مال ساتنه تر لاسه وه، او دهغه د ضمانت لحاظ کول د هر مسلمان لپاره ضروري وه، دوهم دا چي دين ته د مائل کېدو لپاره د ابوسفيان زړه نبه

کول هم د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه مخته وو، لکه څرنګه چي خپله به رسول الله ﷺ په داسي وختو کي د ځینو مشرکانو سره ښه چلن کوی.

کېدای سي چي تا هغه دري سره ناراض کړي وي: یعني تا چي د هغه درو کسانو پر خبره کوم رد عمل ظاهر کړی دی، هغه که څه هم د تدبر او مصلحت په وجه وو مګر دا خبره مه هېروه چي هغه دري کسان د دین مخلص خادمان او د الله جل جلاله محبوب کسان دي، او هغوی چي د ابوسفیان په اړه څه وویل هغه یې یوازي د الله جل جلاله او د هغه د دین په محبت کي او د دین د یو دښمن په نفرت کي وویل، نو له دې کبله که چیري تا د هغه درو کسانو په مخالفت کولو سره هغوی ناراض کړي دي نو ددې مطلب دا سو چي ته د الله جل جلاله د محبوبو بندګانو په مقابله کي د دین د یو دښمن رعایت کوې، چي د هغه په وجه تا د الله جل جلاله ناراضي اخیستې ده نو ته سمدستي هغه درو کسانو ته ورسه او د هغوی څخه معذرت وغواړه، که هغوی ناراضه سوي وي نو دهغوی ناراضګي لیري کړه.

نه، اې زما وروره! د ظاهري طرز تقاضا خو داوه چي دلته د یا اخانا! (یعني اې زموږ وروره) الفاظ ویل سوي وای، مګر کیدای سي چي د یا اخي (اې زما وروره!) لفظ د هغه درو کسانو له خوا نه بلکه د هغوی څخه د هر یوه له طرفه نقل سوي وي، یعني په هغه درو کسانو کي هر یوه بېل بېل داسي وویل چي نه، اې زما وروره!، زه ستا څخه ناراضه نه یم، څرګنده دي وي چي د مشکوة په ډېرو نسخو کي دغه لفظ د همزه په پېښ سره د تصغیر په صیغه یعني (أخي) نقل سوی دی او په یوه نسخه کي د همزه په زېر او د یاء په جزم سره هم مذکور دی، همدارنګه د همزه په زېر سره هم په دغه لفظ کي قباحت نسته.

ذکر سوې دري کسان یعني سلمان، صهیب رومي او بلال حبشي رضی الله عنهم د صحابه کرامو د هغه طبقې سره تعلق لري چي د غلامۍ په نسبت سره د کافرانو په ټولنه کي کم او کښته ګڼل کېدل، او په ټولنیزه توګه ډېر غریب او مفلس خلګ وه، نو رسول الله ﷺ د دغه کسانو د زړه ښه کولو ډېر لحاظ کوی او داسي هیڅ خبره یې نه غوښتل چي په هغه سره د دغه مخلصانو ته د خپلي کمزورۍ او لاچارۍ احساس وسي، او دهغوی عزت ته تاوان ورسیږي، چي د هغه یو مثال دغه حدیث دی، ددغه حدیث څخه نه یوازي دا چي په ټولنیزه توګه د مفلس او کمزورو صحابه کرامو فضیلت ثابتیږي بلکه رسول الله ﷺ دې ته توجه وکړل چي د هغوی تعظیم او تکریم او دهغوی رعایت کول په هر حالت کي باید په نظر کي وي.

**حضرت صهیب رومي** رضی الله عنه: صهیب بن سنان د عبدالله بن جدعان تیمي ازاد سوی غلام

دی، ابویحیی یې کنیت دی، نوموړی په اصل کې د دجله او فرات په منځ کې د موصل اوسېدونکی وو، کله چې روحي لښکر پر دغه سیمه باندې حمله وکړل او لوټ ماریې وکړ نو صهیب رضی الله عنه هم په هغه خلکو کې وو چې رومي لښکر په بندي کولو سره د ځان سره بېولی وو، هغه نوموړی د کم عمر وو، کله چې لوی سو نو په شکل کې بالکل رومې معلومېدی،

وروسته د کلب قبیلې ځینو خلکو هغه د رومیانو څخه رانیوی او مکې ته یې راوستی، بیا د عبدالله بن جدعان تر مرګه پورې حضرت صهیب رضی الله عنه د هغه سره وو، په یوه روایت کې دي چې صهیب رضی الله عنه په روم کې لوی سو او کله چې هوښیار او پوه سو نو د هغه ځایه وتښتېدی او مکې ته راغلی، په مکه کې عبدالله بن جدعان ته ورسېدی او د هغه د حلیف جوړېدو سره د هغه سره اوسېدی، حضرت صهیب رضی الله عنه قدیم الاسلام دی، هغه د دعوت په لومړنۍ زمانه کې په مکه کې اسلام قبول کړی وو، کله چې رسول الله ﷺ په دار ارقم کې هستوګن وو، او تر هغه وخته پورې تقریبا دېرشو کسانو اسلام قبول کړی وو، حضرت صهیب رضی الله عنه هم په هغه کمزورو او لاچارو مسلمانانو کې دی چې هغوی ته د الله جل جلاله په لاره کې سخت تکلیفونه ورسېدل چې د قریشو ډېر ظلم او ستم نښه جوړ سوي وه، وروسته هغوی مکه پرېښودل او په هجرت کولو سره مدینې ته راغلل، په ۸۰ م هجري کال کې د ۷۰ کالو په عمر په مدینه کې وفات سو او په بقیع کې خاورو ته وسپارل سو، د قرآن کریم آیت: وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَشْرِي نَفْسَهُ ابْتِغَاء مَرْضَاتِ اللّهِ، دده په اړه نازل سوی وو.

## د انصارو فضیلت

﴿۵۹۵۵﴾: وَعَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ آيَةُ الْإِيمَانِ حُبُّ الْأَنْصَارِ وَآيَةُ النِّفَاقِ بُغْضُ الْأَنْصَارِ. متفق عليه.

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل: د ایمان نښه د انصارو سره مینه کول دي او د نفاق نښه د انصارو سره بغض او دښمني کول دي. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۱۱۳، رقم: ۳۷۸۴. ومسلم ۱\۸۵، رقم: ۱۲۸- ۷۴.

**تشریح**: د انصار لفظ په لغوي توګه د ناصر یا نصر جمع ده، او په اصطلاح کې د دغه لفظ اطلاق د مدینې پر هغه خلکو باندې کیږي چې په رسول الله ﷺ یې ایمان راوړ او په ځان و مال سره یې د رسول الله ﷺ مرسته وکړل، په مدینه کې دوې قبیلې پرتې وي، د یوې د مورث اعلی

نوم اوس او د بلي دمورث اعلی نوم خزرج وو، اوس او خزرج دواړه وروڼه وه او پر مخ تللو سره د دواړو نسلونو څخه لوی قبیلې جوړي سوې، په مدینه کي د اسلام او پیغمبر ﷺ په راتللو سره مخکي دغه دواړي قبیلې د یو بل سخت خلاف وه، ویل کیږي چي د هجرت نبوت تر وخت پوري پرله پسې د یوسل او شلو کالو څخه ددغه دواړو قبیلو په منځ کي جګړه او دښمني روانه وه مګر څرنګه چي هغوی د اسلام او توحید سره تعلق قائم کړ نو دهغوی دښمني په مینه بدله سول ، رسول الله ﷺ دغه دواړو قبیلو ته د انصارو لقب ورکړ او ددغه لقب په ذریعه ددغه دواړو قبیلو خلګ مشهور سول، د هغوی څخه وروسته د هغوی اولاد او دهغوی نسلونو او دهغوی ازاد سوو غلامانو لپاره هم دغه لقب پاته سو، د انصارو د فضائلو او مناقبو هیڅ یو حد نسته ، په اسلام کي لوړتیا، شرف او عزت دوی ته حاصل دی، په قرآن کریم کي د دوی تعریف مذکور دی او دغه عظیمه مرتبه هغوی ته له دې کبله تر لاسه سوه چي هغوی په ډېر اخلاص سره د اسلام پیغمبر ته ځای ورکړ ، په ځان او مال یې د رسول الله ﷺ مرسته وکړل او د رسول الله ﷺ د دعوت ستر مرستیالان جوړ سول، او هغوی د رسول الله ﷺ په مرسته کولو سره ټول عرب او عجم پر سر واخیستل ځکه ضروري سول چي د هغوی مینه د ایمان علامه او دهغوی سره دښمني د کفر علامه وګڼل سول، همدارنګه د هغوی په اړه مینه د کمال ایمان سبب او د هغوی سره بغض د ایمان د نقصان سبب ګرځول کیږي . بلکه په دې کي شک نسته که یو سړی له دې کبله د هغوی سره دښمني کوي چي هغوی د اسلام او پیغمبر مرسته وکړل نو هغه سړی به په یقیني توګه کافر وي .

## د انصارو سره مینه کونکي د الله ﷻ محبوب دي

﴿۵۹۵۶﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ سَمِعْتُ رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لِلْأَنْصَارِ لَا يُحِبُّهُمْ إِلَّا مُؤْمِنٌ وَلَا يُبْغِضُهُمْ إِلَّا مُنَافِقٌ فَمَنْ أَحَبَّهُمْ أَحَبَّهُ اللَّهُ وَمَنْ أَبْغَضَهُمْ أَبْغَضَهُ اللَّهُ. متفق عليه.

د حضرت براء رضی الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چي د انصارو سره به پوره مؤمن محبت کوي او د انصارو سره به منافق بغض او دښمني کوي ، څوک چي د انصارو سره محبت کوي خدای به هغه محبوب کړي او څوک چي د انصارو سره دښمني کوي خدای به هغه خپل دښمن وګرځوي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۱۱۳۱، رقم: ۳۷۸۳، ومسلم ۱\۸۵، رقم: ۱۲۹- ۷۵.

## د ځينو انصارو پر شكايت د رسول الله ﷺ اثري جواب

﴿۵۹۵۷﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ أَنَّ نَاسًا مِنَ الْأَنْصَارِ قَالُوا حِينَ أَفَاءَ اللّٰهُ عَلَى رَسُولِهِ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دى چي د انصارو ځينو خلكو هغه وخت شكايت وكړ كله چي الله جل جلاله خپل رسول ﷺ ته د هوازن قبيلې څخه غنيمت وركړ

مِنْ أَمْوَالِ هَوَازِنَ مَا أَفَاءَ فَطَفِقَ يُعْطِي رِجَالًا مِنْ قُرَيْشٍ الْمِائَةَ مِنَ الْإِبِلِ

نو رسول الله ﷺ د هغه مال څخه ځو قريشو ته سل سل اوښان وركول شروع كړل ،

فَقَالُوا يَغْفِرُ اللّٰهُ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْطِي قُرَيْشًا وَيَدَعُنَا

ددې ليدو سره د انصارو يو ځو كسانو وويل الله جل جلاله دي د رسول الله ﷺ مغفرت نصيبت كړي چي قريشو ته يې وركوي مال غنيمت او موږ ته يې نه راكوي

وَسُيُوفُنَا تَقْطُرُ مِنْ دِمَائِهِمْ فَحُدِّثَ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَقَالَتِهِمْ

حال دا چي زموږ د تورو څخه د قريشوويني ځاځي، د نصاراوو ددغه شكايت خبر رسول الله ﷺ

فَأَرْسَلَ إِلَى الْأَنْصَارِ فَجَمَعَهُمْ فِي قُبَّةٍ مِنْ أَدَمٍ وَلَمْ يَدْعُ مَعَهُمْ أَحَدًا غَيْرَهُمْ

ته ورسيدى نو انصاريې د څرمني په يوه خيمه كي راجمع كړل او د دوى سره يې بل ځوك راونه

فَلَمَّا اجْتَمَعُوا جَاءَهُمْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا حَدِيثٌ بَلَغَنِي

غوښتل. هر كله چي ټول انصار راغلل نو رسول الله ﷺ تشريف راوړ او وه يې فرمايل : څه خبره ده چي ستاسو د لوري ما ته رارسيدلې ده ،

عَنْكُمْ فقال فُقَهَاؤُهُمْ أَمَّا ذَوُو آرَائِنَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَلَمْ يَقُولُوا شَيْئًا وَأَمَّا أُنَاسٌ

د انصارو د ډلي عقلمندو خلكو وويل: اې د الله رسوله ! په موږ كي هوښيارانو هيڅ نه دي

مِنَّا حَدِيثَةٌ أَسْنَانُهُمْ قَالُوا يَغْفِرُ اللّٰهُ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْطِي

ويلي، البته ځينو كم عمره دا وويل چي الله تعالى دي رسول الله ﷺ وبخښي چي قريشو ته يې

قُرَيْشًا وَيَدَعُ الْأَنْصَارَ وَسُيُوفُنَا تَقْطُرُ مِنْ دِمَائِهِمْ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

ورکوي او انصار پرېږدي او زموږ د تورو څخه د قريشوويني څاڅي، ددې اورېدو سره رسول

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي أُعْطِي رِجَالًا حَدِيثٌ عَهْدُهُمْ بِكُفْرٍ اَتَاَلَّفُهُمْ أَمَا تَرْضَوْنَ أَنْ

الله ﷺ وفرمايل: بېشکه زه ددې مال څخه هغه خلکو ته ورکوم چي زمانه يې نژدې ده اسلام ته (نوي مسلمانان دي) چي د اسلام سره يې مينه پيدا سي او پر اسلام قائم پاته سي، ايا تاسو

يَذْهَبَ النَّاسُ بِالْأَمْوَالِ وَتَرْجِعُون إِلَى رِحَالِكُمْ بِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالُوا بَلَى يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَدْ رَضِينَا. متفق عليه.

پردې خبره راضي نه ياست چي نور خلک خيمو او ځايونو ته مال يوسي او تاسو خپلو کورونو ته په داسي حال کي ولاړ سئ چي رسول الله ﷺ ستاسو سره وي، انصارو وويل: هو، اې د الله رسوله! موږ په دې راضي يو. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱٦\۲۵۰، رقم: ۳۱۴۷، ومسلم ۲\۷۳۳، رقم: ۱۳۲- ۱۰۵۹.

**دلغاتوحل**: فطلق: اي فاخذ وشرع. فحدث: اي حكى. قبة: اي خيمة.

**تشريح**: هغه د غنيمت مال يې ورکړ کوم چي ورکول وو: په دغه جمله کي کثرت احوال ته اشاره وه ځکه چي په دغه وخت کي چي د بنوهوازن څخه کوم د غنيمت مال حاصل سوی وو هغه ډېر زيات وو، په روايتو کي د هغه مال تفصيل داسي راغلی دی چي شپږ زره بنديان، څلېرويشت زره اوښان، څلور زره اوقيه سپين زر او تر څلوېښت زرو زيات پسونه په لاس راغلي وو، په يوه روايت کي دادي چي د پسو شمېر د حساب څخه وتلی وو.

سل سل اوښان ورکول پيل کړل: کوم خلګو ته چي رسول الله ﷺ زيات اوښان او نور شيان ورکړل هغه په اصل کي د مکې خلک وه چي د مکې د فتح څخه وروسته مسلمانان سوي وه او د اسلام په اثره کي نوي داخل سوي وه، د هغه خلګو په زړو کي تر اوسه ايمان پوره ځای نه وو نيولی او د مؤلفة القلوب مصداق وه، رسول الله ﷺ د تاليف قلوب لپاره هغوی ته سل سل اوښان ورکول پيل کړل چي اسلام ته د هغوی ميلان او د مسلمانانو سره د هغوی تعلق ټينګ سي، دامير معاويه ﷺ پلار ابو سفيان هم په هغه خلګو کي شامل وو، په مهاجرينو او انصارو کي چي کوم پاته مخلص او صادق مسلمانان وه هغوی ته رسول الله ﷺ تر سل کم اوښان ورکړل

، د غنیمت د مال د تقسیم دغه پېښه د جعرانه په ځای کي وه چیري چي رسول الله ﷺ په اتم هجري کال کي د مکې د فتح څخه وروسته د حنین په غزا کي د بنوهوازن او نورو لاندي کولو سره د هغوی څخه تر لاسه سوی ټول مال او سامان جمع کړی وو او بیا طائف ته ستنېدو سره یې هغه مال د مجاهدینو په منځ کي وویشی.

زموږ د تورو څخه د قریشو وینې څاڅي: ددغه خلګو اشاره هغه غزاوو ته وه چي په هغه کي انصارو په پوره مېړانه او قرباني سره در سول الله ﷺ اوږه پر اوږه د قریشو دمشرکینو پر خلاف جګړه وکړل، دالله ﷻ په لاره کي د هغوی وینه وبیول ، هغو خلګو په اصل کي دا خبره ځکه وکړل چي رسول الله ﷺ د قوي تعلق او خپلوۍ په تقاضا سرِه قریشو ته زیات ورکوي او د هغوی رعایت کوي.

تاسو خلګ د رسول الله ﷺ په اخیستلو سره : یعني که چیري د مکې خلګو ته زیات مال او سامان په لاس ورغلل نو څه خبره ده دغه خلګ خو د دنیاوي مال او سامان په اخیستلو سره خپلو کورو ته ځي او تاسو د رسول الله ﷺ د ذات په اخیستلو سره خپلو کورو ته ستنېږئ اوس تاسو خپله فکر وکړئ چي دنیاوي مال او سامان ستاسو په حق کي زیات غوره دی او که ددغه مال او سامان په مقابله کي د رسول خدا ﷺ ذات مبارک غوره او قیمتي دی.

موږ په دې راضي یو : بېله شکه هغه خوشبختو روحونو ته دغه جواب ورکول وو، د رسول الله ﷺ د ذات په مقابله کي دنیاوي مال او سامان د هغوی په نظر کي هیڅ نه وو ، یو چا ډېر ښه ویلي دي :

| | |
|---|---|
| رضینا قسمة الجبار فینا | لنا علم وللاعداء مال |
| فان المال یفني عن قریب | وان العلم باق لایــزال |

## د انصارو فضیلت

﴿۵۹۵۸﴾ : وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْلَا الْهِجْرَةُ

د حضرت ابوهریره ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : که هجرت نه وای

لَكُنْتُ امْرَأً مِنَ الْأَنْصَارِ وَلَوْ سَلَكَ النَّاسُ وَادِيًا وَ سَلَكْتُ الانصار وَادِيًا او

نو زه به د انصارو څخه یو سړی وای که خلګ یو یوه لاره روان سي او انصار پر بله لار یا په دره

شعبا لسلکت وادي الانصار وَشِعْبَهَا الْأَنْصَارُ شِعَارٌ وَالنَّاسُ دِثَارٌ إِنَّكُمْ سَتَرون بَعْدِي أُثْرَةً فَاصْبِرُوا حَتَّى تَلْقَوْنِي عَلَى الْحَوْضِ. رواه البخاري

کي نو زه به د انصارو پر لار ځم ، انصار په مثل د شعار دي او نور خلک په مثل د دثار دي ، اې انصارو ! تاسو به زما څخه وروسته ترجیح او توپیر وینئ هغه وخت تاسو صبر کوئ تر دې چې تاسو زما سره پر حوض کوثر یو ځای سئ . بخاري (شعار: لاندي جامه، او دثار پورته جامې ته ویل کیږي) .

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۸\۴۷، رقم: ۴۳۳۰، ومسلم ۲\۷۳۸، رقم: ۱۳۹– ۱۰۶۱.

**دلغاتوحل**: اثرة: اي استئثار.

**تشریح**: نو زه به په انصارو کي یو کس وای: ددې څخه په ولادي نسب کي د بدلون خواهش مقصد نه دی ځکه چي اول خو په نسب ولادي کي بدلون حرام دی ، دوهم دا چي خپله د رسول الله ﷺ نسب د دنیا تر ټولو نسبونو اعلی او اشرف دی ځکه هغه د هغه نسب او نسل په پرېښودو سره بل نسب او نسل ته د خواهش سوال نه پیدا کیږي، مگر دلته د نسب بلادي یعني شهریت نسبت ضرور مراد دی چي د هغه معنی داده که د هجرت تعلق د دین سره نه وای او هغه ته منسوب کېدل ضروري نه وای نو ما به دا خبره خوښه کړې وای چي د خپل اصلي وطني او ښاري نسبت په پرېښودو د انصارو ښار ته مي خپل ځان منسوب کړی وای او د مهاجر ویلو پر ځای به انصار بلل کېدای. مگر هجرت پر خپل ځای یو ډېر لوی دیني شرف دی او دې ته منسوب کېدل د فضیلت خبره ده، ځکه زه د خپل دغه خواهش پوره والی نه سم کولای، نو په دغه ارشاد کي که څه هم د انصارو او د هغوی ډېر عزت او نصرت ته د منسوب کېدو لوی فضیلت دی مگر په دې کي د هجرت فضیلت او د مهاجرین مرتبې ته هم اشاره ده ځکه چي مهاجرین خو هغه خلک دي چي هغوی د الله جل جلاله او د هغه د رسول په مینه کي خپل گران هیواد او کورونه پرېښولو بې مثاله قرباني ورکړې، حال دا چي انصارو که څه هم د الله جل جلاله د دین او د هغه د رسول مرسته او نصرت او په دغه لاره کي د بې پایه قرباني فضیلت حاصل کړ مگر هغوی په هر حال د هیواد پرېښودو او د خپلوانو څخه د بېلوالي د عذاب څخه مخامخ سوي نه دي ، نو د نصرت فضیلت د هجرت څخه وروسته او د انصارو فضیلت د مهاجرینو څخه وروسته دی، ځینو حضراتو ددغه ارشاد مراد دا بیان کړی دی چي کوم شی ما د انصارو څخه ممتاز کوي

هغه د هجرت فضیلت دی که د هجرت شرف او دهغه فضیلت زما سره نه وای نو بیا به زه هم د انصارو په یو ډول یو کس وای او په مرتبه کي به دهغوی برابر او دهغوی په ډول وای، په دغه صورت کي به ویل کیږي چي رسول الله ﷺ د خپل ځان لپاره د خاکساری اړخ اختیار کړ او د انصارو د زړه ښه کولو لپاره یې د هغوی لوړوالی او منزلت ظاهر کړ،

یا دایې وفرمایل چي، دلته راوي ته شک سوی دی چي رسول الله ﷺ په دغه ځای کي یا خو د وادیا لفظ فرمایلی دی او یا د شعبا، په اصل کي وادي هغه مځکي یا لاري ته وایي چي د دوو غرو یا دوو غونډیو په منځ کي وي چي هغه ته په عربي کي فرجه هم وایي، او په پښتو کي شېله ورته وایي، او شعب هغه لاري ته وایي چي غره ته په دننه کېدو سره تیریږي، په حجاز کي غرونه او غونډۍ ډیر دي ځکه شېله او شعب هم زیات دی، په هغه زمانه کي به دا کېدل چي د یوې قافلې یا قبیلې سردار به د کومي شېلې سره تېرېدل غوښتل نو ټوله قافله او ټوله قبیله به په هغه پسې په هغه شېله کي داخلېدل، او بیا به د هغه ځای څخه په تېرېدو سره ټول خپل منزل او پړاو ته رسېدل، نو رسول الله ﷺ وفرمایل: که چیري داسي وای چي ټول خلک په دوو ډلو کي په ویشلو سره یو منزل ته روان سي نو په هغوی کي یوه ډله پر انصارو باندي مشتمل وي او بله ډله پر نورو خلګو باندي او د هغه دوو ډلو لاري بېلي وي نو زه به د دوهمي ډلي په پرېښودو سره پر هغه لار ځم کوم چي انصارو اختیار کړې وي، په دغه صورت کي به ویل کیږي چي ددغه ارشاد مقصد د انصارو په اړه د رسول الله ﷺ کمال تعلق او ارتباط او پر هغوی در سول الله ﷺ د کمال عنایت او شفقت اظهار دی، په دې کي دوهم قوال دادی چي د وادي او شعب کومي معنی دلته مراد دي هغه د مذهب او رایي دي، مطلب دا چي په یوه معامله کي د خلګو په منځ کي رایي او مذهب د اختلاف اظهار وي نو زه به هغه رایه او مذهب اختیاروم کوم چي د انصارو اختیار سوی وي، او دهغوی موافقت به کوم، په دغه صورت کي به ویل کیږي چي ددغه ارشاد څخه د رسول الله ﷺ مقصد د انصارو سره د ښه موافقت او مرافقت اظهار کول دی ځکه چي انصارو هم د رسول الله ﷺ په اړه د حسن دعاء او ښه خدمت کولو ثبوت ورکړی دی، ددې څخه دا مراد هیڅکله نه دی چي رسول الله ﷺ د انصارو اتباع او هغوی ته د احتیاج اظهار کړی دی ځکه چي د رسول الله ﷺ ذات مبارک متبوع مطلق دی او ټول در سول الله ﷺ تابع دي.

شعار او دثار، شعار هغه جامې ته وایي چي په اغوستلو کي د بدن او د بدن دوېښتانو سره لګېدلې وي لکه قیمص او داسي نور، او دثار هغه جامې ته وایي چي د اغوستل سوو جامو سربېره وي، لکه څادر، صدرۍ او داسي نور، نو رسول الله ﷺ انصارو ته په شعار سره ځکه

تشبیه ورکړل چي د صدق ایمان او خلوص محبت جوهر په هغوی کي پیوست دی یعني رسول الله ﷺ دا وفرمایل چي انصار زما خاص او رازدار خلک دي په ټولو خلکو کي د اعتبار او منزلې په اعتبار تر ټولو زیات نژدې دغه خلک دي.

نورو خلکو ته به پر تاسو باندي بلا استحقاق فضیلت ورکړل سي، د اَثَرة، یا اُثْرة یا اِثْرة معنی د حق تلفی او بیله حقه یو سړي ته په عهد یا منصب کي فضیلت ورکول دي، نو رسول الله ﷺ انصارو ته وفرمایل چي زما څخه وروسته به هغه زمانه راځي چي خلک به د عهدې او منصب په ویش کي خپل ذات مقدم کړي او پر تاسو باندي به ترجیح ورکوي. پر امارت او حکومت به خپله کښیني او داسي خلک چي د حقیقي مرتبې او منزلت په اعتبار به کم وي د لوړو مرتبو او دندو تر لاسه کولو په سبب ستاسو څخه لوړ او افضل جوړ سي، مخبر صادق ﷺ چي څه فرمایلي وه هغه پوره سول، په خاصه توګه د حضرت امیر المؤمنین حضرت عثمان غني ﷛ د خلافت په زمانه کي ځینو عمال خلافت ته او په حکومتي چارو کي په عامه توګه د انصارو ډیره حلق تلفي وسول، دهغوی د محروم کولو هڅه وکړل سول، یا د دغه ارشاد څخه د رسول الله ﷺ مطلب دا وو چي په فتوحاتو کي تر لاسه کېدونکي د غنیمت مال به امیران او حاکمان په خپلو کي ویشي او په هغه مال کي به ستاسو حق نظر انداز کوي او خپلو ځانو ته به پر تاسو ترجیح او فضیلت ورکوي.

تر دې چي زما سره پر حوض کوثر یو ځای سئ: یعني د حق تلفی په صورت کي به تاسو ته د مایوسی او نا امیدی سره مخامخ کېدل وي که چیري تاسو پر هغه صبر وکړ او شکایاتو سربېره د هغه وخت د حاکم څخه سرکښی مو ونه کړل او نه د ملي اتحاد د انتشار سبب سولاست نو ددې اجر به تاسو ته هغه وخت درکول کیږي کله چي د حشر په ورځ تاسو پر حوض کوثر باندي زما سره یو ځای سئ چي زما زیات او د هغه ځای لازوال نعمتونه تاسو اباد کړي، نو دغه ارشاد په اصل کي د انصارو د هغه صبر عوض او د هغوی لپاره د جنت زیری دی، منقول دي چي دامیر معاویه ﷛ په حکومت کي یوه ورځ ځینو انصارو هغه ته د ځینو مهاجرینو پر خلافت په شکایت کولو سره راغلل، حضرت معاویه ﷛ د هغوی د شکایت ازاله ونه کړل، پر دې خبره انصارو د امیر معاویه ﷛ په مخاطب کولو سره ورته وویل چي رسول الله ﷺ ریښتیا فرمایلي دي چي (اې انصارو!) تاسو به زما څخه وروسته ووینئ چي نورو خلکو ته به پر تاسو په ناحقه ترجیح ورکړل سي، ددې په اورېدو سره معاویه ﷛ پوښتنه وکړل چي بیا د هغه وخت لپاره تاسو ته رسول الله ﷺ څه حکم کړی دی، انصارو وویل: د صبر کولو، حضرت معاویه ﷛

وويل: نو بيا د شکايت کولو پر ځای تاسو ته صبر کول پکار دي ځکه چي رسول الله ﷺ تاسو ته د دغه خبري حکم در کړی دی.

## د انصارو سره تعلق او قرب

﴿۵۹۵۹﴾: وَعَنْهُ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْفَتْحِ

د حضرت ابو هريره ﷛ څخه روايت دی چي د مکې د فتح په ورځ موږ د رسول الله ﷺ سره وو،

فَقَالَ مَنْ دَخَلَ دَارَ أَبِي سُفْيَانَ فَهُوَ آمِنٌ وَمَنْ أَلْقَى السِّلَاحَ فَهُوَ آمِنٌ فَقَالَتْ

رسول الله ﷺ دا حکم جاري کړ چي کوم سړی د ابو سفيان کور ته ولاړ سي هغه په امن کي دی او کوم سړی چي وسله وغورځوي هغه هم په امن کي دی، ددې اوريدو سره انصارو په خپل منځ

الْأَنْصَارُ أَمَّا الرَّجُلُ فَقَدْ أَخَذَتْهُ رَأْفَةٌ بِعَشِيرَتِهِ وَرَغْبَةٌ فِي قَرْيَتِهِ وَنَزَلَ

کي ويل پر دې سړي (يعني رسول الله ﷺ) باندي رحم او مهرباني غالبه سوې ده چي د خپل قوم او ښار سره داسي چلن کوي نو پر دې اعتراض

الْوَحْيُ عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قُلْتُمْ أَمَّا الرَّجُلُ فَقَدْ

وحي نازله سوه، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه ايا تاسو دا ويلي دي چي دا سړی د خپل قوم او ښار

أَخَذَتْهُ رَأْفَةٌ بِعَشِيرَتِهِ وَرَغْبَةٌ فِي قَرْيَتِهِ كَلَّا اِنِّي عَبْدُ اللّٰهِ وَرَسُولِهِ هَاجَرْتُ إِلَى

سره د رحم او مهرباني چلن کوي تاسي داسي مه وايا ست بيشکه زه د خدای بنده او د هغه رسول يم ما د خدای ﷻ لپاره ستاسو طرف ته هجرت کړی دی

اللّٰهِ وَإِلَيْكُمْ فَالْمَحْيَا مَحْيَاكُمْ وَالْمَمَاتُ مَمَاتُكُمْ قَالُوا وَاللّٰهِ مَا قُلْنَا إِلَّا ضِنًّا بِاللّٰهِ وَرَسُولِهِ قَالَ فَإِنَّ اللّٰهَ وَرَسُولَهُ يُصَدِّقَانِكُمْ وَيَعْذِرَانِكُمْ. رواه مسلم.

زما ژوند ستاسو د ژوند سره دی او زما مرګ ستاسو د مرګ سره دی، ددې اوريدو سره انصارو عرض وکړ په خدای دي مو قسم وي موږ دا الفاظ د الله او رسول سره د بخل په وجه ويلي وه (يعني چي نبي ﷺ د مديني منورې استوګنه ترک نه کړي)، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: خدای او د هغه رسول ستاسو رښتيا ويني تصديق کوي. او ستاسو عذر قبلوي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۴۰۷\۳، رقم: ۸۶- ۱۷۸۰.

**د لغاتو حل**: ضنا: شحنا وبخلا (بخل).

**تشريح**: هغه په امن کي دی، يعني کوم مشرک چي د ابو سفيان کور ته ورسيږي او کوم مشرک چي وسله وغورځوي هغه ته د ځان امن ورکول کيږي، هيڅ مسلمان دي پر هغه توره نه پورته کوي او هغه دي نه وژني، ابوسفيان بن صخر بن حرب د امير معاويه رضي الله عنه پلار دی، د قريشو لوی مشر وو، د مکې د فتح په ورځ هغه اسلام قبول کړ او د حنين په غزا کي د رسول الله ﷺ سره شريک وو، دوی مؤلفة القلوب وه ځکه رسول الله ﷺ د هغه جنګ د غنيمت د مال څخه هغه ته د برخي څخه زيات مال ورکړ لکه څرنګه چي په روايتو کي راځي چي سل اوښان او څلوېښت اوقيه سپين زر يې هغه ته ورکړل، د طائف د محاصرې په وخت کي د هغه يوه سترګه ړنده سوې وه او د تل لپاره يو سترګی سو، بيا د يرموک په جګړه کي د هغه دوهمه سترګه هم د ډبري په لګېدو سره ماته سوې وه، په ۳۴ هجري کال کي په مدينه کي وفات سو او په بقيع کي دفن سو، په روايتو کي راغلي دي چي د مکې دفتح په ورځ کله چي ابوسفيان اسلام قبول کړ نو حضرت عباس رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په دربار کي عرض وکړ چي اې د الله رسوله! دغه سړي ډېر عزت او شرف لري ځکه ده ته داسي عزت ورکړئ چي دی يې د ځان لپاره د فخر سبب وګڼي نو د حضرت عباس رضي الله عنه په مشوره رسول الله ﷺ اعلان وکړ چي کوم څوک د ابوسفيان په کور کي داخل سي نو هغه په امن کي دی، او ځيني حضرات دا هم وايي چي د رسول الله ﷺ د مکې په ژوند کي کله چي قريش د رسول الله ﷺ په تکليف رسولو کي لګيدلي وه يوه ورځ ابوسفيان رسول الله ﷺ ته امن ورکړی وو او خپل کور ته يې راوستلی وو، نو رسول الله ﷺ د مکې د فتح په ورځ د هغه کور دارالامن وګرځوی دا د هغه ورځي د عمل بدله وه.

د رغبت او شوق جذبه پر غالبه سوې ده، کله چي انصارو وليدل چي رسول الله ﷺ، ابوسفيان په دومره لوی عنايت او عزت سره ونازوی چي تر دومره ډېر وخت پوري د اسلام سخت دښمن پاته سوی دی نو هغه ته سخت حيران سول او دا خبره هغوی ته د خپل غيرت خلاف محسوسه سول، نو د دغه حميت او غيرت سره سم هغوی په سادګۍ او ناپوهۍ کي دژبي څخه دغه الفاظ وايستل.

نه داسي نه ده، يعني په حقيقت کي هغه خبره نه ده کوم چي ستاسو په فکر کي راغلې ده چي ما ابوسفيان ته د عزت په ورکولو سره دا اظهار کړی دی چي اوس به زه په مکه کي پاته سم او مدينې ته به نه ځم، بلکه زما هجرت آخري او حتمي دی او هغه هجرت د الله جل جلاله په حکم سره

او خالص د الله ﷻ لپاره سوی دی نو د هغه ځخه د ګرځېدو سوال هم نه پیدا کیږي.

زه د الله ﷻ او د هغه رسول یم: یعني زما د دغه حیثیت او زما د دغه منصب تقاضا داده چي اوس زه د هغه ښار تصور هم ونه کړم کوم چي ما د الله ﷻ لپاره پرې ایښی دی او د خپل پخواني وطن د ذرې په اندازه شوق هم ظاهر نه کړم د کوم ځای ځخه چي ما د الله ﷻ لپاره هجرت کړی دی.

او تاسو ته: یعني په اصل کي خو زما هجرت الله ﷻ ته وو او دا د هغه په حکم منحصر وو چي کوم ځای زما دارالهجرت جوړیږي نو تاسو خلګو چي زما او دمهاجرینو په اړه کوم قلبي تعلق او میلان درلود لکه ځرنګه چي الله ﷻ په خپل کتاب کي فرمایلي دي:

وَالَّذِينَ تَبَوَّؤُوا الدَّارَ وَالْإِيمَانَ مِن قَبْلِهِمْ يُحِبُّونَ مَنْ هَاجَرَ إِلَيْهِمْ ....۞

نو الله ﷻ ستاسو ځای زما دارالهجرت وګرځوی او ما دخپلي قبیلې او خپل قوم د وطن په پرېښودو سره ستاسو وطن ته راغلم.

زما مرګ هم ستاسو د مرګ سره دی: یعني د ژوند او مرګ په هر حال کي زه ستاسو ځخه نه بېلیږم، تاسو زما سره یاست او زه ستاسو سره یم، تر ځو چي ژوندی یم ستاسو په ښار کي اوسیږم او مړ کیږم به هم ستاسو په ښار کي په دې اړه تاسو ته ډاډه اوسئ یعني موږ ته د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ بخل وو، دا خبره موږ یوازي له دې کبله کړې ده چي ستاسو د همسایتوب او نژدې والي کوم عظیم شرف او فضل چي موږ ته راکړل سوی دی په هغه کي د بل چا ګډون موږ خوښ نه دی، دا خبره زموږ د غیرت را پارونکې ده چي ستاسو محبت او ستاسو میلان نورو ته ظاهر سي چي موږ ستاسو د عنایت او شفقت او ستاسو د میني او قربت د صحبت ځخه محروم کړي، ځرګنده ده چي داسي غیرت او حمیت میني لره مستلزم دی او میني ته هیځکله خوښه نه وي چي محبوب د غیر طرف ته توجه وکړي.

غیرتم باتو چنانست که گردست دهد نه گزارم که درآئي به خیال دیگران.

د انصارو دغه مراد په نورو الفاظو کي داسي بیانیږي چي الله ﷻ ستاسو په ډول نعمت موږ ته راکړی دی او ځوک د خپل خپلوانو او هیواد د میني ځخه مجبور وي ځکه تل موږ ته بېره وه چي کیدای سي تاسو د خپل صحبت او قربت ځخه په محروم کولو سره د اهل مکې نازول وغواړئ او دغه بیري موږ دومره پرېشانه کړو چي داسي الفاظ مو د ژبي ځخه ووتل، په دغه صورت کي پر هغه انصارو باندي دا سوال نه کیږي چي هغوی د الله ﷻ د حکم:

لاَ تَجْعَلُوا دُعَاء الرَّسُولِ بَيْنَكُمْ كَدُعَاء بَعْضِكُم بَعْضًا

ددې سره داسي معمولي جمله په ژبه ولي ادا کړل.

## دانصارو فضيلت

﴿۵۹۶۰﴾: وَعَنْ أَنَسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى صُبْيَانًا وَنِسَاءً

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د انصارو ماشومان او ښځي وليدل چي

مُقْبِلِينَ مِنْ عُرُسٍ فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اللّٰهُمَّ أَنْتُمْ مِنْ

د يو واده څخه را روان وه ، نبي کريم ﷺ پر يو ځای ودريدی او وه يې فرمايل : اې الله! ته شاهد

أَحَبِّ النَّاسِ إِلَيَّ اللّٰهُمَّ أَنْتُمْ مِنْ أَحَبِّ النَّاسِ إِلَيَّ يعني الانصار. متفق عليه

يې ، اې ماشومانو او اې ښځو تاسو په ټولو خلکو کي ما ته زيات محبوب ياست ، اې الله !ته شاهد يې ، اې ماشومانو او اې ښځو تاسو په ټولو خلکو کي ما ته زيات محبوب ياست ، مراد يې انصار وه . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۱۱۳، رقم: ۳۷۸۵، ومسلم ۴\۱۹۴۸، رقم: ۱۷۴– ۲۵۰۸.

**تشريح**: په ټولو خلکو کي تاسو زما په نزد محبوب ياست: دا خبره رسول الله ﷺ دوه وار د تاکيد په توګه وفرمايل او د صحيح بخاري په روايت کي دا الفاظ درې واره نقل سوي دي، او په ځينو نسخو کي د (الي) پر ځای د (الى الله) الفاظ مذکور دي مګر د بخاري په روايت کي ددغه ارشاد درې واره مذکور کېدل د الي لفظ زيات صحيح ظاهروي .

د اللهم لفظ يا خو د قسم په معنى کي استعمال سوی دی يا په دې معنى کي دی چي اې الله ته به پوهيږې چي زه دغه خبره د زړه په صدق سره کوم ، يعني رسول الله ﷺ چي هغه ښځي او ماشوم په خوشحالۍ راتلونکي وليدل نو هغوی ته په کتلو سره يې زړه خوشحاله سو او دهغوی په اړه د رسول الله ﷺ نېک جذبات را پورته سول چي د هغه اظهار يې د ذکر سوو الفاظو په ذريعه وکړ او دکمال عنايت او مکرمت په وجه هغه نيکو جذباتو او احساساتو باندي يې الله جل جلاله شاهد کړ .

﴿۵۹۶۱﴾: وَعَنْهُ قَالَ مَرَّ أَبُو بَكْرٍ وَالْعَبَّاسُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا بِمَجْلِسٍ مِنْ

د حضرت انس رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي ابوبکر رضی اللہ عنہ او عباس رضی اللہ عنہ د انصارو د یو مجلس سره تېر

مَجَالِسِ الْأَنْصَارِ وَهُمْ يَبْكُونَ فَقَالَا مَا يُبْكِيكُمْ فَقَالُوا ذَكَرْنَا مَجْلِسَ النَّبِيِّ

سول چي هلته انصار ناست وه ژړل یې، هغوی پوښتنه وکړل ولي ژاړئ؟ د انصارو ډلي وویل: موږ ته د رسول اللہ ﷺ مجلس را یاد سو،

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَّا فَدَخَلَ احدهما عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ددې اورېدو سره یو نفر د رسول اللہ ﷺ په خدمت کي حاضر سو او رسول اللہ ﷺ یې ددې خبرو

فَأَخْبَرَهُ بِذَلِكَ فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ عَصَبَ عَلَى رَأْسِهِ

څخه خبر کړ، نو نبي کریم ﷺ د کور څخه دباندي راووتی، هغه وخت نبي کریم ﷺ پر تندي

حَاشِيَةَ بُرْدٍ فَصَعِدَ الْمِنْبَرَ وَلَمْ يَصْعَدْهُ بَعْدَ ذَلِكَ الْيَوْمِ فَحَمِدَ اللّٰهَ وَأَثْنَى

مبارک پټۍ تړلې وه او پر منبر کښېنستی، ددې څخه وروسته پر منبر ناسته د رسول اللہ ﷺ په برخه نه سول، لومړی رسول اللہ ﷺ د خدای جل جلالہ حمد او ثناء بیان کړه

عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ أُوصِيكُمْ بِالْأَنْصَارِ فَإِنَّهُمْ كَرِشِي وَعَيْبَتِي وَقَدْ قَضَوُا الَّذِي

بیا یې وفرمایل: اې خلکو! زه تاسو ته وصیت کوم چي د انصارو سره ښه چلن کوئ هغوی زما رازدار دي او یخدان زما دي، او پر انصارو چي کوم حق وو

عَلَيْهِمْ وَبَقِيَ الَّذِي لَهُمْ فَاقْبَلُوا مِنْ مُحْسِنِهِمْ وَتَجَاوَزُوا عَنْ مُسِيئِهِمْ.

رواه البخاري

هغه یې ادا کړ او د هغوی حق باقي پاته دی نو تاسو د هغوی د نیک سړي نیکي قبلوئ او د بد سړي بدي معاف کوئ. بخاري.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۷ ۱۲۰، رقم: ۳۷۹۹.

**د لغاتو حل:** بُرد: اي علي هيئة عصابة لدفع وجع راسه. كرسي: اي بطانتي. عيبتي: اي خاصتي.

**تشریح:** کَرِش: په اصل کي د ښاروېو (یعني غوا، غویي، او داسي نورو) لري او کولمو ته وايي چي د خلکو لپاره د معدې لفظ استعمالیږي، او عیبه بوغچې (هغه شی چي جامې پکښي اېښودل کیږي) ته وايي، ددې څخه مراد دادی چي انصار زما رازدار، دوستان او په ټولو چارو کي زما همرازه او معتمد علیه دي، یعني رسول الله ﷺ انصارو ته ددغه شیانو سره مشابهت له دې کبله ورکړ چي څرنګه لري او کولمې یا په معده کي خوراک جمع کیږي او بوغچه کي جامې خوندي کیږي همدارنګه د رسول الله ﷺ د راز خبري او امانتونه د انصارو سره دي او ځیني حضرات وايي چي په لغت کي د کرش یوه معنی د کورنۍ او ډلي هم ده نو په حدیث کي ذکر سوی لفظ پر دغه معنی باندي هم محمول کیدای سي، په دغه صورت کي د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب به دا وي چي انصار زما ډله، زما اصحاب، ملګري او زما د کورنۍ په ډول دي چي پر هغوی زما شفقت او مهرباني ده او زه د هغوی غمخواریم.

پر هغوی چي کوم حق وو: دلته د حق څخه مراد په ځان او مال سره مرسته او خیرخواهي ده، ددغه جملې خلاصه داده چي د انصارو نمائندګان د مدینې څخه مکې ته په رسېدو سره په لیلة العقبه کي زما په لاس په بیعت کولو سره کومه وعده او عهد کړی وو چي د الله جل جلاله په لاره کي به په ځان او مال سره زما مرسته کوي او دهغه په عوض کي الله جل جلاله د هغوی سره د جنت وعده کړې وه لکه څرنګه چي په دغه موقع کي نازل سوی آیت:

إِنَّ اللهَ اشْتَرَى مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُم بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ

څخه څرګنده ده نو خپل دغه عهد او وعده انصارو پوره کړې ده.

﴿۵۹۶۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ خَرَجَ النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَرَضِهِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د خپل وفات په ناروغۍ کي د کور

الَّذِي مَاتَ فِيهِ حَتَّى جَلَسَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَحَمِدَ اللهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ أَمَّا

څخه دباندي تشریف راوړ پر منبر کښېنستی د خدای جل جلاله حمد او ثناء یې وویل بیا یې وفرمایل

بَعْدُ فَإِنَّ النَّاسَ يَكْثُرُونَ وَيَقِلُّ الْأَنْصَارُ حَتَّى يَكُونُوا فِي النَّاسِ بِمَنْزِلَةِ الْمِلْحِ

امابعد! د خلکو شمیر به زیاتیږي او د انصارو شمیر به کم سي تر دې چي په نورو خلکو کي به د انصارو شمیر دومره لږ پاته سي لکه څرنګه چي مالګه

فِي الطَّعَامِ فَمَنْ وَلِيَ مِنْكُمْ شَيْئًا يَضُرُّ فِيهِ قَوْمًا وَيَنْفَعُ فِيهِ آخَرِينَ فَلْيَقْبَلْ مِنْ مُحْسِنِهِمْ وَالْيَتَجَاوَزْ عَنْ مُسِيئِهِمْ. رواه البخاري

په خوراک کي وي، نو اې مهاجرو! څوک چي په تاسو کي د يوشي حاکم سي چي ضرر پکښي رسواى سي يو قوم ته (يعني چي هغه قوم بدي کوي) او نفع رسواى سي پکښي نورو ته (يعني ښه خلکو ته فائده رسوي) نو هغه حاکم دي د انصارو نيکي قبوله کړي او د هغوی د بدکارو د بدى څخه دي تېر سي. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦٢٨/٦، رقم: ٣٦٢٨.

**تشريح**: او د انصارو شمېر به کم سي: يعني انصار د صحابه کرامو د هغه ډلي څخه عبارت دي چي هغوی رسول الله ﷺ ته ځاى ورکړ او په ځان او مال سره يې د رسول الله ﷺ او مسلمانانو مرسته وکړل ځکه انصار کېدل يو داسي وصف دی چي په يوه خاص زمانه کي د کومو خلکو په برخه کېدی د هغوی په برخه سو، اوس مخکي دغه صفت بل چا ته نه تر لاسه کيږي او په دې اعتبار د انصارو په ډله کي د زياتوب سوال نه پيدا کيږي، حال دا چي د هجرت وصف باقي دی او باقي به وي لکه څرنګه چي خلک د الله ﷻ په لاره کي د خپل کور په پرېښودو سره او هجرت کولو سره مدينې ته راځي همدارنګه د مهاجرينو ډله په مدينه کي زياتيږي نو څرګنده ده چي رسول الله ﷺ ددغه الفاظو په ذريعه دا وړاند وينه وفرمايل چي مهاجرين خو زياتيږي او دهغوی د اولاد لړۍ به هم ډېره خپرېږي او هغوی نه يوازي دا چي په مختلفو ښارو او سيمو کي په پراخه توګه هستوګنه اختيار کړي بلکه د هيوادو حکمراني به هم دهغوی په برخه سي، د هغوی برعکس د انصارو ډله به ورځ په ورځ محدود کيږي او په ټول ملت کي به د هغوی وجود محدود پاته سي په دې کي شک نسته چي په حقيقت کي هغه وسول کوم چي مخبر صادق ﷺ خبر ورکړی وو.

په خوراک کي د مالګي په اندازه: په دغه تشبيه کي هم د انصارو د کميدو خبر دی او دهغوی تعريف ته اشاره هم ده يعني څرنګه چي مالګه د خوراک خوند سموي همدارنګه د انصارو وجود به د مسلمانانو د سمولو او ښکلا سبب وي.

## د انصارو او د هغوی د اولادو په اړه دعاء

﴿۵۹۶۳﴾: وَعَنْ زَيْدِبْنِ اَرْقَمَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِلْأَنْصَارِ وَلِأَبْنَاءِ الْأَنْصَارِ ولابناء ابناء الانصار. رواه مسلم.

د زيد بن ارقم رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: اې الله! انصارو ته بخښنه وکړې او زامنو د انصارو ته بخښنه وکړې او زامنو د زامنو د انصارو ته بخښنه وکړې. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۱۹۴۸، رقم: ۱۷۲-۲۵۰۶.

**تشريح**: په لومړۍ درجه کي خو صحابه کرام وه، دوهمي درجې والا تابعين او دريمي درجې والا تبع تابعين سول، نو رسول الله ﷺ د انصارو درې سره پېړيو په حق کي دعاء وفرمايل چي د خير القرون مصداق ده او دا هم ليري نه ده چي د زامنو او ملسيانو څخه د هغوی تر قيامته پوري نسلونه مراد وي، د زامنو سره لوڼي هم شامل دي ځکه د ابناء لفظ د اولاد پر معنی باندي محمول کيدای سي.

## د انصارو غوره قبائل

﴿۵۹۶۴﴾: وَعَنْ أَبِي أُسَيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرُ دُورِ الْأَنْصَارِ بَنُو النَّجَّارِ ثُمَّ بَنُو عَبْدِ الْأَشْهَلِ ثُمَّ بَنُو الْحَارِثِ بْنِ خَزْرَجٍ ثُمَّ بَنُو سَاعِدَةَ وَفِي كُلِّ دُورِ الْأَنْصَارِ خَيْرٌ. متفق عليه.

د حضرت ابو اسيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د انصارو غوره کورونه بنو نجار دي بيا بنو عبدالاشهل بيا بنو حارث بن خزرج بيا بنو ساعده او د انصارو په هر کور کي خير او نيکي ده. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۱۱۵، رقم: ۳۷۸۹، ومسلم ۴\۱۹۴۹، رقم: ۱۷۷-۲۵۱۱.

**تشريح**: او د انصارو په ټولو قبيلو کي، دغه تعميم بعد تخصيص دی يعني مخکي خو رسول الله ﷺ د ځينو خاصو قبيلو د فضيلت ذکر وفرمايه او بيا يې په مجموعي توګه د ټولو قبيلو په اړه وفرمايل چي د انصارو ټولي قبيلې د خير او نيکۍ فضيلت لري او د هغوی ټولي قبيلې د نورو اهل مدينه څخه افضل دي، عسقلاني رحمه الله ليکلي دي چي مخکي د خير کوم لفظ راغلی

دی هغه خو د افضل په معنی کي دي او دوهم خير د فضل په معنی کي استعمال سوی دی، مطلب دا چي د انصارو ټولو قبيلو ته خير او نيکي حاصله ده مګر د مرتبو په اعتبار په هغوی کي تفاوت دی او علماؤ ليکلي دي چي دغه تفاوت د اسلام په قبلولو کي د سبقت په اعتبار دی يعني کومي قبيلې چي د اسلام په قبلولو کي څومره سبقت کړی وو هغومره د هغه فضيلت زيات سوی دی ، څرګنده دي وي چي د دار (کور) څخه مراد قبيله ده ، د انصارو ټولي قبيلې په مدينه کي په بېلو بېلو ځايو کي اوسېدل او په کومه سيمه کي چي کومه قبيله اوسېدل هغه د هغه قبيلې په نسبت په دار بنو فلان، سره پېژندل کېدل، نو په دې اعتبار چي د قبيلې اصل نوم په بنو فلان سره تعبير کيږي، په ډېر روايتو کي د بنو فلان لفظ د دار څخه بغير نقل سوی دی.

د دغه حديث څخه څرګنده سول چي په قومو، قبيلو او اشخاصو کي ځينو ته پر ځينو باندي فضيلت ورکول او د هغوی فضيلت بيانول جائز دي ، او دا په غيبت کي داخل نه دی په شرط د دې چي د هغه وجه دښمني يا خواهش نفس نه وي.

## د حاطب بن ابي بلتعه واقعه

﴿۵۹۶۵﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ بَعَثَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا وَالزُّبَيْرَ

د حضرت علي رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ ما، زبير

وَالْمِقْدَادَ وفي رواية وابامرثد بدل المقداد. فَقَالَ انْطَلِقُوا حَتَّى تَأْتُوا رَوْضَةَ

او مقداد او په يوه روايت کي د مقداد پر ځای دابو مرثد نوم راغلی دی، حکم راکړ چي تاسو روضه

خَاخٍ فَإِنَّ بِهَا ظَعِينَةً وَمَعَهَا كِتَابٌ فَخُذُوهُ مِنْهَا فَانْطَلَقْنَا تَعَادَى بِنَا خَيْلُنَا

خاخ ته ولاړ سئ ، هلته يوه ښځه ده چي د هغې سره يو کاغذ دی هغه کاغذ ځيني راوړئ ، نو موږ

حَتَّى انْتَهَيْنَا إِلَى الرَّوْضَةِ فَإِذَا نَحْنُ بِالظَّعِينَةِ فَقُلْنَا أَخْرِجِي الْكِتَابَ فَقَالَتْ

په تيزي سره پر آسونو هلته ورسيدو تر دې چي روضې ته ورسيدو او هغه ښځه مو هلته پيدا کړه موږ ورته وويل کاغذ راوکاږه ، هغه ښځي وويل :

مَا مَعِي مِنْ كِتَابٍ فَقُلْنَا لَتُخْرِجِنَّ الْكِتَابَ أَوْ لَنُلْقِيَنَّ الثِّيَابَ فَأَخْرَجَتْهُ مِنْ

زما سره هيڅ کاغذ نسته ، موږ ورته وويل يا به کاغذ را کاږې او يا به کالي کاږې، په آخر کي

عِقَاصِهَا فَأَتَيْنَا بِهِ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِذَا فِيهِ مِنْ حَاطِبِ بْنِ أَبِي

هغې کاغذ د خپلي کوڅې څخه راوکښی، موږ هغه نبي کريم ﷺ ته راوړ په هغه کي يې ليکلي

بَلْتَعَةَ إِلَى أُنَاسٍ مِنَ الْمُشْرِكِينَ مِنْ أَهْلِ مَكَّةَ يُخْبِرُهُمْ بِبَعْضِ أَمْرِ رَسُولِ

وه د حاطب بن بلتعه د لوري د مکې د مشرکينو په نامه چي خبرول يې په ځينو کارونو د رسول

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا حَاطِبُ مَا

الله ﷺ نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : اې حاطب ! دا څه خبره ده ؟

هَذَا فقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ لَا تَعْجَلْ عَلَيَّ إِنِّي كُنْتُ امْرَأً مُلْصَقًا فِي قُرَيْشٍ وَلَمْ

حاطب عرض وکړ اې د الله رسوله ! زما په اړه د تلوار څخه کار مه اخلئ زه يو داسي سړی يم چي د قريشو سره اخته سوی يم (يعني د هغوی دوست يم)

أَكُنْ مِنْ أَنْفُسِهَا وَكَانَ مَنْ مَعَكَ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ لَهُمْ قَرَابَاتٌ يَحْمُونَ بِهَا

مگر زه په هغوی کي شامل نه يم او کوم خلک چي په مهاجرينو کي ستا سره دي، مکې والاوو سره د هغوی خپلوۍ دي او د مکې مشرک د دغه خپلوۍ د لحاظ څخه د هغوی د ځان او مال

أَهْلِيهِمْ وَأَمْوَالَهُمْ بمكة فَأَحْبَبْتُ إِذْ فَاتَنِي ذَلِكَ مِنَ النَّسَبِ فِيهِمْ أَنْ أَتَّخِذَ

ساتنه کوي،. (حاطب وايي) نو ما وغوښتل چي زما نسبي خپلوي د قريشو سره نسته په دې

فيهم يَدًا يَحْمُونَ بِهَا قَرَابَتِي وَمَا فَعَلْتُ كُفْرًا وَلَا ارْتِدَادًا عن ديني وَلَا رِضًا

وجه زه به داسي يو کار وکړم چي هغوی په ما خوشحاله سي او هغوی زما د خپلوانو ساتنه وکړي کوم چي په مکه کي دي، ما دا کار د دې لپاره نه دی کړی چي زه کافر يا منافق يم يا د اسلام څخه اوښتی يم، او نه دا کار ما د دې لپاره کړی دی چي د اسلام راوړلو څخه وروسته په

بِالْكُفْرِ بَعْدَ الْإِسْلَامِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انه قَدْ صَدَقَكُمْ

کفر خوشحاله او راضي يم، د دې اوريدو سره رسول الله ﷺ وفرمايل : حاطب رښتيا وويل،

فَقَالَ عُمَرُ دَعْنِي يارسول الله أَضْرِبْ عُنُقَ هَذَا الْمُنَافِقِ فقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ

حضرت عمر رضی اللہ عنہ وویل: اې دالله رسوله! ما ته اجازه راکړئ چي زه دده منافق سر پرې کړم،

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّهُ قَدْ شَهِدَ بَدْرًا وَمَا يُدْرِيكَ لَعَلَّ اللّٰهَ اطَّلَعَ عَلَى أَهْلِ

رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: حاطب د بدر په غزا کي شریک سوی دی او تاسو په حقیقت حال پوه سئ کیدای سي خدای تعالی د بدر والاوو رحمت او مغفرت په نصیب کړی وي،

بَدْرٍ فَقَالَ اعْمَلُوا مَا شِئْتُمْ فَقَدْ وجبت لكم الجنة. وفي رواية قد غَفَرْتُ

ځکه چي الله تعالی فرمایلي دي: (اې د بدر غازیانو!) تاسو چي څه غواړئ کوئ ستاسو لپاره جنت واجب سوی دی، او په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي ما تاسو وبخښلاست،

لَكُمْ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا عَدُوِّي وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَاءَ. متفق عليه.

ددې څخه وروسته دا آیت نازل سو: (یاایهاالذین آمنوا لا تتخذوا عدوي ......)، (اې مؤمنانو! زما او خپل دښمنان دوستان مه جوړوئ) یعني د کافرانو سره د زړه تعلق مه ساتئ،. بخاري او مسلم

**تخريج:** صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۴۶، رقم: ۶۲۵۹، ومسلم ۴\۱۹۴۲، رقم: ۱۶۱- ۲۴۹۴.

**د لغاتو حل:** خاخ: موضع بين مكة والمدينة. طعينة: اي امراة اسمها سارة. لتلقين الثياب: تتجردن عنها ليتبن لنا الامر. عقاصها: الشعر المضفور. ملصقا: اي حليفا.

**تشريح:** د مقداد پر ځای د ابومرثد یادونه ده، یعني په دغه روایت کي خو دادي چي په هغه کار پسي په تلونکي کي حضرت مقداد رضی اللہ عنہ وو او په بل روایت کي د حضرت علي رضی اللہ عنہ سره د حضرت زبیر او حضرت مرثد کېدل مذکور دي، په هر حال حضرت مقداد رضی اللہ عنہ د عمرو کندي زوی دی، ډېر قدیم الاسلام دی، د یوه روایت مطابق شپږم مسلمان دی، د هغه څخه مخکي پنځه کسانو اسلام قبول کړی وو، نوموړي په ۳۵م هجري کال کي د مدینې منورې څخه په درې کوس فاصله د جوف په ځای کي وفات سو او مدینې ته په راوړلو سره په بقیع کي خاورو ته وسپارل سو، هغه وخت یې عمر ۷۰ کاله وو، حضرت ابومرثد رضی اللہ عنہ هم د حصین غنوي زوی

دي، د سترو صحابه کرامو څخه دي، د بدر په غزا کي يې ګډون کړی دی او د هغه زوی مرثد ﷜ هم ګډون کړی دی، ابن سعد ليکلي دي چي حضرت ابو مرثد ﷜ د بدر په غزا، د احد په غزا او نورو ټولو غزاوو کي له رسول الله ﷺ سره ګډون کړی دی، په مدينه کي د ابوبکر صديق ﷜ د خلافت په زمانه کي په ١٢ هجري کال کي د ۶۶ کالو په عمر وفات سو.

روضه خاخ ته ورسيږئ: روضه خاخ د يو ځای نوم دی چي د مدينې څخه د مکې پر لاره مدينې ته نژدې واقع دی، روضه باغچې او شنګيا ته وايي او خاخ شفتالو ته ويل کيږي، دلته د شفتالو ډيري درختي وې په دغه مناسبت سره هغه ځای په روضه خاخ مشهور سو.

هلته به يوه ښځه ووينئ: د هغې ښځي نوم ساره وو، او ځينو حضراتو ام ساره ليکلی دی، هغه په قريشو کي يوه ازاده سوې مينزه وه او د مکې د مشرکانو په نامه د يو خط په اخيستلو د مدينې څخه مکې ته تلل، دلته د رسول الله ﷺ دغه معجزه ثابته سول چي د جاسوسی دومره لويه کړنه په رسول الله ﷺ باندي بېله د مادي وسيلې او ذريعې منکشف سول.

هغه ليک د خپلي کوڅی څخه را وايست: په بل روايت کي دي چي هغې ليک د خپلي ملا څخه را وايست او هغه ته يې ورکړ، نو د دواړو روايتو په منځ کي تطبيق دادی چي د هغې کوڅی به دومره اوږده وه چي ملا ته به رسېدل او هغه ليک هغې د کوڅی لاندي تړلو سره د ملا سره پټ کړی وو.

د ځينو اهمو اقداماتو او منصوباتو په اړه: هغه اقدامات او منصوبې د مکې د فتح دپاره د لښکر تيارولو په اړه وو چي رسول الله ﷺ د جنګي مصالحو سره سم پټ ساتلي وو، ددغه قصې اصل دادی چي کله رسول الله ﷺ د مکې د فتح په قصد سره مسلمانانو ته د سفر او د جنګ د تيارۍ حکم ورکړ نو رسول الله ﷺ د جنګ د تيارۍ د اصل منصوبې د پټ ساتلو تاکيد هم کړی وو، بلکه د يوه روايت مطابق رسول الله ﷺ د مکې قصد کړی وو او خبر يې خيبر د تګ ظاهر کړی وو، دغه احتياط د جنګي مصالحو په وجه وو او دهغه وخت په حالاتو کي د هغه جنګي منصوبې پټ ساتل ډېر ضروري وه، حاطب بن ابي بلتعه يو صحابي وو، هغه په دغه فلان خبر وو او د خپلي ګټي لپاره يې د رسول الله ﷺ د اصل فلان خبر د مکې قريشو ته ورکول غوښتل او په ډېره پټه يې د ذکر سوي ښځي په لاس د مکې مشرکان خبرول غوښتل چي پيغمبر اسلام د خپل لښکر سره پر تاسو باندي د حملې دپاره را روان دی او تاسو هوښيار اوسئ، مګر د هغه ښځي په روانېدو سره حضرت جبرائيل ﵇ نازل سو او رسول الله ﷺ يې خبر کړ چي يوه ښځه د داسي خط په اخيستلو سره مکې ته روانه ده او روضه خاخ ته رسېدلې ده، نو رسول الله

حضرت علي ﷺ او نور کسان هم هغه وخت ولیږل او د خط په راوړلو سره یې وکتی ، دلته دا معلومه سول چي د جاسوسانو خطونه ویل جائز دي همدارنګه د یو مفسد پرده لوڅول جائز دي کله چي حکمت پکښې وي، یا پرده لوڅول د یو فساد باعث جوړیږي.

د هغوی لپاره یو داسي کار وکړم، تر پایه پوري د غه جمله د دغه عبارت معنی ده: ان اتخذ فیهم یدا یحمون بها قرابتي، او طیبي رحمة الله علیه لیکلي دي چي یحمون صفت دی د یدا، او د ید (لاس) څخه مراد یا خو انعام ورکونکی لاس دی یا مرسته کونکی قدرت ، همدارنګه د دغه عبارت لفظي معنی به داسي وي چي ما وغوښتل چي د هغوی څخه انعام یا داسي طاقت تر لاسه کړم چي هغه خلک زما د قرابت یا قریبانو مرسته او حمایت وکړي، د حاطب مطلب دا وو چي په دغه بې ځایه کړنه سره زما اصل مقصد د خپلو قریبانو تحفظ تر لاسه کول وو ، ما دغه کټور معلومات په تر لاسه کولو سره د مکې د قریشو خوشحاله کول غوښتل چي هغوی زما د دغه خوشحالۍ په سبب په مکه کي زما د قریبانو ساتنه وکړي، څرګنده دي وي چي حاطب اهل مکه ته کوم لیک لیږل غوښتل د هغه څخه د هغه مقصد رسول الله ﷺ ته تکلیف رسول هیڅکله نه وو که د هغه مقصد داوي نو بیا د هغه په کافر کېدو کي هیڅ شبه نه پاته کېدل ، حقیقت دادی چي هغه دا فکر کوی چي زما د دغه لیک په لیکلو سره به رسول الله ﷺ ته هیڅ تکلیف نه رسیږي ، دغه کړنه یې په ناپوهي کي کړې وه ، کله چي هغه خپل اصل مقصد بیان کړ چي د هغه د خط لیکلو محرک جوړ سوی وو ، نو رسول الله ﷺ ته د تکلیف رسولو اراده شامله وای نو لسان نبوت به د هغه د بیان هیڅکله تصدیق نه کولای ، مګر په دې کي شک نسته چي هغه په یو لوی اجتهاد کوتاهۍ کي اخته سوی وو ، په دې توګه چي هغه خپله دغه معامله پټه کړل او د رسول الله ﷺ څخه د اجازې اخیستلو پرته یې داسي کار وکړ .

د هغه منافق سر پرې کړم، د دغه عبارت په اړه ملا علي قاري دا لیکلي چي رسول الله ﷺ د صحابه کرامو په مخاطب کولو سره د حاطب د بیان عذر تصدیق وفرمایه مګر د دې سره حضرت عمر رضي الله عنه چي کومه خبره وکړل نو د هغې محرک د دین په اړه هغه سختي وه چي د حضرت عمر رضي الله عنه د ذات خاصه وه هغه د دین او مذهب په معاملاتو کي د نرمۍ او رعایت قائل نه وو ، او بیا د حاطب معامله خو هسي هم سخته معامله وه، دوهم دا چي په هغه زمانه کي ځیني خلک وه همدا ډول چي هغوی ته به د نفاق نسبت کېدی نو هغه دا فکر وکړ چي کوم څوک د نبي کریم ﷺ مخالفت وکړي هغه د وژني مستوجب سو ، مګر په دغه فکر کي خپله د هغه په نزد هم د یقین اړخ غالب نه وو ځکه هغه د نبي کریم ﷺ څخه د حاطب د وژني اجازه وغوښتل، پاته سوه دا خبره

چي هغه پر حاطب باندي د منافق اطلاق په څه وجه وکړ، نو كيداى سي چي حضرت عمر رضي الله عنه په دې اړه هم دا فكر كړى وي چي حاطب كيداى سي صحيح خبره نه وي ښودلې د هغه په زړه كي نور دي او بيا يې بل څه كړل، د هغه د ذكر سوي عذر محض خبري جوړلو لپاره دي ، شيخ عبدالحق دهلوي ليكلي : كيداى سي چي ددغه پېښي په بيانولو كي تقديم او تاخير سوى وي كنه نو د رسول الله ﷺ د تصديق څخه وروسته د حضرت عمر رضي الله عنه دا خبره كول ليري معلوميږي ، يعني د حضرت شيخ په نزد ددغه خبري قوي احتمال دى چي حضرت عمر رضي الله عنه دا خبره مخكي كړې وي او د رسول الله ﷺ د تصديق جزء وروسته وي،

تاسو چي څه كوئ هم هغه كوئ: دا اهل بدر ته خطاب دى او ددې مطلب دا هيڅكله نه دى چي په عملي ژوند كي تاسو ته پوره ازادي دركړل سول چي ښه او بد كوم عمل كوئ او د فرضو او اركانو پر ځاى راوړلو كي هره كوتاهي ستاسو لپاره معاف ده بلكه ددغه ارشاد قدسي اصل مراد د اهل بدر په اړه د الله جل جلاله خاص كرم او د هغه خصوصي عنايت ظاهرول او دهغوى د هغه خاص مرتبې ښرګندول دي چي د بدر په غزا كي د ګډون په بدله كي تاسو ته به د آخرت ټولي مرتبې او درجې تر لاسه كيږي ، هلته ستاسو لوړ حيثيت متعين سوى دى اوس تاسو ته اجازه ده چي په اعمال صالحه او افعال نافله كي غواړئ لږ عمل وكړي او كه وغواړئ ډېر عمل وكړئ څه چي وكړئ هغه به كافي وي .

جنت ستاسو دپاره واجب سوى دى: دا د الله جل جلاله وعدې په سبب ستاسو لپاره جنت واجب سوى دى، طيبي ليكلي دي چي رسول الله ﷺ مخكي د لعل چي كوم لفظ استعمال كړ هغه يې د خپله ځانه نه وفرمايه بلكه په هغه كي ترجي او اميد معني حضرت عمر رضي الله عنه ته راجع ده ځكه چي د رسول الله ﷺ په نزد خو دا خبره يقيني وه او زياته قرينه داده چي رسول الله ﷺ د اهل بدر د جنتي كېدو او مغفور كېدو اړخ په لعل سره ځكه بيان كړ چي اهل بدر په هغه داسي باور كولو سره كښېني چي د فرائضو او واجباتو څخه هم غفلت اختيار كړي او د (اعملوا ماشئتم) څخه دا نتيجه واخلي چي د هر فعل او عمل ازادي موږ ته راكړل سوې ده ، اوس موږ څه چي غواړو هغه به كوو .

ما تاسو بخښلي ياست: يعني ما تاسو ته په خپل نظر رحمت او مغفرت سره نازولي ياست، د اهل بدر په حق كي دغه جمله د لومړنۍ جملې چي جنت ستاسو لپاره واجب سوى دى، څخه زيات وزن داره او زيات مؤثر ده ،په دې اړه نووي رحمه الله ليكلي دي چي د اهل بدر په حق كي ددغه عفو او مغفرت تعلق يوازي د آخرت سره دى نه د دنيا سر. ، مطلب دا چي په هغوى كي كه څوك داسي كار وكړي چي پر هغه حد يا بله سزا جاري كيږي نو هغه به د نيوكي مستوجب

وي ، نو يو صحابي مسطح بن اثاثه چي دا هل بدر څخه وو ، مګر کله چي هغه پر بي بي عائشې ﷺ باندي تهمت ولګوي او په قرآن کريم کي د هغه تهمت څخه د پاک لمنۍ تصديق وسو نو رسول الله ﷺ مسطح د نيو کي ور وګرځوی او پر هغه يې د تهمت لګولو حد جاري کړ .

دغه آيت نازل سو ، ددې څخه د سورة ممتحنه هغه لومړني آياتونه مراد دي چي د هغه شان نزول د حاطب دغه قصه ده هغه آياتونه دادي :

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لاَ تَتَّخِذُوا عَدُوِّي وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَاء تُلْقُونَ إِلَيْهِم بِالْمَوَدَّةِ وَقَدْ كَفَرُوا بِمَا جَاءكُم مِّنَ الْحَقِّ يُخْرِجُونَ الرَّسُولَ وَإِيَّاكُمْ أَن تُؤْمِنُوا بِاللَّهِ رَبِّكُمْ إِن كُنتُمْ خَرَجْتُمْ جِهَادًا فِي سَبِيلِي وَابْتِغَاء مَرْضَاتِي تُسِرُّونَ إِلَيْهِم بِالْمَوَدَّةِ وَأَنَا أَعْلَمُ بِمَا أَخْفَيْتُمْ وَمَا أَعْلَنتُمْ وَمَن يَفْعَلْهُ مِنكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَاء السَّبِيلِ إِن يَثْقَفُوكُمْ يَكُونُوا لَكُمْ أَعْدَاء وَيَبْسُطُوا إِلَيْكُمْ أَيْدِيَهُمْ وَأَلْسِنَتَهُم بِالسُّوءِ وَوَدُّوا لَوْ تَكْفُرُونَ لَن تَنفَعَكُمْ أَرْحَامُكُمْ وَلاَ أَوْلاَدُكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَفْصِلُ بَيْنَكُمْ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ قَدْ كَانَتْ لَكُمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فِي إِبْرَاهِيمَ وَالَّذِينَ مَعَهُ إِذْ قَالُوا لِقَوْمِهِمْ إِنَّا بُرَءاؤُ مِنكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ كَفَرْنَا بِكُمْ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةُ وَالْبَغْضَاء أَبَدًا حَتَّى تُؤْمِنُوا بِاللَّهِ وَحْدَهُ إِلاَّ قَوْلَ إِبْرَاهِيمَ لأَبِيهِ لأَسْتَغْفِرَنَّ لَكَ وَمَا أَمْلِكُ لَكَ مِنَ اللَّهِ مِن شَيْءٍ رَّبَّنَا عَلَيْكَ تَوَكَّلْنَا وَإِلَيْكَ أَنَبْنَا وَإِلَيْكَ الْمَصِيرُ ۝

ژباړه: اې مؤمنانو ! تاسو زما دښمنان او خپل دښمنان دوستان مه جوړوئ چي د هغوی سره د دوستۍ اظهار کول پيل کړئ حال دا چي تاسو ته کوم دين راغلی دی هغوی ددې منکر دي، باسي تاسو او رسول له دې کبله چي تاسو پر خپل پروردګار ايمان راوړی دی ، که تاسو زما په لاره کي د جهاد کولو په غرض او زما د رضا په غرض وتلي ياست ، تاسو دهغوی سره په پټه د دوستۍ خبري کوئ حال دا چي ما ته د ټولو شيانو علم دی څه چي تاسو پټوئ او څه چي په ښکاره کوئ ، (په ياد ولرئ) کوم څوک چي په تاسو کي داسي کوي هغه د سيده لاري څخه ګمراه سو که د هغوی پر تاسو وس پيدا سي نو سمدستي به د عداوت اظهار وکړي ، (په داسي توګه) چي پر تاسو به په بدۍ سره ويل پيل کړي هغوی ددې خبري خواهشمند دي چي تاسو کافران سئ، ستاسو قريبان او اولاد به د قيامت په ورځ ستا سو په کار نه راسي الله جل جلاله به ستاسو په منځ کي فيصله کوي او الله جل جلاله ستاسو ټول اعمال ښهويني ستاسو دپاره په ابراهيم

كي او په هغه خلگو كي چي د هغه سره وه يوه ښه نمونه ده ، كله چي هغوى ټولو خپل قوم ته وويل چي موږ ستاسو څخه او څوک چي د الله ﷻ څخه ماسوا معبود گڼي د هغوى څخه بېزاره يو ، موږ ستاسو منكر يو ، او په موږ او تاسو كي هميشه عداوت او بغض ظاهر سو ، تر څو چي تاسو پر الله باندي ايمان نه راوړى مگر د ابراهيم دومره خبره خو د خپل پلار سره سوې وه چي زه به ستا دپاره استغفار ضرور كوم او ستا دپاره زما سره د الله ﷻ په مخكي دهيڅ خبري اختيار نسته ، اې زموږ پروردگاره! موږ پر تا توكل وو او ستا طرف ته رجوع كوو او تا ته ستنېدل دي.

دغه آيت كريمه كه څه هم دحاطب په اړه نازل سوى وو مگر خطاب په عامه توگه دى چي دحاطب په ډول نور كسان هم ددغه آيت لاندي راسي ، ځكه ويل سوي دي : العبرة بعموم اللفظ لابخصوص السبب، يعني دا اصولي قاعده ده چي اعتبار د عموم لفظ وي نه د خصوص سبب، مطلب دا چي يو آيت د يوې خاصي پېښي په اړه يا د يو خاص سړي په اړه نازل سوى وي نو دا نه چي هغه آيت يوازي د هغه پېښي يا يوازي د هغه سړي سره خاص گڼل كيږي بلكه د هغه مصداق او محمول به د عموميت نوعيت لري چي كوم څوک هم ددغه آيت د مفهوم او مضمون سره مطابقت لري هغه به ددغه آيت لاندي راځي او دا به گڼل كيږي چي دغه آيت د هغه سړي په اړه نازل سوى دى .

## د اصحاب بدر مقام

﴿۵۹۶۶﴾: وَعَنْ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ قَالَ جَاءَ جِبْرِيلُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالص فَقَالَ مَا تَعُدُّونَ أَهْلَ بَدْرٍ فِيكُمْ قَالَ مِنْ أَفْضَلِ الْمُسْلِمِينَ أَوْ كَلِمَةً نَحْوَهَا قَالَ وَكَذَلِكَ مَنْ شَهِدَ بَدْرًا مِنَ الْمَلَائِكَةِ. رواه البخاري.

د حضرت رفاعه بن رافع رضي الله عنه څخه روايت دى چي جبرائيل عليه السلام نبي كريم ﷺ ته راغلى او پوښتنه يې وكړه چي تاسو د بدر په غزا كي گډون كونكو ته څه درجه وركوئ ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : موږ دوى په مسلمانانو كي تر ټولو غوره او افضل گڼو يا بله داسي ښه خبره يې د اهل بدر په باره كي وكړه، جبرائيل عليه السلام ورته وويل : د بدر په غزا كي چي كومي ملائكي حاضري سوي دي موږ هم هغوى داسي گڼو . بخاري .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۷\۳۱۱، رقم: ۳۹۹۲.

**تشريح** د حضرت جبرائيل عليه السلام مطلب دا وو چي څرنگه چي تاسو اصحاب بدر د نورو ټولو

مسلمانانو څخه افضل ګڼئ همدارنګه زموږ خیال هم دادی چي موږ په ملائکو کي کومي ملائکي د بدر په غزا کي ګډن کړی دی هغه د نورو ټولو ملائکو څخه افضلي دي چا ته چي په دغه غزا کي د ګډون کولو موقع په برخه سول.

﴿۵۹٦۷﴾: وَعَنْ حَفْصَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنِّيْ لَاَرْجُوْ

د حضرت حفصه (رض) څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : زه امید لرم چي

اَنْ لَا يَدْخُلُ النَّارَ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ احد شهد بدرا والحديبية قلت يارسول الله

هیڅ یو سړی به په هغه خلکو کي د دوږخ په اور کي داخل نه سي کوم چي په بدر او حدیبیه کي ګډون کړی وي، ما وویل اې د الله رسوله!

اليس قد قال الله تعالى وان منكم الا واردها، قال فلم تسمعيه يقول ثم

ایا الله تعالی دا نه دي فرمایلي : (ان منکم الا واردها)، (په تاسو کي هیڅوک داسي نسته چي پر دوږخ به نه تیریږي)، رسول الله ﷺ وفرمایل : ایا تا دا نه دي اوریدلي چي الله تعالی دا هم

ننجي الذين اتقوا، وفي رواية لايدخل النار ان شاء الله مِنْ أَصْحَابِ الشَّجَرَةِ أَحَدٌ الَّذِينَ بَايَعُوا تَحْتَهَا. رواه مسلم

فرمایلي دي : (ثم ننجي الذين اتقوا)، (موږ به هغه خلکو ته د دوږخ څخه نجات ورکړو چي پرهیزګاري یې اختیار کړي وي)، او په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ دا فرمایلي دي که خدای تعالی غوښتل نود اصحاب شجره (کومو چي تر درختي لاندي بیعت کړی وو) څخه به یو هم د دوږخ په اور کي نه داخلیږي. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۴\۱۹۴۲، رقم: ۱٦۳- ۲۴۹٦.

**تشریح**: ان منکم الا واردها : دا د قرآن کریم آیت دی ، مطلب یې دادی چي د قیامت په ورځ به هر سړی پر پل صراط تیریږي او پل صراط به د دوږخ سربېره وي ځکه د دوږخ سره مخامخ کېدل به د هر سړي لپاره ضروري وي، نووي رحمه الله لیکلي دي چي پر دوږخ باندي د وارد کېدو څخه مراد پر پل صراط باندي تېرېدل دي، په هر حال کله چي پر پل صراط باندي خلک تېر سي نو په هغوی کي چي څوک دوږخي وي هغوی به پر پل صراط باندي په لوېدو سره دوږخ ته واچول سي

او کوم څوک چي جنتي وي هغوی به پر پل صراط باندي په تېرېدو سره په سلامتیا ولاړ سي او جنت ته به ورسیږي، مګر د بي بي حفصې په خیال کي دا خبره وه چي د قرآن کریم په دغه الفاظو کي د واردها معنی د اخلها ده نو هغې فکر وکړ چي کله د قرآن کریم ددغه الفاظو مطابق په دوږخ کي د داخلېدو څخه هیڅوک مستثنی نه دی نو دا اهل بدر او حدیبیه په حق کي د دخول دوږخ نفي مصداق او محمول څه کیدای سي، په دې خبره رسول الله ﷺ هغه پوهه کړل چي خپله په دغه آیت کي ددغه الفاظو وروسته چي (ثم ننجي الذين اتقوا) کوم الفاظ دي د هغه څخه دا ثابتیږي چي هر سړی به په دوږخ کي نه داخلیږي بلکه هغه خلګ به په دوږخ کي داخلیږي کوم چي د خلاصون مستحق نه وي بلکه د عذاب مستحق ګرځول سوي وي،

او دا چي د واردها معنی په دوږخ کي د داخلېدو نه ده بلکه د دوږخ سربېره د تېرېدو ده، څرګنده دي وي چي بي بي حفصه (رض) د رسول الله ﷺ د ارشاد په اورېدو سره چي څه وویل هغه به د مناظرې په انداز کي او د اعتراض په توګه نه وو بلکه په اصل کي چي بي بي حفصه رضي الله عنها د رسول الله ﷺ ارشاد خپل خیال مطابق په ظاهره د آیت قراني موافق تر لاسه نه کړ نو هغې ته د حدیث د مفهوم په پوهېدو کي ستونزه پیدا سول او بیا هغې د استفادې په توګه په ذکر سوو الفاظو کي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړل، یعني د بي بي حفصه رضي الله عنها دغه سوال د هغې د حکم په تعمیل کي وو، که د یو آیت یا حدیث معنی په پوهه کي رانه سي یا د یو آیت او حدیث په منځ کي تطبیق معلوم نه سي یا په یو بله دیني خبره کي مشکل وي نو هغه د یو عالم څخه پوښتل پکار دي لکه څرنګه چي الله جل جلاله فرمایلي دي: (فاسئلو اهل الذکر ان کنتم لاتعلمون) نو تاسو د اهل ذکر یعني عالمانو څخه پوښتنه کوئ کله چي تاسو خبر نه یاست.

## د اهل حدیبیه فضیلت

﴿۵۹۶۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ كُنَّا يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ الفا واربع مائة قال لَنَا النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْتُمْ خَيْرُ أَهْلِ الْأَرْضِ. متفق عليه

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دی چي د حدیبیه په ورځ زموږ شمیر یو زر او څلور سوه وو، زموږ په اړه رسول الله ﷺ دا وفرمایل: نن ورځ تاسو د مځکي غوره خلک یاست. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۷\۴۴۳، رقم: ۴۱۵۴، ومسلم ۳\۱۴۸۴، رقم: ۷۱-۱۸۵۶.

**تشریح**: یو زر او څلور سوه، د حدیبیه په موقع کي د موجوده صحابه کرامو د شمېر په اړه

اختلاف دی، او دهغه مختلفو روايتو په منځ کي چي کومه وجه بيانيږي د هغه ذکر مخکي تېر سوی دی ، ددغه حديث مطابق ځيني حضرات چي په هغوی کي سيوطي رحمة الله عليه هم دی ليکلي دي چي په صحابه کرامو کي تر ټولو افضل خلفاء اربعه دي بيا عشره مبشره ، بيا اهل بدر بيا اهل احد او بيا اهل حديبيه . والله اعلم.

## د اصحاب بدر مرتبه

﴿۵۹۶۹﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يَصْعَدُ الثَّنِيَّةَ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ و فرمايل : (يعني د حديبيه په سفر کي) څوک سته چي ثنية المرار ته وخيژي

ثَنِيَّةَ الْمُرَارِ فَإِنَّهُ يُحَطُّ عَنْهُ مَا حُطَّ عَنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ فَكَانَ أَوَّلَ مَنْ صَعِدَهَا

د هغه گناه به داسي ليري کړل سي لکه څرنگه چي د بني اسرائيلو گناه ليري کړل سوې وه، نو تر ټولو مخکي پر دې غونډۍ زموږ آسونه وختل

خَيْلُنَا خَيْلُ بَنِي الْخَزْرَجِ ثُمَّ تَتَامَّ النَّاسُ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

يعني د مديني د قبيله خزرج آسونه ، ددې څخه وروسته ټول خلک راغلل ، رسول الله ﷺ

وَسَلَّمَ وَكُلُّكُمْ مَغْفُورٌ لَهُ إِلَّا صَاحِبَ الْجَمَلِ الْأَحْمَرِ فَأَتَيْنَاهُ فَقُلْنَا تَعَالَ

و فرمايل تاسو ټول بخښلي ياست، خو خاوند د دغه سور اوښ ، موږ هغه سړي ته ورغلو چي د هغه سور اوښ وو او هغه ته مو هم وويل زموږ سره راځه

يَسْتَغْفِرْ لَكَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَأَنْ أَجِدَ ضَالَّتِي أَحَبُّ إِلَيَّ

چي ستا لپاره هم رسول الله ﷺ بخښنه وغواړي هغه وويل : زه خپل ورک سوی شی پيدا کوم دا

مِنْ أَنْ يَسْتَغْفِرَ لِي صَاحِبُكُمْ .رواه مسلم ، وذكر حديث انس قال لابي بن كعب ان الله امرني ان اقرا عليك في باب بعد فضائل القرآن.

ما ته ستاسو د دوست د بخښني څخه غوره دی . مسلم، د انس رضي الله عنه حديث د فضائل قرآن څخه وروسته په باب کي بيان سوی دی په کوم کي چي رسول الله ﷺ ابی بن کعب ته و فرمايل چي زه

د الله ﷻ په حكم تا ته تلاوت اورول غواړم.

**تخريج:** صحيح مسلم ۴\ ۲۱۴۴، رقم: ۱۲- ۲۸۸۰.

**د لغاتو حل:** ثنية المرار: موضع بين مكة والحديبة.

**تشريح:** په ثنية المرار، كي د ثنية څخه مراد غره په منځ كي د شيلي لار ده او مرار د يو ځاى نوم دى چي د مكې او مدينې په منځ كي پر هغه لار واقع دى چي پر حديبيه باندي تيريږي، دغه ارشاد د هغه وخت دى كله چي رسول الله ﷺ په شپږم هجري كال كي د عمرې په نيت مكې ته روان سو، مگر د حديبيه ځاى ته په رسېدو سره تم سوى وو، او د حديبيه مشهوره صلح پېښه سوې وه، د دغه سفر په دوران كي چي رسول الله ﷺ د خپلو اصحابو سره په شپه كي ثنيه المرار ته ورسېدى نو د خلكو د حوصلې زياتولو لپاره يې ذكر سوي الفاظ وفرمايل او د حوصلې زياتولو ضرورت ځكه وو چي هغه شېله ډېره ستونزمنه وه او پورته ختل يې اسان كار نه وو، يا دا چي رسول الله ﷺ ته دا بېره وه چي د هغه شېلې وروسته كېداى سي اهل مكه ناست وي او د فلان په جوړولو سره د شپې په تياره كي ناڅاپه حمله وكړي، ځكه د صورت حال اندازه اخيستل ضروري وو او د دغه مقصد لپاره لوړ ختل ظاهره خبره ده او ځان په خطره كي اچول دي.

لكه څرنگه چي د بني اسرائيلو گناه معاف سوې: د دغه الفاظو په ذريعه د بني اسرائيلو سره متعلق د قرآن كريم دغه الفاظ (وقولوا حطة نغفر لكم خطاياكم) ته اشاره ده، په اصل كي قصه داسي وه چي د حضرت موسى عليه السلام په زمانه كي كله چي بني اسرائيلو د تيه په ميدان كي څلوېښت كاله سرگردانه گرځېدل چي الله ﷻ د خپل كرم او عنايت له موخي پر هغوى د وريځي سايه تياره كړل او د هغوى خوراك د پاره يې من او سلوى نازل كړل او بيا هغوى ته يې د شام يو ښار اريحاء ته د تللو حكم وكړ هغه وخت هغوى ته دا هدايت سوى وو چي هغه ښار ته د داخلېدو په وخت كي د خاكسارۍ په توگه حطه (توبه ده) ويلو سره داخل سئ كه تاسو زموږ په دغه هدايت عمل وكړئ او په توبه كولو سره په هغه ښار كي داخل سئ نو موږ به ستاسو وروستني گناهونه معاف كړو او تاسو ته به مغفرت دركړو، مگر بني اسرائيلو نه يوازي دا چي هغه الهي حكم او هدايت باندي عمل ونه كړ بلكه دا شرارت يې هم وكړ چي په ښار كي د داخلېدو پر وخت يې د الله ﷻ ښودلي هغه الفاظ په بدلولو سره يو داسي لفظ ويل پيل كړ چي د هغوى د دنياوي طلب او خواهش معنى يې درلودل د هغه په بدله كي پر هغوى د طاعون سخت عذاب نازل كړل سو چي په هغه كي د دوى اوويا زره كسان هلاك كړل سول نو رسول الله ﷺ چي

دا وفرمایل چي څرنګه د بني اسرائیلو ګناه معاف کړل سول نو د ګناه معاف کېدو څخه مراد د ګناه معاف کولو وعده وه یعني د رسول الله ﷺ مطلب دا وو چي څرنګه د بني اسرائیلو سره د مغفرت وعده سوې وه که چیري هغوی هغه وخت د الهي حکم او هدایت باندي عمل کړی وای نو د هغوی ټول ګناهونه به معاف سوي وای ، همدارنګه اوس زه د الله ﷻ له خوا ستاسو سره وعده کوم چي کوم څوک ثنیة المرار ته وخیژي د هغه ټول ګناهونه به معاف سي .

هغه زموږ اسونه یعني د خزرج قبیله، خزرج د مدینې منورې د انصارو یوه قبیله وه او حضرت جابر ﷛ د هغه قبیلې څخه وو، دا خبره مخکي ښودل سوې ده چي اوس او خزرج دوه وروڼه وه او مخ په وړاندي د دواړو اولادونه په دوو بېلو بېلو قبیلو بدل سول، او دغه دواړي قبیلې د خپل مورث اعلی په نامه سره ونومول سوې، نو د مدینې د انصارو څخه ځیني خلګو د اوس قبیلې سره تعلق درلود او ځینو د خزرج قبیلې سره .

زه خپل ورک سوی شی تر لاسه کوم: په ښکاره خو دا معلومېږي چي هغه وخت د عبدالله بن ابی ﷛ هغه سور اوښ ورک سوی وو یا یو بل شی یې ورک سوی وو، نو صحابه کرامو هغه ته وویل : راځه چي رسول الله ﷺ ته درخواست وکړو چي ستا په حق کي هم استغفار وکړي او ستا د بخښني دعاء وکړي نو هغه په ډېره بې پرواهي سره وویل: دا وخت ستاسو ملګري (رسول الله ﷺ) ته زما د تګ وخت نسته ، د خپل ورک سوي شي پلټنه کول او هغه پیدا کول زما په نزد تر دې خبري زیات مهم او غوره دی چي زه د بخښني لپاره ستا سو سره رسول الله ﷺ ته ورسم، د عبدالله بن ابي دغه الفاظ په یقیني توګه د هغه د صریح کفر غماز وه او په دې کي هیڅ شک نسته چي هغه د خپل باطني خبث په وجه داسي وو او همداسي پاته سو نو الله ﷻ هغه ته په اشاره کولو سره وفرمایل :

وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا يَسْتَغْفِرْ لَكُمْ رَسُولُ اللَّهِ لَوَّوْا رُؤُوسَهُمْ وَرَأَيْتَهُمْ يَصُدُّونَ وَهُم مُّسْتَكْبِرُونَ سَوَاءٌ عَلَيْهِمْ أَسْتَغْفَرْتَ لَهُمْ أَمْ لَمْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ لَن يَغْفِرَ اللَّهُ لَهُمْ...

ژباړه: او کله چي دوی (منافقانو ) ته وویل سي راځئ چي رسول الله ﷺ ته ورسو چي ستاسو لپاره استغفار وکړي نو هغوی مخ اړوي نو (اې پیغمبره!) ته به هغوی ووینې چي هغوی به د هغه ناصح څخه او استغفار تر لاسه کولو څخه په تکبر کولو سره بې پرواهي کوي (کله چي د هغوی دکفر دغه حال دی نو ) د هغوی په اړه دواړه برابر دي ، که څه هم ته د هغوی لپاره استغفار وکړې یا یې ونه کړې .

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

## د شيخينو او ابن مسعود رضي الله عنه فضيلت

﴿۵۹۷۰﴾: عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اقْتَدُوا بِاللَّذَيْنِ

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زما څخه وروسته تاسو

مِنْ بَعْدِي مِنْ أَصْحَابِي أَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ وَاهْتَدُوا بِهَدْيِ عَمَّارٍ وَتَمَسَّكُوا بِعَهْدِ

زما په اصحابو كي دابوبكر رضي الله عنه او عمر رضي الله عنه پيروي كوئ او د عمار رضي الله عنه سيرت او كړني اختيار

ابْنِ أُمِّ عَبْدٍ، وفي رواية حذيفة ماحدثكم ابن مسعود فصدقوه بدل

وتمسكوا بعهد ابن ام عبد. رواه الترمذي

كړئ او دام عبد د زوى (ابن مسعود رضي الله عنه) عهد او قول ټينګ ونيسئ، او په يوه روايت كي چي د حذيفه رضي الله عنه څخه نقل دى دا الفاظ دي چي ابن مسعود رضي الله عنه تاسو ته كومه خبره يا حديث بيان كړي د هغه تصديق كوئ په بدل كي د وتمسكوا بعهد ابن ام عبد. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵/۵۷۰. رقم: ۳۶۶۳.

**تشريح**: او زما څخه وروسته به خليفه وي: دغه معنى د شيخ عبدالحق رحمة الله عليه د معنى مطابق ده، حال دا چي د ملا علي قاري رحمة الله عليه مطابق داسي معنى ده چي تاسو زما د وفات څخه وروسته يا زما د پيروى څخه وروسته د هغه دواړو پيروي كوئ چي زما صحابه دي او هغه ابوبكر او عمر رضي الله عنهما دي نو د نحوي په اعتبار ابوبكر او عمر رضي الله عنهما د الذين بدل يا بيان دى.

پر سيده لاره ځئ: څرګنده دي وي چي د حضرت ابوبكر صديق او حضرت عمر رضي الله عنهما په اړه د اقتداء لفظ راوستل سوى دى او د حضرت عمار رضي الله عنه په اړه د اهتداء لفظ استعمال سوى دى، د دغه دواړو الفاظ په منځ كي فرق دادى چي په اقتداء كي تر اهتداء زيات عموميت دى له دې كبله چي په اقتداء كي د قول او فعل دواړو لحاظ كيږي او د اهتداء تعلق يوازي د فعل سره وي، يعني اقتداء مطلق پيروي كولو ته وايي كه په فعل كي وي او كه په قول كي وي، او اهتداء يوازي د فعل پيروى ته وايي.

د حديث په دغه الفاظو كي نه يوازي دا چي د حضرت عمار بن ياسر رضي الله عنه د فضيلت او كمال

یادونه ده چي د هغه هيڅ فعل او عمل د حق د لاري څخه ليري نه وو بلکه ددې څخه د امير المؤمنين حضرت علي رضی اللہ عنہ د خلافت پر حق کېدل هم ثابتيږي ځکه چي د حضرت علي رضی اللہ عنہ او حضرت امير معاويه رضی اللہ عنہ په منځ کي چي کومه جګړه پېښه سوې وه په هغه کي حضرت عمار رضی اللہ عنہ د سيدنا حضرت علي رضی اللہ عنہ سره وو.

د ام عبد د زوی په عهد کي، د عهد څخه مراد قول او وصيت دی يعني عبدالله ابن مسعود رضی اللہ عنہ چي په ديني احکامو او مسئلو کي کومه خبره وکړي او کوم وصيت وکړي په هغه په پوره توګه عمل کوئ نو دا هغه د رسول صلی اللہ علیہ وسلم حکم دی چي امام اعظم ابوحنيفة رحمۃ اللہ علیہ د خپلي فقهي يو ټينګ بنياد ګرځولی دی، د مسائلو په استنباط کي امام اعظم رحمۃ اللہ علیہ د خلفاء اربعه څخه وروسته په ټولو صحابه کرامو کي تر ټولو زيات چي د کوم صحابي روايت او قول اختياروي هغه حضرت عبدالله ابن مسعود رضی اللہ عنہ دی چي د هغه کمال فقاهت او اخلاص په وصيت کي چا ته شک نسته. توربشتي رحمۃ اللہ علیہ هم د عهد تقريبا همدغه معنی بيان کړې ده، مګر هغه په خپل نزد دا خبره غوره ګرځولې ده چي د ام عبد د عهد، څخه مراد د خلافت په اړه د عبدالله ابن مسعود رضی اللہ عنہ رايه او د هغه فيصله ده، يعني ددغه ارشاد په ذريعه امت ته هدايت وکړل سو چي د نبي کريم صلی اللہ علیہ وسلم د وصال وروسته د خلافت په اړه عبدالله بن مسعود رضی اللہ عنہ چي کومه رايه او فيصله څرګنده کړي د هغه څخه تاسو ټول لاربنوونه تر لاسه کړئ، نو د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم د وصال څخه وروسته د حضرت ابوبکر صديق رضی اللہ عنہ د خلافت د حقانيت او صحيح والي شاهدي تر ټولو مخکي حضرت عبدالله ابن مسعود رضی اللہ عنہ ورکړل او د ټولو اکابرو صحابه کرامو رايه او مشوره د خلافت صديق په قيام کي شامله وه، د هغه تر ټولو لوی دليل دا وو چي د خلافت په استحقاق کي مور هغه ذات څرنګه وروسته کولای سو چي هغه رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم د خپل مرض وفات په وخت کي زمور د لمانځه د امامت لپاره مخکي کړی وو، دا ممکن نه ده چي کوم سړی رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم زمور ديني امام ټاکلی وي هغه دي مور د خپل دنياوي مشرتابه لپاره ونه ټاکو.

همدارنګه مضمون د سيدنا علي رضی اللہ عنہ څخه هم منقول دی، په هر حال د حديث لومړی برخه: اقتدوا بالذين من بعد اي ابوبکر وعمر، او آخري برخه: تمسکم بعهد ابن ام عبد، په منځ کي چي کوم مناسبت دی د هغه څخه د توربشتي رحمۃ اللہ علیہ ددغه قول تائيد کيږي، مګر په دوهم روايت کي حضرت حذيفه رضی اللہ عنہ چي کوم الفاظ نقل کړي دي د هغه څخه ددغه قول تائيد کيږي چي د عهد څخه مراد قول او وصيت دی.

## د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فضيلت

﴿۵۹۷۱﴾: وَعَنْ عَلِيّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ كُنْتُ مُؤَمِّرًا مِنْ غَيْرِ مَشُورَةٍ لَأَمَّرْتُ ابْنَ أُمِّ عَبْدٍ. رواه الترمذي وابن ماجه.

د حضرت علي رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: كه ما د مشورې څخه پرته يو څوك امير كولاى نو ما به ستاسو امير د ام عبد زوى (عبدالله بن مسعود رضی الله عنه) كړى واى. ترمذي او ابن ماجه

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۳۲، رقم: ۳۸۰۸، وابن ماجه ۱\۴۹، رقم: ۱۳۷.

**تشريح**: يعني عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه داسي صلاحيت او كمال لري چي د هغه په امير او حاكم جوړولو كي د چا د مشورې او فكر اړتيا نسته، علماؤ ليكلي دي چي رسول الله ﷺ دغه خبره د يو خاص لښكر د امير او مشر جوړولو په اړه كړې وه يا په خپل ژوند كي د يو خاص معاملې د ذمه دارۍ سپارلو په اړه يې كړې وه، په هر صورت د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب د خلافت عامه څخه هيڅكله نه وو چي د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته قائم سو، د خلافت يو لوى شرط قريشي النسل كېدل خو خپله رسول الله ﷺ بيان كړي دي او حضرت عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه د قريشو څخه نه وو.

## د يو څو صحابه كرامو فضائل

﴿۵۹۷۲﴾: وَعَنْ خَيْثَمَةَ بْنِ أَبِي سَبْرَةَ قَالَ أَتَيْتُ الْمَدِينَةَ فَسَأَلْتُ اللّٰهَ أَنْ

د خيثمه بن ابي سيره رضی الله عنه څخه روايت دى چي زه مدينې ته راغلم او د الله جل جلاله څخه مي دعاء

يُيَسِّرَ لِي جَلِيسًا صَالِحًا فَيَسَّرَ لِي أَبَا هُرَيْرَةَ فَجَلَسْتُ إِلَيْهِ فَقُلْتُ إِنِّي سَأَلْتُ

وغوښتل چي ما ته يو صالح ملگرى راكړې، نو دابو هريره رضی الله عنه صحبت راته حاصل سو او زه د هغه سره كښېنستلم، او ورته مي وويل ما د خداى تعالى څخه دعاء غوښتې وه چي

اللّٰهَ أَنْ يُيَسِّرَ لِي جَلِيسًا صَالِحًا فَوُفِّقْتَ لِي فَقَالَ لِي مِمَّنْ أَنْتَ قُلْتُ مِنْ أَهْلِ

ما ته يو صالح ملگرى راكړې نو خداى تعالى ستا ملگرتيا را په برخه كړه، ابو هرير رضی الله عنه را څخه پوښتنه وكړه ته د كوم ځاى اوسيدونكى يې؟ ما ورته وويل

الْكُوفَةِ جِئْتُ أَلْتَمِسُ الْخَيْرَ وَأَطْلُبُهُ فقَالَ أَلَيْسَ فِيكُمْ سَعْدُ بْنُ مَالِكٍ

زه د کوفې څخه راغلی يم د نیکۍ په لټه کې يم (يعني علم)، ابو هريره رضي الله عنه وويل: ايا په تاسو کي سعد بن مالک رضي الله عنه نسته چي

مُجَابُ الدَّعْوَةِ وَابْنُ مَسْعُودٍ صَاحِبُ طَهُورِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

مستجاب الدعوات دی او ايا په تاسو کي عبد الله بن مسعود رضي الله عنه نسته چي د رسول الله ﷺ د اوداسه اوبه او څپلي مبارکي به يې د ځان سره ساتلې،

وَنَعْلَيْهِ وَحُذَيْفَةُ صَاحِبُ سِرِّ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَمَّارٌ الَّذِي

او ايا په تاسو کي حذيفه نسته چي د رسول الله ﷺ هم راز وو او ايا په تاسو کي عمار رضي الله عنه نسته

أَجَارَهُ اللَّهُ مِنَ الشَّيْطَانِ عَلَى لِسَانِ نَبِيِّهِ صلى الله عليه وسلم وَسَلْمَانُ صَاحِبُ الْكِتَابَيْنِ يعني الانجيل والقرآن. رواه الترمذي.

چي هغه ته خدای تعالی د خپل نبي د ژبي په ذريعه د شيطان څخه پناه ورکړې ده. او ايا په تاسو کي سلمان چي د دوو کتابونو خاوند دی مراد يې انجيل او قرآن وو. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۳۳، رقم: ۳۸۱۱.

**د لغاتو حل**: فوفقت لي: اي جعلت انت موافق لي.

**تشريح**: او الله جل جلاله زما د دعاء په قبلولو سره: داد (فوفقت لي) توضيحي معنی ده، وفقت په اصل کي د وفق څخه مجهوله صيغه ده چي د هغه معنی د موافق کېدل دي، څرګنده دي وي چي د مشکوة په ځينو نسخو کي د فوفقت لي، څخه مخکي د: فيسرلي، الفاظ هم منقول دي.

د خير پلټونکي: دلته د خير څخه مراد علم او عمل دی چي الله جل جلاله په خپل کلام کي د حکمت په لفظ تعبير کړی دی: ومن يؤتي الحكمة فقد اوتي خيرا كثيرا.

سعد بن مالک رحمة الله عليه، دا هغه سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه دی چي د هغه يادونه مخکي تېره سوې ده، او د هغه مستجاب الدعوات کېدل هم بيان سوي دي، د ابي وقاص رضي الله عنه اصل نوم مالک وو او له دې کبله ورته سعد بن ابي وقاص هم ويل کيږي او سعد بن مالک هم.

د حضرت عمار رضي الله عنه په اړه د رسول الله ﷺ د ژبي مبارکي څخه دغه دعاء جاري سوې وه چي

اې الله! عمار رضي الله عنه د شيطان او د شيطان د پيروۍ څخه خوندي وساتې، او دغه دعاء قبوله سول ځکه حضرت عمار رضي الله عنه د رسول الله ﷺ د ژبې مبارکې په برکت د شيطان او د شيطان د ذريات څخه په امن کې وو،

چې د دوو کتابو يعني انجيل او قرآن کريم منونکې دې، يعني حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه د اسلام رڼا ته د رسېدو څخه مخکې د عيسائيت پيروکار وو، هغه انجيل وايه او په هغه يې ايمان راوړی وو، بيا د اسلام د دعوت په تر لاسه کولو سره د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر سو او اسلام يې راوړ، قرآن کريم يې وايه او په قرآن کريم يې عمل کوی، په دې اعتبار سره هغه د دوو کتابو منونکې سو، د حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه يادونه مخکې سوې ده، هغه دوه نيم سوه کاله عمر درلود، د نوموړي لقب سلمان الخير وو د هغه د پلار نوم هيچا ته معلوم نه وو، کله چې به يو چا د هغه څخه د نسب او د هغه د پلار په اړه پوښتنه وکړل نو هغه به جواب ورکوی چې انا ابن الاسلام، يعني زه د اسلام زوی يم.

## د يو څو صحابه کرامو فضيلت

﴿۵۹۸۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل:

وَسَلَّمَ نِعْمَ الرَّجُلُ أَبُو بَكْرٍ نِعْمَ الرَّجُلُ عُمَرُ نِعْمَ الرَّجُلُ أَبُو عُبَيْدَةَ بْنُ

ابوبکر رضي الله عنه ښه سړی دی، عمر رضي الله عنه ښه سړی دی، ابوعبيده بن

الْجَرَّاحِ نِعْمَ الرَّجُلُ أُسَيْدُ بْنُ حُضَيْرٍ نِعْمَ الرَّجُلُ ثَابِتُ بْنُ قَيْسِ بْنِ

الجراح رضي الله عنه ښه سړی دی، اسيد بن حضير رضي الله عنه ښه سړی دی، ثابت بن قيس بن

شَمَّاسٍ نِعْمَ الرَّجُلُ مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ نِعْمَ الرَّجُلُ مُعَاذُ بْنُ عَمْرِو بْنِ الْجَمُوحِ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

شماس رضي الله عنه ښه سړی دی، معاذ بن جبل رضي الله عنه ښه سړی دی، معاذ بن عمرو بن الجموح رضي الله عنه ښه سړی دی، ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دی.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۲۵، رقم: ۳۷۹۵.

**تشريح**: د سيدنا ابوبكر صديق، عمر فاروق، ابوعبيده، ثابت بن قيس او معاذ بن جبل رضي الله عنهم يادونه مخكي سوې ده، سيدنا اسيدبن حضير رضي الله عنه د مديني منورې د انصارو څخه دى او د اوس قبيلې څخه وو، د عقبه په بيعت كي په حاضرېدونكو او د بدر په غزا كي په ګډون كوونكو كي وو، په وروسته غزاوو كي يې هم ګډون كړى دى، د صحابه كرامو يوې لوى ډلې دده څخه حديثونه روايت كړي دي، په مدينه منوره كي په دوهم هجري كال وفات سو او په بقيع كي دفن كړل سو.

سيدنا عمرو بن الجموح رضي الله عنه هم د مدينې د انصارو څخه دى مګر دده تعلق د خزرج قبيلې سره دى، دى هم د عقبه په بيعت كي حاضر وو او بدري دى، دحضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت په زمانه كي وفات سو، په هر حال په حديث كي ذكر سوي ټول صحابه كرام مهاجرين او انصار دي، كيداى سي چي دغه ټول حضرات په يوه وخت د رسول الله ﷺ په مجلس كي يو ځاى سوي وي چي رسول الله ﷺ په دوى كي د هر يوه بېل بېل صفت او مدح وكړل، يا كيداى سي د ذكر سوو كسانو په اړه د تعريفي الفاظو په ذكر كولو كي د هر يوه بېل بېل ذكر كولو يو خاص سبب رامنځته سوى وي.

## جنت مشتاق دى

﴿۵۹۷۴﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْجَنَّةَ تَشْتَاقُ إِلَى ثَلَاثَةٍ عَلِيٍّ وَعَمَّارٍ وَسَلْمَانَ. رواه الترمذي

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: جنت درو كسانو ته په انتظار كي دى) علي، عمار او سلمان رضي الله عنهم. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۲۶، رقم: ۳۷۹۸.

**تشريح**: ددغه ارشاد اصل مقصد ددغه درو حضراتو جنتي كېدل په بليغ او زورور انداز كي بيانول دي، يعني رسول الله ﷺ دا وفرمايل چي دغه درې كسان داسي جنتيان دي چي خپله جنت هم د دوى ډېر په شوق دى او په تيارېدو سره د دوى په انتظار كي دى چي كله به دوى ما ته راسي. او ځيني حضرات وايي چي د جنت د مشتاق كېدو څخه مراد د جنتيانو يعني ملائكو او حورو مشتاق كېدل دي، طيبي رحمه الله ليكلي دي چي ددغه درو كسانو په اړه د جنت مشتاق كېدل داسي دي لكه څرنګه چي په مخكني حديث كي د حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه پر وفات

باندي د عرش ښورېدو يادونه سوې ده.

## د حضرت عمار رضي الله عنه فضيلت

﴿۵۹۷۵﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ اسْتَأْذَنَ عَمَّارٌ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ ائْذَنُوا لَهُ مَرْحَبًا بِالطَّيِّبِ الْمُطَيَّبِ. رواه الترمذي

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دی چي عمار رضي الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه د حاضرۍ اجازه وغوښتل، نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل ده ته اجازه ورکړئ او پاک سوي سړي ته زيری ورکړئ. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۲۶، رقم: ۳۷۹۸.

**تشريح**: طيب خو حضرت عمار رضي الله عنه ته اشاره ده او د مطيب څخه د هغه پاکي او بزرگي ته اشاره ده چي د اخلاقو او صفاتو په ذريعه هغه ته تر لاسه وه، ملا علي قاري رحمه الله ليکلي دي چي د حضرت عمار رضي الله عنه د نفس پاکي او د هغه د اخلاقو کردار د پاکۍ د تعريف او تحسين په سخت انداز کي د بيانولو لپاره د طيب او مطيب الفاظ استعمال سوي دي لکه څرنګه چي د يوې سايې لپاره د مبالغې په توګه ظل ظليل استعماليږي.

﴿۵۹۷۶﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا خُيِّرَ عَمَّارٌ بَيْنَ أَمْرَيْنِ إِلَّا اخْتَارَ أَرْشَدَهُمَا. رواه الترمذي.

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: عمار ته چي کله په دوو کارونو کي د يو د اختيارولو ويل سوي دي نو هغه همېشه سخت او مشکل کار اختيار کړی دی. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۲۷، رقم: ۳۷۹۹.

**تشريح**: مطلب دا چي په هغه دواړو کارو کي کوم کار چي پر طبيعت درونډ او پر نفس باندي تکليف وو او په دې اعتبار به زيات فضيلت هم د هغه کار وو، نو عمار رضي الله عنه به هغه اختياروی لکه څرنګه چي د ولايت طريقه ده، پاته سوه د رسول الله صلی الله علیه وسلم معامله چي رسول الله صلی الله علیه وسلم به په دوو اختياري کارو کي هغه کار اختياروی چي تر ټولو به اسان او سپک وو، نو ددې مقصد د امت لپاره د اساني پيدا کول وو، په يوه روايت کي راغلي دي چي عمار ته به کله په دوو کارو کي د يو کار اختيار ورکړل سو نو هغه به هغه کار اختياروی چي زيات اسانه به وو، د دغه دواړو

روايتو په منځ کي په ظاهره اختلاف معلوميږي ځکه علماؤ ليکلي دي چي د ذکر سوي روايت معنى خو داده چي خپله حضرت عمار رضي الله عنه ته به کوم کار سخت او مشکل معلوم سو نو هغه چي به کوم کار د دوهم کار په نسبت زيات او تکليفي ګڼي هغه به يې اختياروی او ددغه دوهم روايت معنى داده چي د هغه څخه ماسوا د بل سړي به يو کار زيات سخت او تکليفي ګڼي يعني بل چا چي به دا ګڼل چي عمار رضي الله عنه کوم کار اختيار کړی دی هغه اسانه دی مګر په حقيقت کي د حضرت عمار رضي الله عنه په نزد به هغه کار زيات سخت او تکليفي وو.

## د سعد بن معاذ رضي الله عنه فضيلت

﴿۵۹۷۷﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ لَمَّا حُمِلَتْ جَنَازَةُ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ قَالَ الْمُنَافِقُونَ مَا أَخَفَّ جَنَازَتَهُ وَذٰلِكَ لِحُكْمِهِ فِي بَنِي قُرَيْظَةَ فَبَلَغَ ذٰلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنَّ الْمَلَائِكَةَ كَانَتْ تَحْمِلُهُ. رواه الترمذي.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي کله د سعد بن معاذ رضي الله عنه جنازه پورته کړل سوه نو منافقانو وويل دده جنازه څومره سپکه ده، او د سپکيدو وجه هغه حکم دی چي سعد د بني قريظه په اړه ورکړی وو، رسول الله صلى الله عليه وسلم ته چي دديې خبر ورسيدی نو وه يې فرمايل: د سعد رضي الله عنه جنازه ځکه سپکه معلومېدل چي ملائکو پورته کړې وه. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۴۷، رقم: ۳۸۴۹.

**تشريح**: د هغه فيصلې په وجه: پېښه دا وه چي په مدينه کي د يهوديانو قبيله، بنو قريظه چي د خندق د غزا په وخت کي د رسول الله صلى الله عليه وسلم او مسلمانانو سره د بدعهدۍ او باور ماتولو څرګندونه وکړل نو رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغه غزا څخه د فارغه کېدو وروسته د بنو قريظه په لور مخ کړ او دهغوی قلعه يې محاصره کړل، چي دهغوی د پرله پسې فلانونو او بې قوليو د هميشه لپاره فيصله وکړل سي، د بنو قريظه يهوديان نه خو د خپلي قلعې څخه دباندي راوتلای سول چي د مجاهدينو سره مقابله وکړي او نه د رسول الله صلى الله عليه وسلم پيروی ته اماده وه، دغه محاصره تر پنځه ويشتو ورځو پوري جاري وه او په قلعه کي دننه بندي يهوديانو ته د خلاصون لاره نه معلومېدل نو هغوی رسول الله صلى الله عليه وسلم ته دا پيغام واستوی چي موږ په دې شرط تاسو ته خپل ځانونه حواله کوو چي سعد بن معاذ رضي الله عنه زموږ لپاره کومه سزا غوره کړي هغه سزا دي موږ ته

راکړل سي ، رسول الله ﷺ دا شرط قبول کړ او حضرت سعد رضي الله عنه ته يې حکم وکړ چي دهغوی په حق کي د عدل او انصاف له موخي کومه سزا چي مناسب وګڼې هغه وټاکه، حضرت سعد رضي الله عنه د معاملې په ټولو اړخونو د غور کولو څخه وروسته دا فيصله وکړل چي د بنو قريظه ټول نارينه دي ووژل سي او د هغوی د ښځو او ماشومانو سره دي د جنګي بنديانو چلن وکړل سي او د هغوی مالونه او سامانونه دي په مسلمانانو کي وويشل سي.

رسول الله ﷺ په دغه فيصلې عمل وکړ او حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه ته يې وفرمايل چي ستا دغه فيصله د الله جل جلاله د هغه حکم مطابق ده چي هغه په اووم آسمان کي صادره کړل، نو کله چي حضرت سعد رضي الله عنه وفات سو او دهغه جنازه يې ادا کړل نو منافقانو چي همېشه د اسلام او مسلمانانو سره پټه دښمني درلودل د حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه په اړه دغه اعتراض پر ژبه راوړ او هغه ته يې پيغور ورکړ چي د سعد رضي الله عنه دغه جنازه ځکه سپکه ده چي هغه د بنو قريظه په اړه غيرمنصفانه فيصله کړې وه ، يعني هغه منافقانو حضرت سعد رضي الله عنه ته د ظلم نسبت او د هغه فيصله يې يوه ظالمانه فيصله وګرځول ، حال دا چي دا دهغه منافقانو باطني خبث وو چي هغوی د اسلام او مسلمانانو سره د دښمنی په وجه د حضرت سعد رضي الله عنه ډېره مناسبه او د حقيقت څخه ډکه فيصله ظالمانه فيصله وګڼل او د هغه د جنازې د سپک کېدو يې د ذکر سوي فيصلې په اړه ډېره پالتو او لغو خبره وکړل.

د هغه جنازه ملائکو وړل: يعني د سعد رضي الله عنه د جنازې د سپکتيا د هغه خبري سره هيڅ مناسبت نسته کومه چي د هغه جاهلو منافقانو په ذهن کي وه او د هغه اظهار هم هغوی کړی دی، حقيقت دادی چي د سعد رضي الله عنه د جنازې لپاره ملائکي هم راغلي دي او هغه جنازه ملائکو پورته کړې وه ځکه خلګو ته سپکه معلومېدل، ددې څخه ماسوا دا خبره هم ده چي د مړي د بدن سپک کېدل بذات خود ښه علامه ده . او دروند کېدل ښه علامه نه ګڼل کيږي، د عارفينو وينا ده چي د مړي دروند کېدل دا ظاهروي چي هغه سړي له دنيا سره ډېره شوق درلود او د مړي سپک کېدل د دنيا څخه د بې شوقۍ او د آخرت سره د شوق څرګندونه وي، په هر حال منافقانو ذکر سوې خبره د حضرت سعد رضي الله عنه د سپکاوي په اړه کړې وه ځکه رسول الله ﷺ داسي جواب ورکړ چي د جنازې په سپک کېدو سره د حضرت سعد رضي الله عنه د شان او حيثيت زياتېدل او دهغه د عظمت ظاهرېدل لازم سي ، د الله جل جلاله ارشاد دی :

لِلّٰهِ الْعِزَّةُ وَلِرَسُولِهٖ وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَلٰكِنَّ الْمُنَافِقِينَ لاَ يَعْلَمُونَ

عزت خو د الله ﷻ او د هغه د رسول او د مؤمنانو لپاره دی مگر منافقان نه پوهیږي.

## د حضرت ابوذر رضي الله عنه فضیلت

﴿۵۹۷۸﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَا أَظَلَّتْ الْخَضْرَاءُ وَلَا أَقَلَّتْ الْغَبْرَاءُ أَصْدَقَ مِنْ أَبِي ذَرٍّ. رواه الترمذي

د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چي شین آسمان هیڅکله پر داسي سړي سایه نه ده کړې او نه غبارلرونکي مځکي داسي سړی پورته کړی دی چي د ابوذر رضي الله عنه څخه زیات رښتونی وي. ترمذي

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۶۲۸، رقم: ۳۸۰۱.

**د لغاتو حل**: الغبراء: اي الارض. (مځکه)

**تشریح**: حضرت ابوذر غفاري رضي الله عنه د صحابه کرامو د هغه بزرگانو څخه دی چي د زهد، قناعت، فقر، استغناء او د تجرد ژوند تېرولو په سبب د دنیا د هر خوند او نعمت څخه یې ځان لیري ساتی، د نوموړي یادونه مځکي تېره سوې ده.

دلته د حضرت ابوذر رضي الله عنه په اړه چي حصر دی ددې څخه تاکید او مبالغه مراد ده، ددې مطلب دا نه دی چي هغه په مطلقه توگه تر ټولو زیات رښتونی وو، او هیڅوک د هغه څخه زیات رښتونی نه وو، دا وضاحت ځکه ضروري دی چي حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه ددغه امت صدیق دی او د نبي کریم ﷺ څخه وروسته هغه د امت تر ټولو افضل کس دی، نو دا ویل مناسب نه دي چي حضرت ابوذر رضي الله عنه تر حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه هم زیات رښتونی وو، او بیا خپله رسول الله ﷺ او انبیاء علیهم السلام خو په یقیني توگه د حضرت ابوذر رضي الله عنه څخه زیات رښتوني وه.

﴿۵۹۷۹﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَظَلَّتْ الْخَضْرَاءُ وَلَا أَقَلَّتْ الْغَبْرَاءُ مِنْ ذِي لَهْجَةٍ أَصْدَقَ وَلَا أَوْفَى مِنْ أَبِي ذَرٍّ شِبْهِ عِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ يعني في الزهد. رواه الترمذي.

د حضرت ابوذر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: نه آسمان سایه وکړه او نه

مځکي پورته کړ داسي سړی چي د ابوذر رضي الله عنه څخه زيات په ژبه رښتونی او وفاکونکی وي. چي په زهد کي د عيسی عليه السلام سره زيات مشابه دی. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ٥\٦٢٨، رقم: ٣٨٠٢.

**تشريح**: د اوفی معنی ځينو شارحينو دا کړې ده چي د کلام حق د ابوذر رضي الله عنه څخه زيات اداء کونکی وي او د کلام يو حق دادی چي صحيح رښتونی او نيکي خبري څخه ماسوا بل څه پر ژبه نه راوړي او يو حق دادی چي د تلفظ ادا کول، دجملو جوړول، دالفاظو استعمال او د مفهوم او معنی په اظهار کي کمي نه وي، نو د حديث خلاصه دا سول چي ابوذر رضي الله عنه د حق په اظهار کي هيڅ سستي نه کول، تل يې رښتيا او پاکه خبره کول، کومه خبره چي حق او رښتيا ګڼي هغه په ډاګه کوي که څه هم چا ته بده معلوميږي، او هغه د الله جل جلاله او دهغه د رسول پوخ فرمانبردار دی، يا دا چي هغه وعده پوره کوي يا دا چي خپله خبره په وضاحت او فصاحت سره وړاندي کوي، خلاصه دا چي تر آسمان لاندي او د مځکي سربېره هيڅوک د ابوذر رضي الله عنه برابر، رښتونی او د خپلي خبري پوره کوونکی يا د الله جل جلاله او د هغه د رسول د حق ادا کونکی يا فصيح اللسان نسته.

چي د عيسی بن مريم عليه السلام مشابه دی، په دغه الفاظو کي د حضرت ابوذر رضي الله عنه زهد او د هغه تجرد ته اشاره ده، د هغه د زهد او له دنيا څخه د بې شوقی دا حال وو چي د دنيا د جائز او مباح خوندونو څخه يې هم خپل ځان محروم کړی وو، د جره توب پر بې کيفه ژوند په پوره توګه قانع او صابر وو، مال جمع کول د هغه په نزد حرام وو که څه هم هغه څومره په جائز کسب او جائزه طريقه سره ګټل سوی وي، نقل سوي دي چي يوه ورځ د حضرت ابوذر رضي الله عنه په لاس کي لکړه وه چي د سيدنا حضرت عثمان رضي الله عنه مجلس ته راغلی، هلته حضرت کعب رضي الله عنه هم ناست وو، حضرت عثمان رضي الله عنه د کعب رضي الله عنه څخه پوښتنه وکړل چي تا ته خو معلومه ده چي عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه په دغه حال کي له دنيا څخه رخصت سوی دی چي د هغه سره ډېر مال او سامان وو، د هغه ميراث پر ډېر سرو زرو او نور مال باندي شامله وه، نو په دې اړه ستاسو څه رايه ده، حضرت کعب رضي الله عنه وويل: که عبد الرحمن په هغه مال کي د الله جل جلاله حق يعني زکوة او نور څه ادا کوی نو بيا هغه په هغه مال او سامان کي د هغه لپاره د تاوان او بيري هيڅ خبره نسته، حضرت ابوذر رضي الله عنه چي د حضرت کعب رضي الله عنه دا خبره واورېدل نو د خپلي لکړي په پورته کولو سره يې هغه ووهی او وه يې ويل: ما د رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه اورېدلي دي که چيري زما سره د احد د غره په اندازه سره زر وي

او زه هغه د الله ﷻ په لاره کي مصرف کړم نو د دې سربېره چي زما هغه مصرف قبول کړل سي زه يې بالکل نه خوښوم چي په هغه کي شپږ اوقيه سره زر هم پرېږدم،

بيا حضرت ابوذر رضي الله عنه، د حضرت عثمان رضي الله عنه په مخاطب کولو سره ورته وويل: زه تا ته د الله ﷻ په قسم درکولو سره پوښتنه کوم چي وښيه تا هم د رسول الله ﷺ د ژبي مبارکي څخه دغه ارشاد اورېدلی دی؟ ابوذر رضي الله عنه دغه خبره درې واره وکړل، حضرت عثمان رضي الله عنه جواب ورکړ: هو، د رسول الله ﷺ څخه ما هم دغه ارشاد اورېدلي دی، په هر حال حضرت ابوذر رضي الله عنه يو کامل درويش او تارک الدنيا سړی وو، پر زهد او فقر باندي سخت عملي کوونکی وو، ځکه د هغه مذهب دا وو چي روپۍ او مال جمع کول او اېښودل جائز نه دي، الله ﷻ چي څه ورکړي هغه ټول دي د الله ﷻ په لاره کي مصرفول پکار دي، په دې اړه د هغه په مزاج دومره سختي وه چي د دولت په جواز کي هيڅ خبره اورېدل يې نه خوښول، کله چي د حضرت کعب رضي الله عنه څخه د حضرت عبدالرحمن رضي الله عنه د دولت په جواز کي هغه خبره واورېدل نو پر حضرت ابوذر رضي الله عنه باندي د هغه دغه سخته جذبه غالبه سول او هغه حضرت کعب رضي الله عنه په خپله لکړه ووهی مګر تر څو چي داصلي مسئلې تعلق دی نو د جمهورو مذهب دادی که زکوٰة او نور حقوق ادا کوي نو د مال او سامان په جمع کولو او اېښودو کي هيڅ ګناه نسته که څه هم هغه هر څومره زيات وي، پاته سوه د رسول الله ﷺ د دغه ارشاد خبره کوم چي حضرت ابوذر رضي الله عنه بيان کړه نو د هغه څخه د مال او دولت د بدۍ يا د مال او دولت د جمع کولو د عدم جواز هيڅ اړخ نه راوځي لکه څرنګه چي حضرت ابوذر رضي الله عنه ګڼل، رسول الله ﷺ خو محض د خپلي جذبې او دنياوي مال او سامان څخه د خپل بې شوقۍ اظهار فرمايلی وو نه د هغه دولت د جمع کولو او د اېښودو عمومي عدم جواز، چي په جائزه طريقه سره راځي او د هغه حق يعني زکوٰة او نور حقوق ادا کړل سي.

يعني په زهد کي: دغه الفاظ د راوي دي، د اصل روايت څخه نه دي، څرګنده دي وي چي صاحب استيعاب يو روايت نقل کړی دی چي په هغه کي د رسول الله ﷺ دغه الفاظ بيان کړي دي چي کوم څوک د حضرت عيسی عليه السلام د تواضع او خاکسارۍ د لېدو سعادت تر لاسه کول غواړي نو هغه دي ابوذر رضي الله عنه ته وګوري، د دغه روايت څخه ثابتېږي چي په ذکر سوي حديث کي ابوذر رضي الله عنه په کوم صفت کي د حضرت عيسی عليه السلام مشابه ښودل سوی دی هغه تواضع او خاکساري ده، په دغه صورت کي به ويل کېږي چي کوم راوي يعني د في الزهد په الفاظو کي د مشابهت توضيح کول غواړي د هغه په علم کي هغه حديث نه وو کوم چي صاحب استيعاب نقل کړی دی، په دې کي شک نسته چي د زهد او تواضع په منځ کي اختلاف نسته، دغه دواړه

صفتونه يو ځاى كيداى سي بلكه كوم څوک چي زاهد وي هغه به يقينا متواضع او خاكساره هم وي، ددې څخه ماسوا د (يعني في الزهد) الفاظ په اصل كتاب (مصابيح) كي موجود نه دي بلكه د صاحب مشكوة زيات كړل سوي دي.

## څلور علمي صحابه كرام

﴿۵۹۸۰﴾: وَعَنْ مُعَاذِبْنِ جَبَلٍ لَمَّا حَضَرَهُ الْمَوْتُ قَالَ الْتَمِسُوا الْعِلْمَ عِنْدَ

د حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه څخه روايت دى چي كله د هغه مرګ نژدې سو نو هغه وويل: علم د

أَرْبَعَةٍ عِنْدَ عُوَيْمِرٍ أَبِي الدَّرْدَاءِ وَعِنْدَ سَلْمَانَ الْفَارِسِيِّ وَعِنْدَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ

څلورو كسانو څخه تر لاسه كړئ يعني د عويمر څخه چي د هغه كنيت ابو درداء رضي الله عنه دى، د سلمان رضي الله عنه څخه او د ابن

مَسْعُودٍ وَعِنْدَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَلَامٍ الَّذِي كَانَ يَهُودِيًّا فَأَسْلَمَ فاني سمعت

مسعود رضي الله عنه څخه او د عبد الله بن سلام رضي الله عنه څخه كوم چي مخكي يهودي وو بيا يې اسلام قبول

رسول الله ﷺ يَقُولُ إِنَّهُ عَاشِرُ عَشَرَةٍ فِي الْجَنَّةِ. رواه الترمذي.

كړاو ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي هغه لسم سړى دى د هغه خلكو څخه چي جنت ته به ځي. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۳۰، رقم: ۳۸۰۴.

**تشريح**: علم د څلورو كسانو څخه تر لاسه كوئ: دلته د علم څخه مراد يا خو په عامه توګه د كتاب الله او سنت رسول الله علم دى يا د هغه علم كمال هغه خاص فن چي د هغه څخه د حلال او حرام پېژندنه كيږي او دغه دريم احتمال زيات قوي او څرګند دى، ځكه چي د رسول الله ﷺ ارشاد: اعلمكم بالحلال والحرام معاذ بن جبل، د حلال او حرام په اړه بنه پوهېدونكى معاذ بن جبل رضي الله عنه دى، ددغه ارشاد په سبب د خاص علم او فن سره د حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه مناسبت عامه هم حاصل دى او په دې سره د هغه وجه خصوصيت هم څرګنديږي.

چي د هغه كنيت ابو درداء دى، د هغه اصل نوم عويمر وو مګر مشهور په كنيت ابو درداء سره وو، درداء د هغه د لور نوم وو، حضرت عويمر رضي الله عنه يعني حضرت ابو درداء انصاري خزرجي دى، ستر فقيه، لوړ عالم او بزرګ شخصيت وو، د اصحاب صفه څخه دى او رسول الله ﷺ د

هغه او حضرت سلمان فارسي ﷺ په منځ كي وروګلوي قائمه كړې وه، وروسته هغه د شام په هيواد كي هستوګنه اختيار كړې وه او په ۳۲م هجري كال كي په دمشق كي وفات سو .

او بيا هغه اسلام قبول كړ: حضرت عبدالله بن سلام ﷺ مخكي يهودي وو او د موسوي دين ستر عالم منل كېدی، پر تورات باندي يې پوره عبور درلود او دهغه په اشاراتو په پوره توګه پوهيدی، هغه په آسماني كي كتاب د رسول الله ﷺ په وړاند وينو او هداياتو باندي هم په پوره توګه پوهيدی، همدا وجه ده چي هغه د پيل څخه د رسول الله ﷺ د بعثت انتظار او د رسول الله ﷺ د ليدني شوق په سختۍ سره وو، كله چي رسول الله ﷺ د مكې څخه هجرت وكړ او مدينې منورې ته راغلی نو په اوله ورځ هغه د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر او هم هغه وخت يې اسلام ومنی ..

په لسو كي لسم كس دی: ددغه الفاظو څخه په ظاهره دا مفهوم اخيستل كيږي چي عبدالله بن سلام ﷺ په عشره مبشره كي داخل دی حال دا چي داسي نه ده ځكه ددغه الفاظو معنی به داسي بيانيږي چي عبدالله بن سلام ﷺ د هغه لسو كسانو څخه د لسم كس په ډول دی چا ته چي د جنت زيری وركړل سوی دی او يو شارح ددغه جملې دا معنی ليكلې ده چي عبدالله بن سلام ﷺ به د نهه كسانو څخه وروسته په جنت كي داخليږي يعني صحابه كرام چي په كوم ترتيب سره په جنت كي داخليږي په هغوی كي به لسم نمبر د عبدالله ﷺ وي، مګر په دغه معنی كي داخرابي ده چي ددې څخه د عبدالله بن سلام ﷺ د عشره مبشره څخه هم مخكي په جنت كي داخلېدل لازميږي، په هر حال ددغه جملې يوه معنی دا هم كيدای سي چي عبدالله بن سلام ﷺ د هغه لسو يهوديانو څخه لسم كس دی چي هغوی اسلام قبول كړ ، يا دا معنی مراد ده چي د عشره مبشره څخه وروسته چي كوم لس كسان په جنت كي داخليږي په هغوی كي د عبدالله بن سلام ﷺ نمبر به لسم وي . والله علم .

## د حذيفه او ابن مسعود (رض) فضيلت

﴿۵۹۸۱﴾: وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ قَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ لَوْ اسْتَخْلَفْتَ قَالَ إِنْ أَسْتَخْلِفْ عَلَيْكُمْ فَعَصَيْتُمُوهُ عُذِّبْتُمْ وَلَكِنْ مَا حَدَّثَكُمْ حُذَيْفَةُ فَصَدِّقُوهُ وَمَا أَقْرَأَكُمْ عَبْدُ اللّٰهِ فَاقْرَءُوهُ. رواه الترمذي.

د حضرت حذيفه ﷺ څخه روايت دی چي صحابه كرامو عرض وكړ اې دالله رسوله ! كه تاسو

خپل په وړاندې خلیفه ټاکلی وای نو غوره به وای، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: که زه پر تاسو یو څوک خلیفه وټاکم او تاسو یې نافرماني وکړئ نو تاسو ته به عذاب درکړل سي مګر په دې اړه دا خبره یاد ساتئ چې حذیفه رضي الله عنه تاسو ته څه وایي یا حدیث بیان کړي نو هغه رښتونی ګڼئ او عبدالله رضي الله عنه چې څه درته وایي هغه وایاست. ترمذي

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۶۳۳، رقم: ۳۸۱۲.

**تشریح**: رسول الله ﷺ چې په کوم انداز جواب ورکړ د هغه تعلق د حکیمانه طرز سره وو، لکه رسول الله ﷺ چې داسې وفرمایل: دا خبره ستاسو لپاره دومره ضروري نه ده چې د اوس څخه د خلافت په فکر کې ولګیږئ او د خلافت لپاره د یو چاد ټاکنې درخواست ما ته کوئ ځکه چې دا خو هغه معامله ده چې د الله جل جلاله په حکم سره پر خپل وخت ستاسو مخې ته په هر صورت ظاهریږي په دې توګه چې تاسو کوم اهل او مناسب سړي باندې اتفاق او اجماع وکړئ هغه به خلیفه وټاکل سي.

ددې څخه ماسوا زما له خوا د خلافت لپاره د یو سړي په ټاکنه کې مانع دا هم دی چې فرض کړه ما ستاسو په غوښتنه یو څوک د اوس څخه وټاکی او بیا زما څخه وروسته تاسو د هغه خلیفه نافرماني وکړئ او دهغه خلافت ونه منئ نو یقینا د الله جل جلاله په سخت عذاب کې به اخته سئ نو تاسو د خلافت فکر پریږدئ او پر کتاب او سنت باندې عمل کونکی اوسئ چې دا خبره ستاسو لپاره تر ټولو اهمه او ضروري ده.

حذیفه رضي الله عنه چې تاسو ته څه وایي: دلته په خاصه توګه ددغه دواړو صحابه کرامو یعنې حضرت حذیفه او حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنهما یادونه ځکه وسول چې اول خو په علم او یقین کې د دوی ممتاز حیثیت ته اشاره کول مقصد وو، دوهم دا چې یو صاحب ایمان چې د کوم شي څخه پرهیز تر ټولو زیات کول ضروري دي هغه نفاق دی او کوم شی چې تر ټولو زیات منل او پر ځای کول دي هغه احکام شریعت دی، نو لومړی شی یعنې د نفاق علم او ادراک لرونکی تر ټولو زیات حذیفه رضي الله عنه دی چې هغه ته د صاحب سر خاصه درجه تر لاسه وه، او د منافقانو په اړه څه چې هغه پېژندل دومره بل صحابي نه پېژندل، دوهم شی یعنې د احکام شریعت ډېر زیات علم لرونکی عبدالله بن مسعود رضي الله عنه وو، چې دهغه په اړه د رسول الله ﷺ اشاد دی: رضیت لامتي ما رضی به ابن ام عبد، زما د امت لپاره ابن ام عبد یعنې عبدالله بن مسعود رضي الله عنه غوره کېدل زما غوره کول دي، همدارنګه رسول الله ﷺ فرمایلي دي: تمسکوا بعهد ابن ام عبد، اې

مسلمانانو د ابن ام عبد يعني عبدالله بن مسعود رضي الله عنه تلقين او نصيحت او د هغه په رايه عمل کوئ، دلته علماؤ دا نکته ليکلې ده چي په ذکر سوي حديث کي او همدارنګه ددغه فصل په اول حديث کي يو ډول د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د خلافت بيان هم دی ، په روايتو کي راځي چي د رسول الله صلی الله عليه وسلم د وصال څخه وروسته کله چي د خليفه د ټاکني مسئله رامنځته سول نو حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د خليفه ټاکلو رايه ورکړې وه او ويلي يې وه چي ابوبکر رضي الله عنه هغه سړی دی چي رسول الله صلی الله عليه وسلم زموږ امام (يعني د لمانځه لپاره امام) ټاکلی وو ځکه نو موږ بايد د دنيوي امامت لپاره هغه مخکي کړو .

## د حضرت محمد بن مسلمه رضي الله عنه فضيلت

﴿۵۹۸۲﴾: وَعَنْهُ قَالَ مَا أَحَدٌ مِنَ النَّاسِ تُدْرِكُهُ الْفِتْنَةُ إِلَّا أَنَا أَخَافُهَا عَلَيْهِ إِلَّا مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَا تَضُرُّكَ الْفِتْنَةُ. رواه ابوداؤد وسکت عنه و اقره عبدالعظيم .

د حضرت حذيفه رضي الله عنه څخه روايت دی چي هر کله خلک په فتنه کي ولوېږي نو هيڅوک به د هغه د اثر څخه خوندي نه سي پرته د محمد بن سلمه رضي الله عنه څخه چي د هغه په اړه ما د رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه اورېدلي دي چي تا ته به فتنه ضرر نه رسوي . ابوداؤد او سکوت يې کړی دی ځيني او عبدالعظيم ثابت کړی دی .

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۴۹، رقم: ۴۶۶۳.

**تشريح**. حضرت محمد بن مسلمه رضي الله عنه انصاري خزرجي اشهلي، يو ستر صحابي دی ، نوموړي په مدينه کي د حضرت معصب بن عمير رضي الله عنه په لاس اسلام قبول کړی وو ، د تبوک څخه ماسوا په نورو ټولو غزاوو کي يې ګډون کړی دی، او ځينو حضراتو ليکلي دي چي رسول الله صلی الله عليه وسلم د تبوک د غزا په وخت کي هغه په مدينه کي خپله خليفه ټاکلی وو ، د رسول الله صلی الله عليه وسلم د حکم سره سم هغه د اختلاف او انتشاري او هري فتنې څخه خپل ځان ژغوری، کله چي به يوه ناخوښه موقع راغلل نو حضرت محمد بن مسلمه رضي الله عنه به بېلوالی اختيار کړ او همدارنګه د فتنې او فساد د شر څخه به خوندي کيدی، د روايا تو په اختلاف په ۴۳، يا ۴۶ هجري کال کي وفات سو .

او په دې اړه يې سکوت اختيار کړی دی: يعني امام ابو داؤد دغه حديث نه مطعون کړی دی او نه يې تصحيح او تحسين کړی دی ، څرګنده دي وي چي د کوم حديث په اړه امام ابوداؤد

سکوت اختیار کړی وي د هغه په اړه د محدثینو اختلاف وي ، ځیني حضرات داسي حدیث ته
دصحیح درجه ورکوي او ځیني ورته د حسن او ځیني حضرات وايي چي هغه حدیث ضعیف دی
مګر د استناد وړ دی، دا خبره هم د یادوني وړ ده چي د مشکوة په اصل نسخه کي د رواه څخه
وروسته خالي ځای پرېښودل سوی دی او په حاشیه کي ذکر سوی عبارت د جزري رحمة الله علیه په
حواله سره لیکل سوی دی .

## حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه

﴿۵۹۸۳﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى فِي بَيْتِ الزُّبَيْرِ مِصْبَاحًا فَقَالَ يَا عَائِشَةُ مَا أُرَى أَسْمَاءَ إِلَّا قَدْ نُفِسَتْ فَلَا تُسَمُّوهُ حَتَّى أُسَمِّيَهُ فَسَمَّاهُ عَبْدَ اللّٰهِ وَحَنَّكَهُ بِتَمْرَةٍ بِيَدِهِ. رواه الترمذي.

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د زبیر رضی الله عنه په کور کي څراغ بل
ولیدی نو وه یې فرمایل : اې عائشې ! زما په خیال د بي بي اسماء زوی پیدا سوی دی تاسو
خلک د هغه نوم مه ایږدئ تر څو پوري چي زه یې نه کښېږدم، نو د هغه ماشوم نوم رسول الله ﷺ
عبدالله کښېښود او خرما یې په خوله کي وژوول او په خپل لاس مبارک یې د هغه په تالو پوري
وموږل . ترمذي .

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۶۳۹، رقم: ۳۸۲۶.

**د لغاتو حل**: مصباحا: اي سراج. (ډېوه). نفست: اي ولدت.

**تشریح**: د تحنیک معنی د یو شي د ژوولو او د ماشوم په خوله کي اچولو ده، نو خرما یا بل
خوږ شی ژوول او د نوي پیدا سوي ماشوم په خوله کي اچول یا د هغه په تالو پوري موښل
مستحب دي، ددغه حدیث څخه څرګند سول چي د چا ماشوم پیدا سي نو هغه باید په یو نېک
او صالح سړي د هغه نوم کښېږدي او په خرما، عسلو یا بل خواږه شي سره د هغه تحنیک وکړي
ددې لپاره چي په هغه سره برکت تر لاسه سي .

حضرت زبیر بن العوام رضی الله عنه، د رسول الله ﷺ د عمه بي بي صفیې رضی الله عنها زوی او د حضرت
ابوبکر صدیق رضی الله عنه زوم دی، د بي بي عائشې صدیقې رضی الله عنها خور، بي بي اسماء رضی الله عنها د هغه په نکاح
کي وه، نو موړي ستر صحابي دی او د عشره مبشره څخه دی .

حضرت عبدالله رضی الله عنه د حضرت زبیر رضی الله عنه او بي بي اسماء رضی الله عنها زوی دی، رسول الله ﷺ د هغه کنیت د هغه د نیکه حضرت ابوبکر صدیق پر کنیت باندې ایښی وو او د هغه نوم یې هم د نیکه په نامه ایښی وو، د هجرت څخه وروسته په مدینه کې په مهاجرینو کې لومړی ماشوم حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه په اول هجري کال کې پیدا سو، کله چې هغه پیدا سو نو حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه یې په غوږ کې آذان وکړ، بي بي اسماء رضی الله عنها هغه رسول الله ﷺ ته راوست او د رسول الله ﷺ په مبارکه غیږ کې یې ورکړ، رسول الله ﷺ خرما وغوښتل او هغه یې په خپله خوله مبارکه کې وژوول او د هغه په خوله کې واچول، بیا یې د خپلې مبارکې خولې ناړې د هغه په خوله کې واچولې او د هغه تحنیک یې وکړ، همدارنګه د حضرت عبدالله رضی الله عنه په نس کې چې تر ټولو مخکې کوم شی داخل سو هغه د رسول الله ﷺ مبارک لعاب وو، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ د هغه لپاره د خیر او برکت دعاء وکړل.

حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه ډېر پاک نفسه انسان وو، روژې به یې ډېرې نیولې او لمونځونه یې ډېر کول، د صله رحمۍ یې ډېر خیال کوئ او د قریبانو سره په ښه چلن کې مشهور وو، ډېر زړه ور او ستر سپه سالار وو، د جنګ په میدان کې د هغه مېړانه په ټولو قریشو کې یو مثال وو، د حق وینا کول د هغه ځانګړی امتیاز وو، ډېر ښه تقریر کوونکی او جهر الصوت وو، کله چې به یې خبرې کولې نو آواز به یې د غرونو سره ټکر وهی، یوې ډېرې لوی ډلې ته د هغه څخه د حدیثو د روایتو شرف حاصل دی.

حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه د هغه صحابه کرامو څخه دی چې د امیر معاویه رضی الله عنه د وفات څخه وروسته د یزید بن معاویه امارت یې ونه مني او د امارت معاویه د ټاکل سوي حاکم د تسلط څخه په وتلو سره مکې مکرمې ته راغلی وو، دلته د مکې ډېر شریفان او مشران د مخکې څخه د یزید پر خلاف وه، هغوی ټولو د حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه په لاس بیعت کولو سره په مکه کې د هغه حکومت قائم کړ او یزید د خپلو سختو کوښښونو سربېره د خپل حکومت په وخت کې په مکه کې هیڅ تسلط قائم نه کړ، د یزید د مرګ څخه وروسته حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه په ۶۴ هجري کال کې د خپل خلافت اعلان وکړ او د عامو خلګو څخه یې بیعت واخیست، د هغه څخه وروسته ډېر ژر د شام د ځینو سیمو څخه ټولي اسلامي نړۍ د هغه خلافت تسلیم کړ او تقریبا تر نهه کالو پورې د حجاز، عراق، یمن، خراسان او نور هیوادونه د هغه تر خلافت لاندې وه، د جماي دي الاول په میاشت کې په ۷۲م هجري کال کې د دمشق اموي حکمران عبدالملک د مشهور ظالم حجاج بن یوسف ثقفي په مشرۍ کې یو غټ لښکر د

حضرت عبدالله بن زبیر رضي الله عنه پر خلاف پر مکې باندي د خملې کولو لپاره واستوی، دغه لښکر مخکي پر طائف باندي قبضه وکړل او د هغه ځایه یې د حضرت عبدالله بن زبیر رضي الله عنه پر خلاف جنګي کاروایي پیل کړل، چي تر څو میاشتو پوري روانه وه،

بیا حجاج د عبدالملک څخه نوره مرسته وغوښتل او په ښه تیاري کولو سره د رمضان المبارک په ۷۲ م هجري کال کي ډېر لویه حمله کولو سره د مکې مکرمې محاصره وکړل، دغه محاصره هم تر څو میاشتو پوري جاري وه چي د هغه په دوران کي د حجاج لښکر پر مکه ښار او کعبه شریفه باندي په منجنیق (مچلوغه) سره ډبري غورځولې او سخته تباهي یې خپره کړل، حضرت عبدالله بن زبیر رضي الله عنه د خپل محدود فوجي طاقت سره د حجاج مقابله په ډېره مېړانه او قرباني سره کول، تر دې چي د دنیا عظیم الشان زړه ور او متقي انسان د هغه ظالم فوج په لاس شهید سو ، حجاج د هغه سر د بدن څخه بېل کړ او په دار یې وزړوی، او بیا څو ورځي وروسته د هغه د ښخولو اجازه وکړل سول .

## حضرت معاویه رضي الله عنه

﴿۵۹۸۴﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي عُمَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ لِمُعَاوِيَةَ اللّٰهُمَّ اجْعَلْهُ هَادِيًا مَهْدِيًّا وَاهْدِ بِهِ. رواه الترمذي.

د حضرت عبدالرحمن بن ابي عمیره رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم د معاویه رضي الله عنه لپاره دا دعاء کړې ده اې الله ! دی سیده لار ښودونکی او سیده لار پیداکونکی جوړ کړې او خلک دده په ذریعه هدایت تر لاسه کونکي کړې . ترمذي

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۶۴۵، رقم: ۳۸۴۲.

**تشریح**: په دې کي شک نسته چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم دعاء مستجابه ده نو د کوم چا په اړه چي رسول الله صلی الله علیه وسلم دغه مستجابه دعاء فرمایلې وي د هغه په اړه شبه او خراب خیال قائمول هیڅکله روا نه دي .

حضرت معاویه رضي الله عنه اموي قریشي دی، د هغه د مور نوم هنده دی چي د قریشو د سردار عقبه لور وه، او د هغه پلار ابوسفیان دی چي خپله د قریشو یو لوی سردار وو ، کومو خلګو چي د مکې د فتح په ورځ اسلام قبول کړ ابوسفیان د هغوی څخه یو دی، د مسلمان کېدو څخه وروسته ابوسفیان تر څو ورځو پوري په مؤلفة القلوب کي شمېرل کېدل بیا د اسلام او

مسلمانانو ځان قربانوونکي او وفادار خادم سو ، حضرت معاویه رضی الله عنه د هغه صحابه کرامو څخه دی چي در سول الله ﷺ کاتبان وه ، مګر د ځینو حضراتو وینا ده چي دوحي د لیکني کار هغه ونه کړ مګر د لیک لیکني کار هغه ته سپارل سوی وو ، یعني د رسول الله ﷺ منشي وو ، د حضرت عمر رضی الله عنه د خلافت په زمانه کي د شام حاکم سو او تقریبا شل کاله یعني د حضرت عثمان غني رضی الله عنه تر آخري عهد خلافت پوري پر دغه وظیفه ولاړ وو ،

بیا د سیدنا علي رضی الله عنه د خلافت او معاویه حکومت په منځ کي ټکر راغلی او د جنګ نوبت راغلی ، د حضرت علي رضی الله عنه د وفات څخه وروسته کله چي د امام حسن رضی الله عنه او امیر المؤمنین په منځ کي صلح وسول نو ټولي اسلامي نړۍ حضرت معاویه رضی الله عنه د وخت خلیفه ومنی او تقریبا تر شلو کالو پوري د ټول اسلامي نړۍ خلیفه او امیر وو ، د رجب په میاشت کي په ۶۱ م هجري کال کي د ۷۸ کالو په عمر په دمشق کي وفات سو ، د عمر په پای کي یې ارمان کوی او ویل یې چي کاش زه د قریشو د یو معمولي کس په ډول په ذي طوی کي پروت وای او د دغه حکومت او خلافت هیڅ شی مي نه لیدلای ، نقل سوي دي چي د حضرت امیر معاویه رضی الله عنه سره د رسول الله ﷺ تبرکات پراته وه ، چي په هغو کي د رسول الله ﷺ څادر ، لونګ او یو قمیص وو ، د دغه جامو څخه ماسوا د رسول الله ﷺ وېښتان او نوکان هم ورسره وه ، د مرګ په وخت کي امیر معاویه رضی الله عنه وصیت وکړ چي د رسول الله ﷺ په قمیص کي ما دفن کړئ ، د رسول الله ﷺ په څادر کي دي زه ونغښتل سم ، او د رسول الله ﷺ لونګ دي زما ازار جوړ کړل سي او د رسول الله ﷺ وېښتان او نوکان دي زما غاړه ډکه سي او یو څه دي زما د سجدې پر ځایو وتړل سي او بیا زما او ارحم الراحمین په منځ کي تخلیه وکړل سي یعني د دفن کولو څخه وروسته ما خدای جل جلاله ته وسپارئ .

## حضرت عمروبن العاص رضی الله عنه

﴿۵۹۸۵﴾ : وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَسْلَمَ النَّاسُ وَآمَنَ عَمْرُو بْنُ الْعَاصِ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب وليس اسناده بالقوي.

د حضرت عقبه بن عامر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : نورو خلکو اسلام راوړ مګر عمروبن العاص رضی الله عنه ایمان راوړ . ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دی او اسناد یې

قوي نه دي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۴۵، رقم: ۳۸۴۴.

**تشريح**: خلګو اسلام قبول کړ: دلته د خلګو څخه مراد د مکې او قريشو هغه خلګ دي چي هغوی د مکې د فتح په ورځ په هغه حالت کي اسلام قبول کړ او د خپل مسلمان کېدو اعلان يې وکړ، کله چي اسلام د يو فاتح طاقت په حيثيت سره پر هغوی غالب سو، او دا سلام د پيغمبر د عاطفت په لمن کي د پناه اخيستلو څخه ماسوا بله لاره د هغوی په مخکي نه وه، پاته سوه دا خبره چي کله چي الله ﷻ وغوښتل نو بيا د هغوی ايمان کامل او ټينګ سو او هغوی ټول مخلص مؤمنان او مسلمانان سول، ددغه خلګو پر خلاف حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه د مکې د فتح څخه يو کال مخکي په خوښي ايمان راوړی وو، د الله ﷻ او د هغه د رسول په مينه کي يې خپل ګران هيواد مکه پرېښود او مدينې ته راغلی نو رسول الله ﷺ دا فرمايل، يعني دا ښودل وه چي په قريشو کي کوم خلګ د مکې د فتح په ورځ مسلمانان سول هغوی خو د بيري په وجه اسلام قبول کړی وو حال دا چي عمر بن العاص رضي الله عنه په خوښي او اخلاص سره ايمان راوړی وو.

يو شارح ليکلي دي چي: رسول الله ﷺ په هغه وخت کي په خاصه توګه د عمرو بن العاص رضي الله عنه په شوق او رضا سره د ايمان راوړلو يادونه د هغه د سبب څرګندولو لپاره وکړل چي د هغه د قبول اسلام محرک او سبب سو، پېښه داسي وه چي حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه د مکې او قريشو مشرانو د خپل خاص نمائنده په جوړولو سره د حبشې پاچا نجاشي ته ددې لپاره واستوی چي هغه مسلمانان د حبشې څخه مکې ته بېرته را واستوي، کله چي عمرو بن العاص رضي الله عنه د نجاشي څخه د هغه مسلمانانو د بېرته استولو غوښتنه وکړل نو نجاشي د هغه د غوښتني څخه انکار وکړ او هغه ته يې وويل: اې عمرو! زه حيران يم چي محمد ﷺ ستاسو د اکا زوی دی او تاسو د هغه د حقيقت څخه دومره بې خبره ياست، قسم په خدای! هغه د الله ﷻ رېښتونی رسول دی، عمرو وويل: تاسو همداسي واياست، نجاشي ورته وويل: هو، قسم په خدای! زه داسي وايم، ته زما خبره رېښتونې وګڼه، بس هم هغه وخت د هغه په زړه او دماغ کي د ايمان نور وځلېدی او د هغه ځايه د ايمان په اراده را ستون سو، چا هغه ته د ايمان دعوت ورنه کړ او هيچا هغه ته د اسلام بلنه نه وه ورکړې، خپله د هغه فطرت سليم بيدار سو، د ايمان قبلولو جذبه په هغه کي را پورته سول او په تيزي سره مدينې ته راغلی او د رسول الله ﷺ په خدمت کي په حاضرېدو سره په ايمان مشرف سو او يو مخلص مسلمان جوړ سو.

رسول الله ﷺ د هغه ډېره حوصله افزايي وکړل تر دې چي په مسلمانېدو سره هغه د يو داسي لښکر مشر جوړ کړل سو چي په هغه کي حضرت ابوبکر صديق او حضرت عمر رضي الله عنهما هم شامل وه، رسول الله ﷺ هغه ته دغه فضيلت له دې کبله ورکړ چي هغه د اسلام منلو څخه مخکي د رسول الله ﷺ سره سخته دښمني درلودل او د رسول الله ﷺ او نورو مسلمانانو په هلاکت پسې وو، ځکه د اسلام منلو څخه وروسته هغه د خپل ماضي په اړه نه يوازي دا چي ډېر په بېره کي وو بلکه د مسلمانانو په منځ کي يې خپل ځان پردی محسوسوی، نو رسول الله ﷺ هغه ته دومره لوی عزت ورکړ چي د هغه د زړه او دماغ څخه د بيري او پردي توب اثر هم زائل سي او د رسول الله ﷺ له خوا خپل ځان مطمئن او مامون وګڼي او د الله جل جلاله د رحمت څخه نا اميده نه سي، په يوه روايت کي راغلي دي چي عمرو بن العاص رضي الله عنه د اسلام منلو په اراده د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او خپله دهغه په غوښتنه رسول الله ﷺ خپل لاس ور وړاندي کړ چي هغه په لاس مبارک په بيعت کولو سره ايمان راوړي نو هغه خپل لاس راکشوی ، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړل چي اې عمرو ! تا خپل لاس ولي کش کړ، عمرو وويل: زه يو شرط لګول غواړم، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړل چي څه شرط دی؟ هغه وويل: زه په دې شرط ايمان راوړم چي ما مخکي کوم ګناهونه کړي دي هغه راته معاف کړل سي، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: اې عمرو! تا ته معلومه نه ده چي اسلام هغه ټول ګناهونه معافوي چي د اسلام منلو څخه مخکي سوي وي او هجرت هغه ټول ګناهونه معافوي چي د هجرت څخه مخکي يې کړي وي او کما قال،

په يوه روايت کي راغلي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: عمرو بن العاص او د هغه ورور هشام بن العاص دواړه مخلص او صادقان مؤمنان دي، په يوه حديث کي فرمايل سوي دي چي: عمرو بن العاص د قريشو د صالحانو څخه دی، په يوه روايت کي دي چي رسول الله ﷺ عمرو بن العاص ته په مخاطب کولو سره وفرمايل: انک الرشيد، بېله شکه ته هدايت يافته يې، او دا هم د رسول الله ﷺ ارشاد دی چي عمرو بن العاص د نورو څخه غوره صدقه راوړې ده.

حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه ډېر هوښيار او عقلمند انسان وو، په ټولو عربو کي د هغه پوهي او تدبر منل کېدی، کله چي به حضرت عمر فاروق رضي الله عنه يو بې عقل شتمن وليدی نو ويل يې: سبحان الله! کوم ذات چي دا سړی پيدا کړی دی هغه عمرو بن العاص هم پيدا کړی دی، نقل سوي دي چي د خپل ژوند په آخري ورځو کي په عمرو بن العاص رضي الله عنه باندي د بيري، بې تابۍ او بې قرارۍ غلبه سوې وه، د الهي بيري غير معمولي اثر پر هغه څرګند وو، د هغه ددغه حالت په لېدو سره يوه ورځ دهغه زوی عبدالله بن عمرو رضي الله عنه ورته وويل: اې پلاره! تاسو ته د

رسول الله ﷺ د صحبت شرف حاصل دی، د رسول الله ﷺ په دربار کي تاسو ته لوړ مقام حاصل وو، په غزاوو کي تاسو د رسول الله ﷺ سره ګډون کړی دی نو بیا ته ولي دومره په بېړه کي یې؟ حضرت عمرو بن العاص ﷺ وویل: اې زویه! ته پوهیږې چي زما ټول ژوند په درو مختلفو مرحلو کي تېر سوی دی، زه مخکي د پیغمبر ﷺ او اسلام سخت دښمن وم بیا الله ﷻ ما ته هدایت وکړ او زه مسلمان سوم، د رسول الله ﷺ د فیض څخه برخمن سوم، بیا زما د امارت او حکمرانۍ دور راغلی چي د اسلامي حکومت له خوا په مختلفو سیمو کي والي او حاکم سوم، او دغه په سبب د دنیا څخه څومره برخه چي ما اخیستل هغه مي واخیستل اوس زه نه پوهیږم چي په دغه درو مرحلو کي د کومي مرحلې مطابق زما سره چلن کیږي او زما به څه انجام وي.

## د حضرت جابر ﷺ د پلار فضیلت

﴿۵۹۸۶﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ لَقِيَنِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا

د حضرت جابر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ یوه ورځ زما سره یو ځای سو او وه یې

جَابِرُ مَا لِي أَرَاكَ مُنْكَسِرًا قُلْتُ اسْتُشْهِدَ أَبِي قُتِلَ يَوْمَ أُحُدٍ وَتَرَكَ عِيَالًا

فرمایل: اې جابره! څه خبره ده چي زه تا خفه او غمجن وینم، ما عرض وکړ: زما پلار شهید سوی دی او هغه ډېر اولاد

وَدَيْنًا قَالَ أَفَلَا أُبَشِّرُكَ بِمَا لَقِيَ اللّٰهُ بِهِ أَبَاكَ قُلْتُ بَلَى يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ مَا

او پور پرې اېښی دی، رسول الله ﷺ وفرمایل: ایا زه تا ته دا زیری در نه کړم چي الله تعالی ستا د پلار په اړه څه معامله کړې ده، ما عرض وکړ هو، اې د الله رسوله! نو رسول الله ﷺ وفرمایل:

كَلَّمَ اللّٰهُ أَحَدًا قَطُّ إِلَّا مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ وَأَحْيَا أَبَاكَ فَكَلَّمَهُ كِفَاحًا قَالَ يَا

الله تعالی چي تر ننه پوري د چا سره کلام کړی دی نو د پردې تر شا یې کړی دی مګر ستا پلار الله تعالی را ژوندی کړ او د هغه سره یې مخامخ خبري وکړې او ورته یې وفرمایل:

عَبْدِي تَمَنَّ عَلَيَّ أُعْطِكَ قَالَ يَا رَبِّ تُحْيِينِي فَأُقْتَلَ فِيكَ ثَانِيَةً قَالَ الرَّبُّ

اې زما بنده! زما څخه وغواړه زه به یې درکړم، نو ستا پلار وویل اې زما پروردګاره! ما بیا ژوندی کړه چي زه ستا په لار کي شهید سم، الله تعالی ورته وفرمایل:

عَزَّ وَجَلَّ إِنَّهُ قَدْ سَبَقَ مِنِّي أَنَّهُمْ لَا يُرْجَعُونَ فنزلت: وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا الْآيَةَ. رواه الترمذي.

زما دا حکم نافذ سوی دی چي د مرګ څخه وروسته هیڅوک دویم وار دنیا ته نه ځي ، ددې څخه وروسته دا آیت نازل سو : (لاتحسبن الذین قتلوا في سبیل الله ...) ، (کوم خلک چي د الله ﷻ په لار کي قتل سوي دي هغه مړه مه ګڼئ بلکه هغوی د خپل پروردګار سره ژوندي دي ، رزق ورکول کیږي او د خدای تعالی په نعمتونو خوشحاله دي ) ترمذي .

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\ ۲۱۴، رقم: ۳۰۱۰.

**د لغاتو حل**: کفاحا : اي مواجها عیانا.

**تشریح** او تا خوشحاله نه کړم: د رسول الله ﷺ مطلب دا وو چي په دنیا کي کومه پرېشاني راځي هغه ژر یا وروسته ختمیږي او د اساني لاره راوځي، ستا پلار چي لویه کورنۍ پرې ایښې ده ، الله ﷻ به د هغوی د کافي کېدو انتظام وکړي او کوم پور چي یې پرې ایښي دی د الله ﷻ په فضل سره به هغه هم ادا سي، نو کوم وخت چي له دنیوي غم سره مخامخ سې پر هغه صبر او شکر کوه او ته محض په دې وجه ځان مه غعجمن کوه بلکه ته باید خوشحاله سې چي الله ﷻ ستا پلار ته د شهادت مرتبه ورکړل او په هغه سعادت یې ونازوی چي د مولی رضا او قرب ظاهروي ، په دغه ارشاد کي یو خو دې ته اشاره ده که اولاد پر سېده لاره وي نو د پلار فضیلت او بزرګي په هغوی کي هم سرایت کوي او دوهم دې ته اشاره ده چي پلار ته تر لاسه خوشحالۍ او سعادت باندي اولاد ته هم خوشحاله کېدل پکار دي .

الله ﷻ چي د چا سره کلام کړی دی : یعني ستا د پلار څخه مخکي الله ﷻ چي د چا سره کلام وکړ ، هغه مخامخ نه وو بلکه د پردې تر شا یې کړی دی، په دغه الفاظو کي دې ته اشاره ده چي د جابر رضی الله عنه پلار په خاصه توګه د هغه ټولو شهیدانو څخه افضل دی کوم چي د هغه څخه مخکي شهیدان سوي دي ځکه چي په هغوی کي که د چا سره الله ﷻ کلام کړی وي نو د پردې تر شا به یې کړی وی او څرګنده دي وي چي په قرآن کریم کي دا فرمایل سوي دي:

وما كَانَ لِبَشَرٍ أَن يُكَلِّمَهُ اللَّهُ إِلاَّ وَحْيًا أَوْ مِن وَرَاء حِجَابٍ

نو ددې تعلق یوازي ددغه دنیا سره دی نه د آخرت سره، ستا پلار الله ﷻ ژوندی کړ، دلته دا سوال پیدا کیږي چي الله ﷻ د شهیدانو په اړه فرمایلي دي چي: بل احیاء عندربهم . یعني

شهیدان د خپل رب سره ژوندي دي، نو بیا د حضرت جابر ﷺ د شهید پلار په اړه د رسول الله ﷺ دا فرمایل چي الله ﷻ هغه ژوندی کړی، څه معنی لري؟ ددې جواب یو شارح دا لیکلی دی چي الله ﷻ د هغه روح د شنه مرغه په غالب کي منتقل کړ او بیا هغه مرغه ته یې د هغه د روح په ذریعه ژوند ورکړ لکه څرنګه چي د هر شهید سره کیږي، نو رسول الله ﷺ د هغه داسي ژوندي کول وفرمایل، او یو جواب یې دا لیکلی دی چي دلته د ژوندي کولو څخه مراد دادی چي الله ﷻ د هغه روح ته دومره قوت ورکړ چي په هغه سره هغه ته مخامخ په کلام کي د دیدار الهي تحمل تر لاسه سو.

دنیا ته به بېرته نه راځي: یعني دا خو دالله ﷻ پخه فیصله ده چي څوک مړ سي هغه ته په دنیا کي دوهم وار ژوندي کېدل نه په برخه کیږي چي هغه دي بیا تر ډېره وخته ژوندی وي او په هغه وخت کي دي نیکي وکړي، ددغه وضاحت په رڼا کي دغه ارشاد به ددې خبري خلاف نه وي چي د ځینو مړو په دغه دنیا کي ژوندي کېدل هم ثابت دي مثلا د عیسی علیه السلام دا معجزه ده چي هغه به د الله ﷻ په حکم سره د څه وخت لپاره مړي ژوندي کول او ددې څخه هم زیات وضاحت دادی چي دا د الله ﷻ پخه فیصله ده چي کوم څوک یو وار مړ سوی دی هغه په غوښتنه کولو سره په دنیا کي دوهم وار ژوندی کېدای نه سي، په دغه صورت کي د شهید پر روایت باندي هم سوال نه کیږي، او سید جمال الدین رحمه الله داسي لیکلي دي چي: انهم لایرجعون، یعني هغوی به دنیا ته بېرته نه راځي، په دې کي د انهم ضمیر مرجع شهیدان دي او شهیدان که د داحد د غزا شهیدان مراد واخیستل یا مطلق شهیدان، او دا خاص مرجع متعین کولو ضرورت ځکه دی چي د حضرت عزیر علیه السلام د پېښي په وجه پر دغه ارشاد سوال نه واقع کیږي.

او بیا دغه آیت نازل سو:

وَلاَ تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُواْ فِي سَبِيلِ اللهِ أَمْوَاتًا بَلْ أَحْيَاء عِندَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ فَرِحِينَ بِمَا آتَاهُمُ اللهُ مِن فَضْلِهِ وَيَسْتَبْشِرُونَ بِالَّذِينَ لَمْ يَلْحَقُواْ بِهِم مِّنْ خَلْفِهِمْ أَلاَّ خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلاَ هُمْ يَحْزَنُونَ ۝

ژباړه: او کوم کسان چي د الله ﷻ په لاره کي وژل سوي دي هغوی مړه مه بولئ بلکه هغوی د خپل رب سره ژوندي دي، هغوی ته رزق ورکول کیږي او هغوی خوشحاله دي په هغه څه سره چي الله ﷻ هغوی ته په خپل فضل سره ورکړی دی او کوم کسان چي هغوی ته نه دي رسېدلي تر هغوی وروسته پاته سوي دي د هغوی پر حالت هم هغوی خوشحاله دي چي پر هغوی باندي هیڅ ډول بېره راتلونکې نه ده او نه به هغوی غمجن وي.

## حضرت جابر رضي الله عنه

﴿۵۹۸۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ اسْتَغْفَرَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَمْسًا وَعِشْرِينَ مَرَّةً. رواه الترمذي.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ زما لپاره پنځه ويشت واره د بخښني دعاء کړې ده. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۴۸، رقم: ۳۸۵۲.

**تشريح**: يو احتمال خو دادی چي رسول الله ﷺ د جابر رضي الله عنه په اړه د بخښني دعاء پنځه ويشت واره په يو وار غوښتې وي او دوهم احتمال دادی چي په مختلفو وختو کي او په مختلفو ځايو کي په مجموعي توګه پنځه ويشت واره د مغفرت دعاء غوښتې وي، مګر جابر رضي الله عنه د يو بل روايت څخه د مخکني احتمال تائيد کيږي د هغه روايت الفاظ دي چي : استغفر لي رسول الله ﷺ ليلة البعير خمسا وعشرين، يعني رسول الله ﷺ د اوښ په ورځ زما لپاره پنځه ويشت واره د مغفرت دعاء وکړل.

حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه يو مشهور صحابي دی، د مديني منورې د انصارو څخه دی او سلمی دي، زيات روايتونه ځيني نقل کيږي، د بدر په غزا کي يې ګډون کړی دی او دهغه څخه وروسته هم تقريبا په اتلس غزاوو کي له رسول الله ﷺ سره وو، د شام او مصر په فتوحاتو کي هم شامل وو، د ده څخه د حديثو د روايت کونکو شمېر ډېر زيات دی، د عمر په پای کي ړوند سوی وو، په مدينه منوره کي په ۷۴ م هجري کال کي وفات سو او هغه وخت يې عمر ۹۴ کاله وو. د يوه قول مطابق په مدينه کي وفات کېدونکی آخري صحابي دی.

## حضرت براء بن مالک رضي الله عنه

﴿۵۹۸۸﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَمْ مِنْ أَشْعَثَ أَغْبَرَ ذِي طِمْرَيْنِ لَا يُؤْبَهُ لَهُ لَوْ أَقْسَمَ عَلَى اللّٰهِ لَأَبَرَّهُ مِنْهُمُ الْبَرَاءُ بْنُ مَالِكٍ. رواه الترمذي والبيهقي في دلائل النبوة.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ډېر تاريه تار سري په دوړو لړلي خاوند د دوو زړو جامو او هغوی ته توجه نه کيږي که هغوی دخدای جل جلاله په اعتماد قسم وخوري نو

خدای ﷻ هغوی قسم رشتیا کوي په هغوی کي یو کس براء بن مالک رضي الله عنه دی . ترمذي او بیهقي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۶۵۰، رقم: ۳۸۵۴.

**د لغاتو حل**: طمرين: اي صاحب ثوبين خلقين (د دوو زړو جامو خاوند)

**تشريح** حضرت براء بن مالک رضي الله عنه د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه سکه ورو ر دی ، د سترو صحابه کرامو څخه دی، د عربو په زړه ورو او پهلوانانو کي شمېرل کیدی، د اُحد په غزا او وروستنيو غزاوو کي يې ګډون کړی دی ، الله ﷻ هغه ته دومره مېړانه او طاقت ورکړی وو چي هغه په يوازي سر د مقابلې په صورت کي سل دښمنان وژلي دي او د نورو په يو ځای کېدو سره چي کوم دښمنان هغه دوږخ ته رسولي دي د هغوی شمېر تر دې هم زيات دی ، په جنګ عامه کي هغه دبې پناه ميړانه څرګندونه کړې وه ، په ۲۰م هجري کال کي شهيد سو .

## اهل بيت او انصار

﴿۵۹۸۹﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا إِنَّ عَيْبَتِيَ الَّتِي آوِي إِلَيْهَا أَهْلُ بَيْتِي وَإِنَّ كَرِشِيَ الْأَنْصَارُ فَاعْفُوا عَنْ مُسِيئِهِمْ وَاقْبَلُوا مِنْ مُحْسِنِهِمْ . رواه الترمذي وقال هذا حديث حسن.

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : خبردار سئ! زما هغه باطني دوستان چي زه رجوع ورته کومه زما اهل بيت دی او زما د زړه دوستان انصار دي ، نو تاسو د انصارو د خطا کارو بدی معاف کوئ او د هغوی د نيکو کارو نيکي قبلوئ . ترمذي ويلي دي دا حديث غريب حسن دی.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۶۷۱، رقم: ۳۹۰۶.

**تشريح** د عيبه لفظ تفصيلي وضاحت په اول فصل کي تېر سوی دی ، په دغه روايت کي دغه لفظ د انصارو په تعريف کي نقل سوی دی مګر ددې خبري خلاف نه دی چي د دوی څخه ماسوا د بل چا په تعريف کي هم منقول وي ، په خاصه توګه د اهل بيتو په تعريف کي چي ددغه لفظ سره خاص مناسبت لري .

## د انصارو فضيلت

﴿۵۹۹۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يُبْغِضُ

الْأَنْصَارَ احد يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ. رواه الترمذي وقال هذا حديث حسن صحيح.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي پر خداى جل جلاله او د آخرت پر ورځ ايمان لري نو هغه د انصارو سره بغض او عداوت نه ساتي، ترمذي ويلي دي دا حديث حسن صحيح دى.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۷۱، رقم: ۳۹۰۶.

## د ابو طلحه رضي الله عنه د قوم فضيلت

﴿۵۹۹۱﴾: وَعَنْ أَنَسٍ عَنْ أَبِي طَلْحَةَ قَالَ قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَقْرِئْ قَوْمَكَ السَّلَامَ فَإِنَّهُمْ مَا عَلِمْتُ أَعِفَّةٌ صُبُرٌ. رواه الترمذي.

حضرت انس رضي الله عنه د ابو طلحه رضي الله عنه څخه روايت كوي چي رسول الله ﷺ ما ته وفرمايل: ته خپل قوم ته زما سلام ورسوه بېشكه دوى زما په علم كي ځان ساتونكي او صابران دي. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۷۰، رقم: ۳۹۰۴.

**د لغاتو حل**: صبر: يتحملون الصبر عند القتال.

## د اهل بدر فضيلت

﴿۵۹۹۲﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ عَبْدًا لِحَاطِبٍ جَاءَ النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَشْكُو حَاطِبًا فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ لَيَدْخُلَنَّ حَاطِبٌ النَّارَ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَذَبْتَ لَا يَدْخُلُهَا فَإِنَّهُ شَهِدَ بَدْرًا وَالْحُدَيْبِيَةَ. رواه مسلم.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دى چي د حاطب يو غلام د نبي كريم ﷺ په خدمت كي حاضر سو او د حاطب شكايت يې وكړ او وه يې ويل چي حاطب به خامخا په دوږخ كي داخليږي، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ته دروا غ وايې هغه به دوږخ ته نه ځي ځكه چي هغه په بدر او حديبې كى ګډون كړى دى. مسلم.

**تخریج**: صحيح مسلم: ۱۴\۱۹۴۲، رقم: ۱۶۲- ۲۱۹۵.

**تشریح**: مطلب دا چي کوم کسان د بدر په غزا کي شامل سوي دي يا په حديبيه کي د رسول الله ﷺ په لاس مبارک د الله ﷻ په لاره کي د ځان د قرباني په بيعت په کونکو کي شامل وه د هغوی په اړه دا يقين دی چي هغوی به د دوږخ د اور څخه خوندي او مامون وي او حاطب هم په بدر او حديبيه کي شريک وو، ځکه د هغه په اړه په يقين سره دا ويل چي هغه به دوږخ ته ځي، درواغ دي. ددې څخه ماسوا د حاطب صاحب ايمان کېدل خپله د قرآن کريم ددغه آيت (يا ايها الذين امنوا لا تتخذوا عدوي وعدوکم اولياء ...) څخه ثابتيږي چي د هغه لومړنی مخاطب حاطب دی چي د هغه پر يوې لوي غلطۍ باندي د خبرداري په توګه نازل سوی وو، نو يو مؤمن ته په يقيني توګه دوږخي ويل صريح درواغ او لغوه خبره ده.

## سلمان فارسي رضي الله عنه او اهل فارس

﴿۵۹۹۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تلا هذه الاية

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ دا آيت تلاوت کړ:

وان تتولوا يستبدل قوما غيركم ثم لايكونوا امثالكم قالوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ

(وان تتولوا يستبدل....): (که تاسو پر محمد (ﷺ) باندي د ايمان راوړلو څخه مخ واړوئ نو الله تعالی به ستاسو پر ځای بل قوم پيدا کړي او هغه قوم به ستاسو په ډول نه وي)، نو صحابه کرامو عرض وکړ اې د الله رسوله!

مَنْ هٰؤُلَاءِ الَّذِينَ ذَكَرَ اللّٰهُ إِنْ تَوَلَّيْنَا اسْتُبْدِلُوا بِنَا ثُمَّ لَايَكُونُوا أَمْثَالَنَا

هغه کوم خلک دي چي خدای ﷻ يې ذکر کړی دی که موږ نافرماني وکړو نو هغوی به زموږ پر ځای وټاکل سي او هغوی به زموږ په ډول نه وي،

فَضَرَبَ على فَخِذَ سَلْمَانَ الفارسي ثم قَالَ هٰذَا وَقومه وَلَوْ كَانَ الدين عند الثُّرَيَّا لَتَنَاوَلَهُ رِجَالٌ مِنَ الفرس. رواه الترمذي.

ددې اوريدو سره رسول الله ﷺ د سلمان فارسي رضي الله عنه پر ورانه لاس ووهی او بيا يې وفرمايل دا سړی او دده قوم. که دين پر ثريا (يعني آسمان) هم وي نو د فارس ډيرو خلکو به د هغه ځای

ثخه حاصل کړې وای . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۳۵۸، رقم: ۳۲۶۱.

**تشريح**: د فرس ثخه يا خو مطلق عجم مراد دي يا هغه خلګ مراد دي چې د هغوی نسلي او باطني تعلق د فارس سره وو، زيات صحيح لومړنی احتمال دی ځکه ددې تائيد د راتلونکي حديث ثخه کيږي .

## پر عجميانو باندي باور

﴿۵۹۹۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ ذُكِرَتِ الْأَعَاجِمُ عِنْدَ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَأَنَا بِهِمْ أَوْ بِبَعْضِهِمْ أَوْثَقُ مِنِّي بِكُمْ أَوْ بِبَعْضِكُمْ. رواه الترمذي.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه ثخه روايت دی چې د رسول الله ﷺ په وړاندي د عجميانو ذکر وکړل سو ، نو رسول الله ﷺ وفرمايل : زه پر دوی يا پر ځينو د دوی زيات اعتماد کونکی يم له ما ثخه پر تاسي يا پر ځينو ستاسي . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۸۲، رقم: ۳۹۳۲.

**تشريح**: د طيبي رحمة الله عليه وينا ده چې د رسول الله ﷺ ددغه ارشاد مخاطب د عربو د يوې خاصي قبيلې خلګ وه چې هغوی ته رسول الله ﷺ په جهاد کي د مال مصرفولو حکم ورکړی وو او هغوی د هغه حکم په عملي کولو کي سستي ښودلې وه ، په هر حال په دغه حديث کي دعجمو تعريف دی او دهغوی په اړه د رسول الله ﷺ د شفقت او عنايت او توجه اظهار کيږي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د رسول الله ﷺ نجباء او رقباء

﴿۵۹۹۵﴾: عَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ كُلَّ نَبِيٍّ

د حضرت علي رضي الله عنه ثخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل : د هر نبي او وه خاص خلک وي

سَبْعَةَ نُجَبَاءَ وَ رُقَبَاءَ وَأُعْطِيتُ أَنَا أَرْبَعَةَ عَشَرَ قُلْنَا مَنْ هُمْ قَالَ أَنَا وَابْنَايَ

چي د هغه غوره ساتونکی وي، او ما ته څوارلس کسان راکړل سوي دي، د حضرت علي رضي الله عنه ځخه پوښتنه وسول چي هغه کوم خلک دي؟ حضرت علي رضي الله عنه وویل: زه علي، زما دواړه

وَجَعْفَرٌ وَحَمْزَةُ وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ وَمُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ وَبِلَالٌ وَسَلْمَانُ وَعَمَّارٌ وَعَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْعُودٍ وابوذر وَالْمِقْدَادُ. رواه الترمذي.

زامن، جعفر، حمزه، ابوبکر، عمر، مصعب بن عمير، بلال، سلمان، عمار، عبد الله ابن مسعود، ابوذر، او مقداد رضي الله عنهم اجمعين. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۳۰، رقم: ۳۷۸۵.

**د لغاتو حل**: نجباء: الكريم.

**تشريح**: د حضرت حمزه رضي الله عنه ځخه ماسوا د نورو ټولو حضراتو اجمالي حالات مخکي بيان سوي دي، حضرت حمزه رضي الله عنه بن عبد المطلب د رسول الله ﷺ اکا دی، د نوموړي کنيت ابو عماره وو، د ابولهب مينزي ثوبيه رضي الله عنها رسول الله ﷺ ته هم تی ورکړی دی او حضرت حمزه رضي الله عنه ته هم، ځکه رسول الله ﷺ او حضرت حمزه رضي الله عنه رضاعي وروڼه هم دي، ويل کيږي چي حضرت حمزه رضي الله عنه د رسول الله ﷺ ځخه په عمر کي څلور کاله مشر وو، مګر عبد البر ليکلي دي چي زما په نزد دا صحيح نه دی ځکه چي ثوبيه دواړو ته تی ورکړی دی نو د عمرونو دغه تفاوت څرنګه کيدای سي مګر که دا ومنل سي چي ثوبيه دواړو ته په بېلو بېلو زمانو کي تی ورکړی دی نو د عمرونو تفاوت ممکن دي او ځينو حضراتو ليکلي دي چي حضرت حمزه رضي الله عنه تر رسول الله ﷺ دوه کاله مشر وو، سيدنا حمزه رضي الله عنه ډېر زړه ور او قوي انسان وو، د هغه لقب د اسد الله (د الله جل جلاله زمری) دی. قديم الاسلام دی، د يوه قول مطابق هغه د نبوت په دوهم کال اسلام قبول کړی وو او يو قول دا دی چي حضرت حمزه رضي الله عنه په شپږم هجري کال کي اسلام قبول کړ کله چي رسول الله ﷺ په دار ارقم کي هستوګن وو، د هغه په مسلمان کېدو سره اسلام ته ستر طاقت او شوکت حاصل سو، او الله جل جلاله د هغه په ذريعه خپل دين ډېر لوړ کړ، د بدر په غزا کي يې ګډون کړی دی او د احد په غزا کي د وحشي بن حرب په لاس شهيد سو.

## حضرت عمار بن یاسر رضی اللہ عنہ

﴿۵۹۹۶﴾: وَ عَنْ خَالِدِ بْنِ الْوَلِيدِ قَالَ كَانَ بَيْنِي وَبَيْنَ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ كَلَامٌ

د حضرت خالد بن ولید رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي زما او د عمار بن یاسر رضی اللہ عنہ په منځ کي پر یو معامله خبري اترې کیدلې چي

فَأَغْلَظْتُ لَهُ فِي الْقَوْلِ فَانْطَلَقَ عَمَّارٌ يَشْكُونِي إِلَى رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

ما د عمار رضی اللہ عنہ سره سختي خبري وکړې، عمار رضی اللہ عنہ رسول الله ﷺ ته زما شکایت وکړ، هغه نبي

وَسَلَّمَ فَجَاءَ خَالِدٌ وَهُوَ يَشْكُوهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَجَعَلَ

کریم ﷺ ته شکایت کوی چي خالد رضی اللہ عنہ هم راغلی چي ده هم د عمار څخه شکایت کوی، د راوي

يُغْلِظُ لَهُ وَلَا يَزِيدُ إِلَّا غِلْظَةً وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَاكِتٌ لَا يَتَكَلَّمُ

بیان دی چي د شکایت اوریدو سره خالد رضی اللہ عنہ ته غصه ورغلل او عمار رضی اللہ عنہ ته یې بد رد وویل، د خالد رضی اللہ عنہ سختي پر مخ زیاتیدل او رسول الله ﷺ پټه خوله ناست وو، یو حرف یې هم پر ژبه

فَبَكَى عَمَّارٌ وَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَلَا تَرَاهُ فَرَفَعَ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

مبارکه نه وایه، ددې حالت لیدو سره عمار رضی اللہ عنہ په ژړا سو او عرض یې وکړ اې د الله رسوله! تاسو نه وینئ، ددې اوریدو سره رسول الله ﷺ خپل سر مبارک را پورته کړ

رَأْسَهُ قَالَ مَنْ عَادَى عَمَّارًا عَادَاهُ اللّٰهُ وَمَنْ أَبْغَضَ عَمَّارًا أَبْغَضَهُ اللّٰهُ قَالَ

او وه یې فرمایل: څوک چي د عمار رضی اللہ عنہ سره دښمني کوي خدای جل جلالہ به هغه دښمن ګڼي او څوک چي د عمار رضی اللہ عنہ سره بغض کوي خدای به د هغه سره بغض کوي۔

خَالِدٌ فَخَرَجْتُ فَمَا كَانَ شَيْءٌ أَحَبَّ إِلَيَّ مِنْ رِضَا عَمَّارٍ فَلَقِيتُهُ بِمَا رَضِيَ فَرَضِيَ. رواه احمد.

د خالد رضی اللہ عنہ بیان دی ددې ارشاد اوریدو سره زه دباندي راووتلم او اوس هیڅ شی زما په نظر کي ددې څخه غوره نه وو چي څنګه کیدای سوه هم هغسي زه عمار راضي کړم، نو زه د عمار رضی اللہ عنہ

سره داسي راغلم چي هغه زما څخه خوشحاله سو او هغه ما راضي کړ. احمد

**تخریج**: اخرجه احمد في مسنده ۴\۸۹.

**تشریح**: خالد هم راغلی، دغه الفاظ د هغه راوي دي چي هغه د حضرت خالد رضی الله عنه څخه دغه روایت نقل کړی دی، او د (فجاء خالد) څخه مخکي (قال) محذوف دی، ددې تائید په راتلونکي عبارت کي د (قال خالد فخرجت) څخه هم کیږي، بیا هم د یو شارح مطابق دا احتمال هم دی چي دغه الفاظ خپله د حضرت خالد رضی الله عنه وي او د حال په بیان کي د لته هغه طرز بدل کړی دی.

## حضرت خالد (سیف الله) رضی الله عنه

﴿۵۹۹۷﴾: وَعَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ أَنَّهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ خَالِدٌ سَيْفٌ مِنْ سُيُوفِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ وَنِعْمَ فَتَى الْعَشِيرَةِ. رواهما احمد

د حضرت ابو عبیده رضی الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اوریدلي دي چي خالد رضی الله عنه د خدای جل جلاله د تورو څخه یوه توره ده او د خپلي قبیلې غوره زلمی دی. احمد

**تخریج**: اخرجه احمد في مسنده ۴\۹۰.

**تشریح**: د هغه د تورو څخه یوه توره ده، یعني خالد د یو داسي توري په ډول دي چي الله جل جلاله د مشرکانو خلاف د پوښ څخه را ایستلې ده، او د کفارو پر سریې مسلط کړې ده، یا دا معنی ده چي الله جل جلاله، خالد صاحب شمشیر گرځولی دی، په هر صورت د دغه الفاظو په ذریعه د حضرت خالد رضی الله عنه مېړاني او شجاعت ته اشاره ده هغه د الله جل جلاله په لاره کي د دین د دښمنانو سره ښه جګړه کوونکی وو.

## حضرت علي، ابوذر، مقداد او سلمان (رض)

﴿۵۹۹۸﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ

د حضرت بریده رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: الله جل جلاله

أَمَرَنِي بِحُبِّ أَرْبَعَةٍ وَأَخْبَرَنِي أَنَّهُ يُحِبُّهُمْ قِيلَ يَا رَسُولَ اللهِ سَمِّهِمْ لَنَا قَالَ

ما ته د څلورو کسانو سره د محبت حکم کړی دی او دا یې راته ښودلي دي چي هغوی هم ورسره مینه کوي، صحابه کرامو پوښتنه وکړه اې د الله رسوله! د هغوی نومونه را وښیه، رسول الله صلی الله علیه وسلم

عَلِيٌّ مِنْهُمْ يَقُولُ ذٰلِكَ ثَلَاثًا وَأَبُو ذَرٍّ وَالْمِقْدَادُ وَسَلْمَانُ أَمَرَنِي بِحُبِّهِمْ وَأَخْبَرَنِي أَنَّهُ يُحِبُّهُمْ. رواه الترمذي وقال هذا حديث حسن غريب.

ورته فرمایل: په هغوی کي خو یو علي رضي الله عنه دی، د اا الفاظ رسول الله ﷺ درې واره وفرمایل، بیا یې وفرمایل: او ابوذر او مقداد او سلمان رضي الله عنهم دي، الله جل جلاله ما ته حکم کړی دی چي زه د هغوی سره مینه کوم او دا یې راته ښودلي دي چي الله جل جلاله هم د هغوی سره مینه کوي. ترمذي ویلي دي دا حدیث حسن غریب دی.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۵۹۴، رقم: ۳۷۱۸.

## حضرت ابوبکر صدیق او بلال (رض)

﴿۵۹۹۹﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ كَانَ عُمَرُ يَقُولُ أَبُو بَكْرٍ سَيِّدُنَا وَأَعْتَقَ سَيِّدَنَا يَعْنِي بِلَالًا. رواه البخاري.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دی چي حضرت عمر رضي الله عنه به فرمایل: ابوبکر رضي الله عنه زموږ سردار دی او ابوبکر رضي الله عنه زموږ سردار (یعني بلال رضي الله عنه) آزاد کړی دی. بخاري. (حضرت بلال رضي الله عنه د ابوبکر صدیق رضي الله عنه مریی وو).

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۷\۹۹، رقم: ۳۷۵۴.

**تشریح**: د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه، حضرت بلال رضي الله عنه ته په سردار ویل د هغه خاکساري وه، کنه نو په حقیقت کي حضرت عمر رضي الله عنه تر هغه افضل دی او په دې اړه د ټول امت اجماع ده، ځینو حضراتو لیکلي دي چي ددغه الفاظو څخه د حضرت عمر رضي الله عنه مراد دې ته اشاره وه چي بلال رضي الله عنه هم د مسلمانانو د سردارانو څخه یو سردار دی، او دځینو حضراتو وینا ده چي سیادت (سرداري) د فضیلت مستلزم نه دی ځکه د حضرت عمر رضي الله عنه ددغه الفاظو څخه دا نه لازمیږي چي حضرت بلال رضي الله عنه دي د حضرت عمر رضي الله عنه څخه افضل وي، یو شارح دا لیکلي دي: یو خو دا چي ضمیر متکلم مع الغیر ضروري نه دی چي په هر حال کي دي ټولو ته شامل وي بلکه د اکثر په اعتبار هم د هغه مدعا او مرجع پوره کیږي، دوهم دا چي په سیدنا کي د نا ضمیر څخه صحابه کرامو ته اشاره ده نو اول خو په سیدنا کي د نا ضمیر متکلم مع الغیر ټولو صحابه کرامو ته

شامل دی او دوهم په سیدنا کي د نا ضمیر اکثرو صحابه کرامو ته شامل دی او په دغه سیدنا کي چي کوم اضافت دی هغه د تخصیص لپاره دی، په دغه صورت کي به مطلب دا وي چي حضرت عمر رضي الله عنه داسي وفرمایل : او هغه یعني زموږ د ټولو سردار ابوبکر رضي الله عنه هغه سړی یعني بلال رضي الله عنه ازاد کړ چي په موږ کي د اکثرو صحابه کرامو سردار دی .

## حضرت بلال رضي الله عنه

﴿۶۰۰۰﴾: وَعَنْ قَيْسِ ابن ابي حازم أَنَّ بِلَالًا قَالَ لِأَبِي بَكْرٍ إِنْ كُنْتَ إِنَّمَا اشْتَرَيْتَنِي لِنَفْسِكَ فَأَمْسِكْنِي وَإِنْ كُنْتَ إِنَّمَا اشْتَرَيْتَنِي لِلَّهِ فَدَعْنِي وَعَمَلَ اللَّهِ . رواه البخاري.

د حضرت قیس بن ابي حازم رضي الله عنه څخه روایت دی چي بلال رضي الله عنه ابوبکر رضي الله عنه ته وویل: که تا زه د خپل ځان لپاره رانیولی یم نو ما د ځان سره وساته او که دي د خدای جل جلاله لپاره رانیولی یم نو ما پر خپل حال پریږده او ما پریږده چي د خدای تعالی لپاره عمل وکړم. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹۹/۷، رقم: ۳۷۵۵.

**تشريح**: د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه سره د حضرت بلال رضي الله عنه ددغه خبرو واقعه داده چي حضرت بلال رضي الله عنه مخکي یو غلام وو او د دین د دښمنانو په واک کي وو، حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د ډېرو روپو په مصرفولو سره هغه رانیوی او ازاد یې کړ، ددې څخه وروسته هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خاصو خادمانو کي شامل سو، او رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه ته د آذان خدمت وسپاری، او د نبي کریم صلی الله علیه وسلم تر وصال پوري حضرت بلال رضي الله عنه دغه خدمت سرته رسوی ، کله چي رسول الله صلی الله علیه وسلم رحلت وفرمایه نو د حضرت بلال رضي الله عنه لپاره په مدینه کي اوسېدل مشکل سول ، په دغه تصور سره د هغه د صبر پیمانه ډکه سول چي رسول الله صلی الله علیه وسلم موجود نه دی او هغه دي مسجد نبوي ته وګوري او په هغه کي دي اذان وکړي ، نو هغه د شام هیواد ته د تللو اراده وکړل. کله چي ابوبکر صدیق رضي الله عنه ته دا معلومه سول نو هغه حضرت بلال رضي الله عنه منع کول وغوښتل او هغه ته یې درخواست وکړ چي ته همدلته زما سره اوسېږه او د رسول الله صلی الله علیه وسلم د زمانې په ډول په مسجد نبوي کي اذان کوه، نو هغه وخت حضرت بلال رضي الله عنه دا خبره وکړل که تاسو زه ددې لپاره رانیولی یم چي زه ستاسو د خوښۍ تکمیل وکړم نو زه ستاسو پر خبره منلو مجبور یم ، کوم خدمت چي تاسو ما ته را سپارئ هغه زه خپل فرض ګڼم، مګر که تاسو زه ددې لپاره نه یم ازاد کړی بلکه

محض د الله ﷻ د رضا لپاره مو رانیولی او ازاد کړی یم نو بیا زه غواړم چي تاسو ما خپل پابند مه کړئ ما پر خپل حال پرېږدئ زه چي چیري تلل غواړم هلته ولاړ سم، په یوه روایت کي راغلي دي چي حضرت بلال رضی الله عنه دا هم ویلي وه چي ما ته دا خوښه نه ده چي هغه خوا ته وګورم چیري چي د رسول الله ﷺ ماسوا دلته زما لپاره اوسېدل ناممکن وي.

چه مشکل ترا زین برعاشق زار      که بې دلدار بیند جائي دلدار

له دې وروسته حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د حضرت بلال رضی الله عنه په مدینه کي د پاته کېدو هڅه ونه کړل او هغه په هغه لښکر کي په شاملېدو سره د دمشق په خوا روان سو کوم چي شام ته تلی، بیا د عمر تر پایه هم هلته اوسېدی تر دې چي په ۱۸ م هجري کال یا د یوه روایت مطابق په ۲۰ م هجري کال کي په حق ورسېدی، ددې څخه معلومه سول چي هغه روایت بالکل بې بنیاده دی چي په هغه کي د حضرت بلال رضی الله عنه شام ته د تللو او بیا هلته په خوب کي د رسول الله ﷺ په لېدو سره مدینې ته بېرته راغلی او په مسجد نبوي کي یې اذان وکړ او د دومره وخت وروسته د هغه د آذان په اورېدو سره د مدینې د اوسېدونکو د لړزېدو یادونه ده.

### حضرت ابو طلحه رضی الله عنه

﴿۶۰۰۱﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي یو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کي عرض وکړ

فَقَالَ اِنِّيْ مَجْهُوْدٌ فَأَرْسَلَ إِلَى بعض نِسَائِهِ فَقَالَتْ وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَا

چي زه په لوږې او تکلیف کي اخته یم، رسول الله ﷺ خپلي یوې بي بي ته یو څوک ولیږی، هغې جواب راولیږی چي په هغه ذات دي مي قسم وي چي تاسو یې په حق پیغمبر رالیږلي

عِنْدِي إِلَّا مَاءٌ ثُمَّ أَرْسَلَ إِلَى أُخْرَى فَقَالَتْ مِثْلَ ذَلِكَ و قُلْنَ كُلُّهُنَّ مِثْلَ ذَلِكَ

یاست زما سره د اوبو څخه پرته نور هیڅ نسته، بیا یې بلي بي بي ته ولیږی هغې هم دغه جواب ورکړ، تر دې چي ټولو بیبیانو هم دغه جواب ورکړ،

فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يُضِيفُه يَرْحَمُهُ اللَّهُ فَقَامَ رَجُلٌ

بیا رسول الله ﷺ حاضرین مخاطب کړل او ورته وه یې فرمایل: څوک چي په دهٔ ډوډۍ وخوري الله تعالی به خپل رحمت پر نازل کړي، ددې اورېدو سره په انصارو کي یو سړي ولاړ سو چي د

مِنْ الْأَنْصَارِ يقال له ابوطلحة فَقَالَ أَنَا يَا رَسُولَ اللهِ فَانْطَلَقَ بِهِ إِلَى رَحْلِهِ

هغه نوم ابو طلحه وو ، هغه عرض وکړ اې د الله رسوله ! زه به دی میلمه کړم نو هغه سړی یې خپل

فَقَالَ لِامْرَأَتِهِ هَلْ عِنْدَكِ شَيْءٌ قَالَتْ لَا إِلَّا قُوتُ صِبْيَانِي قَالَ فَعَلِّلِيهِمْ

کور ته بوتلی او خپل ښځې ته يې وويل ستا سره د خوراک يو شی شته ؟ هغې ورته وويل په اندازه د ماشومانو د خوراک يو شی شته ، ابو طلحه ورته وويل ماشومان په يو بهانه بيده کړه او

بِشَيْءٍ وَنَوِّمِيهِمْ فَإِذَا دَخَلَ ضَيْفُنَا فَأَرِيهِ أَنَّا نَأْكُلُ فَإِذَا أَهْوَى بِيَدِهِ لِيَأْكُلَ

کوم وخت چې زموږ میلمه په کور کې داخل سي نو پر هغه دا ظاهره کړه چې موږ هم د هغه سره خوراک خورو او کوم وخت چې میلمه لاس د خوراک لپاره کښته کړي

فَقُومِي إِلَى السِّرَاجِ كَيْ تُصْلِحِيهِ فَأَطْفِئِيهِ فَفَعَلَتْ فَقَعَدُوا وَأَكَلَ الضَّيْفُ

نو ته ولاړه سه او دا ظاهره کړه چې څراغ سموم مګر څراغ مړ کړه چې تیاره سي نو هغې همداسي وکړل او دوی کښېنستل ، میلمه خوراک وخوړی

وَبَاتَا طَاوِيَيْنِ فَلَمَّا أَصْبَحَ غَدَا إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ

او ښځه او خاوند دواړه تږوله شپه وږي پاته سول ، بیا چې سهار سو نو ابو طلحه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر سو ،

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ عَجِبَ اللهُ أَوْ ضَحِكَ اللهُ مِنْ فُلَانٍ

رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : د فلاني سړي او فلانۍ ښځې پر کار الله تعالی تعجب وکړ یا خدای جل جلاله وخندل .

وَفُلَانَةَ وفي رواية مِثْلُهُ ولم يسم اباطلحة وفي اخرها فَأَنْزَلَ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ:
وَيُؤْثِرُونَ عَلَى أَنْفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ. متفق عليه.

او په يوه روايت کې دد ې ډول واقعه ده مګر په هغه کې د ابو طلحه نوم نسته او د يوه روايت په آخر کې دا الفاظ دي چې بيا الله تعالی دا آيت نازل کړ : (و يؤثرون على انفسهم ....) او هغه خلک چې نورو

خلکو ته پر ځان ترجیح ورکوي اګر که خپله اړ او وږي وي. بخاري و مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\ ۶۳۱، رقم: ۴۸۸۹، ومسلم ۳\ ۱۶۲۴، رقم: ۱۷۲- ۲۰۵۴.

**د لغاتو حل**: فعلليهم: اي سکنيهم. طاويين: اي جائعين (وږي)

**تشريح** د ټولو بيبيانو څخه همداسي جواب راغلی: په ښکاره خو دا معلوميږي چي دغه پېښه د خيبر د فتح او د غنيمتو د راتلو څخه مخکي ده کله چي د رسول الله ﷺ ازواجو په سختۍ سره ګزاره کول او د مسکينۍ په حالت کي اوسېدل.

چي د کورنۍ ضرورت تر يو حده پوره کړي: مطلب دا چي هغه وخت په کور کي د خوراک څخه څه چي وه هغه دومره لږ وه چي د کوچنيانو لپاره يې اېښې وه چي په شپه يا ورځ کي هغوی په وار وار وږي کيږي او هغوی يو وخت خوراک غواړي، دا وضاحت ځکه ضروري دی چي هغه خوراک د کوچنيانو د هغه وخت خوراک وو نو بيا په مېلمه باندي نه سو خوړل کېدای ځکه چي د کوچنيانو په وږي ساتلو سره په مېلمه خوراک کول جائز نه دی.

په يوه طريقه يې بېده کړه. يعني کله چي کوچنيان وېښ سي نو هغوی په يوه طريقه ژر بېده کړه يا دا که چيري کوچنيان بېده وي نو هڅه وکړه چي ژر راويښ نه سي چي د مېلمه د خوراک په وخت کي هغوی خوراک ونه غواړي لکه چي د کوچنيانو عادت وي.

لکه موږ چي هم د هغه سره خوراک کوو: حضرت ابوطلحه رضي الله عنه دا خبره ځکه وکړل چي خوراک ډېر وو او د هغه سره دوی نه سو خوړلای او که ميلمه ووينې چي کوربه د هغه سره خوراک نه کوي نو هغه به شرم محسوس کړي او دا ېېره به ورسره پيدا سي چي د خوراک د کمۍ په وجه کوربه زما سره خوراک نه کوي، څرګنده دي وي چي دغه پېښه د پردې د حکم نافذ کېدو څخه مخکي ده ځکه حضرت ابوطلحه رضي الله عنه ته د هغه ميلمه کور راوستل او د خپلي بي بي په مخکي څه تکليف ونه سو.

## حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه

﴿۶۰۰۲﴾: وَعَنْهُ قَالَ نَزَلْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْزِلًا فَجَعَلَ

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي موږ د رسول الله ﷺ سره پر يو ځای تم سوو چي

النَّاسُ يَمُرُّونَ فَيَقُولُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ هٰذَا يَا أَبَا هُرَيْرَةَ

خلک آخوا دېخوا تېرېدل او رسول الله ﷺ به پوښتنه کول چي دا څوک دي؟ د ابوهريره رضي الله عنه

فَأَقُولُ فُلَانٌ فَيَقُولُ نِعْمَ عَبْدُ اللّٰهِ هَذَا وَيَقُولُ مَنْ هَذَا فَأَقُولُ فُلَانٌ

بيان دی چي ما به د رسول الله ﷺ د سوال په جواب کي ویل چي فلانی سړی دی او د هغه نوم اوریدو سره به رسول الله ﷺ فرمایل : د خدای تعالی دا بنده ښه دی او نبي کريم ﷺ به ویل دا څوک دی نو ما به ویل چي فلانی دی

فَيَقُولُ بِئْسَ عَبْدُ اللّٰهِ هَذَا حَتَّى مَرَّ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ فَقَالَ مَنْ هَذَا فَقُلْتُ

نو ویل به یې د خدای تعالی دا بنده بد دی تر دې چي خالد بن ولید رضي الله عنه تېر سو رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه اې ابوهریره دا څوک دی ؟ ما عرض وکړ :

هَذَا خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ فَقَالَ نِعْمَ عَبْدُ اللّٰهِ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ سَيْفٌ مِنْ سُيُوفِ اللّٰهِ. رواه الترمذي.

خالد بن ولید رضي الله عنه دی ، رسول الله ﷺ وفرمایل : ډېر ښه بنده د خدای جل جلاله دی خالد بن ولید رضي الله عنه د خدای تعالی د تورو څخه یوه توره ده . ترمذي .

**تخريج**: سنن الترمذي ٥\٦٤٦، رقم: ٣٨٤٦.

**تشريح**. هغه د الله جل جلاله خراب بنده دی: دا خبره به رسول الله ﷺ د یو داسي کس په اړه فرمایلي وي چي د هغه منافق کېدل به د رسول الله ﷺ د شان څخه لیري معلومېږي او نه دا ثابت دي چي رسول الله ﷺ د یو مؤمن په اړه داسي الفاظ فرمایلي دي که څه هم هغه پر خرابه لار وو ، ددې څخه ماسوا د هغه وخت په مؤمنانو کي همداسي خراب خلک نه وه چي د رسول الله ﷺ د هغوی په حق کي داسي خبره فرمایلي وي او که داسي یو څوک وي هم نو هغه به شاذ او نادر وي .

## د انصارو سره شفقت

﴿٦٠٠٣﴾ : وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ قَالَتِ الْأَنْصَارُ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ لِكُلِّ نَبِيٍّ أَتْبَاعٌ وَإِنَّا قَدْ اتَّبَعْنَاكَ فَادْعُ اللّٰهَ أَنْ يَجْعَلَ أَتْبَاعَنَا مِنَّا فَدَعَا بِهِ. رواه البخاري

د حضرت زيد بن ارقم رضي الله عنه څخه روایت دی چي انصارو عرض وکړ اې د الله رسوله ! د هر نبي پیروان وه او موږ ستاسو پیروي کړې ده، د خدای جل جلاله څخه سوال وکړه چي الله تعالی زموږ تابع هم زموږ څخه جوړ کړي ، نو نبي کريم ﷺ داسي سوال وکړی . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\ ۱۱۴، رقم: ۳۷۸۷.

**تشريح** يعني زموږ اخلاف او موالي هم زموږ په ډله كي شامل سي ، په دې توګه چي هغوى ته هم انصار ويل كيږي، ددې لپاره چي تاسو موږ ته د احسان او ښه چلن كوم تلقين او وصيت د عامو مسلمانانو په اړه كړى دى په هغه كي زموږ هغه اخلاف او موالي هم دي ، لكه څرنګه چي تاسو عام مسلمانان په مخاطب كولو سره ورته وفرمايل: اوصيكم بالانصار، يعني اې مسلمانانو! زه تاسو ته د انصارو په اړه د نېک چلن او احسان وصيت كوم ، او رسول الله ﷺ وفرمايل: ددغه انصارو د نيكانو معذورت قبول كړئ او د دوى د بد كارو پرده وكړئ، خلاصه دا چي كوم مناقب او فضائل تاسو زموږ په حق كي فرمايلي دي او په كوم خاص عنايت او مهربانۍ مو نازولي يو د هغه فضل او شرف سره سم زموږ اخلاف او موالي هم داخل سي، يا دانصارو دا مطلب وو چي تاسو دعاء وكړئ چي الله ﷻ زموږ تابعدار يعني زموږ اخلاف او موالي او زموږ اولاد هم زموږ حقيقي پيروان او رېښتوني جوړ كړي، په دې توګه چي كومي نيكي او سېده لار باندي الله ﷻ موږ روان كړي يو پر هغه لار دوى هم روان سي او زموږ د سيرت او طريقو پيروي وكړي .

## د انصارو فضيلت

﴿۶۰۰۴﴾: وَعَنْ قَتَادَةَ قَالَ مَا نَعْلَمُ حَيًّا مِنْ أَحْيَاءِ الْعَرَبِ أَكْثَرَ شَهِيدًا أَعَزَّ

د حضرت قتاده رضي الله عنه څخه روايت دى چي موږ په عربو كي د هيڅ قبيلې او قوم په اړه دا علم نه لرو چي د هغوى شهيدان د انصارو څخه زيات وي

يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنَ الْأَنْصَارِ قَالَ وَقَالَ أَنَسٌ قُتِلَ مِنْهُمْ يَوْمَ أُحُدٍ سَبْعُونَ

او د قيامت په ورځ به د انصارو څخه زيات عزتناكه وي، دانس رضي الله عنه بيان دى چي د احد په غزا كي د دوى څخه اويا شهيدان سول

وَيَوْمَ بِئْرِ مَعُونَةَ سَبْعُونَ وَيَوْمَ الْيَمَامَةِ على عهد ابي بكر سَبْعُونَ. رواه البخاري

او په بير معونه كي اويا شهيدان سول او د يمامه په جګړه كي اويا شهيدان سول چي دابوبكر رضي الله عنه په زمانه كي سوى وو ، بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\ ۳۷۴، رقم: ۴۰۷۸.

**تشريح**: د انصارو څخه هغوی زيات باعزته ومنل سي، مطلب دا چي د كومي قبيلې د شهيدانو شمېر زيات وي د قيامت په ورځ به هغوی ته زيات عزت تر لاسه كيږي نو زموږ د علم مطابق انصار يوه داسي قبيله او يو داسي قوم دی چي د هغه كسان د الله ﷻ په لاره كي تر ټولو زيات خپل ځانونه قربان كړي دي، په دې اعتبار د هغوی د شهيدانو شمېر د ټولو قبيلو او قومو د شهيدانو څخه زيات دی ځكه د قيامت په ورځ هغه عزت چي د الله ﷻ په لاره كي د سر وركوونكو لپاره الله ﷻ ټاكلی دی تر ټولو زيات انصارو ته تر لاسه كيږي.

د احد په غزا كي اويا انصار شهيدان سول، دلته مراد دادی چي د احد په غزا كي كوم اوويا مؤمنان شهيدان سوي وه په هغوی كي د څو كسانو ماسوا نور ټول انصار وه، دا وضاحت ځكه ضروري دی چي د حديث او تاريخ مطابق د احد په غزا كي ټول اويا مسلمانان شهيدان سوي وو چي په هغوی كي څلور شپېته انصار او شپږ مهاجرين وه.

## اصحاب بدر

﴿۶۰۰۵﴾: وَعَنْ قَيْسِ بْنِ اَبِيْ حَازِمٍ قَالَ كَانَ عَطَاءُ الْبَدْرِيِّيْنَ خَمْسَةَ آلَافٍ خَمْسَةَ آلَافٍ وَقَالَ عُمَرُ لَأُفَضِّلَنَّهُمْ عَلَى مَنْ بَعْدَهُمْ. رواه البخاري.

د حضرت قيس بن ابي حازم ؓ څخه روايت دی چي كومو خلكو په جنګ بدر كي ګډون كړی وو هغوی ته به د بيت المال څخه پنځه پنځه زره درهمه وركول كېدل او حضرت علي ؓ وويل چي په بدر كي ګډون كوونكو ته به پر نورو ټولو ترجيح وركوم تر دې وروسته. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷/ ۳۲۳، رقم: ۴۰۲۲.

**تشريح**: د بدر په غزا كي د ګډون كوونكي هر صحابي لپاره د حضرت ابوبكر صديق ؓ د خلافت په زمانه كي د بيت المال څخه پنځه زره درهم ټاكلي وه چي په مقدار كي د نورو ټولو خلكو د وظيفو څخه زيات وه، حضرت عمر فاروق ؓ د خپل خلافت په زمانه كي د وظيفو كومي درجې چي قائمي كړلې په هغه كي هم د يو څو خاصو خلكو (لكه حضرت عباس ؓ او ازواج مطهرات) په پرېښودو سره نور ټول د وظيفو شمېر د اصحاب بدر د وظيفو د شمېر څخه كم كړی او همدا رنګه حضرت عمرفاروق ؓ نه يوازي دا چي په عملي توګه د اصحاب بدر درجه په درجه تر ټولو خلكو لوړ كړل بلكه د ذكر سوو الفاظو په ذريعه يې دا وضاحت وكړ چي كه څه هم د رسول الله ﷺ د خاص نسبت په لحاظ كولو سره ما ځيني وظيفې د اصحاب بدر د

وظیفو څخه زیاتي ټاکلي دي مګر کوم چي د درجو د رتبو تعلق دی نو زما په نزد هم د اصحاب بدر درجه د نورو ټولو خلګو د درجو څخه لوړه ده او دهغه وظیفو د نورو ټولو وظیفو څخه زیات کېدل پکار دي.

=============

# تَسْمِيَةَ مَنْ سُمِّيَ مِنْ اَهْلِ بَدْرٍ فِي الْجَامِعِ لِلْبُخَارِيِّ

## (په اهل بدر کي د هغه صحابه کرامو یادونه چي په جامع بخاري کي ذکر سوي دي)

څرګنده دي وي چي امام بخاري رحمه الله د بدر په غزا کي د ګډون کوونکو ځینو خاصو صحابه کرامو نومونه د خپل کتاب بخاري شریف په یو بېل باب کي په اجمالي توګه ذکر کړي دي، دغه بدري صحابه کرام هغه دي چي دهغوی د بدري کېدو ذکر په بخاري کي راغلی دی او د هغوی روایتونه په دغه کتاب (بخاري) کي نقل سوي دي او په یو بېل باب کي د هغه خاص بدري صحابه کرامو د نومو په ذکر سره د امام بخاري رحمه الله مقصد دادی چي پر نورو ټولو بدري صحابه کرامو باندي د هغه خاص صحابه کرامو د فضیلت، سبقت او غوره والي اظهار وي، او دهغوی په حق کي په خاصه توګه د رحمت دعاء وکړل سي، دلته ددې خبري ذکر کول ضروري دي چي علماؤ لیکلي دي: د بخاري شریف په دغه باب کي د اصحاب بدر کوم نومونه چي ذکر سوي دي د هغوی د ذکر او بیان په وخت کي چي کومه دعاء وغوښتل سي الله جل جلاله په خپل فضل او کرم سره هغه قبلوي، امام بخاري رحمه الله په دغه باب کي تر ټولو مخکي د رسول الله صلی الله علیه وسلم مبارک نوم بیا د خلفاء اربعه مبارک نومان راوړي دي او بیا د پاته ټولو صحابه کرامو نومونه د حروف تهجي په ترتیب سره ذکر کړي دي، د امام بخاري رحمه الله مقصد او دهغه د اتباع برکت تر لاسه کولو لپاره د مشکوة المصابیح مؤلف هم دغه اسماء مبارک هم هغسي نقل کړي دي.

ملا علي قاري رحمه الله لیکلي دي: په دغه باب کي د هغو اصحاب بدر د نومونو ذکر دی چي دهغوی په حقیقت کي د بدر کېدو ذکر په صحیح بخاري کي راغلی دی او دا ځکه دی چي په دغه ډله کي د حضرت عثمان غني رضي الله عنه نوم شاملول صحیح ومنل سي چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم په حکم سره په حقیقت کي د بدر په غزا کي شریک سوی نه وو مګر حکما هغه هم بدري منل کیږي، نو په دغه باب کي د هغه بدري صحابه کرامو نومونه سته چي نه خو بخاري په خپل دغه

باب كي بيان كړي دي او نه د سره د هغوی ذكر په بخاري كي راغلی دی ، ددې مطلب دا سو چي امام بخاري د اصحاب بدر پر فهرست باندي مشتمل په خپل دغه باب كي يوازي د هغو بدري صحابه كرامو نومونه ذكر كړي دي چي دهغوی په اړه په صحيح بخاري كي په صراحت سره ذكر سوي دي چي هغوی د بدر په غزا كي ګډون كړی دی كه خپله هغه صحابي د خپل ځان په اړه روايت كړی وي يا نورو كسانو د بدر په غزا كي د ګډون كولو روايت كړی دی، همدارنګه د هغه بدري صحابه كرامو نومونه په دغه باب كي نه دي ذكر سوي چي د هغوی يادونه كه څه هم په صحيح بخاري كي راغلې ده مګر په صراحت سره نه دی راغلی چي هغوی د بدر په غزا كي ګډون كړی وو ، ددغه وضاحت په رڼا كي په دې خبره د حيرت موقع نه پاته كيږي چي د خاص بدري صحابه كرامو پر فهرست باندي مشتمل په دغه باب كي د يو ستر بدري صحابي حضرت عبيده الجراح رضی الله عنه نوم ذكر سوی نه دی ، حضرت عبيده رضی الله عنه بېله شكه د بدر په غزا كي ګډون كړی وو او پر دې خبره د ټولو محدثينو او اصحاب سير اتفاق دی ، ددې څخه ماسوا په بخاري شريف كي په ډېرو ځايو كي د هغه ذكر هم راغلی دی مګر د بخاري په يو روايت كي په صراحت سره بيان نه دی سوی چي هغه د بدر په غزا كي ګډون كړی وو .

﴿۲۰۰۶﴾: (۱) النَّبِيُّ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللهِ الْهَاشِمِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (۲)عَبْدُ اللهِ بْنُ عُثْمَانَ أَبُو بَكْرٍ الصِّدِّيقُ الْقُرَشِيُّ (۳) عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ الْعَدَوِيُّ (۴)عُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ الْقُرَشِيُّ خَلَّفَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى ابْنَتِهِ رقية وَضَرَبَ لَهُ بِسَهْمِهِ (۵)عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ الْهَاشِمِيُّ (۶) إِيَاسُ بْنُ بُكَيْرٍ (۷) بِلَالُ بْنُ رَبَاحٍ مَوْلَى أَبِي بَكْرٍ الصديق (۸) حَمْزَةُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ الْهَاشِمِيُّ (۹) حَاطِبُ بْنُ أَبِي بَلْتَعَةَ حَلِيفٌ لِقُرَيْشٍ (۱۰) أَبُو حُذَيْفَةَ بْنُ عُتْبَةَ بْنِ رَبِيعَةَ الْقُرَشِيُّ (۱۱)

(۱) نبي كريم حضرت محمد ﷺ بن عبدالله هاشمي ﷺ (۲) عبدالله دعثمان زوی چي د هغه كنيت ابوبكر صديق رضی الله عنه دی او قرشي دی، (۳) عمر بن خطاب عدوي رضی الله عنه (۴) عثمان بن عفان قرشي چي رسول الله ﷺ د خپل لور بي بي رقيې سره پرې ايښی وو چي د هغه ښځه ناروغه وه او د هغه لپاره د بدر په غزا كي رسول الله ﷺ برخه ټاكلې وه (۵) علي بن ابي طالب هاشمي (۶) اياس بن بكير (۷) بلال بن رباح د ابوبكر صديق رضی الله عنه آزاد كړل سوی غلام (۸) حمزه بن عبدالمطلب هاشمي (۹) حاطب بن ابي بلتعه د قريشو دوست (۱۰) ابوحذيفه بن عتبه بن ربيعه قرشي

حَارِثَةُ بْنُ الرَّبِيعِ الْأَنْصَارِيُّ قُتِلَ يَوْمَ بَدرٍ وَهُوَ حَارِثَةُ بْنُ سُرَاقَةَ كَانَ فِي النَّظَّارَةِ (۱۲) خُبَيْبُ بْنُ عَدِيٍّ الْأَنْصَارِيُّ (۱۳) خُنَيْسُ بْنُ حُذَافَةَ السَّهْمِيُّ (۱۴) رِفَاعَةُ بْنُ رَافِعٍ الْأَنْصَارِيُّ (۱۵) رِفَاعَةُ بْنُ عَبْدِ الْمُنْذِرِ أَبُو لُبَابَةَ الْأَنْصَارِيُّ (۱۶) الزُّبَيْرُ بْنُ الْعَوَّامِ الْقُرَشِيُّ (۱۷) زَيْدُ بْنُ سَهْلٍ أَبُو طَلْحَةَ الْأَنْصَارِيُّ (۱۸) أَبُو زَيْدٍ الْأَنْصَارِيُّ (۱۹) سَعْدُ بْنُ مَالِكٍ الزُّهْرِيُّ (۲۰) سَعْدُ بْنُ خَوْلَةَ الْقُرَشِيُّ (۲۱) سَعِيدُ بْنُ زَيْدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ نُفَيْلٍ الْقُرَشِيُّ (۲۲) سَهْلُ بْنُ حُنَيْفٍ الْأَنْصَارِيُّ (۲۳) ظُهَيْرُ بْنُ رَافِعٍ الْأَنْصَارِيُّ (۲۴) وَأَخُوهُ (۲۵) عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْعُودٍ الْهُذَلِيُّ (۲۶) عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ الزُّهْرِيُّ (۲۷) عُبَيْدَةُ بْنُ الْحَارِثِ الْقُرَشِيُّ (۲۸) عُبَادَةُ بْنُ الصَّامِتِ الْأَنْصَارِيُّ (۲۹) عَمْرُو بْنُ عَوْفٍ حَلِيفُ بَنِ عَامِرِ بْنِ لُؤَيٍّ (۳۰) عُقْبَةُ بْنُ عَمْرٍو الْأَنْصَارِيُّ (۳۱) عَامِرُ بْنُ رَبِيعَةَ الْعَنَزِيُّ (۳۲) عَاصِمُ بْنُ ثَابِتٍ الْأَنْصَارِيُّ (۳۳) عُوَيْمُ بْنُ سَاعِدَةَ الْأَنْصَارِيُّ (۳۴) عِتْبَانُ بْنُ مَالِكٍ الْأَنْصَارِيُّ (۳۵) قُدَامَةُ بْنُ مَظْعُونٍ (۳۶) قَتَادَةُ بْنُ النُّعْمَانِ الْأَنْصَارِيُّ (۳۷) مُعَاذُ بْنُ عَمْرِو بْنِ الْجَمُوحِ (۳۸)

(۱۱) حارثه بن ربيعه انصاري چي د بدر په غزا كي شهيد سو او اصلي نوم يې هارثه بن سراقه دی په دې جنګ کي شريک سوی نه وو بلکه ددښمنانو دحال پر نګراني مامور وو . (۱۲) خبيب بن عدي انصاري (۱۳) خنيس بن حذافه سهمي (۱۴) رفاعه بن رافع انصاري (۱۵) رفاعه بن عبدالمنذر ابولبابه انصاري (۱۶) زبير بن العوام قرشي (۱۷) زيد بن سهل ابوطلحه انصاري (۱۸) ابو زيد انصاري (۱۹) سعد بن مالک زهري (۲۰) سعد بن خوله قرشي (۲۱) سعيد بن زيد بن عمرو بن نفيل قرشي (۲۲) سهل بن حنيف انصاري (۲۳) ظهير بن رافع انصاري (۲۴) د ظهير بن رافع ورور (۲۵) عبدالله بن مسعود هدلي (۲۶) عبدالرحمن بن عوف زهري (۲۷) عبيده بن حارث قرشي (۲۸) عباده بن صامت انصاري (۲۹) عمرو بن عوف د بنو عامر لوی حليف (۳۰) عقبه بن عمرو انصاري (۳۱) عامر بن ربيعه عنزي (۳۲) عاصم بن ثابت انصاري (۳۳) عويم بن ساعده انصاري (۳۴) عتبان بن مالک انصاري (۳۵) قدامه بن مظعون (۳۶) قتاده بن نعمان انصاري (۳۷) معاذ بن عمرو بن الجموح (۳۸) معوذ بن عفراء (۳۹) د معوذ بن عفراء ورور (۴۰) مالک بن ربيعه (۴۱) ابو اسيد انصاري (۴۲)

مُعَوِّذُ بْنُ عَفْرَاءَ (۳۹) وَأَخُوهُ (۴۰) مَالِكُ بْنُ رَبِيعَةَ (۴۱) أَبُو أُسَيْدٍ الْأَنْصَارِيُّ (۴۲) مِسْطَحُ بْنُ أُثَاثَةَ بْنِ عَبَّادِ بْنِ الْمُطَّلِبِ بْنِ عَبْدِ مَنَافٍ (۴۳) مُرَارَةُ بْنُ الرَّبِيعِ الْأَنْصَارِيُّ (۴۴) مَعْنُ بْنُ عَدِيٍّ الْأَنْصَارِيُّ (۴۵) مِقْدَادُ بْنُ عَمْرٍو الْكِنْدِيُّ حَلِيفُ بَنِي زُهْرَةَ (۴۶) هِلَالُ بْنُ أُمَيَّةَ الْأَنْصَارِيُّ. رضي الله عنهم اجمعين

مسطح بن اثاثه بن عباده بن عبدالمطلب بن عبد مناف (۴۳) مرارة بن ربيع انصاري (۴۴) معن بن عدي انصاري ، (۴۵) مقداد بن عمرو كندي د بنو زهره دوست (۴۶) هلال بن اميه انصاري . رضي الله عنهم اجمعين .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳۲۶۱۷.

**تشريح**: ددغه مباركو نومونو د ذكر كولو پيل د رسول الله ﷺ په مبارك نامه سره يا خو د بركت تر لاسه كولو لپاره دى يا د رسول الله ﷺ نوم مبارك ذكر كول ځكه ضروري وو چي په دغه خاص فهرست كي د رسول الله ﷺ د مبارك نامه په نه لېدو سره دا خيال ونه وكړل سي چي رسول الله ﷺ د بدر په غزا كي په خپله ګډون نه وو كړى ، د رسول الله ﷺ څخه وروسته د خلفاء اربعه ﷺ نومونه دي، او بيا د پاته حضراتو نومونه د حروف تهجي (الفباء) په ترتيب سره ذكر سوي دي. په دغه باب كي د ذكر سوو بدري حضراتو مختصر حالات اجمالا وړاندي كيږي :

## النبي محمد بن عبدالله الهاشمي ﷺ

د رسول الله ﷺ زېږېدنه په مكه مكرمه كي د فيل په كال كي وسول، كله چي يې عمر مبارك څلوېښت كاله سو نو په پيغمبرۍ مبعوث سو يعني الله ﷺ د نبوت او رسالت په مرتبه ونازوى، د رسول الله ﷺ دنبوت زمانه ۲۳ كاله او ټول عمر يې ۶۳ كاله وو ، حضرت محمد ﷺ د ټولو رسولانو سردار او خاتم النبيين دى . صلى الله عليه وسلم وعلى آله واصحابه واتباعه واحزابه اجمعين .

## حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه

اسلامي نوم يې عبدالله دى، د پلار نوم يې عثمان وو ،ابوبكر يې كنيت او صديق يې لقب دى، نوموړي قريشي دى او د تميم بن مره په لړۍ كي پر مره باندي د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه نسب د رسول الله ﷺ د نسب سره يو ځاى كيږي، د جاهليت په زمانه كي د هغه نوم عبدرب الكعبة وو چي د هغه په بدلولو سره رسول الله ﷺ د عبدالله نوم پر كښېښود او يو نوم يې د عتيق هم وركړى وو ، همدا رنګه د هغه كنيت ابوبكر هم رسول الله ﷺ پر اېښى وو ، يو قول دادى چي عتيق د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه پخوانى نوم دى او ځينو حضراتو ليكلي دي چي حضرت

ابوبكر صديق رضي الله عنه ډېر ښکلی او شريف النسل وو ځکه هغه ته عتيق ويل کېدل، د عتق يوه معنی د کرم او جمال او خلاصون هم ده ، په روايتو کي راځي چي د هغه د مور کوچنيان ژوندي نه پاته کېدل نو کله چي حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه پيدا سو د هغه مور هغه واخيست او د کعبې شريفي مخته يې کښېښوی او دعاء يې وکړل چي اې خدايه! دغه کوچني د مرګ څخه ازاد کړې او ما ته يې را پرېږدې، د ټول امت محمدي پر دې اتفاق دی چي د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه لقب صديق دی ځکه چي هغه په بې خوفه کېدو سره د رسول الله ﷺ بېله تامل کولو تصديق وکړ او په هر حال کي يې صدق د ځان سره لازم وګڼی، د معراج په اړه هم هغه د کفارو په مقابله کي ثابت قدمي وښودل او د رسول الله ﷺ د قول يې سمدستي تصديق وکړ ، د هغه پلار عثمان رضي الله عنه په خپل کنيت ابوقحافه سره مشهور دی ، ابوقحافه د مکې د فتح په کال اسلام قبول کړ او په ۱۴ هجري کال کي د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د وفات څخه شپږ مياشتي او څو ورځي وروسته د ۹۷ کالو په عمر وفات سو ، د رسول الله ﷺ د وصال څخه وروسته په يوولسم هجري کال د ربيع الاول په مياشت کي د ټول امت په اتفاق سره حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه لومړی خليفه وټاکل سو او د ۲۲ او ۲۳ جمادي الثاني ۱۳م هجري کال په درميانه شپه کي د ۶۳ کالو په عمر وفات سو ، همدارنګه دوه کاله او درې مياشتي د هغه خلافت وو ، حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د درميانه قد خاوند ، ورين تندی او ښکلی سړی وو ، د هغه په باړخوګانو کي شنه رګونه څرګند وه ، رضي الله عنه .

## حضرت عمر فاروق رضي الله عنه

حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه د عدي بن کعب د اولاد څخه دی او قريشي دی ، ابوحفصه يې کنيت دی ، په پنځم نيکه کي د هغه او د رسول الله ﷺ د نسب لړۍ يو ځای کيږي ، د اسلام څخه مخکي هم د حضرت عمر رضي الله عنه شمېر د قريشو په سترو کسانو کي کيدی ، او په هغه زمانه کي د اهل مکې له خوا د سفارت او نمائندګۍ ذمه داري هغه ته سپارل سوې وه ، يعني کله چي به د مکې او قريشو خلګو د نورو قبيلو مشرانو ته يو پيغام لېږی نو د هغه لپاره به يې حضرت عمر رضي الله عنه ټاکی ، حضرت عمر رضي الله عنه ډېر سور او سپين وو ، مخ يې ډېر سپين او ځلانده ، سترګي يې سرې او قد يې دومره لوړ وو چي د خلګو په منځ کي به وددرېدی نو داسي به معلومېدی لکه پر اوښ چي سپور وي او نور خلک پر پښو ولاړ دي ، دوهب بن منبه روايت دی چي په تورات کي د حضرت عمر رضي الله عنه تعريف په دغه الفاظو کي بيان سوی دی : قرن حديد شديد امين ، يعني هغه د غره د څوکي په ډول لوړ او د رعب ډک دی ، تېز دی ، سخت او امانتداره دی ،

په اسلام کي د حضرت عمر رضي الله عنه لقب فاروق دی ځکه چي د هغه ذات د حق او باطل، د کفر او اسلام په منځ کي فرق کوونکی وو، الله جل جلاله د هغه د ایمان په ذریعه خپل اسلامي دین ته ستر عزت او شوکت ورکړ، د هغه بې پناه شخصیت د مېړاني او شجاعت معیار وو، د هغه هیبت دومره لوړ وو چي لوی مخالف طاقت به هم د هغه څخه په لړزه وو، هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د هجرت څخه مخکي د رسول الله صلی الله علیه وسلم په حکم د هجرت لاره اختیار کړې وه، نقل سوي دي چي کله حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د هجرت په اراده د مکې پرېښودل وغوښتل نو توره یې په غاړه کي واچول او د لیندۍ چله یې و خېژول او غشي یې په لاس کي کعبې ته راغلی چیري چي د قریشو ټول سرداران او د مکې د کفارو مشران د مخکي څخه موجود وه، فاروق اعظم رضي الله عنه د هغوی ټولو مخکي د کعبې شریفي طواف وکړ، دوه رکعته لمونځ یې وکړ او بیا د قریشو او د مکې د کفارو د مشرانو هري ډلي ته بېل بېل ورغلی او هغوی ته یې وویل: ستاسو پر مخونو دي لعنت اوریږي، په تاسو کي چي کوم څوک دا خوښوي چي د هغه مور دي ټول عمر پر هغه وژاړي، د هغه زوی دي یتیم سي او د هغه ښځه دي غم وکړي نو هغه دي په ما پسي راځي او د دغه شیلې یعني د مکې د ښار څخه د باندي دي زما سره یو ځای سي مگر په هغوی کي هیچا ته په فاروق اعظم رضي الله عنه پسي د تللو جرئت ونه سو، حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د اسلام دوهم خلیفه دی، د هغه د خلافت وخت لس نیم کاله دی او د مشهور قول مطابق د هغه عمر ۶۳ کاله وو، رضي الله عنه.

## حضرت عثمان غني رضي الله عنه

حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه قریشي دی، د هغه زېږېدنه د فیل په شپږم کال وسول، او هغه وخت یې اسلام قبول کړی ؤ کله چي رسول الله صلی الله علیه وسلم په دار ارقم کي هستوګن سوی نه وو، د هغه څخه مخکي حضرت ابوبکر صدیق، حضرت علي او حضرت زید بن حارثه رضي الله عنهم په اسلام مشرف سوي وه، هغه د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه په دعوت او ترغیب اسلام قبول کړی وو، او نقل سوي دي چي کله هغه اسلام قبول کړ او د هغه اکا حکم بن العاص بن امیه ته ددې خبر وسو نو هغه په تړلو سره بندي کړ او دا یې ورته وویل: تا د پلار او نیکه د دین په پرېښودو سره نوي دین اختیار کړی دی، قسم په خدای! تا به تر هغه وخته نه ایله کوم تر څو چي ته دغه نوي دین نه پرېږدې، حضرت عثمان رضي الله عنه جواب ورکړ: اې اکا! ته هم واوره چي زه دغه دین هیڅکله نه پرېږدم، څه چي ستا په زړه کي وي هغه وکړه، حکم بن العاص چي د حضرت عثمان رضي الله عنه دغه سختي او ټینګوالی ولیدی نو هغه یې پرېښود.

د رسول الله ﷺ لور، بي بي رقيه ﷺ د حضرت عثمان ﷺ په نکاح کي وه، د بدر د غزا په ورځو کي هغه سخته ناروغه وه، کله چي رسول الله ﷺ بدر ته روانيدی نو حضرت عثمان ﷺ ته يې حکم وکړ چي ته زموږ سره مه ځه بلکه په مدينه کي پاته سه او د رقيه ﷺ درملنه او پوښتنه کوه، نو حضرت عثمان ﷺ د بدر په غزا کي شريک نه سو او د رسول الله ﷺ په حکم کي په مدينه کي پاته سو، ځکه رسول الله ﷺ د بدر په غزا کي د غنيمت په مال کي د هغه برخه هم وټاکل او په دې اعتبار هغه په اصحاب بدر کي شمېرل کيږي، په هغه ناروغۍ کي بي بي رقيه ﷺ وفات سول، رسول الله ﷺ فرمايلي وه که چيري زما دريمه لور وای نو عثمان ﷺ ته به مي په نکاح ورکړې وای، د حضرت عثمان ﷺ څخه ماسوا بل هيڅوک داسي نه دی تېر سوی دی چي د هغه په نکاح کي د يوه پيغمبر دوې لوڼي راغلي وي او په دې اعتبار هغه ته ذوالنورين ويل کيږي.

د حضرت عثمان ﷺ قد ميانه، ورين تندی، او د سور او سپين رنګ څښتن وو، د هغه پر مخ د دانو نښي وې، هغه سر ترپايه ډېر ښکلی او پر جمال وو، نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ خپلي لور ام کلثوم ﷺ ته ويلي وه: ما د هغه سړي سره ستا نکاح وکړل چي ستا د نيکه حضرت ابراهيم عليه السلام او ستا د پلار محمد ﷺ سره ډېر زيات مشابهت لري، حضرت عثمان ﷺ د شرم او حياء مثال وو، په روايتو کي راځي چي په کور کي د ننه دروازه به يې بنده ول او غسل به يې کوی، هيڅ امکان نه وو چي يو چا يې نس او ملا هم لوڅ ليدلي وای، دا هم منقول دي چي حضرت عثمان ﷺ د ډېري حياء څخه خپله ملا سيده کولای نه سول.

حضرت عثمان ﷺ د اسلام دريم خليفه دی، په ۳۵ هجري کال کي د ايام تشريق په دوران کي شهيد سو، د هغه خلافت دیارلس کاله وو، عمر يې ۸۲ کاله وو، ځينو حضراتو ۸۳ او ځينو ۸۶ کاله ليکلي دي، رضي الله عنه.

## حضرت علي ﷺ

حضرت علي ﷺ بن ابي طالب د رسول الله ﷺ د اکا زوی او نه يوازي په دې اعتبار د رسول الله ﷺ ورور دی بلکه د رسول الله ﷺ ورور ګلوي هم د هغه سره سوې وه، د رسول الله ﷺ د خوږې لوري بي بي فاطمې ﷺ خاوند دی، د حسن او حسين ﷺ پلار دی، او لومړنی سړی دی چي د پلار له خوا هم هاشمي دی او د مور له خوا هم، حضرت علي ﷺ ته د قديم الاسلام کېدو شرف هم حاصل دی او تر ټولو مخکي چا چي اسلام قبول کړ هغه حضرت علي ﷺ دی، علماؤ ليکلي دي چي د سه شنبې په ورځ رسول الله ﷺ په نبوت مشرف سو او په بله ورځ (يعني

دچارشنبې په ورځ) حضرت علي رضي الله عنه اسلام قبول کړ، هغه وخت یې عمر درې کاله وو او د ځینو روایتو مطابق اووه کاله وو، په اسلام کي د حضرت علي رضي الله عنه ډېر زیات لقبونه دي، چي د هغو څخه: امین، شریف، هادي، مهدي، یعسوب المسلمین، ابوالریحانین، او ابوتراب دي، حضرت علي رضي الله عنه د میانه قد خاوند، غنم رنګه ته مائل سور وو، پراخه زنه، مخ یې داسي روښان او ځلانده وو لکه د څوارلسمي سپوږمۍ، سترګي یې غټي غټي او ډېره توره ږېره یې وه، نس یې راوتلی، بدن یې دروند دی، سیدنا علي رضي الله عنه په علم او معرفت، پوهي، زهد، تقوا او سخي النفس وو، د قوي زړه خاوند او ډېر زړه ور انسان وو، منصور هم وو، یعني د الله جل جلاله مرسته به هغه ته تر لاسه کېدل او په هر ډګر کي به کامیاب کیدی، د حضرت ابن عباس رضي الله عنه روایت دی چي د بدر د غزا په ورځ حضرت علي رضي الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نېزه اخیستې وه، او په یوه روایت کي راغلي دي چي حضرت علي رضي الله عنه د بدر په غزا کي او نورو غزاوو کي هم د رسول الله صلی الله علیه وسلم نېزه اخیستې وه.

سیدنا علي رضي الله عنه څلورم خلیفه ارشد دی، د هغه دخلافت زمانه پنځه کاله وه او په ۴۱ م هجري کال کي د رمضان المبارک په اووه لسمه نیټه د جمعې په شپه د سهار په وخت کي شهید سو، د صحیح او مختار قول مطابق دهغه عمر ۶۳ کاله وو. رضي الله عنه.

## حضرت ایاس بن بکیر رضي الله عنه

د نوموړي نوم ایاس دی او د بکیر زوی دی، په ځینو نسخو کي بکیر په لام سره یعني البکیر هم ذکر سوی دی او ځینو حضراتو د بخاري د روایت په حواله سره دغه لفظ بکیر هم نقل کړی دی، په هر حال د حضرت ایاس رضي الله عنه شمېر په لومړنیو مهاجرینو کي کیږي، د بدر په غزا کي شریک وو او بیا وروسته په نورو غزاوو کي هم شریک سوی دی، هغه او دهغه ورور عامر بن بکیر رضي الله عنه په مکه کي هغه وخت اسلام قبول کړ کله چي رسول الله صلی الله علیه وسلم په دار ارقم کي هستوګن وو. په ۳۴ م هجري کال کي وفات سو، رضي الله عنه.

## حضرت بلال بن رباح رضي الله عنه

دغه مشهور صحابي حضرت بلال رضي الله عنه دی چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم مؤذن وو، دده د پلار نوم رباح او دمور نوم یې طمامه وو، دحضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه ازاد سوی غلام دی، کنیت یې ابوعبدالرحمن دی، ځینو حضراتو ابوعبدالله او ځینو ابوعبدالکریم او ځینو ابوعامر کنیت هم لیکلی دی، حضرت بلال رضي الله عنه قدیم الاسلام دی، تر ټولو مخکي هغه په مکه کي د اسلام اظهار

کړی وو چي د هغه په سبب هغه ته د الله ﷻ د دین په لاره کي ډېر تکلیفونه ورپېښ سول، په هغه زمانه کي حضرت بلال رضي الله عنه د دین د یو دښمن امیه بن خلف حجمي غلام وو، امیه هغه ته ډېر سخت تکلیفونه رسول د اوسپني زغره به یې په هغه واغوستل او دلمر په تیزي ګرمي کي به یې وغورځوی، په لرګي به یې وهی، په پای کي حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه هغه دد غه ظالم څخه په ډېره ګرانه بیه رانیوی او ازاد یې کړ، او بیا د بدر په غزا کي هغه امیه د حضرت بلال رضي الله عنه په لاس دوږخ ته ورسېدی، د مکې د فتح په وخت کي رسول الله ﷺ، بلال رضي الله عنه ته حکم کړی وو چي په کعبه شریفه کي اذان وکړي، د حضرت بلال رضي الله عنه فضائل او مناقب بې شمېره دي، د هغه د فضیلت او بزرګي د اظهار لپاره دومره کافي دي چي رسول الله ﷺ فرمایلي وه: سابقین څلور دي: ۱: زه سابق عرب یم، ۲: بلال رضي الله عنه سابق حبشي دی، ۳: صهیب رضي الله عنه سابق رومي دی، ۴: او سلمان رضي الله عنه سابق فارسي دی، د حضرت بلال رضي الله عنه رنګ غنمه رنګه وو، قد یې اوږد او پر بدن باندي یې وېښتان ډېر زیات وه، هغه په دمشق کي په ۲۰ م هجري کال وفات سو، او یو قول دادی چي هغه په ۱۸ م هجري کال کي وفات سوی دی، د وفات پر وخت تقریبا د شپېتو کالو و. ځینو حضراتو د هغه عمر اوویا کاله لیکلی دی. رضي الله عنه.

## حضرت حمزه بن عبدالمطلب رضي الله عنه

حضرت حمزه رضي الله عنه بن عبدالمطلب هاشمي د رسول الله ﷺ اکا دی، نوموړي ته د سیدالشهداء لقب ورکړل سوی وو، ځینو د اسد الله لقب هم لیکلی دی، د نوموړي د مور نوم هاله بنت وهب دی چي د رسول الله ﷺ د مور بي بي آمنې خور وه، په دې اعتبار حضرت حمزه رضي الله عنه د رسول الله ﷺ د خاله زوی هم دی،

سیدالشهداء حضرت حمزه رضي الله عنه ډېر شجاع، قوي او زړه ور انسان وو، د هغه د شجاعت او میړاني په قصو اسلامي تاریخ او د سیرت کتابونه ډک دي، په یو حدیث کي راغلي دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل: ما ولېدل چي ملائکي حمزه بن عبدالمطلب او حنظله بن راهب ته غسل ورکوي او دا هم په حدیث کي راغلي دي چي حمزه رضي الله عنه د الله ﷻ په نزد پر اووم آسمان باندي داسي لیکل سوی دی: حمزه بن عبدالمطلب اسدالله واسد رسوله، یعني حمزه د الله ﷻ زمری او د هغه د رسول زمری دی. رضي الله عنه.

## حضرت حاطب رضي الله عنه بن ابي بلتعه

د نوموړي کنیت ابو عبدالله دی. د بدر په غزا کي یې ګډون کړی دی او د خندق په غزا کي هم، او تر دې وروسته په نورو غزاوو کي یې هم ګډون کړی دی، د نوموړي څخه یو خطا سوې

وه چي هغه د خپل ذاتي گټي لپاره د مدينې منورې څخه يو پټ ليک د مکې د قريشو په نام استولی وو، په هغه کي د رسول الله ﷺ د يو جنگي فلان انکشاف وو، او بيا هغه ليک په لار کي ونيول سو او رسول الله ﷺ ته راوړل سو، په دې اړه تفصيل مخکي تېر سوی دی، نوموړي په ۳۰ م هجري کال کي د ۶۵ کالو په عمر وفات وسو .

## حضرت ابوحذيفه بن عتبه رضي الله عنه

حضرت ابوحذيفه رضي الله عنه بن عتبه بن ربيعه قريشي دی، د نوموړي د اصل نامه په اړه اختلاف دی . مشهور قول دا دی چي د هغه نوم هشام وو، د پلار نوم يې عتبه چي د ربيعه بن عبدالشمس زوی وو . حضرت ابوحذيفه رضي الله عنه د سترو صحابه کرامو څخه دی ، د نوموړي شمېر په لومړنيو مهاجرينو کي کېږي ، نوموړی د هغه مسلمانانو څخه دی چي هغوی ته د دوو قبلو په لور د مخ کولو سعادت په برخه سوی دی . حضرت ابوحذيفه رضي الله عنه دوه هجرتونه کړي دي يعني حبشې ته او بيا مدينې ته، نوموړي په مکه کي هغه وخت اسلام قبول کړ کله چي رسول الله ﷺ په دار ارقم کي هستوګن سوی نه وو، د بدر په غزا کي د گډون کولو سعادت يې په برخه دی او د هغه څخه وروسته په نورو غزاوو کي هم، د يمامه په جگړه کي په شهادت ورسېدی او هغه وخت يې عمر ۵۳ کاله يا ۵۴ کاله وو . رضي الله عنه .

## حارثه بن ربيع الانصاري رضي الله عنه

رُبيع (يا رَبيع) په اصل کي د حضرت حارثه رضي الله عنه د مور نوم دی، د پلار نوم يې سراقه وو ، حضرت حارثه رضي الله عنه د بدر په غزا کي شهيد سوی دی، که څه هم د جنگ په ميدان کي نه وو بلکه په هغه ډله کي شامل وو چي د دښمنانو پر نقل وحرکت باندي د نظر ساتلو لپاره د جنگ د ميدان څخه ليري پر يو لوړ ځای مامور وه، منقول دي چي د بدر په ورځ رسول الله ﷺ څو صحابه کرام د جنگ د ميدان څخه بهر پر يو لوړ ځای باندي درولي وه چي د دښمنانو پر حرکت باندي نظر وساتي او څه چي ويني په راتللو سره د هغه خبر ورکړي، په هغه صحابه کرامو کي حضرت حارثه رضي الله عنه هم وو چي ځوان او ډېر چالاکه وو، نوموړی د جنگ په وخت کي د خپلو ملګرو سره يو ځای ولاړ وو چي ناڅاپه يو غشی راغلی او دهغه په حلق کي ولګېدی او د هغه زخم څخه شهيد سو، وروسته د هغه مور د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضره سول او عرض يې وکړ چي اې دالله رسوله! تاسو ته معلومه ده چي زما په نظر کي د حارثه څه حيثيت وو، زما ورسره څومره مينه وه، ما ته وښياست چي هغه جنت ته تللی دی که دوږخ ته؟ که جنت ته تللي وي نو صبر به

کوم او که دوږخ ته تللی وي نو بیا څو مره ژړا چي کولای سم هغه به وکړم، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: اې د حارثه مور! هلته یو جنت دی بلکه څو جنتونه دي او ستا زوی په فردوس اعلی کي دی، د حارثه رضي الله عنه مور د دې په اورېدو سره وویل: زه به پر هغه صبر کوم.

## حضرت خبیب بن عدي انصاري رضي الله عنه

حضرت خبیب رضي الله عنه د بدر په غزا کي ګډون کړی دی، بیا په دریم هجري کال کي د رجیع غزا ته ولاړی او هلته مشرکان بندي کړ، بیا د حارث بن عامر زامنو هغه رانیوی، حارث بن عامر د مکې هغه مشرک وو چي حضرت خبیب رضي الله عنه د بدر په غزا کي دوږخ ته رسولی وو، د هغه د بدلې اخیستلو لپاره د حارث زامنو هغه رانیوی، اول یې بندي کړ او بیا یې په تنعیم نامي ځای کي په دار کړ او شهید یې کړ، حضرت خبیب رضي الله عنه لومړنی مسلمان دی چي په دار سو او هغه په مقتل کي د قتل پر وخت د دوو رکعتو لمونځ کولو طریقه جاري کړل، په یوه روایت کي راغلي دي چي کله هغه دار ته وخېژول سو نو دغه الفاظ د هغه پر ژبه وه: اې خدایه! دلته زه داسي څوک نه وینم چي پیغمبر ﷺ ته زما سلام ورسوي، اې خدایه! ته زما سلام پیغمبر ﷺ ته ورسوې، نقل سوي دي چي حضرت جبرائیل علیه السلام رسول الله ﷺ ته راغلی او دخبیب رضي الله عنه سلام یې رسول الله ﷺ ته ورسوی. رضي الله عنه.

## حضرت خنیس بن خدافه سهمي رضي الله عنه

حضرت خنیس بن خدافه سهمي قریشي دی او دمهاجرینو څخه دی، نوموړي حبشې ته هجرت کړی وو او د هغه ځای څخه په راتلو سره د بدر په غزا کي شریک سوی وو، بیا د احد په غزا کي د ګډون لپاره د هغه ځایه راغلی او دهغه وروسته حبشې د تلو پر ځای مدینې منورې ته راغلی، په دغه غزا کي زخمي سو او د همدغه زخم څخه وفات (شهید) سو، د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه لور بي بي حفصه رضي الله عنها مخکي دخنیس رضي الله عنه په نکاح کي وه د هغه د شهادت څخه وروسته د رسول الله ﷺ په زوجیت کي راغلل.

## حضرت رفاعه بن رافع انصاري رضي الله عنه

حضرت رفاعه رضي الله عنه هم د اصحاب بدر څخه یو دی، دده تعلق د مدینې منورې دانصارو څخه دی، د نوموړي پلار د قبیلې او قوم مشر وو، حضرت رفاعه رضي الله عنه د بدر څخه وروسته په نورو ټولو غزاوو کي د نبي کریم ﷺ سره ګډون وکړ، په جنګ جمل او جنګ صفین کي د حضرت علي رضي الله عنه له خوا وو، او د امارت معاویه په لومړنیو ورځو کي وفات سو. رضي الله عنه.

## حضرت رفاعه بن عبدالمنذر ابولبابه انصاري رضي الله عنه

حضرت رفاعه بن عبدالمنذر ابولبابه رضي الله عنه هم د مدينې منورې د انصارو څخه دی او د اوس قبيلې سره يې تعلق وو، نوموړی د مشرانو څخه يو مشر وو، يو قول دادی چې نوموړي د بدر په غزا کې ګډون نه وو کړی بلکه رسول الله ﷺ په مدينه کې خپله خليفه ټاکلی وو او بيا د بدر په غنيمت کې د هغه برخه هم ورکړل سوې وه لکه څرنګه چې د حضرت عثمان رضي الله عنه برخه ورکړل سوې وه، د حضرت علي رضي الله عنه د خلافت په زمانه کې وفات سو.

د حضرت رفاعه بن منذر رضي الله عنه د هغه قصې د ذکر کولو دلته ځای نسته چې د مدينې د يهوديانو بنو نضير پر خلاف رسول الله ﷺ د کاروايي کولو په موقع د حضرت رفاعه رضي الله عنه د کوتاهي څخه د توبې تر قبلېدو پوري خپل ځان د مسجد نبوي په يوې ستنې پوري تړلی وو، وروسته د مسجد نبوي هغه ستن د حضرت رفاعه رضي الله عنه په کنيت سره ابولبابه ورته ويل کېدل.

## حضرت زبير بن العوام رضي الله عنه

حضرت زبير بن العوام رضي الله عنه د عشره مبشره څخه دی، په څلورم نيکه، قصی ته په رسېدو سره د رسول الله ﷺ سره په نسب کې يو ځا يکيږي، د هغه مور بي بي صفيه د عبدالمطلب لور او د رسول الله ﷺ عمه ده، د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه لور بي بي اسماء د هغه په زوجيت کې وه، هغه او د هغه مور بي بي صفيې يو ځای د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په لاس اسلام قبول کړی وو، هغه وخت يې عمر شپاړس کاله او د يوه روايت مطابق پنځلس کاله وو، کله چې هغه اسلام قبول کړ نو د هغه اکا هغه ته سخت تکليفونه ورکول تر دې چې هغه يې په دود کې بند کړ او ورته ويل يې تر څو چې ته اسلام نه پرېږدې همداسې به پر تا ظلم کوم، مګر د هغه په استقامت کې د ذرې په اندازه لړزه نه راغلل، او هري سختۍ د هغه قدم د اسلام په لاره کې زيات ټينګ کړی، د هغه لومړی هجرت حبشې ته وو، نوموړي د رسول الله ﷺ د بدر په غزا او نورو غزاوو کې ګډون کړی دی، د اُحد په غزا کې کله چې د ښمن د څلورو خواوو حمله وکړل او اسلامي لښکر د خپرېدو په حال کې وو، حضرت زبير رضي الله عنه په ډېره مېړانه د رسول الله ﷺ سره ټينګ ولاړ وو، نقل سوي دي چې په اسلام کې تر ټولو مخکې چې کوم سړی د الله جل جلاله په لاره کې توره پورته کړل هغه حضرت زبير بن عوام رضي الله عنه دی،

د حضرت زبير رضي الله عنه رنګ سور او سپين، مخ يې ځلانده او قد يې اوږد وو، پر بدن يې لږ غوښه وه، وېښتان يې زيات وه او باړخوګان يې سپک وه، حضرت زبير رضي الله عنه په ۳۶ م هجري کال کې د جنګ جمل په دوران کې شهيد سو، هغه وخت يې عمر ۶۴ کاله وو، او په دارالسباع کې

دفن کړل سو، بیا بصرې ته راوړل سو او هغه یې آخري آرام ګاه وګرځېدل، منقول دي چي حضرت زبیر رضی الله عنه د لمانځه په حالت کي وو چي د حضرت علي رضی الله عنه د لښکر یو سړي ابن جرموز پر هغه حمله وکړل او شهید یې کړ، وروسته ابن جرموز حضرت علي رضی الله عنه ته راغلی او هغه ته یې وویل: تاسو ته دي زیری وي چي ما زبیر رضی الله عنه قتل کړی دی، سیدنا علي رضی الله عنه جواب ورکړ چي ته هم دا زیری واوره چي دوږخ ستا انتظار کوي.

## حضرت زید بن سهل رضی الله عنه

حضرت زید بن سهل رضی الله عنه انصاري دی، د ابو طلحه په کنیت مشهور دی، نوموړی په هغه اوویا کسانو کي وو چي د هجرت نبوي څخه مخکي د مدینې څخه مکې ته راغلی وه او په عقبه کي د رسول الله ﷺ په زیارت او بیعت مشرف سوی وه.

نوموړي د بدر په غزا کي او دهغه څخه وروسته په نورو غزاوو کي هم ګډون کړی دی، حضرت ابو طلحه زید بن سهل رضی الله عنه د بي بي ام سلیم رضی الله عنها خاوند وو چي د حضرت انس بن مالک رضی الله عنه مور ده، د هغه شمیر د انصارو د سترو کسانو څخه کیږي، په غشي ویشتلو کي ډېر مشهور وو، رسول الله ﷺ د هغه په اړه فرمایلي وه چي یوازي د ابو طلحه آواز په لښکر کي د یوې ډلي تر آواز غوره دی، په یوه روایت کي د سلو کسانو تر آواز د غوره کېدو الفاظ دي، په یو بل روایت کي دي چي د زرو کسانو تر آواز غوره دی، رسول الله ﷺ د هغه وروړګلوي د حضرت ابو عبیده رضی الله عنه سره کړې وه، نوموړی په ۳۱ م هجري کال کي د ۷۰ کالو په عمر وفات سو. رضی الله عنه.

## حضرت ابو زید انصاري رضی الله عنه

حضرت ابو زید انصاري رضی الله عنه د هغه صحابه کرامو څخه دی چي هغوی د رسول الله ﷺ په زمانه کي قرآن کریم جمع کړی وو، نوموړی د حضرت انس رضی الله عنه اکا دی، د بدر په غزا کي یې ګډون کړی دی، د سعد قاري په نامه سره زیات مشهور وو، د نوموړي د اصلي نامه په اړه اختلاف دی، ځینو سعید بن عمیر لیکلی دی او ځینو قیس بن سکن. رضی الله عنه.

## حضرت سعد بن مالک زهري رضی الله عنه

دغه مشهور صحابي حضرت سعد بن ابي وقاص رضی الله عنه دی چي د عشره مبشره څخه دی، اصلي نوم یې مالک وو ځکه هغه ته سعد بن مالک هم ویل کیږي، حضرت سعد زهري رضی الله عنه قریشي دی او د اسلام په پیل کي یې د حضرت ابو بکر صدیق رضی الله عنه په لاس اسلام قبول کړی وو، او هغه وخت یې عمر اووه لس کاله او د یوه روایت مطابق نولس کاله وو، خپله د حضرت سعد

ﷺ بيان دی چي زه دريم مسلمان يم، يعني زما څخه مخکي يوازي دوه کسان مسلمانان سوي وه او زه هغه سړی يم چي د الله ﷻ په لاره کي يې تر ټولو مخکي د غشي ويشتل وکړل، نوموړي د بدر او په نورو ټولو غزاوو کي د رسول الله ﷺ ګډون کړی دی، د احد په ورځ رسول الله ﷺ هغه ته د خپل مور او پلار په قرباني کولو سره ويلي وه چي غشي وله پر تا دي دي زما مور او پلار قربان وي، نوموړي غنم رنګه، قد يې کوچنی، غټ بدن، غټ سر، سختي ګوتي، پړی پزه او پر بدن يې وېښتان زيات وه، دا د حضرت سعد ﷺ حال دی، د معاويه ﷺ په حکومت کي په ۵۵م يا ۵۸ م کال کي په هغه محل کي وو چي هغه د مدينې څخه پر لس ميله فاصله باندي په وادي عقيق کي جوړ کړی وو، د هغه ځای څخه د هغه مړی مدينې ته راوړل سو او په بقيع کي دفن کړل سو، او د وفات په وخت کي تقريبا د اوويا کاله وو، او د يوه روايت مطابق د ۸۲ کالو وو، په عشره مبشره کي تر ټولو وروسته وفات سو.

حقيقت دادی چي د اسلام په فتوحاتو کي د حضرت سعد ﷺ د جنګي مهارت او ستري ميړاني ډېره لويه برخه ده، د عجمو ډېر ښارونه او لوی لوی سيمي د هغه په لاس فتح سوي دي، د ايران او کسری ستر طاقتونه د حضرت سعد بن ابي وقاص ﷺ په مشری کي ټوټې ټوټې سوي دي، ددې څخه ماسوا هم د هغه فضائل او مناقب کم نه دي. رضي الله.

## حضرت سعد بن خوله ﷺ

د حضرت سعد بن خوله ﷺ تعلق د مکې د قريشو سره دی، د بنو عامر بن لوی څخه دی، مګر يو قول دادی چي د بني عامر بن لوی سره د هغه تعلق نسته، بلکه د هغوی حليف وو، په هغه مسلمانانو کي شامل وو چي هغوی دوه واره د مکې څخه حبشې ته هجرت کړی وو، د بدر په غزا کي يې ګډون کړی دی او د حجة الوداع په زمانه کي په مکه کي وفات سو. رضي الله عنه

## حضرت سعيد بن زيد ﷺ

حضرت سعيد بن زيد بن نفيل قريشي عدوي دی، د عشره مبشره څخه دی او حضرت عمر فاروق ﷺ اخښی دی، قديم الاسلام دی يعني په مکه کي يې هغه وخت اسلام قبول کړ کله چي رسول الله ﷺ دار ارقم ته تللی نه وو، نوموړي په ټولو غزاوو کي د رسول الله ﷺ سره ګډون کړی وو، د بدر په غزا کي يې د طلحه بن زبير ﷺ سره د قريشو د قافلې خبر راوړلو لپاره تللی وو، حضرت سعيد بن زيد ﷺ غنم رنګه او جګ قد يې وو، په يوولسم نيکه کي د کعب بن لوی سره د رسول الله ﷺ د نسب لړی يو ځای کيږي، کله چي يې اسلام قبول کړ هغه وخت يې عمر شل کاله وو، د خپله د هغه بيان دی چي کله عمر ﷺ زما د اسلام په مشرف کېدو خبر سو نو زه

يې وتړلم ، د هغه ښځه فاطمه بنت خطاب هم د خپل ورور حضرت عمر رضي الله عنه څخه مخکي په اسلام مشرفه سوې وه، حضرت سعيد رضي الله عنه په ۵۱ يا ۵۲ هجري کال کي په وادي عقيق کي وفات سو د نوموړي عمر تقريبا اويا کاله وو، د هغه پلار زيد بن نفيل د جاهليت په زمانه کي د حضرت ابراهيم عليه السلام پر دين ولاړ وو او د مشرکانو د حلال سوو شيانو څخه يې پرهيز کوی، نوموړي د بعثت څخه مخکي د رسول الله ﷺ ليدنه کړې وه هغه ته مؤحدة الجاهلية ويل کيږي .

## حضرت سهل بن حنيف رضي الله عنه

حضرت سهل بن حنيف رضي الله عنه انصاري دی، د بدر، أحد او نورو غزاوو کي يې ګډون کړی دی او د أحد په ورځ د رسول الله ﷺ سره د جنګ په ميدان کي ثابت قدمه پاته سو، د رسول الله ﷺ څخه وروسته د حضرت علي رضي الله عنه په خاصو ملګرو کي شامل سو، حضرت علي رضي الله عنه په مدينه کي خپل نائب ټاکلی وو، بيا د فارس والي سو، په کوفه کي په ۳۸م هجري کال وفات سو، سيدنا علي رضي الله عنه د هغه د جنازې لمونځ ورکړ . رضي الله عنهما .

## حضرت ظهير بن رافع رضي الله عنه او دهغه ورور رضي الله عنه

د ظهير بن رافع رضي الله عنه (يا ظُهير) د پلار نوم رافع وو، د مدينې د انصارو څخه دی، د هغه د ورور نوم خديج بن رافع رضي الله عنه دی، او ملا علي قاري رحمة الله عليه ورته ظُهير ويلي دي، دواړه حضرات بدري دي، دواړو د بدر او نورو غزاوو کي ګډون کړی دی .

## حضرت عبدالله بن مسعود هزلي رضي الله عنه

هذلي يوې قبيلې هزيل ته نسبت دی ، د غير قريشي قبيلو څخه دی، د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه کنيت ابو عبدالرحمن وو چي صاحب السواد والسواک په لقب سره مشهور وو، په مدينه منوره کي په ۳۲م کال وفات سو چي تقريبا شپېته کاله عمر يې و .

## حضرت عبدالرحمن بن عوف زهري رضي الله عنه

حضرت عبدالرحمن بن عوف زهري رضي الله عنه د زهره بن کلاب د اولاد څخه دی،پر کلاب بن مره باندي د هغه او.د رسول الله ﷺ د نسب لړۍ يو ځای کيږي، د جاهليت په زمانه کي د هغه نوم عبدالکعبه وو ، د هغه زيږېدنه د فيل د کال په لسم کال سوې ده ، د اسلام په پيل کي د ابوبکرصديق رضي الله عنه په لاس مسلمان سوی وو او د هغه مور هم مسلمانه سوې وه، حبشې ته يې دوه واره هجرت وکړ ، د بدر په غزا او نورو غزاوو کي يې ګډون کړی دی، د احد په ورځ د جنګ په ميدان کي په ثابت قدمۍ سره جګړه کوونکی وو، په هغه ورځ يې تر شلو زيات زخمونه

خوړلي وه، په يو سفر كي رسول الله ﷺ په هغه پسي لمونځ كړى وو، حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه د تبوك په غزا كي ګډون ونه كړ او د هغه كمي يې داسي پوره كړې وه چي څلور زره ديناره يې د الله جل جلاله په لاره كي صدقه كړل، بيا څلور زره ديناره يې نور د الله جل جلاله په لاره كي وركړل، پنځه سوه اسونه يې د مجاهدينو لپاره وړاندي كړل او همدارنګه پنځه سوه اوښان يې وركړل، د رسول الله ﷺ د وصال څخه وروسته د ازواج مطهراتو د خبر ايستني او دهغوى د مصارفو ذمه داري حضرت عبدالرحمن رضي الله عنه پر خپله غاړه اخيستې وه، حقيقت دادى چي الله جل جلاله حضرت عبدالرحمن رضي الله عنه ته ډېر مال وركړى وو او د في سبيل الله مصرف كولو حوصله يې هم ډېر زياته وركړې وه، تجارت د هغه كار وو او زيات مال هغه ته په تجارت كي تر لاسه سوى وو، نقل سوي دي چي كله په هجرت كولو سره مدينې ته راغلى نو بالكل مفلس او غريب وو، او بيا په دغه پاك ښار كي هغه ته خير او بركت تر لاسه كېدل پيل سول، نو الله جل جلاله د وهم او ګمان څخه هم زيات ونازوى، ويل كيږي چي كله وفات سو نو څلور ښځي يې وې او هغوى ته د ميراث د اتمي برخي پر څلورمي باندي صلح كول پرېوتل او په دغه صورت كي هم دهغوى په برخه كي اتيا زره درهم يا ديناره راغلل، د حضرت عبدالرحمن رضي الله عنه ميراث د يوزر او شپېته كسانو په منځ كي وويشل سو او هر يو ته اتيا اتيا زره درهم حاصل سول،

دا هم منقول دي چي هغه د خپل ميراث څخه هري بدري صحابي ته څلور څلور سوه دينار وركولو وصيت كړى وو چي پوره كړل سو، روايت دى چي يوه ورځ ام المؤمنين بي بي عائشې رضي الله عنها حضرت عبدالرحمن ته بيان وكړ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا واورېدل چي ما عبدالرحمن جنت ته تلونكى وليدى او هغه جنت ته داسي ننوځي لكه كوچنى چي پر كوناټو يا په ځكېدو سره ځي، په كومه ورځ چي بي بي عائشې رضي الله عنها، عبدالرحمن ته دغه حديث بيان كړ په هغه ورځ د هغه يوه تجارتي قافله چي پر اووه سوه اوښانو باندي تجارتي مال د شام څخه مدينې ته راورسېدى هغه د خپل ځان په اړه په جنت كي د داخلېدو دغه زيري په اورېدو سره په شكر كي هغه ټول اوښان د مال سره د هغوى د پالان او كجاوو سره د الله جل جلاله په لاره كي صدقه كړل، روايت دى چي د وفات پر وخت حضرت عبدالرحمن رضي الله عنه بې هوشه سوى وو، كله چي په هوش كي راغلى نو هغه ووېل: ما ته دوې ملائكي راغلې وې چي ډېري سختي معلومېدى، هغوى ما ته په اشاره كولو سره په خپلو كي ووېل: موږ دغه سړى د حاكم آمين عزيز په وړاندي بيايو، په دغه وخت كي دوې ملائكي نوري راغلې او هغوى د مخكنيو ملائكو څخه پوښتنه وكړل چي دغه سړى چيري بيايأست، هغوى ووېل: د حاكم آمين عزيز په حضور كي، نو دواړو

ملائکو وویل: دا خو هغه سړی دی چي په هغه کي سعادت او نیکبختی هغه وخت ځای نیولی دی کله چي دی د مور په نس کي وو، د حضرت عبدالرحمن رضی الله عنه علمي حیثیت هم ډېر لوړ وو، فقهي تبحر او دیني احکامو او مسائلو باندي د عبور درلودو په سبب په صحابه کرامو کي ډېر د لوړي درجې وو، د حضرت ابوبکر صدیق، حضرت عمر او حضرت عثمان رضی الله عنهم د خلافت په زمانو کيُ د فتوا ورکولو ذمه داري ده ته سپارل سوې وه.

د حضرت عبدالرحمن رضی الله عنه رنګ سور او سپین وو، قد يې اوږد وو، مخ يې کوچنی وو او پښه يې د غشي لګېدو په وجه ماته سوې وه، نوموړی د حضرت عثمان رضی الله عنه د خلافت په زمانه کي وفات سو.

## حضرت عبیده بن حارث رضی الله عنه

نوموړی قریشي دی، پلار يې حارث د مطلب بن عبدمناف زوی وو، او کنیت يې ابوالحارث وو، ځینو حضراتو ابومعاویه کنیت لیکلی دی، د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه لس کاله مشر وو، هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم دار ارقم ته د راتلو څخه مخکي اسلام قبول کړی وو او دهغه دوه وروڼه چي دهغوی نومونه طفیل او حصین وو، یو ځای په هجرت کولو سره مدینې ته رسېدلي وه، د بدر په غزا کي د هغه مقابله ولید بن عتبه سره سوې وه او د دواړو په منځ کي دوه دوه واري وسول، په دغه مقابله کي حضرت عبید رضی الله عنه شهید سو مګر ولید هم په هغه ورځ ووژل سو.

## حضرت عباده بن صامت رضی الله عنه

د مدینې د انصارو څخه دی، په مشرانو کي شمېرل کیدی، په عقبه اولی، عقبه ثانیه او عقبه ثالثه درو سره کي موجود وو، نوموړی د بدر او په نورو غزاوو کي ګډون وکړ، نوموړی د هغه صحابه کرامو څخه دی چي هغوی د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کي قرآن جمع کړی وو، قد يې جګ او ښکلی وو، حضرت عمر رضی الله عنه د خپل خلافت په زمانه کي د شام قاضي او معلم ټاکلی وو. په حمص کي د هستوګني په اختیارولو سره يې خپل فرائض سرته رسول، وروسته فلسطین ته تللی ؤو او هلته په رمله کي وفات سو، ځینو حضراتو لیکلي دي چي په بیت المقدس کي په ۳۴ هجري کال وفات سوی دی، او هغه وخت يې عمر ۷۲ کاله وو، په یوه روایت کي دي چي حضرت عباده رضی الله عنه د حضرت معاویه رضی الله عنه تر زمانې پوري ژوندی وو.

## حضرت عمرو بن عوف رضی الله عنه

نوموړی انصاري دی، د بنو عامر لوی حلیف وو، او د مدینې هستوګنه يې اختیار کړې وه، هغه د بدر په غزا کي ګډون وکړ، د امیر معاویه رضی الله عنه د امارت په پای کي په مدینه کي وفات

سو او بېله اولاده له دنيا څخه رخصت سو ، هغه ډير مخكي اسلام قبول كړى وو ځكه هغه ته هم قديم الاسلام ويل كيږي، نوموړى د هغه مقدسو كسانو څخه دى چي د هغوى په حق كي الله ﷻ په قرآن كريم كي فرمايلي دي: ترى اعينهم تفيض من الدمع، هغه د رسول الله ﷺ څخه هغه حديث روايت كړى دى چي په هغه كي رسول الله ﷺ د مسلمانانو په مخاطب كولو سره وفرمايل: ما ته ستا سو د فقر او مفلسى هيڅ بيره نسته زه خو د هغه وخت څخه بېرېږم كله چي دنيا پر تاسو باندي پراخه كړل سي .

## حضرت عقبه بن عمرو انصاري رضي الله عنه

د مشهورو صحابه كرامو څخه دى، بدري دى، په عقبه ثانيه كي هم موجود وو، د جمهورو علماؤ وينا ده چي هغه ته بدري په دغه نسبت ويل كيږي چي دى په بدر كي اوسېدى نه په دې اعتبار چي هغه په بدر كي ګډون كړى وو، د حضرت علي رضي الله عنه د خلافت په زمانه كي وفات سو مګر د ځينو حضراتو وينا ده چي په ۴۱ يا ۴۲ كال كي وفات سو .

## حضرت عامر بن ربيعه عنزي رضي الله عنه

عنزي په اصل كي يو سړي عنزه ته نسبت دى چي د حضرت عامر رضي الله عنه بن ربيعه د نيكه ګانو څخه وو، په جامع الاصول كي د دغه لفظ غنوي ليكل سوى دى ، حضرت عامر رضي الله عنه د بنو عدو حليف وو ځكه عدوي هم ورته ويل كيږي او په كاشف كي ليكلي دي چي حضرت عامر رضي الله عنه د آل خطاب حليف وو ، حضرت عامر رضي الله عنه دوه واره هجرت وكړ ، د بدر په غزا كي يې ګډون كړى دى او په نورو غزاوو كي هم، هغه د حضرت عمر رضي الله عنه څخه مخكي اسلام قبول كړى وو، په ۳۲ يا ۳۳ يا ۳۵ م هجري كال كي وفات سو .

## حضرت عاصم بن ثابت انصاري رضي الله عنه

د بدر په غزا كي يې ګډون كړى دى، دغه حضرت عاصم د بن عمر فاروق مورنى نيكه دى ، الله ﷻ پر يو ځاى چي هغه يې د مشركانو څخه ساتلى وو چي يوه غيره معمولي واقعه ده او پېښه داسي وه چي په غزوه ذات الرجيع كي هغه يو لوى مشرك قتل كړى وو ، ټول مشركان د خپل مشر د بدلې اخيستلو لپاره په حضرت عاصم بن ثابت رضي الله عنه پسې وه، چي د موقع په تر لاسه كولو سره هغه ونيسي ، او نژدې وه چي د هغه سر پرې كړي مګر هغه وخت ورته د الله ﷻ مرسته تر لاسه سول ، په اصل كي حضرت عاصم د الله ﷻ څخه دعاء غوښتې وه چي د هيڅ يو مشرك لاس ما ته نه راورسېږي او د هغه دغه دعاء قبوله سوې وه، مشرك چي د هغه د سر پرېكولو ته رامخكي سو نو ناڅاپه د مچ مچيو يوه ډېره لويه ځاله پر هغه مشركانو را ايله سول او هغه مچ

مچیو حضرت عاصم رضی اللہ عنہ د هغوی د لاس څخه وژغورئ .

## حضرت عويم بن ساعدي انصاري رضی اللہ عنہ

په عقبه اولی او عقبه ثانیه کي د مدينې څخه مکې ته په راتللو سره د رسول الله ﷺ په زيارت او بيعت كوونكو كي دی، نوموړي د بدر په غزا کي ګډون کړی دی او په نورو غزاوو کي هم، د رسول الله ﷺ په ژوند کي وفات سو او د ۶۵ يا ۶۶ کالو وو .

## حضرت عتبان بن مالک انصاري رضی اللہ عنہ

نوموړی خزرجي دی، د بدر په غزا کي يې ګډون کړی وو . د رسول الله ﷺ څخه يې حديثونه روايت کړي دي او د هغه څخه چي کومو کسانو حديثونه نقل کړي دي په هغوی کي حضرت انس بن مالک او محمود بن ربیع رضي الله عنهما شامل دي، حضرت عتبان رضی اللہ عنہ ړوند وو ، په صحيح بخاري کي په يوه روايت کي د هغه په اړه دا مذکور دي چي هغه د لمانځه لپاره د مسجد راتللو عذر بيان کړ نو رسول الله ﷺ د هغه کور ته ورغلی او هلته يې يو ځای لمونځ وکړ چي عتبان د خپل لمانځه لپاره مختص کړی ، نوموړی د معاويه رضی اللہ عنہ په زمانه کي وفات سو .

## حضرت قتاده بن نعمان انصاري رضی اللہ عنہ

دا هغه قتاده نه دی چي په عالمانو او محدثينو کي ډېر مشهور دی، هغه خو تابعي وو، د بصرې وو او ړوند سوی وو، مګر د علم او معرفت په دولت نازول سوی وو، نوموړی حافظ، مفسر او محدث وو، د هغه حافظه دومره قوي وه چي د يو شي په يو وار اورېدو سره يې هغه نه هېرېدی، د حضرت انس بن مالک، حضرت حسن بصري او حضرت سعيد بن حسيب رضی اللہ عنہ څخه يې روايت کوی او دغه قتاده بن نعمان رضی اللہ عنہ چي د هغه يادونه دلته راغلې ده ، صحابي دی او انصاري دی، په عقبه کي موجود وو ، دبدر په غزا کي يې او په نورو غزاوو کي يې ګډون کړی دی ، د نوموړي شمېر د سترو صحابه کرامو څخه کېږي، په ۲۳م هجري کال کي وفات سو او حضرت عمر رضی اللہ عنہ د هغه د جنازې لمونځ ورکړ .

## حضرت معاذ بن عمرو بن الجموح رضی اللہ عنہ

حضرت معاذ رضی اللہ عنہ د عمرو بن الجموح زوی دی ، په عقبه کي موجود وو ، د بدر په غزا کي يې هم ګډون کړی دی او دده پلار عمرو بن الجموح هم، دا هغه ځوان معاذ بن عمرو دی چي د بدر په غزا کي يې پر ابوجهل حمله وکړل او دهغه يوه پښه يې پرې کړل او بيا وروسته معاذ او معوذ بن عفراء د هغه کار خلاص کړ .

## معاذ بن عفراء او دهغه ورور رضي الله عنهما

حضرت معوذ بن عفراء رضي الله عنه او دهغه ورور معاذ بن عفراء رضي الله عنه دواړه د بدر په غزا کي ګډون کوونکي وه، عفراء د دوی دواړو د مور نوم دی، د دوی پلار حارثه بن رفاعه انصاري دی، دا هغه معوذ وو چي د بدر په غزا کي د خپل ورور معاذ بن عفراء په مرسته ابوجهل وژلی وو، معوذ په هغه غزا کي شهید سوی وو مګر معاذ پاته سو، او هغه په دواړو جهادو کي هم شرکت وکړ، د معوذ او معاذ یو بل ورور عوف بن عفراء هم د بدر په غزا کي شریک وو او هغه ته هم په دغه غزا کي د شهادت درجه رسېدلې وه.

## حضرت مالک بن ربیعه ابواسید انصاري رضي الله عنه

اصلي نوم یې مالک بن ربیعه دی او ابواسید یې کنیت دی، د نامه پر ځای په کنیت سره زیات مشهور دی، د بدر په غزا کي او په نورو ټولو غزاوو کي یې ګډون کړی دی، د مساعدي قبیلې څخه دی، په ۶۰ م هجري کال کي وفات سو او هغه وخت یې عمر ۷۷ کاله یا ۷۸ کاله وو، نوموړی ړوند سوی وو او د اصحاب بدر څخه تر ټولو وروسته وفات سو.

## حضرت مسطح بن اثاثه رضي الله عنه

حضرت مسطح بن اثاثه بن عباد بن مطلب بن عبد المناف د بدر او احد په غزاوو کي ګډون کړی وو او په وروسته غزاوو کي هم، دا هغه مسطح رضي الله عنه دی چي د ام المؤمنین بي بي عائشې رضي الله عنها پر ذات باندي یې تهمت لګولی وو او پر هغه باندي حد قذف نافذ سوی وو، ځینو حضراتو لیکلي دي چي مسطح د هغه لقب دی او اصل نوم یې عوف دی، په ۳۴ هجري کال کي د ۵۶ کالو په عمر وفات سو.

## حضرت مراره بن ربیع انصاري رضي الله عنه

حضرت مراره رضي الله عنه بن ربیع انصاري د بنوعمرو بن عوف څخه دی، د بدر په غزا کي شریک وو. نوموړی د هغه درو صحابه کرامو څخه دی چي د تبوک غزا ته نه وه تللي، په دوی کي زیات مشهور حضرت کعب بن مالک رضي الله عنه دی، دوهم حضرت هلال بن امیه او دریم همدغه حضرت مراره رضي الله عنه دی، الله جل جلاله د درو سره توبه قبوله کړې وه او دهغوی په حق کي دقرآن کریم آیاتونه نازل سول او په دغه مناسبت سره ددغه سورت نوم سورة توبه کښېښنودل سو چي په هغه کي دغه آیاتونه شامل دي.

## حضرت معن بن عدي انصاري رضی الله عنه

حضرت معن بن عدي انصاري رضی الله عنه د بنوعمرو بن عوف حليف دی او په دې سبب د هغه شمېر په انصارو کي کيږي، دی په عقبه کي موجود وو د بدر په غزا کي يې هم ګډون کړی دی او په وروستنيو نورو غزاوو کي هم، رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغه ورور ګلوي د حضرت زيد بن خطاب رضی الله عنه سره کړې وه چي د حضرت عمر رضی الله عنه ورور دی، او داسي اتفاق وسو چي د حضرت صديق اکبر رضی الله عنه د خلافت په زمانه کي دواړه يو ځای د يمامه په جګړه کي شهيدان سول. رضي الله عنهما.

## حضرت مقداد بن عمرو کندي رضی الله عنه

ده ته مقداد بن اسود هم ويل کيږي، کندي خو په دې نسبت ورته ويل کيږي چي د هغه پلار عمرو د کنده حليف وو او خپله مقداد په بنو زهره کي د يو سړي اسود بن بغوث زهري حليف جوړ سوی وو ځکه ده ته زهري ويل کيږي، او په دغه نسبت سره د مقداد بن اسود رضی الله عنه د هغه دوهم نوم سوی وو، حضرت مقداد رضی الله عنه قديم الاسلام دی او ځينو حضراتو ليکلي دي چي شپږم مسلمان دی يعني دده څخه مخکي پنځه کسان مسلمانان سوي وه، دده شمېر د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ډېرو نيکو او بزرګو صحابه کرامو څخه کيږي، دده څخه په روايت کونکو کي حضرت علي بن ابي طالب رضی الله عنه او طارق بن شهاب شامل دي، په ۳۳ م هجري کال کي د مدينې څخه پر درې ميله فاصله باندي د جرف په سيمه کي وفات سو، دهغه ځای څخه مدينې ته راوړل سو او په بقيع کي دفن سو، د جنازې لمونځ يې حضرت عثمان بن عفان رضی الله عنه ورکړ او د وفات پر وخت يې عمر شپېته کاله وو. رضي الله عنه وعنهم.

## حضرت هلال بن اميه انصاري رضی الله عنه

حضرت هلال بن اميه انصاري رضی الله عنه د هغه صحابه کرامو څخه دی چي د تبوک غزا ته نه وه تللي او الله جل جلاله د هغوی توبه قبوله کړې وه، هغه پر خپلي ښځي د زنا تهمت لګولی وو او لعان يې کړی وو، د بدر په غزا کي يې ګډون کړی وو، دده څخه چي کوم حضرات حديثونه روايت کوي په هغوی کي حضرت جابر رضی الله عنه عبدالله رضی الله عنه او حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه شامل دي.

## د اهل بدر شمېر:

په دې اړه اختلاف دی چي د بدر په غزا کي مجاهدين څو کسان وه، ځيني حضراتو د اصحاب بدر شمېر ۳۱۵ ليکلی دی او ځيني ۳۱۳، په لومړني باب کي په يوه روايت کي ۳۱۵ نقل سوي دي او په يوه روايت کي ۳۱۷ ذکر دي، صاحب استيعاب په خپل کتاب کي ۳۱۳ شمېر

بیان کړی دی چې په هغو کې ۴۵ خو هغه دي چې دهغوی په اړه یادونه سوې ده او پاته نوردي ، جعفر بن حسن بن عبد الکریم برزنجي رحمة الله علیه د اصحاب بدر اسماء مبارک او دهغوی پر فضائلو او ګټو باندي مشتمل یو کتاب لیکلی دی چې د هغه نوم بجالیة الکرب باصحاب سید العجم والعرب، دی، په غه کتاب کي برزنجي رحمة الله علیه د ډېرو کتابو په حواله سره د اصحاب بدر شمېر ۳۶۵ ذکر کړی دی، مګر هغه وضاحت کړی دی چې په دې اړه راجح قول دادی چې اصحاب بدر ۳۱۳ دي لکه څرنګه چې صاحب استیعاب لیکلی دی .

## د اهل بدر فضیلتونه

د اصحاب بدر په فضائلو کي تر ټولو لویه خبره داده چې الله ﷻ هغوی ته د خپل نبي په ژبه د جنت زیری ورکړی دی، او وه یې فرمایل: وجبت لکم الجنة، اې د بدر خاوندانو ! ستاسو لپاره جنت واجب سو .

ددغه حضراتو یو لوی فضیلت دادی چې الله ﷻ د هغوی مخکني او وروستني ټول ګناهونه بخښلي دي تر دې که چیري دا فرض کړل سي چې په هغوی کي یو څوک یو ګناه وکړي نو دهغه د توبې ضرورت نسته ځکه چې هغه د مخکي څخه بخښل سوې ده او د هغه جنت ته تلل فیصله سوي دي، مګر دا بېله خبره ده چې د هغه هغه ګناه به په دنیا کي د شرعي سزا متقاضي سوې وي او پر هغه به په دنیا کي د هغه شرعي سزا جاري کېدل وي .

دا هم دهغوی په فضائلو کي دي چې د بدر په غزا کي الله ﷻ ملائکي نازلي کړې او هغه ملائکي د بدر د اصحابو سره یو ځای د دین ددښمنانو سره جنګېدلي دي ، په دې اړه اختلاف نسته او ټول علماء پر دې متفق دي بلکه په نورو غزاوو کي د مثال په توګه د اُحد غزا، د حنین غزا په اړه د علماؤ اختلاف دی .

## د اهل بدر د نومو خواص او برکات

الله ﷻ د اصحاب بدر نومونه او دهغوی په ذکر کي عجیب خواص او برکتونه ایښي دي، ددغه نومو په ویلو سره غوښتل سوې دعاء قبلیږي لکه چې برهان حلبي رحمة الله علیه د سیرت په خپل کتاب کي لیکلي دي او دواني رحمة الله علیه بیان کړی دی چې هغه د حدیثو د مشائخو څخه واورېدل چې د اهل بدر د نومو په ذکر سره کومه دعاء وغوښتل شي هغه قبلیږي او دا د تجربې څخه ثابته وه، شیخ عبد اللطیف رحمة الله علیه په خپله رساله کي لیکلي دي: ځینو علماؤ بیان کړی دی چې څو مره اولیاء الله د اهل بدر د نومو په برکت د ولایت مرتبې ته رسېدلي دي او دا هم حقیقت دی چې کوم

ناروغان د اهل بدر په وسيله د ځان لپاره د شفاء دعاء غوښتې ده الله ﷻ هغوی ته شفاء ورکړې ده ، د يو عارف باالله بيان دی : کله چې ما د ناروغ پر سر په لاس ايښود و سره په اخلاص د اهل بدر نومونه ويلي دي نو الله ﷻ هغه ته شفاء ورکړې ده بلکه که چيري د هغه د مرګ وخت راغلی وي نو الله ﷻ په هغه کي نرمي او رعايت کړی دی، د يو بل عارف بيان دی : ما په مهمو چارو کي د اهل بدر د اسماؤ ذکر په تجربه او په ژبه ويلو سره او ليکلو سره وکړل، نو حقيقت دادی چي ما هيڅ دعاء د هغه څخه ژر قبليدونکې نه ده ليدلې ،

د حضرت جعفر بن عبدالله ﷫ څخه نقل سوي دي چي هغه وويل: زما پلار ما ته وصيت کړی وو چي زه د رسول الله ﷺ د صحابه کرامو سره مينه ولرم او دا چي په خپلو ټولو کارو کي د اهل بدر په وسيله سره دعاء غوارم، پلار راته فرمايلي وه چي اې زويه! د اصحاب بدر د اسماء مبارک په ذکر سره چي کومه دعاء غوښتل کيږي هغه قبليږي، هغه دا هم فرمايلي وه چي کله بنده د اهل بدر د نومو ذکر کوي يا دا يې فرمايلي وه چي کله يو بنده د اهل بدر په نومو سره دعاء غواړي نو هغه وخت مغفرت، رحمت، برکت، رضا او رضوان د هغه بنده چاپيره کيږي ،

علماؤ ليکلي دي چي کوم څوک هره ورځ ددغه اسماء ذکر کوي او ددغه نومو په وسيله د خپل حاجت پوره کېدو دعاء پر وخت ددغه مبارکو نومو وسيله نيونکي دپاره غوره ده ، چي د هر نوم څخه وروسته رضي الله عنه خامخا ووايي، مثال داسي ووايي: محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم، ابوبکر صديق رضي الله عنه، عمر بن الخطاب رضي الله عنه، همدا رنګه تر پايه پوري ،

د کتاب مؤلف ﷫ په دغه ځای کي د ټولو اهل بدر نومونه د کتاب استيعاب څخه نقل کړي دي او د هغه نومو ذکر چي په کومو الفاظو ، ترتيب او دعاء توسل سره صاحب استيعاب نقل کړی دی هغه مؤلف اختيار کړی دی مګر صاحب استيعاب د هغه نومو څخه وروسته چي کومه دعاء ليکلې ده هغه ډېره اوږده او مشکل المعاني وه ځکه مؤلف د هغه دعاء پر ځای يوه داسي مختصره او جامع دعاء ليکلې ده چي په حديثونو کي راځي، ددعاء توسل په الفاظو سره د اصحاب بدر نومونه دادي :

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

اَللّٰهُمَّ اَسْئَلُكَ بِسَيِّدِنَا مُحَمَّدِ الْمُهَاجِرِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ بِسَيِّدِنَا عَبْدِاللّٰهِ ابْنِ عُثْمَانَ اَبِيْ بَكْرِ الصِّدِّيْقِ الْقُرَيْشِيِّ وَ بِسَيِّدِنَا عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ الْعَدَوِيِّ وَ بِسَيِّدِنَا عُثْمَانَ ابْنِ عَفَّانَ

الْقُرَيْشِيِّ خَلَّفَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى ابْنَتِهِ وَضَرَبَ لَهُ بِسَهْمِهِ وَ بِسَيِّدِنَا عَلِيِّ ابْنِ اَبِيْ طَالِبِ الْهَاشِمِيِّ وَ بِسَيِّدِنَا اِيَاسِ بْنِ الْبُكَيْرِ وَ بِسَيِّدِنَا بِلَالِ بْنِ رَبَاحٍ مَوْلٰى اَبِيْ بَكْرِ الصِّدِّيْقِ الْقُرَيْشِيِّ وَ بِسَيِّدِنَا حَمْزَةَ بْنِ عَبْدِالْمُطَّلِبِ الْهَاشِمِيِّ وَ بِسَيِّدِنَا حَاطِبِ بْنِ اَبِيْ بَلْتَعَةَ حَلِيْفٍ لِقُرَيْشٍ وَ بِسَيِّدِنَا اَبِيْ حُذَيْفَةَ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ رَبِيْعَةَ الْقُرَشِيِّ وَ بِسَيِّدِنَا حَارِثَةَ ابن ربيع الْاَنْصَارِيِّ قتل يوم بدر وهو حارثة بن سراقة وكان في النظارة وَ بِسَيِّدِنَا خطيب بن عدي الْاَنْصَارِيِّ وَ بِسَيِّدِنَا خنيس بن حذافة السهمي وَ بِسَيِّدِنَا رفاعة بن رافع الْاَنْصَارِيِّ وَ بِسَيِّدِنَا رفاعة بن عبد المنذر ابي لبابة الْاَنْصَارِيِّ وَ بِسَيِّدِنَا الزبير بن العوام القرشي وَ بِسَيِّدِنَا سعيد بن زيد بن عمرو ابن نفيل القرشي وَ بِسَيِّدِنَا سهل بن حنيف الْاَنْصَارِيِّ وَ بِسَيِّدِنَا زيد بن سهل ابي طلحة الْاَنْصَارِيِّ وَ بِسَيِّدِنَا ابي زيد الانصاري وَ بِسَيِّدِنَا سعد بن مالك الزهري وَ بِسَيِّدِنَا سعد ابن خولة القرشي وَ بِسَيِّدِنَا ظهير بن رافع الْاَنْصَارِيِّ واخيه وَ بِسَيِّدِنَا عبدالله بن مسعود الهذلي وَ بِسَيِّدِنَا عتبة بن مسعود الهذلي وَ بِسَيِّدِنَا عبدالرحمن بن عوف الزهري وَ بِسَيِّدِنَا عبيدة بن الحارث القرشي وَ بِسَيِّدِنَا عبادة بن الصامت الْاَنْصَارِيِّ وَ بِسَيِّدِنَا عمرو بن عوف حليف بني عامر بن لؤي وَ بِسَيِّدِنَا عقبة بن عمرو الْاَنْصَارِيِّ وَ بِسَيِّدِنَا عامر بن ربيعة العنزي وَ بِسَيِّدِنَا عاصم بن ثابت الْاَنْصَارِيِّ وَ بِسَيِّدِنَا عويم بن ساعدة الْاَنْصَارِيِّ وَ بِسَيِّدِنَا عتبان بن مالك الْاَنْصَارِيِّ وَ بِسَيِّدِنَا قدامة بن مظعون وَ بِسَيِّدِنَا قتادة بن النعمان الْاَنْصَارِيِّ وَ بِسَيِّدِنَا معاذ بن عمرو بن الجموح وَ بِسَيِّدِنَا معوذ بن عفراء واخيه مالك بن ربيعة وبسيدنا ابي اسيد الانصاري وبسيدنا مسطح بن اثاثة بن عباد بن المطلب بن عبدمناف وبسيدنا مرارة بن الربيع الانصاري و بسيدنا معن بن عدي الانصاري وبسيدنا مقداد بن عمرو الكندي حليف بني زهرة وبسيدنا هلال بن امية الانصاري و بسيدنا ابي عمرو بن سعد بن معاذ الاشهلي الانصاري

وبسیدنا اسید بن حضیر الانصاري الاشهلي وبسیدنا اسید بن ثعلبه الانصاري وبسیدنا انیس بن قتادة الانصاري وبسیدنا انس بن معاذ النجاري وبسیدنا انس بن اوس الانصاري الاشهلي وبسیدنا اوس بن ثابت النجاري الانصاري وبسیدنا اوس بن خولي الانصاري وبسیدنا اوس بن الصامت الخزرجي الانصاري وبسیدنا اسعد ابن زرارة النجاري الانصاري الخزرجي وبسیدنا الاسود بن زید بن غنم الانصاري وبسیدنا ایاس بن ورقة الانصاري من بني سالم بن عوف الخزرجي وبسیدنا الارقم بن ابي الارقم الهاشمي وبسیدنا براء بن عازب الخزرجي الانصاري وبسیدنا بشر بن البراء بن معرور الانصاري الخزرجي وبسیدنا بشیر بن سعد الخزرجي الانصاري وبسیدنا بشیر بن ابي زید الانصاري وبسیدنا بحیر ابن ابي بحیر الجهني النجاري وبسیدنا بشعس ابن عمرو الخزرجي الانصاري وبسیدنا نجاس بن ثعلبه الانصاري الخزرجي وبسیدنا تمیم بن یعار الانصاري الخزرجي وبسیدنا تمیم الانصاري مولیٰ بني غنم وبسیدنا تمیم مولیٰ خراش بن الصمة وبسیدنا ثابت بن الجذع الانصاري الاشهلي وبسیدنا ثابت بن هزال بن عمرو الانصاري العوفي وبسیدنا ثابت بن عمرو بن زید النجاري الانصاري وبسیدنا ثابت بن خالد بن عمرو بن النعمان النجاري الانصاري وبسیدنا ثابت بن الخنشاء النجاري الانصاري وبسیدنا ثابت بن اقرم الانصاري حلیف بني عمرو بن عوف و بسیدنا ثابت بن زید الاشهلي الانصاري وبسیدنا ثابت بن ربیعة الانصاري الخزرجي وبسیدنا ثابت الانصاري و بسیدنا ثابت بن عبید الانصاري وبسیدنا ثابت الحارث الانصاري وبسیدنا ثعلبة بن غنمة الانصاري وبسیدنا ثعلبة بن ساعدة الساعدي الانصاري وبسیدنا ثعلبة بن عمرو النجاري وبسیدنا ثعلبة بن حاطب الانصاري وبسیدنا ثقف بن عمرو الاسلمي وبیدنا جابر بن خالد بن مسعود الانصاري النجاري الاشهلي وبسیدنا جابر ابن عبدالله

الحرامي الانصاري وبسيدنا جبار بن صخر الانصاري وبسيدنا جبير بن اياس الانصاري الزرقي وبسيدنا حارثة بن النعمان النجاري الانصاري وبسيدنا حارثة بن مالك الانصاري الزرقي وبسيدنا حارث بن حمير الاشجعي الانصاري وبسيدنا حارثة بن حمير الانصاري وبسيدنا حارث بن هشام المخزومي القرشي وبسيدنا الحارث بن عتيك النجاري وبسيدنا الحارث بن قيس الانصاري و بسيدنا الحارث بن اوث الانصاري وبسيدنا الحارث بن انس الاشهلي الانصاري وبسيدنا الحارث بن النعمان القيسي وبسيدنا الحارث بن النعمان ابن خرمة الخزرجي الانصاري وبسيدنا حريث بن زيد الخزرجي الانصاري وبسيدنا الحكم بن عمرو الثمالي و بسيدنا حبيب مولى الانصار وبسيدنا الحصين ابن الحارث المطلبي و بسيدنا حاطب بن عمرو الاوسي وبسيدنا حرام بن ملحان النجاري وبسيدنا الحباب بن المنذر الانصاري السلمي وبسيدنا خالد بن الكبير وبسيدنا خالد بن العاصي قتل يوم بدر و بسيدنا خالد بن قيس الازدي العجلاني و بسيدنا خلاد بن رافع العجلاني الانصاري وبسيدنا خلاد بن سويد الانصاري الخزرجي و بسيدنا خلاد بن عمرو الانصاري السلمي و بسيدنا خزيمة بن ثابت الانصاري و بسيدنا خارجة بن زيد الانصاري الخزرجي و بسيدنا خارجة بن حمير الاشجعي و بسيدنا خباب بن الارت الخزاعي و بسيدنا خباب مولى عقبة بن غزوان و بسيدنا خزيم بن فاتك الاسدي وبسيدنا خراش بن الصمة الانصاري السلمي و بسيدنا خولي بن خولى العجلي الجعفي و بسيدنا خبيب بن اساف الانصاري و بسيدنا خوات بن جبير الانصاري و بسيدنا خثيمة بن الحارث الانصاري و بسيدنا خليفة بن عدي الانصاري و بسيدنا خليدة بن قيس الانصاري و بسيدنا ذكوان بن عبدقيس الانصاري و بسيدنا ذي مخبر الجشمي وبسيدنا ذي الشمالين الخزاعي و بسيدنا رافع بن مالك الانصاري الخزرجي و بسيدنا رافع بن

الحارث الانصاري و بسیدنا رافع المعلي الانصاري وبسیدنا رافع بن عنجدة الانصاري العوامي و بسیدنا رافع بن سهل الانصاري و بسیدنا رافع بن زید الانصاري و بسیدنا رفاعة بن عمیر الانصاري و بسیدنا رفاعة بن رافع الانصاري و بسیدنا رفاعة بن الحارث الانصاري و بسیدنا رفاعة بن عمرو الجهني وبسیدنا ربیعة بن اکثم الانصاري وبسیدنا ربیع بن ایاس الانصاري واخیه وبسیدنا رجیلة بن ثعلبة الانصاري البیامي وبسیدنا زید بن الخطاب العدوي وبسیدنا زید بن حارثة الکلبي وبسیدنا زید بن اسلم العجلاني الانصاري وبسیدنا زید بن الدثنة الانصاري البیاضي وبسیدنا زید بن عاصم المازني الانصاري وبسیدنا زیاد بن لبید الانصاري البیاضي وبسیدنا زیاد بن عمرو الانصاري وبسیدنا زیاد بن کعب الانصاري وبسیدنا زاهر بن حرام الاشجعي وبسیدنا طلیب بن عمرو القرشي وبسیدنا الطفیل بن الحارث المطلبئ واخیه قتل یوم بدر وبسیدنا الطفیل بن مالك الانصاري وبسیدنا کعب ابن عمرو الانصاري السلمي وبسیدنا کعب بن زید النجاري الانصاري وبسیدنا کعب بن حمار الانصاري وبسیدنا کفاز بن حصن الانصاري وبسیدنا محمد بن مسلمة الانصاري وبسیدنا معاذ بن عفراء الانصاري وبسیدنا عوف بن العفراء قتل یوم بدر وبسیدنا معوذ وبسیدنا معاذ بن ماعض الانصاري و بسیدنا مالك بن عمیلة العبدري وبسیدنا مالك بن قدامة الانصاري وبسیدنا مالك بن رافع العجلاني وبسیدنا مالك بن عمرو السلمي وبسیدنا مالك بن امیة بن عمرو السلمي وبسیدنا مالك ابن ابي خولي العجلاني وبسیدنا مالك بن نمیلة الانصاري وبسیدنا معمر بن الحارث الجمهي وبسیدنا محرز بن لضلة الاسدي وبسیدنا محرز بن عامر الانصاري وبسیدنا معن بن یزید السلمي وبسیدنا معبد ابن قیس الانصاري وبسیدنا المنذر بن عمرو الانصاري الخزرجي وبسیدنا المنذر بن الاوسي الانصاري وبسیدنا المنذر بن

قدامة الانصاري وبسيدنا معتب بن حمراء الانصاري وبسيدنا معتب بن بشير الانصاري وبسيدنا مصعب ابن عمير القرشي وبسيدنا مبشر بن عبدالمنذر الاومي وبسيدنا مليل بن وبدة الانصاري وبسيدنا مهجع بن صالح مولى عمر بن الخطاب وبسيدنا مدراج بن عمرو السلمي وبسيدنا نوفل بن ثعلبة الانصاري وبسيدنا النعمان بن عبدالنجاري وبسيدنا النعمان بن ابي خرمة الانصاري وبسيدنا النعمان بن عمرو الانصاري وبسيدنا النعمان ابن ابي خزمة الانصاري وبسيدنا النعمان بن سنان الانصاري وبسيدنا نضر بن الحارث الانصاري الظفري وبسيدنا نحات بن ثعلبة الانصاري وبسيدنا نعمان بن عمرو النجاري وبسيدنا صهيب بن سنان الرومي وبسيدنا صفوان بن امية بن عمرو السلمي واخيه مالك بن امية وبسيدنا الضحاك بن حارثة الانصاري وبسيدنا الضحاك بن عبدالانصاري النجاري وبسيدنا عبدالله بن ثعلبة الانصاري وبسيدنا عبدالله بن جبير الانصاري وبسيدنا عبدالله بن الحمير الاشجعي وبسيدنا عبدالله بن رواحة الانصاري وبسيدنا عبدالله بن رافع الانصاري وبسيدنا عبدالله بن ربيع الانصاري وبسيدنا عبدالله بن طارق الانصاري وبسيدنا عبدالله بن كعب الانصاري وبسيدنا عبدالله بن مظعون الجمحي وبسيدنا عبدالله ابن النعمان الانصاري وبسيدنا عبدالله بن عبدالله بن سلول الانصاري وبسيدنا عبدالله بن عمرو بن حرام الانصاري وبسيدنا عبدالله ابن عامر الانصاري وبسيدنا عبدالله بن عمير الانصاري و بسيدنا عبدالله بن عبس الخزرجي و بسيدنا عبدالله بن سعد الانصاري و بسيدنا عبدالله بن سلمة العجلاني و بسيدنا عبدالرحمن بن كعب المازني و بسيدنا عبدالرحمن بن جبير الانصاري و بسيدنا عبدالرحمن بن عبدالانصاري و بسيدنا عبدالرحمن بن سهل الانصاري و بسيدنا عبيد بن اوس و بسيدنا عبيد بن زيد الانصاري و بسيدنا عبدربه بن حق الانصاري و بسيدنا

عباد بن عبید التهیان و بسیدنا عبد یا لیل بن ناشب اللیثي و بسیدنا عباد بن قیس الانصاري و بسیدنا عمیر بن حرام الانصاري و بسیدنا عمرو ابن قیس الانصاري و بسیدنا عمرو بن ثعلبة الانصاري و بسیدنا سفیان بن بشر الانصاري و بسیدنا سالم بن عمیر الانصاري و بسیدنا سنان بن سنان الاسدي و بسیدنا سماك بن خرشة الانصاري و بسیدنا سهل بن عتیك الانصاري و بسیدنا سهل ابن رافع الانصاري و بسیدنا السائب بن مظعون الجمحي و بسیدنا ابي بن كعب الانصاري النجاري وبسیدنا ابي معاذ النجاري و بسیدنا اسیرة بن عمرو الانصاري النجاري و بسیدنا عبدالله بن عامر الانصاري و بسیدنا عكاشة بن محصن الاسدي و بسیدنا عتیك بن التهیان الانصاري وبسیدنا عشرة السلمي و بسیدنا عاقل بن البكیر و بسیدنا فروة بن عمرو الانصاري و بسیدنا غنام بن اوس الانصاري و بسیدنا الفاكه بن بشر الانصاري و بسیدنا قیس بن مخلد الانصاري و بسیدنا قیس ابن محصن الانصاري و بسیدنا قیس بن ابي صعصعة الانصاري و بسیدنا قطبة بن عامر الانصاري و بسیدنا سعد بن خیثمة الانصاري و بسیدنا سعد بن الربیع الانصاري و بسیدنا سعد بن عبادة الانصاري الساعدي و بسیدنا سعد بن عثمان الانصاري الزرقي و بسیدنا سعد بن زید الانصاري الاشهلي وبسیدنا سفیان بن بشر الانصاري وبسیدنا سالم بن عمیر العوفي وبسیدنا سلیم بن عمرو الانصاري و بسیدنا سلیم بن الحارث الانصاري وبسیدنا سلیم ابن قیس بن فهد الانصاري و بسیدنا سلیم بن ملحان الانصاري و بسیدنا سلمة ابن سلامة الانصاري الاشهلي وبسیدنا سهیل بن عمرو الانصاري و بسیدنا سلمة بن ثابت الانصاري الاشهلي و بسیدنا سهیل بن بیضاء القرشي الفهري و بسیدنا سوید بن مخشي الطائي و بسیدنا سلیط بن عمرو العامر القرشي و بسیدنا سلیط بن قیس الانصاري النجاري و بسیدنا سراقة بن كعب الانصاري النجاري

و بسيدنا سراقة بن عمرو الانصاري النجاري و بسيدنا سبيع بن خاطب الانصاري و بسيدنا سواد بن غزبة الانصاري السلمي و بسيدنا سعيد بن سهيل الانصاري الاشهلي و بسيدنا شماس بن عثمان المخزومي و بسيدنا شجاع بن ابي وهب الاسدي حليف عبد شمس و بسيدنا هانئ بن نيار الاسدي و بسيدنا هلال بن المعلى الانصاري و بسيدنا هلال بن خولي الانصاري و بسيدنا همام بن الحارث و بسيدنا وهب بن ابي شرح الفهري القرشي و بسيدنا وديعة بن عمرو الانصاري و بسيدنا يزيد بن الحارث الانصاري و بسيدنا يزيد بن ثابت الانصاري و بسيدنا ابي ايوب الانصاري و بسيدنا ابي الحمراء مولى ال عفراء و بسيدنا ابي الخالد الحارث بن قيس الانصاري وبسيدنا ابي خذيمة بن اوس الانصاري وبسيدنا سليم ابي كبشة مولى رسول الله صلى الله عليه وسلم دوسي وبسيدنا ابي مليل الضبعي وبسيدنا ابي المنذر ابن يزيد بن عامر الانصاري و بسيدنا ابي نملة الانصاري و بسيدنا ابي عبيدة بن الجراح الفهري القرشي و بسيدنا ابي عبدالرحمن بن يزيد بن ثعلبة الانصاري و بسيدنا ابي عيش الحارثي الانصاري و بسيدنا يزيد بن الاخنس السلمي و بسيدنا ابي اسيد الساعدي و بسيدنا ابي اسرائيل الانصاري و بسيدنا ابي الاعور بن الحارث الانصاري النجاري و بسيدنا سعد بن سهيل الانصاري و بسيدنا سعد بن خولة من المهاجرين الاولين و بسيدنا سعد بن خولي مولى حاطب بن ابي بلتعة و بسيدنا سالم مولى ابي حذيفة و بسيدنا سلمة بن حاطب الانصاري و بسيدنا ابي مرثد الغنوي و بسيدنا ابي مسعود الانصاري و بسيدنا ابئ فضالة الانصاري وبسيدنا عمار بن ياسر المهاجري و بسيدنا طلحة بن عبيد الله القرشي وبسيدنا سماك بن سعد الخزرجي رضي الله عنهم اجمعين ۔

اللهم لاتدع لنا ذنبا الا غفرته ولا هما الا فرجته ولادينا الا قضيته ولا حاجة من حوائج الدنيا والاخرة الا قضيتها يا ارحم الراحمين ۔

# بَابُ ذِكْرِ الْيَمَنِ وَالشَّامِ وَذِكْرِ أُوَيْسِ الْقَرْنِيِّ

## د یمن، شام او اویس قرني بیان

یمن هغه ښارو او کلیو ته وایي چي د هغو محل وقوع د کعبې شریفي راسته خواته دی اوس دا د یو مشهور تاریخي هیواد په حیثیت سره پېژندل کیږي چي د جزیره عرب په جنوب غرب کي واقع دی، که څه هم په اوسنۍ زمانه کي یمن پرهغه ټولو سیمو مشتمل نه دی کوم چي په پخوا زمانه کي وو، بیا هم اوسنۍ مرکزي او لوي برخي په یمن کي شامل دي، کوم شی یا سړی چي یمن ته منسوب وي هغه ته یمني هم وایي ، یمن او یماني هم ورته وایي، ځینو حضراتو دغه لفظ یمّاني (د یاء په شد سره) هم بیانوي . شام هغه ښارو او کلیو ته وایي چي د هغو محل وقوع د کعبې شریفي چپه خوا ته دی ځکه په عربي کي شام چپه خوا ته وایي لکه څرنګه چي راسته خوا ته یمین او یا ایمن ویل کیږي، شام او هشام په همزه سره هم راځي او د همزې ماسوا هم، شام تر اوسه پوري د یو مشهور هیواد په حیثیت پېژندل کیږي .

قرن د یو کلي نوم دی چي په یمن کي واقع دی، دغه کلي د یو سړي قرن بن رومان بن نامیه بن مراد په نامه سره دی چي د حضرت اویس قرني رحمة الله عليه د نیکه ګانو څخه وو، یو قرن بل دی چي هغه ته اوس قرن منازل ویل کیږي مګر دا قرن د راء په جزم سره دی ، دا په اصل کي د یوې غونډۍ نوم دی چي د مکې مکرمې څخه تقریبا پر شل یا دېرش میله فاصله باندي ختیځ نجد ته پر تلونکي لاري باندي واقع دی، د اهل نجد میقات همَ قرن دی ، جوهري چي دغه قرن د راء په زور سره لیکلی دی ، حضرت اویس قرني دغه قرن ته منسوب کړی دی او دا د هغه غلط فهمي ده .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د حضرت اویس قرني رحمة الله عليه فضیلت

﴿۶۰۰۷﴾: عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ

د حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

رَجُلًا يَأْتِيكُمْ مِنَ الْيَمَنِ يُقَالُ لَهُ أُوَيْسٌ لَا يَدَعُ بِالْيَمَنِ غَيْرَ أُمٍّ لَهُ قَدْ كَانَ بِهِ

د یمن څخه به یو سړی تاسو ته راسي د هغه نوم به اویس وي هغه به په یمن کي د خپل مور څخه پرته څوک نه پرېږدي (یعني د مور څخه پرته بل څوک قریب به یې نه وي)

بَيَاضٌ فَدَعَا اللّٰهَ فَأَذْهَبَهُ عَنْهُ إِلَّا مَوْضِعَ الدِّينَارِ أَوِ الدِّرْهَمِ فَمَنْ لَقِيَهُ

د هغه په بدن کي سپینوالی وو هغه د الله جَلَّ جَلَالُهُ څخه دعاء وغوښتل او هغه سپین والی ځیني ولاړی خو د یو دینار یا درهم په اندازه پاته سو څوک چي په تاسو کي د هغه سره ملاقات وکړي

مِنْكُمْ فَلْيَسْتَغْفِرْ لَكُمْ. وفي رواية قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

نو د هغه څخه دي د ځان لپاره بخښنه وغواړي. او په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي عمر بن خطاب رضي الله عنه وویل ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چي

وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ خَيْرَ التَّابِعِينَ رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ أُوَيْسٌ وَلَهُ وَالِدَةٌ وَكَانَ بِهِ بَيَاضٌ فَمُرُوهُ فَلْيَسْتَغْفِرْ لَكُمْ. رواه مسلم.

په تابعینو کي به یو غوره سړی وي چي اویس به یادېږي د هغه به یوه مور وي او د هغه پر بدن به سپینوالی وي تاسو د هغه څخه د ځان لپاره د مغفرت دعاء وغواړئ. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۱۹۶۸، رقم: ۲۲۳- ۲۵۴۲.

**تشريح** هغه په یمن کي د خپلي مور څخه ماسوا: د دغه الفاظو څخه د رسول الله ﷺ مطلب دا وو چي په کورنۍ کي د یوې مور څخه ماسوا د هغه بل څوک په یمن کي نسته او د هغې مور خدمت هغه د یمن څخه په راتللو سره زما د لیدني لپاره منع کړی دی که هغه ته د خپلي مور د یوازیوالي فکر نه وای نو هغه به خامخا زما په خدمت کي حاضر سوی وای او زما د زیارت او صحبت شرف به یې تر لاسه کړی وای،

د یوه درهم یا یوه دینار په اندازه: دلته راوي ته شک سوی دی چي رسول الله ﷺ د درهم لفظ وفرمایه او که د دینار. په هر حال د دعاء په نتیجه کي د پیس ختمېدل او د یوه درهم یا یوه دینار په اندازه معمولي نښه پاته کېدل کیدای سي د قدرت د هغه حکمت سره سم وي چي د هغه ناروغۍ یوه نښه پاته وي لکه څرنګه چي د حضرت آدم علیه السلام په اړه ویل کیږي چي د هغه په جنتي جامو کي سپین والی او ځلا د نوک په ډول وه چي هیڅکله نه خیرن کیدی، بیا دنیا ته د راتلو څخه وروسته په هغه کي او د هغه په نسل کي هم د هغه جامې لږ نښه د نوک په صورت کي

پاته سوه، یا دا چي الله ﷻ د هغه پر بدن باندي د پیس هغه لړ ننبه ددې لپاره پرې ایښې وه چي هغه د شرم څخه د خلګو په منځ کي د ګډ کېدو څخه منع وي همدا وجه ده چي حضرت اویس قرني بېلوالی اختیار کړی وو، د خلګو په منځ کي ګډېدل او شهرت یې بالکل نه خوښوی، په یوه روایت کي راغلي دي چي خپله هغه دعاء کړې وه چي اې پروردګاره! زما پر بدن باندي ددغه ناروغی لړ ننبه پاته ولرې چي د هغه په لېدو سره زه ستا هغه نعمت یاد ساتم او دهغه شکر ادا کوم چي تا ما ته د هغه لوی ناروغی څخه خلاصون راکړ، رسول الله ﷺ په تابعینو کي اویس قرني ته ځکه غوره وفرمایل چي هغه د رسول الله ﷺ په زمانه کي موجود وو او شرعي عذر هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کي د حاضرېدو څخه منع کړی وو، څرګنده ده چي په دغه الفاظو کي د حضرت اویس قرني رحمة الله علیه مدح او تعریف دی، او ددغه ارشاد څخه معلومه سول چي اهل خیر او اصلاح ته د دعاء مغفرت درخواست کول پکار دي که څه هم درخواست کوونکی د اهل خیر او صلاح څخه افضل وي.

ځینو حضراتو لیکلي دي چي رسول الله ﷺ دغه تعریفي الفاظ د حضرت اویس قرني رحمة الله علیه د خوشحاله کولو لپاره فرمایلي وه او ددې مقصد د خلګو د وهم د دفع لپاره وو چي کیدای سي په دې پوه سي چي اویس رحمة الله علیه د رسول الله ﷺ په خدمت کي د حاضرېدو تر لاسه کولو څخه په قصد سره اعراض نه کوي حال دا چي د رسول الله ﷺ په خدمت کي د نه حاضرېدو وجه د مور زړه ښه کول او دهغې خدمت کول یو شرعي عذر وو، ددغه حدیث څخه معلومه سول چي په تابعینو کي تر ټولو غوره حضرت اویس قرني رحمة الله علیه دی، د امام احمد بن حنبل رحمة الله علیه څخه منقول دي چي په تابعینو کي تر ټولو غوره او افضل سعید بن مسیب رضي الله عنه دی مګر په دواړو کي تضاد نسته ځکه چي حضرت سعید بن مسیب رحمة الله علیه په علوم دین او احکام شریعت کي تر ټولو زیات افضل دی او د الله ﷻ په نزد د ثواب د کثرت په اعتبار حضرت اویس قرني په تابعینو کي افضل دی، په قاموس کي لیکلي دي چي اویس قرني د سادات تابعینو څخه دی نو کیدای سي چي د حدیث الفاظ هم پر دغه معنی محمول وي.

د حضرت اویس قرني رحمة الله علیه په اړه نور آثار هم منقول دي، سیوطي په جمع الجوامع کي ذکر کړی دی چي معنی یې دلته ذکر کیږي:

سیوطي رحمة الله علیه وایي: اسیر بن جابر رحمة الله علیه بیان وکړ: تر څو چي حضرت اویس قرني، حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ته نه وو رسېدلی نو عمر فاروق رضي الله عنه به د یمن څخه راتلونکي هر اسلامي لښکر او قافلې څخه پوښتنه کول چي ایا په تاسو کي اویس بن عامر رحمة الله علیه سته؟ او

کله چي حضرت اویس قرني د فاروق رضي الله عنه په خدمت کي حاضر سو نو حضرت عمر رضي الله عنه پوښتنه وکړل: ایا ته اویس قرني یې؟ هغه وویل: هو، زه اویس بن عامر یم. بیا حضرت عمر رضي الله عنه پوښتنه وکړل: ایا ته د مراد قبیلې سره تعلق لرې او قرني یې؟ هغه وویل: هو، حضرت عمر رضي الله عنه پوښتنه وکړل: ایا ته د پیس په ناروغۍ اخته سوی وې؟ او بیا ته ښه سوې مگر نه د یوه درهم په اندازه، هغه وویل: هو، بیا حضرت عمر رضي الله عنه ورته وویل: ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اورېدلي دي چي تاسو ته به یو سړی اویس بن عامر د اهل یمن د اسلامي لښکر او قافلې سره راسي چي د مراد قبیلې سره به تعلق لري او د قرن به وي هغه ته د پیس ناروغي راغلې وه چي اوس ښه سوی دی مگر د یوه درهم په اندازه پاته سوې ده، د هغه یوه مور ده چي د هغې په خدمت کي بوخت دی. د هغه شان دادی که چیري د الله جل جلاله په باور قسم وکړي نو الله جل جلاله د هغه قسم رښتیا کوي، که تاسو وکولای سئ نو د هغه څخه د خپل ځان د بخښني د دعاء غوښتنه وکړئ، نو اې اویس! زه ستا څخه غوښتنه کوم چي زما لپاره د بخښني دعاء وکړه، (د دې په اورېدو سره) حضرت اویس رحمة الله علیه وویل: اې امیر المؤمنین! تاسو څه وایاست، زما په ډول سړي څخه د مغفرت دعاء غواړئ. حضرت عمر رضي الله عنه ورته وویل: یقینا ته به زما لپاره دعاء کوې، بیا حضرت اویس قرني رحمة الله علیه د حضرت فاروق رضي الله عنه لپاره د مغفرت دعاء وکړل، او بیا حضرت عمر فاروق رضي الله عنه پوښتنه وکړل: اې اویس! اوس و وایه چیري تلل غواړې؟ هغه وویل: کوفې ته د تللو اراده لرم، حضرت عمر رضي الله عنه پوښتنه وکړل: ایا ستا په اړه د کوفې حاکم ته لیک ولیکم؟ حضرت اویس رحمة الله علیه وویل: ما پر خپل حال پرېږدئ زه د خلگو څخه لیري او سېدل خوښوم او په دې ویلو سره روان سو. په وروسته کال کي د کوفې څخه یو یمني سړی د حج لپاره راغلی او د حضرت عمر رضي الله عنه د لیدني لپاره حاضر سو نو حضرت عمر رضي الله عنه د حضرت اویس رحمة الله علیه په اړه پوښتنه ور څخه وکړه چي څه حال یې دی. هغه سړي وویل چي ما هغه په ډېرو زړو جامو او بې سامانه حالت کي پرې ایښی دی، حضرت عمر رضي الله عنه د هغه په وړاندي د رسول الله صلی الله علیه وسلم ذکر سوی حدیث و وایه، هغه سړی چي بېرته حضرت اویس رحمة الله علیه ته را ورسېدی نو هغه ته یې د دعاء مغفرت درخواست وکړ، حضرت اویس رحمة الله علیه هغه ته وویل: ته هم زما لپاره د مغفرت دعاء وکړه ځکه چي ته د نیک سفر څخه راغلی یې، هغه سړي بیا وویل: تاسو زما لپاره د مغفرت دعاء وغواړئ او په دې سره هغه د حضرت عمر رضي الله عنه روایت سوی حدیث هغه ته و وایه، بیا حضرت اویس رحمة الله علیه د هغه لپاره د مغفرت دعاء وکړه، د دې څخه وروسته کله چي د شام خلگو ته د حضرت اویس قرني رحمة الله علیه مقام معلوم سو او د هغه د حقیقیت حال خپور سو نو د هغه ځایه ولاړی.

په یوه روایت کي داسي دي چي اسیر بن جابر رحمة الله علیه بیان وکړ : په کوفه کي یو محدث وو چي زموږ په وړاندي به یې حدیثونه بیانول، کله چي به هغه د حدیثونو د بیانولو څخه فارغ سو نو خلک به منتشر سول مګر یو څو کسان به پر خپل ځای ناست وه او په هغوی کي یو داسي سړی هم وو چي عجیبي خبري به یې کولې ، هغه خبري ما د چا څخه نه وې اورېدلي، نو زه به هغه ته ورتلم او دهغه سره به کښېښستلم، یو وخت ما هغه سړی هلته پیدا نه کړ نو په خپلو ملګرو کي مي د یو چا څخه پوښتنه وکړل چي په تاسو کي فلانی سړی څوک پیژني چي دلته به زموږ سره کښېښستی او ډیري عجیبي خبري یې کولې، یو سړي وویل: هو، زه هغه سړی پېژنم، هغه قرني دی، ما پوښتنه وکړل : ایا تا ته د هغه د هستوګني ځای معلوم دی؟ هغه وویل: هو ، نو زه د هغه سړي سره روان سوم او د اویس قرني رحمة الله علیه حجرې ته په رسېدو سره مي دروازه وټکول، هغه دباندي راووتی ، ما پوښتنه وکړل چي اې زما وروره! ته ولي زموږ مجلس ته نه راځې، هغه جواب راکړ چي لوڅ والي، یعني زما سره دومره جامې نسته چي خپل بدن په پټ کړم ، په دې وجه ستاسو په منځ کي د راتلو څخه ځان ساتم، دا هم حقیقت دی چي د هغه د هیواد او شاوخوا خلک د هغه د حال په لېدو سره پر هغه مسخرې کوې او دهغه د تنګولو څخه هم نه منع کیږي ، په هر حال ما خپل یو څادر هغه ته ورکړ او دا مي ورته وویل: دا واخله ، دغه څادر پر ځان واچوه ، هغه وویل: نه ، ته دغه څادر مه راکوه ، خلک چي دغه څادر زما پر بدن ووینې نو پر ما به مسخرې وکړي او ما به تنګوي، بیا هم ما ډېر ټینګار وکړ نو هغه څادر واخیست او پر ځان یې واچوی، بیا دخپلي حجرې څخه راووتی او خلګو ته راغلی ، خلګو چي هغه په څادر کي ولیدی نو خلګو ویل: چا ته یې دوکه ورکړل او د چا څخه یې دغه څادر اخیستی دی، حضرت اویس رحمة الله علیه ددې په اورېدو سره ما ته وویل: ته وینې چي خلک څه وایي، ددغه بیري څخه ما څادر نه اخیستی ، ما هغه خلک و تړټل چي تاسو په ده څه کار لرئ ، دا هم یو انسان دی چي کله مجبور وي او کله الله جل جلاله یو څه ورکوي، خلاصه دا چي ما هغه وتړټل او لیري مي کړل ، بیا داسي پېښه سول چي څو ورځي وروسته کوفې ته خلک د حضرت عمر رضي الله عنه په خدمت کي حاضر سول ، په هغوی کي یو هغه سړی هم وو چي د حضرت اویس رحمة الله علیه سپکاوی به یې کوی، حضرت عمر رضي الله عنه د خبرو په دوران کي د هغه خلګو څخه پوښتنه وکړل چي ایا په تاسو کي داسي سړی هم سته چي د هغه تعلق د قرن سره دی، په خلګو کي هغه سړی رامخته سو چي د حضرت اویس رحمة الله علیه سپکاوی یې کوی، حضرت عمر رضي الله عنه د هغه په مخکي هغه حدیث بیان کړ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم د حضرت اویس رحمة الله علیه په شان کي فرمایلی وو ، او بیا یې هغه سړي ته وویل: ما

اورېدلي دي چي هغه يمني سړی (يعني اويس قرني) په کوفه کي تاسو ته راغلی دی، هغه سړي جواب ورکړ: په موږ کي خو داسي څوک نسته او نه موږ داسي سړی پېژنو، حضرت عمر ﷺ ورته وويل: تا ته به معلوم نه وي مګر هغه سړی په تاسو کي موجود دی او بيا يې د هغه نښه ورته وښودل چي هغه داسي بد حال او مفلس دی، بيا هغه سړي وويل: هو، داسي يو سړی په موږ کي سته چي د هغه نوم اويس دی او موږ په هغه مسخرې هم کوو، حضرت عمر ﷺ هغه سړي ته وفرمايل: اوس چي ته کوفې ته ولاړ سې او د هغه سړي سره يو ځای سې نو د خپلو بې ادبيو بخښنه ځيني وغواړه او د مغفرت د دعاء غوښتنه ور څخه وکړه، که څه هم ما ته شبه ده چي ته به هغه تر لاسه کړې که يا، په هر حال هغه سړی کوفې ته روان سو او هلته په رسېدو سره خپلي کورنۍ ته وروسته ولاړی لومړی د حضرت اويس قرني رحمة الله عليه په خدمت کي حاضر سو، حضرت اويس قرني چي هغه سړی وليدی نو هغه ته يې وويل: زما په اړه ستا دغه رويه څرنګه بدله سول، هغه سړي وويل: ما ستا تعريف د امير المؤمنين څخه اورېدلی دی، ستاسو په اړه هغه ما ته هر څه ښودلي دي، د خدای لپاره ما ته بخښنه وکړه، او زما لپاره د مغفرت دعاء وغواړه، حضرت اويس قرني رحمة الله عليه هغه ته وويل: زه ستا دپاره د مغفرت دعاء کوم مګر شرط دادی چي تا زما په اړه د امير المؤمنين څخه څه اورېدلي دي د هغه يادونه بل چا ته مه کوه، ددې څخه وروسته هغه د مغفرت دعاء ورته وکړل.

اسير بن جابر چې ددغه پېښي راوي دی بيان کوي چي ددې څخه وروسته د حضرت اويس قرني رحمة الله عليه مقام د کوفې او سېدونکو ته معلوم سو.

په يوه روايت کي د حضرت يحيی بن سعيد المسيب څخه او هغه د حضرت عمر فاروق ﷺ څخه نقل کوي چي حضرت عمر ﷺ وويل: يوه ورځ رسول الله ﷺ ما ته آواز وکړ چي اې عمر! ما وويل: حاضر يم اې دالله رسوله، حضرت عمر ﷺ وايي کله چي رسول الله ﷺ ما ته آواز وکړ نو ما ګمان وکړ چي د يو کار لپاره ما استوي مګر رسول الله ﷺ ما ته داسي وفرمايل چې اې عمر! زما په امت کي به يو سړی وي چي هغه ته به اويس ويل کيږي، د هغه بدن ته به يوه بلا يعني د پيس ناروغي لاحق وي، هغه به د الله ﷻ څخه دعاء وغواړي نو الله ﷻ به د هغه څخه ناروغي ليري کړي مګر د هغه يو داغ به د هغه پر بغل پاته سي، کله چي ته هغه ويني نو الله ﷻ به در په ياد سي. کله چي ته د هغه سره يو ځای سې نو هغه ته زما سلام ورسوه او د ځان لپاره د مغفرت د دعاء غوښتنه ور څخه وکړه ځکه چي هغه د خپل پروردګار په نزد داسي بزرګ دی که هغه د الله ﷻ په باور پر يوه خبره قسم وکړي نو الله ﷻ هغه قسم رېښتيا کوي، هغه به

الله ﷻ ته د دومره خلګو شفاعت کوي څومره چي د ربيعه او مضر په قبيلو کي هم خلګ نسته، حضرت عمر ﷛ بيان کوي چي ددغه ارشاد د اورېدو وروسته ما د هغه سړي پلټنه د رسول الله ﷺ په زمانه کي هم وکړل مګر ما هغه سړی پيدا نه کړ، بيا ما د حضرت ابوبکر صديق ﷛ د خلافت په زمانه کي د هغه پلټنه وکړل مګر هغه ته ونه رسېدم، بيا زما د خلافت زمانه راغلل نو ما زياته پلټنه وکړل تر دې چي د کومو ښارو او سيمو څخه قافلې راتلې د هر يوه څخه مي دا پوښتنه کول چي ايا په تاسو کي داسي څوک سته چي د هغه نوم اويس وي او د مراد قبيلې څخه وي او قرن وي، ددغه پلټنه په دوران کي يوه ورځ د قرن قبيلې سره تعلق لرونکي يو سړي ما ته وويل: اې امير المؤمنين! تاسو چي د کوم سړي په اړه پوښتنه کوئ هغه زما د اکا زوی دی مګر هغه خو ډېر غريب او بې حيثيته سړی دی، هغه دومره دی چي ستاسو په ډول عظيم کس د هغه پوښتنه کوي، ما هغه سړي ته وويل: ته د هغه په اړه د داسي سپکو الفاظو په استعمالولو سره د هغه خلګو څخه يې چي د هغه په اړه د بې ادبۍ اختيارولو په وجه په هلاکت کي يې، ما هغه سړي ته دغه خبره وکړل چي ناڅاپه يو اوښ رابنکاره سو چي پر هغه يو خرابه پالانه تړل سوې وه او پر هغه پالانه داسي سړی ناست وو چي په زړو جامو يې د خپل بدن يوه برخه پټه کړې وه، د هغه په ليدو سره زما په زړه کي راغلل چي دغه سړی اويس ﷫ دی، بيا زه هغه ته ور مخکي سوم، د هغه څخه مي پوښتنه وکړل چي ايا ته اويس قرني يې، هغه سړي جواب راکړ چي هو، ما ورته وويل: رسول الله ﷺ پر تا سلام ويلي وو، هغه سړي وويل: على رسول الله السلام وعليک يا امير المؤمنين، ددې څخه وروسته ما وويل: د رسول الله ﷺ دا حکم دی چي تاسو زما په اړه د مغفرت دعاء وکړئ، ددې وروسته زما معمول سو چي هر کال به مي د حج په وخت کي د اويس سره ليدنه کول، خپل احوال او اسرار به مي هغه ته بيانول او هغه به خپل اسرار ما ته بيانول.

په يوه روايت کي راغلي دي چي حضرت حسن بصري ﷫ بيان وکړ: کله چي د حج په ورځو کي د قرن خلګ راغلل نو امير المؤمنين حضرت عمر ﷛ به د هغوی څخه پوښتنه کول چي ايا په تاسو کي اويس سته؟ په هغوی کي يو سړي وويل: اې امير المؤمنين! د هغه سړي سره ستا څه کار دی، هغه خو يو داسي سړی دی چي په کنډوالو کي پروت دی او د خلګو په منځ کي د راتلو څخه پرهيز کوي، حضرت عمر ﷛ ورته وويل: کله چي ته بېرته ولاړ سې نو هغه ته زما سلام ورسوه او دا ورته ووايه چي زما سره ليدنه وکړي، هغه سړی په ستنېدو سره د حضرت عمر ﷛ پيغام هغه ته ورسوی او حضرت اويس قرني ﷫ د امير المؤمنين حضرت عمر ﷛

په خدمت کي حاضر سو ، حضرت عمر ﷺ پوښتنه وکړل: ايا ته اويس يې؟ هغه وويل: هو ، اې امير المؤمنين، حضرت عمر ﷺ پوښتنه وکړل : ستا پر بدن باندي سپين والي وو او تا د الله ﷻ څخه دعاء کړې وه چي د هغه په نتيجه کي الله ﷻ هغه سپين والي ايسته کړ او بيا تا دعاء کړې وه چي د هغه سپين والي يوه نښه پاته وي ، اويس رحمة الله عليه وويل: هو، مگر اې امير المؤمنين! ته په دغه پېښه چا خبر کړې؟ حضرت عمر ﷺ ورته وويل: ما ته رسول الله ﷺ ويلي وه او ما ته يې حکم کړی وو چي زه ستا څخه د ځان لپاره د مغفرت دَدعاء غوښتنه وکړم، نو حضرت اويس رحمة الله عليه د حضرت عمر فاروق ﷺ لپاره د مغفرت دعاء وکړل او بيا يې ورته وويل: اې امير المؤمنين! ستاسو څخه دا غواړم چي زما احوال او زما شخصيت پټ وساتئ او ما ته ددغه ځای څخه د تللو اجازه راکړئ نو حضرت اويس رحمة الله عليه د هميشه لپاره ځان پټ کړ تر دې چي د نهاوند په جگړه کي شهيد سو .

په يوه روايت کي سعيد بن المسيب رحمة الله عليه داسي بيان وکړ چي امير المؤمنين حضرت عمر ﷺ په منی کي پر منبر باندي ودرېدی او آواز يې وکړ چي: اې اهل قرن! قرني خلگ پر خپل خپل ځای ودرېږئ، هغوی وويل: موږ حاضر يو ، اې امير المؤمنين، څه حکم دی؟ امير المؤمنين حضرت عمر ﷺ پوښتنه وکړل: ايا په قرن کي داسي څوک سته چي د هغه نوم اويس وي؟ په هغوی کي يو سړي جواب ورکړ چي په موږ کي په دغه نامه هيڅوک نسته، مگر يو ليونی سړی اويس نوميږي چي په ځنگلو کي اوسيږي، د هغه سره څوک مينه نه لري او نه هغه د چا سره خبري او اختلاط کوي، حضرت عمر ﷺ ددې په اورېدو سره وويل: همدغه سړی زما مطلب دی، کله چي تاسو قرن ته ولاړ سئ نو هغه ته زما سلام ورسوئ او دا ورته ووايا ست چي رسول الله ﷺ ما ته ستا په اړه زيری راکړی دی او ما ته يې حکم کړی دی چي زه تا ته د رسول الله ﷺ سلام ورسوم، کله چي هغه خلگ قرن ته ورسېدل نو اويس رحمة الله عليه يې په رېگو کي پيدا کړ، هغه خلگو د حضرت عمر ﷺ سلام او د هغه په واسطه د رسول الله ﷺ سلام هغه ته ووايه، حضرت اويس رحمة الله عليه وويل: امير المؤمنين خو زه رسوا کړم او زما نوم يې مشهور کړ، السلام علی رسول الله ﷺ وعلي اله ، ددې په ويلو سره ځنگل ته ننوتی او تر ډېره وخته ورک وو ، تر دې چي د حضرت علي ﷺ د خلافت په زمانه کي ښکاره سو او د هغه له خوا په جگړه کولو سره د صفين په جنگ کي شهيد سو .

د صعصه بن معويه ﷺ په روايت کي داسي دي چي هغه بيان وکړ: د اهل کوفې کومه قافله چي به حضرت عمر ﷺ ته راتلل نو د هغه څخه به يې پوښتنه کول چي ايا تاسو اويس بن

عامر رحمۃ اللہ علیہ پېژنئ؟ د قافلې خلګو به جواب ورکوئ چې په موږ کې هیڅوک په دغه نامه نسته، او حقیقت دا دی چې په هغه زمانه کې حضرت اویس قرني رحمۃ اللہ علیہ د کوفې په یو مسجد کې پروت وو، د هغه ځایه دباندې نه راوتی او نه یې د چا سره شناخت کوی، د هغه د اکا یو زوی وو چې هغه به یې ډېر په تکلیف کوی، د اتفاق خبره ده چې د کوفې په یوه قافله کې هغه هم یو وار د حضرت عمر رضی اللہ عنہ دربار ته ورسېدی، حضرت عمر رضی اللہ عنہ د معمول سره سم د قافلې د خلګو څخه پوښتنه وکړل چې تاسو حضرت اویس قرني رحمۃ اللہ علیہ پېژنئ؟ ددې په اورېدو سره د حضرت اویس قرني رحمۃ اللہ علیہ د اکا زوی پر خپل ځای ودرېدی او هغه وویل: اې امیر المؤمنین! اویس قرني دومره ستر سړی نه دی چې تاسو د هغه په اړه پوښتنه کوئ او د هغه پېژندنه تر لاسه کړئ هغه خو ډېر کمتر او بې حیثیته انسان دی، که څه هم هغه زما د اکا زوی دی، کله چې حضرت عمر رضی اللہ عنہ د هغه سړي د ژبې څخه دغه د سپکاوي الفاظ واورېدل نو وه یې فرمایل: پر تا دې افسوس وي، تا د اویس رحمۃ اللہ علیہ په اړه داسې الفاظ استعمال کړل او خپل ځان دې په هلاکت کې واچوی، بیا حضرت عمر رضی اللہ عنہ هغه حدیث بیان کړ چې هغه د رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم څخه د حضرت اویس رحمۃ اللہ علیہ په اړه اورېدلی وو، ددې څخه وروسته حضرت عمر رضی اللہ عنہ هغه سړي ته وویل: کله چې ته اویس ته ورسې نو هغه ته زما سلام ووایه، ددغه پېښې څخه وروسته د حضرت اویس رحمۃ اللہ علیہ شخصیت مشهور سو مګر هغه د عامو نظرو څخه پټ سو.

په دې اړه یو روایت د حضرت ابن عباس رضی اللہ عنہ څخه هم منقول دی چې مخکې خو تر لسو کالو پورې حضرت عمر فاروق رضی اللہ عنہ د حضرت اویس قرني رحمۃ اللہ علیہ په اړه پلټنه ونه کړل بیا هغه یو کال د حج په وخت کې اهل یمن ته په آواز کولو سره وویل: په تاسو کې کوم خلګ چې د مراد قبیلې سره تعلق لري هغه دې ودرېږي، نو د مراد قبیلې خلګ ودرېدل او پاته خلګ پر خپل خپل ځای ناست وه، حضرت عمر رضی اللہ عنہ د هغو خلګو څخه پوښتنه وکړل: ایا په تاسو کې اوس نامې سړی سته؟ ددې په اورېدو سره یو سړي وویل: اې امیر المؤمنین! موږ ته نه ده معلومه چې تاسو د کوم اویس پوښتنه کوئ. زما یو وراره دی چې خلګ ورته اویس وایې او هغه دومره د کښته درجې او بې حیثیته انسان دی چې ستاسو په ډول ستر کس د هغه سره کار نه لري. حضرت عمر رضی اللہ عنہ پوښتنه وکړل: ایا هغه د حرم په حدودو کې موجود دی؟ هغه وویل: هو د عرفات د میدان سره په اراک کې اوښان څري چې د یو شپانه څخه زیات حیثیت هغه ته څوک نه ورکوي، کله چې حضرت عمر رضی اللہ عنہ دا واورېدل نو حضرت علي رضی اللہ عنہ یې د ځان سره بوتلی او دواړه پر یو خره باندې په سپرېدو سره اراک ته روان سول، کله چې هلته ورسېدل نو وه یې لیدل چې

اویس رحمۃ اللہ علیہ ولاړ دی، لمونځ کوي او نظر يې د سجدې ځای ته دی، د هغه دغه حالت په لېدو سره حضرت عمر او حضرت علي رضی اللہ عنہما په خپلو کي وويل: د کوم سړي چي موږ پلټنه کوو هغه هم دغه سړی معلومېږي، کله چي د حضرت اویس رحمۃ اللہ علیہ غوږو ته د دوی دواړو آواز ورسېدی نو هغه لمونځ لنډ ادا کړ او په فارغه کېدو سره هغوی ته متوجه سو، هغه دواړو ته سلام وکړ او دواړو د سلام د جواب په ویلو سره وویل: وعلیکم السلام ورحمة الله، بیا حضرت عمر او حضرت علي رضی اللہ عنہما پوښتنه وکړل: اې وروره! ستا نوم څه دی؟ اویس وویل: زه عبدالله یم، حضرت علي رضی اللہ عنہ ورته وویل: موږ ته معلومه ده چي پر آسمانو او ځمکه باندي کوم متنفس دی هغه عبدالله دی، زه تا ته د کعبې د پروردګار قسم کوم چي ستا هغه نوم څه دی کوم چي ستا مور پر تا اېښی دی؟ حضرت اویس رحمۃ اللہ علیہ وویل: تاسو زما څخه څه غواړئ، زما نوم اویس بن مراد دی، حضرت عمر رضی اللہ عنہ او حضرت علي رضی اللہ عنہ ورته وویل: خپل چپه بغل ښکاره کړه، حضرت اویس رحمۃ اللہ علیہ خپل چپه بغل لوڅ کړ، هغه دواړو ولیدل چي د یوه درهم په اندازه د سپین والي نښه موجود ده، دواړه په تیزي سره اویس رحمۃ اللہ علیہ ته ور وړاندي سول چي هغه نښه مچ کړي او هغوی وویل: رسول الله ﷺ موږ ته حکم راکړی وو چي موږ د رسول الله ﷺ سلام تا ته ورسوو او دا چي د ځان لپاره ستا څخه د مغفرت د دعاء غوښتنه وکړو، حضرت اویس رحمۃ اللہ علیہ وویل: زه د ختیځ او لویدیځ د هر مسلمان سړي او نارینه لپاره دعاء کوم، هغه دواړو حضراتو وویل: موږ ته په خاصه توګه د مغفرت دعاء وکړه، نو حضرت اویس رحمۃ اللہ علیہ په خاصه توګه د هغوی لپاره د مغفرت دعاء وکړل، تردې وروسته حضرت عمر رضی اللہ عنہ وویل: زه د خپل ځانه خپله تحفه تاسو ته وړاندي کول غواړم، حضرت اویس رحمۃ اللہ علیہ وویل: دغه دوې زړې جامې زما سره دي، ما دواړې ځپلي تړلي دي، څلورم درهم زما سره دی، کله چي دغه ختم سي نو ستا تحفه به قبوله کړم او دانسان خبره خوداده چي څوک د اونۍ په اندازه خواهش ولري نو دهغه غوښتنه تر میاشت پوري اوږدیږي، او څوک چي د میاشت په اندازه غوښتنه ولري نو دهغه غوښتنه تر کال پوري اوږدیږي، ددې وروسته حضرت اویس رحمۃ اللہ علیہ اوښان خپلو خاوندانو ته وسپارل او خپله د هغه ځای څخه داسي ورک سو چي بیا هیڅکله ونه لیدل سو.

## د اهل یمن فضیلت

﴿۶۰۰۸﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَتَاكُمْ أَهْلُ

د حضرت ابوهریره رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي ابوموسی اشعري رضی اللہ عنہ او د هغه قوم چي د رسول الله

ﷺ په خدمت کي حاضر سو نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: تاسو ته

**الْيَمَنِ هُمْ أَرَقُّ أَفْئِدَةً وَأَلْيَنُ قُلُوبًا الْإِيمَانُ يَمَانٍ وَالْحِكْمَةُ يَمَانِيَةٌ وَالْفَخْرُ**

د يمن خلک راغلي دی چي د هغوی زړه ډير نوي او نرم دي، ايمان ديمن دی او حکومت هم يمني دی او فخر

**وَالْخُيَلَاءُ فِي أَصْحَابِ الْإِبِلِ وَالسَّكِينَةُ وَالْوَقَارُ فِي أَهْلِ الْغَنَمِ. متفق عليه.**

او کبر کول په اوښانو والا کي دی او قراري او سکون په خاوندانو د پسو کي دی. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\ ۹۸، رقم: ۴۳۸۸، ومسلم ۱\ ۷۲، رقم: ۸۴- ۵۲.

**تشريح**: په (ارق افئدة) کي د ارق لفظ د رقة څخه اخيستل سوی دی، چي معنی يې د نرمۍ او رحم کولو ده چي د قساوت يعني بې رحمۍ او سختۍ ضد دی، افئدة د فؤاد جمع ده چي معنی يې د زړه ده، د ځينو حضراتو وينا ده چي فؤاد د زړه باطن ته وايي او دځينو په نزد ددغه لفظ اطلاق پر ظاهري زړه باندي کيږي، په هر حال د ارق افئدة مطلب دادی چي د مؤمن په باطن کي د نرمۍ، شفقت او رحم ماده زياته وي، او د الين قلوبا (نرم زړه) مطلب دادی چي مؤمنان د ظاهر په اعتبار د نصيحت او موعظت اثر د نورو خلکو په نسبت ژر قبلوي، د قبول حق استعداد د نورو خلکو په نسبت دهغوی په زړه کي زيات وي.

شيخ عبدالحق دهلوي رحمه الله ليکلي دي: افئدة د فؤاد جمع ده چي معنی يې دزړه ده او قلوب د قلب جمع ده چي د تقلب څخه دی او معنی يې د بدلېدو ده، يعني د يوه حالت په پرېښودو سره دوهم حالت ته راتلل، اکثر اهل لغت د فؤاد او قلب ذکر په يوه معنی کي کوي څکه ويل کيږي چي په مدينه کي ددغه دواړو ذکر د تاکيد لپاره دی، ځرګنده دي وي چي دغه حديث د باب وفاة النبي ﷺ په دريم فصل کي هم نقل سوی دی مګر هلته يوازي د ارق افئدة الفاظ دي او دالين قلوبا الفاظ نسته، او ددې څخه هم دا ظاهريږي چي د معنی په اعتبار دغه دواړي جملې يو ډول دي، ځينو حضراتو ويلي دي چي فؤاد په اصل کي د زړه پردې ته وايي کله چي دغه پرده نرۍ وي نو حق خبره په هغه کي داخليږي او زړه ته رسيږي او کله چي زړه نرم وي نو هغه حق خبره په هغه کي دننه هم داخليږي، نو رقت د غلظت ضد دی او لين د صلابت ضد دی او دغه دواړه د اسلامي زړه د يو خاص کيفيت او حالت نمونه دي، کله چي د انسان زړه د الله جل جلاله د نازل سوو آياتونو او د غوره بندګانو د نصيحت څخه نه متاثره کيږي نو هغه په غلظت او

صلابت سره منسوب کیږي او کله چي د انسان زړه د هغه څخه متاثر کیږي نو هغه په رقت او لین سره موصوف کیږي ، دلته د طیبي رحمه الله وینا داده چي کیدای سي په حدیث کي د رقت څخه مراد فهم او د لین څخه مراد د حق خبري قبلول وي .

ایمان د یمن دی او .....: دلته د یمانیه لفظ په ځینو روایتو کي د یاء په تشدید سره یمانیّه هم منقول دي، په هر حال رسول الله ﷺ ایمان او حکمت د یمن سره ځکه منسوب کړل چي د هغه وخت د نورو اهل مشرق په مقابله کي د یمن خلګ تر ټولو زیات د ایمان په کمال متصف وه او څرنګه چي د باب بدء الخلق په روایت کي تېر سول ، دا حضرت ابو موسی اشعري رضی الله عنه وو چي د اسلام قبلولو لپاره د خلګو د مشرۍ کولو سره د رسول الله ﷺ په خدمت کي د حاضرېدو په وخت کي یې د رسول الله ﷺ څخه د علم، ابتدائي کائنات او په دې اړه د حکم او اسرار پوښتنه وکړل او په حکمت او پوهي سره یې د یمني خلګو د فطري تعلق اظهار وکړ ، او دغه حکمت او پوهه د دوی وراثت وو ، چي د هغه ظهور د حضرت ابو الحسن اشعري په ذات کي وسو چي د اهل سنت والجماعت د امامانو څخه دی او د حضرت ابو موسی اشعري رضی الله عنه د اولاد څخه دی، ددې څخه معلومه سول چي دلته د حکمت څخه مراد هغه علم دی چي په هغه کي د هر موجود د احوالو او خصائصو او حقیقت او ماهیت څخه بحث کیږي بیا هم ځینو حضراتو لیکلي دي چي دلته د حکمت څخه مراد فقه في الدین دی ، او ځینو حضراتو ویلي دي چي د حکمت څخه مراد د نیکي خبري را ایستل دي چي په دنیا او آخرت دواړو کي ګټوره وي او د هلاکت څخه ژغورنکې وي .

فخر او تکبر د اوښانو په خاوندانو کي دی....: ددغه ارشاد څخه معلومه سول چي د حیوانانو او څارویو تعلق د انسان پر طبیعت باندي اثر کوي . څوک چي د حیوانانو سره زیات وخت تېروي په هغه کي د حیوانانو خوی او خصلت سرایت کوي، د مثال په توګه یو سړی د اوښانو سره ډېر اوسیږي او د اوښانو څرل کوي نو د اوښ په طبیعت کي قسادت او سختي ده ځکه د هغه سړي په خوی او عادت کي هم قسادت او غلظت (سختي) پیدا کیږي، همدارنګه پسونه داسي څاروي دي چي د هغه په طبیعت کي تحمل، نرمي او مسکیني ده نو کوم څوک چي زیات وخت د پسو سره اوسیږي او پسونه څري نو دهغه په خوی او عادت کي هم تحمل، نرمي او مسکیني راځي، همدارنګه نور حیوانان قیاس کیدای سي .

ځینو حضراتو دا لیکلي دي چي د پسو ساتونکو او پسو څرونکو سره نژدې اوسیږي او د کلي د خلګو سره ګډ وي ځکه چي پسونه د اوبو څخه ماسوا صبر نه سي کولای او د ډېر یخ او

ډيري ګرمۍ تاب نه لري په دې وجه هغوی د کلي څخه ليري او ميداني سيمو ته نه ځي چې د دې خبري علامه ده چې د هغوی په طبيعت کي نرمي او کمزوري شامله ده او په ځينو سيمو کي او دخلګو په منځ کي اوسېدل داسي شی دی چي په طبيعت کي نرمي او مروت پيدا کوي او اطاعت يې ته بيايي او دخپل حاکم د سرکښۍ څخه يې منع کوي، ددې پر خلاف اوښ يو سخت طبيعته حيوان دی ، هغه د کلي او ښارو څخه ليري په ميدانو او صحراوو کي زيات اوسيږي او له دې کبله د اوښانو خاوندانو ته هم د کلي او ښار څخه ليري اوسېدل وي او دخلګو سره د هغوی يو ځای کېدل کم وي او دا داسي دی چي په طبيعت کي سختي او سرکښي او د حاکم د اطاعت څخه د مخ اړولو ماده پيدا کوي، ددغه جملې په وضاحت کي يو قول دا هم دی چي اوښ د ماليت په اعتبار ډېر بيه لرونکی او لوی سامان دی ، ددې پر خلاف پسونه کم بيه او لږ سامان وي ، څرګنده ده چي د کوم چا سره اوښان وي هغه خپل ځان ډېر شتمن ګڼي او دغه خبره هغه په غرور او تکبر کي اخته کوي او د کوم سړي سره چي پسونه وي هغه خپل ځان زيات شتمن نه ګڼي او دغه خبره په هغه کي نرمي او قناعت پيدا کوي .

## د کفر سرچشمه د مشرق څخه ده

﴿۶۰۰۹﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأْسُ الْكُفْرِ نَحْوَ الْمَشْرِقِ وَالْفَخْرُ وَالْخُيَلَاءُ فِي أَهْلِ الْخَيْلِ وَالْإِبِلِ وَالْفَدَّادِينَ أَهْلِ الْوَبَرِ وَالسَّكِينَةُ فِي أَهْلِ الْغَنَمِ. متفق عليه.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د کفر سر د مشرق په طرف کي دی، فخر او تکبر کول د آسانو او اوښانو په خاوندانو کي دی او په چغو وهونکو خاوندانو د خېمو کي دی او آرام او سکون په خاوندانو د پسو کي دی . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳۵۰/۶، رقم: ۳۳۰۱، ومسلم ۷۲/۱، رقم: ۸۵- ۵۲.

**د لغاتو حل**: الفدادين: اي الفلاحين (برياليي).

**تشريح** د کفر د څوکي څخه مراد لوی کفر دی ، لکه چي سيوطي رحمه الله ليکلي دي او دغه مفهوم اخيستل زيات صحيح دی چي د کفر د پيدا کېدو او ظاهرېدو ځای ختيځ دی ، طيبي رحمه الله ويلي دي: دغه جمله داسي ده لکه چي فرمايل سوي دي: راس الامر الاسلام، د دين څوکه اسلام دی، يعني د کفر څوکه ختيځ خوا ته ده ، ددې مطلب دا سو چي د کفر زيات ظهور د

ختيځ خوا ته وي او ابن ملک هم دا معنی ليکلې ده چي کفر او دجال او يا جوج وماجوج لوی فتنې به د ختيځ خوا څخه ظاهريږي، نووي رحمة الله عليه د دغه حديث په تشريح کي ليکلي دي چي د کفر د ختيځ سره مختص کولو مطلب پر اهل ختيځ باندي د شيطان زيات تسلط ظاهرول دی او دا د رسول الله ﷺ د زمانې په اعتبار دی، يعني د رسول الله ﷺ په زمانه کي د ختيځ خوا خلګ په کفر او شرک کي زيات اخته وه، لکه څرنګه چي تاتار هندوستان، چين، جاپان او داسي نور خلګ، او دغه هيوادونه د عربو څخه ختيځ خوا ته واقع دي، او ددې اطلاق په دې اعتبار په راتلونکي زمانه باندي هم کيدای سي چي د دجال ظهور او خروج به د هغه سيمو څخه وي چي د عربو ختيځ خوا ته پرتې دي، نو په آخره زمانه کي به د عربو ختيځ ترټولو لوی د فتنې ظاهرېدو ځای وي، سيوطي د باجي په حواله سره نقل کړي دي چي دلته د ختيځ څخه مراد فارس (ايران) دی يا نجد او ځينو حضراتو ليکلي دي چي دلته ابليس ته اشاره ده لکه څرنګه چي په روايتو کي راځي چي لمر د شيطان د دوو ښکرو په منځ کي راخيژي يعني کله چي په ختيځ کي لمر راوخيژي نو هغه وخت به شيطان خپل سر لمر ته نژدې کوي چي د لمر عبادت کونکو سجده د هغه لپاره سي.

## د فتنو ځای مشرق دی

﴿۶۰۱۰﴾: وَعَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الانصاري عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مِنْ هَا هُنَا جَاءَتِ الْفِتَنُ نَحْوَ الْمَشْرِقِ وَالْجَفَاءُ وَغِلَظُ الْقُلُوبِ فِي الْفَدَّادِينَ أَهْلِ الْوَبَرِ عِنْدَ أُصُولِ أَذْنَابِ الْإِبِلِ وَالْبَقَرِ فِي رَبِيعَةَ وَمُضَرَ. متفق عليه

د حضرت ابو مسعود انصاري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ددغه ځای څخه فتنې راغلي دي، د مشرق طرف ته يې اشاره وکړه، او جفا کاري او سخت دلي په چغو وهونکو خاوندانو د څېمو کي دي چي د اوښانو او غواوود لکيو په ښخونو پسي لګيدلي دي او دا خلک د قبيله ربيعه او مضر دي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۶\۵۲۶، رقم: ۳۴۹۸، ومسلم ۱\۷۱، رقم: ۸۱- ۵۱.

**تشريح**: فتنې د دغه ځای څخه راغلي دي: يعني هغه فتنه چي د دين په استحکام او پرمختګ کي خنډ اچوي، اسلام او مسلمانانو ته تاوان رسوي او د خلکو دين د ژوند لپاره د امتحان سبب ګرځوي، د دغه سيمو او هيوادو څخه به را پورته کيږي چي د عربو ختيځ خوا ته واقع دي.

په چغو وهونکو خاوندانو د خېمو کي دي: ددې څخه مراد يا خو صحرايان دي او يا نور غير مهذب قبيلې او ځنګلي خلګ، د دوی بدي ځکه وکړل سول چي داسي خلګ د مهذب او پرمخ تللي نړۍ څخه ليري په غرونو او ځنګلونو کي پراته وي چي د هغه په سبب نه خو هغوي ته د علم رڼا رسيږي او نه د تهذيب او تمدن خوی په هغوی کي وي ، او په ښارو کي په اوسېدو سره د اهل علمو او نيکو بندګانو صحبت هم په برخه کيږي او په دې ذريعه نه يوازي دا چي د دين او شريعت علوم او احکام حاصليږي بلکه اخلاق او کردار او مهذب او نيک جوړيږي، همدارنګه غير مهذب قبيلو او ځنګلي خلګو په باره کي الله ﷻ فرمايي :

الأَعْرَابُ أَشَدُّ كُفْرًا وَنِفَاقًا وَأَجْدَرُ أَلاَّ يَعْلَمُواْ حُدُودَ مَا أَنزَلَ اللّهُ عَلَى رَسُولِهِ...

ژباړه: او اعراب (يعني غير مهذب او ځنګلي خلګ) په کفر او نفاق کي ډېر سخت دي او دهغوی حال داسي کېدل پکار دي چي هغوی ته د هغه احکامو علم نه وي کوم چي الله ﷻ په خپل رسول باندي نازل کړي دي .

## سخت زړه توب او بدزباني په مشرق والاوو کي ده

﴿۶۰۱۱﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غِلَظُ الْقُلُوبِ وَالْجَفَاءُ فِي الْمَشْرِقِ وَالْإِيمَانُ فِي أَهْلِ الْحِجَازِ. رواه مسلم.

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : سنګدلي او جفاء په مشرق والاوو کي ده او ايمان په حجاز والاوو کي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\ ۷۳، رقم: ۹۲- ۵۳.

**تشريح** د حجاز څخه مراد مکه، مدينه، طوائف او شاوخوا سيمي دي، او دهغوي وينا ده چي دلته د حجاز د خلګو څخه مراد انصار دي ، حجاز د عربو هغه خطې ته وايي چي د نجد او تهامه په منځ کي ده او ددغه خطې نوم حجاز ځکه سو چي دغه خطه د نجد او تهامه په منځ کي حاجز يعني حائل ده ، نجد د جزيره العرب شمال او جنوبي ريګستان يعني د النفوذ او الرابع الخالي په منځ کي تقريبا اته سوه ميله اوږد او دوه سوه پنځه ويشت ميله عريض هغه خطې ته وايي چي پر سطح مرتفع باندي مشتمله ده ، د نجد معنی د لوړي ځمکي ده او ددې په مقابله کي ددغه هيواد کومه برخه چي کښته ده هغه ته تهامه ويل کيږي، د تهامه معنی د کښته ځمکي ده .

## د شام او يمن فضيلت

﴿۶۰۱۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللّٰهُمَّ بَارِكْ لَنَا

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: اې الله! زموږ لپاره زموږ

فِي شَأْمِنَا اللّٰهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِي يَمَنِنَا قَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ وَفِي نَجْدِنَا قَالَ اللّٰهُمَّ

په شام کي برکت واچوې او اې الله! زموږ لپاره زموږ په يمن کي برکت پيدا کړې، صحابه کرامو عرض وکړ اې د الله رسوله! او زموږ په نجد کي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: اې الله!

بَارِكْ لَنَا فِي شَأْمِنَا اللّٰهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِي يَمَنِنَا قَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ وَفِي نَجْدِنَا

زموږ لپاره زموږ په شام کي برکت واچوې او اې الله! زموږ لپاره زموږ په يمن کي برکت واچوې، صحابه کرامو بيا عرض وکړ اې د الله رسوله! او زموږ په نجد کي؟ د راوي بيان دی

فَأَظُنُّهُ قَالَ فِي الثَّالِثَةِ هُنَاكَ الزَّلَازِلُ وَالْفِتَنُ وَبِهَا يَطْلُعُ قَرْنُ الشَّيْطَانِ. رواه البخاري

زما خيال دی چي په دريم وار د صحابه کرامو په جواب کي رسول الله ﷺ دا وفرمايل چي هلته به زلزلې او فتنې وي او د هغه ځای څخه به د شيطان ښکر ځرګنديږي. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۴۵، رقم: ۷۰۹۴.

**تشريح** په دعاء کي د شام يادونه د يمن پر يادوني مخکي کول کېدای سي ددې لپاره وي چي د الله جل جلاله د ارشاد (الذي باركنا حوله) په وجه د شام هيواد چيري چي فلسطين واقع دی د خپل اصل په اعتبار بابرکته دی او د غه هيواد د ډېرو زياتو نبيانو آخري آرام ګاه دی په دې نسبت سره د دغه ذکر مخکي کېدل ضروري وو. ځرګنده دي وي چي په شام کي د برکت څخه مراد يا خو د هغه ځای په برکتونو کي زياتوب وي يا داسي برکت چي اهل مدينه او ټولو مؤمنانو ته بالخصوص حاصل وي همدارنګه په يمن کي د برکت څخه ظاهري او معنوي دواړه برکتونه مراد دي، همدارنګه په يمن کي د برکت څخه ظاهري او معنوي دواړه برکتونه مراد دي چي الله جل جلاله دغه هيواد په ظاهر کي هم خوشحاله کړی دی او په ديني او روحاني توګه هم د هغه ځای خلک ديندار، نيک او صالح وي، نو يمن الله جل جلاله نه يوازي دا چي په مادي توګه خوشحاله او

شین هیوادګرځولي دی بلکه د هغه ځای په مځکه کي ډېر زیات اولیاء او صالحان هم سته.

د یوه قول مطابق ددغه دواړو هیوادو لپاره د برکت د دعاء ظاهري داعیه دا هم وه چي داهل مدینې لپاره غله او نور خوراکي شیان ددغه دوو هیوادو څخه راتلل او یو شارح دا لیکلي دي چي رسول الله ﷺ د یمن او شام دپاره د برکت دعاء ځکه وفرمایل چي د رسول الله ﷺ د ولادت او ظهور رسالت ځای مکه دی او مکه مکرمه د یمن سره قربت لري.

او کله چي د رسول الله ﷺ هستوګن ځای او مدفن مدینه منوره دی او مدینه منوره د شام سره قربت لري او په دې کي شک نسته چي دغه شی یعني د یمن قربت دمکې سره او د شام قربت د مدینې سره د دواړو د فضیلت لپاره کافي دی او ځکه رسول الله ﷺ ددغه دواړو هیوادو اضافت خپل ځان ته په کولو سره زموږ شام او زموږ یمن وفرمایه، او دهغوی د شان زیاتولو لپاره یې د جمع ضمیر استعمال کړ او دهغوی په حق رسول الله ﷺ درې واره د برکت دعاء وفرمایل.

هلته به زلزلې وي.....: په دغه جمله کي دهلته څخه مطلب د نجد خوا ده او د نجد د خوا څخه مراد دغه د حجاز ختیځي خواوي دي چي د هغه یادونه په تېر سوي حدیث کي د نحو المشرق په الفاظو کي راغلې ده، د زلزلو څخه مراد ظاهري زلزله هم ده او معنوي زلزله هم، معنوي زلزله داده چي دهغه ځای د خلګو د زړو بې قراره کېدل او روحاني سکون ختمېدل او د فتنو څخه مراد آفات او مصائب دي چي په هغه سره په دین کي ضعف او کمزوري، په نیکی او دیانت کي کمي راځي.

او دهغه ځایه به د شیطان ښکاره کیږي: ددې مطلب دا وو چي نجد زموږ په هغه خوا کي واقع دی چیري چي د کفر او فتنو زور دی یعني نجد په هغه سیمه کي دی چیري چي د شیطان ډله او دهغه مرسته کوونکي زیات دي نو دداسي سیمو په اړه د برکت دعاء کول مناسب نه دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### داهل یمن لپاره دعاء

﴿۶۰۱۳﴾: عَنْ أَنَسٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَظَرَ قِبَلَ الْيَمَنِ فَقَالَ اللّٰهُمَّ أَقْبِلْ بِقُلُوبِهِمْ وَبَارِكْ لَنَا فِي صَاعِنَا وَمُدِّنَا. رواه الترمذي

حضرت انس رضی الله عنه د زید بن ثابت رضی الله عنه څخه روایت کوي چي نبي کریم ﷺ یمن ته وکتل او وه یې فرمایل: اې الله! د دوی زړونه زموږ په لور متوجه کړې او زموږ په صاع او زموږ په مد کي

زموږ لپاره برکت راکړي. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۶۸۲، رقم: ۳۹۳۴.

**تشريح**: د اهل يمن زړونه متوجه کړئ: يعني دهغوی په زړو کي زموږ مينه او موږ ته د راتلو خيال واچوئ چي هغوی د مدينې راتللو ته اماده او تيار سي، څرګنده دي وي چي رسول الله ﷺ دغه دعاء هغه وخت وفرمايل کله چي د مدينې لپاره خوراکي شيان د يمن څخه راتلل ځکه رسول الله ﷺ وروسته د غلې لپاره په صاع او مد کي د برکت دعاء وفرمايل چي زياته غله د يمن څخه راځي.

صاع او مد د هغه وخت دوې پيمانې دي چي د هغه په ذريعه د غلې راکړه او ورکړه کېدل، صاع تقريبا درې نيم سيره غله کېدل او په مد کي د هغه څلورمه برخه، دلته په صاع او مد کي د برکت څخه مراد په غله کي برکت دی يعني د ظرف په ويلو سره مظروف مراد اخيستل سوی دی، توربشتي رحمة الله عليه د دغه دعاء په وضاحت کي ليکلي دي چي د دعاء د دواړو برخو څخه تنګ حال او تنګ معاش را روان وي اوس چي رسول الله ﷺ د اهل يمن په حق کي دعاء وفرمايل او دخپل هيواد په پرېښودو سره مدينې ته راغلی نو د هغوی شمېر زيات وو، او د رسول الله ﷺ په ذهن کي دا خبره وه چي د دومره زياتو خلګو په راتللو سره د مدينې معاشي حالت نور زيات تنګ او خراب کېدا ايسي ځکه رسول الله ﷺ د اهل مدينه د خوراکي ضرورت يعني په غله کي د برکت دعاء وفرمايل چي اهل مدينې ته هم د معاش پراخي ترلاسه سي او هغو خلګو ته هم چي د خپل هيواد څخه په هجرت کولو سره مدينې ته راتلونکي دي او همدارنګه نه خو په مدينه کي د راتلونکو په وجه تنګي او پريشاني وي او نه د هغه خلګو لپاره د مدينې هستوګنه د تکليف او پريشانۍ سبب جوړ سي کوم چي په هجرت کولو سره مدينې ته راسي.

## اهل شام ته خوشبختي

﴿۶۰۱۴﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طُوبَىٰ لِلشَّامِ فَقُلْنَا لِأَيٍّ ذٰلِكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ لِأَنَّ مَلَائِكَةَ الرَّحْمٰنِ بَاسِطَةٌ أَجْنِحَتَهَا عَلَيْهَا. رواه احمد والترمذي.

د حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د شام اوسيدونکو لپاره خوشحالي ده دی، موږ عرض وکړ اې دالله رسوله! تاسو دا څنګه وويل؟ رسول الله ﷺ

وفرمایل: ځکه چي د خدای ملائکو پر شام خپل وزرونه خپاره کړي دي. احمد او ترمذي

**تخریج**: مسند الامام احمد ۵\ ۱۸۴، والترمذي ۵\ ۶۹۰، رقم: ۳۹۵۴.

**تشریح** شیخ عبدالحق رحمة الله علیه دا لیکلي دي چي دغه جمله (ملائکو خپل وزرونه خپاره کړي وي) ددې خبري کنایه ده چي پر خاص اهل شام یعني ددغه هیواد پر ابدال یا ټولو اهل شامو باندي د الله جل جلاله رحمت او راحت خپور سوی دی.

څرګنده دي وي چي د ملائکو د وزرو څخه مراد صفات او قوائي ملکیه دي د هغوی وزرونه ددغه دنیا پر مرغانو باندي قیاس کول نه دي پکار ځکه چي د یو مرغه تر درې یا څلور زیات وزرونه نه وي حال دا چي رسول الله ﷺ د معراج په شپه د حضرت جبرائیل علیه السلام شپږ سوه وزره لیدلي دي، خلاصه دا چي دا منل او ثابتول چي د ملائکو وزر دي مګر دهغه وزرونو ماهیت او حقیقت او د کیفیت بحث او بیان کول نه دي پکار.

## د حضر موت ذکر

﴿۶۰۱۵﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَتَخْرُجُ نَارٌ مِنْ نَحو حَضْرَمَوْتَ أَوْ مِنْ حَضْرَمَوْتَ قَبْلَ تَحْشُرُ النَّاسَ قلنا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَمَا تَأْمُرُنَا قَالَ عَلَيْكُمْ بِالشَّامِ. رواه الترمذي.

د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: ډیر ژر د حضر موت د لوري به یو اور راووځي او دا اور به خلک جمع کړي، موږ عرض وکړ اې د الله رسوله! تاسو موږ ته څه حکم راکوئ، رسول الله ﷺ وفرمایل: تاسو شام ته ولاړ سئ. ترمذي

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\ ۴۳۱، رقم: ۲۲۱۷.

**تشریح** یا دا یې وفرمایل. دا د راوي شک دی چي رسول الله ﷺ یا خو د من نحو حضرت موت. الفاظ ویل او یا من حضرت موت، یې فرمایلي وه، بیا هم که چیري رسول الله ﷺ د نحو لفظ په ظاهر کي استعمال کړی نه وو نو بیا هم د من نحوها یا من جانبها مفهوم مراد وو، د اور څخه یا خو په حقیقت کي دغه ظاهر اور مراد دی او یا د اور څخه فتنې او شر مراد دي، حضرت موت هغه وخت د یو ښار نوم وو چي په یمن کي شامل وو مګر اوس د یوې پوره سیمه نوم دی چي دهغه سرحدونه د یمن سره نژدې پیل کېدو سره د عمان نژدې ته رسیدلي دي.

تاسو بايد شام ته ولاړ سئ: ځکه چي د شام مځکه د رحمت ملائکو راګير کړې ده، ځکه هلته اوسېدونکو ته د هغه اور څخه، که هغه حسي وي يا ظاهري اور وي يا معنوي او حکمي اور يعني فتنې او شرونه ورته هيڅ تاوان نه سي رسولای، څرګنده دي وي چي د قيامت سره متعلق د يو باب په حديث کي د اور ذکر راغلی وو چي د خلګو په جمع کولو سره به محشر ته بيايي، په دې کي د محشر څخه مراد د شام مځکه ده او د دغه حديث څخه دا معلومېږي چي هغه وخت به خلک د هغه اور تر اثر لاندي وي، شام ته په بيولو کي به د هغوی خپل اختيار نه وي، کله چي دلته تاسو ته شام ته تلل پکار دي، د دغه الفاظو مفهوم مخته راځي چي شام ته په بېولو کي به د هغوی خپل اختيار نه وي نو دا ويل زيات صحيح معلومېږي چي دلته په حديث کي د حضرت موت د خوا څخه د ظاهرېدونکي اور ذکر دی، د دې څخه په حقيقت کي اور مراد نه دی بلکه هغه فتنې او شرونه مراد دي چي په آخره زمانه کي به راښکاره سي چي په اور سره تعبير سوي دي.

## د شام فضيلت

﴿۶۰۱۶﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى

د حضرت عبد الله بن عمرو بن عاص رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اورېدلي

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ إِنَّهَا سَتَكُوْنُ هِجْرَةٌ بَعْدَ هِجْرَةٍ فَخِيَارُ النَّاسِ إِلٰى

دي چي د هجرت څخه وروسته به يو هجرت وي (يعني د شام په لور) نو غوره کس به هغه وي

مُهَاجَرِ إِبْرَاهِيْمَ وَفِيْ رِوَايَةٍ فَخِيَارُ أَهْلِ الْأَرْضِ أَلْزَمُهُمْ مُهَاجَرَ إِبْرَاهِيْمَ

چي د ابراهيم عليه السلام د هجرت ځای ته هجرت وکړي او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي د مځکي په خلکو کي غوره کس هغه دی چي د ابراهيم عليه السلام د هجرت ځای اختيار کړي

وَيَبْقٰى فِي الْأَرْضِ شِرَارُ أَهْلِهَا تَلْفِظُهُمْ أَرْضُوْهُمْ تَقْذِرُهُمْ نَفْسُ اللهِ

او هغه لازم ونيسي . په مځکه کي به بدترين خلک هغه وي چي مځکه به يې د ځان څخه د باندي وباسي ، خدای به هغه خلک بد ګڼي او د خپل رحمت څخه به يې ليري ساتي

تَحْشُرُهُمُ النَّارُ مَعَ الْقِرَدَةِ وَالْخَنَازِيْرِ تَبِيْتُ مَعَهُمْ إِذَا بَاتُوْا وَتَقِيْلُ مَعَهُمْ

إِذَا قَالُوْا . رواه أبو داود.

او اور به يې د بيزوګانو او خنزيرانو سره جمع كړي او هغه اور به د هغوى سره شپه تيروي يعني په كوم ځاى كي چي پر هغوى شپه راسي هغه اور به ورسره اوسي او كوم ځاى چي پر هغوى د غرمې ارام راسي اور به هم هلته ورسره وي . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۳/ ۹۱۳، رقم: ۲۴۸۲.

**تشريح** د هجرت څخه وروسته به هجرت وي: يعني يو هجرت خو دادى چي خلګ د خپل هيواد په پرېښودو سره مدينې ته راغلي دي او بيا په آخره زمانه كي به يو هجرت هغه وي كله چي خلګ د خپل دين او ايمان د ساتني او د الله ﷻ د رحمت تر لاسه كولو لپاره شام ته هجرت وكړي او ځينو حضراتو دا مطلب ليكلى دى چي د مدينې د غه هجرت آخري هجرت نه دى ، بلكه هجرتونه به په وار وار وي او ډېر به وي، د حديث د الفاظو او سياق په رڼا كي د غه مطلب زيات مناسب او صحيح معلوميږي، يعني دا هغه زمانې ته اشاره ده كله چي قيامت بالكل نژدې سي هري خوا ته د فتنو او فساد دوروي ، په ښارو او سيمو كي به د كافرانو او اهل فسق غلبه سي ، په اسلامي هيوادو كي به هم د دين حامي ، د نيكۍ حامل او الهي احكام او هدا ياتو باندي قائم پاته كېدونكى ډېر كم پاته سي تر دې چي د شام ښار او كلى به د يو خوندي او مامون قلعې په توګه پاته سي چي د هغه پر ساتنه به د اسلامي هغه لښكر مامور وي چي د هغه په ذريعه به الله ﷻ حق غالب كړي او حق ته به مرسته ورسوي او په پاى كي به د هغه لښكر خلګ د دجال په مقابله كولو سره هغه نيست او نابود كړي نو په هغه زمانه كي چي كوم سړى خپل دين او ايمان خوندي كول غواړي هغه دي شام ته په هجرت كولو سره د هغه په يو ښار يا كلي كي اباد سي.

نو غوره سړى به هغه وي ..... : په مخكنۍ جمله كي چي اجمال وو دا د هغه تفصيل دى مطلب دا چي د دين او ايمان د ساتني لپاره شام ته د هجرت كولو لړۍ به پيل سي او په كومو ښارو او هيوادو كي چي د كافرانو او فاسقانو غلبه او تسلط وي د هغه ځاى څخه خداترس (د الله ﷻ څخه بېره كونكي) او دين خوښونكي خلګ خپل ايمان په هر حالت كي خوندي ساتونكي غوره خلګ به د خپلو هيوادو په پرېښودو سره هجرت وكړي، مګر د كومو خلګو په ايمان كي چي كمزوري وي او د دين په اعتبار كمزوري وي هغوى د خپل كور او دولت په مينه او طمع كي او د اسلام د دښمن طاقتونو پر خلاف د جنګ څخه د ځان ساتني لپاره په خپل وطن كي پراته وي او د هجرت كونكو وارث او خليفه به جوړ سي نو د خپل طبيعت او نفس او د خپل

دين د كمزورۍ په سبب نه يوازي د پاكو نفسو په نزد به د يو ذليل شي په ډول وي بلكه دهغوی مځكي، د هغوی هيواد او دهغوی تر وطن پوري به دهغوی څخه بېزاره سي چي هغوی ته به هيڅ چيري سكون او قرار نه تر لاسه كيږي، يوې خوا او بلي خوا ته به سرگردانه گرځي د هغوی تر ټولو لويه بدبختي به دا وي چي خپله الله ﷻ به هغوی نه خوښوي او د خپل رحمت څخه به يې ليري ساتي ، د خپل محل كرامت څخه به دهغوی تعلق منقطع كړي او د هغوی سره به هغه چلن كوي كوم چي يو سړی يې د داسي شي سره كوي چي د هغه څخه يې په طبيعت كي نفرت كيږي او دا به د هغه نتيجه وي چي دغه خلگو ته به د هجرت توفق نه په برخه كيږي او الله ﷻ به پر دوی، د دوی پر ښارو او هيوادو د دين دښمنان مسلط كړي يعني د الله ﷻ له خوا به د دوی سره هغه معامله كيږي چي په قرآن كريم كي داسي فرمايل سوي دي :

وَلَـٰكِن كَرِهَ اللَّهُ انبِعَاثَهُمْ فَثَبَّطَهُمْ وَقِيلَ اقْعُدُوا مَعَ الْقَاعِدِينَ

ژباړه: مگر الله ﷻ د دوی تلل خوښ نه كړل ځكه نو توفيق يې نه وركړ او داسي وويل سو چي د كوډانو او شلو خلگو سره تاسو هم دلته پراته اوسئ .

د الله ﷻ ذات دوی نجس گڼي او اور..... : ددې معنی ملا علي قاري رحمة الله عليه دا ليكلې ده چي د الله ﷻ ذات به دوی سخت ناخوښه كړي او اور به پر دوی مسلط كړي چي شپه او ورځ به ورسره وي او د هغه كافرانو سره چي دخپلي كمزورۍ په اعتبار به د خنزيرانو او بېزوگانو څخه يا خو دهغوی حقيقت او صورت مراد وي ياد هغوی سيرت او خصلت او د هغوی عادات او طريقې اختيارول مراد وي ، يا هغه بدخويه او بدكرداره كفار مراد دي چي دبېزوگانو او خنزيرانو په ډول به وي .

او دهغوی سره به قيلوله كوي... : قيلوله د غرمې خوب ته وايي، خلاصه دا چي هغه اور به شپه او ورځ د هغوی سره وي او هيڅ وخت به دهغوی څخه نه جلا كيږي كه څه هم هغوی په هر حالت كي وي .

## د شام، يمن او عراق ذكر

﴿۶۰۱۷﴾ : وَعَنِ ابْنِ حَوَالَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَيَصِيرُ

د حضرت ابن حواله رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ډير ژر به داسي سي چي

الْأَمْرُ أَنْ تَكُونُوا جُنُودًا مُجَنَّدَةً جُنْدٌ بِالشَّامِ وَجُنْدٌ بِالْيَمَنِ وَجُنْدٌ بِالْعِرَاقِ

تاسو به د يو جمع کړي لښکر په ډول سئ ، يو لښکر په شام کي، بل لښکر په يمن کي او بل لښکر په عراق کي ،

قَالَ ابْنُ حَوَالَةَ خِرْ لِي يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنْ أَدْرَكْتُ ذٰلِكَ فَقَالَ عَلَيْكَ بِالشَّامِ

ابن حواله عرض وکړ اې د الله رسوله ! که زه هغه وخت ووينم نو زه کوم لښکر اختيار کړم ، رسول الله ﷺ وفرمايل : ته شام اختيار کړه

فَإِنَّهَا خِيرَةُ اللّٰهِ مِنْ أَرْضِهِ يَجْتَبِي إِلَيْهَا خِيرَتَهُ مِنْ عِبَادِهِ فَأَمَّا إِنْ أَبَيْتُمْ

ځکه چي شام د الله تعالی غوره مځکه ده او په آخره زمانه کي به الله تعالی په دغه مځکي کي خپل غوره او نيک بندګان جمع کړي بيا که ته د شام څخه انکار کوې

فَعَلَيْكُمْ بِيَمَنِكُمْ وَاسْقُوا مِنْ غُدُرِكُمْ فَإِنَّ اللّٰهَ تَوَكَّلَ لِي بِالشَّامِ وَأَهْلِهِ. رواه احمد وابوداؤد.

نو يمن اختيار کړه او تاسو له خپلو حوضونو څخه چېښل کوئ ځکه چي الله تعالی زما په وجه د شام او شام اوسيدونکو کفيل سوی دی . احمد او ابوداؤد .

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۴\۱۱۰، وابوداود ۳\۱۰، رقم: ۲۴۸۳.

**تشريح**: په (جنودا مجندة) کي دې ته اشاره ده چي د مسلمانانو هغه ټول لښکر به د کلمه اسلام پر بنياد يا خو په خپلو کي متحد او متفق وي مګر د ديني او ملي احکامو او مسائلو ترجماني او د هغه په اختيارولو کي به د جلا جلا نظر خاوندان وي .

د عراق څخه مراد يا خو هغه سيمه ده چي په هغه کي بصره او کوفه شامل دي يا هغه سيمه مراد ده چي په هغه کي د خراسان او ماوراء النهر څخه ماسوا نوري عجمې برخي شاملي دي،

نو خپل يمن اختيار کړه: دلته د يمن اضافت د حضرت ابن حواله په واسطه عربو ته د دې لپاره وکړ چي هغه وخت د دغه ارشاد مخاطب عرب وه او د يمن جغفرافيايي او سيميز تعلق د عربو سره وو، څرګنده دي وي چي : (فاما ان ابيتم) نو که چيري تاسو شام اختيارول قبول نه کړئ، نو خپل يمن اختيار کړه، دغه الفاظ د جمله معترضيه په توګه دي چي د هغه ارشاد د يوې لړۍ دوه حکمونه يعني عليک بالشام او : واسقوا من غدرکم، په منځ کي واقع سوي دي، يعني اصلي عبارتي لړۍ دا وه چي ته شام اختيار کړه ځکه چي د شام مځکه د الله د مځکو څخه

غوره مځکه ده او گوره کله چي ته شام ته ولاړ سې نو د خپلو حوضونو څخه اوبه څښنه ، ددغه عبارت په منځ کي رسول الله ﷺ د جمله معترضيه په توگه دا هم وفرمايل که په يوه وجه شام اختيارول قبول نه کړې نو بيا خپل يمن اختيار کړه .

د خپلو حوضونو څخه اوبه په څښنه: غدر د غدير جمع ده چي معنى يې د حوض ده، ددغه حکم مطلب دا وو چي شام ته په رسېدو سره ددې خبري خيال ساته چي د هغه ځاى ملکي او ملي امن او انتظام کي ستا په وجه خرابي پيدا نه سي ، جنگ او جگړې او فتنې څخه پرهيز کوه مثلا د اوبو په اړه چي کومه ذريعه ستا دپاره خاص وي د هغه څخه د خپل ځان لپاره اوبه تر لاسه کوه د بل چا د برخي څخه په اوبه اخيستلو سره مزاحمت او د معاوضې صورت هيڅکله مه پيدا کوه، په خاصه توگه د هغو خلکو سره چي د دين د دښمنانو سره پر اسلامي سرحد باندي مامور او متعين وي چي ته په خپلو کي د جگړې، اختلاف او فتنې سبب جوړ نه سې .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### پر اهل شام باندي د لعنت ويلو څخه انکار

﴿۶۰۱۸﴾: عَنْ شُرَيْحِ ابْنِ عُبَيْدٍ قَالَ ذُكِرَ أَهْلُ الشَّامِ عِنْدَ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ

د حضرت شريح ابن عبيد رضي الله عنه څخه روايت دى چي د حضرت علي رضي الله عنه په وړاندي د شام د خلکو

رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وقِيلَ الْعَنْهُمْ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ قَالَ لَا إِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ

ذکر وسو او وه يې ويل اې امير المؤمنين ! پر شام والاوو لعنت وکړئ، حضرت علي رضي الله عنه وفرمايل : زه پر شام والاوو لعنت نه کوم ځکه چي ما د رسول الله ﷺ

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ الْأَبْدَالُ يَكُونُونَ بِالشَّامِ وَهُمْ أَرْبَعُونَ رَجُلًا

څخه دا اوريدلي دي چي ابدال په شام کي دي او هغه څلوېښت کسان دي

كُلَّمَا مَاتَ رَجُلٌ أَبْدَلَ اللّٰهُ مَكَانَهُ رَجُلًا يُسْقَى بِهِمُ الْغَيْثُ وَيُنْتَصَرُ بِهِمْ عَلَى الْأَعْدَاءِ وَيُصْرَفُ عَنْ أَهْلِ الشَّامِ بِهِمُ الْعَذَابُ. رواه احمد.

په هغوى کي چي څوک مړ سي نو الله جل جلاله د هغه پر ځاى بل وټاکي د هغوى د وجود د برکته باران

کیږي او د هغوی په برکت سره پر دښمنانو بری حاصلیږي او د هغوی په برکت د شامیانو څخه عذاب دفع کیږي، احمد

**تخريج**: اخرجه احمد في المسند ۱۱۲/۱.

**تشريح** داهل شام ذکر وکړل سو، دلته داهل شام څخه مراد حضرت علي ﷛ مخالفین یعني حضرت معاویه ﷛ او په شام والا کي د حضرت معاویه ﷛ مرسته کوونکي مراد دي، امیر معاویه ﷛ د امیر المؤمنین حضرت عمر فاروق ﷛ د خلافت په زمانه کي د شام والي ټاکل سوی وو او تر آخره پوري هغه پر شام حکومت کوی . هغه دحضرت علي ﷛ خلافت نه وو تسلیم کړی او په شام کي د خود مختاره حکومت مالک سوی وو، کېدای سي د حضرت معاویه ﷛ او دهغه د مرسته کوونکو یادونه د حضرت علي ﷛ په مخکي سوې وي او دا ورته ویل سوي وي چي تاسو پر خپلو دغه مخالفینو لعنت وواياست .

ابدال په شام کي دی، دحضرت علي ﷛ د وینا مطلب دا وو چي زه پر اهل شام باندي لعنت څرنګه ویلای سم ، شام خو هغه هیواد دی چیري چي ابدال دي، که ما پر اهل شام لعنت وکړنو داسي نه وي چي د هغه اهل شامو په ضمن کي ابدال هم راسي ، داهل سنت علماء وایي چي د حضرت علي ﷛ دا ویل په حقیقت کي د جګړې څخه د ساتني لپاره هغه وخت پر اهل شامو باندي د لعنت کولو څخه پرهیز کول وو، بیا هم ددې څخه دا نه لازمیږي چي د ابدال په مستثنی کولو سره پر پاته اهل شام باندي لعنت کول حضرت علي ﷛ جائز وګڼل لکه څرنګه چي د هغه د ذکر سوو الفاظو څخه مفهوم اخیستل کیږي ، او د حضرت علي ﷛ په اړه خو داسي تصور هم نه کیږي ځکه چي خپله د حضرت علي ﷛ ارشاد دی چي دغه اهل شام خو زموږ وروڼه دي چي زموږ څخه منحرف سوي دي، همدارنګه په یوه روایت کي راغلي دي چي یو وار د حضرت علي ﷛ لښکر والا د خپلو مخالفینو یعني د حضرت معاویه ﷛ د لښکر څخه د یو سړي په نیولو سره د حضرت علي ﷛ په خدمت کي راوستنو دهغه په لېدو سره هلته موجود یو سړي وویل: څومره عجیبه خبره ده چي دغه سړی د علي ﷛ د مخالفینو په لښکر کي شامل دی ما خو دا سړی یو ښه مسلمان ګڼی . حضرت علي ﷛ چي د هغه د ژبي څخه دغه الفاظ واورېدل نو وه یې فرمایل: دا ته څه وایې، اوس هم دغه سړی مسلمان دی . ددې څخه ماسوا نور هم داسي آثار او اخبار منقول دي چي د هغه څخه د سیدنا علي ﷛ په نظر کي دحضرت معاویه ﷛ او دهغه د مرسته کونکو مسلمان کېدل ثابت دي .

او دهغوی په برکت د اهل شام څخه عذاب دفع کیږي: دلته د اهل شام تخصیص له دې کبله دی چي دهغه ابدال وجود د اهل شام په منځ کي وي او په دې سبب اهل شام د هغوی قربت او دهغوی په ارتباط کي تر ټولو زیات وي کنه نو په عامه توګه خو د ابدالو برکت او نصرت ټول عالم ته وي.

ځرګنده دي وي چي د ابدالو د وجود ذکر په دغه حدیث کي هم د حضرت علي ﷛ په حواله سره مذکور دی، شیخ ابن حجر ﷫ هغه حدیثونه نقل کړي دي او بیا یو حدیث د حضرت ابن عمر ﷛ په روایت سره نقل کړی دی چي په هغه کي حضرت ابن عمر ﷛ بیان کوي چي رسول الله ﷺ وفرمایل: خیار امت یعني د امت نیک خلګ چي په دغه امت کي همېشه موجود وي، د هغوی شمېر پنځه سوه دی، او ابدال د څلوېښتو په شمېر کي دي، نه د پنځه سوه شمېر کمیږي او نه د څلوېښتو، کله چي یو ابدال وفات سي نو دهغه پر ځای الله تعالی د پنځه سوه خیار امت څخه یو کس ټاکي، صحابه کرامو عرض وکړ اې د الله رسوله! موږ ته دهغوی د اعمالو په اړه هم څه وښیاست، چي هغوی څه عمل کوي چي د هغه په وجه دغه مرتبه تر لاسه کوي، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: هغوی هغه څوک معافوي چي ظلم پر وکړي، د هغه چا سره نیک چلن کوي چي دهغه سره بد چلن کوي او الله ﷻ چي هغوی ته څه ورکوي نو دهغه په ذریعه هغوی د فقیرانو او مسکینانو مرسته کوي او دهغوی تصدیق د قرآن کریم د دغه آیت څخه هم تر لاسه کیدای سي

الْكَاظِمِينَ الْغَيْظَ وَالْعَافِينَ عَنِ النَّاسِ وَاللهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ ۝

ژباړه: (د لوړي درجې مؤمنان هغه دي چي) د غصې واک لرونکي او د خلګو څخه عفوه کوونکي دي او الله ﷻ داسي نیک بندګان خوښوي.

په یوه روایت کي ابن عساکر د حضرت عبدالله بن مسعود ﷛ په حواله سره نقل کړي دي چي په هغه کي عبدالله بن مسعود ﷛ بیان کوي چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د الله ﷻ له خوا څلوېښت داسي کسان ټاکل سوي دي چي د هغوی زړونه د حضرت آدم ﷷ په زړه دي او د هغه له خوا څلوېښت داسي کسان ټاکل سوي دي چي دهغوی زړونه د حضرت موسی ﷷ په زړه دي او دهغه له خوا اووه داسي کسان ټاکل سوي دي چي دهغوی زړونه د حضرت ابراهیم ﷷ په زړه دي او د هغه له خوا پنځه داسي کسان ټاکل سوي دي چي دهغوی زړونه د حضرت جبرائیل ﷷ په زړه دي او دهغه له خوا درې داسي کسان ټاکل سوي دي چي دهغوی زړونه د حضرت میکائیل ﷷ په زړه دي او دهغه له خوا یو سړی داسي ټاکل سوی دی چي د هغه زړه د حضرت

اسرافيل ﷺ په زړه دي ، کله چي يو سړی وفات سي نو د هغه پر ځای الله ﷻ د هغه درو کسانو څخه يو ټاکي او کله چي د هغه درو څخه يو وفات سي نو دهغه پر ځای الله ﷻ د هغه پنځو څخه يو ټاکي او کله چي د هغه پنځو څخه يو وفات سي نو دهغه پر ځای الله ﷻ د هغه اوو کسانو څخه يو ټاکي او کله چي د هغه اوو څخه يو وفات سي نو د هغه پر ځای الله ﷻ د هغه ځلوېښتو کسانو څخه يو ټاکي او کله چي د هغه ځلوېښتو څخه يو وفات سي نو دهغه پر ځای الله ﷻ د هغه درو سوو کسانو څخه يو ټاکي او کله چي د هغه درو سوو کسانو څخه يو سړی وفات سي نو الله ﷻ د هغه پر ځای دعامو خلکو څخه يو سړی ټاکي او ددغه ټولو کسانو د وجود په سبب ددغه امت څخه هره بلا او آفت دفع کوي، ددغه حديث په ضمن کي ځينو عارفينو ليکلي دي چي رسول الله ﷺ دا يادونه ونه کړل چي د الله ﷻ له خوا يو داسي سړی هم ټاکل کيږي چي د هغه زړه د رسول الله ﷺ په زړه وي ، ددې وجه داده چي الله ﷻ په خپلو ټولو کائناتو او ټول عالم کي داسي هيڅوک نه دی پيدا کړی چي د رسول الله ﷺ د زړه مبارک څخه زيات عزيز، باشرف او پاک وي نو د الله ﷻ په غوره بندګانو کي دهيچا زړه د رسول الله ﷺ د زړه برابر او مقابل نه دی.

## د دمشق ذکر

﴿۶۰۱۹﴾: وَعَنْ رَجُلٍ مِنَ الصَّحَابَةِ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

د صحابه کرامو څخه د يو صحابي څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

سَتُفْتَحُ عَلَيْكُمُ الشَّامُ فَإِذَا خُيِّرْتُمُ الْمَنَازِلَ فِيهَا فَعَلَيْكُمْ بِمَدِينَةٍ يُقَالُ

ډير ژر به شام فتح سي ، تاسو ته چي ددغه ښارونو د کورونو اختيار درکړل سي نو تاسو د

لَهَا دِمَشْقُ فَإِنَّهَا مَعْقِلُ الْمُسْلِمِينَ مِنَ الْمَلَاحِمِ وَفُسْطَاطُهَا مِنْهَا أَرْض يُقَالُ لَهَا الْغُوطَةُ. رواه احمد

دمشق ښار اختيار کړئ ځکه چي دمشق د مسلمانانو لپاره د جنګونو څخه د پناه ځای دی او د مشق د شام يو جامع ښار دی ، او د دمشق د مځکو څخه يوه علاقه ده چي هغې ته غوطه ويل کيږي . روايت کړی دی ددې دواړو احمد

**تخريج**: اخرجه احمد في المسند ۱۴\۱۶۰.

**د لغاتو حل**: فسطاطها: وهو البلدة الجامعة للناس. ساطعا: لامعا (ځلانده).

**تشریح**: په اصحابو کي يو سړی دی: دغه حدیث چي کوم صحابي روایت کړی دی د هغه نوم معلوم نه کړل سو مگر په دې سره د حدیث پر صحیح والي اثر نه لویږي ځکه چي ټول صحابه کرامو عدول دي او د یو صحابي نوم نه معلومېدل تاوان نه کوي.

دمشق د اکثرو قولونو مطابق د دال په زېر او د میم په زور سره فصیح دي او د شام مرکزي ښار او پلازمینه دی.

د جګړو څخه د پناه ځای، د معقل لفظ د پناه ګاه او د قلعه په معنی دی، دغه لفظ د عقل څخه اخیستل سوی دی چي د هغه معنی د جنګ او قتال ده، ددغه جملې مطلب دادی چي د دمشق د مسلمانانو لپاره یوه ټینګه قلعه او پناګاه په ډول دی، کوم مسلمان چي په دغه ښار کي داخل سي نو هغه ددین دد ښمنانو د غلبې او تسلط او د هغوی د قتل څخه خپل ځان مامون کړ لکه څرنګه چي یوه بزه د خپل ځان د ساتني لپاره غرونو ته خیژي او د یو غره څوکه خپل پناه ګاه جوړوي.

دمشق ي جامع ښار دی، د ځینو روایتو مطابق فسطاط یو جامع ښار ته وایي، یعني داسي ښار چي زیات خلګ پکښي جمع کیږي ځکه مصر ته هم فسطاط وایي همدارنګه فسطاط د خیمې او ډیري په معنی کي هم راځي.

چي هغه ته غوطه ویل کیږي، غوطه د هغه باغونو د چینې نوم دی چي د دمشق ښار شاوخوا دی او ځینو حضراتو لیکلي دي چي دمشق ښار ته نژدې د یو کلي نوم غوطه دی.

## خلافت په مدینه او ملوکیت په شام کي

﴿۶۰۲۰﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْخِلاَفَةُ بِالْمَدِيْنَةِ وَالْمُلْكُ بِالشَّامِ.

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: خلافت به په مدینه کي وي او پاچاهي به په شام کي وي. بیهقي

**تخريج**: رواه البيهقي في دلائل النبوة.

**تشریح** خلافت په مدینه کي دی: مطلب دا چي د خلافت مرکز تر غالب وخت پوري په مدینه کي دی، د غالب وخت قید ځکه لګول کیږي چي حضرت علي رضي الله عنه د خپل خلافت په زمانه کي خپله پلازمینه کوفه ګرځولې وه، یا د دغه جملې څخه مراد دادی چي خلافت مستقره په مدینه کي دی.

ملوکیت یعني پاچاهي په شام کي ده: ددغه جملې څخه دا معلومیږي چي امام حسن ﷛ چي د خلافت څخه لیري والی اختیار کړ او د هیواد چاري یې امیر معاویه ﷛ ته وسپارلې نو بیا هم امیر معاویه ﷛ خلیفه نه سو ، ددې په تائید کي دغه روایت وړاندي کیدای سي چي احمد، ترمذي، ابولیلی او ابن حبان نقل کړی دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: زما څخه وروسته به زما په امت کي د خلافت زمانه تر دېرشو کالو پوري وي، دهغه څخه وروسته به ملوکیت او پاچاهي راسي.

ځینو حضراتو لیکلي دي چي په دغه حدیث کي دحضرت علي ﷛ خلافت او دامیر معاویه ﷛ ملوکیت او پاچاهي ته اشاره ده ، څرګنده دي وي چي په یو بل حدیث کي د ملک یعني پاچاهي ذکر د رسول الله ﷺ په خصائصو او اوصافو کي سوی دی په هغه کي داسي راغلي دي چي د رسول الله ﷺ مولد یعني د زېږېدو ځای خو مکه دی ، د رسول الله ﷺ مهاجر یعني د هجرت ځای مدینه دی او د رسول الله ﷺ ملک یعني پاچاهي په شام کي ده نو په دغه حدیث کي د ملک څخه مراد نبوت او دین دی ، مطلب دا چي هسي خو د رسول الله ﷺ نبوت او دین به په ټول عالم کي خپرېږي مګر د رسول الله ﷺ دنبوت فیضان او په دین کي چي کوم ځای تر ټولو زیات او تر ټولو غالب صورت کي ظاهر سي هغه د شام هیواد دی او ځینو حضراتو د رسول الله ﷺ ملک یعني پاچاهي په شام کي ده، ددې څخه مراد دابیان کړی دی چي د رسول الله ﷺ د دین د لوړتیا لپاره چي اهل شام به ددین ددښمنانو پر خلاف په جهاد کي بوخت وي او همدارنګه په دغه جمله کي د مسلمانانو لپاره ترغیب دی چي هغوی په آخري زمانه کي د جهاد او اسلامي سرحدونو د ساتني د فضیلت او سعادت په لټه کي وي نو د شام لاره به نیسي.

## د شام فضیلت

﴿۶۰۲۱﴾: وَعَنْ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَيْتُ عُمُوْدًا مِّنْ نُوْرٍ خَرَجَ مِنْ تَحْتِ رَأْسِيْ سَاطِعًا حَتّٰى اسْتَقَرَّ بِالشَّامِ . رواهما البيهقي في دلائل النبوة.

د حضرت عمر ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: ما د نور یوه پایه ولیدل چي زما تر سر لاندي ووتل روښانه وه تر هغو چي قرار یې ونیوی په شام کي. بیهقي

**تخريج**: رواه البيهقي في دلائل النبوة.

**تشریح** دلته دې ته اشاره ده چي د رسول الله ﷺ دین به په ډیره تیزي سره د شام هیواد ته ورسیږي، د هغه برکات او اثرات به په ډېره ټینګه سره په هغه هیواد کي قائم سي او په هغه هیواد کي به دهغه لوړتیا او غلبه حاصله سي، په دغه مفهوم کي هغه روایت اخیستل پکار دی چي په هغه کي بیان سوی دی چي در سول الله ﷺ د زېږیدني پر وخت د رسول الله ﷺ د مور مبارکي دنس څخه یو نور راووتی چي دهغه په رڼا سره د شام ماڼۍ او سرایونه منور سول.

## د دمشق فضیلت

﴿۶۰۲۲﴾: وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ فُسْطَاطَ الْمُسْلِمِينَ يَوْمَ الْمَلْحَمَةِ بِالْغُوطَةِ إِلَى جَانِبِ مَدِينَةٍ يُقَالُ لَهَا دِمَشْقُ مِنْ خَيْرِ مَدَائِنِ الشَّامِ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابو درداء رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: (د دجال سره) د جنګ په ورځ د مسلمانانو د جمع کیدو ځای غوطه دی چي د هغې ښار یو جانب ته دی چي دمشق ورته ویل کیږي او دمشق د شام د ښارونو څخه غوره ښار دی. ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\ ۴۸۴، رقم: ۴۲۹۸.

**تشریح**: د (من خیر مدائن الشام) الفاظ د دمشق صفت دی چي د هغه په معنی کي څرګنده سوې ده او څرنګه چي مخکي تېر سول، غوطه هم دمشق ته نژدې واقع دی، په دغه دواړو حدیثو کي په ظاهره یو فرق معلومیږي چي هلته خو دمشق ته فسطاط ویل سوي وه او دلته غوطه ته فسطاط ویل سوي دي مګر غوطه دمشق ته نژدې او دهغه شاوخوا سیمه ده ځکه په حقیقت کي د دغه دواړو په منځ کي تضاد او فرق نسته.

## یو عجمي پاچا

﴿۶۰۲۳﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سُلَيْمَانَ قَالَ سَيَأْتِي مَلِكٌ مِنْ مُلُوكِ الْعَجَمِ فيظهر عَلَى الْمَدَائِنِ كُلِّهَا إِلَّا دِمَشْقَ. رواه ابوداؤد.

د عبدالرحمن بن سلیمان رحمه الله څخه روایت دی چي ویلي دي ده: ډیر ژر به د عجمي پاچاهانو څخه یو پاچا راسي چي پرته د دمشق څخه پر نورو ټولو ښارونو به غلبه تر لاسه کړي. ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود ۵\۳۲۲، رقم: ۴۶۳۹.

**تشريح**: د حديثو شارحينو د دغه حديث مصداق متعين کړی نه دی چي د عجمو هغه کوم مشر کيدای سي چي د دمشق څخه ماسوا پر نورو ټولو ښارو باندي غلبه او تسلط تر لاسه کونکی وي، په هر حال دا څرګندول ډېر ضروري دي چي د شام، فلسطين، بيت المقدس، صخره، عسقلان، اندلس، دمشق او ددې څخه ماسوا د نورو ښارونو په فضيلت کي ډېر حديثونه منقول دي مګر د حديثو د امامانو په نزد اکثر ضعيف دي.

=========

# بَابُ ثَوَابِ هٰذِهِ الْاُمَّةِ

## ددې امت د ثواب بيان

ددې امت څخه مراد، امت محمديه ﷺ دی، يعني هغه ډله چي د اجابت او متابعت دواړو جامع وي چي رسول الله ﷺ د الله جل جلاله نبي او رسول هم ومني او د رسول الله ﷺ اتباع هم وکړي، دغه ډله په فرقه ناجيه (خلاصون تر لاسه کوونکي) ډله سره تعبير کيږي، په تنقيح کي ليکلي دي چي مبتدع (يعني هغه شخص کوم چي بدعت ايجاد او بدعت اختيار کړي) على الاطلاق د امت څخه نه دی او څرنګه چي په توضيح کي دي چي على الاطلاق اهل سنت والجماعت د امت څخه دي، او هغه خلک دي چي هغوی پر دين باندي د تللو لار د رسول الله ﷺ او دهغوی د اصحابو د لاري مطابق ده او صاحب تلويح ليکلي دي چي مبتدع ته على الاطلاق د امت څخه خارج ځکه ويل کيږي چي که څه هم هغه د اهل قبله څخه دی مګر هغه به د امت دعوت په حکم کي وي لکه څرنګه چي کفار په امت دعوت کي دي، دهغوی شمېر به په امت اجابت کي نه وي.

**امت محمديه ﷺ**: د نورو ټولو امتونو او ملتونو په مقابله کي ددې امت مرحومه فضائل او مناقب، اجر او ثواب د حد څخه وتلی او د بيان څخه خارج دی، بېله شکه دا امت د نورو ټولو امتونو څخه افضل او غوره دی، ددې امت افضيلت او غوره والي د ثابتولو لپاره په قرآن کريم کي د خالق کائنات ارشاد کافي او بس دی:

كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ.... ۞

ژباړه: (اې امت محمديه!) تاسو خلک تر ټولو ښه امت ياست چي د خلګو (د لارښوونې او هدايت) لپاره ظاهر کړل سوي ياست.

او همدارنگه دغه ارشاد :

وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا لِّتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ....

ژباړه: او څکه موږ تاسو داسي امت جوړ کړي یاست چي پر ډېر اعتدال باندي دي، دپاره ددې چي تاسو د (مخالف) په مقابله کي شاهدان اوسئ.

او ددې امت په تعریف کي خپله یوه خبره تر ټولو درنه ده چي دا د حضرت محمد ﷺ امت دی چي خاتم النبیین، سیدالمرسلین او افضل الخلائق دی، او دا چي ټولو نبیانو او رسولانو خواهش وکړ چي کاش هغوی د محمد ﷺ په زمانه کي وای او دهغوی د امت د یو کس کېدو شرف یې تر لاسه کړی وای، ددې څخه ماوا د دوی خصائص او کمالات کي داسي شیان ثابت دي چي په تېرو امتونو کي د هیڅ امت لپاره ثابت نه دي،

اللهم اجعلنا من امته وارزقنا محبته وتوفنا علی دینه وملته برحمتک یا ارحم الراحمین.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### پر دغه امت خاص الهي فضل

| |
|---|
| ﴿۶۰۲۴﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّمَا أَجَلُكُمْ |
| د حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د نورو امتونو د عمرونو په |
| فِي أَجَلِ مَنْ خَلَا مِنَ الْأُمَمِ مَا بَيْنَ صَلَاةِ الْعَصْرِ إِلَى مَغْرِبِ الشَّمْسِ وَإِنَّمَا |
| مقابله کي ستاسو عمرونه دومره دي لکه څومره چي د ټولي ورځي په مقابله کي د مازدیګر څخه تر لمر ډوبېدو پوري دی |
| مَثَلُكُمْ وَمَثَلُ الْيَهُودِ وَالنَّصَارَى كَرَجُلٍ اسْتَعْمَلَ عُمَّالًا فَقَالَ مَنْ يَعْمَلُ لِي |
| او ستاسو او د یهودو او نصاراوو مثال داسي دی لکه یو سړی د کار لپاره مزدوران ونیسي او داسي ورته ووایي په تاسو کي څوک داسي سته چي |
| إِلَى نِصْفِ النَّهَارِ عَلَى قِيرَاطٍ قِيرَاطٍ فَعَمِلَتِ الْيَهُودُ إِلَى نِصْفِ النَّهَارِ عَلَى |
| تر نیمي ورځي پوري زما کار وکړي یو یو قیراط به ورکړم، نو یهودیانو تر غرمې پوري کار وکړ |

قِيرَاطٍ قِيرَاطٍ ثُمَّ قَالَ مَنْ يَعْمَلُ لِي مِنْ نِصْفِ النَّهَارِ إِلَى صَلَاةِ الْعَصْرِ عَلَى

په يو يو قيراط بيا هغه سړي وويل: څوک سته چي زما کار د غرمې څخه تر مازديګر پوري وکړي

قِيرَاطٍ قِيرَاطٍ فَعَمِلَتْ النَّصَارَى مِنْ نِصْفِ النَّهَارِ إِلَى صَلَاةِ الْعَصْرِ عَلَى

زه به هر سړي ته يو يو قيراط ورکړم نو نصاراوو د غرمې څخه د مازديګر تر لمانځه پوري په يوه

قِيرَاطٍ قِيرَاطٍ ثُمَّ قَالَ مَنْ يَعْمَلُ لِي مِنْ صَلَاةِ الْعَصْرِ إِلَى مَغْرِبِ الشَّمْسِ عَلَى

يوه قيراط کار وکړ، بيا هغه سړي وويل څوک سته چي د مازديګر د لمانځه څخه تر لمر ډوبېدو

قِيرَاطَيْنِ قِيرَاطَيْنِ أَلَا فَأَنْتُمْ الَّذِينَ يَعْمَلُونَ مِنْ صَلَاةِ الْعَصْرِ إِلَى مَغْرِبِ

پوري زما کار وکړي په دوه دوه قيراطه، خبر سئ تاسو هغه کسان ياست کومو چي د مازديګر څخه تر لمر ډوبېدو پوري

الشَّمْسِ أَلَا لَكُمْ الْأَجْرُ مَرَّتَيْنِ فَغَضِبَتْ الْيَهُودُ وَالنَّصَارَى فَقَالُوا نَحْنُ

په دوه دوه قيراطه کار کړی دی خبر سئ! ستاسو اجر دوچنده دی، (ددې په ليدو سره چي تاسو ته دوه چنده ثواب حاصل سو او تاسو عمل هم لږ کړی دی) نو يهود او نصاری په غضب سول، هغوی وويل موږ

أَكْثَرُ عَمَلًا وَأَقَلُّ عَطَاءً قَالَ اللَّهُ هَلْ ظَلَمْتُكُمْ مِنْ حَقِّكُمْ شَيْئًا قَالُوا لَا قَالَ فَإِنَّهُ فَضْلِي أُعْطِيهِ مَنْ شِئْتُ. رواه البخاري.

په عمل کي زيات يو او په ثواب کي کم يو، الله تعالی ورته دا جواب ورکړ: ايا ما پر تاسو ظلم کړی دی يا ستاسو په حق کي مي څه کمي کړې ده؟ يعني ما چي ستاسو سره د څه شي وعده کړې وه تر هغه مي لږ درکړل؟ يهودو او نصاراوو وويل: يا، هيڅ کمي دي نه ده کړې نو الله تعالی ورته وفرمايل: بيا دا زما فضل او احسان دی چا ته چي غواړم زيات ورکوم. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦ \ ٤٩٥، رقم: ٣٤٥٩.

**تشريح** اجل د يو شي تر اخره پوري وخت ته وايي، د الله جل جلاله ارشاد دی: (لتبلغوا اجلا مسمی) او کله چي ددغه لفظ اطلاق د انسان پر مرګ باندي هم کيږي لکه چي ويل کيږي: دنا اجله، د

هغه مرګ رانژدې سوی دی، دغه معنی ملا علي قاري رحمة الله عليه د طيبي په حواله سره ليکلې ده او ددې وروسته وايي: ددې مطلب دادی چې په اجل سره هغه پوره وخت تعبير کيږي کوم چې د عمر لپاره تاکل سوی وي که هغه معلق وي يا مبرم، لکه څرنګه چې د الله جل جلاله په دغه ارشاد (ثم قضى اجلا واجل مسمى عنده) کي دغه لفظ استعمال سوی دی، او کله ددغه لفظ اطلاق د وخت پر خاتمې او د ژوند پر اخري وخت باندي کيږي لکه څرنګه چې د الله جل جلاله په ارشاد (اذا جاء اجلهم لايستاخرون ساعة ولايستقدمون) کي ددغه لفظ دغه معنی مراد ده، نو دلته د حديث الفاظ: انما اجلكم في اجل من خلا من الامم..الخ، کي د اجل لفظ لومړنی معنی مراد ده يعني ټول ژوند او ټول عمر، په دغه رڼا کي د حديث ددغه الفاظو وضاحت به دا وي چې اې مسلمانانو! د تېرو امتونو د خلګو د اوږدو عمرونو په مقابله کي ستاسو د اجر او ثواب اندازه زياته تاکل سوې ده کله چې دهغه اوږدو عمرونو لرونکو لپاره د اجر او ثواب مقدار کم وتاکل سو. دا ستاسو شرف او اعزاز دی چې ستاسو د عمل وخت کم دی مګر اجر او ثواب ډېر زيات دی. قيراط يو وزن ته وايي چې ددرهم د دولسمي برخي يا ددينار د شلمي يا څليرويشتمي برخي په اندازه دی.

يهودو تر غرمې پوري په يوه يوه قيراط کار وکړ: يعني دحضرت موسى عليه السلام منونکو او دهغه پيروانو په خپل اوږده عمر کي په کم ثواب باندي زيات عمل وکړ او همدارنګه هغوی د هغه مزدورانو په ډول سول چا چې د سهار څخه تر غرمې پوري په يوه قيراط کار وکړي همدارنګه د حضرت عيسى عليه السلام منونکو او دهغه پيروانو زمانه راغلل نو هغوی هم په خپل ژوند کي په کم ثواب باندي زيات عمل وکړ او هغوی د هغه مزدورانو په ډول سول کوم چې د غرمې څخه تر مازديګر پوري په يوه قيراط کار کړی وي.

په ياد ولرئ! ستاسو اجر دوه برابر دی، يعني د يهودو او نصاراوو سره دا معامله وه چې هغوی به څومره کار کوی د هغه برابر به د اجر او ثواب مستحق کېدل مګر ستاسو دا شرف دی چې د هغوی په نسبت تاسو ته دوه برابر ثواب درکول کيږي يعني د حديث دغه مضمون د الله جل جلاله ددغه ارشاد څخه ماخوذ دی:

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَآمِنُوا بِرَسُولِهِ يُؤْتِكُمْ كِفْلَيْنِ مِن رَّحْمَتِهِ...۞

ژباړه: اې (پر عيسى عليه السلام باندي) ايمان لرونکو! تاسو د الله جل جلاله څخه وېرېږئ او دهغه په رسول (محمد صلى الله عليه وسلم) باندي ايمان راوړئ، الله جل جلاله به په خپل رحمت سره تاسو ته دوه برابر ثواب

درکړي. نو ددغه امت خلګو نه یوازي دا چي خپل نبي ومنی او دهغه تصدیق یې وکړ بلکه په تېرو نبیانو او رسولانو باندي یې هم ایمان راوړ او دهغوی تصدیق یې وکړ نو د دوه برابر ثواب مستحق سول.

مګر په اجر او ثواب کي زموږ برخه ډېره کمه ده: د یهودو او نصاراوو دغه خبره په زیات وضاحت سره داسي بیانېږي چي اې پروردګاره! دا څه دي چي د محمد ﷺ د امت کار کم او دهغوی اعمال لږ مګر اجر او ثواب یې زیات دی، ددغه امت په مقابله کي زموږ کار ډېر زیات، اعمال کثیر مګر زموږ اجر ډېر کم دی او ثواب مو ډېر قلیل دی، دلته دواړه احتماله دي دا خبره به یهود او نصارا د قیامت په ورځ کوي کله چي هغوی د امت محمدیه د اجر او ثواب په اعتبار د خپل ځان په مقابله کي ډېر وړاندي ووینې، یا داسي خبره به هغوی هغه وخت کړې وي کله چي هغوی ته په خپله زمانه کي د خپلو آسماني کتابو په ذریعه او د خپلو رسولانو په ذریعه ددغه امت محمدیه داسي فضائل معلوم سوي وي، په هر حال په دغه حدیث کي ددې خبري دلیل دی چي د الله ﷻ له خوا کوم ثواب تر لاسه کیږي هغه نه خو په عبادت او اعمالو کي د تکلیف په اعتبار تر لاسه کیږي او نه د استحقاق په وجه ځکه چي بنده د خپل مولی په نزد په دې وجه د ثواب مستحق نه دی چي هغه عبادت وکړي بلکه مولی محض د خپل فضل او احسان له کبله بنده په ثواب نازوي او مولی ته ددې پوره اختیار دی چي په خپلو بندګانو کي چا ته وغواړي زیات ثواب ورکړي، فانه یفعل ما یشاء ویحکم مایرید.

ښکاره دي وي چي په حدیث کي د ذکر سوو یهودو او نصاراؤ څخه مراد هغه یهود او نصارا دي چي هغوی په خپله خپله زمانه کي رسول ومنی، پر هغه یې ایمان راوړ، د هغه د راوړي کتاب او شریعت پیروي یې وکړل او تر پایه پوري پر خپل حق دین باندي قائم پاته سول، پاته سوه د هغه یهودو او نصاراوو خبره چي هغوی د حق دین څخه مخ واړوی، د خپل رسول او خپل کتاب څخه یې انکار وکړ دلته د هغوی هیڅ یادونه نسته، ځکه چي هغوی خو د ثواب څخه محروم دي. ددې څخه ماسوا دا نکته هم باید په ذهن کي وي چي نصاری پر حضرت عیسی علیه السلام او انجیل باندي ایمان لري، سره ددې چي هغوی پر حضرت موسی علیه السلام او تورات باندي هم ایمان راوړی وو مګر هغوی ته د یهودو په نسبت زیات ثواب تر لاسه نه سو چي یوازي د خپل رسول او خپل کتاب یعني حضرت موسی علیه السلام او تورات باندي ایمان راوړی وو.

یوه بله خبره ددغه حدیث څخه حنفي علماؤ د مازدیګر د وخت په باره کي د امام اعظم ابوحنیفة رحمه الله قول د زیات ټینګښت لپاره استدلال کړی دی، د امام اعظم ابو حنیفة رحمه الله

قول دادی چي کله د مازديگر وخت پيل کيږي نو د هر شي سايه د هغه دوه برابر کيږي ، د حنفي علماؤ وينا ده چي د نصاراؤ د عمل زمانه ددغه امت د عمل د زمانې څخه زيات کېدل په هغه صورت کي معلوميږي کله چي په حديث کي د ذکر سوي مثال مطابق د هغوی دکار او عمل وخت د غرمې څخه وروسته د هر شي د سايې تر دوه برابر کېدو پوري پاته سي .

## دوروسته زمانې مسلمانانو فضيلت

﴿۶۰۲۵﴾ : وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مِنْ أَشَدِّ أُمَّتِي لِي حُبًّا نَاسٌ يَكُونُونَ بَعْدِي يَوَدُّ أَحَدُهُمْ لَوْ رَآنِي بِأَهْلِهِ. رواه مسلم

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زما په امت کي زما سره زيات مينه کونکي هغه خلک دي چي زما د وفات څخه وروسته به پيدا سي او د دې خواهش به کوي چي کاش زه يې ليدلی وای نو خپل اهل او عيال به يې پر ما قربان کړی وای . مسلم

**تخريج** : صحيح مسلم: ۱۴ /۲۱۷۸، رقم: ۱۲- ۲۸۳۲.

**تشريح** . يعني زما په اړه سخته مينه به يې په دغه غوښتنه اخته کړي چي زما د ليدني موقع به په برخه سي، ما ته ورسيږي او خپل کورنۍ ، خپل مال او سامان هر څه پر ما قربان کړي، څرګنده دي وي چي ددغه حديث څخه او داسي نورو حديثو څخه په ظاهره دا معلوميږي چي د صحابه کرامو وروسته کيدای سي ځيني خلک په دغه امت کي داسي پيدا سي چي په فضيلت کي د صحابه کرامو برابر وي يا د هغوی څخه هم افضل وي، د محدثينو يو مشهور شخصيت علامه ابن عبد البر رحمة الله عليه رجحان دې ته دی او هغه د داسي حديثو څخه استدلال کړی دی، په دې اړه يادونه د شيخ ابن حجر مکي په صور عن محرقة کي موجود دی، مګر د جمهورو علماؤ اجماع او اتفاق پر دې دی چي د امت افضل کسان صحابه کرام دي هيڅوک غير صحابي که څه هم په دين او شريعت ، علم او معرفت، ولايت او بزرګۍ، تقوا او تقدس کي هر څومره لوړ مقام ته رسېدلی وي مګر د صحابه کرامو مقام ته نه سي رسېدلای، دغه جمهورو علماؤ ددغه حديثونو په اړه چي د هغو څخه عبدالبر استدلال کړی دی، ويلي دي چي ددغه حديثونو په ذريعه چي کومه خبره ثابتېدلای سي هغه د يو غير صحابي يو جزوي فضيلت دی مګر کوم چي د کلي افضيلت تعلق دی چي د کثرت ثواب څخه عبارت دی هغه يوازي د صحابه کرامو لپاره دی، دغه علماؤ دا هم ويلي دي چي په دغه خبرو کي د صحابه کرامو څخه مراد هغه خاص

صحابه کرام دي چي د رسول الله ﷺ په صحبت او ملګرتیا کي تر ډېره وخته پوري د پاته کېدو شرف یې په برخه سوی دی چي هغوی د رسول الله ﷺ څخه زیات علم او فیض حاصل کړی وي او د رسول الله ﷺ سره په غزاوو کي شریک سوي وي، هغه عام العوام صحابه کرام چي هغوی ته یو وار د زیارت نبوي موقع حاصله سوې وي او ځیني خو داسي دي چي هغوی ته په ټول عمر کي یو وار د مخ اقدس دیدار په برخه سو نو د هغوی مسئله محل توقف او محل نظر ده مګر حق خبره داده چي د رسول الله ﷺ هغه شرف او فضل چي کوم صحابي ته د غیر صحابي څخه افضل او لوړ مقام ورکوي هر صحابي ته حاصل دی که څه هم یو صحابي ته یوازي یو وار د رسول الله ﷺ د مخ اقدس دیدار په برخه سوی وي او په دغه فضل او شرف کي خو هیڅوک د یو صحابي برابر کیدای نه سي، مګر په علمي او عملي فضیلت کي د خبرو دائره پراخه کېدای سي مګر په دې اړه هم د زیات بحث پر ځای دا ویل غوره دي چي صحابه کرام په ټول امت کي علی الاطلاق افضل او اشرف دي.

## دا امت به د الله ﷻ پر دین باندي د قائم او سیدونکو څخه هیڅکله نه خالي کیږي

﴿۶۰۲۶﴾: وَعَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَا

د حضرت معاویه رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چي فرمایل یې:

يَزَالُ مِنْ أُمَّتِي أُمَّةٌ قَائِمَةٌ بِأَمْرِ اللَّهِ لَا يَضُرُّهُمْ مَنْ خَذَلَهُمْ وَلَا مَنْ

زما په امت کي به یو ډله همېشه پر حکم الهي قائم وي، دغه ډلي ته به هغه څوک تاوان نه سي رسولای څوک چي د هغوی سپکاوی کوي او نه به ورته هغه سړي تاوان رسولای کوم چي د

خَالَفَهُمْ حَتَّى يَأْتِيَهُمْ أَمْرُ اللَّهِ وَهُمْ عَلَى ذَلِكَ. متفق عليه. و ذكر حديث انس ان من عباد الله في كتاب القصاص.

هغوی مخالفت کوي تر دې چي د الله تعالی حکم به راسي او هغوی به پر خپل دغه حال وي. بخاري او مسلم او د انس رضي الله عنه حدیث ان من عباد الله، په کتاب القصاص کي ذکر سوی دی.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ٦\ ٤٣٢، رقم: ٣٦٤١، ومسلم ٣\ ١٥٢٤، رقم: ١٧٤ - ١٠٣٧.

**تشریح**: د الله ﷻ په حکم قائم وي: یعني د دغه ډلي اعتقادي او عملي ژوند ټول عمارت به پر دیني فرائضو او شرعي احکامو باندي ولاړ وي چي د کتاب الله یادولو، د حدیث علم تر لاسه

كولو، د كتاب او سنت څخه استنباط كولو، في سبيل الله جهاد كولو ، دمخلوق خدا په خير خواهي كي لګېدلي وي او څومره چي فرض كفايه دي د ټولو په اړه خپله ذمه داري سرته رسولو څخه عبارت دی او هغه ته د الله ﷻ دغه ارشاد اشاره كوي :

وَلْتَكُن مِّنكُمْ أُمَّةٌ يَدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ....۞

ژباړه: او په تاسو كي دي (همېشه) يوه ډله داسي وي چي نور خلګ هم خير ته رابولي او د نيكو كارونو لپاره امر كوي او د بدو كارو څخه منع كوي .

په هر حال ددغه حديث څخه څرګنده سول چي د مځكي مخ به د داسي صالحانو او پاكو كسانو څخه هيڅكله نه خالي كيږي كوم چي د احكام الهي په پيروي كي ثابت قدم اوسي ، الله ﷻ چي د كومو شيانو څخه منع كړې ده د هغو څخه ليري اوسي ، پر دين او شريعت باندي په هر حالت كي عمل كوي او په هر صورت د اسلام د بقاء او سرلوړی لپاره تيار اوسي ، كه څه هم مرسته كوونكي دهغوی مرسته او اعانت وكړي يا پر مخالفت باندي ملا تړلي خلګ د هغوی مخالفت وكړي .

حتي ياتي امر الله، تر دې چي د الله ﷻ حكم راسي، دلته دامر الله څخه مرګ او د عهد پوره كېدل مراد دي، بيا هم يو شارح ددې څخه قيامت مراد اخيستی دی مګر پر دغه قول باندي ددغه حديث په رڼا كي دا سوال واقع كيږي چي په هغه كي فرمايل سوي دي: لاتقوم الساعة حتی لايكون في الارض من يقول الله، د مځكي پر مخ چي تر څو پوري يو سړی هم د الله ﷻ نوم اخيستونكی موجود وي قيامت به نه راځي، همدارنګه د قائمة بامر الله، معنی يو شارح د الله ﷻ په سختئ سره عمل كونكي ليكلي دي او ځينو حضراتو ويلي دي چي په حديث كي د ذكر سوي ډلي څخه مراد د اهل علمو هغه ډله ده چي په هره زمانه كي د حديث تعليم او د ديني علومو تدريس او خپرېدو په ذريعه د سنت ترويج او د دين د تجديد او تبليغ فريضه سرته رسوي، يو شارح وايي چي د ډلي څخه مراد هغه خلګ دي چي تل او په هر حالت كي پر اسلام باندي قائم اوسي . يو شارح ليكلي دي: كيدای سي ددغه حديث مطلب دا وي چي د مځكي د مخ څخه د اهل اسلام شوكت او عظمت هيڅكله نه فناء كيږي كه د مځكي د مخ په يوه سيمه كي د اسلام وينا لوړه او مسلمانانو ته شوكت او عظمت تر لاسه كيږي چي د اعلاء كلمة الله او د اسلام بيرغ لوړولو كي په مستعدي سره لګېدلي وي ، ددغه قولونو خلاصه داده چي د ډلي څخه مراد د اسلام د غازيانو ډله ده چي دهغوی كار د دين د دښمنانو سره په جهاد كولو دين ټينګول او

سرلوړی کول دی او بیا دغه ډله په اخره زمانه کي د اسلامي سرحدونو ساتني او څارنه کوي، په ځینو روایتو کي د (وهم بالشام) الفاظ هم راغلي دي، یعني ددغه ډلي مستقر به د شام هیواد وي او په ځینو روایتو کي دا الفاظ هم دي : حتی یقاتل اخرهم مسیح الدجال، تر دې چي ددغه ډلي آخري کسان به دجال قتل کړي، یعني دغه روایتونه پر دې خبره دلالت کوي چي د ډلي څخه مراد د اسلام د غازیانو ډله ده مګر د حدیث د ظاهري مفهوم څخه چي کومه خبره ثابتیږي هغه داده چي په عامه توګه هره هغه ډله او هره هغه طبقه مراد ده چي د الله ﷻ پر رېښتوني دین باندي قائمه وي او د الله ﷻ ددین په خدمت او خپرېدو کي او د اسلام د سرلوړي لپاره په هر صورت کي مصروف عمل وي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د امت محمدي ﷺ مثال

﴿۶۰۲۷﴾: عَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ أُمَّتِي مَثَلُ الْمَطَرِ لَا يُدْرَى أَوَّلُهُ خَيْرٌ أَمْ آخِرُهُ. رواه الترمذي.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : زما د امت حال د باران په ډول دی چي د هغه په اړه دا نه سي ویل کیدلای چي ددې اول به ښه وي یا آخر به ښه وي. ترمذي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۱۴۰. رقم: ۲۸۶۹.

**د لغاتو حل**: فوج اي جمع. فیج: اي فوج.

**تشریح** د باران د مثال په ذریعه رسول الله ﷺ د خپل امت ذکر چي په کوم انداز کي وکړ ددې څخه په ظاهره خو شک او تردد دی ، څرګنده نه ده چي ددغه امت مخکني خلګ غوره وه یا وروسته راتلونکي خلګ غوره دي، مګر په حقیقت کي د حدیث څخه دا مفهوم مراد نه دی بلکه د باران د مثال په ذریعه دې ته اشاره کول مقصد دي چي ټول امت ښه دی لکه څرنګه چي په وچ موسم کي کله چي د رحمت باران نازلیږي نو هغه ټول باران ښه او نافع ګڼل کیږي همدارنګه په امت محمدیه کي د لومړی زمانې سره تعلق لرونکي او د وروسته زمانو رېښتوني او نیک مسلمانان هم خیر یعني ښه کېدو او ګټې رسولو په اعتبار برابر دي، نو د خیر لفظ ددین په اعتبار د افضیلت ظاهرونکي د اسم تفضیل په توګه نه دی استعمال سوی، پاته سو دا سوال چي د امت اول او آخر دواړه سره تعلق لرونکي ښه او نافع کېدو کي برابر څرنګه دي، نو هغه

داسي چي د اول وخت خلګو د رسول الله ﷺ د صحبت او ملګرتيا شرف تر لاسه کړ، په هر حالت کي د رسول الله ﷺ پيروي وکړل د رسول الله ﷺ د اسلام دعوت يې نورو خلګو ته ورسوی او د رسول الله ﷺ راوړی شريعت او د رسول الله ﷺ د وړاندي سوي دين د ګټو او هداياتو بنياد يې کېښېنود، د رسول الله ﷺ دين متين ته يې اعانت او تقويت ورکړ، د رسول الله ﷺ نبوت او رسالت او شريعت يې ومنی، د رسالت او شريعت پر هر شي باندي په ټينګه عقيده سره ټينګ پاته سول، د رسول الله ﷺ د دين ساتنه يې وکړل او دين ته يې استحکام ورکړ، د دين د ګټو او د هداياتو بنياد يې تکميل ته ورسوی، د دين او شريعت احکام يې مضبوط کړل او د اسلام بيرغ يې لوړ کړ، د اسلام رڼا يې په څلور کونجه دنيا کي خپره کړل، او دهغه برکات او اثرات يې پر ټوله نړۍ باندي ظاهر کړل او که لفظ دخير د اسم تفضيل پر معنی محمول کړل سي نو هم په دې اعتبار صحيح کيدای سي چي د خير وجوه او اسباب متحد کيږي، دکوم اسباب او وجوه په اعتبار چي د اول دور امتيان غوره وه، ددې څخه ماسوا د ځينو نورو اسبابو څخه د وروسته زمانې امتونه غوره دي.

يعني خلاصه دا راووتل چي حديث پر دې خبره دلالت کوي چي نافع او ښه کېدو په اعتبار ټول امت يو ډول او برابر دی او پر دې خبره هم دلالت کوي چي د وجوه او اسبابو تعدد او اختلاف په سبب د اول دور امتي په خپل اعتبار غوره دی او د وروسته زمانې امتيان په خپل نوعيت غوره دي مګر دجمهورو علماؤ په نزد دا فيصله سوې خبره ده چي کوم د کلي افضيلت تعلق دی هغه يوازي د دور اول امتيانو يعني د صحابه کرامو لپاره مخصوص دی که څه هم دا ددې خلاف نه دی چي د يو خاص درجې او نوعيت سره سم په وروستنيو امتيانو کي د چا لپاره جزوي فضيلت ثابت کړل سي او دا خبره بايد په ذهن کي وي چي د کلي افضيلت څخه مراد د الله ﷻ سره تر ټولو زيات ثواب تر لاسه کېدل وي.

توريشتي رحمه الله ليکلي دي: ددغه حديث څخه پر وروستني امتيانو باندي د اول دور د امتيانو فضيلت او غوره والي کي پر شک او تردد باندي هيڅکله محمول نه دی ځکه چي قرن اول د ټولو قرنو څخه بېله شکه او شبهې افضل دی، بيا د هغه څخه وروسته قرن امتي، د خپل وروسته ټولو قرنو څخه افضل دی، نو ددغه حديث مراد دا بيانول دي چي د دين او شريعت د خپرولو په اعتبار پوره امت نافع دی همدارنګه خبره قاضي رحمه الله هم په يو اوږده عبارت کي ليکلې ده، د هغه خلاصه داده چي څرنګه د باران په اړه دا نه سي ويل کيدای چي دهغه کومه برخه زياته ګټوره او نفع کوونکي ده او دکومو وجوهو څخه دخير وجود دی او په کومو کسانو

كي دخير وجود نه دى ځكه چي د وجود خير مختلف جهتونه او مختلف نوعيتونه وي او په دې اعتبار د امت هر دور د خپل خپل حيثيت په اعتبار د وجود خير حامل وي. بيا هم الفضل للمتقدم د اصولو سره سم افضيلت د هغه امتيانو لپاره دى كوم چي په دور اول كي وه يعني صحابه كرام، او دغه حديث د وروستنى زمانې د امتيانو لپاره د ډاډ مصدر دى چي په دې كي دې ته اشاره ده چي د الله ﷻ دروازه خلاصه ده او دهغه د دربار څخه د حصول فيض توقع په هر حال كي پاته ده.

ددغه حديث په تشريح كي طيبي رحمه الله ليكلي دي: دا چي امت ته د باران سره مشابهت وركړل سوى دى هغه محض د هدايت او علم مخته ايښودو سره وركړل سوى دى لكه څرنګه چي رسول الله ﷺ په يو حديث كي باران ته په هدايت او علم سره مشابهت وركړى دى نو په حديث كي د ذكر سوي امت د باران سره مشابهت ددې څخه مراد علماء كاملين دي چي خپله هم كامل وي او نور هم د كمال درجې ته رسوي. دغه وضاحت هم ددې خبري تقاضا كوي چي د شى څخه ګټه مراد واخيستل سي چي د هغه څخه په افضيلت كي د پوره امت يو ډول كېدل نه لازميږي خلاصه د كلام دا چي امت محمدي به په خپل هيڅ دور كي دخير څخه خالى نه وي لكه څرنګه چي په يو حديث كي رسول الله ﷺ ټول امت ته د امت مرحومه فرمايلي دي او دا ثمره ده ددې خبري چي ددغه امت نبي، نبي رحمت دى پر خلاف د نورو امتونو چي په هغوى كي د خير وجود يوازي په لومړني دور كي وو او بيا په وروستنيو كي شر راغلى او داسي راغلى چي هغوى خپل مقدس اسماني كتاب بدل كړل او په هغه كي تحريفونه وكړل او د خپل هغه دين حليه يې خرابه كړل كوم چي د اول دور خلګ پر هغه ولاړ وه.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### دامت محمدي حال

﴿۶۰۲۸﴾: عَنْ جَعْفَرٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

جعفر رحمه الله د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روايت كوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

وَسَلَّمَ أَبْشِرُوا وَ أَبْشِرُوا إِنَّمَا مَثَلُ أُمَّتِي مَثَلُ الْغَيْثِ لَا يُدْرٰى آخِرُهُ خَيْرٌ أَمْ

خوشحاله سئ او خوشحاله سئ زما د امت حال د باران په ډول دى چي د هغه په اړه دا نه سي ويل

کیدلای چي ددې په آخیرني کي به خیر وي او که په

أَوَّلُهُ أَوْ كَحَدِيْقَةٍ أُطْعِمَ مِنْهَا فَوْجٌ عَامًا ثُمَّ أُطْعِمَ مِنْهَا فَوْجٌ عَامًا لَعَلَّ

اول کي، یا زما د امت مثال د باغ په ډول دی چي د هغه یو کال فوج وخوړل بیا په کال بل فوج وخوړل، کیدای سي چي

آخِرَهَا فَوْجًا أَنْ يَّكُوْنَ أَعْرَضَهَا عَرْضًا وَأَعْمَقَهَا عُمْقًا وَأَحْسَنَهَا حُسْنًا

په آخر کي یو فوج راسي چي په پلنوالي او ژوروالي به زیات وي (یعني شمېر به یې زیات وي) او په ښائست به ښائسته وي (یعني اخلاق به یې ښه وي)،

كَيْفَ تَهْلِكُ أُمَّةٌ أَنَا أَوَّلُهَا وَالْمَهْدِيُّ وَسْطُهَا وَالْمَسِيْحُ آخِرُهَا وَلٰكِنْ بَيْنَ ذٰلِكَ فَيْجٌ أَعْوَجُ لَيْسُوْا مِنِّيْ وَلَا أَنَا مِنْهُمْ. رواه رزين.

هغه امت څنګه هلاکیدلای سي چي د هغو اول زه (محمد ﷺ) یم او د هغه په منځ کي به مهدي وي او د هغو په اخر کي مسیح وي، مګر ددغه زمان په منځ کي یو ډله به کږه وږه (ګمراه) وي هغه ډله به زما پر طریقه نه وي او نه به زه د هغوی څخه یم. رزین.

**تخریج**: رواه رزین.

**تشریح**. خوشحاله سئ، خوشحاله سئ، دغه الفاظ رسول الله ﷺ دوه واره د تاکید لپاره وفرمایل. یا په تکرار کي دا نکته وه چي یو زیری خو د دنیا په اعتبار دی او یو زیری د آخرت په اعتبار دی،

یا زما د امت مثال..... : په دغه جمله کي د او لفظ د تنویع دپاره هم کیدای سي او د تعبیر لپاره هم. په هر حال د باغ څخه مراد هغه باغ دی چي د هغه درختي تکي شنې وي او په هغه کي ډول ډول میوې زیاتي وي او امت ته د باغ سره مشابهت ورکول په اصل کي دین ته د هغه شرائع او ارکانو د جهت څخه مشابهت ورکوي دي.

په پلنوالي اوژوروالي کي..... : دلته د پلنوالي او ژوروالي څخه د ډلي کثرت او د خلګو زیات شمېر مراد دی، په دغه جمله کي د طول ذکر ددې لپاره نه دی چي عرض او عمق د طول څخه وروسته وي کله چي د عرض او عمق ذکر راغلی نو لکه طول چي هم ذکر سو.

## د تابعينو فضيلت

﴿۶۰۲۹﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى

حضرت عمرو بن شعيب رضي الله عنه د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ د صحابه کرامو څخه پوښتنه وکړه چي

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّ الْخَلْقِ أَعْجَبُ إِلَيْكُمْ إِيْمَانًا؟ قَالُوا الْمَلَائِكَةُ قَالَ وَمَالَهُمْ

د ايمان په اعتبار تاسو په مخلوق کي څوک خوښوئ؟ صحابه کرامو عرض وکړ د ملائکو ايمان، رسول الله ﷺ وفرمايل: ملائکي به

لاَ يُؤْمِنُوْنَ وَهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ قَالُوا فَالنَّبِيُّوْنَ قَالَ وَمَا لَهُمْ لاَيُؤْمِنُوْنَ

ولي ايمان نه راوړي چي هغوی د خپل پروردګار سره او سيږي، صحابه کرامو عرض وکړ د پيغمبرانو ايمان، ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: پيغمبران به ولي ايمان نه راوړي

وَالْوَحْيُ يَنْزِلُ عَلَيْهِمْ قَالُوا فَنَحْنُ قَالَ وَمَالَكُمْ لاَ تُؤْمِنُوْنَ وَأَنَا بَيْنَ أَظْهُرِكُمْ

حال دا چي پر دوی وحي نازليږي، صحابه کرامو عرض وکړ نو زموږ ايمان، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: تاسو به ولي ايمان نه راوړی ځکه چي زه ستاسو په منځ کي موجود يم،

قَالَ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَعْجَبَ الْخَلْقِ إِلَيَّ إِيْمَانًا

د راوي بيان دی دده څخه وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل: زما په نزد د ايمان د ټينګوالي په

لِقَوْمٍ يَكُوْنُوْنَ مِنْ بَعْدِيْ يَجِدُوْنَ صُحُفًا فِيهَا كِتَابٌ يُؤْمِنُوْنَ بِمَا فِيهَا.

اعتبار هغه خلک تر ټولو ښه ښکاريږي چي زما څخه وروسته به پيدا سي هغوی به په صحيفو کي د خدای کتاب تر لاسه کړي او پر هغه احکامو به هغوی ايمان راوړي . بيهقي.

**تخريج**: رواه البيهقي في دلائل النبوة.

**تشريح** جواب ورکونکو صحابه کرامو د ډېر ښه او ډير قوي ايمان په اعتبار چي مخکي د ملائکو ذکر وکړ او بيا د انبياء عليهم السلام نو په دې پر انبياء عليهم السلام باندي د ملائکو فضيلت نه لازميږي، د الله جل جلاله په نزد د کثرت ثواب په اعتبار چي کوم افضيلت نبيانو ته حاصل

دی هغه پر خپل ځای مسلم دی په دې کي هيڅ شک او شبه نسته.

د آسمان څخه وحي پر هغوی نازليږي.... : يعني بايد د انبياؤ ايمان تر ټولو ښه او قوي وي ځکه چي په دنيا کي د ايمان او دين و شريعت د نازلېدو اصل ذريعه وحي ده او وحي پر هغوی نازليږي، ملائکه روح الامين (حضرت جبرائيل ﷺ) د آسمان څخه راځي او د الله ﷻ پيغام هغوی ته رسوي، هغوی ملائکه په خپلو سترګو سره ويني او د هغه د انوارو مشاهده کوي، څرګنده دي وي چي په لغت کي د وحي معنی د پيغام، په زړه کي پټه خبره اچول، هر هغه شی چي نورو ته د معلومېدو لپاره يې تاسو وړاندي کړئ او آواز، او د شريعت په اصطلاح کي وحي د الله ﷻ هغه پيغام ته وايي چي جبرائيل ﷺ پيغمبرانو ته راوړلې.

کله چي زه ستاسو په منځ کي موجود يم ... : او تاسو د وحي او ايمان د آثارو او انوارو مشاهده کوئ. د نبوت نښي او معجزې وينئ، زما په جمال او کمال سره د انوار حق ليدنه کوئ، زما د صحبت او ملګرتيا په ذريعه په تاسو کي اسرار حقيقت سرايت کوي او زما باطني تصرف او زما په ارشاد او قول سره ستاسو په ظاهر او باطن کي کمالات او کرامات پيدا کيږي، په داسي صورت کي پر الله ﷻ باندي ايمان راوړل د الله ﷻ د نازل کړي دين او شريعت پر احکامو يقين درلودل او د الله ﷻ ښودل سوي اوامرو او نواهيو په منلو کي ستاسو دپاره د شک او تردد موقع نسته.

پر ټولو باندي ايمان راوړي ... : يعني دهغوی ايمان بالغيب وي. هغوی نه نبي ليدلی وي او نه د نبي د صحبت په ذريعه د انوار حق مشاهده کړې وي او نه دنبوت آثار او معجزات ليدلي وي. هغوی چي دخپلو مشرانو (صحابه کرامو) څخه د اخبار او آثار په صورت کي څه واوري پر هغه باندي په يقين کولو سره پر الله ﷻ، د هغه پر رسول، د هغه پر کتاب او د الله ﷻ پر نازل کړي دين باندي ايمان راوړي او پر هغه ايمان باندي په ټينګه ولاړ وي، نو الله ﷻ چي په خپل کتاب کي دا فرمايلي دي چي: يؤمنون بالغيب، نو ددې مراد هم د ځينو تفسيرو جهتو څخه دادی. او ددې تائيد د هغه روايت څخه کيږي چي په هغه کي بيان سوی دی چي د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ ملګرو دهغه په وړاندي د رسول الله ﷺ د صحابه کرامو او د هغوی د ايمان يادونه وکړل نو حضرت ابن مسعود ﷺ ورته وويل: حق خبره خو داده چي د حضرت محمد ﷺ حقيقت او حيثيت د هغوی دعوت اسلام او دهغه ټوله معامله پر هر هغه چا باندي په پوره توګه روښانه او څرګنده ده چا چي رسول الله ﷺ وليدی او د رسول الله ﷺ د ملګرتيا شرف يې تر لاسه کړ، په هغه ذات دي مي قسم وي چي د هغه څخه ماسوا بل څوک د عبادت وړ نسته د

هیڅا ایمان د ایمان بالغیب څخه افضل نه دی او بیا حضرت ابن مسعود ﷛ دغه آیت (یؤمنون بالغیب......) تلاوت کړ.

بیا د رسول الله ﷺ د زمانې مبارکې سره د متصل کېدو په سبب او د رسول الله ﷺ د بابرکته صحابه کرامو د ملګرتیا په وجه که څه هم پر تابعینو باندې هم اثار او انوار حقانیت څرګند او د رسول الله ﷺ صدق واضح وو مګر ددې سربېره به ویل کېږي چې: از دیده بسي فرق بود تا بشنیده، او خلاصه دا چې که څه هم د صحابه کرامو ایمان هم بالغیب وو مګر دهغوی ایمان بالغیب په هغه شیانو کې وو چې پر هغه ایمان لازم فرض دی لکه د الله ﷻ ذات، ملائکې، او د آخرت چارې او داسې نور. او نور ډېر شیان هغوی په سترګو لیدلي وه د هغوی کتنه یې کړې وه د هغوی پر خلاف د تابعینو او دهغوی څخه وروسته د مؤمنانو معامله داده چې دهغوی ټول ایمان بالغیب دی، هیڅ شی د هغوی سترګو نه دی لیدلی، هیڅ شی د هغوی په مشاهده کې نه دی راغلی نو په دې اعتبار دهغوی ایمان ته افضل او غوره وفرمایل سول.

## د یوې ډلې په اړه پیشګوئي

﴿۶۰۳۰﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْعَلَاءِ الْحَضْرَمِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَنْ سَمِعَ

د عبدالرحمن بن علاء حضرمي ﷛ څخه روایت دی چې ما ته دا حدیث هغه سړي بیان کړي چې

النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ إِنَّهُ سَيَكُوْنُ فِيْ آخِرِ هٰذِهِ الْأُمَّةِ قَوْمٌ لَهُمْ

هغه د نبي کریم ﷺ څخه اوریدلي دي چې ددې امت په آخر کې به یو قوم وي د هغوی د اعمالو

مِثْلُ أَجْرِ أَوَّلِهِمْ يَأْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَيُقَاتِلُوْنَ أَهْلَ الْفِتَنِ. رواهما البيهقي في دلائل النبوة.

ثواب به ددې امت د لومړنیو خلکو د ثواب په ډول وي دا قوم به خلکو ته د نیکو کارونو حکم ورکوي د بدو کارونو څخه به یې منع کوي او د فتنه خپرونکو خلکو سره به جنګیږي. بیهقي

**تخریج**: رواه البیهقي في دلائل النبوة.

## د هغه امتیانو فضیلت چې نادیده به ایمان راوړي

﴿۶۰۳۱﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ طُوبٰى لِمَنْ

رَآنِي وَطُوبَى سَبْعَ مَرَّاتٍ لِمَنْ لَمْ يَرَنِي وَآمَنَ بِي. رواه احمد.

د حضرت ابو امامه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هغه چا ته زيرى دى چي هغه زه وليدم او پر ما يې ايمان راوړ او هغه چا ته اووه واره زيرى دى چي ناديده يې پر ما ايمان راوړ . احمد

**تخريج**: اخرجه احمد في المسند ۵\ ۲۴۸.

**تشريح** او اووه واره مباركي ده.....: ددې څخه د هغه امتيانو فضيلت ثابتيږي چي د رسول الله ﷺ ذات مبارک او دهغه په نبوت او رسالت باندي غائبانه ايمان لري مگر دلته چي د اوو تعين سوى دى نو د هغه علم الله جل جلاله او د هغه رسول ته سپارل غوره دي، داهم ويل كيداى سي چي د يوې خبري په زيات بليغ اندازه كي د بيانولو لپاره او دهغه د تكثير له كبله د اوو شمېر بابركت مشهور او متعارف دى ځكه رسول الله ﷺ پر ذات رسالت باندي د ايمان بالغيب لرونكو ته اووه واره مباركي وركړه نو ددغه شمېر څخه تكثير مراد اخيستل پكار دي نه تحديد .

## د رسالت د زمانې وروسته د امتيانو فضيلت

﴿۶۰۳۲﴾: وَعَنْ أَبِي مُحَيْرِيزٍ قَالَ قُلْتُ لِأَبِي جُمُعَةَ رَجُلٍ مِنَ الصَّحَابَةِ حَدِّثْنَا

د حضرت ابو محيريز رضي الله عنه څخه روايت دى چي ما د رسول الله ﷺ صحابي ابو جمعه رضي الله عنه ته وويل

حَدِيثًا سَمِعْتَهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نَعَمْ أُحَدِّثُكُمْ

چي ما ته يو حديث بيان كړه كوم چي تا د رسول الله ﷺ څخه اوريدلى وي ، هغه راته وويل : ښه

حَدِيثًا جَيِّدًا تَغَدَّيْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَنَا أَبُو عُبَيْدَةَ

دى زه به تا ته يو عمده هدايت بيان كړم، يوه ورځ موږ د رسول الله ﷺ سره د سهارډوډۍ وخوړل ، زموږ سره ابو عبيده

بْنُ الْجَرَّاحِ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَحَدٌ خَيْرٌ مِنَّا أَسْلَمْنَا مَعَكَ وَجَاهَدْنَا مَعَكَ

بن الجراح رضي الله عنه هم وو ، ابو عبيده رضي الله عنه عرض وكړ اې د الله رسوله ! ايا تر موږ هم يو څوک غوره سته چي موږ پر تاسو ايمان راوړى دى موږ ستاسو په ملگرتيا كي جهاد كړى دى .

قَالَ نَعَمْ قَوْمٌ يَكُونُونَ مِنْ بَعْدِكُمْ يُؤْمِنُونَ بِي وَلَمْ يَرَوْنِي. رواه احمد والدارمي، وروي رزين عن ابي عبيدة من قوله قال يا رسول الله احد خير منا الى اخره.

رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : هو، ستاسو څخه هم غوره خلک سته او هغه خلک دي چي ستاسو څخه به وروسته پیدا کیږي او پر ما به نادیده ایمان راوړي . احمد او دارمي، او روایت کړی دی رزین د ابو عبیده څخه د دغه قول (قال یا رسول الله...... الخ) .

**تخريج**: اخرجه احمد في المسند: ۱۰٦\۴، والدارمي ۳۹۸\۲، رقم: ۲۷۴۴.

**تشريح**: هو، تر تاسو هم غوره خلک سته، يعني هغه خلک له دې کبله تر تاسو غوره دي چي هغوی به نادیده پر ما ایمان راوړي که څه هم په دغه حیثیت سره چي تاسو ته د سبقت ایمان، زما د صحبت او زما سره په جهاد کي د ګډون سعادت حاصل دی نو پر هغه خلګو باندي ستاسو فضیلت او غوره والی مسلم دی .

## د ارباب حدیث فضیلت

﴿۶۰۳۳﴾: وَعَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ قُرَّةَ بْنِ قُرَّةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى

حضرت معاویه بن قرة بن قرة رضي الله عنه د خپل پلار څخه روایت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا فَسَدَ أَهْلُ الشَّامِ فَلاَ خَيْرَ فِيكُمْ وَلاَ يَزَالُ طَائِفَةٌ مِّنْ

د شام اوسیدونکي به تباه او برباد سي نو بیا به په تاسو کي نیکي نه وي او زما په امت کي به

أُمَّتِي مَنْصُورِينَ لاَ يَضُرُّهُمْ مَنْ خَذَلَهُمْ حَتَّى تَقُومَ السَّاعَةَ قَالَ ابْنُ

همیشه یو ډله غالب وي . دغه ډلي ته به هغه خلک هیڅ تاوان نه سي رسولای چي د هغوی سپکاوی کوي، تر دې چي قیامت سي . د ابن مدیني بیان دی چي

الْمَدِينِيُّ هُمْ أَصْحَابُ الْحَدِيثِ. رواه الترمذي وقال هذا حديث حسن صحيح

د دې ډلي څخه اصحاب حدیث مراد دي، ترمذي ویلي دي دا حدیث حسن صحیح دی .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴۲۰\۴، رقم: ۲۱۹۳.

**تشریح**: د حضرت معاویه بن قرة د پلار نوم قره بن ایاس رضي الله عنه دی چي صحابي دی، خپله حضرت معاویه بن قره رحمة الله علیه یو تابعي دی، د هغه شمېر په عالمانو کي کېږي، د لوړي درجې فقیه او مشهور دی، د جنګ جمل په ورځ هغه پیدا سوی وو او په ۱۱۳ هجري کال کي وفات سو.

نو بیا به په تاسو کي خیر نه وي....: یعني کله چي په اهل شام کي هم فساد او تباهي خپره سي نو بیا په شام کي هستوګنه اختیارول یا د خپل وطن څخه په هجرت کولو سره د شام څخه په تلو کي به خیر نه وي.

شیخ عبدالحق رحمة الله علیه داسي وضاحت کړی دی: ددغه الفاظو څخه په ښکاره مراد دادی چي په آخره زمانه کي به اهل شام د الله جل جلاله پر رښتوني دین قائم وي او د خیر امت کېدو په حیثیت سره به خپل فرض سرته رسوي، بیا په هغوی کي به هم تباهي راسي او دا به هغه وخت وي کله چي د قیامت راتلو وخت رانژدې سوی وي او د مځکي پر مخ به د لااله الاالله ویونکي هیڅوک موجود نه وي لکه څرنګه چي په حدیثونو کي راغلي دي چي په دنیا کي به یوازي بدکاره خلګ موجود وي نو دا اهل شام په تباه کېدو سره ددغه مځکي خیر به پورته کړل سي چي ددې نتیجه به دا وي چي هغه وخت به په اهل خیر کي هیڅوک په دنیا کي پاته نه وي.

ددغه ډلي څخه مراد ارباب حدیث دي: یعني هغه محدثین او عالمان چي د حدیثو حافظان وي، دحدیثو راویان وي، پر سنت نبوي باندي چي د کتاب الله ترجمان او شارحین دي. عمل کوونکي دي او د درس او تدریس، تصنیف او تالیف، ژباړي او ښوونې په ذریعه احادیث نبوي او د علوم نبوي خدمت او دهغه په زده کولو او ښودلو کي به لګېدلي وي، او لکه هغه ډله چي په اهل سنت والجماعت سره تعبیر کېږي.

## دې اُمت ته خطا او نسیان معاف ده

﴿۶۰۲۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ اللهَ تَجَاوَزَ عَنْ أُمَّتِيْ الْخَطَأَ وَالنِّسْيَانَ وَمَا اسْتُكْرِهُوْا عَلَيْهِ. رواه ابن ماجه والبیهقي

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: الله تعالی زما د امت خطا او هیره معاف کړې ده او هغه کار هم چي په زوره په وکړل سي. ابن ماجه او بیهقي

**تخریج**: سنن ابن ماجه ۱\۶۵۹، رقم: ۲۰۴۳، والبیهقي في السنن الکبری ۷\۳۵۶.

**تشریح** خطا د صواب (صحیح) ضد دی، چي معنی یې د خطا کېدو ده، په صراح کي لیکلي دي چي خطاء په معنی د نا صحیح چي د صواب برعکس مفهوم دی، ددې څخه وتلی لفظ

واسعه څخه ليري نه ده چي زما دغه سعي قبول کړې او ددغه عاجز او ضعيف کوتاهي او هېره معاف کړې، او زما ، زما استاد ، زما مور او پلار د قيامت په ورځ وبخښې، او ذليل مو نه کړې، يا رب العالمين دا غوښتنه ده چي ما او زما استاد مولانا اسحاق صاحب مهاجر في سبيل الله رحمه الله او زما مور و پلار او ټول مسلمانان مغفور او مرحوم کړې او ستا د شان ظهور دي وي زمونږ پر پرېشانه حال باندي .

اللهم آتنا في الدنيا حسنة وفي الاخرة حسنة وقنا عذاب النار، اللهم لاتدع لنا ذنبا الا غفرته ولا هما الا فرجته ولا دينا الا قضيته ولا حاجة من حوائج الدنيا والاخرة الا قضيتها يا ارحم الراحمين، اللهم انا نسئلک من خير ما سئلک منه نبيک محمد صلى الله عليه وسلم ونعوذ بک من شر ما استعاذ منه نبيک محمد صلى الله عليه وسلم ، وانت المستعان وعليک البلاغ ولاحول ولاقوة الا بالله العلي العظيم .

از گدايان تو ام شاه بفرما مـــددي — كه چون مرغان حرم درحرمت جاگيرم

الهــــي نجني من كل ضيـــق — بجاه المـــصطفى مولى الجميع

وهب لي فــــي مدينته قـــرارا — بايمـان ودفــــن بالبقـــيع

ربنا هب لنا من ازواجنا وذرياتنا قرة اعين واجعلنا للمتقين اماما ، اللهم صل وسلم على سيدنا محمد النبي الامي وعلى آله واصحابه واهل بيته وبارک وسلم ، اللهم صل وسلم عليه وعليهم اجمعين برحمتک يا ارحم الراحمين .

د مظاهر حق جديد مرتب عبدالله جاويد بن مولانا محمد عبدالحق غازي پوري، الله جَلَّ جَلَالُهُ دي رحمتونه ور باندي نازل کړي، د هغه خطاوي او سهوي دي معاف کړي، وايي: د رب کريم عنايت او د هغه په مرسته او توفيق سره کتاب مظاهر حق جديد پای ته ورسېدی او د رمضان المبارک ۱۴۰۰ هجري کال د روژې مبارکي پر اتلسمه نېټه د جمعې په شپه فراغت تر لاسه سو، پاک پروردگار دي د خپل محبوب په برکت چي هغه ته ددغه کتاب د الفاظو او معاني نسبت دی، زما دغه سعي قبوله کړي ، ما ، زما استاذان او شيوخ، زما مور او پلار، زما کورنۍ، زما ټول خپلوان او ملگري، ددغه کتاب په ترتيب او تسويد ، خپرېدو او چاپ کي، زما مرسته کونکي او ملگري او ددغه کتاب ويونکي د محشر په ورځ د خپل محبوب ﷺ په شفاعت برخمن کړي او په خپل فضل او احسان سره دي مونږ ونازوي . آمين يارب العالمين .

===========

بسم الله الرحمن الرحيم

# اَسْمَاء الرِّجَالِ

## لومړی باب د صحابه کرامو او تابعینو په بیان کي:

## الــف - صحابــه کرام رضي الله عنهم:

۱. **انس بن مالک** رضي الله عنه: دغه انس بن مالک بن نضر رضي الله عنه دی، د نوموړي کنیت ابو حمزه دی او د خزرج قبیلې شخه دی، د رسول الله ﷺ خاص خادم دی، د نوموړي مور ام سلیم بنت ملحان ده، کله چي نبي کریم ﷺ مدینې منورې ته راغلی نو دده عمر لس کاله وو او د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت په زمانه کي په بصره کي هستوګن سو، هلته یې خلګو ته دین وښودی، په صحابه کرامو کي یې په بصره کي تر ټولو آخر په ۹۱ م هجري کال کي وفات سو، عمر یې یو سل او درې (۱۰۳) کاله وو، دا هم ویل کیږي چي نهه نیوي کاله وو، ابن عبد الله رضي الله عنه وایي: دا قول زیات صحیح دی، ویل کیږي چي دده د اولاد شمېر سل دی او د یوه قول مطابق اتیا چي په هغو کي ۷۸ نارینه او دوې ښځي وې، دده شخه ډېرو خلګو روایت کړی دی.

۲. **انس بن مالک الکعبي** رضي الله عنه: دغه انس بن مالک کعبي رضي الله عنه دی، دده کنیت ابو امامه دی، دده نوم دهغه حدیث په سند کي مذکور دی چي د مسافر، حاملې او مرضعې د روژې په اړه روایت سوی دی، په بصره کي یې هستوګنه اختیار کړې وه، دده شخه ابن قلابه رضي الله عنه روایت کړی دی.

۳. **انس بن النضر** رضي الله عنه: دغه انس بن نضر بخاري د انصارو شخه دی، دی د انس بن مالک رضي الله عنه اکا دی، داحد په ورځ شهید سو او هغه وخت یې پر بدن د تورو، نېزو او غشو تر اتیاوو زیات زخمونه لیدل سوي دي، دده په اړه دغه آیت نازل سو: (من المؤمنین رجال صدقوا ما عاهدوا الله علیه... الخ).

۴. **انس بن مرثد** رضي الله عنه: دغه انس د مرثد بن ابي مرثد زوی دی، د ابي مرثد نوم کنانه بن الحصین دی، یو قول دادی چي دده نوم انیس وو، ابن عبد البر وویل: دغه قول زیات مشهور دی، او ویل کیږي چي دا هغه انیس دی چي د مکې په فتح او حنین کي حاضر وو، دا

عامو امتیانو څخه وي او که د خاصو څخه، حقیقت دادی چي ښه عقیده د ایمان په لاره کي ثابت قدمه او سېدل د رسول الله ﷺ په اړه زیاته مینه او تعلق درلودل، د ایمان څخه نه ګرځېدل، د اسلام د غلامی د دائرې څخه خپل ځان نه ایستل او همدارنګه د نورو خصوصیاتو او صفاتو لیري کولو په سبب هر امتي په دغه فضیلت کي داخل دی چي د تیرو ټولو امتونو په مقابله کي دغه امت مرحومه ته د الله ﷻ له خوا ورکړی سوی دی، بیا هم د ځینو حضراتو وینا ده چي د خیر امت مصداق په خاصه توګه ددغه امت هغه ډله ده کوم چي په خواصو سره تعبیر کیږي یعني علماء، صادقین، شهیدان او صالحین، ددغه حضراتو په نزد د خیر څخه مراد خیر تامه کامله مخصوصه دی همدارنګه ځیني حضرات ددغه مصداق د مهاجرینو ډله ګرځولی دی مګر دغه حضرات د خیر امت مفهوم تر یو محدود دائرې پوري ولي ګرځولی دی او ددې مصداق په یو خاص ډله کي ولي منحصر کوي، ددې وجه څرګنده نه ده نو حق خبره داده چي د خیر امت مفهوم د خاص کولو پر ځای عام کړل سي.

په اویا امتونو کي .... : د اویا شمېر د تحدید لپاره نه دی بلکه د تکثیر د پاره دی ځکه چي ددغه شمېر یادونه د اظهار تکثیر لپاره زیات راځي او دا هم ویل کېدای سي چي د اوویا امتونو څخه مراد هغه تېر امتونه دي چي ډېر لوی وه او دهغوی شمېر اویا ته رسیږي او دهغوی په ضمن کي ټول کوچني کوچني امتونه هم راځي.

تاسو به اویا امتونه پوره کوئ: دلته د پوره کولو معنی په اصل کي د ختم ده مطلب دا چي څرنګه ستاسو پیغمبر ﷺ خاتم النبیین او د ټولو رسولانو سردار دی همدارنګه تاسو هم د ټولو امتونو خاتم، تر ټولو امتونو زیات افضل او اتم یاست، پر تېرو امتونو باندي د امت محمدي د فضیلت او غوره والي د اظهار لپاره بغوي رحمة الله علیه یو بل روایت په خپل سند سره مرفوعا نقل کړی دی چي دهغه الفاظ دادي:

قال ان الجنة حرمت علی الانبیاء کلهم حتی ادخلها و حرمت علی الامم حتی تدخلها.

ژباړه: رسول الله ﷺ وفرمایل: بېله شکه جنت پر ټولو نبیانو باندي حرام دی تر څو چي زه هغه ته داخل نه سم او جنت پر ټولو امتونو باندي حرام دي تر څو چي زما امت په هغه کي داخل نه سي.
او دغه خبره ددغه امت حسن خاتمه ته اشاره کوي چي ددغه حسن بدائت باندي مبني دی، ددې ته د الله ﷻ دغه ارشاد (ان الذین سبقت لهم منا الحسنی) هم اشاره کوي نو دغه امت محمدي دنیا ته د راتلو په اعتبار که څه هم تر ټولو روسته دی مګر د فضل او شرف په اعتبار تر ټولو اول او تر ټولو لوړ دی،

والحمد لله الذي جعلنا من اهل الاسلام وعلى دين نبينا ﷺ والحمد لله الذي بنعمته تتم الصالحات وبشكره تزيد البركات والخيرات .

## د كتاب خاتمه

دغه حديث د مشكوة المصابيح آخري حديث دى، د مشكوة مؤلف خپل دغه عظيم كتاب پر دغه حديث ختمول ددې خبرې د ظاهرولو لپاره دى چې دكتاب ختمېدل او تكميل ته رسېدل په حقيقت كې د ختم كونكي يعني د الله ﷻ رب العزت د هغه د عنايت، دهغه د مرستې او توفيق ثمره ده او تر دې مخكې حديث : (ان الله تجاوز عن امتي الخطاء والنسيان) هم د كتاب په تحرير او تاليف كې د واقع كېدونكي سهو او نسيان څخه په معذرت سره لوى مناسبت لري، ختم الله لنا بالحسن و تجاوز عنا ما وقع من السهو والنسيان بحرمة نبي آخر الزمان صلى الله عليه وسلم وعلى آله واصحابه ذوي الفضل والاحسان .

 څرګنده دې وي چې د مشكوة په شرحو كې پر ٨٩١ حديثو باندې مشكوة بشپړ سوى دى مګر د مشكوة المصابيح په نسخو كې د دغه حديث څخه وروسته دغه عبارت هم دى :

ثم قال مؤلف الكتاب: شَكر اللهُ سَعْيَهُ وَ اَتَمَّ عَلَيْهِ نِعْمَتَهُ و وَقَعَ الْفَرَاغُ مِنْ جَمِيْعِ الْاَحَادِيْثِ النَّبَوِيَّةِ صَلَى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ آخِرَ يَوْمِ الْجُمُعَةِ مِنْ رَمَضَانَ عِنْدَ رُؤْيَةِ هِلاَلِ شَوَّالٍ سَنَةَ سَبْعٍ وَّ ثَلاَثِيْنَ وَ سَبْعَمِائَةٍ بِحَمْدِاللهِ وَحُسْنِ تَوْفِيْقِهِ وَالْحَمْدُلِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلاَمُ عَلٰى رَسُوْلِهِ مُحَمَّدٍ وَّ اٰلِهِ وَصَحْبِهِ اَجْمَعِيْنَ

## د مشكوة المصابيح مؤلف :

ژباړه : قبوله دې كړي خداى ﷻ سعيه دده او پوره دې كړي ور باندې نعمت خپل چې راغلى فراغت د جمع كولو د نبوي حديثو په آخر د ورځې د جمعې د روژې مياشت په وخت د لېدلو د مياشتې د شوال په كال اووه سوه اوو دېرش (٧٣٧) كې، په حمد د خداى ﷻ سره او په نېک توفيق دده سره او ثناء ده خداى ﷻ لره چې رب د عالمينو دى او درود او سلام دې وي پر رسول د خداى ﷻ محمد ﷺ باندې او پر آل او اصحابو دده ټولو باندې .

## د مظاهر حق مؤلف نواب قطب الدين دهلوي رحمة الله عليه وايي :

ژباړه: په كرم او عنايت د پروردګار متعال سرته ورسېدل، اې زما پروردګاره! ستا د رحمت

خطیئه دی چي د هغه معنی دگناه ده یا د یوه قول مطابق هغه گناه چي په غیر ارادي توگه وسي او که د خطا لفظ د خاء په زبر او د طاء په جزم سره وي نو ددې معنی هم دگناه ده ځینو حضراتو لیکلي دي چي د خطاء لفظ د هغه گناه لپاره استعمالیږي چي په ارادې توگه یعني قصد یې کړې وي او کومه گناه چي په غیر ارادي توگه یعني بېله قصده سوې وي د هغه لپاره د اخطاط لفظ استعمالیږي همدارنگه مخطي هغه سړي ته ویل کیږي چي ارادتا خو صحیح عمل کوي مگر په غیر صحیح عمل کي اخته سي، دغه سړي خطاء وکړه یا ددغه سړي ځخه خطا وسول، دا خبره دهغه سړي په باره کي ویل کیږي چي هغه قصدا او په ارادې سره خو یو صحیح عمل کړی وي مگر ناڅاپه د هغه ځخه هغه عمل واقع سو چي غیر صحیح وو، دمثال په توگه یو سړي د ښکار په نښه کولو سره ټوپک وچلوی مگر د ټوپک مرمی ناڅاپه پر یو انسان ولگېدل او همدارنگه هغه د انسان د قتل خطاء مرتکب سو یا دا چي د مثال په توگه یو سړی روژاتي وي، په خوله کي داوبو لغړولو لپاره هغه په قصد سره په خوله کي اوبه واچولې او هغه اوبه یې ناڅاپه حلق ته ولاړې نو په دغه حدیث کي دخطا همدغه معنی مراد ده.

نسیان په خپل مفهوم کي د حفظ ضد دی چي معنی یې د هېرېدو ده، سهو لفظ هم د نسیان په معنی کي راځي لکه چي ویل کیږي فلاني سړی په کار کي سهوه وکړه یعني هغه په کار کي خطا وتی او دهغه ځخه غافل سو، د هغه فکر په بل کار کي وو ، ددغه لفظي وضاحتونو وروسته اوس پوه سئ چي په حدیث کي دا فرمایل سوي دي چي الله ﷻ ددغه امت خطا او نسیان معاف کړي دي، نو ددې مطلب دادی که دخطا او نسیان په توگه یو غیر صحیح ، ناروا کار وسي نو پر هغه گناه نه وي ، ددغه فعل کونکی به گناه کار نه وي ، دا مطلب نه دی چي د خطا او نسیان په توگه کېدونکي هر کار په دنیاوي توگه د شرعي قانون په گرفت کي نه راځي نو پر خپل قتل خطا باندي دیت او کفاره واجب کېدل ثابت دي همدارنگه که د یو داسي شي د خطا ارتکاب وسي چي په هغه سره روژه ماتیږي نو دهغه روژې قضاء واجبیږي ، مگر د نسیان په صورت کي د روژې قضاء نه واجبیږي ځکه چي خپله الله ﷻ په دې رعایت ورکړی دی لکه چي په یو حدیث کي راغلي دي : که په روژه کي په هېره سره یو شی وخوړل سي او یا وڅښل سي نو په هغه سره روژه نه ماتیږي، تاسو خپله هغه روژه پوره کړئ ځکه چي ستاسو هغه خوراک او څښناک د الله ﷻ له خوا وي، او که په لمانځه کي نسیان او سهوه واقع سي نو پر هغه سجده سهوه واجبیږي، همدارنگه که یو سړی د چا مال په سهوه تلف کړي نو پر هغه باندي تاوان واجبیږي.

او د هغه گناه ځخه یې هم معافي ورکړه... : په دغه جمله کي د (وما استکرهوا علیه) لفظ

د مجهول په صيغه سره دی يعني هغه گناه چي په زوره سوې وي، مطلب دا چي كه چيري يو سړی پر داسي كار باندي مجبور كړل سي چي هغه يې د گناه كېدو په وجه قطعي نه خوښوي او د هغه په كولو كي د هغه خپل قصد او ارادې ته دخل نه وي نو هغه سړی به گناه كار نه وي، كه څه هم د هغه د مجبوره كېدو لپاره د وژني يا سختو وهلو اختار وركړل سوی وي بيا هم په زور باندي كړي گناهونو او جرمونو په اړه د حق الله او حق العباد په تعلق سره د شرعي احكامو او قوانينو جلا جلا نوعيتونه او شقونه دي چي د هغه تفصيل د اصولو په كتابو كي مذكور دی.

## د دې امت انتهائي فضيلت

﴿۶۰۳۵﴾: وَعَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ

حضرت بهز بن حكيم رضي الله عنه د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روايت كوي چي هغه د رسول

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي قَوْلِهِ تَعَالَى: كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ، قَالَ أَنْتُمْ

الله ﷺ څخه د خدای تعالی د دې ارشاد: (كنتم خير امة اخرجت للناس)، (تاسو غوره امت ياست چي د خلكو لپاره ظاهر كړل سوي ياست) په اړه دا اوريدلي دي چي تاسو به

تُتِمُّونَ سَبْعِينَ أُمَّةً أَنْتُمْ خَيْرُهَا وَأَكْرَمُهَا عَلَى اللَّهِ تعالى. رواه الترمذي وابن ماجة والدارمي وقال الترمذي هذا حديث حسن.

اويا امتونه پوره كوئ، تاسو د الله جل جلاله په نظر كي تر دې ټولو امتونو غوره او د قدر وړ ياست.، ترمذي، ابن ماجه، او دارمي، ترمذي ويلي دي دا حديث حسن دي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۲۱۱، رقم: ۳۰۰۱، وابن ماجه ۲\۱۴۳۳، رقم: ۴۲۸۸، والدارمي ۲\۴۰۴، رقم: ۲۷۶۰.

**تشريح** كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ....الخ: د دې معنی دا ده چي تاسو په ټولو امتونو كي غوره امت ياست چي د خلكو د هدايت او خير لپاره پيدا كړل سوي ياست، نو د كنتم څخه مراد دا دی چي د خپل دغه خصوصيت او وصف سره تاسو د اولي ورځي څخه د الله جل جلاله په علم او اراده كي واست چي د هغه ظهور په دنيا كي اوس زما وروسته سوی دی يا دا چي په لوح محفوظ كي د دغه وصف او خصوصيت سره ستاسو ذكر په اوله ورځ راغلی يا دا چي د تيرو امتونو په منځ كي ستاسو ذكر په دغه وصف او خصوصيت سره يعني د خير امت په حيثيت سره وو.

په هر حال په خير امت كي د دغه امت څخه مراد د دغه امت ټول مؤمنان دي كه هغوی د

هم ویل کیږي چي هغه انیس دادی چي رسول الله ﷺ ورته فرمایلي وه: اغدیا انیس الی امراة هذه ...الخ، یعني اې انیس! سبا هغه ښځي ته په ورتلو سره پوښتنه وکړه ، که هغې د زنا اقرار وکړ نو هغه رجم کړه ، یو قول دادی چي دا بل انیس وو ، والله اعلم، په ۲۰ م هجري کال کي وفات سو او هغه ته ، د هغه پلار ته، نیکه ته او ورور ته د رسول الله ﷺ صحبت تر لاسه سوی دی، د هغه څخه سهل بن حنظله او حکم بن مسعود روایت کړی دی، په کناز کي کاف مفتوح دی او نون مشدد او زائي معجمه ده .

۵. **اسید بن حضیر** رضي الله عنه : دغه اسید بن حضیر انصاري دی او د اوس قبیلې څخه دی، د هغه اصحابو څخه دی چي د عقبه ثانیه په وخت کي حاضر وو ، او د عقبه په شپه ده د رسول الله ﷺ احکام خلګو ته رسول ، او د دواړو عقبه درمیاني فاصله یو کال وه، په بدر کي او دهغه وروسته په نورو غزاوو کي هم حاضر وو ، دده څخه د صحابه کرامو یوه ډله روایت کوي ، په مدینه منوره کي په ۲۰ م هجري کال وفات سو او په بقیع کي دفن سو . رضي الله عنه .

۶. **ابواسید** رضي الله عنه : دغه ابواسید د مالک بن ربیعه انصاري ساعدي زوی دی، په ټولو غزاوو کي شامل وو ، دی په خپل کنیت سره زیات مشهور دی، دده څخه ډېر خلګ روایت کوي ، په ۲۰ هجري کال کي وفات سو چي عمر یې اته اویا کاله وو او ړوند سوی وو، د بدر په صحابه کرامو کي تر ټولو آخر وفات سو ، په اسید کي همزه مضموم او سین مهمله مفتوح او یاء ساکنه ده .

۷. **اسلم** رضي الله عنه : دغه اسلم دی چي کنیت یې ابورافع دی ، د رسول الله ﷺ ازاد سوی غلام وو ، د نوموړي یادونه به د راء په حرف کي راسي .

۸. **اشعث بن قیس** رضي الله عنه: دغه اشعث د قیس بن معدي کرب زوی دی، دده کنیت ابومحمد کندي دی، کله چي رسول الله ﷺ ته د کنده قبیلې وفد راغلی نو دهغه وفد سره د مشر په حیثیت راغلی وو ، دا د لسم هجري کال پېښه ده، نوموړی د اسلام څخه مخکي دخپلي قبیلې یو عزتمند او ممتاز سړی وو ، په اسلام کي هم ډېر ستر سړی وو ، کله چي رسول الله ﷺ وفات سو نو دی د اسلام څخه ګرځېدلی وو او بیا د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه په زمانه کي په اسلام مشرف سو او په کوفه کي په ۴۰ هجري کال وفات سو ، حضرت حسن بن علي رضي الله عنه دهغه د جنازې لمونځ ورکړ او یوه ډله د حدیثو روایت ځیني کوي .

۹. **اشـــج** : دده نوم منذر دی، د العائذ العصري العبدي زوی دی، دخپل قوم سردار او د هغوی اسلام ته راوستونکي دی، په وفد عبدالقیس کي په شاملېدو سره د رسول الله ﷺ

په خدمت کي حاضر سو، د مدينې د صحرايانو څخه شمېرل کيږي دده څخه يوه ډله روايت کوي، د نوموړي يادونه په باب الحذر والتاني کي سوې ده، په العصري کي عين مفتوح او صاد مهمله مفتوح او راء مهمله ده.

۱۰. **اشيم الضبابي**: د اشيم الضبابي يادونه د باب الفرائض په حديث ضحاک کي ده.

۱۱. **الاسود بن كعب العنسي**: دغه اسود بن کعب دی، نوم يې عبهله عنسي دی او دا هغه سړی دی چي د رسول الله ﷺ په اخري زمانه کي يې په يمن کي د نبوت دعوه کړې وه او د رسول الله ﷺ په ژوند مبارک کي قتل کړل سو، دی، فيروز ديلمي او قيس بن يعوث يو ځای قتل کړل، فيروز د هغه پر سينه کښېنستی چي حرکت و نه کړل سي او قيس قتل کړ او سر يې ور پرې کړ، دده يادونه باب رؤيا کي سوې ده، په عنسی کي عين مهمله مفتوح او نون ساکن او سين مهمله دی او په عبهله کي عين مهمله مفتوح دی او باء مؤحده ساکن او باء مفتوح او لام ده.

۱۲. **ابراهيم بن النبي** ﷺ: دا هغه ابراهيم دی چي د نبي کريم ﷺ زوی وو، د ماريه قبطي له نس چي د رسول الله ﷺ مينزه وه، په مدينه کي په اتم هجري کال د ذي الحجه په مياشت کي پيدا سو او شپاړلسو مياشتو په عمر وفات سو، او د يوه قول مطابق تر اتلس مياشتو پوري ژوندي وو، په بقيع کي دفن سو.

۱۳. **الاغر المازني**: دا اغر دی د مزنی زوی، صحابي دي او د اهل کوفې څخه شمېرل کيږي، ابن عمر او معاويه بن قره دده څخه روايت کړی دی، په اغر کي همزه مفتوح او غين معجمه مفتوح او راء مشدده ده.

۱۴. **ابيض**: د حمال زوی دی، د قوم سبا د ښار مارب څخه د رسول الله ﷺ په خدمت کي د يو وفدَ سره حاضر سو او په صحبت مشرف سو، په يمن کي اوسېدی، دده څخه کم حديثونه روايت دی، په حمال کي حاء مفتوح او ميم مشدد دی، مارب پر ميم باندي مفتوح دی او همزه ساکن او راء مکسور ده، آخري حرف د بأء دی، مارب د يو ښار نوم دی چي په يمن کي صنعاء ته نژدې واقع دی، په السبائي کي سين مهمله مفتوح او باء موحده باندي فتحه او همزه.

۱۵. **الاقرع بن حابس**: دغه اقرع بن حابس تميمي دی، د بني تميم د وفد سره د مکې د فتح څخه وروسته د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او د مؤلفة القلوب څخه دی، نوموړی د اسلام څخه مخکي په دواړو زمانو کي معزز وو، دی عبدالله بن عامر پر هغه

۳۸. **امیه بن عبدالله** : امیه د عبدالله بن خالد بن اسید مکي زوی دی، د ابن عمرو رضی الله عنه څخه یې روایت کړی دی او دده څخه زهري او نور ثقه وه، دخراسان والي وو او په ۸۰م هجري کال کي وفات سو.

۳۹. **اسلم** : اسلم د حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه ازاد سوی غلام وو، دده کنیت ابوخالد وو، ویل کیږي چي دی حبشي وو، حضرت عمر رضی الله عنه په ۱۱ هـ کال کي رانیولی وو، د حضرت عمر رضی الله عنه یې څخه حدیثونه واورېدل، دده څخه زید بن اسلم او نورو روایت کړی دی، دمروان د خلافت په زمانه کي د ۱۱۴ کالو په عمر وفات سو.

۴۰. **ارزق بن قیس** : ارزق د قیس حارثي زوی او تابعي دی، د خپل پلار څخه او ابن عمر رضی الله عنه څخه او انس بن مالک رضی الله عنه څخه یې حدیثونه واورېدل، دده څخه ډېرو خلکو روایت کړی دی.

۴۱. **الاعمش** : د اعمش نوم سلیمان بن مهران کاهلي اسدي دی، دبني کاهل ازاد سوی غلام وو، د بني کاهل یوه شعبه دبني اسد خزیمه وه، نوموړی په ۶۰م هجري کال کي پیدا سو او دهغه ځایه کوفې ته راوړل سو، نو دبني کاهل یو سړی رانیوی او ازاد یې کړ، د سترو عالمانو او د قرائت د مشهورو بزرګانو څخه دی، پر ده د اکثرو کوفیانو د روایاتو مدار دی، دده څخه ډېرو کسانو روایت کړی دی، په ۱۴۸ هـ کال کي وفات سو.

۴۲. **الاعرج**: نوم یې عبدالرحمن بن هرمز مدني دی، دبني هاشم ازاد سوی غلام وو، په تابعینو کي مشهور او بزرګ وو، د ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت کوي او دی پکښي مشهور وو، دده څخه زهري روایت کړی دی، په ۱۱۰م هجري کال کي په اسکندریه کي وفات سو.

۴۳. **الاسود** : اسود بن هلال محاربي دی، د عمرو بن معاذ او ابن مسعود رضی الله عنهما څخه یې روایت کوی، او دده څخه ډېرو خلکو روایت کړی دی. په ۸۴م هجري کال کي وفات سو.

۴۴. **ابراهیم بن میسره** : ابراهیم بن میسره طائفي دی، په تابعینو کي شمېرل کیږي، ددغه حدیثونه په اهل مکه کي مشهور دی، باوري وو او صحیح حدیثونه یې بیانول.

۴۵. **ابراهیم بن عبدالرحمن**: دغه ابراهیم د عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه زوی دی، دده کنیت ابواسحاق زهري قرشي دی، د حضرت عمر رضی الله عنه په خدمت کي په کوچنیوالي راوستل سو، د خپل پلار او سعد بن ابي وقاص رضی الله عنه څخه یې حدیثونه واورېدل، دده څخه دده زوی سعد او زهري روایت کوي، په ۹۶م هجري کال کي وفات سو، عمر یې ۷۵ کاله وو.

۴۶. **ابراهیم بن اسماعیل** : دغه ابراهیم د اسماعیل اشهلي زوی دی، دموسی بن عقبه او ډېرو خلکو څخه یې روایت کړی دی او دده څخه قعنبي او ډېر خلک روایت کوي،

نو موړی ډېر روژې نیونکی او ډېر نفل کوونکی وو، ده ته دارقطني او نورو متروک ویلي دي، په ۱۶۵ هجري کال کي وفات سو.

۴۷. **ابراهیم بن الفضل** : دغه ابراهیم د فضل مخزومي زوی دی، د مقبري او نورو څخه روایت کوي او دده څخه وکیع او ابن نمیر او نورو روایت کړی دی، په محدثینو کي دی ضعیف ګرځول سوی دی.

۴۸. **اسحاق بن عبدالله** : دغه اسحاق بن عبدالله انصاري دی، دمدینې په تابعینو کي د باوري بزرګانو څخه دی، واقدي وایي چي امام مالک په حدیث کي دده څخه لویه درجه بل چا ته نه ورکول، ده د انس بن مالک او ابومرثد او نورو څخه حدیثونه واورېدل او دده څخه یحیی بن ابي کثیر، مالک او همام او دده یادونه په باب الانفاق کي سوې ده، په ۳۲ م هجري کال کي وفات سو.

۴۹. **اسحاق بن راهویه** : دغه ابویعقوب اسحاق بن ابراهیم التیمي دی، په ابن راهویه سره شهرت لري، لوړ عالم او په ارکان مسلمین کي شمېرل کېدی، دده ذات د حدیث، فقه او اتقان او صدق جامع وو، د علم په طلب کي د خراسان، عراق، حجاز، یمن او د شام په ښارو کي ګرځېدلی دی، بیا نیشاپور یې خپل وطن جوړ کړ، تر دې چي هلته په ۲۳۸ هجري کال کي د ۷۴ کالو په عمر وفات سو، د فضائلو احاطه یې نه سي کیدای، سفیان بن عینیه او وکیع په ډول لوی لوی امامانو څخه یې حدیثونه واورېدل، دده څخه بخاري او مسلم او ترمذي او ډېر نور امامان روایت کوي.

۵۰. **ابواسحاق السبیعي** : دغه ابواسحاق عمرو بن عبدالله سبعي همداني کوفي دی، ده د حضرت علي او ابن عباس رضی الله عنهما او نورو صحابه کرامو زیارت کړی دی، د براء بن عازب او زید بن ارقم څخه یې روایتونه اورېدلي دي او دده څخه اعمش، شعبه او ثوري روایت نقل کړي دي، نو موړی یو مشهور او کثیر الروایت تابعي وو، دده زېږېدنه د خلافت عثمان دوه کاله تېرېدو وروسته وسول او په ۱۲۹ هجري کال کي وفات سو، په سبعي کي سین مهمله مفتوح او باء موحده مکسور او عین مهمله دی.

۵۱. **ابواسحاق بن موسی** : دغه ابواسحاق د موسی انصاري زوی او دمدینې اوسېدونکی وو، مګر په کوفه کي مقیم سوی وو، بغداد ته تللی وو او هلته یې د سفیان بن عینیه او نورو څخه حدیثونه بیان کړل، د خپل پلار موسی څخه روایت کوي او دده څخه مسلم، ترمذي، نسائي، ابن ماجه او نورو هم روایت کړی دی، ستر باوري منل کېدی په ۲۴۴

۲۸. **ابوامامه انصاري** : دغه ابو امامه سعد دی د سهل بن حنيف انصاري اوسي زوی دی، په خپل کنيت سره زيات مشهور دی ، د رسول الله ﷺ د وفات څخه دوه کاله مخکي پيدا سو ، ويل کيږي چي رسول الله ﷺ دده نوم دده د نيکه ، سعد بن زراره په نامه او دده کنيت د هغه په کنيت تجويز کړی وو ، ده د کم عمرۍ په وجه د رسول الله ﷺ څخه هيڅ نه او رېدای سول ځکه ځينو دده يادونه د صحابه کرامو څخه په وروسته خلګو کي کړې ده او ابن عبدالبر د صحابه کرامو څخه د ثابتولو لپاره فرمايلي دي چي دی په مدينه کي د لويو تابعينو څخه د لويو علماؤ څخه دی ، د خپل پلار او ابوسعيد او نورو څخه يې حديثونه واورېدل او ډېر خلګو ور څخه روايت کړی دی ، په ۱۰۰ م هجري کال کي وفات سو او عمر يې ۹۲ کاله وو.

۲۹. **ابوايوب انصاري** : دغه ابوايوب خالد بن زيد انصاري خزرجي دی او دی د حضرت علي ﷛ سره په ټولو جګړو کي شريک وو او د افواجو د محافظت کولو سره په قسطنطنيه کي په ۵۱ م هجري کال وفات سو ، او دی هغه وخت د يزيد بن معاويه سره وو ، کله چي د هغه پلار حضرت معاويه په قسطنطنيه کي جهاد کوی نو د هغوی سره ووتی او ناروغ سو ، بيا کله چي د هغه ناروغي زياته سول نو خپلو ملګرو ته يې وصيت وکړ چي کله زه وفات سم نو زما جنازه پورته کړئ ، بيا کله چي تاسو د دښمن مخته ودرېږئ نو ما د خپلو قدمونو لاندي دفن کړئ نو خلګو همداسي وکړل قبر يې د قسطنطنيه د چارديوارۍ نژدې دی چي تر ننه پوري مشهور دی چي تعظيم يې کيږي او دهغه په وسيله سره ناروغان شفاء غواړي نو شفاء تر لاسه کوي ، يوه ډله ور څخه روايت کوي، په قسطنطنيه کي قاف مضموم او سين ساکن او لومړی طاء مضموم او دوهمه طاء مکسوره ده او دهغه وروسته ياء ساکنه ده ، نووي ﷫ وايي: دغه حروف موږ داسي منضبط کړل او دا مشهور دی ، قاضي عياض په مغربي مشارقو کي د ډېرو خلګو څخه نقل کړي دي چي په دغه لفظ کي د نون څخه وروسته ياء مشدده هم ده .

۳۰. **ابوامية المخزومي** : دغه ابو اميه مخزومي صحابي دی دده شمېر د اهل حجاز څخه دی. د دده څخه ابو منذر روايت کوي .

۳۱. **اميه بن مخشي** : دغه اميه بن مخشي خزاعي ازدي دی دده شمېر د اهل بصره څخه دی ، د خوراک په اړه دده څخه حديث روايت دی ، دده وراره مثنی بن عبدالرحمن دده څخه روايت کوي ، په مخشي کي ميم مفتوح او خاء ساکنه او شين مکسور او ياء مشدده ده .

۳۲.**امیه بن صفوان** : دغه امیه بن صفوان دی چي دامیه بن خلف جهمي زوی دی ، دی د خپل پلار صفوان څخه روایت کوي او د خپل وراره عمر او نورو څخه یې د عاریت په اړه روایت کړی دی .

۳۳. **ابواسرائیل** : دغه ابو اسرائیل د صحابوو څخه یو سړی وو هغه دا نذر منلی وو چي د چا سره به خبري نه کوي او په روژه کي به په لمر کي ولاړ وو او پر ځان به یې سایه نه کول، نو نبي کریم ﷺ هغه ته حکم وکړ چي کښیني دي هم او په سایه کي دي هم او سي او خبري دي هم کوي ، دده حدیث ابن عباس او جابر بن عبد الله سره دي .

۳۴. **ابي اللحم خلف بن عبدالملک**: دغه خلف بن عبد الملک الغفاري دی، د آبی اللحم په نامه مشهور دی، ویل کیږي چي دده نوم عبد الله دی او په یوه قول کي حویرث دی . (د آبي اللحم معنی د غوښو څخه دانکار کوونکي ده) او د آبي اللحم په لقب سره ځکه مشهور سو چي غوښه یې بالکل نه خوړل کوم چي د بتانو په نامه به ذبح کړل سوې وه ، د حنین په ورځ شهید سو د هغه ازاد سوی غلام غمیر د هغه څخه روایت کوي، په آبی کي پر همزه باندي زور او مد دی او باء موحده مکسور او یاء ساکن ده .

## تابعين رحمهم الله .

۳۵. **اویس القرني** رحمه الله : دغه اویس عامر دی، دده کنیت ابوعمرو دی د قرن او سېدونکی وو ، د رسول الله ﷺ زمانه یې تر لاسه کړې وه مګر رسول الله ﷺ یې و نه لیدی . د هغه دمقبول کېدو زیری ورکړل سو ، هغه حضرت عمر رضي الله عنه او نور صحابه کرام هم ولیدل . په زهد او دخلګو څخه په بېلوالي کي مشهور وو . د صفین په جګړه کي په ۳۷ هجري کال کي ورک (یا شهید) سو .

۳۶. **ابـــــان** : ابان بن عثمان بن عفان قرشي د اهل مدینه د محدثینو څخه دی، تابعی دی د خپل پلار عثمان او نورو صحابه کرامو څخه یې روایت کوی او دهغوی روایات ډېر دي. دده څخه زهري روایت کړی دی . د یزید بن عبد الملک په زمانه کي په مدینه کي وفات سو . په ابان کي همزه مفتوح ده او پر باء باندي تشدید نسته .

۳۷. **ایوب بن موسی**: ایوب بن موسی د عمرو بن سعید بن العاص اموي زوی دی. چي د عطاء، مکحول او د هغه هم مرتبه محدثینو څخه یې روایت کړی دی او د هغه څخه شعبه او نورو روایت کړی دی . نو موړی لوی فقیه وو او په ۱۲۳ هجري کال کي وفات سو .

لښکر حاکم گرځولی وو کوم چې خراسان ته استول سوی وو او دی سره د خپل لښکر په جوزجان کي په تکلیفو اخته سوی وو، دده ځخه جابر رضی الله عنه او ابو هریره رضی الله عنه روایت کړی دی.

۱۶. **ابوالازهر**: دغه ابوالازهر انماري دی د رسول الله ﷺ په صحبت مشرف سو، دده ځخه خالد بن معدان او ربیعه بن یزید روایت کړی دی، نوموړی د شام اوسېدونکی وو.

۱۷. **اکیدر دومة**: دی داکېدر عبدالملک زوی دی او صاحب دومة الجندل سره مشهور دی، ده ته نبي کریم ﷺ په نامه لیک لیږلی وو او ده د رسول الله ﷺ په خدمت کي تحفه راولېږل، دده یادونه په باب الجذیه کي ده، اکیدر د اکدر تصغیر دی او په دومة کي پر دال مهمله باندي ضمه او فتحه دواړه صحیح دي، دومه دشام او حجاز په منځ کي د یو ځای نوم دی.

۱۸. **اوس بن اوس**: اوس بن اوس ثقفي دی او یو قول دی چي اوس بن اوس، نوموړی د عمرو بن اوس پلار دی دده ځخه ابوالاشعث سمعاني او دهغه زوی عمرو او نور روایت کوي.

۱۹. **ایاس بن بکیر**: دغه ایاس بن بکیر لیثي دی، د بدر په غزا کي او نورو غزاوو کي حاضر وو، نوموړي په دار ارقم کي اسلام راوړی وو، په ۳۴م هجري کال کي وفات سو.

۲۰. **ایاس بن عبدالله**: دغه ایاس بن عبدالله دوسي مدني دی، دده په صحابي کېدو کي اختلاف دی، امام بخاري رحمه الله وایي دده مشرف الصحبت کېدل ثابت نه سول، دده ځخه د بنځو د وهلو په اړه یو اړي یو حدیث روایت سوی دی، دده ځخه عبدالله بن عمر روایت کوي.

۲۱. **اسامه بن زید** رضی الله عنه: دغه اسامه دی د زید بن حارثه قضاعي زوی، دده مور ام ایمن رضی الله عنها وه، د هغې نوم برکة وو او هغې رسول الله ﷺ په غېږ کي پاللی وو او دا د رسول الله ﷺ د پلار محترم عبدالله بن عبدالمطلب مینزه وه او اسامه رضی الله عنه د رسول الله ﷺ د غلام (حضرت زید رضی الله عنه) زوی وو او د رسول الله ﷺ محبوب او د محبوب زوی وو، کله چي رسول الله ﷺ وفات سو نو د اسامه عمر شل کاله وو، او ځیني اقوال ددې خلاف هم دي، نوموړی په وادي القرى کي اوسېدی او هغه د حضرت عثمان رضی الله عنه د شهادت ځخه وروسته وفات سو او یوقول دادی چي په ۵۴ هجري کال کي وفات سو، ابن عبدالبر وایي زما په نزد دا صحیح دی، دده ځخه یو ډلي روایت کړی دی.

۲۲. **اسامه بن شریک**: دغه اسامه بن شریک دیناني ثعلبي دی، په اهل کوفه کي دده احادیث زیات خپاره سول او په کوفیانو کي شمېرل کیږي، دده ځخه زیاد بن علاقه او نورو روایت کړی دی.

۲۳.**ابی بن کعب** رضی اللہ عنہ: دغه ابی د کعب اکبر انصاري خزرجي زوی دی، دی د رسول الله ﷺ د وحي کاتب وو او د هغه شپږو صحابه کرامو څخه وو چي هغوی د رسول الله ﷺ په زمانه کي ټول قرآن کریم یاد کړی وو او د هغه فقهاوو څخه دی چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي يې فتوا ورکول، او په اصحابو کي د کتاب الله لوی قاري منل کېدی، دی رسول الله ﷺ د ابومنذر په کنیت سره او حضرت عمر رضی اللہ عنہ د ابوالطفیل په خطاب سره ورته ویلي وه، او رسول الله ﷺ ورته د سیدالانصار خطاب ورکړی وو، او حضرت عمر رضی اللہ عنہ ورته د سیدالمرسلین خطاب ورکړی وو، په مدینه منوره کي په نهم هجري کال وفات سو، ډېرو کسانو ور څخه روایتونه کړي دي.

۲۴.**افـلـح** : دغه افلح د رسول الله ﷺ غلام وو او دا هم ویل سوي دي چي د ام سلمه غلام دی، دده څخه حبیب مکي روایت کړی دی.

۲۵.**ایقع بن ناکور**: دغه ایقع بن ناکور د یمن اوسېدونکی وو، د ذي الکلاع په نامه مشهور دی، د خپل قوم مشر وو چي د هغه اطاعت او پیروي کېدل، ده اسلام قبول کړی وو، نبي کریم ﷺ د اسود عنسي د مقابلې او دهغه د قتل دپاره د اسلام د مرستي په اړه ورته لیک استولی وو، د صفین په جګړه کي په ۳۷م هجري کال د امیر معاویه د اشتر نحعي په لاس ووژل سو.

۲۶.**انجشه** : دغه انجشه یو تور رنګه غلام وو، حدي خوان وو د رسول الله ﷺ اوښان به يې د نظم په ذریعه په ښه اواز سره شړل، دده څخه ابو طلحه او انس بن مالک روایت کړی دی او هغه دی چي رسول الله ﷺ ورته فرمایلي وه: ویدک یا انجشة رفقا بالقواریر، اې انجشه! کراره کرار يې بیایه، ددغه نازکو شېشو یعني د ښځو رعایت کوه، داسي نه چي ماتي سي، په انجشه کي همزه مفتوح ده او نون ساکن او میم مفتون او شین معجمه.

۲۷.**ابوامامه الباهلي** : دغه ابوامامه دی چي نوم يې صدی دی د عجلان باهلي زوی دی، په مصر کي اوسېدی او بیا حمص ته منتقل سوی وو او هلته وفات سو، د هغه اصحابو څخه دی چي زیات روایتونه ور څخه کیږي، داهل شام په نزد دده راویان زیات دي ډېرو خلکو ور څخه روایتونه کړي دي، په ۸۶م هجري کال کي د ۹۱ کالو په عمر وفات سو، او تر ټولو آخري صحابي وو چي په شام کي وفات سو، یو قول دادی چي په شام کي تر ټولو وروسته عبدالله بن بشر وفات سو، په صدی کي پر صاد باندي فتحه او دال مهمله مفتوح او یا مشدده ده.

هجري كال كي وفات سو .

۵۲. **ابوابراهيم الاشهلي** : دغه ابو ابراهيم اشهلي انصاري دی دده دومره حال معلوم سوی دی چي د خپل پلار څخه يې حديثونه اورېدلي دي او دده څخه يحيى بن ابي كثير روايت وكړ، دغه بيان په كتاب الكنى كي امام مسلم كړی دی، ترمذي وايي ما دمحمد بن اسماعيل څخه دده د پلار ابراهيم په اړه پوښتنه وكړل چي صحابي وو نو معلومه سول چي هغه ته نه وو معلوم .

۵۳. **ابواسرائيل**: دغه ابو اسرائيل اسماعيل دی د خليفه الملائي زوی دی، د حكم او نورو څخه روايت كوي او دده څخه ابونعيم او اسيد بن حمال او نورو روايت كړی دی ، ضعيف راوي دي او په ۱۶۹ هجري كال كي وفات سو .

۵۴. **ابوايوب المراغي** : دغه ابو ايوب مراغي عنكي دی، د جويره او ابو هريره رضي الله عنهما څخه روايت كوي او دده څخه قتاده روايت كړی دی او دی معمر او باوري راوي وو .

۵۵. **ابوالاحوص**: دده نوم عوف دی د مالک بن فضله زوی دی، ده د خپل پلار څخه او ابن مسعود او ابو موسى څخه حديثونه واورېدل او دده څخه حسن بصري او ابو اسحاق او عطاء بن السامي روايات كړي دي .

۵۶. **احـــوص**: دغه احوص بن جواب دی، دده كنيت جواب ضبي دی ، داهل كوفه څخه دی ، دده څخه علي بن مديني روايت كړی دی په ۲۳۱ هجري كال كي وفات سو ، او په جواب كي جيم مفتوح او واو مشدد او ياء موحده ده .

۵۷. **ابوالاحوص** : دغه ابو الاحوص سلام دی، د سليم زوی ، د حديثو حافظ دی، آدم بن علي او زياد بن علاقه څخه روايت كوي، او دده څخه مسدد او هناد روايات كړي دي، او ده تقريبا څلور زره حديثونه روايت كړي دي ده ته ابو معين باوري او معتبر ويلي دي، په ۱۷۹ هجري كال كي وفات سو .

۵۸. **ابی بن خلف** : ابی بن خلف او دده ورور اميه د ابي خلف زامن وه، خلف د وهب زوی وو او اميه د ابي ورور وو ، ابی ډېر خبيث مشرک وو ، د احد د غزا په ورځ رسول الله ﷺ په خپل لاس مبارک سره قتل كړی وو او اميه د شرک په حالت كي د بدر په ورځ ووژل سو .

# صحابي ښځي

۵۹. **اسماء بنت ابي بكر** ﷞: دغه اسماء د حضرت ابوبکرصديق ﷛ لور ده او دې ته ذات النطاقين ويل کيږي ځکه چي دې د رسول الله ﷺ د هجرت په شپه د خپل کمربند په ځېرلو سره دوې ټوټې کړې وو، د هغه په يوه ټوټه کي يې د خوراک يې لوښي وتړی او دوهمه ټوټه يې پرژي وتړل او يا يې هغه خپله کمربند ګرځولی وو، نوموړې د حضرت عبدالله بن زبير ﷛ مور ده، په مکه کي يې اسلام راوړی وو، ويل کيږي چي تر هغه وخته يوازي اووه لس کسانو اسلام قبول کړی وو، دا د خپلي خور عائشې ﷞ څخه لس کاله مشره وه، کله چي ددې د زوی عبدالله بن زبير ﷛ مړی د دار څخه راکښته سو او دفن کړل سو نو د هغه څخه لس ورځي وروسته د سلو کالو په عمر په مکه کي وفات سول او هغه وخت ۷۳م هجري کال وو، ددې څخه ډېرو خلګو حديثونه روايت کړي دي.

۶۰. **اسماء بنت عميس**﷞: دغه اسماء بنت عميس ده، نوموړې د خپل خاوند حضرت جعفر بن ابي طالب سره حبشې ته هجرت وکړ او هلته يې محمد يا عبدالله او عون پيدا سول، بيا يې مدينې ته هجرت وکړ، کله چي حضرت جعفر ﷛ شهيد سو نو د ابوبکر صديق ﷛ سره يې نکاح وکړل او محمد ځيني پيدا سو، بيا کله چي حضرت ابوبکر صديق ﷛ وفات سو نو حضرت علي بن ابي طالب ﷛ ورسره نکاح وکړل او يحيى ځيني پيدا سو، ددې څخه ډېرو سترو صحابه کرامو روايت کړی دی، په عميس کي عين مضموم او ميم مفتوح دی او باء ساکنه ده او سين مهمله دی.

۶۱. **انيسه بنت خبيب** : دغه انيسه انصاريه صحابيه ده، ددې شمېر د اهل بصره څخه کيږي، ددې څخه ددې خوريى خبيب بن عبدالرحمن روايت کړی دی، انيسه د تصغير صيغه ده همدارنګه خبيب.

۶۲. **اميمه بنت رقيقه** : رقيقه د خويلد لور او د بي بي خديجې ﷞ خور ده، ددې شمېر د اهل مدينې څخه کيږي، په رقيقه کي راء مضموم او دواړه قافونه مفتوح دي، او په منځ کي ياء ساکنه ده.

۶۳. **امامه بنت ابي العاص** : دغه امامه د ابو العاص بن ربيع لور ده او ددې مور زينب ده چي د رسول الله ﷺ لور وه، د بي بي فاطمې ﷞ خورزه وه، حضرت علي ﷛ ته يې ددې وصيت کړی وو، د امامه نکاح د حضرت علي ﷛ سره زبير بن العوام وکړل ځکه چي د هغه

يعني د امامه پلار هغه ته ددې وصيت کړی وو . په باب ما لايجوز من العمل في الصلوة کې په دې اړه يادونه راغلې ده .

## ب ـ صحابه کرام رضي الله عنهم :

٦٤. **ابوبکر الصديق** رضي الله عنه : نوم يې عبدالله او د عثمان ابوقحافه زوی دی، په قحافه کې پر قاف پېښ دی، ابوقحافه د عامر زوی وو او هغه د عمرو او هغه د کعب او هغه د تيم او هغه د مره، همدارنګه په اووم نيکه باندې د هغه نسب د رسول الله ﷺ سره يو ځای کيږي، په حضرت عتيق سره ځکه نومول سوی دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: من اراد ان ينظر الى عتيق من النار فلينظر الى ابي بکر. يعني څوک چې د داسې سړي ليدل غواړي چې د دوږخ له اور څخه ازاد او بې خطره سوی وي نو هغه دې ابوبکر رضي الله عنه ته وګوري، د رسول الله ﷺ په هري غزا کې شريک وو او هيڅکله ور څخه بېل نه سو، نه د اسلام څخه مخکې او نه د اسلام څخه وروسته، په نارينوو کې تر ټولو مخکې په اسلام مشرف سوی دی، رنګ يې سپين وو، چاغ اندامونه يې وه، باړخوګان يې نري وه، پر مخ يې ډېره لږ غوښه وه، سترګې يې دننه وې، تندی يې راپورته وو، د ګوتو بېخونه يې د غوښو څخه خالي وه، په نکريزو او وسمه يې وېښتان رنګول، هغه ته، مور او پلار ته يې، اولاد ته يې او لمسي ته يې د رسول الله ﷺ د ملګرتيا شرف حاصل سو، دومره لوی نعمت په ټولو صحابه کرامو کې بل هيچا ته حاصل نه سو، د فيل د پېښې څخه څلور مياشتې تيرې سوې وې چې په مکه کې پيدا سو او په مدينه کې د سه شنبې په شپه د ماخستن او ماښام په منځ کې چې په جمادي الاخرى کې اته ورځې پاته وې په ۱۳م هجري کال وفات سو، عمر يې ۶۳ کاله وو، دا وصيت يې کړی وو چې د نوموړي زوجه اسماء بن عميس دې غسل ورکړي ځکه نو هغې غسل ورکړ او عمر بن خطاب رضي الله عنه د جنازې لمونځ ورکړ، د خلافت زمانه يې دوه کاله او څلور مياشتې وه، د صحابه کرامو او تابعينو ډېر کسان روايت ور څخه کوي، ډېر لږ حديثونه ور څخه روايت سوي دي ځکه چې در سول الله ﷺ وروسته تر لږ وخت پوري ژوندی وو او د امور خلافت د بوختيا په وجه وزګار نه وو .

٦٥. **ابوبکره** رضي الله عنه : دغه ابوبکره نفيع بن حارث دی او دی د حارث بن کلده ثقفي غلام وو بيا هغه په خپلې کورنۍ کې شامل کړی وو، يعني زوی يې ګرځولی وو، د هغه تر نامه نفيع د هغه کنيت ابوبکره زيات مشهور سو، د هغه د دغه کنيت وجه دا بيانيږي چې د طائف په

ورځ ده د یوې رسۍ په مرسته په زړېدو سره را ټوپ کړي وه او د رسول الله ﷺ په خدمت کي په حاضرېدو سره يې اسلام قبول کړ، نو رسول الله ﷺ د ابوبکره په کنيت سره مخاطب کړ او ازاد يې کړ، ځکه د رسول الله ﷺ دموالي څخه دی يعني ازاد سوی غلام دی، په بصره کي په هستوګن کېدو سره هم هلته په ۴۹ م هجري کال کي وفات سو ، ډېر خلګ ور څخه روايت کوي ، په نفيع کي نون مضموم او فاء مفتوح او باء ساکنه ده .

٦٦. **ابوبرزه** : دغه ابوبرزه فضله بن عبيد اسلمي دی، د اسلام په پيل کي يې اسلام قبول کړ او دا هغه دی چي عبدالله بن خطل يې قتل کړی وو او د رسول الله ﷺ تر وفات پوري په ټولو غزاوو کي شريک وو ، بيا بصرې ته په تللو سره هلته هستوګن سو او بيا يې د خراسان غزا وکړل او په مرو کي په ۶۰ م هجري کال وفات سو .

٦٧. **ابوبرده** ؓ : دغه ابوبرده هاني بن نيار دی ، د اويا صحابه کرامو سره په عقبه ثانيه کي حاضر وو او تر دې وروسته په غزاوو کي يې هم ګډون کړی دی او نوموړی د براء بن عازب ؓ ماما دی ، دده اولاد نه کېدی ،د معاويه د خلافت په پيل کي په ټولو جګړو کي د حضرت علي ؓ په ملګرتيا کولو سره وفات سو ، ده د براء او جابر څخه روايت کړی دی، په هاني کي نون مکسور دی، ددې څخه وروسته همزه ده او په نيار کي نون مکسور او يا بېله تشديده ده او په آخر کي راء مهمله وه .

٦٨. **ابوبصر** : دغه ابوبصر عتبه بن اسيد ثقفي دی، د اسلام په پيل کي يې اسلام قبول کړی دی ، دده يادونه د حديبيه په غزا کي راځي، د رسول الله ﷺ په زمانه کي وفات سو ، په اسيد کي همزه مفتوح او سين مهمله مکسور دی او دده يادونه په حرف عين کي هم راتلونکې ده .

٦٩. **ابوبصره** : دلته پر باء زبر دی او صاد مهمله ساکن دی ، دی حميل بن بصره غفاري دی ، حميل د حمل تصغير دی .

٧٠. **ابوبشير** ؓ : دغه ابوبشير قيس دی، دعبيد انصاري مازني زوی ابن عبدالبر صاحب په استيعاب کي وايي: دده پر صحيح نامه باندي واقفيت ونه کړل سو او هيڅ يو باوري سړي دده نوم ونه ښودل سو ، او ابن منده په کتاب الکنی کي دده ذکر کړی دی مګر نوم يې نه دی ليکلی ، دده څخه ډېرو خلګو روايت کړی دی، د يوم حرة څخه وروسته وفات سو او اوږد عمر يې درلود .

٧١. **ابوالبداح** : دغه ابوالبداح دی په نامه کي يې اختلاف دی ، ويل کيږي چي دده نوم عاصم

بن عدي دی او یو قول دادی چي دی د عام بن عدي زوی دی، دا یو لقب دی چي په هغه سره مشهور سو او دده کنیت عمر ابو عمر دی، دده په صحابي کېدو کي هم اختلاف دی ځینو ویلي دي چي ده ته د نبي کریم ﷺ صحبت حاصل سوی دی او ځینو ویلي دي چي نه دی حاصل سوی د مګر پلار ته يې حاصل سوی دی، د ابن عبد البر په نزد صحیح دادی چي صحابي وو، په بداح کي باء موحده مفتوح ده او دال مهمله مشدد او حاء مهمله ده، په ۱۱۷م هجري کال کي وفات سو، عمر ۸۴ کاله وو، د خپل پلار څخه روایت کوي او دده څخه ابو بکر بن عبد الرحمن.

۷۲. **البراء بن عازب** : دغه براء بن عازب ابو عماره انصاري حارثي دی، کوفې ته راغلی او په ۲۴ هجري کال کي يې فتح کړه، د جمل، صفین او نهروان په جګړو کي د حضرت علي رضی الله عنه سره وو او د مصعب بن زبیر په زمانه کي په کوفه کي وفات سو، دده څخه ډېر کسان روایت کوي، په عماره کي عین مهمله مضموم دی او پر میم باندي شد نسته.

۷۳. **بلال بن رباح** رضی الله عنه : دغه بلال بن رباح د حضرت ابو بکر صدیق رضی الله عنه ازاد سوی غلام دی، د اسلام په پیل کي يې ایمان راوړ، دی اول سړی وو چي په مکه کي يې خپل اسلام ښکاره کړ، د بدر په غزا کي او د هغه څخه وروسته په نورو ټولو غزاوو کي يې ګډون کړی دی او تر پایه په شام کي اوسېدی، هیڅ اولاد يې ونه سو، دده څخه د صحابه کرامو او تابعینو ډېر کسان روایت کړی دی، عمر يې ۶۳ کاله وو، په ۲۰ هجري کال کي په دمشق کي وفات سو او په باب الصغیر کي دفن سو، یو قول دادی چي په حلب کي وفات سو او په باب الاربعین کي دفن سو، صاحب کشاف وايي چي اول قول صحیح دی او دی د هغه کسانو څخه وو چي د مکې اوسېدونکو د اسلام قبلولو په وجه سخت تکلیفونه ورکول او د بلال رضی الله عنه په تکلیف ورکولو کي خپله امیه بن خلف حجي برخه اخیستل او دا تقدیر الهي وو چي دغه ملعون د حضرت بلال رضی الله عنه په لاس د بدر په ورځ ووژل سو، جابر رضی الله عنه وايي چي حضرت عمر رضی الله عنه به ویل: ابو بکر رضی الله عنه زموږ سردار دی او زموږ د سردار، بلال رضی الله عنه ازاد کوونکی دی.

۷۴. **بلال بن حارث** : دغه بلال بن حارث ابو عبد الرحمن مزني دی، په اشعر کي اوسېدی او مدینه يې لېدلې وه، دده څخه د ده زوی حارث او علقمه بن وقاص روایت وکړ په ۶۰م هجري کال کي د اتیا کالو په عمر وفات سو.

۷۵. **بریده بن الحصیب**: دغه بریده بن الحصیب اسلمي دی، د بدر څخه مخکي يې اسلام راوړی وو مګر په هغه کي حاضر نه سو او په بیعت رضوان کي شریک وو، د مدینې

د اوسېدونکو څخه وو، بیا بصرې ته ولاړی او دهغه ځای څخه خراسان ته په جهاد کولو سره ورسېدی، د یزید بن معاویه دخلافت په زمانه په اومرو کي په ۶۲م هجري کال وفات سو، ډیر کسان روایت ور څخه کوي او حصیب د حصب تصغیر دی.

۷۶. **بشر بن معبد**: دا بشر بن معبد دی، د ابن الخصاصیه په نامه سره مشهور دی، خصاصیه د هغه مور ده او دهغه نوم کبشه وو، خلګو د هغه د مور نامه ته منسوب کړ او د رسول الله ﷺ ازاد سوی غلام وو او دهغه شمېر د بصرې له اوسېدونکو څخه دی.

۷۷. **بسر بن ابي ارطاة**: دغه بسر بن ابي ارطاة ابوعبدالرحمن دی او د ابوارطاة نوم عمیر عامري قرشي وو، ویل کیږي چي د کم عمر په وجه یې د رسول الله ﷺ څخه هیڅ نه واورېدل او اهل شام دده اورېدل ثابتوي، د واقدي قول دی چي دی د رسول الله ﷺ د وفات څخه دوه کاله مخکي پیدا سوی وو، ویل کیږي چي د عمر په پای کي یې دماغ صحیح نه وو، دحضرت معاویه رضی الله عنه د خلافت په زمانه کي وفات سو او یو قول دادی چي دعبدالملک د خلافت په زمانه کي وفات سو.

۷۸. **بدیل بن ورقاء**: دغه بدیل بن ورقاء خزاعي دی، قدیم الاسلام دی، دده څخه دده دواړه زامن عبدالله او سلمه او نور روایت کوي، د رسول الله ﷺ په زمانه کي شهید سو او یو قول دادی چي د صفین په ورځ شهید سو، یو قول دادی چي د صفین په ورځ چا مړ کړ هغه دده زوی عبدالله وو، بدیل د بدل مصغر دی.

۷۹. **ابنا بسر**: یعني د بسر دواړه زامن، ددې څخه مراد عطیه او عبدالله دی، دده یادونه به دعین په حرف کي راسي، د دوی دواړو یو حدیث دی د خرماوو او کوچو خوړلو په اړه چي په هغه کي دواړه نومونه په یو ځای کېدو سره ابنا بسر یعني دبسر دواړه زامن ورته ویل سوي دي او هغوی نومونه دي ذکر سوي.

۸۰. **البیاضي**: منسوب دی بیاضه بن عامر ته او دده نوم عبدالله بن جابر الانصاري دی، نوموړی صحابي دی.

## تابعین رحمهم الله.

۸۱. **بلال بن یسار**: دغه بلال دیسار زوی دی چي هغه د زید زوی وو چي د رسول الله ﷺ ازاد سوی غلام وو، دغه زید، زید بن حارثه نه دی، د ه د خپل پلار او نیکه څخه روایت کړی دی، دده څخه عمرو بن مره روایت کوي دده حدیثونه د بصرې په خلګو کي رواج دي.

۸۲. **بلال بن عبدالله**: دغه بلال د حضرت عبدالله بن عمر بن خطاب قرشي عدوي زوی دی، په حديث کي ډېر پوه وو.

۸۳. **بسر بن محجن**: دغه بسر بن محجن ديلي حجازي دی، د خپل پلار څخه يې روايت کوی او ابن منذر دده نوم په صحابه ذيل کي درج کړی دی او ويلي يې دي چي دده د رسول الله ﷺ څخه يو حديث روايت کړی دی او بخاري ورته تابعي ويلي دي، او همدغه صحيح خبره ده، دده څخه زيد بن اسلم روايت کوي، په محجن کي ميم مکسور او حاء مهمله ساکنه او جيم مفتوح او په اخر کي نوم دی، په ديلي کي دال مکسور، او د دوو ټکو والا ياء ساکنه ده.

۸۴. **بهز بن حکيم**: دغه بهز د حکيم بن معاويه بن حيدة القشيري بصري زوی دی، دده په اړه د علماؤ اختلاف دی هغه د خپل پلار، هغه د خپل نيکه څخه روايت کړی دی او د هغه څخه ډېرو خلگو، بخاري او مسلم په خپل صحيحين کي د هغه څخه هيڅ روايت نه دی داخل کړی، ابن عدي ويلي دي: ما د هغه هيڅ داسي حديث نه دی ليدلی چي د انکار وړ وي، په حيده کي حاء مهمله مفتوح او دوو ټکو والا ياء ساکنه او دال مفتوح دی.

۸۵. **بشر بن مروان**: دغه بشر د مروان بن حکم اموي قرشي زوی او د عبدالملک ورور دی، دی د خپل ورور له خوا د عراق والي وو. د يوم جمعه د خطبې په باب کي دده يادونه راغلې ده، په بشر کي باء مکسور او شين معجمه ساکن دی.

۸۶. **بشر بن رافع**: دغه بشر بن رافع دی، يحيی بن ابي کثير او ډېرو خلگو ور څخه روايت کړی دی او دده څخه عبدالرزاق او ډېرو خلگو روايت کړی دی، دده روايت ته احمد بن حنبل ضعيف او ابن معين قوي ويلي دي.

۸۷. **بشر بن ابي مسعود**: دغه بشر د ابو مسعود بدري زوی دی. ده د خپل پلار څخه او هغه د عروه او يونس بن ميسره او ډېرو خلگو څخه روايت کړی دی.

۸۸. **بشير بن ميمون**: دغه بشير بن ميمون د خپل اکا اسامه بن اخدري څخه روايت کوي او د هغه څخه بشير بن مفضل او نورو روايت کړی دی، رېښتونی گڼل کيږي.

۸۹. **بجاله بن عبده**: دغه بجاله بن عبده تميمي دی، د جزء بن معاويه د کاتب احنف بن قيس اکا دی، مکي او باوري دی. د اهل بصره څخه شمېرل کيږي. د عمران بن حصين څخه يې حديثونه اورېدل او د هغه څخه عمرو بن دينار. په ۹۰هجري کال کي په مکه کي وفات سو. په بجاله کي باموحده مفتوح او جيم مخفف يعني د تشديد دی او په جزء کي جيم

مفتوح او زاء ساکنه ده چي د هغه څخه وروسته همزه ده .

۹۰. **ابوبرده**: دغه ابوبرده عامر دی، د عبدالله بن قیس زوی دی ، عبدالله بن قیس یې نوم دی د ابوموسی اشعري رضي الله عنه، ابوبرده یو مشهور او کثیر الروایت تابعي دی ، دخپل پلار او حضرت علي رضي الله عنه څخه یې روایت کوی او د قاضي شریح څخه وروسته دهغه پر ځای پر قضاء باندي په کوفه کي مامور کړل سو ، بیا حجاج بن یوسف برطرفه کړی وو .

۹۱. **ابوبکر بن عیاش**: دغه ابوبکر بن عیاش اسدي د سترو علماؤ څخه وو، د ابواسحاق او نورو څخه یې روایت کوی او دده څخه احمد او ابن معین روایت کړی دی، د امام احمد قول دی چي دی صدوق او باوري دی چي کله غلطي هم کوي، په ۱۵۳ هجري کال کي د ۹۶ کالو په عمر وفات سو ، په عیاش کي د دوو ټکو والا یاء مشدد ده او شین معجمه دی.

۹۲. **ابوبکر بن عبدالرحمن** : دغه ابوبکر بن عبدالرحمن مخزومي دی. ابوبکر یې نوم دی او کنیت هم، تابعي دی ، ده د عائشي رضي الله عنها او ابوهریره رضي الله عنه څخه حدیثونه واورېدل او دده څخه شعبي او زهري روایات نقل کړي دي .

۹۳. **ابوبکر بن عبدالله بن زبیر** : دغه ابوبکر بن عبدالله بن زبیر حمیدي دی چي د امام بخاري شیخ دی، دده یادونه به د عین په حرف کي راسي .

۹۴. **ابوالبختري** : دده نوم سعید بن فیروز دی، دده حدیث د میاشتو لیدلو په اړه دی .

# صحابي ښځي

۹۵. **بریرة** رضي الله عنها : په بریره کي باء مفتوح ده او اوله راء مکسور او دوو ټکو والا یاء ساکنه ده. دا د ام المؤمنین عائشي رضي الله عنها ازاده سوې مینزه وه، د عائشي، ابن عباس او عروه ابن زبیر رضي الله عنهم څخه روایت کوي.

۹۶. **بسرة** رضي الله عنها: بسره د صفوان بن نوفل لور . نسلا قریشیه اسدیه او د ورقه بن نوفل خور وه.

۹۷. **بهیسه** رضي الله عنها: دغه بهیسه فزازیه ده ، صحابیه ده او د خپل پلار څخه روایت کوي او هغه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم څخه او ددې حدیث د بیع په اړه دی. په بهیسه کي باء مضموم او هاء مفتوح او یا ساکنه او سین مهمله دی .

۹۸. **ام بجید** رضي الله عنها : دغه ام بجید حوا ده د یزید بن سکن لور انصاریه ده. دا اسماء بنت یزید خور ده . ددې شهرت په کنیت سره زیات سو . د هغه ښځو څخه ده چي هغوی د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره بیعت کړی وو . ددې څخه عبدالرحمن بن بجید روایت کړی دی . بجید دبجد تصغیر دی.

## تابعي ښځي

۹۹. **بناته**: بناته د باء په پېښ او د نون په تخفيف سره د عبدالرحمن بن حيان ازاده سوې مينزه او انصاريه ده، دعائشې رضي الله عنها څخه روايت کوي او ددې څخه ابن جريج روايت کړی دی، ددې حديث د جلا جل والا دی ، په حيان کي حاء مهمله او مفتوح ده او د دوو ټکو والا ياء مشدده ده.

## ت - صحابه کرام رضي الله عنهم :

۱۰۰. **تميم داري** رضي الله عنه : دغه تميم بن اوس داري دی مخکي نصراني وو، بيا په نهم هجري کال کي مسلمان سو، ده به د لمانځه په يوه رکعت کي ټول قرآن کريم ختم کوی او کله به يې يو آيت ټوله شپه په وار وار وايه تر دې چي سهار به سو، محمد بن منکدر بيان وکړ چي يو وار داري د شپې تر سهار پوري بېده وو او د تهجد لپاره پورته نه سو نو خپل ځان ته د سزا ورکولو لپاره يې تر يوه کال پوري ټوله شپه نفلونه کول او بالکل بېده نه سو، په مدينه کي اوسېدی بيا د حضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت څخه وروسته په شام کي هستوګن سو او تر وفات پوري هلته وو، او تر ټولو مخکي په مسجد کي ده څراغ بل کړ ، د نبي کريم صلى الله عليه وسلم څخه ده د دجال او جساسه قصه بيان کړې ده او دده څخه ډېرو خلګو روايت کړی دی.

## تابعين رحمهم الله .

۱۰۱. **ابوتميمه** رحمه الله : دغه ابوتميمه طريف بن خالد هجمي بصري دی دده اصل د يمن د عربو څخه وو، دده اکا دی پلورلی وو او دی تابعي دی ، د ډېرو صحابه کرامو څخه روايت کوي او دده څخه قتاده او نورو روايت کړی دی ، په ۹۵ هجري کال کي وفات سو .

## ث - صحابه کرام رضي الله عنهم :

۱۰۲. **ثابت بن قيس بن شماس** رضي الله عنه : دغه ثابت بن قيس بن شماس انصاري خزرجي دی، د احد غزا او د هغه وروسته چي څومره غزاوي وسوې په ټولو کي حاضر وو او د اکابرو صحابه کرامو څخه او د انصارو د لويو علماؤ څخه وو ، رسول الله صلى الله عليه وسلم د جنت زيری ورکړی وو او دی د رسول الله صلى الله عليه وسلم خطيب وو، د يمامه په ورځ يعني په کومه ورځ چي د مسيلمه کذاب سره جنګ سوی وو په هغه کي په ۱۲ هجري کال کي شهيد سو ، دده څخه انس بن مالک او نورو روايت کړی دی .

۱۰۳. **ثابت بن ضحاک** رضی اللہ عنہ : دغه ثابت بن ضحاک ابوزید انصاري خزرجي دی ، دی د هغه اصحابو څخه دی چا چي (په حدیبیه کي) د بیعت الرضوان پر وخت د درختي لاندي د رسول الله ﷺ په لاس مبارک بیعت کړی وو ، او دی هغه وخت د کم عمر وو ، د حضرت عبدالله بن زبیر رضی اللہ عنہ سره چي کومه فتنه وسول په هغه کي شهید سو .

۱۰۴. **ثابت بن وحداح** رضی اللہ عنہ : دغه ثابت بن وحداح د یوه قول مطابق بن وحداحه انصاري دی، د احد په غزا کي شریک سو او خالد بن ولید په نېزي سره چي تر بدن یې وتلې وه شهید سو او یو قول دا هم دی چي پر بستره باندي وفات سوی وو کله چي رسول الله ﷺ د حدیبیه څخه راستون سو ، د تشبیع الجنازة په باب کي دده ذکر راغلی دی .

۱۰۵. **ثوبان** رضی اللہ عنہ : دغه ثوبان بن بجدد دی ، دده کنیت ابوعبدالله دی ، رسول الله ﷺ رانیوی او ازاد یې کړ، دی د رسول الله ﷺ تر وفات پوري په سفر او حضرت کي همېشه د رسول الله ﷺ سره وو ، بیا شام ته راغلی وو ، بیا رمله ته راغلی او تر دې وروسته په حمص کي هستوګن سو او هلته په ۸۴ هجري کال کي وفات سو ، دده څخه ډېرو خلګو روایات کړي دي ، په بجدد کي باء مضموم او جیم ساکن او اول دال مهمله مضموم دی .

۱۰۶. **ثمامه بن اثال** رضی اللہ عنہ : دغه ثمامه بن اثال حنفي دی، د اهل یمامه سردار وو، دی بندي سوی وو ، رسول الله ﷺ خلاص کړ ، او ددې وروسته ولاړی خپلي جامې یې پرېولې او غسل یې وکړ بیا د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او اسلام یې قبول کړ، دده اسلام ډېر ښه پاته سو ، ابوهریره او ابن عباس رضی اللہ عنہما ور څخه روایت کړی دی، په ثمامه کي ثاء مضموم ، او دواړه میمان غیر مشدد دی، په اثال کي همزه مضموم او ثاء غیر مشدد او په پای کي لام دی .

۱۰۷. **ابوثعلبه** رضی اللہ عنہ : دغه ابوثعلبه جرهم بن ناشب خشني دی او دی په خپل کنیت سره مشهور دی، د بیعت الرضوان بیعت یې وکړ، رسول الله ﷺ د قوم خلګو ته استولی وو چي اسلام یې راوړ ، ابوثعلبه شام ته راغلی وو او هلته په ۷۵ هجري کال کي وفات سو، په جرهم کي جیم او هاء دواړه مضموم دي .

## تابعین رحمہم اللہ .

۱۰۸. **ثابت بن ابي صفیه** رحمہ اللہ : دغه ثابت د ابوصفیه زوی دی، کنیت یې ابوحمزه دی او د کوفې او سېدونکی دی، د محمد بن علي الباقر څخه یې حدیث اورېدلي دي ، وکیع او

ابن عینیه ور څخه روایت کړی دی، په ۱۴۸ هجري کال کي وفات سو.

۱۰۹. **ثابت بن اسلم بناني** رحمة الله عليه: نوم يې ثابت دی او د اسلم بناني زوی دی، کنیت يې ابو محمد دی، تابعي دی د بصرې په مشهورو علماؤ کي دی او په ثقاتو کي شمېرل کيږي. د انس بن مالک رضي الله عنه څخه د حدیث په روایت کولو کي مشهور سوی دی او ډېرو کسانو دده څخه حدیث روایت کړي دي، په ۱۲۳ هجري کال د ۸۶ کالو په عمر وفات سو.

۱۱۰. **تمامه بن حزن** رحمة الله عليه: دغه تمامه د حزن قشيري زوی دی، د تابعینو په طبقه ثانیه کي شمېرل کیږي او دده حدیث بصریین روایت کوي، حضرت عمر رضي الله عنه او دهغه زوی حضرت عبدالله او حضرت ابو الدرداء رضي الله عنه يې لیدلي دي او د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه يې حدیثونه اورېدلي دي. اسود بن شیبان بصري دده څخه دحدیثو روایت کړی دی، دحزن حاء مهمله مفتوح ده، پر زاء او نون باندي جزم دی.

۱۱۱. **ثور بن یزید** رحمة الله عليه: دغه ثور د یزید کلاعي شامي زوی دی او د حمص اوسېدونکی دی، دخالد بن معدان څخه يې حدیث واورېدل او دده څخه سفیان ثوري او یحیی بن سعید حدیث نقل کړي دي په ۱۵۵ هجري کال کي وفات سو، یادونه يې په باب الملاحم کي ده.

## ج - صحابه کرام رضي الله عنهم:

۱۱۲. **جابر بن عبدالله** رضي الله عنه: کنیت يې ابو عبدالله دی د انصارو څخه دی، دقبیله سلیم اوسېدونکی دی، د هغه مشهورو صحابه کرامو څخه دی چي هغوی د حدیث روایتونه ډېر کړي دي. د بدر په غزا کي او تر هغه وروسته په ټولو غزاوو کي د نبي کریم ﷺ سره وو. داسي ټولي غزاوي اتلس دي، شام او مصر ته راغلی، د عمر په پای کي ړوند سوی وو. ډېرو خلګو ور څخه حدیث نقل کړي دي، په ۷۴ هجري کال کي په مدینه منوره کي وفات سو عمر يې ۹۴ کاله بنودل کیږي. د یوه قول مطابق په صحابه کرامو کي تر ټولو آخر په مدینه کي (د عبدالملک بن مروان په خلافت کي) وفات سوی دی.

۱۱۳. **جابر بن سمره** رضي الله عنه: کنیت يې ابو عبدالله عامري دی، دسعد بن ابي وقاص وراره دی، کوفې ته راغلی وو او هلته په ۷۴ هجري کال کي وفات سو، ډېرو کسانو ور څخه حدیث روایت کړي دي.

۱۱۴. **جابر بن عتیک** رضي الله عنه: کنیت يې ابو عبدالله انصاري دی، د بدر په غزا کي او نورو ټولو غزاوو کي يې ګډون کړی دی، خپل دوو زامنو عبدالله او ابو سفیان او دهغه وراره

عتیک بن حارث ور څخه حدیث روایت کړي دي ، په ۶۱ هجري کال کي د ۶۱ کالو په عمر وفات سو.

۱۱۵. **جبار بن صخره** رضي الله عنه : دغه جبار د صخر انصاري سلمي زوی دی د عقبه بیعت، د بدر غزا او د هغه څخه وروسته په ټولو غزاوو کي حاضر وو، په لیلة العقبه کي چي اویا صحابه کرام شریک وه په هغوی کي یو دی هم وو، شرحبیل بن سعد دده څخه حدیث روایت کړي دي. په جبار کي پر جیم زوی او باء مشدده ده.

۱۱۶. **جریر بن عبدالله** رضي الله عنه : کنیت یې ابوعمرو دی ، په کوم کال چي رسول الله ﷺ وفات سو په هغه کال ده اسلام راوړ، جریر ویلي دي ما د رسول الله ﷺ د وفات څخه څلوېښت ورځي مخکي ایمان راوړ کوفې ته راغلی او تر یو وخت پوري هلته وو، بیا د هغه ځای څخه قرقیسا ته منتقل سو او هلته په ۵۱ م هجري کال کي وفات سو ، ډېرو کسانو حدیثونه ور څخه روایت کړي دي.

۱۱۷. **جندب بن عبدالله** رضي الله عنه : د عبدالله زوی د سفیان بجلي علقي لمسی دی، عقله د قبیله بجبله یو ښاخ دی او په قبیله بجبله کي ځیني داسي خلک دي چي هغوی ته قسر ویل کیږي، پر قاف باندي زور او سین په جزم سره دی، دغه خلک د خالد بن عبدالله قسری د کورنۍ څخه دي، د عبدالله بن زبیر رضي الله عنه د وخت په فتنې کي د هغه څخه څلور کاله وروسته وفات سو. ډېرو کسانو ور څخه حدیثونه روایت کړي دي، په جندب کي پر جیم ضمه او نون په جزم سره دی . د دال پېښ او زور دواړه صحیح دي.

۱۱۸. **جبیر بن مطعم** رضي الله عنه : کنیت یې ابومحمد قرشي نوفلي دی. دمکې د فتح څخه مخکي یې اسلام راوړ ، مدینې ته یې تشریف یووړ او هلته په ۵۴ م هجري کال کي وفات سو . یوې ډلي ور څخه د حدیثو روایت کړی دی د نسب په اعتبار قریشي دی.

۱۱۹. **جرهد بن خویلد** رضي الله عنه : مدني اسلمي دی، په اهل صفه کي شمېرل کیږي، په ۶۱ م هجري کال کي وفات سو ، دده زامنو عبدالله ، عبدالرحمن، سلیمان او مسلم ور څخه روایت کړی دی . په جرهد کي جیم او هاء دواړه زور لري.

۱۲۰. **جعفر بن ابي طالب** رضي الله عنه : هاشمي دی ، حضرت علي بن ابي طالب رضي الله عنه ورور دی. دده خطاب ذوالجناحین دی. په پیل کي د یوویشت کسانو سره یې اسلام راوړی وو، د خپل ورور حضرت علي رضي الله عنه څخه لس کاله مشر دی. د رسول الله ﷺ سره په سیرت او صورت کي تر ټولو زیات مشابه دی، دده ورور حضرت علي رضي الله عنه وفرمایل: کله چي موږ د

نبي کريم ﷺ سره د ابو طالب په اوښانو کي لمونځ ادا کوی نو ناڅاپه ابو طالب موږ ته وکتل ، رسول الله ﷺ د هغه په لېدو سره ورته وفرمايل: اې محترم اکا! لاندي راسه او زموږ سره لمونځ ادا کړه، ابو طالب ورته وويل: اې زما خوږه وراره! زه يقين لرم چي تاسو پر حق ياست مګر دا خبره بده ګڼم چي زه سجده وکړم او کوناتي مي پورته سي، مګر اې جعفر! ته راکښېنه سه او دخپل اکا د زوی په بغل کي لمونځ وکړه، حضرت جعفر رضي الله عنه راکښېنته سو او د رسول الله ﷺ چپه خوا ته يې لمونځ کول پيل کړل ، کله چي رسول الله ﷺ لمونځ پوره کړ نو حضرت جعفر ته يې په کتلو سره وفرمايل: په ياد ولره! الله تعالی به ستا د بدن سره دوه وزرونه يو ځای کړي، چي د هغه په ذريعه به ته په جنت کي الوځې ، لکه څرنګه چي ته دخپل اکا د زامنو سره يو ځای سوی يې، دده څخه دده زوی عبد الله او ډېر صحابه کرام روايت کوي ، په اتم هجري کال کي د موته په جنګ کي شهيد سو ، د ۴۱ کالو په عمر له دنيا څخه رخصت سو ، د بدن په مخکني برخه کي يې د توري او نيزې نيوي زخمونه وه.

۱۲۱. **جارود** رضي الله عنه : دغه جارود معلي عبدي دی، نوم يې بشر دی او د عمر زوی دی، او د يوه قول په اعتبار جارود يې لقب دی او دده په اړه ډېر زيات اختلاف دی ، په ۹ م هجري کال کي د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او د وفد عبد القيس سره په اسلام مشرف سو ، تر دې وروسته په بصره کي هستوګن سو او د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت په زمانه کي په فارس کي په ۲۱ م هجري کال شهيد کړل سو ، ډېرو کسانو ور څخه روايت کړی دی .

۱۲۲. **جبله بن حارثه** رضي الله عنه : کلبي دی او د رسول الله ﷺ د ازاد سوي غلام زيد بن حارثه ورور دی، د زيد بن حارثه څخه په عمر کي مشر دی ، ابو اسحاق سبعي او نورو محدثينو ور څخه حديثونه روايت کړی دی .

۱۲۳. **ابو جهيم** رضي الله عنه : د جيم پېښ ، د هاء زور او د ياء په سکون سره، د حضرت وکيع رحمه الله د يادونه سره سم دغه عبد الله بن جهيم دی او ځينو ويلي دي چي دغه عبد الله بن حارث بن صمه انصاري دی، صمه د صاد په زېر او د ميم په شد سره دی .

۱۲۴. **ابو جحيفه** رضي الله عنه : نوم يې وهب بن عبد الله عامر دی، کوفې ته راغلی وو، د کشرانو صحابه کرامو څخه دی، کله چي رسول الله ﷺ وفات سو نو دی بلوغ ته نه وو رسېدلی مګر د رسول الله ﷺ څخه يې حديثونه اورېدلي دي او د رسول الله ﷺ څخه د حديث روايت هم کړی دی، په کوفه کي په ۷۴ م هجري کال وفات سو ، دده زوی عون او د تابعينو ډېر خلګ

دده څخه روایت کوي ، جحیفه د جیم په پېښ او حاء مهمله او فاء په زور سره ویل کیږي .

۱۲۵. **ابو جمعه** رضی اللہ عنہ: د یوه قول مطابق انصاري او د بل قول مطابق کناني دی، د نامه په اړه یې اختلاف دی، ځینو دده نوم د خبیب سباع زوی ښودلی دی او نورو خلګو یې نور نومونه ذکر کړي دي، د رسول الله ﷺ د صحابیت شرف یې په برخه دی د شام په خلګو کي شمېرل کیدی .

۱۲۶. **ابوالجعد** رضی اللہ عنہ: دغه ابوالجعد ضمیري دی، همدغه دده نوم دی، او کنیت یې هم دی، ځینو یې نوم وهب ښودلی دی ، عبیده بن سفیان ور څخه حدیثونه روایت کوي، عبیده د عین په زور او د یاء په زېر سره ویل کیږي .

۱۲۷. **ابو جندل** رضی اللہ عنہ: دغه ابو جندل سهیل بن عمرو قریشي د عامر زوی دی په مکه معظمه کي اسلام راوړ ، د حدیبیه په واقعه کي زولنې په پښو وې، د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو ، زولنې خپل د اسلام راوړلو په وجه ور اچولي وې، دده یاددنه د حدیبیه په غزا کي راځي، د حضرت عمر بن خطاب رضی اللہ عنہ د خلافت په زمانه کي وفات سو .

۱۲۸. **ابو جهم** رضی اللہ عنہ: نوم یې عامر دی، د حذیفه عدوي قریشي زوی دی، په خپل کنیت سره مشهور دی، دا هغه صحابي دی چي د هغه څادر رسول الله ﷺ دلمانځه لپاره غوښتی وو .

۱۲۹. ابو جري رضی اللہ عنہ : د جابر سلیم زوی دی د بنوتمیم څخه دی، بصرې ته راغلی وو او دده حدیث هم په بصریانو کي منقول دي، ډېر کم حدیثونه نقل کوي او زیات ور څخه روایت نه دي ، جري د جیم په پېښ، د راء په زېر او د یاء په تشدید سره دی .

۱۳۰. **ابو جمیل** رضی اللہ عنہ : دده یادونه په کتاب الزکوة کي راغلې ده نوم یې معلوم نه کړل سو .

## تابعین رحمۃ اللہ علیہم .

۱۳۱. **جعفر صادق** رحمۃ اللہ علیہ : جعفر بن محمد بن علي بن حسین بن علي ابن ابي طالب دی، صادق یې لقب دی یعني د حضرت علي رضی اللہ عنہ د لمسي لمسی دی، کنیت یې ابو عبدالله دی ، داهل بیتو د سترو کسانو څخه دی، د خپل پلار څخه او نورو څخه هم روایت کوي، د حدیثو سترو امامانو ور څخه حدیثونه نقل کړي دي لکه یحیی بن سعید او ابن جریج او مالک ابن انس، سفیان ثوري ، ابن عینیه، او ابو حنیفة رحمۃ اللہ علیہم ، په ۸۰ هجري کال کي پیدا سو او په ۱۴۸ هجري کال کي وفات سو ، عمر یې ۶۸ کاله وو ، د بقیع په یو داسي قبر کي دفن سو چي په هغه کي یې پلار محمد باقر او د هغه نیکه علي زین العابدین وو .

۱۳۲. **جعفر بن محمد** رحمۃ اللہ علیہ : دغه جعفر د محمد بن ابو عثمان طیالسي زوی دی کنیت یې ابو الفضل دی ، حدیث یې د څو کسانو څخه نقل کړي دي او د هغه څخه د محدثینو یوې ډلي حدیث نقل کړي دي، د باوري علماؤ څخه دی حافظه یې ډېره ښه وه ، په ۲۸۲ هجري کال کي وفات سوی دی .

۱۳۳. **ابوجعفر قاري** رحمۃ اللہ علیہ : دغه ابو جعفر یزید بن القعقاع قاري مدني دی، مشهور تابعي دی د عبدالله بن ایاش ازاد سوی غلام دی، حضرت ابن عمر او حضرت عبدالله بن عباس رضی اللہ عنہم څخه یې حدیثونه واورېدل او دده څخه امام مالک ، ابن انس او نورو حدیثونه روایت کړي دي ، د القاري لفظ د قراة څخه ماخوذ دی او مهموز دی .

۱۳۴. **ابوجعفر عمیر بن یزید**: دغه ابو جعفر عمیر ابن یزید خطمي دی ، د یوې ډلي محدثینو څخه یې حدیثونه اورېدلي دي او حضرت شعبه، حماد او یحیی بن سعید دده څخه حدیث نقل کړي دي .

۱۳۵. **ابوالجویریه** : دغه ابو الجویریه حطان بن خفاف جرمي دی تابعي دی په حدیث کي د حضرت عبدالله بن مسعود رضی اللہ عنہ او معن ابن یزید شاګرد دی، دده څخه یوې ډلي روایت وکړ . جویریه د جاریه تصغیر دی ، په حطان کي حاء مهمله مکسوره ده او طاء مهمله مشدده ده، په پای کي نون دی، په خفاف کي خاء معجمه مضمون او اوله فاء غیر مشدده ده او په جرم کي پر جیم باندي زور او راء مهمله ساکنه ده .

۱۳٦. **ابوالجوزاء**: نوم یې اوس بن عبدالله ازدي دی، د بصرې اوسېدونکي دی ، تابعي دی. د بي بي عائشې رضی اللہ عنہا، عبدالله بن عباس رضی اللہ عنہ او عبدالله ابن عمر رضی اللہ عنہ څخه یې حدیث اورېدلي دي او دده څخه عمرو بن مالک او نورو حضراتو روایت کړی دی ، په ۸۳ هجري کال کي شهید کړل سو .

۱۳۷. **جزء بن معاویه** : دغه جزء معاویه د تمیمي زوی دی دده څخه بجالة د حدیث روایت کړی دی ، ددغه یادونه د مجوس څخه ددیت اخیستي په باب کي راځي، په جزء کي جیم زور او راء په سکون سره ده په پا یکي همزه ده او دا صحیح دی. اهل لغت هم داسي روایت کوي. او اهل حدیث د جیم کسره ، د زاء سکون او په پای کي یاء ، همدارنګه ضبط کوي. دارقطني هم دا رایه لري او عبدالغني د جیم په فتحه او د راء په کسره او په پای کي د یاء تحتاني سره ضبط کړی دی .

۱۳۸. **جميع بن عمير** : دغه جميع بن عمير تيمي دی، دکوفې اوسېدونکی دی ، بخاري همدارنګه بيان کړي دي، د حضرت عمر او بي بي عائشې رضي الله عنهما څخه يې حديث اورېدلي دي او علاء ابن صالح او صدقه بن مثنی دده څخه د احاديثو روايت کوي .

۱۳۹. **ابن جريج** رحمة الله عليه : دده نوم عبدالملک دی د عبدالعزيز بن جريج زوی دی. د مکې اوسېدونکی دی ، مشهور فقيه دی د لوړې درجې عالم دی. حضرت مجاهد او ابن ابي مليکه او عطاء څخه يې حديث اورېدلي دي او دده څخه يوې ډلې روايت کړی دی. ابن عينيه ويلي دي: ما د ابن جريج څخه واورېدل چې فرمايل يې : د حديثو علم چې څرنګه او په کوم تکليف سره ما جمع کړی دی داسي بل هيچا نه دی جمع کړی. په ۱۵۰ م هجري کال کې وفات سو .

۱۴۰. **جبير بن نفير** رحمة الله عليه : نوموړی حضرمي دی ، د جاهليت او اسلام دواړي زمانې يې تر لاسه کړي دي،د شامي علماؤ څخه د اعتبار وړ عالم دی. دده حديث په شاميانو کي مشهور دي ، په ۸۰ م هجري کال په شام کي وفات سو ، د حضرت ابودرداء او حضرت ابوذرغفاري رضي الله عنهما څخه حديث روايت کوي او دده څخه هم يوه ډله د حديثو روايت کړی دی ، نفير د نون په پېښ او د فاء په فتح او ياء تحتاني په سکون سره دی په اخر کي يې راء ده.

۱۴۱. **ابوجهل** : دده نوم عمرو بن هشام دی ، دمغيره مخزومي زوی دی مشهور کافر دی . دده کنيت ابوالحکم وو، رسول الله ﷺ دده کنيت ابوجهل کېښود اوس دده دغه کنيت غالب او مشهور سو .

## صحابي ښځي

۱۴۲. **جويره ام المؤمنين** رضي الله عنها : جويريه رضي الله عنها د حارث لور ده ، په ازواج مطهراتو کي ده ، د مريسيع په غزا کي بندي کړل سوه ، دغه غزا ته غزوه بني مصطلق وايي چي په پنځم هجري کال کي رامنځته سول ،نوموړې ثابت بن قيس ته تر لاسه سوه او هغه مکاتبه وګرځول نو رسول الله ﷺ د هغې بدل کتابت ادا کړ او د ازادولو وروسته يې د هغې سره نکاح وکړل. ددې نوم بره وو. د هغې پر ځای رسول الله ﷺ د جويره نوم پر کېښود. د ربيع الاول په مياشت کي په ۸۶ هجري کال کي د ۶۵ کالو په عمر وفات سول. د حضرت ابن عباس او حضرت عبدالله بن عمر او حضرت جابر رضي الله عنهم څخه حديثونه روايت کوي .

۱۴۳. **جدامه** رضي الله عنها : دغه جدايمه اسديه د وهب لور وه په مکه کي يې اسلام راوړ او د رسول الله ﷺ سره يې بيعت وکړ او د خپل قوم سره يې هجرت وکړ. د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه د

حديثو روايت کوي ، جدامه د ميم په پيښ او دال مهمله سره دی او ځينو په ذال منقوطه سره ويلی دی، حافظ دار قطني وايي چي دا تصحيف دی يعني اصل حرف دال دی چي په ذال سره بدل کړل سو .

## ح - صحابه کرام رضي الله عنهم :

۱۴۴. **حمزه بن عبدالمطلب** رضي الله عنه : نوموړی د عبدالمطلب زوی دی کنيت يې ابوعماره دی د رسول الله ﷺ اکا دی او رضاعي وروريې هم دی، رسول الله ﷺ او حضرت حمزه رضي الله عنه ته ثوبيه رضي الله عنها تی ورکړی وو چي دابولهب مينزه وه، دی د الله جل جلاله زمری وو، د اسلام په پيل کي د بعثت په دوهم کال مسلمان سو او ويل کيږي چي کله نبي کريم ﷺ دار ارقم ته ولاړی نو په شپږم کال دده په اسلام راوړلو سره اسلام ته لوی عزت او عظمت حاصل سو، د بدر په غزا کي حاضر وو او د احد په غزا کي شهيد کړل سو چي وحشي بن حرب شهيد کړ، حضرت حمزه رضي الله عنه د رسول الله ﷺ څخه څلور کاله مشر دی ، حافظ ابن عبدالبر فرمايلي دي : دغه قول زما په نزد صحيح نه دی ځکه چي حضرت حمزه رضي الله عنه د رسول الله ﷺ تی رودونکی ورور دی مګر دا چي ثوبيې رسول الله ﷺ او حمزه رضي الله عنه ته په دوو مختلفو وختو کي تی ورکړی وي، او ځينو ويلي دي چي حضرت حمزه رضي الله عنه تر رسول الله ﷺ دوه کاله مشر وو، دده څخه د حديث روايت حضرت علي، عباس ، زيد بن حارثه رضي الله عنهم کړی دی ، عماره د عين په پيښ سره دی او ثوبيه په ثاء مثلثه پيښ او واو په زور او ياء تحتاني په سکون او ياء موحده سره دی .

۱۴۵. **حمزه بن عمرو اسلمي** رضي الله عنه : نوموړی د اسلم قبيلې اوسېدونکی دی ، په اهل حجاز کي شمېرل کېدی، يوې ډلي ور څخه حديث نقل کړي دي په ۶۱ م هجري کال کي وفات او عمر يې اتيا کاله وو .

۱۴۶. **حذيفه بن يمان** رضي الله عنه : دغه حذيفه بن يمان دی او د يمان نوم د حيل تصغير دی او يمان د هغه لقب دی، د حضرت حذيفه کنيت ابوعبدالله عيسی دی، د عين فتح او د ياء په سکون سره ، د رسول الله ﷺ راز دار دی ، دده څخه حضرت علي، حضرت عمر بن خطاب، حضرت ابودرداء او نورو صحابه کرامو رضي الله عنهم او تابعينو حديث روايت کړي دي، دمدائن په ښار کي دوفات پېښنه يې د حضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت څخه څلوېښت ورځي وروسته په ۳۵ کال کي پېښنه سول .

۱۴۷. **حسن بن علي** رضی اللہ عنہ : دغه حضرت حسن د علي بن ابي طالب رضی اللہ عنہ زوی دی، کنیت يې ابو محمد دی د حضرت محمد ﷺ لمسی دی، او د رسول الله ﷺ روحاني ګل دی، د جنت د ټولو ځوانانو سر دار دی، د رمضان المبارک په پنځلسمه نېټه په دريم هجري کال کي پيدا سو، دغه قول په هغه ټولو قولو کي چي د حضرت حسن د زېږېدني په اړه ليکل سوي دي، زيات صحيح دی، په ۵۰ م هجري کي وفات سو، ځينو ۵۸ او ځينو ۴۹ ويلي دي، او ځينو ۴۴ هجري کال هم ويلي دي، په جنت البقيع کي دفن سو، د ده زوی حسن بن حسن او حضرت ابوهريره او يوې ډلي ور څخه روايت کړی دی او کله چي د هغه پلار مبارک حضرت علي رضی اللہ عنہ په کوفه کي شهيد کړل سو نو خلګو د حسن رضی اللہ عنہ په لاس بيعت على الموت وکړ دغه بيعت کونکي خلګ د څلوېښتو زرو څخه زيات وه او حضرت معاويه رضی اللہ عنہ بن ابي سفيان ته يې د خلافت کار پر پنځلسم د جمادي الاوی په ۴۱ م هجري کال کي وسپاری.

۱۴۸. **حسين بن علي** رضی اللہ عنہ : دغه حسين د حضرت علي رضی اللہ عنہ زوی دی، کنيت يې ابو عبد الله دی، د رسول الله ﷺ لمسی دی او شجر نبوت ګل دی، دجنت د ټولو ځوانانو سردار دی، د شعبان پر پنځمه نېټه په څلورم هجري کال کي پيدا سو، حمل کېدل يې د فاطمې رضی اللہ عنہا په نس کي د حضرت حسن رضی اللہ عنہ د ولادت څخه پنځوس شپې وروسته سوی وو، د جمعې په ورځ پر لسم د محرم په ۶۱ هجري کال کي په کربلا کي د حله او کوفه عراق په منځ کي شهيد کړل سو، سنان بن انس نخعي شهيد کړی وو، ده ته سنان بن ابي سنان هم ويل کيږي، ځينو ويلي دي چي شمر بن ذي الجوش شهيد کړی وو او د خولي بن يزيد اصبحي چي د قبيله حمير دی د حضرت حسين رضی اللہ عنہ سر پرې کړ او عبد الله بن زياد ته يې راوړ، او دغه شعر يې وايه :

او قرر کابي فضـــة وذهبـــا انـــي قـــتلت الملک المحجبا.
قتلت خير الـــناس اما وابا وخيرهم اذ يـنـــسبون نســــبا

زما اوږه د سرو او سپينو زرو څخه ډکه کړئ ځکه چي ما يو داسي پاچا قتل کړی دی چي د يو چا سره يو ځای کېدونکی نه وو، ما داسي سړی قتل کړی دی چي د مور او پلار دواړو له خوا په ټولو خلګو کي غوره دی او کله چي خلګ نسب بيانوي نو هغه په ټولو خلګو کي غوره دی، ځينو بيان کړی دی چي شمر حضرت حسين، د هغه اولاد، وروڼه او اهل بيتو څخه دروېشت کسان ووژل، د ده څخه ابو هريره، د هغه زوی علي زين العابدين او فاطمه

او سکینه، دنو موړي دواړي لوڼي روایت کوي، او د حضرت حسین رضی الله عنه عمر د قتل په ورځ ۵۸ کاله وو او دالله جل جلاله فیصلې ته وګورئ چي عبدالله بن زیاد هم د عاشورا په ورځ په ۶۷ هجري کال کي قتل کړل سو چي ابراهیم بن مالک اشترنخعي عبدالله بن زبیر ته واستوی او عبدالله بن زبیر د حضرت حسین رضی الله عنه زوی، علي بن حسین په خدمت کي وړاندي کړ، خولی په خاء معجمه فتح، واو په جزم او لاء په زبر سره او یاء تحتاني په تشدید سره ده، او سکینه د سین په پېښ د کاف په زېر او د یاء تحتاني په سکون او نون سره ده.

۱۴۹. **حسان بن ثابت** رضی الله عنه: د ده کنیت ابو الولید انصاري خزرجي دی، د رسول الله صلی الله علیه وسلم د دربار شاعر دی، او د زړه ورو شاعرانو څخه دی، ابو عبیده ویلي دي د ټولو عربو پر دې اتفاق دی چي حسان بن ثابت رضی الله عنه دټولو سیمو د غوره شاعرانو څخه دی، حضرت عمر بن خطاب او ابوهریره رضی الله عنهما او بي بي عائشه رضی الله عنها ور څخه روایت کوي، حضرت علي رضی الله عنه د خلافت په زمانه کي په ۴۰ م هجري کال مخکي وفات سو او ځینو ویلي دي چي په ۵۰ م هجري کال کي او دهغه ۱۲۰ کاله وو، شپېته کاله د جاهلیت په دور کي ژوندی وو او شپېته کاله د اسلام دور کي.

۱۵۰. **حکم بن سفیان**: دغه حکم بن سفیان ثقفي دی، سفیان بن حکم هم ورته ویل کیږي، ویل کیږي چي ده د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه هیڅ حدیث نه وو اورېدلی مګر حافظ ابن عبدالبر وایي چي زما په نزد د ده سماع ثابته ده.

۱۵۱. **حکم بن عمرو غفاري**: نوموړی د قبیله غفار اوسېدونکی دی بلکه د نعلیه د اولاد څخه دی چي د غفار بن ملیل ورور دی، ملیل د میم په ضمه او لام اول په فتحه سره دی، د بصرې په عالمانو کي شمېرل کیږي، په مرو نامي ځای کي وفات سو او ځینو ویلي دي چي په بصره کي په پنځم هجري کال کي وفات سو، بریده اسلمي او حکم بن عمرو غفاري دواړه په مرو کي یو ځای دفن کړل سول، د محدثینو یوې ډلي ور څخه حدیث روایت کړي دي.

۱۵۲. **حنظله بن ربیع**: دغه حنظله بن ربیع د بنو تمیم څخه دی. ده ته کاتب ویل کیږي ځکه چي ده د رسول الله صلی الله علیه وسلم لپاره د وحي لیکنه وکړل بیا مکې ته راغلی او د هغه ځایه قرضیا ته په رسېدو سره هستوګن سو او د حضرت معاویه رضی الله عنه د خلافت په زمانه کي وفات سو د ده څخه ابو عثمان نهدي او یزید بن الشخیر روایت کړی دی.

۱۵۳. **حاطب بن ابي بلتعه**: ددغه حاطب بن ابي بلتعه نوم عمرو دی او ځینو ورته راشد لخمي ويلي دي، د بدر او خندق او ددغه دواړو په منځ کي چي کومي غزاوي سوې دي په هغو ټولو کي شریک وو، په ۳۰ م هجري کال په مدينه کي وفات سو عمر يې ۶۵ کاله وو، يوې ډلي ور څخه د حديثو روايت کړی دی.

۱۵۴. **حويصه**: دغه حويصه د مسعود بن کعب انصاري زوی دی او د محيصه ورور دی، حريصه تر خپل ورور محيصه په عمر کي مشر دی مګر اسلام يې د محيص څخه وروسته راوړی دی، د اُحد او خندق په غزاوو کي او تر دې په وروسته غزاوو کي يې ګډون کړی دی، حويصه د حاء په پېښ د واو په زبر او دياء تحتاني په مشدد مسکور او صاد مهمله سره دی.

۱۵۵. **حبيش بن خالد**: دغه حبيش بن خالد خزاعي دی د مکې دفتح په ورځ شهيد سو، حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه ورسره وو، خپل زوی هشام ور څخه د حديثو روايت کړی دی، حبيش د حاء په پېښ، د باء په زبر او ياء تحتاني په سکون او شين معجمه سره دی.

۱۵۶. **حبيب بن مسلمه**: دغه حبيب د مسلمه قريشي فهري زوی دی، فهري د فاء په کسره سره دی ده ته حبيب الروم ويل کيږي ځکه ده د روميانو سره ډېري جګړې کړي دي. نوموړی مستجاب الدعوات دی، په شام کي په ۴۲ م هجري وفات سو، دده څخه ابن مليکه او نورو محدثينو روايت کړی دی.

۱۵۷. **حکيم بن حزام** رضي الله عنه: دغه حکيم بن حزام دی کنيت يې ابو خالد قريشي اسدي دی، دام المؤمنين بي بي خديجې رضي الله عنها وراره دی د فيل د واقعې څخه ديارلس کاله مخکي په کعبه کي پيدا سوی دی، د جاهليت او اسلام دواړو زمانو کي عزتمند ګڼل کېدی، دده اسلام راوړل د مکې د فتح پوري مؤخر سو، په ۵۴ هجري کال کي په خپل کور کي دننه په مدينه کي وفات سو، عمر يې ۱۲۰ کاله وو، شپېته کاله په جاهليت کي تېر سول او شپېته کاله يې په اسلام کي تېر کړل، ډېر هوښيار، پوه، او متقي انسان وو. دده اسلام ډېر مخلصانه وو. حال دا چي دی په پيل کي د مؤلفة القلوب څخه وو، د جاهليت په زمانه کي يې سل غلامان ازاد کړل او سل اوښان يې د سپرلۍ لپاره وبخښل دده څخه يوه ډله د حديثو روايت کوي.

۱۵۸. **حکيم بن معاويه** رضي الله عنه: د نمير قبيلې اوسېدونکی دی، امام بخاري رحمه الله فرمايي: دده په صحابه کېدو کي کلام دی، خپل وراره معاويه بن حکم او قتاده ور څخه د حديثو روايت کړی دی.

۱۵۹. **حصين بن وحوح** : دغه حصين بن وحوح انصاري دی دده حدیث په مدینې والاوو کي مشهور دی، ویل کیږي چي ده ته په ډېر تکلیف ورکولو سره قتل کړل سو .

۱۶۰. **حبشي بن جناده**: دغه حبشي بن جناده دی چي رسول الله ﷺ یې په حجة الوداع کي ولیدی او د صحبت شرف یې په برخه سو ، د کوفې په اوسېدونکو کي شمېرل کیږي یوې ډلي ور څخه د حدیثو نقل کړی دی .

۱۶۱. **حجاج بن عمرو**: دغه حجاج بن عمرو انصاري مازني دی ، د مدینې له اوسېدونکو څخه شمېرل کیږي دده حدیث په حجازیانو کي رواج دي دده څخه ډېرو خلګو روایت کړی دی .

۱۶۲. **حارثه بن سراقه** رضي الله عنه : دغه حارثه د سراقه انصاري زوی دی او ربیع دده مور ده او هغه د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه خاله ده، د بدر په غزا کي حاضر سو او په هم هغه کي شهید سو ، دی اول سړی دی چي د انصارو څخه په هغه ورځ شهید سو او په صحیح بخاري کي دي چي دده د مور نوم ربیع دی او هغه نوم چي اسماء په صحابه کي ذکر کیږي هغه ربیع د راء په پېښ او باء موحده په فتحه او یاء تحتاني په کسره او تشدید سره مستعمل دی .

۱۶۳. **حارثه بن وهب** رضي الله عنه: دغه حارثه بن وهب خزاعي د عبید الله بن عمر بن خطاب مور شریک ورور دی دده شمېر په کوفیانو کي کیږي دده څخه ابو اسحاق سبیعي د حدیثو روایت کړی دی .

۱۶۴. **حارثه بن نعمان** رضي الله عنه: دغه حارثه بن نعمان د بدر په غزا کي حاضر سوی دی ، د سترو صحابه کرامو څخه دی، په باب البر والصلة کي دده یادونه کیږي، نقل سوي دي چي ده بیان وکړ چي یو وار زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم ، رسول الله ﷺ ناست او جبرائیل علیه السلام ورسره موجود وو ، ما په سلام کولو سره وړاندي ووتلم ، کله چي زه بېرته راغلم او رسول الله ﷺ د هغه ځای څخه ولاړی نو ما ته یې وفرمایل: ایا تا هغه ولیدی چي زما سره ناست وو ، ما وویل: هو ، رسول الله ﷺ وفرمایل: هغه جبرائیل علیه السلام وو . او ستا د سلام هغه جواب درکړی وو د هغه دید پر ختمېدو وو .

۱۶۵. **حارث ابن حارث** رضي الله عنه: دغه حارث ابن حارث اشعري دی د شام د علماؤ څخه شمېرل کیږي دده څخه حدیثونه ابو سلام حبشي او نورو روایت کړي دي .

۱۶۶. **حارث بن هشام** : دغه حارث بن هشام مخزومي دی د ابو جبل ابن هشام ورور دی، په اهل حجاز کي شمېرل کیږي. د قریشو د اشرافو څخه دی، د مکې د فتح په ورځ یې ایمان راوړ ، دده د پاره ام هانئ بنت ابو طالب امن وغوښت نو رسول الله ﷺ امن ورکړی وو ، بیا

شام ته ولاړی او په ۱۵م هجري کال کي د یرموک په جګړه کي شهید سو او رسول الله ﷺ هغه ته سل اوښان ورکړل لکه څرنګه چي نورو مؤلفة القلوب ته یې ورکړي وه، دی هم د مؤلفة القلوب څخه وو، بیا د هغه اسلام او ایمان کامل سو، نوموړی د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت په زمانه کي د جهاد لپاره د شام څخه روان سو، هغه وخت د مکې او سېدونکو د دغه پر بېلوالي ژړل نو ده وویل: زما دغه سفر د الله جل جلاله لپاره دی او کوم چي د هستوګني خبره ده نو زه پر تاسو باندي نورو خلګو ته ترجیح نه ورکوم، بیا یې په شام کي مقابله کول تر دې چي وفات سو.

۱۶۷. **حارث بن کلدة**: دغه حارث بن کلدة ثقفي طبیب دی، د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه ازاد سوی غلام دی دده یادونه په کتاب الاطعمه کي راځي دده یادونه ابن منده او ابن الاثیر او نورو محدثینو په اسماء صحابه کي راوړې ده او حافظ ابن عبدالبر د حارث بن کلده د زوی یادونه په صحابه کي کولو سره وفرمایل چي دهغه پلار حارث بن کلده د اسلام په پیل کي وفات سو دده اسلام راوړل ثابت نه دي، په کلده کي پر کاف باندي زور پر لام جزم او دال مهمله دی.

۱۶۸. **ابوحبه** رضي الله عنه: دغه ابوحبه ثابت بن نعمان انصاري بدريٰ دی دده د کنیت او نامه په اړه ډېر اختلاف سوی دی، ابن اسحاق دده یادونه په هغه حضراتو کي کړې ده کوم چي د بدر په غزا کي شریک سوي دي او دی یې په کنیت سره ذکر کړی دی او دده نوم یې نه دی ذکر کړی، په حبه کي هاء حطي زور او باء موحده په تشدید سره ده، ځینو دباء پر ځای نون بیان کړی دی او ځینو په یاء تحتاني سره بیان کړی دی مګر اول صورت زیات مستعمل دی، د احد په غزا کي شهید سوی دی.

۱۶۹. **ابوحمید** رضي الله عنه: دغه ابوحمید عبدالرحمن د سعد انصاري خزرجي ساعدي زوی دی، په کنیت زیات مشهور دی، یوې ډلي ور څخه دحدیثو روایت کړی دی د حضرت معاویه رضي الله عنه د خلافت په آخره زمانه کي وفات سو.

۱۷۰. **ابوحذیفه** رضي الله عنه: دغه ابوحذیفه د عتبه بن ربیعه زوی دی، ویل کیږي چي دده نوم مهشم دی او ځینو هاشم ښودلی دی، په سترو صحابه کرامو کي شمېرل کیږي، د یمامه په جنګ کي شهید سو او هغه وخت یې عمر ۵۳ کاله وو.

۱۷۱. **ابوحنظلیه** رضي الله عنه: دده نوم سهل دی د عبدالله حنظلیه زوی دی، دغه حنظلیه د هغه انا وه او دی د انا په نامه سره مشهور سو.

# تابعین رحمۃ اللہ علیہم

۱۷۲. **حارث بن سوید** رحمۃ اللہ علیہ : دغه حارث د سوید تمیمي زوی دی او د سترو تابعینو څخه دی، د محدثینو په نزد باوري دی ، نوموړي د عبدالله بن مسعود رضی اللہ عنہ **څخه** د حدیث روایت وکړ او دده څخه ابراهیم تیمي، د عبدالله بن زبیر رضی اللہ عنہ د خلافت په آخره کي وفات سو .

۱۷۳. **حارث بن مسلم** رحمۃ اللہ علیہ : دغه حارث بن مسلم د بنوتمیم څخه دی، دده څخه عبدالرحمن بن حسان د حدیثو روایت کړی دی .

۱۷۴. **حارث بن اعور** : دغه حارث د عبدالله اعور حارثني همداني زوی دی، دحضرت علي بن ابي طالب رضی اللہ عنہ د مشهورو اصحابو څخه دی، ویل کیږي چي د هغه څخه یې څلور حدیثونه هم اورېدلي دي او د حضرت ابن مسعود رضی اللہ عنہ **څخه** یې هم د حدیث روایت کړی دی، او دده څخه عمرو بن مره او امام شعبي روایت کړی دی، امام نسائي او نورو دده په اړه ویلي دي چي دی قوي نه دی او ابن ابي داؤد ویلي دي چي دی په خلګو کي تر ټولو لوی فقیه او د علم فرائض تر ټولو لوی ماهر او تر ټولو لو مقبولیت لرونکی ؤ، په کوفه کي په ۶۵ م هجري کال وفات سو .

۱۷۵. **حارث بن شهاب** : دغه حارث د شهاب حرمي زوی دی ، ابواسحاق او عاصم بن بهدله څخه ده روایت حدیث کړی دی او دده څخه طالوت او عشي او نورو ډېرو خلګو ده ته ضعیف ویلي دي .

۱۷۶. **حارث بن دحیه** : دغه حارث د دحیه راسي زوی دی ، ده حدیث د مالک بن دینار څخه روایت کړی دی او دده څخه مقدمي او نصر بن علي، او ځینو خلګو ده ته ضعیف ویلي دي .

۱۷۷. **حارث بن مضرب**: دغه حارث د مضرب عبدي کوفي زوی دی، مشهور تابعي دی، د حضرت علي او حضرت ابن مسعود رضی اللہ عنہما او نورو څخه یې د حدیثو اورېدل کړي دي ، دده حدیث په اهل کوفه کي دي .

۱۷۸. **حارث بن ابي الرجال** : دغه حارثه بن ابي الرجال دی چي هغه خپل پلار ابوالرجال څخه او د خپلي انا عمره څخه د حدیثو روایت کړی دی او دده څخه ابن نمیر او یعلي روایت وکړ ، ځینو خلګو ده ته ضعیف ویلي دي .

۱۷۹. **حفص بن عاصم** : دغه حفص بن عام بن عمر بن خطاب قرشي عدوي دی د

محدثينو په نزد باوري دی اجماعا، د سترو تابعينو څخه دی، ډېر زيات احاديث نقل کوي ، د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه څخه يې حديثونه اورېدلي دي .

۱۸۰. **حفص بن سليمان** : دغه حفص د سليمان زوی دی، کنيت يې ابو عمرو اسدي دی د ابو اسعد ازاد سوی غلام دی، د علقمه بن مرثد او قيس بن مسلم څخه ده احاديث نقل کړي دي او دده څخه يو ډلې روايت کړی دی، دی په قرائت کي د باور وړ دی نه په حديثو کي، امام بخاري رحمة الله عليه ويلي دي: د محدثينو په نزد متروک الحديث دی ، په ۱۰۸ م هجري کال کي وفات سو او عمر يې ۹۰ کاله وو .

۱۸۱. **حنش بن عبدالله** : دغه حنش د عبدالله سبائي زوی دی، ځينو ويلي دي چي دی په کوفه کي د حضرت علي رضي الله عنه سره وو او د حضرت علي رضي الله عنه د شهادت وروسته مصر ته راغلی او په ۱۰۰ م هجري کال کي وفات سو .

۱۸۲. **حکيم بن معاويه** : دغه حکيم د معاويه قشيري زوی او اعرابي دی ، د حديثو په نقل کي ښه ګڼل کيږي، د خپل پلار څخه يې حديث روايت کړي دي او دده څخه دده زوی بهز جريري حديث اورېدلي دي .

۱۸۳. **حکيم بن اثرم** : دغه حکيم بن اثرم دی د ابو تميم او حسن څخه يې روايت کړی دی او دده څخه عوف او حماد ابن سلمة ، دی په حديث کي ډېر ربښتونی منل کيږي .

۱۸۴. **حکيم بن ظهير** : دغه حکيم د ظهير فزاري زوی دی ، ده د حضرت علقمه بن مرثد او زيد بن رفيع څخه روايت کړی دی او دده څخه محمد بن صباح دولاني، بخاري ويلي دي چي د محدثينو په نزد متروک دی .

۱۸۵. **حرام بن سعيد** رحمة الله عليه: دغه حرام د سعيد بن محيصه زوی دی، کنيت يې ابو نعيم انصاري حارثي دی، تابعي دی، د خپل پلار او براء بن عازب رضي الله عنه څخه يې د حديث روايت کړی دی او دده څخه ابن شهاب زهري ، په ۱۱۳ هجري کال کي وفات سو او عمر يې ۷۰ کاله وو ، حرام د حلال ضد دی .

۱۸۶. **حماد بن سلمة** رحمة الله عليه: دغه حماد د سلمه بن دينار زوی دی ، کنيت يې ابو سلمة الربيعي دی، د ربيعه بن مالک ازاد سوی غلام دی او د حميد طويل خوريی دی، د بصرې د مشهورو علماؤ څخه دی او د هغه ځای په امامانو کي شمېرل کيږي، دده څخه ډېر زيات حديثونه روايت دي او د ډېرو زياتو خلکو څخه روايت کوي، او دی په سنت او عبادت کي مشهور دی، په ۱۶۷ هجري کال کي وفات سو ، د حضرت ثابت، حميد طويل او قتاده څخه

ده حديث اورېدلي دي او دده څخه يحيى بن سعيد او ابن مبارک او وکيع روايت کړی دی.

۱۸۷. **حماد بن زيد** رحمة الله عليه: دغه حماد بن زيد ازدي دی د محدثينو په نزد د باوري علماؤ څخه دی، ثابت بناني او نورو حضراتو د ده څخه د حديث روايت کړی دی او دده څخه عبدالله بن مبارک او يحيى بن سعيد روايت کړی دی، دسلمان بن عبدالملک په زمانه کي پيدا سو او په ۱۹۹م هجري کال کي وفات سو، نوموړی ړوند وو.

۱۸۸. **حماد بن ابي سليمان** رحمة الله عليه: دغه حماد د ابوسليمان زوی دی، دابوسليمان نوم مسلم اشعري دی د ابراهيم بن ابي موسی اشعري ازاد سوی غلام دی، کوفي دی او په تابعينو کي شمېرل کيږي، د يوې ډلي څخه يې حديث اورېدلي دي او دده څخه شعبه او سفيان ثوري او نورو روايت کړی دی، دخپلي زمانې تر ټولو لوی عالم تېر سوی دی، د ابراهيم نختي سره يې ملاقات سوی دی، ويل کيږي چي په ۱۲۰م هجري کال کي وفات سو.

۱۸۹. **حماد بن ابي حميد**: دغه حماد بن ابوحميد مدني دی، د زيد بن اسلم او نورو څخه روايت کوي، او دده څخه قعنبي روايت کړی دی او ځينو خلکو دده روايت ته ضعيف ويلي دي.

۱۹۰. **حميد بن عبدالرحمن**: دغه حميد د عبدالرحمن زوی د عوف زهري قريشي مدني لمسی دی، دسترو تابعينو څخه دی، په ۱۰۵م هجري کال کي وفات سو او عمر ۷۳ کاله وو.

۱۹۱. **حميد بن عبدالرحمن**: دغه حميد بن عبدالرحمن حميري بصري دی، دبصرې د امامانو او باوري علماؤ څخه دی، جليل القدر تابعي دی، د حضرت ابوهريره رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنه څخه يې د حديث روايت کړی دی.

۱۹۲. **حسن بصري** رحمة الله عليه: دغه حسن بصري د ابوالحسن زوی دی، کنيت يې ابوسعيد دی، دزيد بن ثابت ازاد سوی غلام دی، د پلار نوم يې يسار دی، ايسار د بنديانو د نسل څخه دی، ياسر ربيع بنت نصر ازاد کړی وو، دغه حسن د خلافت عمر بن خطاب رضي الله عنه د دوو کالو پاته کېدو په وخت کي په مدينه کي پيدا سو، حضرت عمر رضي الله عنه په خپل لاس دده تحنيک وکړ، دده مور به د ام المؤمنين بي بي ام سلمه رضي الله عنها خدمت کوی، ډېر واره کله چي به دده مور يو ځای ولاړل نو دحسن بصري د کرارولو دپاره به بي بي ام سلمه رضي الله عنها خپل تی ده ته ورکوی تر دې چي دده مور به بېرته راغلل نو تيان به يې د شېدو څخه ډک سول او حسن بصري به هغه وڅېښل، خلک وايي چي کوم علم او حکمت ته حسن بصري رحمة الله عليه ورسېدی

داد هغه برکت دی ، دحضرت عثمان رضی الله عنه د شهادت څخه وروسته هغه بصرې ته راغلی ، هغه حضرت عثمان رضی الله عنه ولیدی او ویل کیږي چي د حضرت علي رضی الله عنه سره هم په مدینه کي یو ځای سوی دی مګر په بصره کي د حضرت علي رضی الله عنه سره ملاقات کول صحیح نه دي، مګر دا چي حسن بصري یو وخت بصرې ته تلی نو په وادي قری کي وو او حضرت علي رضی الله عنه هغه وخت بصرې ته راغلی وو ، هغه دابو موسی اشعري، انس بن مالک، ابن عباس او نورو صحابه کرامو رضی الله عنهم څخه هم روایت کړی دی، او دده څخه یوې ډلي د تابعینو او تبع تابعینو روایت کړي دی ، په خپله زمانه کي د علم او فن ، زهد او تقوا ، عبادت او ورع امام وو ، د رجب په میاشت کي په ۱۱۰ م هجري کال کي د ۱۱۰ کالو په عمر وفات سو .

۱۹۳. **حسن بن علي بن راشد** رحمه الله : دغه حسن د علي بن راشد واسطي زوی دی ، ده د ابو الاحوص او هشیم څخه روایت کړی دی او دده څخه امام ابوداؤد او امام نسائي روایت کړی دی، د حدیثو د امامانو په نزد ډېر صادق دی، په ۲۳۷ م هجري کال کي وفات سو .

۱۹۴. **حسن بن علي هاشمي** رحمه الله : دغه حسن د علي هاشمي زوی دی، ده د اعرج څخه روایت کړی دی او دی د حسن څخه مسلم قتیبه، امام بخاري رحمه الله ویلي دي: منکر الحدیث دی .

۱۹۵. **حسن بن جعفر** رحمه الله : دغه حسن د ابو جعفر جعفري زوی دی، د حضرت نافع او ابن زبیر څخه حدیث نقل کوي او دده څخه ابن مهدي او نورو روایت کړی دی، خلکو دده حدیث ته ضعیف ویلي دي او دی د ډېرو صالحو علماؤ څخه وو ، په ۱۶۷ هجري کال کي وفات سو .

۱۹۶. **حنظله بن قیس زرقي**: دغه حنظله د قیس زرقي انصاري زوی دی ، د اهل مدینې او تابعینو د باوري کسانو څخه دی، نافع بن خدیج او نورو یې حدیث اورېدلي دي او دده څخه یحیی بن سعید او نورو روایت کوي .

۱۹۷. **حبیب بن سالم** : دغه حبیب د سالم مولی نعمان بن بشیر زوی دی ، نعمان مکاتب ګرځولی وو ، محمد بن منتشر او نورو دده څخه د حدیث روایت کړی دی .

۱۹۸. **حرب بن عبیدالله** : دغه حرب د عبیدالله ثقفي زوی دی دده نوم او دده په حدیث کي اختلاف واقع سوی دی ، دده حدیث عطاء بن سائب نقل کړی دی، او په سند کي د حرب سره اختلاف راغلی دی، نو یو حدیث سفیان بن عیینه د عطاء څخه او عطاء د حرب څخه او حرب د خپل ماما څخه او د هغه ما ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه او دوهم سند داسي دی

چي ابو الاحوص د عطاء شخه او عطاء د حرب شخه او حرب د خپل نیکه شخه او هغه د خپل پلار شخه ، دریم سند داسي نقل کوي چي د عطاء شخه او عطاء نقل کوي د حرب بن هلال ثقفي شخه او هغه دخپل نیکه شخه او د امام ابوداؤد په روایت کي سند داسي دی چي ابوداؤد د حرب بن عبیدالله شخه او حرب د خپل نیکه شخه او هغه د خپل پلار شخه او دغه روایت زیات مشهور دی او دده روایت د یهودو او نصارا شخه د عشر اخیستني په اړه دی.

۱۹۹. **حجاج بن حسان** رحمة الله عليه : دغه حجاج بن حسان حنفي دی ، په بصریانو کي شمېرل کیږي ، تابعي دی ، انس بن مالک او نورو صحابه کرامو شخه یې حدیثونه اورېدلي دي او دده شخه یحیی بن سعید او یزید بن هارون روایت کوي .

۲۰۰. **حجاج بن حجاج** رحمة الله عليه : دغه حجاج د حجاج احول اسلمي زوی دی او ویل کیږي چي باهلي بصري دی ، ده د فرزدق او قتاده او دمحدثینو د یوې ډلي شخه روایت کړی دی او دده شخه ابراهیم ظن طهمان او یزید بن زریع ، محدثینو دده توثیق کړی دی ، په ۱۳۱م هجري کال کي وفات سو .

۲۰۱. **حجاج بن یوسف** : دغه حجاج بن یوسف ثقفي دی ، دی د عبدالملک بن مروان له خوا د عراق او خراسان والي وو او دده شخه وروسته دده زوی ولید والي سو ، په واسط کي د شوال په میاشت په ۹۵م هجري کال کي وفات سو عمر یې ۵۴ کاله وو ، دده ذکر د مناقب قریش په باب کي راځي، او دده د مرګ قصه ډېر ژر د سین په حرف کي د سعید بن جبیره په یادونه کي راځي .

۲۰۲. **ابوحیه** رحمة الله عليه : دده نوم عمرو بن نصر خارقي همداني دی د حدیث روایت د حضرت علي ابن ابي طالب رضي الله عنه شخه کوي .

۲۰۳. **ابوحره** : دغه ابوحره د حاء په ضمه او د راء په تشدید سره دی، دده نوم حنیفه رقاشي دی، ده د خپل اکا شخه یو حدیث په باب الغصب کي : الا لاتظلموا الا لایحل مال امرء الا بطیب نفس منه، موجود دی،

۲۰۴. **ابن حزم**: کنیت یې ابوبکر دی ، دمحمد بن عمرو بن حزم زوی دی، ابوحیه او ابن عباس شخه حدیث روایت کوي او دده شخه ابن شهاب زهري روایت کوي .

## صحابي ښځي

۲۰۵. **حفصه بنت عمر** رضي الله عنها : دغه ام المؤمنین بي بي حفصه رضي الله عنها د عمر بن خطاب رضي الله عنه لور

ده او ددې مور زینب ده چي د مظعون لور ده، د رسول الله ﷺ څخه مخکي د خنیس بن خذافه سهمي ښځه وه او د خنیس سره یې هجرت کړی وو، مګر خنیس د بدر د غزا څخه وروسته وفات سو، کله چي ددې خاوند خنیس وفات سو نو حضرت عمر رضی الله عنه ددغه قرابت یادونه حضرت ابوبکر رضی الله عنه او حضرت عثمان رضی الله عنه سره وکړل مګر هغه په دواړو کي هیڅا د قبلولو جرئت ونه کړ، بیا رسول الله ﷺ دغه دوستي قبوله کړل او په نکاح یې کړل، دغه واقعه د دریم هجري کال ده، رسول الله ﷺ دې ته یو طلاق ورکړی وو کله چي پر رسول الله ﷺ دغه وحي نازل سوې چي حفصه ته رجوع وکړه ځکه چي هغه ډیري روژې نیسي، د شپې عبادت کوي او هغه به په جنت کي هم ستا ښځه وي، نو رسول الله ﷺ بي بي حفصې رضی الله عنها ته رجوع وکړل، د صحابه کرامو او تابعینو یوې ډلي د هغې څخه د حدیث روایت کړی دی، د شعبان په میاشت کي په ۴۵ هجري کال وفات سول او عمر یې ۶۰ کاله وو.

۲۰۶. **حلیمه** رضی الله عنها: دغه حلیمه د ابوذویب لور ده، دې رسول الله ﷺ ته د ثوبیه وروسته چي د ابولهب مینزه وه تی ورکړی دی، د حلیمه هغه زوی چي د هغه د تي سره د رسول الله ﷺ روزنه سوې ده هغه عبدالله بن حارث دی او د عبدالله خور چي رسول الله ﷺ یې په غیږ کي اخیستی د هغې نوم شیماء ده، حلیمې رسول الله ﷺ خپل مور ته دوه کاله او دوې میاشتي وروسته ورکړی وو او ځینو ویلي دي چي پنځه کاله وروسته، ددی څخه عبدالله بن جعفر روایت کوي او د حلیمه یادونه په باب البر والصله کي راځي.

۲۰۷. **ام حبیبه** رضی الله عنها: دغه ام حبیبه د امهات المؤمنین څخه ده، نوم یې رمله دی او د ابوسفیان بن صخر بن حرب لور ده، او دهغې مور صفیه ده چي د حضرت ابو العاص لور ده او د حضرت عثمان بن عفان رضی الله عنه عمه ده، د هغې سره د رسول الله ﷺ د نکاح د وخت او مقام په اړه اختلاف واقع سوی دی، ځینو ویلي دي چي د هغې نکاح په حبشه کي په نهم هجري کال وسول او نجاشي یې نکاح وکړل او څلور سوه دیناره مهر هم نجاشي ورکړ، او ځینو ویلي دي چي څلور لکه درهم یې د خپل ځان څخه مهر ادا کړ، رسول الله ﷺ شرحبیل بن حسنه د هغې راوستلو دپاره ولیږی او هغه یې مدینې ته راوستل او رسول الله ﷺ ورسره یو ځای والی په مدینه کي وکړ، په ۴۴م هجري کال په مدینه کي وفات سوه، ددې څخه ډېرو کسانو د حدیث روایت کړی دی.

۲۰۸. **ام حصین** رضی الله عنها: ام حصین د اسحاق لور ده او د احمس قبیلې څخه ده. ددې څخه ددې زوی یحیی بن حصین او نور د حدیث روایت کوي او په حجة الوداع کي حاضره وه.

۲۰۹. **ام حرام** رضي الله عنها : ام حرام د ملحان بن خالد لور ده د بني نجار قبيلې او سېدونکې ده او د ام سليم خور ده، په اسلام مشرفه سول او د رسول الله ﷺ په لاس يې بيعت وکړ او رسول الله ﷺ به ددې په کور کي د غرمې خوب کوی او د حضرت عباده بن الصامت ښځه ده، د روم پر مځکه د خپل خاوند په ملګرتيا کي په جهاد\کولو سره شهيده سول، قبر يې په قرنس (باقرس) کي دی، ددې څخه ددې خوريې انس بن مالک او ددې خاوند عباده بن صامت روايت کړی دی، حافظ ابن عبد البر فرمايي: ما ددې په صحيح نامه څخه سيوا د کنيت څخه خبر تر لاسه نه کړ، د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت په زمانه کي وفات سول، ملحان د ميم په کسره، دلام په سکون او د حاء مهمله او نون سره دی.

۲۱۰. **حمنه** : حميه د حجش لور ده او د بي بي زينب رضي الله عنها چي د ازواج مطهراتو څخه، د هغې خور ده، د اسد قبيلې اوسېدونکې ده، دمصعب بن عمير په زوجيت کي وه، بيا کله چي معصب بن عمر د احد په غزا کي شهيد سو نو طلحه بن عبيد الله ورسره نکاح کړې وه.

## تابعي ښځي.

۲۱۱. **حسناء** : حسناء صرميه د معاويه لور ده، نوموړې د خپل اکا څخه او د هغې اکا د رسول الله ﷺ څخه حديث نقل کوي، ددې څخه عوف اعرابي د حديث روايت کړی دی، ددې حديث په بصريانو کي مروج دي، ابن ماکولا د حسناء په اړه داسي ليکلي دي: حازمي ددې په يادونه کولو سره خنساء بنت معاويه ليکلې ده او ځينو ورته حسناء صرميه وايي، او ددې دوه اکاګان، حارث او اسلم ښيي. صرميه د صاد مهمله په زور او د راء په زېر سره دی، حسناء د فعلاء پر وزن د حسن څخه ماخوذ دی او په خنساء کي خاء معجمه ده او نون د سين مهمله څخه مخکي دی.

۲۱۲. **حفصه بنت عبدالرحمن** : دغه حفصه د عبدالرحمن لور ده چي د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه زوی دی، د منذر بن زبير بن عوام په نکاح کي وه.

۲۱۳. **ام حرير** : ام حرير د حاء مهمله په زور او د اولي راء په زېر سره د طلحه بن مالک ازاده سوې مينزه وه، دا د خپل بادار څخه د حديث روايت کوي او ددې حديث محمد بن ابي رزين د خپلي مور او دهغه مور يې د ام حرير څخه نقل کوي، ددې حديث په اشراط الساعة کي راځي.

## خ - صحابه کرام رضی الله عنهم :

۲۱۴. **خالد بن ولید** رضی الله عنه : خالد ولید قرشي زوی دی چي مخزومي دی، دده مور لبابه صغری ده چي د ام المؤمنین بي بي میمونې رضي الله عنها خور ده، د اسلام د زمانې څخه مخکي د خالد شمېر د قریشو په عزتمندو خلګو کي کېدی ، رسول الله ﷺ ده ته د سیف الله خطاب ورکړی وو، په ۲۱ م هجري کال کي وفات سو، حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه ته یې وصیت وکړ، دده څخه دده د خاله زوی عبد الله بن عباس او علقمه او جبیر بن نفیر د حدیث روایت کوي.

۲۱۵. **خالد بن هوزه** : د هوزه عامري زوی دی ، دی خپله او دده ورور حرمله د نبي کریم ﷺ په خدمت کي حاضر سول او دی خزاعه ته ورغلی او د خپل اسلام زیری یې ورکړ، دی د مؤلفة القلوب څخه وو ، دغه خالد بن هوزه هغه دی چي رسول الله ﷺ غلام او مینزه ورباندي پلورلي وه او دهغوی لپاره یې عهد نامه لیکلې وه .

۲۱۶. **خلاد بن سائب**: خلاد د سائب بن الخلاد زوی دی او خزرجي دی، دی د خپل پلار او زید بن خالد څخه روایت کوي او دده څخه حبان بن واسع .

۲۱۷. **خباب بن ارت** رضی الله عنه: دده کنیت ابو عبید الله تمیمي دی، د جاهلیت په زمانه کي بندي سوی وو ، ددې وروسته یوې خزاعیه ښځي رانیوی او ازاد یې کړ، د رسول الله ﷺ په دار ارقم کي د اخلېدو مخکي ده اسلام راوړی وو او د احباب د هغه صحابه کرامو څخه دی چي د اسلام راوړلو په وجه یې ډېر تکلیفونه وګالل، مګر ده صبر وکړ او په کوفه کي هستوګن سوی وو او هم هلته په ۳۷م هجري کال کي وفات سو، عمر ۷۳ کاله وو، دده څخه ډیر کسان د حدیث روایت کوي .

۲۱۸. **خارجه بن حذافه** : د حذافه قریشي عدوي زوی دی، د قریشو د ماهرو سپرو څخه یو سپور دی ، دده په اړه دا مشهوره ده چي دی د زرو سپرو برابر دی، دده شمېر په مصریانو کیږي، دا هغه سړی چي په مصرانو کي په شمېرلو سره قتل کړل سو او یو خارجي سړی عمر بن عاص په ګمان سره قتل کړی وو ، او دغه خارجي په هغه درو کسانو کي یو دی چي هغوی د حضرت علي او حضرت معاویه او عمرو بن عاص رضی الله عنهم پر وژنه باندي اتفاق کړی وو او په دوی کي هر یوه په هغه درو صحابه کرامو کي د هر یوه د وژني هڅه کول. نو د الله جل جلاله فیصله د حضرت علي رضی الله عنه په اړه پوره سول او نور دوه اصحاب وژغورل سول او د خارجه وژنه په ۴۰ م هجري کال کي واقع سول .

۲۱۹. **خزیمه بن ثابت** : دغه خزیمه بن ثابت دی، دده کنیت ابو عماره دی او انصاري اوسي دی، په ذوالشهادتین سره معروف دی ، دبدر په غزا او وروسته غزاوو کي حاضر وو ، د صفین په جنګ کي د حضرت علي رضي الله عنه ملګری وو ، کله چي عمار بن یاسر شهید سو نو ده توره راوکښل او مقابله یې وکړل تر دې چي شهید سو ، دده څخه دده زوی عبدالله او عماره او جابر بن عبدالله روایت کړی دی ، خزیمه په خاءِ معجمه ضمه او زاء معجمه په فتحه سره دی او عماره د عین په ضمه سره دی ·

۲۲۰. **خزیمه بن جزء** : دغه خزیمه د جزء زوی دی ، دده کنیت ابو عبدالله سلمي دی، دده څخه دده ورور حبان بن جزء روایت کوي، د عربو په سترو کسانو کي شمېرل کیږي، جزء د جیم په زور ، د زاء معجمه په سکون او ددې وروسته همزه سره دی، اصحاب حدیث جزي د جیم په زېر او زاء معجمه په کسره او په پای کي یاء تحتاني سره وایي، دغه عبدالغني بیان کړی دی او حافظ دار قطني د جیم په کسره او دیاء معجمه په سکون سره ضبط کړی دی او حبان د حاء مهمله په کسره او باء موحده په تشدید سره ویل کیږي ·

۲۲۱. **خزیم بن اخرم** : دغه خزیم د اخرم زوی د شداد بن عمرو بن فاتک اسدي لمسی دی مګر دی خپل نیکه ته منسوب کیږي او ده ته خزیم بن فاتک ویل کیږي، دی په شامیانو کي شمېرل کیږي او د ځینو په نزد په کوفیانو کي، دده څخه ډېرو کسانو روایت کړی دی ·

۲۲۲. **خبیب بن عدي** رضي الله عنه : د عدي انصاري اوسي زوی دی، د بدر په غزا کي حاضر سو او د رجیع په غزا کي په دریم کال بندي کړل سو ، بیا مکې ته راوستل سو او د حارث ابن عامر اولاد رانیوی او دی خبیب د بدر په ورځ حارث د کفر په حالت کي قتل کړی وو او وس د حارث زامنو دی رانیولی وو چي د خپل پلار په بدله کي یې قتل کړي، دی یې بندي کړ او دهغوی سره وو بیا هغه خلګو په تنعیم کي په دار کړ او دی په اسلام کي لومړنی سړی دی چي د الله جل جلاله په لاره کي په دار کړل سو · دده څخه د حدیث روایت حارث بن برصاء کړی دی· په صحیح بخاري کي روایت دی چي حضرت خبیب د حارث د لور څخه استره وغوښتل چي د نامه لاندي وېښتان په پاک کړي بیا حضرت خبیب د کوچنی زوی پورته کړ او پر خپل ورانه یې کښېنوی ، کله چي استره د هغه په لاس کي وه او د ماشوم مور د هغه څخه بالکل بې خبره وه مور چي دا ولیدل نو سخته وبېرېدل ، هغه وېره خبیب د هغې د مخ څخه محسوس کړل نو ورته یې وویل: ته ددې څخه بېرېږې چي زه به دغه معصوم کوچنی

ووژنم. زه هیڅکله داسي نه کوم، د کوچنی مور وویل: ما په خپل ژوند کي د خبیب څخه غوره بندي هیڅکله نه دی لیدلی ، په خدای قسم ما خبیب د بند په زمانه کي یوه ورځ ولیدی چي د هغه په لاس کي د تازه انګورو غونچک وو چي هغه یې خوړی، کله چي هغه د اوسپني په زنځیرو کي تړلی وو او په مکه کي میوه هم نه وه او ده ویل: دا د الله ﷻ راکړی رزق دی چي ما ته راکړل سوی دی، بیا کله چي حبیب یې د حرم څخه حل ته د وژني لپاره بوتلی نو حضرت خبیب ﷛ وفرمایل: ما ته دومره وخت راکړئ چي زه دوه رکعته لمونځ ادا کړم. خلګو وخت ورکړ او خبیب دوه رکعته لمونځ ادا کړ او وه یې فرمایل: قسم په خدای! که کفارو دا خیال نه کولای چي دی د بیري په وجه د ځان ساتني لپاره لمونځ کوي نو ما به نور هم لمونځ کړی وای بیا حضرت خبیب ﷛ دغه دعاء وغوښتل چي اې الله!په دوی کي هر یو قتل کړې چي په دوی کي یو هم پاته نه سي .

فلست ابالي حين اقتل مسلما — على اي شق كان في الله مضجعي

وذلک في ذات الاله وان يشاء — يبارک على اوصال شلــو ممزع

کله چي د اسلام په حالت کي زه په دار کیږم نو ما ته دديې هیڅ پروا نسته چي زه د الله ﷻ په لاره کي د وژلو لپاره پر کوم اړخ وغورځول سم او دا ټول مصیبتونه د الله ﷻ په لاره کي دي که هغه وغواړي نو زما د اندامو هر بند به د برکت څخه ډک کړي .

خبیب ﷛ هغه سړی دی چي دالله ﷻ په لاره کي په زنځیرو تړلو په وخت کي د دوو رکعتو لمونځ کولو طریقه یې قائمه کړل .

۲۲۳. **خنیس بن حذافه** ﷛ : دغه خنیس بن حذافه سهمي قریشي دی چي د رسول الله ﷺ څخه مخکي د بي بي حفصه بنت عمر خاوند وو، دبدر په غزا کي یا داحد په غزا کي حاضر سو . په هغه کي ورته یو زخم ولګیدی او هغه په وجه مدینې ته په رسېدو سره وفات سو . اولاد یې نه وو ، خنیس په تصغیر سره دی .

۲۲۴. **ابوخراش** : نوموړی اسلمي صحابي دی. خراش د خاء معجمه په زبر او د راء مهمله په غیر مشدد او شین معجمه سره دی او حدر د حاء مهمله په زبر او اول دال مهمله او راء مهمله سره دی .

۲۲۵. **ابوخلاد** : یو صحابي سړی دی. حافظ ابن عبدالبر ویلي دي چي زه دده د نوم او نسب څخه خبر نه یم ، دده حدیث د یحیی بن سعید په نزد معتبر دی چي ابوفرده څخه او ابوفرده د ابوخلاد څخه نقل کوي، او رسول الله ﷺ فرمایلي دي: کله چي تاسو یو مؤمن

وويئ چي د دنيا په اړه ورته زهد او كمي خبري وركول وركړل سوي وي نو د هغه صحبت اختيار كړئ ځكه چي هغه به درته حكمت وښيي او دوهم روايت هم داسي دى مګر د ابو فروه او ابو خلاد په منځ كي هغه دوهم حديث د ابومريم واسطه دى او دا زيات صحيح دى.

## تابعين رحمهم الله

۲۲۶. **خيثمه بن عبدالرحمن** : دغه خيثمه د عبدالرحمن زوى او د ابوسبره جعفي لمسى دى، د ابوسبره جعفي نوم يزيد بن مالک دى او دغه خيثمه د سترو تابعينو څخه دى، د ابوواصل څخه مخكي وفات سوى دى، د حضرت علي، عبدالله بن عمر او نورو څخه يې حديث اورېدلي دي او دده څخه اعمش، منصور او عروه بن مره د حديثو روايت كوي، دوه لكه په مېراث ور په برخه سوې چي په علماؤ باندي يې مصرف كړلې، خيثمه د خاء معجمه په فتحه ، ياء تحتاني په سكون او ثاء مثلثه په فتحه سره دى، سبره د سين په زور او باء موحده په سكون سره دى.

۲۲۷. **خالد بن معدان** : كنيت يې ابوعبدالله شامي كلاعي دى، د حمص اوسېدونكى دى، دده بيان دى چي د اوويا صحابه كرامو سره مي ليدلي دي او دى د شام د علماؤ د باوري راويانو څخه دى په ۱۰۴م هجري كال كي په طرسوس نامي ځاى كي وفات سو، معدان د ميم په فتحه، د عين په سكون او پر دال مهمله تشديد نسته.

۲۲۸. **خالد بن عبدالله** : دغه خالد بن عبدالله واسطي طحان دى ، د حصين او نورو څخه روايت كوي، د الله جل جلاله د نيكو بندګانو څخه تېر سوى دى چي هغه د الله جل جلاله څخه درې واره ځان رانيوى او په خپل وزن يې سپين زر خيرات كړل، په ۱۹۹ هجري كال كي وفات سو او ځينو ۱۸۲ ښودلى دى ، دده زېږېدنه په ۱۱۰م هجري كال كي وسوه.

۲۲۹. **خارجه بن زيد** : دغه خارجه د زيد بن ثابت انصاري مدني زوى دى، ستر تابعي دى ، دحضرت عثمان رضي الله عنه زمانه يې تر لاسه كړې ده ، د خپل پلار او نورو صحابه كرامو څخه دده سماع ثابت ده ، دمدينې د فقهاؤ سبعه څخه دى او باوري دى، دده څخه زهري روايت كړى دى، په ۹۹ م هجري كال كي وفات سو .

۲۳۰. **خارجه بن الصلت** : دغه خارجه بن الصلت برجمي دى، د براجم څخه دى، د بنوتميم يو ښاخ دى ، تابعي دى ، د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه او خپل اكا څخه روايت كوي او دده څخه امام شعبي روايت كوي او دده حديث په اهل كوفه كي دي .

۲۳۱. **خشف بن مالک**: دغه خشف بن مالک د قبیلۀ طی او سېدونکی دی د خپل پلار او اکا او عمرو بن مسعود څخه روایت کوي او دده څخه زید بن جبیر روایت کړی دی، خشف د خاء معجمه په کسره او شین معجم په سکون او فاء سره دی.

۲۳۲. **ابوخزامه**: دغه ابوخزامه بن یعمر دی دی د بني الحارث بن سعد څخه یو سړی دی، د خپل پلار څخه روایت کوي او دده څخه زهري، نوموړی مشهور تابعي دی، خزامه د خاء معجمه په کسره سره او زاء معجمه باندي تشدید نسته.

۲۳۳. ابو خلده: دغه ابو خلده د خالد بن دینار تمیمي سعدي بصري دی چي د خیاطۍ کار یې کوی، د باوري تابعینو څخه دی، د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت کوي او دده څخه وکیع او نور، خلده د خاء معجمه په فتحه او دلام په سکون سره دی.

۲۳۴. **ابن خطل**: دغه عبدالله بن خطل تمیمي مشرک دی، رسول الله ﷺ د مکې د فتح په ورځ دده د قتل حکم کړی وو نو قتل کړل سو، خطل د خاء معجمه او طاء مهمله د دواړو په فتحه سره دی.

# صحابي ښځي

۲۳۵. **خدیجه بنت خویلد** رضي الله عنها: دغه خدیجه د خویلد ابن اسد لور ده، قریشیه ده، د امهات المؤمنین څخه ده، تر ټولو مخکي د ابوهاله بن زراره ښځه وه بیا ورسره عتیق بن عائذ نکاح وکړل د هغه څخه وروسته یې د رسول الله ﷺ سره نکاح وسول، هغه وخت یې عمر تقریبا څلوېښت کاله وو او د رسول الله ﷺ عمر پنځه ویشت کاله وو، تر دې مخکي رسول الله ﷺ د هیڅ یوې ښځي سره نکاح نه وه کړې او نه د حضرت خدیجې رضي الله عنها تر وفات پوري، دغه خدیجه رضي الله عنها هغه بي بي ده چي تر ټولو مخکي یې په رسول الله ﷺ ایمان راوړ، هغه وخت نه په نارینوو کي چا ایمان راوړی وو او نه په ښځو کي، د رسول الله ﷺ ټول اولاد ماسوا د ابراهیم څخه چي هغه د ماریه قبطیه څخه پیدا دی، دبي بي خدیجې رضي الله عنها څخه دي، دهجرت څخه پنځه کاله مخکي په مکه کي وفات سول، ځینو څلور کاله مخکي ویلي دي، او ځینو وویل: درې کاله مخکي، هغه وخت د نبوت لس کاله تېر سوي وه، عمر یې ۶۵ کاله وو او په جیحون نامي ځای کي دفن سوې ده.

۲۳۶. **خوله بنت حکیم**: دغه خوله بنت حکیم ده د عثمان مظعون ښځه ده ډېره صالحه او فاضله بي بي وه، یوه ډله ور څخه روایت کوي.

۲۳۷. **خوله بنت ثامر**: دغه خوله بنت ثامر د قبیله انصار څخه ده د دې حدیث په اهل مدینه کې زیات دي، ددې څخه نعمان ابن ابي العیاش زرقي روایت کړی دی او ځینو ویلي دي چې دغه خوله د قیس بن بني مالک بن النجار لور ده او ثامر د قیس لقب دی، صحیح خبره داده چې دواړې جلا جلا ښځې دي.

۲۳۸. **خوله بنت قیس**: دغه خوله د قیس لور ده، د جهینه قبیلې او سېدونکې ده ددې حدیث په اهل مدینه کې مروج دي، ددې څخه نعمان بن خربوذ د حدیثو روایت کړی دی، خربوز د خاء معجمه په پېښن، د راء مهمله او ذال معجمه سره دی.

۲۳۹. **خنساء بنت خذام**: دغه خنساء د خذام بن خالد لور ده انصاریه اسدیه ده، ددې حدیث په مدینې والا کې مشهور دي، ددې څخه ابوهریره، بي بي عائشه او نورو صحابه کرامو روایت کړی دی، په خنساء کې پر خاء باندې فتحه، نون ساکن، سین مهمله او مد دی، په خذام کې خاء معجمه مکسور او ذال معجمه بېله شد دی.

۲۴۰. **ام خالد بن سعید بن العاص الامویه**: دغه ام خالد امویه ده د خالد سعد بن عاص لور ده په خپل کنیت سره مشهوره ده، په حبشه کې پیدا سوه کله چې مدینې ته راوستل سول نو عمر یې کم وو، بیا زبیر بن العوام ورسره نکاح وکړل، ددې څخه ځو کسانو روایت کړی دی.

## د - صحابه کرام رضي الله عنهم:

۲۴۱. **دحیة الکلبي** رضي الله عنه: دغه دحیه د خلیفه کلبي زوی او دسترو صحابه کرامو څخه دی. رسول الله ﷺ په شپږم هجري کال کې د قیصر پاچا ته دصلح په زمانه کې واستوی، قیصر په رسول الله ﷺ ایمان راوړل وغوښتل خو د هغه پادري (عیسائي سالار) پرې ایمان نه راوړ نو هغه هم مسلمان نه سو، دغه دحیه هغه صحابي دی چې حضرت جبرائیل علیه السلام به دده په شکل کې رسول الله ﷺ ته وحي راوړلې، دی د شام هیواد ته تللی وو او د امیر معاویه تر زمانې پورې هلته وو، د ډېرو تابعینو څخه ده روایت وکړ، دحیه د دال په کسره او حاء مهمله په سکون او دوو ټکو والا یاء سره دی، همدارنګه اکثرو محدثینو او اهل لغتو روایت کړی دی او ځینو ویلي دي چې دحیه د دال په فتحه سره دی.

۲۴۲. **ابودرداء** رضي الله عنه: دده نوم عویمر دی، دی دعامر انصاري خزرجي زوی دی په خپل کنیت سره مشهور دی او درداء دده لور ده، دې په ځنډ سره اسلام او په خپله کورنۍ کې تر

ټولو په پایکي اسلام راوړونکی دی ، لوی صالح مسلمان وو او لوی عالم او صاحب حکمت تېر سوی دی، په شام کي یې قیام وکړ او په ۳۲م هجري کال په مشق کي وفات سو .

## تابعین رحمة الله علیهم .

۲۴۳. **داؤد بن صالح** : نوموړی د داؤد بن صالح بن دینار زوی دی چي د خرماوو تجار وو او د انصارو ازاد سوی غلام دی، مدینې او سېدونکی دی، د سالم بن عبدالله او خپل پلار او خپلي مور څخه روایت کوي .

۲۴۴. **داؤد بن الحصین**: داؤد بن حصین د عمرو بن عثمان بن عفان رضي الله عنه ازاد سوی غلام دی، د عکرمه څخه روایت کوي او دده څخه مالک او نور ، په ۱۳۵م هجري کي د ۷۲ کالو په عمر وفات سو .

۲۴۵. **ابن الدیلمي** : نوم یې ضحاک دی د فیروز زوی دی ، تابعي دی دده حدیث په مصریانو کي مروج دي د خپل پلار څخه روایت کوي ، دیلمي د دال په فتحه سره منسوب دی دیلم ته او دا یو غر دی چي په خلګو کي مشهور دی او فیروز د فاء په فتحه او یاء تحتاني دوو ټکو والا سکون او راء په پېښ سره دی او په آخر کي زاء ده .

۲۴۶. **ابوداؤد الکوفي** : دغه ابوداؤد نفیع دی د حارث ړانده زوی دی، کوفي دي ، د عمران بن حصین او ابوبرزه څخه روایت کوي او دده څخه روایت کونکي سفیان ثوري او شریک دی،د محدثینو په نزد متروک دی ، رفض ته مائل وو دده ذکر په کتاب العلم کي راغلی دی .

## صحابي ښځي

۲۴۷. **ام الدرداء** رضي الله عنها : دام الدرداء نوم خیره دی او د ابوحدرد لور ده، د اسلم قبیلې او سېدونکې ده ، د حضرت ابودرداء رضي الله عنه ښځه ده ، ډېره فاضله او هوښیاره ښځه وه او په ښځو کي ډېره د رایي خاونده وه ؤ ډېره عابده ، متبع سنت وه ددې څخه یوې ډلي روایت کړی دی ، د حضرت ابودرداء رضي الله عنه څخه دوه کاله مخکي وفات سوې ده، دشام په هیواد کي د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافات په زمانه کي وفات سول .

## ذ - صحابه کرام رضي الله عنهم :

۲۴۸. **ابوذر غفاري** رضي الله عنه : د ابوذر نوم جندب دی دده پلار جناده دی ،دی د لوړي مرتبې مشهور تارک الدنیا او د مهاجرو صحابه کرامو څخه دی ، په مکه کي په پیل کي د اسلام

راوړونکو څخه دی ، ویل کیږي چې دی په ایمان راوړلو کي پنځم صحابي دی بیا خپل قوم ته بېرته تللی وو، تر یو وخت پوري دهغوی سره وو تر دې چې دخندق د غزا وروسته د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو ، بیا یې په ربذه کي هستوګنه اختیار کړل او په ربذه کي په ۳۲م هجري کال کي د عثمان رضي الله عنه د خلافت په زمانه کي وفات سو ، درسول الله ﷺ د بعثت څخه مخکي به یې عبادت کوی ، دده څخه ډېرو صحابه کرامو او تابعینو روایات کړي دي .

۲۴۹. **ذو مخبر** : د میم په کسره، دخاء معجمه په سکون او باء موحده په فتحه سره دی، دنجاشي وراره دی د نبي کریم ﷺ خادم دی ، جبیر بن نفیر او نور دده څخه روایت کوي، په شامیانو کي شمېرل کیږي او دده حدیثونه د هغوی څخه تر لاسه کیږي .

۲۵۰. **ذو الیدین** : د بني سلیم یو سړی دی ، خرباق هم ورته ویل کیږي، صحابي دی، د حجاز اوسېدونکی دی ، په کوم لمانځه کي چې د رسول الله ﷺ څخه سهوه سوې وه په هغه کي دی موجود وو ، خرباق د خاء معجمه په کسره ، راء مهمله په سکون او باء موحده سره دی.

۲۵۱. **ذوالسویقتین** : د حبشې اوسېدونکی دی دده په اړه رسول الله ﷺ وفرمایل چي هغه به کعبه شریفه ونړوي .

## ر - صحابه کرام رضي الله عنهم :

۲۵۲. **رافع بن خدیج** رضي الله عنه : دده کنیت ابو عبدالله دی، حارثي انصاري د احد په غزا کي پر هغه غشي ولګېدل چي رسول الله ﷺ وفرمایل : زه به د قیامت په ورځ ستا ددغه غشي شاهد یم، د هغه دغه زخم د عبدالملک بن مروان تر زمانې پوري وو ، په ۷۳م هجري کال په مدینه کي د ۸۶ کالو په عمر وفات سو ، ډېرو کسانو ور څخه د حدیثو روایت کړی دی، خدیج د خاء معجمه په فتحه ، ددا ل په کسره او په جیم معجمه سره دی .

۲۵۳. **رافع بن عمرو** رضي الله عنه: دغه رافع بن عمرو غفاري دی ، دده شمېر په بصریانو کي کیږي، دده څخه عبدالله بن الصامت روایت کړی دی ، د اکل تمر په اړه دده حدیث دی.

۲۵۴. **رافع بن مکیث** : دغه رافع بن مکیث د جهینه قبیلې اوسېدونکی دی د حدیبیې د صلح په وخت کي حاضر وو ، دده څخه دده دوه زامن بلال او حارث روایت کوي، په مکیث کي د میم فتحه د کاف په کسره او دوو ټکو والا یاء په سکون او په پایکي ثاء مثلثه ده .

۲۵۵. **رفاعة بن رافع** : دده کنیت ابو معاذ دی دی زرقي انصاري دی ، دبدر په غزا کي

بلکه په ټولو غزاوو کي د رسول الله ﷺ سره حاضر وو، او د حضرت علي رضی الله عنه په ملګرتيا کي د جمل او صفين په جګړه کي هم موجود وو، د حضرت معاويه د امارت په زمانه کي وفات سو، دده دواړه زامنو عبيد او معاذ او دده وراره يحيی بن خلاد دده څخه روايت کوي.

٢٥٦. **رفاعه بن سموال** : د سموال قرظي زوی دی، دا هغه دی چي خپلي ښځي ته يې درې طلاقه ورکړې وو بيا عبدالرحمن بن زبير د هغې سره نکاح کړې وه، دده څخه بي بي عائشې او نورو روايت کړيدی، په سموال کي د سين کسره ده او په يوه قول کي فتحه ده، ميم ساکن دی او واو غير مشدد او لام دی، په الزبير کي پر زاء باندي زور، د باء موحده زېر دی او ځينو د زاء ضمه او د باء فتحه ويلي دي، رفاعه د بي بي صفيه رضی الله عنها چي د رسول الله ﷺ د ازواج مطهراتو څخه ده ماما دی.

٢٥٧. **رفاعه بن عبدالمنذر** : دغه رفاعه بن عبدالمنذر د انصارو څخه دی، کنيت يې ابولبابه دی دده يادونه به د لام په حرف کي راسي.

٢٥٨. **رويفع بن ثابت** : دغه رويفع د ثابت بن سکن زوی دی، انصاري دی، په مصريانو کي شمېرل کيږي، امير معاويه په ۴۶ م هجري کال کي د لويديځ طرابلس والي ټاکلی وو، په برقه کي وفات سو او ځينو ويلي دي چي په شام کي وفات سو، دده څخه حنش بن عبدالله او نورو حضراتو روايت کړی دی، رويفع د رافع تصغير دی، او حنش حاء مهمله او نون فتحه او شين معجمه سره دی.

٢٥٩. **رکانة بن عبد يزيد** : دغه رکانه د عبد يزيد بن هاشم بن عبدالمطلب قرشي زوی دی، ډېر طاقتور وو، دده حديث په حجاز کي دی، د حضرت عثمان رضی الله عنه تر زمانې پوري ژوندی وو او ځينو ويلي دي چي په ۴۲م هجري کال کي وفات سو، دده يوې ډلي روايت کړی دی، رکانه د راء مهمله په ضمه سره او کاف غير مشدد او نون دی.

٢٦٠. **رباح بن الربيع** : دغه رباح بن الربيع اسيدي کاتب دی دده حديث په بصريانو کي مروج دي، د قيس بن زهير ده څخه روايت کوي، الاسيدي د همزه په ضمه د سين په فتحه او د دواړو ياګانو په تشديد سره دی.

٢٦١. **ربيعه بن کعب** : دغه ربيعه د کعب زوی دی، کنيت يې ابو فراس اسلمي دی په اهل مدينه کي شمېرل کيږي او د اهل صفه څخه وو، ويل کيږي چي دی د رسول الله ﷺ خاص خادم وو او د پخوانيو اصحابو څخه دی، د رسول الله ﷺ سره به په حضر او سفر کي وو، په ۶۳م هجري کال کي وفات سو، دده يوې ډلي روايت کړی دی.

۲۶۲. **ربیعه بن الحارث** : دغه ربیعه د حارث بن عبد المطلب بن هاشم زوی دی چي د رسول الله ﷺ اکا دی، ده ته د صحبت شرف حاصل دی د حضرت عمر رضی الله عنه په خلافت کي په ۲۲م هجري کال وفات سو، دا هغه دی چي دده په اړه رسول الله ﷺ د مکې د فتح په ورځ فرمایلي وه: لومړی دیت چي زه یې معافوم د ربیعه ابن الحارث دیت دی او ځکه یې وفرمایل چي د جاهلیت په زمانه کي د ربیعه یو زوی چي دهغه نوم آدم وو وژل سوی وو نو رسول الله ﷺ په اسلام کي د هغه غوښتنه پرېښودل.

۲۶۳. **ربیعه بن عمرو** : دغه ربیعه د عمرو جرشي زوی دی، واقدي بیان کړی دی چي ربیعه د راهط د خروج په ورځ وژل سوی دی.

۲۶۴. **ابورافع اسلم**: دغه ابورافع اسلم د نبي کریم ﷺ ازاد سوی غلام دی، دده تر نامه دده کنیت زیات مشهور دی، نوموړی قبطي وو مخکي دعباس رضی الله عنه غلام وو هغه رسول الله ﷺ ته د تحفې په توګه ورکړی وو بیا کله چي رسول الله ﷺ ته د حضرت عباس رضی الله عنه د اسلام زیری ورکړل سو نو رسول الله ﷺ په دغه خوشحالی کي هغه ازاد کړ، د هغه اسلام د بدر د غزا څخه مخکي وو، دده څخه یوه لویه ډله روایت کوي د حضرت عثمان رضی الله عنه څخه څو ورځي مخکي وفات سو.

۲۶۵. **ابورمثه** : دغه ابورمثه د رفاعه بن یثربي زوی دی، تمیمي دی د امراء القیس د اولاد څخه دی چي د زیدبن مناة بن تمیم زوی وو، دده په نامه کي ډېر اختلاف دی ځینو هغه نوم بیان کړی دی کوم چي موږ مخکي ذکر کړی دی، او ځینو عماره بن یثربي ویلي دي او ځینو یې بل نوم ذکر کړی دی، د رسول الله ﷺ په خدمت کي د خپل پلار سره حاضر سو، په کوفیانو کي شمېرل کیږي، ایاد بن لقیط دده څخه روایت کړی دی، رمثه د راء په کسره او د میم په سکون او ثاء مثلثه سره دی.

۲۶۶. **ابورزین** : دغه ابورزین دی، دده نوم لقیط دی د عامر بن صبره زوی دی دده یادونه به د لام په حرف کي راسي.

۲۶۷. **ابوریحانه**: دغه ابوریحانه د شمعون بن زید زوی وو، د بنو قریظة څخه انصاري دي، یعني د انصارو حلیف دی، ده ته د رسول الله ﷺ ازاد سوی غلام ویل کیږي، دده لور ریحانه ده چي لویه فاضله، عابده او ددنیا څخه لیري ښځه وه، نوموړی په شام کي هستوګن سوی وو، یوې ډلي ور څخه روایت کړی دی.

# تابعين رحمة الله عليهم .

۲٦۸. **ابورجاء** : دغه ابورجاء عمران بن تميم عطاردي دی، د رسول الله ﷺ په ژوند کي يې اسلام راوړی وو، د حضرت عمر بن خطاب او حضرت علي رضی الله عنهما او نورو څخه روايت کوي او دده څخه يوې ډلي روايت کړی دی، لوی عالم باعمل او سن رسېده او د قرائت د ماهرينو څخه وو، په ۱۰۷م هجري کال کي وفات سو .

۲٦۹. **ربيعه بن ابي عبدالرحمن**: دغه ربيعه د ابوعبدالرحمن زوی دی، ستر تابعي دی، دمديني د منل سوو فقهاؤ څخه دی، د حضرت انس بن مالک او حضرت سائب رضی الله عنهما څخه يې حديث اورېدلي دي، سفيان ثوري او مالک بن انس دده څخه روايت کوي، په ۱۳۶ هجري کال کي وفات سوی دی .

۲۷۰. **ابورافع** : دغه ابورافع د حقيق زوی دی، دده نوم عبدالله وو او دی د حجاز د تجارانو څخه يو يهودي وو، په معجزاتو کي دده يادونه د براء په حديث کي راځي ، الحقيق د حاء مهمله په ضمه ، د لومړي قاف په فتحه او ياء تحتاني په سکون سره دی .

۲۷۱. **رعل بن مالک** : دغه رعل د مالک بن عوف زوی دی او دهغه خلگو څخه دی چي پر هغوی رسول الله ﷺ په قنوت کي لعنت او ښېرا کړې وه ، له دې کبله چي هغه قاريان وژلي وه، رعل د راء په کسره او د عين مهمله په سکون سره دی .

# صحابي ښځي

۲۷۲. **الربيع بنت معوذ** : دغه ربيع د معوذ لور ده ، صحابيه ده او له انصارو څخه ده، د لوی قدر او عظمت والا ده، ددې حديث په مدينه کي او په بصره والا کي رواج دي، الربيع د راء په پېښ ، ياء موحده په فتحه او دوو ټکو والا ياء مکسور تشديد سره ده .

۲۷۳. **الربيع بنت النضر** : دغه ربيع بنت نضر د حضرت انس بن مالک رضی الله عنه عمه ده او د حارثه بن سراقه مور ده، په صحيح بخاري کي دي چي د حضرت انس بن مالک رضی الله عنه عمه د ربيع بنت نضر مور ده چي د هغې يادونه د صحابي ښځو په ډله کي راځي، هغه ربيع ده او همدا صحيح دی .

۲۷۴. **الرميصاء** : دغه رميصاء د ام سليم ملحان لور او د حضرت انس بن مالک رضی الله عنه مور ده. او ددې يادونه به د سين په حرف کي د ې پر ژر راسي .

## ز - صحابه کرام رضی اللہ عنہم :

۲۷۵. **زید بن ثابت** رضی اللہ عنہ: دغه زید بن ثابت انصاري د رسول الله ﷺ کاتب (لیکوال) دی، کله چي رسول الله ﷺ مدینې ته راغلی نو دده عمر یوولس کاله وو، دده شمېر په داسي سترو فقهاء صحابوو کي کیږي چي پر هغوی د فرائضو مدار دی، او دی د هغه صحابه کرامو څخه دی چا چي د قرآن کریم په تدوین کي لویه برخه اخیستې ده، او ده د ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ د خلافت په زمانه کي د قرآن کریم کتابت هم کړی دی او قرآن پاک یې د مصحف څخه د حضرت عثمان رضی اللہ عنہ په زمانه کي نقل کړی دی، دده څخه یوه ډله روایت کوي، په مدینه منوره کي په ۴۵ م هجري کال د ۵۶ کالو په عمر وفات سو.

۲۷۶. **زید بن ارقم** رضی اللہ عنہ: دغه زید بن ارقم دی کنیت یې ابوعمر دی انصاري خزرجي دی، په کوفیانو کي شمېرل کیږي، په کوفه کي یې هستوګنه اختیار کړل او هلته په ۶۶م هجري کال کي وفات سو، دده څخه ډېرو حضراتو روایت کړی دی.

۲۷۷. **زید بن خالد** رضی اللہ عنہ: دغه زید بن خالد د جهینه قبیلې څخه دی، دی کوفې ته راغلی وو او هلته په ۷۸ هجري کال کي وفات سو، عمر یې ۸۵ کاله وو، انس، عطاء بن یسار او نور حضرات ور څخه روایت کړی دی.

۲۷۸. **زید بن حارثه** رضی اللہ عنہ: دغه زید بن حارثه دی، دده کنیت ابواسامه دی، دده مور سعدی بنت ثعلبه ده چي د بني معن څخه ده، زیدبن حارثه د هغه مور د خپل قوم سره د یو ځای کولو لپاره راوستی نو د بني معن بن جریر یو لښکر د جاهلیت په زمانه کي حمله پر وکړل بیا هغه لښکر پر هغه کورونو تېر سو چي د زید بن حارثه د مور کورنۍ وه، هغه حمله کوونکو زید بن حارثه وتښتوی، د هغه عمر هغه وخت اته کاله ښودل کیږي، د عکاظ بازار ته یې بوتلی او هلته یې د پلورلو لپاره وړاندي کړ نو حکیم بن حزام بن خویلد د خپلي عمه خدیجه بنت خویلد لپاره د څلور سوه درهمو په بدله کي رانیوی، بیا کله چي رسول الله ﷺ دهغې سره نکاح وکړل نو بي بي خدیجې رضی اللہ عنہا، رسول الله ﷺ ته هبه کړ، د رسول الله ﷺ په قبضه کي وو بیا ددغه ټولي پېښې خبر د زید بن حارثه کورنۍ ته ورسېدی نو دهغه پلار حارثه او اکا کعب رسول الله ﷺ ته راغلل او د فدیې په ورکولو سره یې د ځان سره بېول وغوښتل، رسول الله ﷺ زید بن حارثه ته اختیار ورکړ که د خپلي کورنۍ سره تلل غواړي نو په خوښۍ سره د خپل پلار سره ولاړ سه او که غواړې نو زما سره پاته سه، زید بن

حارثه رسول الله ﷺ ته پر خپلي كورني باندي ترجيح وركړل او د پلار او اكا سره نه ولاړی، ځكه چي د رسول الله ﷺ احسانات او كريمانه اخلاق د هغه په زړه كي ځای نيولی وو، ددغه پيښي څخه وروسته رسول الله ﷺ هغه حجر ته بوتلی او حاضرينو ته يې په خطاب كولو سره وفرمايل: تاسو شاهدان اوسئ! ما زيد خپل زوی ګرځولی دی، دی زما وارث دی او زه دده وارث يم، ددې څخه وروسته هغه ته زيد بن محمد ويل كېدل، تر دې چي د الله ﷻ شريعت راغلی او دغه آيت نازل سو چي په خولې ويلي هلكان د هغوی مور او پلار ته په منسوب كولو سره بولئ دا خبره د الله ﷻ په نزد ډېره د انصاف او صحيح ده، نو بيا هغه ته زيد بن حارثه ويل كېدل، دغه زيد بن حارثه په نارينوو كي تر ټولو مخكي اسلام راوړی دی د يوه قول مطابق رسول الله ﷺ تر ده لس كاله مشر دی او د بل قوم مطابق شل كاله، رسول الله ﷺ دده نكاح د ام ايمن سره وكړل، دهغې څخه اسامه ﷛ پيدا سو، تر دې وروسته زينب بنت حجش سره د ده نكاح وسول او زيد بن حارثه ته به محبوب رسول ويل كېدل، او الله ﷻ د هيڅ يو صحابي نوم په قرآن كريم كي ذكر كړی نه دی پرته دده څخه ، دا هغه آيت دی : (فَلَمَّا قَضَى زَيْدٌ مِّنْهَا وَطَرًا زَوَّجْنَاكَهَا) ، دده څخه دده زوی اسامه ﷛ او نورو خلكو روايت كړی دی، د موته په غزا كي كله چي دی د لښكر امير وو د جمادي الاول په مياشت كي په اتم هجري كال شهيد سو او عمر يې ۵۵ كاله وو .

۲۷۹. **زيد بن الخطاب** : دغه زيد بن خطاب عدوي قريشي د حضرت عمر بن خطاب ﷛ ورور دی، دی د حضرت عمر ﷛ څخه په عمر كي مشر وو ، په لومړنيو مهاجرينو كي دی او د حضرت عمر ﷛ څخه يې مخكي ايمان راوړی دی، د بدر په غزا او تر هغه وروسته په ټولو غزاوو كي حاضر وو ، د يمامه په جګړه كي شهيد سو چي د حضرت ابوبكر صديق ﷛ د خلافت په زمانه كي پېښه سوی وو ، دده څخه عبدالله بن عمر ﷛ روايت كوي .

۲۸۰. **زيد بن سهل** : دغه زيد د سهل زوی دی، په خپل كنيت ابو طلحه سره مشهور دی، دده يادونه د طاء په حرف كي راځي .

۲۸۱. **الزبير بن العوام** ﷛ : كنيت يې ابوعبدالله قريشي دی، دده مور صفيه د عبدالمطلب لور او د رسول الله ﷺ عمه ده، ده او مور يې په پيل كي اسلام راوړی وو ، كله چي دده عمر شپاړس كاله وو ، دده د اسلام راوړلو په وجه دده اكا په دود سره د ساه بندي تكليف وركوی چي اسلام پرېږدي مګر ده داسي ونه كړل او په ټولو غزاوو كي د رسول الله

ﷺ سره موجود وو، نوموړی هغه کس دی چي تر ټولو مخکي يې د الله ﷻ په لاره کي توره پورته کړل او د رسول الله ﷺ په ملګرتيا کي د اُحد په غزا کي ثابت قدمه پاته وو، او دعشره مبشره څخه هم دی، د لوړ قد والا سور او سپين سړی وو، پر بدن يې غوښه کمه وه او ځينو ويلي دي چي غنم رنګه وو او پر بدن باندي يې وېښتان ډېر وه، په سفوان کي چي په بصره کي واقع دی عمرو بن جرموز په ۳۶م هجري کال کي وژلی وو، دده عمر ۶۴ کاله وو، اول وار په وادي سباع کي دفن کړل سو او بيا بصري ته منتقل کړل سو او هلته دده قبر کېدل مشهور دي، دده څخه دده دوه زامن عبدالله او عروه او نور کسان روايت کوي.

۲۸۲. **زياد بن لبيد** رضي الله عنه: دغه زياد د لبيد زوی دی کنيت يې ابوعبدالله دی انصاري زرقي دی، په ټولو غزاوو کي د رسول الله ﷺ سره ملګری وو، د حضرت موت والي ګرځول سوی وو، دده څخه عوف بن مالک او ابودرداء رضي الله عنهما د حديثو روايت کوي د حضرت معاويه رضي الله عنه د خلافت په شروع کي وفات سو.

۲۸۳. **زياد بن الحارث** رضي الله عنه: دغه زياد د حارث صدائي زوی دی، د رسول الله ﷺ په لاس مبارک يې بيعت وکړ او مؤذن يې هم وو، په بصريانو کي شمېرل کيږي، په صدائي کي پر صاد مهمله پېښ او دال مهمله باندي شد نسته او د الف څخه وروسته همزه ده.

۲۸۴. **زاهر بن الاسود**: دغه زاهر بن اسود اسلمي دی، د هغه صحابه کرامو څخه دی کومو چي تر درختي لاندي بيعت کړی وو، په کوفه کي هستوګن وو او د کوفې په اوسېدونکو کي شمېرل کيږي.

۲۸۵. **زراع بن عامر**: د عامر بن قيس زوی دی د عبدالقيس په وفد کي په شاملېدو سره د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوی دی، په بصريانو کي شمېرل کيږي، ددغه حديث په اهل بصره کي رائج دي.

۲۸۶. **زراره بن ابي اوفی** رضي الله عنه: دغه زراره د ابي اوفی زوی دی، د صحابه کرامو څخه دی د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت په زمانه کي وفات سو.

۲۸۷. **ابوزيد الانصاري** رضي الله عنه: دا هغه کس دی چي قرآن کريم يې د خپلي حافظې څخه د رسول الله ﷺ په زمانه کي جمع کړ، دده په نامه کي اختلاف دی ځينو سعيد بن عمير ويلي دي او ځينو قيس بن سکن.

۲۸۸. **ابوزهير نميري**: نوموړي په شاميانو کي شمېرل کيږي.

۲۸۹. **الزبيدي**: د زاء معجمه په پېښ او باء موحده په زور سره، دده نسبت زبيد ته کېږي دده نوم منبه بن سعد بيانيږي دده صحابي کېدل محقق نه دي .

## تابعين رحمة الله عليهم .

۲۹۰. **الزبير بن عدي** : د عدي زوی دی ، همداني کوفي دی، د ری نامي ځای قاضي وو ، تابعي دي، د انس بن مالک رضي الله عنه څخه روايت کوي او دده څخه سفيان ثوري او نور کسان د حديثو روايت کوي، په ۱۳۱م هجري کال کي وفات سو ، په همداني کي ميم ساکن دی .

۲۹۱. **الزبير العربي**: دغه زبير عربي نميري او بصري دی، د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه څخه روايت کوي او دده څخه معمر او حماد بن زيد ، باوري راوي دی .

۲۹۲. **زياد بن کسيب**: د کسيب زوی دی عدوي دي او په بصريانو کي شمېرل کېږي، نوموړی تابعي د ياو د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه څخه روايت کوي، کسيب په تصغير سره دی .

۲۹۳. **زهره بن معبد** : د معبد زوی دی، کنيت يې ابوعقيل دی، د عين په زور سره دی قرشي او مصري دی، د خپل نيکه عبدالله بن هشام او نورو څخه يې حديث اورېدلي دي، دده څخه روايت کونکي ډېر کسان دي ، دده د حديث لويه برخه د اهل مصر سره ده .

۲۹۴. **زهير بن معاويه** : دده کنيت ابوخيثمه جعفي دی ، کوفي دی ، دی په جزيره کي اوسېدی ، د حديثو حافظ او باوري دی، د ابواسحاق همداني او ابوالزبير څخه يې حديث واورېدل ، دده څخه ابن مبارک او يحيی بن يحيی او نور روايت کوي، دده يادونه په کتاب الزکوة کي راغلې ده، په ۱۷۴م هجري کال کي وفات سو .

۲۹۵. **زميل بن عباس** : دی دخپل مولی عروه څخه روايت کوي، او دده څخه يزيد بن الهاد روايت کوي، په ده کي يو څه ضعف دی .

۲۹۶. **الزهري** : دغه زهري زهرة بن کلاب ته منسوب دی چي دده ور نيکه دی، له دې کبله زهري ورته ويل کېږي، دده کنيت ابوبکر دی نوم يې محمد دی او د عبدالله بن شهاب زوی دی، لوی فقيه او محدث تېر سوی دی، په تابعينو کي د ستري درجې دی، د مدينې ستر فقيه او عالم دی، د علوم شريعت په مختلفو فنونو کي ده ته رجوع کېدل، د ډېرو صحابه کرامو څخه يې حديث اورېدلي دي ، دده څخه ډېر کسان روايت کوي چي په هغوی کي قتاده او مالک بن انس هم دي، عمر بن عبدالعزيز وايي: زه دده څخه لوی عالم نه وينم، د

مکحول څخه پوښتنه وسول چي کوم علماء تا لیدلي دي په هغوی کي زیات عالم څوک دی؟ هغه وویل: ابن شهاب دی، بیا پوښتنه وسول چي تر ده وروسته څوک دی؟ نو ده وفرمایل چي ابن شهاب دی ، د رمضان المبارک په میاشت کي په ۱۲۴ هجري کال کي وفات سو .

۲۹۷. **زر بن حبیش** : نوموړي اسدي کوفي دی، کنیت یې ابو حریم دی، د جاهلیت په زمانه کي یې شپېته کاله تېر کړي دي او همدومره وخت یې په اسلام کي تېر کړی دی، د عراق د هغه قاریانو څخه دی چي د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه شاگردان وه، د حضرت عمر رضی الله عنه څخه یې حدیث اورېدلي دي ، دده ډېر تابعین او غیر تابعین روایت کوي، زر د زاء معجمه په کسره او راء مهمله په تشدید سره دی، په حبیش کي پر حاء مهمله ضمه او باء موحده زور او دوو ټکو والا یاء ساکنه ده او په آخر کي شین دی .

۲۹۸. **زراره بن ابي اوفی** : دغه زراره بن ابي اوفی ابو حاجب جرشي د بصري قاضي دی، دصحابه کرامو څخه حدیث نقل کوي چي په هغوی کي حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه هم دی، د هغه څخه یې دغه روایت کړی دی چي عبد الله بن عباس رضی الله عنه وویل: یو سړي د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه پوښتنه وکړل چي اې دالله رسوله! کوم عمل د الله جل جلاله په نزد زیات خوښ دی؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: الحال المرتحل، هغه سړي وویل: اې دالله رسوله! الحال المرتحل څه ته وایي؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: صاحب قرآن، چي قرآن د پیل څخه تر پایه پوري وایي او د پای څخه یې شروع کړي تر اول پوري یې وایي، دده څخه قتاده او عوف د حدیثو روایت کړی دی، ده یوه ورځ امامت ورکړ او په لمانځه کي یې : (فاذا نقر في الناقور) ووایه او په چغه کولو سره په ۹۳م هجري کال کي وفات سو .

۲۹۹. **زیاد بن حدیر** : دده کنیت ابو مغیره دی، د بنو اسد څخه دی، کوفي او تابعي دی، د حضرت عمر او حضرت علي رضی الله عنهما څخه یې حدیث اورېدلي دي، دده څخه یوې ډلي روایت کړی دی، چي په هغوی کي شعبي هم دی، حدیر د حاء مهمله په پېښ او دال مهمله په زور او یاء تحتاني په سکون او راء مهمله سره دی .

۳۰۰. **زید بن اسلم**: کنیت یې ابواسامه دی ،د حضرت عمر رضی الله عنه ازاد سوی غلام دی، مدني دي او ستر تابعي دی، د صحابه کرامو څخه روایت کوي او دده څخه سفیان ثوري او ایوب سختیاني او مالک او ابن عینیه حدیثونه نقل کوي، په ۱۳۶هجري کال کي وفات

۳۰۱. **زید بن طلحه**: دده څخه سلمه بن صفوان زرقي روایت کوي، امام مالک دده حدیث د حیاء په اړه اخذ کړي دي .

۳۰۲. **زید بن یحیی** : نوموړی دمشقي دی، د امام اوزاعي څخه روایت کوي او دده څخه امام احمد او دارمي روایت کوي، نوموړی باوري دی .

۳۰۳. **ابوزبیر** : نوم یې محمد بن اسلم دی د مکې اوسېدونکی دی، د حکیم بن حزام ازاد سوی غلام کړی، د طبقه ثانیه څخه دی د مکې د تابعینو څخه دی ، د جابر بن عبد الله ﷛ څخه یې حدیثونه اورېدلي دي او دده څخه ډېرو خلکو روایت کړی دی، په ۱۲۵ هجري کال کي وفات سو .

۳۰۴. **ابوزرعه** : دده نوم عبید الله دی د عبد الکریم زوی دی د ری اوسېدونکی دی، د یوې لوي دلي څخه یې حدیث اورېدلي دي او دده څخه عبد الله بن احمد بن حنبل او نور کسان روایت کوي، امام او حافظ حدیث دی ، پوخ او د باور وړ دی، د حدیث عالم مشائخ یعني روات حدیث پېژندونکی دی د جرح او تعدیل پېژندونکی دی ، په ۲۰۰ هجري کال کي پیدا سو او د ری په سیمه کي په ۲۶۴ هجري کال کي وفات سو .

## صحابي ښځي

۳۰۵. **زینب بنت جحش** ﵄ : دغه زینب بنت حجش ﵄ د امهات المؤمنین څخه ده، ددې د مور نوم امیه دی چي د عبد المطلب لور ده، او د رسول الله ﷺ عمه ده، په پیل کي د زید بن حارثه چي د رسول الله ﷺ ازاد سوی غلام وو، د هغه ښځه وه بیا حضرت زید ﷛ طلاق ورکړی وو ، او تر دې وروسته رسول الله ﷺ ورسره په پنځم هجري کال کي نکاح وکړل، دغه زینب ﵄ د رسول الله ﷺ په ټولو ازواجو مطهراتو کي د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته تر ټولو مخکي وفات سول ، ددې اولنی نوم بره وو چي رسول الله ﷺ د زینب نوم پر کښېښود، بي بي عائشه ﵄ ددې په اړه فرمایي: هیڅ یوه ښځه تر زینب په دین کي ښه نسته دا تر ټولو زیاته د الله ﷻ څخه بېرېدونکې وه او تر ټولو زیاته رېښتیا ویونکې وه، تر ټولو زیاتو قرابت لرونکې ده او تر ټولو زیاته صدقه ورکونکې ده او په هغو ټولو کارو کي چي په هغه کي د الله ﷻ د قرب تر لاسه کولو لپاره په کار راتلای سي تر ټولو زیات ځان قربانونکې وه ، په ۲۰ م هجري کال په مدینه کي وفات سول ، بي بي عائشه ، ام حبیبه او داسي نور ددې څخه د حدیثو روایت کوي .

۳۰۶. **زینب بنت عبدالله**: دغه زینب د عبدالله بن معاویه لور ده ، د بنو ثقیف اوسېدونکې ده ، دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه ښځه وه ، د دې څخه د دې خاوند ، ابوسعید ، ابوهریره او بي بي عائشه رضي الله عنها د حدیثو روایت کوي .

۳۰۷. **زینب بنت ابي سلمه**: دا د رسول الله ﷺ بي بي او د بي بي ام سلمه لور ده، ددې نوم هم بره وو چې رسول الله ﷺ بدل کړ او زینب یې پر کښېښود ، په حبشه کې پیدا سول ، د عبدالله بن زمعه په زوجیت کې وه ، د خپلې زمانې په ښځو کې تر ټولو زیاته فقیه وه ددې څخه یوې ډلې د حدیثو روایت کړی دی ، د حره پېښې څخه وروسته وفات سول .

## تابعي ښځې .

۳۰۸. **زینب بنت کعب** : دغه زینب د کعب بن عجرة لور ده ، د انصارو څخه ده د سالم بن عوف د کورنۍ څخه ده ، نوموړې رابعیه ده .

## س - صحابه کرام رضي الله عنهم .

۳۰۹. **سعید بن ابي وقاص** رضي الله عنه : دده کنیت ابواسحاق دی او د پلار نوم یې مالک بن وهیب دی، نوموړی زهري دی د قریشو د قبیلې څخه دی، د هغه لسو کسانو څخه یو دی چې رسول الله ﷺ ورته د جنت زیری ورکړی وو، د اسلام په پیل کې یې ایمان راوړی وو او هغه وخت یې عمر اووه لس کاله وو، دده بیان دی چې زه په اسلام راوړونکو کې دریم کس یم او زه لومړنی کس یم چې د الله جل جلاله په لاره کې مې غشی وویشتل، په ټولو غزاوو کې د رسول الله ﷺ سره شریک وو ، ډېر مستجاب الدعوات وو او دغه خبره په خلکو کې ډېره مشهوره وه، د ښېرا څخه یې خلک بېرېدل او د خیر د دعاء ارزو یې کول، دا ځکه وه چې رسول الله ﷺ دده په اړه دغه دعاء کړې وه چې اې الله! دده غشی سیده ورسوې او دده دعاء قبوله کړې، دده او زبیر رضي الله عنهما لپاره رسول الله ﷺ داسې فرمایلي وه: ارم فداک ابي وامي، داسې الفاظ یې د دوی دواړو څخه ماسوا د بل چا لپاره نه دي فرمایلي، نوموړی په قد کوچنی ، غنم رنګه او پر بدن یې وېښتان زیات وه، په عقیق نامې ځای کې چې مدینې ته نژدې دی په خپل محل کې وفات سو او د خلکو پر اوږو مدینې ته راوستل سو ، مروان بن الحکم دده د جنازې لمونځ ورکړ، مروان په هغه زمانه کې د مدینې والي وو په بقیع کې دفن کړل سو ، دغه پېښه د ۵۵ م هجري کال ده ،عمر یې تقریبا ۷۰ کاله وو، د عشره مبشره څخه دی ، دده مرګ د ټولو په پای کې واقع سو ، حضرت عمر او حضرت عثمان رضي الله عنهما د

کوفې والي تاکلی وو ، دده څخه صحابه کرامو او تابعینو روایت کړی دی .

۳۱۰. **سعد بن معاذ** رضی الله عنه: د معاذ زوی دی انصاري اشهلي اوسي دی ، په مدینه کي د عقبه اولی او ثانیه په منځ کي یې اسلام راوړ ، د انصارو په ټولو کورنیو کي دغه اوله کورنۍ وه چي اسلام یې راوړ، رسول الله ﷺ ده ته د سیدالانصار خطاب ورکړی وو ، دی په خپل قوم کي لوی بزرګ او مشر منل کیدی، د سترو صحابه کرامو څخه دی ، د رسول الله ﷺ سره د بدر او احد په غزاوو کي شریک وو او په مېړانه یې مقابله وکړل، داحد په غزا کي یې د ملا پر رګ غشی ولګېدل ، وینه یې بنده نه سول تر دې چي یوه میاشت وروسته وفات سو ، دغه پېښه د ذي قعده د میاشتي د پنځم هجري کاله ده هغه وخت یې عمر ۳۷ کاله وو ، په جنت البقیع کي خاورو ته وسپارل سو ، د صحابه کرامو یوې ډلي دده څخه روایت کړی دی.

۳۱۱. **سعد بن خوله** : دغه سعد بن خوله د بدر په غزا کي ګډون وکړ او د حجة الوداع په کال کي په مکه مکرمه کي وفات سو .

۳۱۲. **سعد بن عباده** رضی الله عنه: دده کنیت ابوثابت انصاري دی، ساعدي خزرجي دی، نومورې د دوولس نقباؤ څخه یو دی، د انصارو په مشرانو کي شمېرل کیدی او په شان او شوکت کي تر ټولو زیات وو ، یوې ډلي ور څخه د حدیثو روایت کړی دی، په ۱۵ م هجري کال کي چي د حضرت عمر رضی الله عنه د خلافت دوه نیم کاله تېر سوي وه ، په حوران کي چي د شام په هیواد کي واقع دی ، وفات سو ، او دا هم ویل کیږي چي په یوولسم هجري کال کي چي د ابوبکر صدیق رضی الله عنه د خلافت زمانه وه ، وفات سوی دی، پر دې خبره د ټولو اتفاق دی چي دی په خپله غسل خانه کي مړ پیدا کړل سو او کله چي وکتل سو نو ټول بدن یې شین سوی وو ، ټولو خلګو دده د مرګ وجه معلومه نه کړل تر دې چي د یو ویونکي آواز د خلګو غوږو ته راغلی چي دا یې ویل : نحن قتلنا سید الخزرج سعد بن عبادة، ورمینا بسهمین فلم نخط فؤاده ، یعني موږ د خزرج مشر سعد بن عباده وژلی دی او موږ دوې غشی دده پر زړه وچلولې چي نښه خطا نه سول . ځکه نو مشهوره سول چي پیریانو وژلی دی .

۳۱۳. **سعید بن الربیع** رضی الله عنه : دغه سعید بن الربیع د انصارو د خزرج قبیلې څخه دی، د احد په غزا کي شهید سو ، رسول الله ﷺ دده او عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه په منځ کي ورورګلوي قائمه کړې وه ، دی او خارجه بن زید په یوه قبر کي دفن کړل سول .

۳۱۴. **سعید بن الاطول** : دغه سعید دی د اطول زوی، د جهینیه قبیلې څخه دی، ده ته د رسول الله ﷺ صحبت حاصل سو ده څخه ده زامن عبدالله او ابونضره روایت کوي.

۳۱۵. **سعید بن زید** : دغه سعید د زید زوی دی، ده کنیت ابواعور دی عدوي قریشي دی، د عشره مبشره څخه دی، د پیل څخه د اسلام شرف ور په برخه سو، او په ټولو غزاوو کي ماسوا د بدر د غزا څخه د رسول الله ﷺ سره شریک وو، ځکه چي دغه سعید بن زید د طلحه بن عبدالله سره وو چي د قریشو د غلې والا قافلې د معلومات کولو لپاره ټاکل سوي وه، رسول الله ﷺ په غنیمت کي د دوی برخه هم ټاکلې وه او د حضرت عمر رضی الله عنه خور فاطمه رضی الله عنها ده په نکاح کي وه او دا هغه فاطمه ده چي دهغې په وجه حضرت عمر رضی الله عنه په اسلام مشرف سو. نوموړی غنم رنګه وو او پر بدن یې ویښتان زیات وه، په ۵۱م هجري کال د عقیق په مقام کي وفات سو او دهغه ځای څخه مدینې ته راوړل سو او په جنت البقیع کي دفن کړل سو، تقریبا ۷۰ کاله عمر یې وو، ده څخه یوه ډله روایت کوي.

۳۱۶. **سعید بن حریث** : دغه سعید بن حریث قریشي مخزومي دی، د مکې په فتح کي د رسول الله ﷺ سره شریک وو هغه وخت یې عمر پنځلس کاله وو، بیا په کوفه کي هستوګن سو او هلته وفات سو او هم هلته یې قبر دی، حافظ ابن عبدالبر رحمه الله وایي: د هغه قبر په جزیره کي دی، هیڅ اولاد یې نه وو، د هغه ورور عمرو ور څخه روایت کوي.

۳۱۷. **سعید بن العاص** رضی الله عنه : نوموړی قریشي دی، دهجرت په کال پیدا سو د قریشو په مشرانو کي وو، کومو صحابه کرامو چي د حضرت عثمان رضی الله عنه په حکم سره د قرآن کریم لیکنه وکړل په هغوی کي دی هم وو، حضرت عثمان رضی الله عنه د کوفې والي ټاکلی وو، هغوی د اهل طبرستان سره جګړه وکړل او په هغه کي یې کامیابي تر لاسه کړل، په ۹ هـ کال کي وفات سو.

۳۱۸. **سعید بن زید** رضی الله عنه : دسعد بن عباده زوی دی، انصاري دي، ویل کیږي چي د نبي کریم ﷺ په صحبت مشرف سو، د خپل پلار څخه روایت کوي او ده زوی شرجبیل او ابوامامه بن سهل ده څخه روایت کوي، واقدي او نورو ویلي دي چي ده صحابي کېدل صحیح دي، د حضرت علي رضی الله عنه له خوا د یمن والي وو.

۳۱۹. **سبره بن معبد** رضی الله عنه : نوموړی جهني دی د مدینې اوسېدونکی دی، ده څخه ده زوی ربیع روایت کوي، ده شمېر د مصر په محدثینو کي کیږي، په سبره کي سین مفتوح او باء ساکنه ده.

۳۲۰. **سهل بن سعد**رضی اللہ عنہ : ساعدي انصاري دی، ابو عباس یې کنیت دی، دده نوم حزن وو بیا رسول الله ﷺ د سهل نوم پر کنښېښود، کله چي رسول الله ﷺ وفات سو نو دده عمر پنځلس کاله وو، سهل په مدینه کي په ۹۱م هجري کال وفات سو، او ځینو ۸۸ کال بیان کړی دی، دی تر ټولو آخري صحابي دی چي په مدینه کي وفات سو، دده څخه دده زوی عباس، زهري او ابو حازم روایت کوي.

۳۲۱. **سهل بن ابي حثمه** : کنیت یې ابو محمد دی، ابوعماره انصاري اوسي هم ورته ویل کیږي، په دریم هجري کال کي پیدا سو او په کوفه کي هستوګن سو، د مدینې د اوسېدونکو څخه شمېرل کیږي، او په مدینه کي د معصب بن زبیر په زمانه کي وفات سو، یوه لویه ډله ور څخه د حدیثو روایت کوي.

۳۲۲. **سهیل بن حنیف انصاري** : نوموړی اوسي دی، د بدر، احد او نورو ټولو غزاوو کي یې ګډون کړی دی، د احد په غزا کي د رسول الله ﷺ سره ثابت قدمه پاته سو او د نبي کریم ﷺ د وفات څخه وروسته د حضرت علي رضی اللہ عنہ ملګری وو، حضرت علي رضی اللہ عنہ په مدینه کي خپل قائم مقام ګرځولی وو، او دهغه څخه وروسته یې د فارس حاکم جوړ کړ، دده څخه دده زوی ابو امامه او داسي نور د حدیثو روایت کوي، په ۳۸م هجري کال په کوفه کي وفات سو.

۳۲۳. **سهل بن بیضاء** رضی اللہ عنہ : دده ورور سهیل وو، بیضاء د دوی دواړو مور وه چي د هغې نوم وعد وو، او د پلار نوم یې وهب بن ربیعه وو، سهل په هغه مسلمانانو کي دی چي دهغوی اسلام په مکه کي ظاهر سو او دا هم ویل کیږي چي ده په مکه کي خپل اسلام پټ وی او د مشرکانو سره بدر ته ورسېدی، په هغه زمانه کي یوه ورځ ونیول سو نو عبدالله بن مسعود رضی اللہ عنہ دده په اړه شاهدي ورکړل چي ما دی په مکه کي پر لمونځ کولو لیدلی دی نو بیا دی پرېښودل سو، بیا په مدینه کي وفات سو او رسول الله ﷺ دده او دده د ورور د جنازې لمونځ په مسجد کي ورکړ، د دواړو وروڼو یادونه د جنازې د لمانځه په بیان کي راغلې ده.

۳۲۴. **سهل بن الحنظلیه**: حنظلیه دده د نیکه د مور نوم وو، او ځیني وایي چي دده د مور نوم وو، او هغې ته منسوب کیږي، او ددې په نامه متعارف دی، دده د پلار نوم ربیع بن عمرو وو او سهل د هغه خلګو څخه وو چي د درختي لاندي یې بیعت کړی وو، لوی فاضل وو ډېر خلوت پسند، په ذکر او لمانځه کي ډېر زیات بوخت وو، اولاد یې نه وو، دشام په هیواد کي یې هستوګنه اختیار کړې وه او دامیر معاویه رضی اللہ عنہ د خلافت په زمانه کي په

دمشق کي وفات سو .

۳۲۵. **سهيل بن عمرو** رضي الله عنه : دغه سهيل بن عمرو قرشي عامري دی، د قريشو د سترو خلکو څخه وو ، بدر په غزا کي د کفر په حالت کي ونيول سو د قريشو د قبيلې خطيب هم وو ځکه حضرت عمر رضي الله عنه ، رسول الله ﷺ ته غوښتنه وکړل چي اې دالله رسوله! دده غاښونه وباسئ چي بيا ستاسو پر خلاف خطبه ونه وايي، رسول الله ﷺ وفرمايل: هغه پرېږده ، کيدای سي داسي وخت راسي چي ته يې هم تعريف وکړې ، بيا د حديبيه په صلح کي حاضر سو او د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته چي خلکو په مکه کي اختلاف وکړ او خلک مرتد کېدل پيل سول نو هغه مرتد سو نو هغه وخت دغه سهيل د خطبې ويلو لپاره ولاړ سو او خلکو ته يې ډاډ ورکړ او د ارتداد او اختلاف څخه يې خلک منع کړل، په اتلسم هجري کال کي په طاعون عمواس کي وفات سو ، او دا هم ويل کيږي چي په يرموک کي ووژل سو ، په يوه بله نسخه کي ددغه سهل بن عمرو په اړه د حافظ ابن عبدالبر څخه روايت دی چي ځينو خلکو د حضرت عمر رضي الله عنه پر دروازه ولاړ وه په هغوی کي سهيل بن عمرو ابوسفيان بن حرب هم وو او دغه خلک د قريشو د مشرانو څخه وه، دحضرت عمر رضي الله عنه له خوا د اجازې ورکولو لپاره يو ځوان راووتی چي تر ټولو مخکي يې بدريانو ته د داخلې اجازه ورکول لکه صهيب رومي، حضرت بلال حبشي، رضي الله عنهما ، ابوسفيان وويل: ما د نن په ډول معامله هيڅکله نه ده ليدلې چي غلامانو ته اجازه ورکول کيږي او موږ مشران خلک ناست يو ، موږ ته توجه هم نه کيږي، پر دې خبره سهيل وويل: اې خلکو! په خدای قسم ! زه دغه کراهت ستاسو دمخونو څخه محسوسوم که تاسو په غصه ياست نو پر خپل ځان غصه وکړئ ځکه چي ټولو خلکو ته د اسلام دعوت ورکړل سوی وو ، د هغوی سره تاسو ته هم درکړل سوی وو مګر نور خلک په اسلام کي په تلوار سره داخل سول او تاسو په راتللو کي ځنډ وکړ ، واورئ! يقينا هغه شرف او فضيلت چي په هغه کي دغه غلامانو تر تاسو سبقت يووړ، زيات دروند دی ، د قوت د لحاظ څخه تاسو ددغه دروازې څخه چي د هغه په باره کي تاسو په خپلو کي جګړه کوئ ددې وروسته يې وفرمايل: اې خلکو! دغه غلامان ستاسو څخه د اسلام په فضيلت کي وړاندي سول او س ستاسو لپاره هيڅ لار دغه فضيلت ته نسته چي په هغه کي هغوی ستاسو څخه مخکي سوي دي، اوس ددغه جهاد خيال ساتئ او د ځان لپاره ضروري خيال کړئ ممکن ده چي الله تعالی ستاسو د شهادت درجه په برخه کړي او تاسو په لوړو سترګو د الله جل جلاله سره يو ځای سئ ، بيا د جامو په څنډلو سره ولاړ سو

او شام ته ولاړی ، حسن وفرمایل: پر دغه سړي تعجب دی چي څومره عقلمند دی او په خپل قول کي رېښتونی دی، قسم په خدای! هیڅکله به الله ﷻ دغه بنده چي هغه ته ژر رسېدلی دی ، ددغه بنده په ډول جوړ نه کړي چي هغه ته په ځنډ سره رسېدلی دی .

۳۲۶. **سهیل بن بیضاء** ﷛: نوموړی قریشي دی دده د نسب یادونه دده د ورور سهل په یادونه کي سوې ده، په پیل کي مسلمان سو ، حبشې ته یې دوه واره هجرت وکړ ، په ټولو غزاوو کي شریک وو ، دده څخه عبدالله بن انیس او انس بن مالک روایت کوي، په نهم هجري کال کي د رسول الله ﷺ په ژوند مبارک کي چي د تبوک څخه یې تشریف راوړ، دی وفات سو ، هیڅ اولاد یې پاته نه سو .

۳۲۷. **سمره بن جندب** ﷛ : نوموړی الفزاري دی، د انصارو حلیف وو، حافظ وو، د رسول الله ﷺ څخه یې ډېر روایت کوی او دده څخه یوې ډلي روایت کړی دی، په بصره کي د ۵۹م هجري کال په پای کي وفات سو .

۳۲۸. **سلیمان بن صرد**: کنیت یې ابوالمطرف دی، خزاعي دی ، ډېر فاضل او عابد سړی وو ، کله چي مسلمانان په کوفه کي داخل سول د هغه وخت څخه په کوفه کي اوسېدی، عمر یې ۹۳ کاله وو ، صرد د صاد مهمله په ضمه او د راء په فتحه سره دی .

۳۲۹. **سلمان بن بریده** : اسلمي دی د خپل پلار او عمران بن حصین څخه روایت کوي او دده څخه علقمه او نور کسان روایت کوي، په ۱۵م هجري کال کي وفات سو .

۳۳۰. **سلمه بن اکوع** : کنیت یې ابومسلم دی، اسلمي مدني دی، تر درختي لاندي د بیعت کوونکو څخه دی، په پیاده جنګ کونکو کي تر ټولو زیات زړه ور او قوي وو ، په ۷۴ م هجري کال په مدینه کي وفات سو عمر یې اتیا کاله وو ، دده څخه ډېر خلګ روایت کوي.

۳۳۱. **سلمه بن هشام** ﷛ : قرشي مخزومي د حبشې د مهاجرینو څخه دی، ښه او صاحب فضل صحابي دی، د ابو جهل ورور دی، د اسلام په پیل کي یې اسلام راوړی وو ، د الله ﷻ په لاره کي یې ډېر تکلیفونه وزغمل ، په مکه کي نظر بند کړل سو ، کله چي به رسول الله ﷺ په قنوت کي د کمزورو او ضعیفانو لپاره دعاء کول نو دی به یې هم په هغه کي یادوی، دی په مکه کي د بندي کېدو په وجه د بدر په غزا کي شریک نه سو ، په ۱۴م هجري کال چي د حضرت عمر ﷛ خلافت وو د مرج الصغیر په جګړه کي وفات سو .

۳۳۲. **سلمه بن صخر** : انصاري بیاضي دی، ویل کیږي چي دده نوم سلیمان وو ، دا هغه کس دی چي د خپلي ښځي سره د ظهار کولو وروسته یې جماع کړې وه ، د ژړا او زاری

کونکو څخه دی هم وو، دده څخه سلیمان بن یسار او ابن مسیب روایت کوي، بخاري فرمایلي دي چې دده روایت معتبر نه دی.

۳۳۳. **سلمه بن المحبق**: کنیت یې ابو سنان دی، دمحبق نوم صخر بن عتبه الهذلي وو، په بصریانو کې شمېرل کیدی، په محبق کې د میم پېښ، حاء مهمله فتحه او باء موحده کسره او مشدد ده، په پای کې قاف دی، اصحاب حدیث باء ته فتحه ورکوي.

۳۳۴. **سلمه بن قیس**: اشجعي دی او ابوعاصم ورته شامي وایي، د کوفې په اوسېدونکو کې شمېرل کیږي، هلال بن یسار او نور کسان دده څخه روایت کوي.

۳۳۵. **سلمان فارسي** رضي الله عنه: کنیت یې ابو عبدالله دی، د رسول الله ﷺ ازاد سوی غلام دی، فارسي الاصل د رامهرمز اوسېدونکی دی، او ځیني وایي چې د اصفهان په شاوخوا کې یو کلي چې جي نومیږي، د هغه اوسېدونکی دی، د دین په طلب کې یې سفر وکړ، تر ټولو مخکې یې نصراني مذهب اختیار کړ او د هغه کتابونه یې وویل او پر هغه دین یې پرله پسې تکلیفونه و زغمل، بیا عربو ونیوی او د یهودیانو په لاس یې وپلوری، بیا هغه یهودیانو مکاتب کړ او رسول الله ﷺ د کتابت په بدله کې د هغه مرسته وکړل، ویل کیږي چې سلمان فارسي رضي الله عنه تقریبا د لسو بادارانو غلام پاته سوی دی، کله چې رسول الله ﷺ مدینې ته راوسېدی نو مسلمان سو، رسول الله ﷺ وفرمایل: سلمان رضي الله عنه زموږ د اهل بیتو څخه دی او دی هم دهغه کسانو څخه دی چې دهغوی د راتګ جنت الفردوس متمنی دی، عمر یې ډېر زیات وو، ویل کیږي چې د دوه نیم سوه کالو وو، او په ځینو روایتو کې درې نیم سوه کاله لیکلي دي، مګر اول قول صحیح دی، د خپل لاس ګټه یې خوړل او تنخواه به یې صدقه کول، دده د تعریف او فضائلو یوه لویه ذخیره ده، د رسول الله ﷺ څخه دده په تعریف کې ډېر حدیثونه منقول دي، په ۳۵م هجري کال کې د مدائن په ښار کې وفات سو، ابو هریره، انس رضي الله عنهما او نور کسان دده څخه روایت کوي.

۳۳۶. **سلمان بن عامر**: نوموړی ضبي دی، په بصریانو کې شمېرل کیږي او د ځینو علماؤ خیال دی چې د صحابه کرامو څخه په روایت کونکو کې دده څخه ماسوا بل ضبي نسته.

۳۳۷. **سفینه** رضي الله عنه: د رسول الله ﷺ ازاد سوی غلام دی، ځیني وایي چې د ام سلمه رضي الله عنها ازاد سوی غلام دی او تر ژوند پوري یې د رسول الله ﷺ د خدمت عهد اخیستی وو، ویل کیږي چې سفینه د هغه لقب وو او د هغه د نامه په اړه اختلاف دی، ځینو ورته ریاح ویلي دي او

ځینو مهران او ځینو رومان، عربي النسل وو، ځینو ورته فارسي الاصل ویلي دي، ویل کیږي چي رسول الله ﷺ په یو سفر کي وو او کله چي به یو څوک ستړی سو نو خپله توره، سپر، نېزه او نور سامان به یې پرده اچوی تر دې چي ډېر شیان ور باندي واچول سول، رسول الله ﷺ وفرمایل: د بار وړلو په وجه ته سفینه (یعني کښتۍ) ده، دده څخه دده زوی عبدالرحمن، محمد، زیاد او نورو ډېر کسان روایت کوي .

۳۳۸. **سالم بن معقل** : د ابوحذیفه بن عتبه بن ربیعه ازاد سوی غلام دی، د فارس د اصطرخ اوسېدونکی وو، په ازاد سوو کسانو کي لوی فاضل او د سترو صحابه کرامو څخه وو، په خاصو قاریانو کي شمېرل کیږي ځکه رسول الله ﷺ وفرمایل: د څلورو کسانو څخه قرآن زده کړئ: ۱: ابن ام عبد، ۲: ابی بن کعب، ۳: سالم بن معقل، ۴: معاذ بن جبل، نوموړی د بدر په غزا کي شریک وو، دده څخه ثابت بن قیس او ابن عمر روایت کوي .

۳۳۹. **سالم بن عبید** : نوموړی اشجعي دی، د اهل صفه څخه دی او په اهل کوفه کي شمېرل کیږي، دده څخه بلال بن یساف روایت کوي، یساف د یاء په فتحه سره دی، پر سین مهمله باندي شد نسته او په پای کي فاء ده .

۳۴۰. **سراقه بن مالک** : دغه سراقه بن مالک بن جعشم مدلجي کناني دی، قدید ته به تلی او راتلی، په اهل مدینه کي شمېرل کیږي، یوې لوی ډلي ور څخه روایت کړی دی، د ډېري لوړي درجې شاعر وو، په ۴۲م هجري کال کي وفات سو .

۳۴۱. **سفیان بن اسید** : دغه سفیان بن اسید الحضرمي الشامي دی، جبیر بن نفیر دده څخه د حمص په اړه روایت کړی دی، اسید د اکثرو په نزد د همزه په فتحه او د سین په کسره دی، او روایت مطابق د همزه او فتحه سین سره بېله یاء یعني اسده .

۳۴۲. **سفیان بن عبدالله** : دغه سفیان بن عبدالله بن زمعه دی، کنیت یې ابوعمرو ثقفي دی، په اهل طائف کي شمېرل کیږي، صحابي دی او په طائف کي د حضرت عمر رضی الله عنه له خوا حاکم وو .

۳۴۳. **سفیان بن ابي زهیر** : دغه سفیان دی د ابي زهیر زوی، نوموړی ازدي دی د شنوده قبیلې په اوسېدونکو حجازیانو کي دده حدیث مروج دي، ابن الزبیر او نور کسان دده څخه روایت کوي .

۳۴۴. **سخبرة** : دده کنیت ابوعبدالله ازدی دی، دده څخه دده زوی عبدالله روایت کوي، دده یو روایت په کتاب العلم کي دی، په سخبره کي پر سین باندي فتحه او خاء معجمه

ساکن او ياء موحده مفتوح ده .

۳۴۵. **السائب بن يزيد**: دده کنيت ابويزيد کندي دی، په دوهم هجري کال کي پيدا سو ، د اوو کالو په عمر د خپل پلار سره په حجة الوداع کي حاضر سو ، دده څخه زهري او محمد بن يوسف روايت کوي ، په ۸۰ م هجري کال کي وفات سو .

۳۴۶. **السائب بن خلاد** : دده کنيت ابوسهله دی، انصاري خزورجي دی، په ۹۱م هجري کال کي وفات سو ، دده څخه ابن خلاد او عطاء بن يسار روايت کوي .

۳۴۷. **سويد بن قيس** : دده کنيت ابوصفوان دی ، دده څخه سماک بن حرب روايت کوي او په کوفيانو کي شمېرل کيږي .

۳۴۸. **ابوسيف القين** : د رسول الله ﷺ د زوی ابراهيم رضاعي پلار وو ، دده نوم براء بن اوس انصاري دی، په خپل کنيت سره زيات مشهور دی، دده ښځه ام برده ده چي ابراهيم ته يې تی ورکړی دی .

۳۴۹. **ابوسعيد سعد بن مالک**: انصاري خدري دی، په خپل کنيت سره مشهور سو، حافظ حديث او صاحب فضل او عقل وو ، ډېر کم حديثونه روايت کوي، د صحابوو او تابعينو ډېر کسان دده څخه روايت کوي، په ۷۴ هجري کال کي ۸۴ کالو په عمر وفات سو او په جنت البقيع کي خاورو ته وسپارل سو ، خدر د خاء معجمه په ضمه او دال مهمله په سکون سره دی .

۳۵۰. **ابوسعيد بن المعلی** : دغه ابوسعيد حارث بن معلي انصاري زرقي دی، ۶۴ کاله عمر يې وو په ۶۴ م هجري کال کي وفات سو .

۳۵۱. **ابوسعيد بن ابي فضاله** : نوموړی حارثي انصاري دی، دده کنيت دده نوم دی ، په اهل مدينه کي شمېرل کيږي، دده حديث د حميد بن جعفر څخه روايت دي چي د خپل پلار او هغه د زياد بن مينا څخه روايت کوي، مينا د ميم په کسره او دوو ټکو والا ياء په سکون سره ده او بيا نون دی، په مد سره هم او بېله مده هم .

۳۵۲. **ابوسلمه** : دغه ابوسلمه د عبدالله بن عبدالاسد زوی دی، مخزوي قرشي دی، د رسول الله ﷺ د عمه زوی دی، دده مور بره د عبدالمطلب لور وه او د رسول الله ﷺ څخه مخکي د ام سلمه خاوند وو ، لس کاله وروسته يې اسلام راوړ، په ټولو غزاوو کي شريک وو ، تر دې چي په څلورم هجري کال په مدينه کي وفات سو ، دده کنيت د نامه څخه زيات مشهور دی .

۳۵۳. **ابوسفیان بن حرب** : دغه ابوسفیان بن صخر بن حرب د بنو امیه څخه دی، قرشي دی د حضرت معاویه رضی الله عنه پلار دی، د عام فیل څخه لس کاله مخکي پیدا سو، د اسلام څخه مخکي د قریشو په مشرانو کي ګڼل کیدی او د قریشو د مشرانو بېره به دده سره وو، د مکې د فتح په ورځ یې اسلام راوړ، دی هم د هغه خلګو څخه دی چي د هغوی په زړونو کي د اسلام محبت قائمولو لپاره به د هغوی سره خاص چلن کېدی، په اسلام کي تالیف قلب وکړل سو، د حنین په غزا کي یې ګډون وکړ او رسول الله ﷺ د هغه غنیمت څخه دی هم په مؤلفة القلوب کي په داخلولو سره سل اوښان او څلوېښت اوقیه سپین زر ورکړل، د طائف په غزا کي دده یوه سترګه وچاودل، بیا د یرموک تر غزا پوري یو سترګی وو، په یرموک کي پر دوهمه سترګه یې هم وار سو او بالکل ړوند سو، دده څخه عبدالله بن عباس رضی الله عنه روایت کوي، په ۳۴ م هجري کال په مدینه کي وفات سو او په جنت البقیع کي دفن سو.

۳۵۴. **ابوسفیان بن حارث** : دغه ابوسفیان بن حارث بن عبدالمطلب د رسول الله ﷺ د اکا زوی او تی رودونکی ورور دی، په داسي توګه چي حلیمه سعدیه دده ته هم تی ورکړی دی، یوه ډله وایي چي دده نوم مغیره وو او د بلي ډلي خیال وو چي نه بلکه دده نوم دده کنیت وو او مغیره خو د هغه ورور وو، دی د هغه شاعرانو څخه دی چي دهغوی پر نقش قدم نور کسان تلل، ده مخکي د رسول الله ﷺ بدوینه کړې وه چي د هغه جواب حسان بن ثابت رضی الله عنه ورکړی وو، بیا یې اسلام راوړ او په داسي توګه چي د رسول الله ﷺ مخته د شرم او حیاء څخه د سر لوړلو همت ونه سو، دی د مکې په فتحه کي په اسلام مشرف سو دده د اسلام راوړلو پېښه عجیبه او غریبه ده، حضرت علي رضی الله عنه ده ته وفرمایل چي د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سه او هغه ته ووایه : څه چي د یوسف علیه السلام ورونو یوسف علیه السلام ته ویلي وه (تاالله لقد اثرک الله علینا) یعني قسم په خدای! الله جل جلاله تاسو ته پر موږ باندي ترجیح درکړل، او دا خبره ثابته سول، چي موږ مجرمان او ګناه کاران یو، ابوسفیان همداسي وکړل، رسول الله ﷺ ددې په اورېدو سره وفرمایل: لا تثریب علیکم الیوم ...الخ، یعني نن ورځ پر تاسو هیڅ ملامتیا نسته، الله جل جلاله دي ستاسو خطاوي معاف کړي او هغه تر ټولو زیات رحم کوونکی دی، رسول الله ﷺ د هغه دغه توبه قبوله کړل او هغه اسلام راوړ، د هغه د مرګ دا سبب سو چي هغه حج وکړ او کله چي نائي د هغه سر وخروی نو یوه مسه چي د هغه په سر کي وه پرې کړل، له دې کبله هغه په تکلیف اخته سو تر

دې چي د حج څخه په ستنېدو سره په ۲۰ م هجري كال په مدينه كي وفات سو او د عقيل بن ابي طالب په سراى كي دفن كړل سو ، حضرت عمر رضي الله عنه يې د جنازې لمونځ وركړ .

۳۵۵. **ابوالسمح** رضي الله عنه : دغه ابو السمح دى ، دده نوم اياد وو ، د رسول الله ﷺ خادم وو ، او ځيني وايي چي د رسول الله ﷺ ازاد سوى غلام وو ، په خپل كنيت سره زيات مشهور دى ، اياد د همزه په كسره او د ياء په تخفيف سره دى ، د وفات ځاى يې معلوم نه دى .

۳۵۶. **ابوسهله** : دغه ابو سهله سائب دى چي د خلاد زوى دى دده يادونه په مخكني حرف كي راغلې ده .

## تابعين رحمة الله عليهم .

۳۵۷. **سعيد بن المسيب** عليه السلام : كنيت يې ابو محمد دى ، قريشي مخزومي مدني دى ، كله چي د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت دوه كاله تېر سول نو دى پيدا سو او د هغه تابعينو څخه دى چي پر نقش اول (يعني د صحابه كرامو پر ژوند) باندي روان وو ، د فقه ، حديث ، زهد او عبادت جامع وو ، دده شيانو د لېدو لپاره ده ته اشاره كيږي او دى مخصوص كيږي ، د حضرت ابوهريره رضي الله عنه د احاديثو او د حضرت عمر رضي الله عنه د فيصلو تر ټولو لوى عالم وو ، د صحابه كرامو د يوې لوى ډلي سره ده ليدنه كړې وه او د هغه ټولو څخه يې روايات نقل كړي دي ، او دده څخه زهري او ډېرو تابعينو ، د مكحول بيان دى چي ما د علم په طلب كي ټوله مځكه وڅېړل مگر د ابن مسيب څخه لوى عالم او فقيه مي پيدا نه كړ او خپله ابن مسيب ويل : ما څلوېښت حجونه كړي دي ، په ۹۳م هجري كال كي وفات سو .

۳۵۸. • **سعيد بن عبدالعزيز** : نومړى تنوخي دمشقي دى ، د اوزاعي په زمانه كي او دهغه څخه وروسته هم د اهل شام په فقهاوو كي شمېرل كيږي ، د احمد بيان دى چي د شام په هيواد كي د سعيد بن عبدالعزيز او اوزاعي څخه زيات د هيچا حديثونه صحيح نه دي ، او ويل يې چي په هغه او اوزاعي كي زما په نزد هيڅ فرق نسته ، سعيد به ډېر زيات ژړل ، د هغه څخه دده وجه وپوښتل سول نو وه يې فرمايل : كله زه د لمانځه لپاره درېږم نو همېشه دوږخ په متشكل كېدو سره زما مخته راوستل سي ، د نسائي وينا ده چي دى باوري دى ، د مكحول او زهري څخه روايت كوي او دده څخه ثوري روايت كوي ، په ۱۶۷م هجري كال كي وفات سو عمر يې تقريبا اوويا كاله وو .

۳۵۹. **سعيد بن ابي الحسن** رضي الله عنه : سعيد بن ابي الحسن دى او د هغه نوم يسار دى ، د

بصري او سېدونکی او تابعي دی، دی د ابن عباس او ابو هریره رضي الله عنهما څخه روایت کوي او دده څخه قتاده او عون، په ۱۰۹م هجري کال کي د خپل ورور څخه یو کال مخکي وفات سو.

۳۶۰. **سعید بن حارث** رحمه الله: دغه سعید بن حارث بن معلی انصاري حجازي دی، د مدینې قاضي او لوی مشهور تابعي دی، ده د ابن عمر، ابو سعید او جابر رضي الله عنهم څخه او دده څخه ډېرو خلګو روایت کړی دی.

۳۶۱. **سعید بن ابي هند**: دغه سعید بن ابي هند د سمره ازاد سوی غلام دی، د ابوموسی اشعري، ابوهریره او ابن عباس رضي الله عنهم څخه روایت کوي او دده څخه دده زوی عبدالله او نافع بن عمر الحجمي روایت کوي، مشهور باوري دی.

۳۶۲. **سعید بن جبیر** رحمه الله: نوموړی اسدي کوفي دی، له سترو تابعینو څخه دی، د ابومسعود، ابن عباس، ابن عمر، ابن زبیر او انس رضي الله عنهم څخه یې علم تر لاسه کړ او دده څخه ډېرو خلګو، د شعبان په میاشت کي په ۶۵م هجري کال د ۴۹ کالو په عمر حجاج بن یوسف قتل کړ او خپله حجاج په رمضان کي مړ سو، او د ځینو په نزد په هغه کال په شوال کي، او داسي هم وایي چي دده د شهادت څخه شپږ میاشتي وروسته مړ سو، دده څخه وروسته حجاج د هیچا پر وژنه قادر نه سو ځکه چي سعید رحمه الله، حجاج ته ښېرا کړې وه کله چي حجاج هغه ته ویلي وه چي وښیه ته څرنګه ووژل سې، زه تا هم هغسي وژنم، سعید رحمه الله ورته وویل: اې حجاج! څرنګه چي ته غواړې هم هغسي وکړه، ځکه قسم په خدای! څرنګه چي ته ما وژنې همدارنګه په آخرت کي به زه تا وژنم، حجاج ورته وویل: ایا ته غواړې چي زه تا معاف کړم؟ هغه ورته وویل: که عفو واقع وي نو هغه به د الله جل جلاله له خوا وي او پاته سوې ته نو په دې کي ستا دپاره هیڅ عذر او خلاصون نسته، حجاج ددې په اوربدو سره وویل: دی بوځئ او وه یې وژنئ، کله چي یې هغه د دروازې څخه وایستی نو هغه وخندل، ددې خبر حجاج ته ورسول سو نو حکم یې وکړ چي بېرته یې راولئ، نو هغه بېرته راوستل سو او دهغه څخه یې پوښتنه وکړل چي ستا دخندا سبب څه وو؟ هغه وویل: ما ته د الله جل جلاله په مقابله کي ستا بې باکي او د الله جل جلاله ستا په مقابله کي حلم باندي تعجب کېږي، حجاج ددې په اوربدو سره حکم وکړ چي پوست دې یې وایستل سي، نو پوست یې وایستل سو او بیا یې حکم وکړ چي مړ دې سي، ددې وروسته سعید رحمه الله وفرمایل: وجهت وجهي للذي فطر السموات والارض حنیفا وما انا من المشرکین، یعني ما خپل مخ د هري خوا څخه په اړولو سره الله جل جلاله ته چي د آسمانو او مځکي خالق دی او زه د شرک کوونکو څخه نه یم،

حجاج ددې په اوربدو سره حکم وکړ چي دی د قبلې مخالف خوا ته ټینګ وتړئ ، سعید رضی الله عنه وفرمایل: فاینما تولوا فثم وجه الله، کومي خوا ته چي مخ کوئ هغه خوا ته الله جل جلاله دی، بیا حجاج حکم وکړ او پوړموخي پرې ایستل سو ، سعید وفرمایل: منها خلقنا کم وفیها نعیدکم ومنها نخرجکم تارة اخری، حجاج ددې په اوربدو سره حکم وکړ چي دی ذبح کړئ، سعید وفرمایل: زه شاهدي ادا کوم او دلیل وړاندي کوم ددې خبري چي د الله جل جلاله څخه ماسوا بل معبود نسته ، هغه یوازي دی د هغه هیڅوک شریک نسته او ددې خبري شاهدي ادا کوم چي محمد صلی الله علیه وسلم د هغه بنده او رسول دی، دغه حجت زما له خوا سنبال کړه تر دې چي ته زما سره د قیامت په ورځ یو ځای سې، بیا سعید دعاء وکړل چي اې الله! حجاج زما وروسته د بل چا پر وژنه مه قادر کوې، ددې وروسته هغه په پوست ذبح کړل سو، ویل کیږي چي حجاج د هغه د وژني وروسته پنځلس ورځي نور ژوندی پاته سو ، ددې وروسته د حجاج په نس کي د چینجیانو ناروغي پیدا سول ، حجاج حکیم راوغوښتی چي وه یې ګوري ، حکیم د غوښو یوه ورسته ټوټه راوغوښتل او هغه یې په تار سره په ستوني کي دننه وزړول او تر یو وخت پوري یې همداسي پرېښودل ، ددې وروسته حکیم هغه راوایستل نو وه یې لیدل چي د ویني څخه ډکه سوې وه، حکیم پوه سو چي دی اوس دی پاته کېدونکی نه دی، حجاج به د خپل ژوند په آخر کي چغي وهلې چي په ما او سعید څه وسول، کا ، چي زه بېده سم نو زما پښه نیسي او هغه ښوروي، سعید بن جبیر رضی الله عنه د عراق په سیمه کي دفن کړل سو او د هغه قبر هم هلته دی .

۳۶۳. **سعید بن ابراهیم** : دغه سعید بن ابراهیم بن عبدالرحمن بن عوف زهري قرشي د مدینې قاضي او دمدینې د سترو تابعینو څخه دی، د خپل پلار او نورو څخه یې د حدیثو اوربدل کړي دي ، په ۱۳۵هجري کال کي د ۷۲ کالو په عمر وفات سو .

۳۶۴. **سعید بن هشام** : نومړی انصاري دی، د لوړي درجې تابعي دی، د بي بي عائشې او ابن عمر رضی الله عنهما څخه یې حدیث اوربدلي دي او دده څخه حسن روایت کوي، دده حدیث په اهل بصره کي تر لاسه کیږي .

۳۶۵. **سفیان بن دینار**: نومړی د خرما پلورونکی او کوفي دی، د سعید بن جبیر او معصب بن سعد رضی الله عنهما څخه روایت کوي او دده څخه ابن مبارک او نور کسان روایت کوي، د حضرت معاویه په زمانه کي پیدا سو او د رسول الله صلی الله علیه وسلم د مزار زیارت یې په برخه سو.

۳۶۶. **سفیان ثوري** : دغه سفیان بن سعید ثوري کوفي امام المسلمین دی، او پر مخلوق

باندي د الله ﷻ حجة الکامله دی، په خپله زمانه کي د فقه او اجتهاد جامع وو، د حديث لوی عالم، زاهد، عابد، متقي او باوري وو، په خاصه توګه د علم حديث مرجع وو، ټول خلک دده پر ديندارۍ، زهد، پرهيزګارۍ او باوري کېدو متفق دي، هيڅوک داسي نسته چي دده په اړه اختلاف کوي، د مجتهدينو امامانو څخه دی، په قطب اسلام او ارکان دين کي هم شمېرل کيږي، په ۹۹ م هجري کال د سليمان بن عبد الملک په زمانه کي پيدا سو، دده څخه يوې لوی ډلي روايت کړی دی دده څخه معمر، اوزاعي، ابن جريج، مالک، شعبه، ابن عينيه، فضيل بن عياض او نور کسان روايت کوي، په ۱۶۱م هجري کال په بصره کي وفات سو.

۳۶۷. **سفيان بن عينيه**: دغه سفيان بن عينيه هلالي دی، د هغه ازاد سوی غلام دی، په ۱۰۷هجري کال په کوفه کي پيدا سو، نوموړی امام او عالم وو، د محدثينو په نزد د باور وړ دی، حجة في الحديث، زاهد او متورع وو، دده د حديثو پر صحت باندي د ټولو اتفاق دی، دی د زهري څخه او د هغه څخه ماسوا د نورو ډېرو خلکو څخه حديث اورېدلي دي او دده څخه اعمش، ثوري، شعبه، شافعي، احمد او نور ډېر محدثين روايت کوي، د ټولو وينا ده که مالک او سفيان نه وای نو د حجاج علم به تللای وای، په ۱۹۸ هجري کال کي د رجب په اوله نېټه په مکه کي وفات سو او په جحون کي دفن سو، اويا حجونه يې کړي وه.

۳۶۸. **سليمان بن حرب**: نوموړی بصري او دمکې قاضي دی، د بصريانو د سترو خلکو څخه دی، ابو حاتم دده په اړه وفرمايل چي دی د امامانو څخه وو، تقريبا لس زره حديثونه دده څخه روايت سوي دي حال دا چي ما دده په لاس کي کتاب نه دی ليدلی او په بغداد کي زه دده په مجلس کي حاضر سوم، تقريبا د ګډون کونکو شمېر به يې څلوېښت زره وو، د ۱۴۰ هـ د صفر په مياشت کي پيدا سو او تر ۱۵۸ هجري کال پوري د حديث په پلټنه کي سرګردان وو، تر نولس کلو پوري د حماد بن زيد په خدمت کي وو، دده څخه احمد او نور روايت کوي، په ۲۳۴هجري کال کي وفات سو.

۳۶۹. **سليمان بن ابي مسلم**: دغه سلمان بن ابي مسلم احول مکي دی او د ابن نجيح ماما دی، د حجاز د تابعينو او علماؤ څخه لوی باوري ګڼل کيږي، ده د طاؤس او ابو سلمه څخه د حديثو اورېدل کړي دي او دده څخه ابن عينيه، ابن جريج او شعبه روايت کوي.

۳۷۰. **سليمان بن ابي حثمه**: نوموړی قريشي او عدوي دی، په مسلمانانو کي لوی فاضل او صالح ګڼل کيږي، د سترو تابعينو څخه دی، دده څخه دده زوی ابوبکر روايت کوي.

۳۷۱. **سليمان بن مولى ميمونه**: دغه سليمان بن مولى ميمونه دى او دى مشهور په ابن يسار دى، نوموړى تابعي دى.

۳۷۲. **سليمان بن عامر**: دغه سليمان بن عامر كندي دى، نوموړى د ربيع بن انس څخه روايت كوي او دده څخه ابن راهويه او د هغه څخه ماسوا نور ډېر خلګ روايت كوي.

۳۷۳. **سليمان بن ابي عبدالله**: نوموړى تابعي دى د مهاجرو صحابه كرامو زمانه يې ترلاسه كړې ده، د سعد بن ابي وقاص او ابوهريره رضي الله عنهما څخه روايت كوي، امام ابوداؤد دده فضائل په مدينه كي ذكر كړي دي.

۳۷۴. **سليمان بن يسار**: دده كنيت ابوايوب دى، د ميمونې رضي الله عنها ازاد سوى غلام دى، دده ورور عطاء بن يسار دى، د اهل مدينه څخه دى، د ستري درجې تابعي دى، فقيه، فاضل، د باور وړ، عابد، پرهيزګار او حجت وو، د اوو فقهاوو څخه يو دى، په ۱۰۷ هجري كال كي وفات سو او عمر يې ۷۳ كاله وو.

۳۷۵. **سالم بن عبدالله**: دغه سالم د حضرت عبدالله بن عمر بن خطاب رضي الله عنهم زوى دى، ابوعمرو يې كنيت دى، قريشي، عدوي او مدني دى، دمدينې د فقهاؤ څخه دى او د تابعينو سرخيل او باوري علماؤ څخه دى، په ۱۰۶ هجري كال په مدينه منوره كي وفات سو.

۳۷۶. **سالم بن ابي الجعد**: دغه سالم بن ابي الجعد دى، دده نوم رافع كوفي دى، مشهور او باوري تابعي دى، د ابن عمرو ،جابر او انس رضي الله عنهم څخه يې حديث اورېدلي دي او دده څخه منصور او اعمش روايت كوي، په ۹۷م هجري كال كي وفات سو.

۳۷۷. **سيار بن سلامه**: دده كنيت ابوالمنهال بصري تميمي دى، دمشهورو تابعينو څخه دى.

۳۷۸. **سماک بن حرب**: نوموړى ذهلي دى، كنيت يې ابومغيره دى، د جابرن سمره او نعمان بن بشير رضي الله عنهما څخه روايت كوي او دده څخه شعبه او زاهده روايت كوي، دده څخه تقريبا دوه سوه حديثونه مروي دي، باوري وو مګر حافظه يې كمزورې سوې وه، دده ته ابن مبارک او شعبه ضعيف ويلي دي، په ۱۳۲م هجري كال كي وفات سو.

۳۷۹. **سويد بن وهب**: نوموړى د ابن عجلان د استاذانو څخه دى.

۳۸۰. **ابوالسائب**: د هشام بن زهره ازاد سوى غلام دى، تابعي دى، د ابوهريره، ابوسعيد او مغيره رضي الله عنهم څخه روايت كوي او دده څخه علاء بن عبدالرحمن روايت كوي.

۳۸۱. **ابوسلمه**: د خپل اكا عبدالله بن عبدالرحمن بن عوف څخه روايت كوي، زهري قريشي دى، د يوه قول سره سم د مدينې د مشهورو اوو فقهاؤ څخه دى، مشهور تابعي

دی، دده کنیت دده نوم دی او دده څخه زیات حدیثونه روایت دي، د ابن عباس، ابوهریره، ابن عمر او نورو ﷺ څخه یې حدیثونه اورېدلي دي، دده څخه زهري، یحیی بن کثیر، شعبي او نور حضرات روایت کوي، په ۹۴م هجري کال د ۷۲ کالو په عمر وفات سو.

۳۸۲. **ابوسوره**: د خپل اکا ابوایوب او عدي بن حاتم څخه روایت کوي او دده څخه واصل بن سائب او یحیی بن جابر طائي ابن معین روایت کوي، شعبي او نورو ورته ضعیف ویلي دي، امام ترمذي رحمه الله وایي: ما دمحمد بن اسماعیل څخه واورېدل چي د ابوسوره حدیثونه غیر معروف او نامشهور دي.

## صحابي ښځي

۳۸۳. **سوده** رضي الله عنها: دغه سوده بنت زمعه ام المؤمنین ده، د اسلام په شروع کي مسلمانه سوې ده، د خپل اکا زوی سکران بن عمرو په نکاح کي وه، کله چي یې خاوند مړ سو نو رسول الله ﷺ ورسره نکاح وکړل او په مکه کي یې خلوت ورسره وکړ، دغه نکاح د بي بي خدیجې رضي الله عنها د وفات څخه وروسته او د بي بي عائشې رضي الله عنها د نکاح څخه مخکي وسول، مدینې ته یې هجرت وکړ، کله چي سپین سرې سول نو رسول الله ﷺ وغوښتل چي طلاق ورکړي مگر هغې رسول الله ﷺ ته درخواست وکړ چي طلاق نه ورکوي او هغه د خپل نوبت ورځ بي بي عائشې رضي الله عنها ته ورکړل، نو رسول الله ﷺ په خپله نکاح کي وساتل، د شوال په میاشت کي په ۵۴ م هجري کال په مدینه کي وفات سول.

۳۸۴. **ام سلمه** رضي الله عنها: دغه ام سلمه ام المؤمنین هند بنت ابي امیه ده، د رسول الله ﷺ څخه مخکي د ابوسلمه په نکاح کي وه، ابوسلمه په څلورم یا دریم هجري کال وفات سو نو د رسول الله ﷺ سره یې نکاح وکړل، په ۵۹ م هجري کال کي وفات سول او په جنت البقیع کي دفن سول، عمر یې ۸۴ کاله وو، ددې څخه ابن عباس، بي بي عائشه، زینب ددې لور، ددې زوی، ابن المسیب، د صحابه کرامو او تابعینو یوه ډله روایت کوي.

۳۸۵. **ام سلیم** رضي الله عنها: دغه ام سلیم د ملحان لور ده، ددې په نامه کي اختلاف دی، د مختلفو اقوالو سره سم سهله، رمله، ملیکه، غمیصه او رمیصا بیان سوي دي، مالک بن نضر دانس بن مالک رضي الله عنه پلار ددې سره نکاح وکړل، ددې څخه انس رضي الله عنه پیدا سو، بیا مالک بن نضر د کفر په حالت کي قتل کړل سو، ددې څخه وروسته دې اسلام راوړ، ابوطلحه چي مشرک وو دې ته یې نکاح پیغام ورکړ مگر دې انکار وکړ او هغه ته یې د اسلام دعوت

ورکړ، کله چي ابو طلحه اسلام راوړ نو هغه ته يې وويل: اوس واده در سره کوم او ستا څخه هيڅ مهر نه اخلم، نو ابو طلحه ورسره واده وکړ، ددې څخه ډېر کسان روايت کوي، ملحان د ميم په کسره او سکون او حاء مهمله سره دی.

۳۸۶. **سبعيه** ﷺ: د حارث لور ده، د اسلم قبيلې څخه ده، د اسعد بن خوله په نکاح کي وه، بيا د حجة الوداع په کال کي وفات سول، ددې حديث په کوفه کي زيات دي او ډېر کسان ور څخه روايت کوي.

۳۸۷. **سهيمه بنت عمر** ﷺ: د مزينه قبيلې څخه ده، د رکانه بن عبد زيد په نکاح کي وه، ددې يادونه د طلاق په باب کي راځي، سهيمه د سين په پېښ او د هاء په زور سره ده.

۳۸۸. **سلامه بنت حر**: دغه سلامه بنت حر ازديه ده، فزاريه هم ورته ويل کيږي، ددې حديث په کوفه کي روايت دي دا هغه لفظ حر دی چي د عبد په مقابله کي استعماليږي.

۳۸۹. **سلمی** ﷺ: دغه سلمی د رافع مور او د ابورافع زوجه ده، ددې څخه د دې زوی عبد الله بن علي روايت کوي، د ابراهيم بن رسول الله ﷺ دايه (تی ورکوونکې) وه او بي بي فاطمې ﷺ ته د بنت عميس سره دې غسل ورکړ.

## ش - صحابه کرام ﷺ.

۳۹۰. **شداد بن اوس**: کنيت يې ابوليلی انصاري دی، د حسان بن ثابت وراره دی، په بيت المقدس کي هستوګن وو، د شاميانو څخه شمېرل کيږي، په ۵۸ م هجري کال د ۷۵ کالو په عمر د شام په هيواد کي وفات سو، عباده بن صامت او ابودرداء ﷺ به ويل: شداد د هغه کسانو څخه دی چي د علم او حلم په دولت سره نازول سوي وه.

۳۹۱. **شريح بن هاني**: دغه شريح بن هاني ابو المقدام حارثي دی، د رسول الله ﷺ زمانه يې تر لاسه کړل او په دغه شريح نامه سره رسول الله ﷺ دده د پلار هاني بن زيد کنيت اېښی وو او فرمايلي يې وه چي ته ابو شريح يې، شريح د حضرت علي ﷺ د ملګرو څخه وو، دده زوی مقدام دده څخه روايت کوي.

۳۹۲. **شريد بن سويد**: دغه شريد بن سويد ثقفي دی او ويل کيږي چي دی د حضرت موت وو، مګر د ثقيف قبيلې څخه شمېرل کيږي، او ځيني يې د اهل طائف څخه ګڼي، دده حديث په حجازيانو کي تر لاسه کيږي دده څخه ډېر کسان روايت کوي.

۳۹۳. **شکل بن حميد**: دغه شکل بن حميد عيسی دی، دده څخه د ده د زوی شتير ماسوا

بل هیڅوک روایت نه کوي ، په کوفیانو کې شمېرل کیږي، شکل د شین او کاف په زور او لام سره دی، شتیر د شتر تصغیر دی .

۳۹۴. **شريک بن سحماء** : سحماء دده د مور نوم دی چې د هغې په نسبت سره مشهور دی، دده پلار عبده بن مغیث دی چې د هغه یادونه د لعان په مسائلو کې راغلې او دا هغه دی چې هلال بن امیه د خپلې ښځې په اړه تهمت پر لګولی وو او ددې څخه وروسته لعان سوی وو ، دی د خپل پلار سره د احد په غزا کې شریک سوی وو ، عبده د عین او باء په زور سره دی او ځینې پر باء موحده باندې جزم وایي .

۳۹۵. **ابوشبرمة** : د شبرمه په لفظ کې پر شین باندې پېښ، باء ساکنه او پر راء باندې پېښ دی، صحابي دی دده نسبت معلوم نه دی د حضرت عباس رضي الله عنه په حدیث کې د حج په اړه دده یادونه راغلې د رسول الله ﷺ په زمانه کې وفات سو .

۳۹٦. **ابوشريح** : دغه ابوشریح خویلد بن عمرو کعبي عدوي خزاعي دی، د مکې د فتح څخه مخکې یې اسلام راوړ، په ۶۸م هجري کال په مدینه کې وفات سو ، دده څخه ډېر کسان روایت کوي، دی په خپل کنیت سره زیات مشهور دی، په اهل حجازو کې شمېرل کیږي .

## تابعين رحمهم الله .

۳۹۷. **شقيق بن ابي سلمة** : دغه شقیق بن ابي سلمة دی، ابووائل اسدي یې کنیت دی، ده که څه هم د رسول الله ﷺ زمانه تر لاسه کړې وه مګر د رسول الله ﷺ څخه یې څه اورېدلي نه دي، ویل به یې چې زما عمر د بعثت څخه لس کاله مخکې وو ، هغه وخت به ما خپل پسونه پېول ، د ډېرو صحابه کرامو څخه روایت کوي چې په هغوی کې عمر بن خطاب او ابن مسعود دی، د ابن مسعود د خاصو خلګو او دهغوی د لوی درجې اصحابو څخه وو ، دده څخه ډېر حدیثونه روایت دي، باوري او حجت وو ، د حج په زمانه کې وفات سو او یو قول دادی چې په ۹۹م هجري کال کې وفات سو .

۳۹۸. **شريق الهوزني**: تابعي دی، د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روایت کوي او دده څخه ازهر حراري روایت کوي .

۳۹۹. **شريک بن شهاب** : نوموړی حارثي بصري دي، د تابعینو څخه دی ، د ابي برزه اسلمي څخه روایت کوي او ارزق بن قیس دده څخه روایت کوي مګر په دې اړه مشهور نه دی.

۴۰۰. **شریح بن عبید** : نوموړی حضرمي دی ، د ابوامامه او جبیر بن نفیر څخه روایت کوي او دده څخه صفوان بن عمرو او معاویه بن صالح روایت کوي .

۴۰۱. **ابوالشعثاء** : نوموړی سلیم بن اسود محاربي کوفي دی، د مشهورو او سترو تابعینو څخه دی، دحجاج په زمانه کي وفات سو .

۴۰۲. **شعبي** : عامر بن شراحیل کوفي دی، او مشهور ذي علم خلګو څخه یو دی، دحضرت عمر رضی الله عنه د خلافت په زمانه کي پیدا سو ، د ډېرو صحابه کرامو څخه روایت کوي او دده څخه یوه لویه ډله روایت کوي، فرمایي چي ما پنځه سوه صحابه کرام لیدلي دي او هیڅکله یې حرف پر کاغذ نه دی لیکلی او ما ته چي کوم حدیث بیان سوی دی ما هغه په حافظه کي خوندي کړی دی ، د ابن عینیه قول دی چي ابن عباس د خپلي زمانې او ثوري د خپلي زمانې امام وو ، زهري ویلي دي: علماء خو څلور تېر سوي دي: یعني ابن المسیب په مدینه کي، شعبي په کوفه کي، حسن په بصره کي او مکحول په شام کي، په ۱۰۴هجري کال د ۸۲ کالو په عمر وفات سو .

۴۰۳. **ابن شهاب** : نوموړی زهري دی، دده یادونه د زاء په حرف کي تېره سوې ده .

۴۰۴. **شیبه بن ربیعة** : دغه شیبه بن ربیعه بن عبدالشمس بن عبد مناف جاهلي دی، د بدر په غزا کي حضرت علي رضی الله عنه ووژی ، دی مشرک وو .

## تابعي ښځي.

۴۰۵. **الشفاء بنت عبدالله** : دغه شفاء بنت عبدالله قریشي عدوي ده، احمد بن صالح مصري وایي چي ددې نوم لیلی دی او شفاء یې لقب دی چي پر نامه یې غالب سو ، د هجرت څخه مخکي یې اسلام راوړی وو ، ډېره عاقله او فاضله ښځه وه، رسول الله ﷺ به ددې کور ته کله نا کله راتلی او د غرمې خوب به یې کوی، دې د رسول الله ﷺ لپاره د بسترې بندوبست کړی وو ، رسول الله ﷺ به پر هغه بسترې ارام کوی، شفاء د شین په کسره او فاء په مد سره دی .

۴۰۶. **ام شریک غزنة**: دغه ام شریک غزنة بنت دودان قریشیه عامریه صحابیه ده، دودان د دال مهمله په پېښ سره دی .

۴۰۷. **ام شریک انصاریه** : ددې یادونه په کتاب العده کي د فاطمه بنت قیس په حدیث کي راغلې ده، کله چي رسول الله ﷺ فاطمې ته فرمایلي وه چي ولاړه سه او د ام شریک په

کور کي عده پوره کړه، او ځينو ويلي دي چي د هغې په کور کي د عدې تېرولو حکم رسول الله ﷺ ورکړی وو ، هغه ام شريک اولی ده مګر د هغوی دغه قول صحيح نه دی ځکه چي ام شريک اولی قريشي لوی بن غالب د اولاد څخه وه او دغه انصاريه ده ، ځکه چي د فاطمې بنت قيس په ځينو روايتو کي راغلي دي چي ام شريک د انصارو څخه يوه شتمنه ښځه ده.

## ص - صحابه کرام رضي الله عنهم .

۴۰۸. **صفوان بن عسال** : دغه صفوان بن عسال مرادي دی، د کوفې اوسېدونکی وو، دده حديث په اهل کوفه کي شائع وه، په عسال کي پر عين باندي زور او پر سين مهمله شد او لام دی.

۴۰۹. **صفوان بن معطل** : دده کنيت ابوعمرو سلمي دی ، د خندق په غزا او نورو ټولو غزاوو کي شريک وو، دده په اړه ويل کيږي چي ډېر نېک، صاحب فضل او زړه ور انسان وو، د رمينيه په غزا کي په ۱۰م هجري کال شهيد سو، عمر يې تقريبا شپېته کاله وو .

۴۱۰. **صفوان بن اميه**: دغه صفوان بن اميه بن خلف حجمي قريشي دی د مکې د فتح په ورځ د مسلمانانو څخه وتښتېدی ، بيا عمير بن وهب او دهغه زوی وهب بن عمير د رسول الله ﷺ څخه دده لپاره پناه غوښتې وه ، له دې کبله رسول الله ﷺ ورته پناه ورکړې وه او هغه دواړو ته يې د امن په توګه خپل څادر ورکړ، بيا وهب ، صفوان بن اميه پيدا کړ او رسول الله ﷺ ته يې راوست نو صفوان د رسول الله ﷺ په مخکي په درېدو سره عرض وکړ چي وهب بن عمير وايي چي تاسو ما ته امن راکړی دی نو زه تر دغه دوو مياشتو پوري ازاد نه ګرځم، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: اې ابوهب! راکښنته سه، او ستا دپاره څلور مياشتي د ازاد ګرځېدلو اجازه ده نو صفوان راکښنته سو او د رسول الله ﷺ سره د حنين او طائف په غزاوو کي د کفر په حالت کي شريک سو . رسول الله ﷺ د غنيمت د مال څخه ډېر مال ورکړ . پر دغه خبره صفوان په خدای قسم وکړ چي د دغه ډېر غنيمت په ورکولو سره د نبي د پاک نفس څخه ماسوا بل څوک خوشحاله کېدای نه سي او په هغه ورځ يې اسلام راوړ او په مکه کي يې قيام وکړ. بيا يې مدينې ته هجرت وکړ او د حضرت عباس رضي الله عنه سره يې قيام وکړ، او د خپل هجرت پېښنه يې د رسول الله ﷺ په وړاندي بيان کړل. رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: د مکې د فتح څخه وروسته هجرت نسته . صفوان د جاهليت په زمانه کي دقريشو په مشرانو کي شمېرل کېدی د هغه ښځي يوه مياشت مخکي د هغه څخه اسلام

راوړی وو ، کله چي صفوان هم مسلمان سو نو د دواړو نکاح برقرار و ساتل سوه، په ۴۲م هجري کال په مکه کي صفوان وفات سو ، دده څخه ډېر کسان روایت کوي او دی د هغه کسانو څخه دی چي د هغوی سره به پر اسلام باندي د راسخ کولو لپاره د تالیف قلب معامله کېدل، دی په مکه کي مخلص مسلمان سو او دی د قریشو د فصیحانو څخه وو.

۴۱۱. **صخر بن وداعه** : دغه صخر بن وداعه غامدي دی او دغه ابن عمرو ابن عبدالله بن کعب دی چي د ازد قبیلې څخه دی که څه هم په طائف کي وو مګر په اهل حجاز کي شمېرل کیږي.

۴۱۲. **صخر بن حرب**: کنیت یې ابوسفیان قریشي دی د امیر معاویه پلار دی ، دده یادونه د سین په حرف کي سوې ده.

۴۱۳. **صهیب بن سنان** : دغه صهیب بن سنان د عبدالله بن جدعان تیمي ازاد سوی غلام دی، دده کنیت ابویحیی دی ، د دجله او فرات په منځ کي په موصل نامي ښار کي دده سرای وو ، رومیانو پر دغه سیمو حمله وکړل او دی یې بندي کړ ، تر اوسه دی ماشوم وو ، روزنه یې په روم کي وسول ، رومیانو ذُکلب قبیلې څخه رانیوی او مکې ته یې راوست، د کلب قبیلې څخه عبدالله بن جدعان رانیوی او ازاد یې کړ ، دی هم تر مرګه پوري د عبدالله سره وو ، ویل کیږي چي کله دی په روم کي لوی سو او د عقل خاوند سو نو په تېښته مکې ته راغلی او د عبدالله بن جدعان حلیف سو ، په مکه کي مسلمان سو او دا هم ویل کیږي چي رسول الله ﷺ په دار ارقم کي تقریبا د دېرشو کسانو سره وو نو دی او عمار بن یاسر په یوه ورځ راغلل او اسلام یې قبول کړ ، دی هم دهغه کسانو څخه وو چي کمزوري ګڼل کېدل او په مکه کي تکلیفونه ورکول کېدل ځکه نو ده مدینې ته هجرت وکړ او دده په اړه دغه آیت نازل سوی دی: (ومن الناس من یشتري نفسه ...الخ) دده څخه یوه لویه ډله روایت کوي، په ۸۰م هجري کال په مدینه کي د ۹۹ کالو په عمر وفات سو او په جنت البقیع کي خاورو ته وسپارل سو ، جدعان د جیم په پېښ او دال په جزم سره دی او تر دې وروسته عین مهمله دی.

۴۱۴. **الصعب بن جثامه**: نوموړی لیثي دی، په وران ابواء کي دده هستوګنه وه، دده حدیث په حجاز کي تر لاسه کیږي، د عبدالله بن عباس ﷺ او نورو څخه روایت کوي، د حضرت ابوبکر صدیق ﷺ د خلافت په زمانه کي وفات سو ، جثامه د جیم په زور او ثاء مثلثه په تشدید سره دی.

۴۱۵. **الصنابحي** : دغه صنابحي دی ، په دغه لفظ کي پر باندي پیښ او نون غیر مشدد دی، او یو لفظ د باء او حاء مهمله دی، دغه صنابحي ځکه مشهور دی چي صنابح بن زاهر بن عامر ته منسوب سو ، دغه د مراد قبیلې یو ښاخ دی ، دده یادونه به په راتلونکي حرف کي راسي

۴۱۶. **ابوصرمة** : دغه ابوصرمة مالک بن قیس مازني دی، او ځینو ورته قیس بن مالک ویلي دي او ځینو ورته قیس بن صرمه هم ویلي دي، دی په خپل کنیت سره مشهور دی، د بدر په غزا او نورو غزاوو کي یې ګډون کړی دی، دده څخه یوه ډله روایت کوي، صرمه د صاد په زبر او راء ساکنه سره دی .

## تابعین رحمة الله علیهم .

۴۱۷. **صالح بن خوات** : دغه صالح بن خوات انصاري مدني او مشهور تابعي دی، دده حدیث د لوړي درجې دي، د خپل پلار او سهل بن ابي حثمه څخه یې حدیثونه اورېدلي دي ، او دده څخه یزید بن رومان او نور روایت کوي، دده حدیث په مدینه کي تر لاسه کیږي، خوات د خاء معجمه په زور ، دواو په تشدید او تاء فوقاني سره دی .

۴۱۸. **صالح بن درهم** : صالح بن درهم باهلي دی، د ابوهریره او سمره رضي الله عنهما څخه روایت کوي او دده څخه شعبه او قطان روایت کوي، نوموړی باوري دی .

۴۱۹. **صالح بن حسان** : نوموړی مدني دی، په بصره کي هستوګن وو ، د ابن المسیب او عروه څخه روایت کوي او دده څخه ابوعاصم او حضرمي، یوې ډلي دده مرویانو ته ضعیف ویلي دي او امام بخاري دده حدیث منکر ګرځولي دي .

۴۲۰. **صخر بن عبدالله** : دغه صخر بن عبدالله بن بریده دی، دی د خپل پلار، نیکه او عکرمه څخه روایت کوي او دده څخه حجاج بن حسان او عبدالله بن ثابت روایت کوي .

۴۲۱. **صفوان بن سلیم** : دغه صفوان بن سلیم زهري دی، د حمید بن عبدالرحمن بن عوف ازاد سوی غلام دی، دمدینې مشهور او ستر تابعي دی، د انس بن مالک رضي الله عنه او نورو څخه روایت کوي، د الله جل جلاله د نېکو او صالحو بندګانو څخه وو، ویل کیږي چي تر څلوېښت کاله پوري یې اړخ پر ځمکه نه دی لګېدلی، خلګو ویل چي دده تندی د زیاتو سجدو په وجه زخمي سوی وو او شاهي تحفې یې نه قبلولې، دده مناقب ډېر زیات دي، په ۱۳۳م هجري کال کي وفات سو ، دده څخه ابن عینیه روایت کوي .

۴۲۲. **ابو صالح** : دغه ابو صالح ذکوان دی چي د غوړو او زیتون تجار وو، نوموړی مدني وو، غوړي او د زیتون تېل به یې کوفې ته وړل، د جویریه بنت حارث زوج النبي ﷺ ازاد سوی غلام وو، ستر تابعي، ډېر مشهور او ډېر روایت کوونکی وو، د ابوهریره او ابو سعید رضي الله عنهما څخه روایت کوي او دده څخه ابن سهیل او اعمش روایت کوي.

## صحابي ښځي

۴۲۳. **صفیه** رضي الله عنها: دغه صفیه د حیي بن اخطب لور ده چي د بني اسرائیلو څخه وه او د هارون بن عمر علی نبینا علیه السلام لمسۍ وه، دغه صفیه د کنانیه بن ابي الحقیق ښځه وه چي د خیبر په غزا کي ووژل سوه او دا بندي سول، رسول الله ﷺ د ځان لپاره خوښه کړل، ځینو روایت کړی دی چي دغه صفیه د دحیه کلبي په برخه کي راغلې وه بیا د هغه څخه رسول الله ﷺ د اوو غلامانو په بدله کي رانیول، تر دې وروسته هغې اسلام راوړ او بیا رسول الله ﷺ ازاده کړل او نکاح یې ورسره وکړل، د هغې مهر د هغې ازادېدل وګرځول سول، په ۵۰ م هجري کال کي وفات سول او په جنت البقیع کي دفن سول، حضرت انس، ابن عمرو رضي الله عنهما او نور حضرات ددې څخه روایت کوي، په حیی کي پر حاء مهمله پېښ او لاندي دوو ټکو والا یاء باندي زبر او دوهمي یاء باندي تشدید دی، په اخطب کي د همزه زور، د خاء معجمه جزم، طاء مهمله باندي زبر او په پای کي باء موحده ده.

۴۲۴. **صفیه بنت عبدالمطلب** رضي الله عنها: نوموړې د عبدالمطلب لور او د رسول الله ﷺ عمه ده، د اسلام څخه مخکي د حارث بن حرب ښځه وه، کله چي هغه هلاک سو نو عوام بن خویلد ورسره نکاح وکړل، ددې څخه زبیر پیدا سو تر ډېره وخته ژوندۍ وه، د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت په زمانه کي په ۲۰م هجري کال د ۷۳ کالو په عمر وفات سول او په جنت البقیع کي دفن سول.

۴۲۵. **صفیه بنت ابي عبید** : دغه صفیه د ابو عبید لور ده، د بنو ثقیف څخه ده، د مختار ابن ابي عبید خور ده او د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه ښځه وه، رسول الله ﷺ یې لیدلی وو او دهغه ارشادات یې اورېدلي وه مګر روایت یې ور څخه نه دی کړی، د بي بي عائشې او بي بي حفصې رضي الله عنهما څخه روایت کوي او ددې څخه حضرت نافع روایت کوي.

۴۲۶. **صفیه بنت شیبه** : دغه صفیه د شیبه حجبي لور ده، ددې څخه میمون بن مهران او نور حضرات روایت کوي. د رسول الله ﷺ دلېدو په اړه اختلاف دي. ځینو ویلي دي چي

رسول الله ﷺ يې لېدلی دی .

۴۲۷. **الصماء بنت بسر** : د بسر لور ده او مازني ده، ويل کيږي چي صماء ددې لقب دی او نوم يې بهيه دی، ددې څخه ددې ورور عبدالله روايت کوي .

## ض - صحابه کرام رضي الله عنهم .

۴۲۸. **ضماد بن ثعلبه** : دغه ضماد بن ثعلبه ازدي او د شنؤة قبيلې څخه دی، د جاهليت په زمانه کي د رسول الله ﷺ ملگری وو، د درملني او دم کار به يې کوی، تل د علم په پلټنه کي وو، د اسلام په پيل يې کي اسلام قبول کړ، دا هغه دی چي کله يې د رسول الله ﷺ څخه قرآن کريم واورېدی نو هغه وويل: ستاسو دغه الفاظ تر درياب زيات ژورو الي لري ، دده يادونه په باب علامات النبوت کي راځي، حضرت ابن عباس رضي الله عنه دده څخه روايت کوي، ضماد د ضاد په کسره ، ميم غير مشده دی، شنؤة د شين په زبر، د عين په پېښ، واو ساکن او همزه باندي زور دی .

۴۲۹. **الضحاک بن سفيان** : نوموړی کلابي عامري دی، د اهل مدينې څخه شمېرل کيږي، په نجد کي هستوگن وو، رسول الله ﷺ د هغه پر قوم باندي حاکم ټاکلی وو چي اسلام يې راوړی وو ، ابن مسيب او حسن بصري دده څخه روايت کوي او ويل کيږي چي دی د خپل زړه توب په وجه د سلو سپرو برابر گڼل کېدی، د رسول الله ﷺ سره به (د ساتني لپاره) توره په لاس کي ولاړ وو .

## تابعين رحمهم الله .

۴۳۰. **ضحاک بن فيروز** : نوموړی ديلمي تابعي دی ، دده حديث په بصريانو کي شائع دي، د خپل پلار څخه روايت کوي، دده يادونه د دال په حرف کي راغلې ده .

۴۳۱. **ضرار بن صرد** : دده کنيت ابونعيم دی د کوفې او سېدونکی دی، د ژړندي په خاوند مشهور دی، د معمر بن سليمان او نورو څخه يې حديث اورېدلي دي او دده څخه علي بن منذر روايت کوي، په نعيم کي پر نون ضمه، پر عين مهمله فتحه ده او په ضرار کي پر ضاد کسره . اوله راء غير مشدده ده، په صرد کي صاد مهمله ضمه او راء مهمله باندي زور دی.

## ط - صحابه کرام رضي الله عنهم .

۴۳۲. **طلحه بن عبيد الله** : کنيت يې ابو محمد قريشي دی، د عشره مبشره څخه دی، په

پیل کي یې اسلام راوړی وو، په ټولو غزاوو کي ماسوا د بدر شخه شریک وو، د نه ګډون وجه یې داوه چي رسول الله ﷺ د زید سره د هغه قافلې د معلومات لپاره استولی وو چي د قریشو ابوسفیان بن حرب سره راتلل، بیا دوهم وار د بدر د جنګ په ورځ بهرته راغلل، ده د بدر په ورځ په خپل لاس سره د رسول الله ﷺ ساتنه وکړل، د حملې په کثرت سره د لاس ګوتي یې اوږدې سوې وي په هغه ورځ یې شلو ښېت زخمونه وخوړل، نوموړی غنم رنګه او د ډېرو وېښتانو والا وو، ښکلی مخ یې وو او وېښتان یې پیچلي وه، د جمل په جګړه کي د پنجشنبې په ورځ په ۳۰م جمادي الاول په ۳۲ م هجري کال شهید سو او په بصره کي دفن کړل سو، عمر یې ۶۴ کاله وو، یوه ډله ور شخه روایت کوي.

۴۲۳. **طلحه بن البراء** : نوموړی انصاري دی، کله چي وفات سو نو رسول الله ﷺ د جنازې لمونځ ورکړ او دعاء یې وکړل چي اې الله! دده سره په خندا ملاقات وکړې او دی هم په خندا سره ستا په خدمت کي حاضر سي، د حجاز په علماؤ کي شمېرل کیږي دده شخه حصین وحوع روایت کړی دی.

۴۲۴. **طلق بن علي**: کنیت یې ابوعلي حنفي یمامي دی، ده ته طلق بن ثمامه هم ویل کیږي، دده شخه دده زوی قیس روایت کوي.

۴۲۵. **طارق بن شهاب**: کنیت یې ابوعبدالله دی، بجلي کوفي دی، د جاهلیت په زمانه کي موجود وو او رسول الله ﷺ یې هم لیدلی دی، د رسول الله ﷺ شخه یې د حدیثو اورېدل ثابت نه دي مګر ډېر کم، دحضرت ابوبکر او حضرت عمر رضي الله عنهما د خلافت په زمانه کي په ۳۳ غزاوو کي شریک سو، په ۸۲م هجري کال کي وفات سو.

۴۳۶. **طارق بن سوید** رضي الله عنه: د رسول الله ﷺ د صحبت شرف یې په برخه دی، دده حدیث په باب خمر کي موجود دي، دده شخه علقمه بن وائل روایت کوي.

۴۳۷. **الطفیل بن عمرو** رضي الله عنه : دغه طفیل بن عمرو دوسي دی، په مکه کي یې اسلام راوړ او د رسول الله ﷺ دنبوت تصدیق یې وکړ، بیا د خپل قوم ښارو ته ولاړی او د رسول الله ﷺ تر هجرت کولو پوري هلته وو، بیا د خپلو هغه خلګو سره چي دده سره یې اوسېدل غوښتل رسول الله ﷺ ته هجرت وکړ، د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او تر اخره پوري ورسره موجود وو، د یمامه په جګړه کي شهید سو، دده شخه جابر او ابوهریره رضي الله عنهما روایت کوي، دده شمېر د حجاز په علماؤ کي کیږي.

۴۳۸. **ابوالطفیل** : نوم یې عامر او د واثله زوی دی، نوموړی لیثي او کناني دی، دنوم په نسبت په کنیت سره زیات مشهور سو، د رسول الله ﷺ د پاک ژوند اته کاله یې په برخه سول، په مکه کي په ۱۰۲م هجري وفات سو، د مځکي پر مخ په ټولو صحابه کرامو کي اخري صحابي وو، دده څخه یوه ډله روایت کوي.

۴۳۹. **ابوطیبه** : نوم یې نافع دی، د ويني کښلو کسب یې کوي، د محیصه بن مسعود انصاري ازاد سوی غلام دی، مشهور صحابي دی، په محیصه کي میم مضموم دی، پر حاء مهمله باندي فتحه او پر یاء تحتاني باندي تشدید او زېر دی، په پای کي صاد مهمله دی.

۴۴۰. **ابوطلحه** ﷺ : نوم یې زید دی د سهل انصاري بخاري زوی دی، په خپل کنیت سره مشهور دی، دانس بن مالک د مور خاوند دی، د مشهورو غشو ويشتونکو څخه دی، رسول الله ﷺ دده په اړه وفرمایل: د ابوطلحه ﷺ آواز په لښکر کي د یوې ډلي تر آواز زیات دی، په ۳۱م هجري کال کي وفات سو، عمر یې ۷۷ کاله وو، داهل بصره خیال دی چي هغه په دریاب کي سفر کوی چي وفات سو او په یوه جزیره کي اووه ورځي وروسته دفن سو، د عقبه په بیعت کي د اوویا صحابه کرامو سره دی هم شریک وو، بیا د بدر او د هغه څخه وروسته په نورو غزاوو کي هم شریک وو، د صحابه کرامو یوه لویه ډله ور څخه روایت کوي.

## تابعین رحمهم الله

۴۴۱. **طلحه بن عبدالله** : دغه طلحه بن عبدالله بن کریز خزاعي دی، نوموړی تابعي او داهل مدینه څخه دی، دی د ډېرو صحابه کرامو څخه روایت کوي او دده څخه هم ډېر تابعین روایت کوي.

۴۴۲. **طلحه بن عبدالله**: دغه طلحه بن عبدالله د عوف زهري قریشي لمسی دی، د مشهورو تابعینو څخه دی، په اهل مدینه کي شمېرل کیږي، په سخاوت کي مشهور وو، د خپل اکا عبدالرحمن او نورو څخه روایت کوي، په ۹۹ م هجري کال کي وفات سو.

۴۴۳. **طلق بن حبیب** : نوموړی عنزي بصري دی، لوی عابد او په عبادت کي مشهور وو، د عبدالله بن جبیر، جابر او ابن عباس رضي الله عنهم څخه روایت کوي او دده څخه معصب او عمرو بن دینار او ایوب روایت کوي، په عنزی کي عین مهمله او پر دواړو نونانو باندي زېر دی.

۴۴۴. **الطفيل بن ابی** : دغه طفيل د ابی بن کعب رضی الله عنه زوی دی، تابعي دی، عزيز الحديث دی، دده حديث په اهل حجاز کي شائع دي، د خپل پلار او نورو څخه روايت کوي او دده څخه ابو الطفيل روايت کوي .

۴۴۵. **طاؤس بن کيسان** : نوموړی خولاني همداني يماني دی، فارسي الاصل دی، د يوې ډلي څخه روايت کوي او دده څخه زهري او نور ډېر کسان روايت کوي، د عمرو بن دينار مقوله ده چي ما هيڅ عالم د طاؤس په ډول ليدلی نه دی، په علم او عمل کي د ډېري لوړي درجې وو، په مکه مکرمه کي په ۱۰۵م هجري کال په حق ورسېدی .

۴۴۶. **ابوطالب** : دغه ابو طالب د رسول الله صلی الله علیه وسلم اکا او د حضرت علي رضی الله عنه پلار دی، دده نوم عبد مناف بن عبد المطلب بن هشام قرشي دی، جاهلي دی يعني اسلام يې په برخه نه سو، کله چي له دنيا څخه رخصت سو نو قريشو د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره ډېر خه وکړل چي د هغه په وجه يې طائف ته تشريف يووړ، د هغه او بي بي خديجې رضی الله عنها د وفات په منځ کي د يوه مياشت او پنځه ورځي فاصله ده .

۴۴۷. **ابن طاب** : د مدينې د خرماوو په اعتبار ده ته رطب بن طاب او تمر بن طاب ويل کيږي

## ظ - صحابه کرام رضی الله عنهم .

۴۴۸. **ظهير بن رافع** : دغه ظهير بن رافع حارثي دی، د انصارو د اوس قبيلې څخه دی، د عقبه ثانيه بيعت ، د بدر غزا او دهغه څخه وروسته غزاوو کي شريک وو، دغه رافع د رافع بن خديج څخه ماسوا بل دی ، دغه رافع د ظهير څخه روايت کوي، په ظهير کي پر ظاء معجمه باندي پېښ دی او هاء مهمله مفتوح او دوو ټکو والا ياء ساکنه ده .

## ع - صحابه کرام رضی الله عنهم .

۴۴۹. **عمر بن الخطاب** رضی الله عنه : امير المؤمنين عمر بن الخطاب فاروق رضی الله عنه دی، کنيت يې ابو حفصه دی، عدوي قريشي دی، دنبوت په شپږم کال يې اسلام راوړ او ځينو ويلي دي چي په پنځم کال کي دده څخه مخکي څلوېښت کسانو او يوولس ښځو اسلام راوړی وو، ويل کيږي چي څلوېښتم سړی حضرت عمر رضی الله عنه وو، دده د اسلام قبلولو څخه اسلام ځرګند پيل سول، له دې کبله دده لقب فاروق سو ، حضرت ابن عباس رضی الله عنه وايي: ما د حضرت عمر رضی الله عنه څخه پوښتنه وکړل چي ستا لقب ولي فاروق سو؟ هغه وويل: حضرت

حمزه رضي الله عنه زما د اسلام څخه درې ورځې مخکې اسلام راوړی وو، ددې وروسته الله جل جلاله زما سينه د اسلام لپاره خلاصه کړل نو ما وويل: الله لااله الا هو، له الاسماء الحسنی، د الله جل جلاله څخه ماسوا بل څوک د عبادت وړ نسته، د هغه لپاره ټول ښه نومونه دي، تر دې وروسته هيڅوک ما ته تر رسول الله صلی الله عليه وسلم زيات خوږ نه وو، تر دې وروسته ما پوښتنه وکړل چې رسول الله صلی الله عليه وسلم چيري دی، نو زما خور ما ته وښودل چې رسول الله صلی الله عليه وسلم په دار ارقم کې دی، زه د ابوارقم سرای ته ورغلم، حضرت عمر رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم دباندې راغلی او زه يې تر جامو ونيولم او په ښه زور سره يې خپلې خوا ته راکش کړم چې زه ونه دريدلای سوم او پر ګونډو ولوېدم، له دې وروسته رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: اې عمر! دده کفر څخه به کله منع سې؟ زما د ژبې څخه بېله قصده دا ووتل: اشهد ان لااله الاالله وحده لاشريک له واشهد ان محمدا عبده ورسوله، ددې په اورېدو سره د دار ارقم ټولو خلګو د الله اکبر آواز وکړ چې د هغه آواز د مسجد خلګو هم واورېدی، حضرت عمر رضي الله عنه وايي: ددې وروسته ما وويل: اې دالله رسوله! ايا موږ په مرګ او ژوند کې پر حق دين باندې نه يو؟ رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: ولې نه، قسم په هغه ذات چې د هغه په واک کې زما روح دی، تاسو ټول پر حق ياست، په خپل مرګ کې هم او په خپل ژوند کې هم، ما وويل: نو بيا ددغه حق پټولو څه مطلب؟ قسم په هغه ذات چې تاسو يې په حق سره رالېږلي ياست، موږ به خامخا حق ښکاره کوو، نو موږ رسول الله صلی الله عليه وسلم د دوو صفو په منځ کې را وايستی، په يوه صف کې حضرت حمزه رضي الله عنه وو او په بل صف کې زه (يعني حضرت عمر رضي الله عنه)، په ما کې د جوش په وجه د ژرندې په ډول اواز وو، تر دې چې موږ مسجد حرام ته ورسېدو، کله چې قريشو زه او حمزه ولېدو، نو دومره صدمه ور پېښه سول چې تر دې مخکې هيڅکله داسې صدمه ور پېښه سوې نه وه، په هغه ورځ رسول الله صلی الله عليه وسلم زما نوم فاروق کښېښود او زما په وجه الله جل جلاله د حق او باطل په منځ کې فرق وکړ، داؤد، ابن حصين او زهري روايت کوي کله چې حضرت عمر رضي الله عنه اسلام راوړ نو حضرت جبرائيل عليه السلام راغلی او وه يې فرمايل: اې محمد! (صلی الله عليه وسلم) ټول آسمان والا د عمر رضي الله عنه په اسلام راوړلو خوشحاله سوي دي، او حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمايي: قسم په خدای! زه يقين لرم که د حضرت عمر رضي الله عنه علم د ترازو په يوه پله کې کښېښودل سي او د ټولې نړۍ د ژوندي انسانانو علم د ترازو په بله پله کې کښېښودل سي نو د حضرت عمر رضي الله عنه علم به کښته (درونډ) سي، او وه يې فرمايل چې زما خيال دی چې حضرت عمر رضي الله عنه په لسو کې نهه برخې علم د ځان سره يووړ او يوه برخه پاته سول، نو موږ

د رسول الله ﷺ سره په ټولو غزاوو کي شريک وو ، دی اول خليفه دی چي د امير المؤمنين په لقب سره وبلل سو ، حضرت عمر رضی الله عنه سور او سپين وو چي سوروالی پکښي غالب وو ، او ځينو ورته غنم رنګه ويلي دي، د لوړ قد والا وو ، د سروښتنان يې زيات وتلي وه، سترګي يې تکي سرې وې، د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه د وفات څخه وروسته يې ټولي انتظامي چاري د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه د وصيت سره سم په پوره توګه سرته ورسولې، د مغيره بن شعبه غلام ابولولوه په مدينه کي د چارشنبې په ورځ د ذوالحجې په ۲۶م نېټه په ۲۳م هجري کال په خنجر سره زخمي کړ او په لسمه نېټه د محرم الحرام د يکشنبې په ورځ په ۲۴م هجري کال د ۶۳کالو په عمر وفات سو ، دغه قول د هغه د عمر په اړه صحيح قول دی، د خلافت وخت يې لس کاله او شپږ مياشتي ده، د حضرت عمر رضی الله عنه د جنازې لمونځ حضرت صهيب رومي رضی الله عنه ورکړ ، د هغه څخه حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه، عشره مبشره رضی الله عنهم او نورو ډېرو صحابه کرامو او تابعينو روايت کړی دی .

۴۵۰. **عمر بن ابي سلمه** رضی الله عنه : دده نوم عبدالله بن عبدالاسد مخزومي قريشي دی او دغه عمر د رسول الله ﷺ روزل سوی زوی وو ، دده مور ام سلمه رضی الله عنها وه چي په ازواجو مطهراتو کي ده، په دوهم هجري کال په حبشه کي پيدا سو ، په کومه ورځ چي رسول الله ﷺ وفات سو هغه وخت دده عمر نهه کاله وو، په ۸۳ م هجري کال کي د عبدالملک بن مروان د خلافت په زمانه کي په مدينه کي وفات سو، د رسول الله ﷺ حديثونه يې ياد کړل او د رسول الله ﷺ څخه روايت کوي او دده څخه ډېر حضرات روايت کوي .

۴۵۱. **عثمان بن عفان** رضی الله عنه : امير المؤمنين عثمان بن عفان رضی الله عنه دی، کنيت يې ابوعبدالله اموي قريشي دی، دده اسلام راوړل د اسلام په اول دور کي د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه په لاس د رسول الله ﷺ دار ارقم ته د تشريف راوړلو څخه مخکي وسو ، حبشې ته يې دوه واره هجرت وکړ او د بدر په غزا کي شريک نه سو ، ځکه چي بي بي رقيه رضی الله عنها د رسول الله ﷺ لور په هغه ورځو کي ناروغه وه نو رسول الله ﷺ ددغه عذر په وجه د هغه د غنيمت مال ورکړ، او همدارنګه په حديبيه کي تر درختي لاندي بيعت الرضوان کي حضرت عثمان رضی الله عنه شامل نه سو ځکه چي رسول الله ﷺ هغه د صلحي دپاره مکې ته استولی وو ، کله چي بيعت رضوان واقع سو نو رسو لالله ﷺ خپل لاس مبارک پر دوهم لاس مبارک باندي په وهلو سره وفرمايل: دغه بيعت د عثمان دپاره دی، نوموړی ته ذوالنورين هم ويل کيږي ځکه چي د هغه په نکاح کي دوه نورونه يعني د رسول الله ﷺ دوې لوڼي بي بي رقيه رضی الله عنها او بي بي کلثوم

ﷺ یو په بل پسې راغلي وې، نوموړی د سور او سپین رنګ میانه قده وو، او ځینو ویلي دي چې غنم رنګه وو، د ښکلي مخ والا وو، پلنه سینه یې وه پر سر یې وښتان ډېر زیات وه، لویه ږېره یې وه، ږیره یې په ژړ رنګ وهل، په ۲۴م هجري کال کي د محرم الحرام په لومړی نېټه خلیفه وټاکل سو، اسود تجیبي (چې د مصر او سېدونکي وو) وژلی دی، ځینو بل څوک ښودلی دی، د شنبې په ورځ په جنت البقیع کي دفن سو عمر یې ۸۲ کاله وو او ځینو ویلي دي چې ۸۸ کاله وو، د خلافت وخت یې څو ورځې کم دوولس کاله وو، ډېرو خلګو ور څخه روایت کړی دی.

۴۵۲. **عثمان بن عامر** ؓ: دغه عثمان بن عامر د حضرت ابوبکر صدیق ؓ پلار دی، نوموړی قریشي او دبنوتیم څخه دی، کنیت یې ابو قحافه دی د قاف په پېښ سره او پر حاء مهمله تشدید نسته، دمکې د فتح په ورځ یې اسلام راوړ، د حضرت عمر ؓ د خلافت تر زمانې پوري ژوندی وو، په ۱۴م هجري کال کي د ۹۷ کالو په عمر وفات سو، دده څخه صدیق اکبر او اسماء بنت ابي بکر ؓ روایت کوي.

۴۵۳. **عثمان بن مظعون** ؓ: کنیت یې ابوسائب دی، حجمي قرشي دی، تر دیارلس کسانو وروسته یې اسلام راوړی دی، د حبشې او مدینې دواړو هجرتونه یې کړي دي، د بدر په غزا کي شریک وو، د جاهلیت په زمانه کي یې هم شراب نه څښل، په مهاجرینو کي تر ټولو لومړی سړی دی چې وفات یې په مدینه منوره کي د شعبان په میاشت چې د هجرت پوره دېرش میاشتي تېري سوي وې، واقع سو، رسول الله ﷺ یې د مرګ وروسته تندی مچ کړ، کله چې دفن کړل سو نو رسول الله ﷺ وفرمایل: دغه سړی په تلونکو کي زموږ لپاره غوره سړی وو، په جنت البقیع کي دفن کړل سو، لوی عابد، مرتاض، صاحب فضل صحابي وو، دده زوی سائب او دده ورور قدامه بن مظعون دده څخه روایت کوي.

۴۵۴. **عثمان بن طلحه** ؓ: دغه عثمان بن طلحه عبدري قریشي حجمي مشرف د نبي کریم ﷺ په صحبت دی، دده ذکر په باب المساجد کي راغلی، دده څخه دده د اکا زوی شیبه او ابن عمر روایت کوي، په مکه مکرمه کي په ۴۲م هجري کال وفات سو.

۴۵۵. **عثمان بن حنیف**: دغه عثمان بن حنیف د انصارو څخه دی، د سهل ورور دی، حضرت عمر ؓ د عراق پر سیمه باندي حاکم کرځولی وو او د هغه ځای پر اوسېدونکو یې خراج او محصول ټاکلی وو، حضرت علي ؓ د بصرې حاکم کرځولی وو، بیا حضرت طلحه او زبیر وایستی، کله چې دواړه بصرې ته راغلل، د جمل پېښې څخه داسې وسول،

ددې وروسته په کوفه کي هستوګن وو او حضرت معاويه رضي الله عنه د خلافت تر زمانې پوري ژوندی وو، يوه ډله ور څخه روايت کوي.

۴۵۶. **عثمان بن ابي العاص** رضي الله عنه: د بنوثقيف څخه دی، رسول الله ﷺ د طائف حاکم ټاکلی وو، نو د رسول الله ﷺ په ژوند مبارک کي او دحضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د خلافت په زمانه کي، همدارنګه د حضرت عمر رضي الله عنه دخلافت په اولو دوو کلو کي د طائف حاکم وو، ددې وروسته حضرت عمر رضي الله عنه د طائف څخه ليري کړ او د عمان او بحرين عامل يې وټاکی، دغه عثمان بن ابي العاص د ثقيف په وفد کي په شامليدو سره د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوی وو، دی په وفد کي تر ټولو کشر وو، هغه وخت ددہ عمر ۲۹ کاله وو او هم هلته په ۵۱م هجري کال کي وفات سو، د رسول الله ﷺ د وفات وروسته د ثقيف قبيلې د مرتد کيدو اراده وکړل نو هغوی ته عثمان بن ابي العاص رضي الله عنه وفرمايل: اې د ثقيف خلګو! په خلګو کي هم تاسو د اسلام راوړلو په اعتبار تر ټولو آخر ياست نو په مرتد کيدو کي تر ټولو مه مخکي کيږئ، نو دغه خلګ د مرتد کيدو څخه منع سول، دده څخه د تابعينو يوه ډله روايت کوي.

۴۵۷. **علي بن ابي طالب** رضي الله عنه: امير المؤمنين علي بن ابي الطالب رضي الله عنه دی، کنيت يې ابوالحسن او ابوتراب دی، قريشي دی ، د اکثرو اقوالو په اعتبار په نارينوو کي تر ټولو مخکي اسلام راوړونکی دی، هغه وخت يې د عمر په اړه اختلاف دی، ويل کيږي چي عمر يې پنځلس کاله وو او ځيني شپاړلس او ځينو لس کاله وايي، د رسول الله ﷺ سره په ټولو غزاوو کي شريک سوی دی ما سوا د تبوک د غزا څخه چي په خپله کورنۍ کي د اړتيا لپاره پاته سوی وو، ددغه پېښي په اړه رسول الله ﷺ ورته فرمايلي وه: ايا ته دا نه خوښوې چي تا ته زماله خوا هغه حيثيت حاصل سي کوم چي حضرت هارون علیه السلام ته د حضرت موسی علیه السلام له خوا وو، نوموړی غنم رنګه وو ، د غټو سترګو والا د اوږدوالي په اعتبار لنډ قامته وو ، نس يې غټ وو ، زيات وېښتانو والا ، پلني ږيري والا او د سر وېښتان يې د منځ څخه ختلي وه، سر او ږيره دواړه يې سپين وه، دحضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت په ورځ د جمعې ورځ وه په اتلسم د ذي الحجې په ۳۵م هجري کال کي خليفه وټاکل سو ، عبدالرحمن بن ملجم مرادي په کوفه کي په اتلسم د رمضان المبارک د جمعې په سهار د توري حمله پر وکړل ، د زخمي کيدو څخه درې ورځي وروسته وفات سو ، دواړو زامنو حضرت حسن او حضرت حسين او عبدالله بن جعفر رضي الله عنهم غسل ورکړ، د جنازې لمونځ يې حضرت حسن رضي الله عنه

ورکړ، سهار په رڼا کېدو سره دفن کړل سو عمر یې ۶۳ کاله وو، او ځینو ۶۵ کاله او ځینو ۷۰ کاله او ځینو ۵۸ کاله ښودلي دي، د حضرت علي رضي الله عنه د خلافت وخت څلور کاله او نهه میاشتي او څو ورځي وو، د نوموړي څخه خپل زامن حسن او حسین، محمد او ډېر صحابه کرام رضي الله عنهم او تابعین روایت کوي.

۴۵۸. **علي بن شیبان** : دغه علي بن شیبان حنفي یمامي دی، دده څخه دده زوی عبدالرحمن روایت کوي.

۴۵۹. **علي بن طلق** : دغه علي بن طلق حنفي یمامي دی، دده څخه سلم بن سلام روایت کوي، دی د اهل یمامه څخه دی او دده حدیث په اهل یمامه کي تر لاسه کیږي.

۴۶۰. **عبدالرحمن بن عوف** رضي الله عنه : کنیت یې ابو محمد دی، زهري قریشي دی، د ی هم په عشره مبشره کي دی، په پیل کي د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه په لاس یې اسلام راوړی وو، حبشې ته یې دوه واره هجرت کړی دی، په ټولو غزاوو کي د رسول الله ﷺ سره موجود وو، د احد په غزا کي ثابت قدمه وو، رسول الله ﷺ په ده پسي د تبوک په غزا کي لمونځ کړی دی او کومه برخه چي د رسول الله ﷺ څخه فوت سوې وه هغه یې پوره کړې ده، نوموړی طویل القامت، نري پوست والا، د سور او سپین رنګ څښتن وو، په بدن کي یې سور والی ځلېدی، نرم تګ یې کوی، جګه پزه یې وه، د احد په غزا کي دده پښې ګوډې سوې وې او پر بدن یې تر شل زیات زخمونه لګېدلي وه، د هغه څخه ځیني زخمونه پر پښو ولګېدل چي د هغه په وجه ګوډ سوی وو، د عام فیل څخه لس کاله وروسته پیدا سو، او په ۳۲م هجري کال کي وفات سو، په جنت البقیع کي دفن کړل سو عمر یې ۷۶ کاله وو، دده څخه عبد الله بن عباس او نور حضرات روایت کوي.

۴۶۱. **عبدالرحمن بن ابزي** : دغه عبدالرحمن بن ابزي خزاعي د نافع بن عبدالحارث ازاد سوی غلام دی، دی په کوفه کي هستوګن وو، حضرت علي رضي الله عنه د خراسان والي ټاکلی وو، د رسول الله ﷺ زیارت یې کړی دی او په رسول الله ﷺ پسي یې لمونځ کړی دی، د حضرت عمر بن خطاب او ابی بن کعب رضي الله عنهما څخه زیات روایت کوي او دده څخه دده دوه زامن سعید او عبدالله او نور حضرات روایت کوي، په کوفه کي وفات سو.

۴۶۲. **عبدالرحمن بن ازهر** : دغه عبدالرحمن بن ازهر قریشي د عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه وراره دی، د حنین په غزا کي شریک وو. دده څخه دده زوی عبدالحمید او نور حضرات روایت کوي، د حره پېښې څخه مخکي وفات سوی دی.

۴۶۳. **عبدالرحمن بن ابي بكر** : دغه عبدالرحمن د ابوبکرصدیق ﷛ زوی دی، دده مور ام رومان ده چي د بي بي عائشې ﷞ مور هم ده، د صلح حديبيې په کال يې اسلام راوړ، او غوره مسلمان ثابت سو، د حضرت ابوبکر صدیق ﷛ د ټولو اولادو څخه مشر وو، دده څخه بي بي عائشه، بي بي حفصه او نور حضرات ﷺ روايت کوي، په ۵۳م هجري کال کي وفات سو.

۴۶۴. **عبدالرحمن بن حسنه** : دغه عبدالرحمن حسنه دی، حسنه دده مور ده، دی د خپلي مور په نسبت زيات مشهور دی، دده پلار عبدالله بن مطاع دی، دده څخه يزيد بن وهب روايت کوي.

۴۶۵. **عبدالرحمن بن شرحبيل**: دغه عبدالرحمن بن شرحبيل بن حسنه دی، دعبدالرحمن بن حسنه وراره دی، رسول الله ﷺ يې ليدلی دی، دده څخه دده زوی عمران روايت کوي، دمصر په فتحه کي دی او دده ورور ربيعه موجود وه.

۴۶۶. **عبدالرحمن بن يزيد**: دغه عبدالرحمن بن يزيد بن خطاب دی، عدوي قريشي دی، کله چي دی کوچنی وو نو دده نيکه ابولبابه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر کړ او تحنيک يې ور وکړ، رسول الله ﷺ دده پر سر مبارک لاس راتېر کړ او د پرمختګ او برکت دعاء يې ورته وکړل، محمد بن سعد ويلي دي چي د نبي کريم ﷺ د وفات په وخت کي دده عمر شپږ کاله وو، ده د خپل اکا عمر بن خطاب څخه حديث اورېدلي دي او د عبدالله بن زبير ﷛ په زمانه کي د عبدالرحمن بن عمر ﷛ د وفات څخه مخکي وفات سو.

۴۶۷. **عبدالرحمن بن سمرة**: دغه عبدالرحمن بن سمرة قريشي دی، دمکې د فتح په ورځ يې ايمان راوړ او د رسول الله ﷺ شرف حجت يې حاصل کړ، د رسول الله ﷺ څخه روايت کوي، په اهل بصره کي شمېرل کيږي، په ۵۱م هجري کال په بصره کي وفات سو، دده څخه ابن عباس، حسن او نور ډېر خلګ روايت کوي.

۴۶۸. **عبدالرحمن بن سهل**: نوموړی انصاري دی، دخيبر په غزا کي شهيد سو، دده يادونه په کتاب القسامة کي راځي، ويل کيږي چي د بدر په غزا کي هم موجود وو، لوی عالم او صاحب فهم وو، دده څخه سهل بن ابي حثمه روايت کوي.

۴۶۹. **عبدالرحمن بن شبل** : دغه عبدالرحمن ابن شبل انصاري دی، په اهل مدينه کي شمېرل کيږي، دده څخه تميم بن محمد او ابوراشد روايت کوي.

۴۷۰. **عبدالرحمن بن عثمان** : دغه عبدالرحمن بن عثمان تميمي قريشي دی، د طلحه بن عبيد الله وراره دی، دده په اړه هم ويل کيږي چي د رسول الله ﷺ زيارت يې کړی دی، مګر د رسول الله ﷺ څخه يې روايت نه دی کړی او نور دده څخه روايت کوي.

۴۷۱. **عبدالرحمن بن ابي قراد** : دغه عبدالرحمن بن ابي قراد اسلمي دی، په اهل حجاز کي شمېرل کيږي او د اهل حجازو څخه او ابوجعفر حطمي او نورو څخه روايت کوي، په قراد کي پر قاف باندي پېښ دی او راء مهمله بېله شده ده او په آخر کي دال مهمله دی.

۴۷۲. **عبدالرحمن بن کعب**: دغه عبدالرحمن بن کعب دی، کنيت يې ابوليلی دی، مازني دی، د انصارو څخه د بدر په غزا کي شريک سوی دی، په ۲۴م هجري کال کي وفات سو، دی هم د هغه صحابه کرامو څخه دی چي دهغوی په اړه دغه آيت نازل سوی وو:

تَوَلَّواْ وَّأَعْيُنُهُمْ تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ حَزَنًا أَلاَّ يَجِدُواْ مَا يُنفِقُونَ

۴۷۳. **عبدالرحمن بن يعمر** : دغه عبدالرحمن بن يعمر ديلمي دی، د رسول الله ﷺ د صحبت او روايت شرف يې په برخه دی، کوفې ته راغلی او خراسان ته ورسېدی، دده څخه بکير بن عطاء روايت کوي، بل څوک ور څخه روايت نه کوي.

۴۷۴. **عبدالرحمن عائش**: دغه عبدالرحمن عائش حضرمي دی، د اهل شام څخه شمېرل کيږي، دده په صحابي کېدو کي اختلاف دی، دده څخه د الله ﷻ د ليدني په اړه حديث منقول دی، دده څخه ابوسلام ممطور او خالد بن اللحاج روايت کوي، او دده حديث: عن مالک ابن يخامر عن معاذ بن جبل ان رسول الله ﷺ، دی، او ځينو ويل چي بېله واسطې د بل صحابي څخه د رسول الله ﷺ څخه روايت کوي، مګر اول سند صحيح دی، ددې تصديق امام بخاري او نورو هم کړی دی، عائش ياء تحتاني دوو ټکو والا ياء په زېر او شين معجمه سره دی، او په يخامر کي دوو ټکو والا ياء مضمومه ده او خاء معجمه غير مشدده ده، ميم مکسور دی او په پای کي راء مهمله ده، دا هم ويل کيږي چي د مالک بن يخامر دغه روايت مرسل دی، ځکه چي هغه ته د رسول الله ﷺ څخه سماع ثابته نه ده.

۴۷۵. **عبدالرحمن بن ابي عميره** : دغه عبدالرحمن بن ابي عميره مدني دی، او ځيني وايي چي قريشي دی، دده په حديث کي اضطراب بنودل کيږي، په صحابوو کي د قوس الحافظه څخه دی دغه خبره حافظ عبدالبر کړې ده، نوموړی شامي دی، دده څخه يوه ډله روايت کوي، عميره د عين مهمله په زور او ميم په زېر سره دی او په پای کي راء مهمله ده.

۴۷۶. **عبدالله بن ارقم** : زهري قريشي دی، دمکې د فتح په کال يې اسلام راوړ، د رسول الله ﷺ کاتب وو، او وروسته د حضرت ابوبکر صديق او حضرت عمر فاروق رضي الله عنهما کاتب وو، حضرت عمر رضي الله عنه پر بيت المال باندي حاکم ټاکلی وو او د حضرت عمر رضي الله عنه څخه وروسته حضرت عثمان رضي الله عنه هم ټاکلی وو، بيا عبدالله بن ارقم د دغه خدمت څخه استعفی ورکړل، دده څخه عروه او اسلم روايت کوي، د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت په زمانه کي وفات سو.

۴۷۷. **عبدالله بن ابي اوفی** رضي الله عنه : دغه عبدالله بن ابي اوفی دی، او د ابو اوفی نوم علقمه بن قيس اسلمي دی، په حديبيه، خيبر او وروسته غزاوو کي يې شريک سوی دی، هميشه په مدينه کي هستوګن وو، تر دې چي رسول الله ﷺ وفات سو، تر دې وروسته کوفې ته ولاړی او په کوفه کي په وفات کېدونکو صحابه کرامو کي تر ټولو آخر په ۸۷م هجري کال کي وفات سو، دده څخه امام شعبي رحمه الله او نور حضرات روايت کوي.

۴۷۸. **عبدالله بن أنيس** : دغه عبدالله بن انيس جهني او د انصارو څخه دی، د احد په غزا او نورو وروسته غزاوو کي يې شريک وو، ابو امامه او جابر دده څخه روايت کوي، په ۵۴ م هجري کال په مدينه کي وفات سو.

۴۷۹. **عبدالله بن بُسر** : نوموړی سلمي مازني دی، ده ته، دده پلار بسر ته، دده مور ته او دده ورور عطيه ته او دده خور صماء ته د صحبت نبوي شرف حاصل دی، په شام کي هستوګن وو او په حمص کي په ۸۸ م هجري کال ناڅاپه د اوداسه کولو پر وخت وفات سو، د شام په صحابه کرامو کي تر ټولو آخر وفات سوی دی او ځينو ويلي دي چي تر ټولو وروسته وفات کېدونکی حضرت ابو امامه رضي الله عنه دی، دده څخه يوه ډله روايت کوي.

۴۸۰. **عبدالله بن عدي** : دغه عبدالله بن عدي قريشي زهري دی، د اهل حجازو څخه دی، دی د قديد او عسفان په منځ کي هستوګن وو، دده څخه ابو سلمه بن عبدالرحمن او محمد بن جبير روايت کوي.

۴۸۱. **عبدالله بن ابي بکر** : دغه عبدالله د ابوبکر صديق رضي الله عنه زوی دی، په طائف کي د رسول الله ﷺ سره دی هم وو، پر ده يوه غشه ولګېدل چي ابو محجن ثقفي ويشتلې وه، د هغه غشي څخه د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د خلافت په پيل کي په ۱۱م هجري کال د شوال په مياشت کي وفات سو، نوموړی د قديم الاسلام صحابه کرامو څخه دی.

۴۸۲. **عبدالله بن ثعلبه** : دغه عبدالله بن ثعلبه مازني عذري دی، د هجرت څخه څلور

کاله مخکي پیدا سو ۔ په ۸۹ م هجري کال کي وفات سو ، د فتح په کال يې د رسول الله ﷺ لیدنه وکړل ، رسول الله ﷺ دده پر مخ لاس مبارک را تېر کړ ، دده څخه دده زامن عبدالله او زهري روایت کوي ۔

۴۸۳۔ **عبدالله بن حجش** : نوموړی اسدي دی، د بي بي زينب ام المؤمنين ورور دی، د رسول الله ﷺ دار ارقم ته د راتلو څخه مخکي يې اسلام راوړی دی، او دی د هغه صحابه کرامو څخه دی چي هغوی حبشه او مدينې دواړو ته هجرت کړی دی، ډېر قبول الدعوات وو، د بدر په غزا کي حاضر وو، او د احد په غزا کي شهيد سو، هغه لومړنی سړی دی چي غنميت يې په پنځو برخه وويشل سو، تر دې وروسته د قرآن کريم په نازلېدو سره ددغه رايي تصويب وسو، ځکه د هغه يادونه په دغه آيت کي ده : (واعلموا انما غنمتم من شئ فان لله خمسه ...الخ) او پښبه دا وه چي کله دی په يو کوچني لښکر کي راستون سو نو د غنيمت پنځمه برخه يې واخيستل او هغه يې د رسول الله ﷺ لپاره بېله کښېښودل، د جاهليت د زمانې رواج وو چي سردار ته به يې د غنيمت څلورمه برخه ورکول، دده څخه سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه او نور روايت کوي، ابوالحکم بن اخنس دی قتل کړی وو چي هغه وخت يې عمر تقريبا څلوېښت کاله وو ، دی او حضرت حمزه رضي الله عنه په يوه قبر کي دفن کړل سول ۔

۴۸۴۔ **عبدالله بن ابي الحمساء** : دغه عبدالله بن ابي الحمساء عامري دی، دده شمېر په بصريانو کي کيږي، دده حديث د عبدالله بن شقيق سره دی چي د خپل پلار څخه يې نقل کوي، او هغه يې د عبدالله بن ابي الحمساء څخه ۔

۴۸۵۔ **عبدالله بن ابي الجدعا** : دغه عبدالله بن ابي الجدعا تميمي دی، دده يادونه په وحدان کي راځي، وحدان د هغه روايت کوونکو په اړه استعماليږي چي په شيخين يعني امام بخاري او امام مسلم کي يوازي يوه روايت کړی وي ، دده شمېر په بصريانو کي کيږي

۴۸۶۔ **عبدالله بن جعفر** رضي الله عنه : دغه عبدالله بن جعفر بن ابي طالب قريشي دی، دده مور اسماء د عميس لور ده، دی په حبشه کي پيدا سو او په دغه حبشه کي لومړی ماشوم وو چي د حبشې په مسلمانانو کي پيدا سو، په ۸۰ م هجري کال په مدينه کي وفات سو ، عمر يې ۹۰ کاله وو ، ډېر سخي ، حليم او پاک انسان وو ، د سخاوت درياب ورته ويل کېدل، مشهوره وه چي په اسلام کي دده څخه زيات سخي هيڅوک نسته ، دده څخه ډېر خلګ روايت کوي۔

۴۸۷۔ **عبدالله بن جهم** : له انصارو څخه دی، دده حديث د لمونځ کونکي مخته د تېرېدو په اړه دی، دده څخه بسر بن سعيد او نور روايت کوي، دده سند حديث مالک عن ابي جهم

دی، چې په هغه کې د نوم یادونه نسته او دده حدیث ابن عینیه او وکیع هم روایت کړی دی، دوی دواړو دده نوم عبدالله بن جهم ذکر کړی دی او دی په خپل کنیت سره مشهور دی، او موږ دده یادونه د جیم په حرف کې کړې ده.

۴۸۸. **عبدالله بن جزء** : دغه عبدالله بن جزء دی، کنیت یې ابوالحارث سهمي دی، په مصر کې هستوګن وو، په بدر کې شریک وو، دده څخه د مصریانو یوه ډله روایت کوي، په ۸۵ م هجري کال په مصر کې وفات سو، په جزء کې جیم مفتوح زاء معجم ساکن او په پای کې همزه ده.

۴۸۹. **عبدالله بن حبشي** : دغه عبدالله بن حبشي خثعمي دی، ده ته شرف روایت حاصل سو، د اهل حجاز څخه شمېرل کیږي. په مکه کې هستوګن وو، دده څخه عبید بن عمر روایت کوي، عبید او عمیر دواړه مصغر دی.

۴۹۰. **عبدالله بن ابي حدرد** : ددغه ابوحدرد نوم سلام بن عمر اسلمي دی، د حدیبیه په غزا کې او د هغه څخه وروسته د خیبر او نورو په غزاوو کې هم شریک سو، په ۷۱م هجري کال د ۸۱ کالو په عمر وفات سو، د اهل مدینه څخه ګڼل کیږي، ابن القعقاع او نور حضرات دده څخه روایت کوي.

۴۹۱. **عبدالله بن حنظله** : دغه عبدالله بن حنظله انصاري دی، او حنظله هغه وو چې ملائکو غسل ورکړی وو، د رسول الله ﷺ په زمانه کې پیدا سو او کله چې رسول الله ﷺ وفات سو نو دده عمر اووه کاله وو، عبدالله، رسول الله ﷺ لیدلی وو او یو روایت یې هم ور څخه کړی دی، دې ډېر نیک، صاحب فضل او د انصارو مشر وو، دا هغه سړی چې دده په لاس اهل مدینه ددې خبري بیعت کړی وو چې یزید بن معاویه دی د خلافت څخه ایسته کړل سي، له دې کبله په ۶۳م هجري کال کې د حره په پېښه کې قتل کړل سو، دده څخه ابن ابي ملیکه او عبدالله بن زید او اسماء بنت زید بن الخطاب او نور حضرات روایت کوي.

۴۹۲. **عبدالله بن حوله** : دغه عبدالله بن حوله ازدي دی. د شام په هبواد کې هستوګن سو، دده څخه جبیر بن نفیر او نور روایت کوي، په ۸۰ م هجري کال په شام کې وفات سو.

۴۹۳. **عبدالله بن خبیب** رضي الله عنه : دغه عبدالله بن خبیب د جهنیه قبیلې څخه دی، د انصارو حلیف وو، مدني او صحابي دی، دده حدیث په اهل حجاز کې تر لاسه کیږي، دده څخه ابن معاذ روایت کوي.

۴۹۴. **عبدالله بن رواحه** رضی الله عنه: دغه عبدالله بن رواحه خزرجي انصاري دی، د نقباؤ څخه دی، په بیعت عقبه کي موجود وو، د بدر، احد، خندق او وروستنیو غزاوو کي شریک وو، ماسوا د فتح د غزا او وروسته غزاوو څخه، ځکه چي د موته په جګړه کي په اتم هجري کال شهید سو، په دغه جګړه کي د لښکر امیر وو، د غوره شعر ویونکو څخه دی، دده څخه ابن عباس او نور حضرات روایت کوي.

۴۹۵. **عبدالله بن الزبیر** رضی الله عنه: دغه عبدالله بن زبیر دی. دده کنیت ابوبکر دی، اسدي قریشي دی، دده دغه کنیت دده د نیکه ابوبکر صدیق رضی الله عنه په کنیت او دهغه نوم رسول الله ﷺ ایښی وو. په مدینه کي د مهاجرینو څخه اول اسلامي ماشوم وو، په اول هجري کال پیدا سو، حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه یې په غوږ کي آذان وکړ دده د مور بي بي اسماء څخه په قباء کي پیدا سو. او د رسول الله ﷺ په غېږ مبارک کي کښېښنودل سو، رسول الله ﷺ خرما وغوښتل او په هغه یې تحنیک وکړ، نو تر ټولو لومړی شی چي دده نس ته ورغلی هغه د رسول الله ﷺ لعاب مبارک وو، بیا رسول الله ﷺ دده لپاره د برکت دعاء وکړل، نوموړی د پاک مخ خاوند او یو ویښته یې هم پر مخ نه وو، نه یې ږیره وه، ډېر روژې نیونکی او ډېر نفل کوونکی وو، غټ سړی وو، ډېر قوي او د رعب څخه ډک وو، د حق خبري منونکی وو، د تعلق او قرابت قائمولو والا وو، په ده کي هغه خبري جمع وې چي په نورو کي نه وې. دده پلار د رسول الله ﷺ د مصاحبینو څخه وو، دده مور اسماء د ابوبکر صدیق رضی الله عنه لور وه، دده نیکه حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه وو، دده اناصفیه د رسول الله ﷺ عمه وه، دده خاله بي بي عائشه رضی الله عنها وه چي له ازواج مطهراتو څخه ده، د رسول الله ﷺ سره یې بیعت وکړ کله چي یې عمر اته کاله وو، حجاج بن یوسف په مکه کي ووژی او د سه شنبې په ورځ د جمادي الثاني په اووه لسمه نېټه په ۷۳م هجري کال په دار وزړول سو، دده لپاره په ۶۴م هجري کال د خلافت لپاره بیعت واخیستل سو. دده څخه مخکي دده د خلافت هیڅ خبره نه وه دده د خلافت منلو ته اهل حجاز، یمن، عراق، خراسان او نور ډېر کسان تیار وه. اته حجونه یې وکړل دده څخه یوه لویه ډله روایت کوي.

۴۹۶. **عبدالله بن زمعه**: دغه عبدالله بن زمعه قریشي اسدي دی، د مدینې په اوسېدونکو کي شمېرل کېږي، دده څخه عروه بن زبیر او نور حضرات روایت کوي.

۴۹۷. **عبدالله بن زید**: دغه عبدالله بن زید بن عبد ربه دی، انصاري خزرجي دی، په

کي يې په اول هجري کال د آذان الفاظ ښودلي وه، د اهل مدينه ځخه دی، په ۳۲م هجري کال په مدينه کي د ۶۴ کالو په عمر وفات سو، دی خپله او دده مور او پلار صحابه وه، دده ځخه دده زوی محمد او سعيد بن مسيب او ابن ابي ليلی روايت کوي.

۴۹۸. **عبدالله بن زيد** رضي الله عنه: دغه عبدالله بن زيد بن عاصم انصاري دی، د بنو مازن ځخه دی، د احد په غزا کي شريک سو، مگر د بدر په غزا کي يې گډون ونه کړل، دا هغه صحابي دی چي مسيلمه کذاب يې د وحشي بن حرب سره ووژی، او دغه عبدالله د حره په پېښنه کي په ۶۳م هجري کال ووژل سو، دده ځخه عباد بن تميم چي دده وراره دی او ابن مسيب روايت کوي، عباد د باء موحده په تشديد سره دی.

۴۹۹. **عبدالله بن السائب**: دغه عبدالله بن سائب مخزومي قريشي دی، دده ځخه د مکې اوسېدونکو قرائت زده کړی دی، د مکې د اوسېدونکو ځخه شمېرل کيږي، د ابن زبير رضي الله عنه د وژني ځخه مخکي په مکه کي وفات سو، دده ځخه يوه ډله روايت کوي.

۵۰۰. **عبدالله بن سرجس**: دغه عبدالله بن سرجس مزني دی، ده ته مخزومي هم ويل کيږي، زما خيال دی چي دی د مخزوميانو حليف دی او مخزومي نه دی، دی بصري دی، دده حديث په بصره کي تر لاسه کيږي، دده ځخه عاصم احول او نور روايت کوي، په سرجس کي دوه سينونه دي چي په منځ کي يې جيم دی او د نرجس پر وزن دی.

۵۰۱. **عبدالله بن سلام**: دغه عبدالله بن سلام دی، دده کنيت ابو يوسف دی، اسرائيلي وو، د يوسف بن يعقوب عليه السلام د اولاد ځخه وو او د بني عوف بن خزرج حليف وو، د يهودي علماؤ ځخه وو او د هغه کسانو ځخه وو چا ته چي رسول الله ﷺ د جنت زيری ورکړی دی، دده ځخه دده دوه زامن يوسف او محمد او نور کسان روايت کوي، په مدينه کي په ۴۳م هجري کال وفات سو، په سلام کي پر لاندي باندي تشديد نسته.

۵۰۲. **عبدالله بن سهل**: دغه عبدالله بن سلام انصاري حارثي دی، د عبدالرحمن ورور او د محيصه وراره دی، دی په خيبر کي ووژل سو، دده يادونه په باب القسامة کي ده.

۵۰۳. **عبدالله بن الشخير**: دغه عبدالله بن شخير عامري دی، په بصريانو شمېرل کيږي، د رسول الله ﷺ په خدمت کي د بني عامر په وفد کي حاضر سو، دده ځخه دده دوه زامن مطرف او يزيد روايت کوي، په شخير کي شين معجمه او خاء معجمه دواړو باندي زېر دی، پر خاء باندي تشديد او ياء تحتاني ساکنه ده.

۵۰۴. **عبدالله بن الصنابحي**: د صنابحي زوی دی، ځينو ويلي دي چي دغه ابو عبدالله

دی او حافظ ابن عبدالبر ویلي دي: زما په نزد صحیح داده چې صنابحي ابوعبدالله تابعي دی، نه عبدالله صحابي، او هغه وویل چې عبدالله صنابحي په صحابوو کې مشهور نه دی او د صنابحي صحابي حدیث مؤطا امام مالک او امام نسائي په خپل سنن کې ذکر کړي دي.

۵۰۵. **عبدالله بن عامر** رضي الله عنه: دغه عبدالله بن عامر بن کریز قریشي دی، د حضرت عثمان رضي الله عنه د ماما زوی دی، د رسول الله ﷺ په زمانه کې پیدا سو، رسول الله ﷺ ته راوستل سو او د اعوذبالله په ویلو سره یې دم کړ، د رسول الله ﷺ د وفات په وخت کې یې عمر دیارلس کاله وو. ځینو ویلي دي چې د رسول الله ﷺ څخه یې روایت نه دی کړی او نه یې څه اورېدلي دي، په ۵۹م هجري کال کې وفات سو. حضرت عثمان رضي الله عنه د خراسان او بصرې والي ټاکلی وو او هلته حاکم وو تر دې چې حضرت عثمان رضي الله عنه شهید سو، بیا کله چې د امارت واگې حضرت معاویه ته منتقل سوې نو د خراسان او بصرې ولایت بیا ده ته ورکړل سو، ډېر سخي کریم او کثیر المناقب دی، خراسان یې فتح کړ او کسری د فارس پاچا دده په زمانه کې ووژل سو، او پر دې خبره د ټولو اتفاق دی چې ده د فارس ټول شاوخوا او همدارنگه خراسان، اصفهان، کرمان او حلوان یې فتح کړل، ده د بصرې ویاله جوړه کړې ده.

۵۰۶. **عبدالله بن عباس** رضي الله عنهما: د رسول الله ﷺ د اکا زوی دی او دده مور لبابه د حارث لور او د بي بي میمونې رضي الله عنها خور ده، د هجرت څخه درې کاله مخکې پیدا سول، د رسول الله ﷺ د وفات په وخت کې یې عمر دیارلس کاله یا پنځلس کاله وو، ځینو ویلي دي چې لس کاله عمر یې وو، د امت محمدیه لوی عالم او په غوره کسانو کې وو، رسول الله ﷺ ورته د دیني فهم او تفسیر قرآن دعاء کړې وه، جبرائیل علیه السلام یې دوه واره لیدلی دی، د مسروق قول دی چې کله به ما عبدالله بن عباس رضي الله عنهما ته کتل نو ما به ویل چې دی تر ټولو زیات ښکلی او جمیل دی، او کله چې به یې خبري کولې نو ما به ویل چې دی تر ټولو زیات فصیح او بلیغ دی. کله چې به یې حدیث بیانول نو ما به ویل چې دی تر ټولو زیات عالم دی، د حضرت عمر رضي الله عنه په نزد ډېر مقرب وو، د ځان سره یې نژدې کښېنوی او د سترو صحابه کرامو سره په مشوره کولو کې به یې دی هم کښېنوی، د عمر په پای کې ړوند سوی وو، د طائف په ښار کې په ۶۸م هجري کال د ابن زبیر په زمانه کې د ۷۱ کالو په عمر وفات سو، دده څخه ډېرو صحابه کرامو او تابعینو روایت کړی دی، د سور او سپین رنگ څښتن وو، د جگ قد والا وو، په رنگ کې یې د ژړوالي اثر وو، غټ، تازه او ښکلی وو، پر سر یې ډېر وېښتان وه او نکریزي به یې لگولې.

۵۰۷. **عبداللہ بن عمر** رضی اللہ عنہ : دغه عبدالله د عمر بن خطاب رضی اللہ عنہ زوی دی، قرشي عدوي دی، د خپل پلار سره یې په مکه کي په کوچنیوالي ایمان راوړی دی، د بدر په غزا کي شریک نه وو او د احد په غزا کي د ګډون په اړه اختلاف دی، صحیح خبره داده چي تر ټولو مخکي په کومه غزا کي شریک سوی دی هغه د خندق غزا وه، د ځینو دا بیان دی چي دی د بدر په ورځ د کوچنیوالي په وجه شریک نه کړل سو او رسول الله ﷺ د احد په غزا کي د ګډون اجازه ورکړل، یو روایت دادی چي د احد په ورځ بېرته واستول سو ځکه هغه وخت یې عمر څورلس کاله وو، تر دې وروسته د خندق په غزا او نورو ټولو غزاوو کي شریک وو، لوی عالم، زاهد، متقي او پرهیزګار انسان وو، په معاملاتو کي به یې ډېر غور او احتیاط کوی، جابر بن عبدالله رضی اللہ عنہ فرمایي: په موږ کي هیڅوک ونه ساتل سو چي دنیا ته مائل او کښته سوی نه وي ماسوا د حضرت عمر رضی اللہ عنہ او دهغه د زوی عبدالله بن عمر رضی اللہ عنہ څخه، د حضرت میمون بن مهران قول دی چي ما د ابن عمر رضی اللہ عنہ څخه زیات محتاط او پرهیزګار هیڅوک نه دی لیدلی او د حضرت عبدالله بن عباس رضی اللہ عنہ څخه زیات عالم مي نه دی لیدلی، حضرت نافع به ویل چي: عبدالله بن عمر رضی اللہ عنہ په خپل ژوند کي یو لک بلکه تر دې هم زیات انسانان د غلامۍ څخه ازاد کړي دي، د وحي د نزول څخه یو کال مخکي پیدا سو، په ۷۳م هجري کال کي د ابن زبیر د وژني څخه درې میاشتي وروسته او د ځینو په نزد شپږ میاشتي وروسته وفات سو، وصیت یې کړی وو چي ما په حل کي دفن کړئ، مګر د حجاج په وجه دا وصیت پوره نه کړل سو او په ذي طوی کي د مهاجرینو په هدېره کي دفن کړل سو، حجاج یو سړي ته حکم ورکړی وو چي د هغه مطابق هغه د خپلي نیزې لاندي زهر ګډ کړل او په لاره کي یې د هغه سره جګړه وکړل او د خپلي نیزې په زهرجنه څوکه یې نوموړی د قدم په شا کي ووهی او وجه ددې داوه چي حجاج یوه ورځ خطبه ویل او په لمانځه کي یې ډېر ځنډ وکړ، حضرت عبدالله بن عمر رضی اللہ عنہ ورته وفرمایل چي لمر ستا لپاره درېدلای نه سي، حجاج ورته وویل: زه غواړم چي ستا دید ته تاوان ورسوم، حضرت عبدالله ابن عمر رضی اللہ عنہ ورته وویل: که ته داسي وکړې نو څه تعجب دی ځکه چي ته ډېر ناپوه یې او پر موږ په زور حاکم یې، ځینو ویلي دي چي حضرت عبدالله رضی اللہ عنہ خپله دغه خبره کرار وکړل او حجاج نه واورېدل، حضرت عبدالله بن عمر رضی اللہ عنہ به د حجاج بن یوسف څخه پر ټولو مواقفو او مقاماتو کي چیري چي رسول الله ﷺ تم سوی یا کښته سوی وو، وړاندي وو، دا خبره حجاج ته ډېره ناخوښه وه، د عبدالله بن عمر رضی اللہ عنہ عمر ۸۴ کاله وو، او ځینو ۸۶ کاله

ويلي دي، دده څخه ډېر خلګ روايت کوي.

۵۰۸. **عبدالله بن عمرو بن العاص** رضي الله عنه: دغه عبدالله بن عمرو بن العاص سهمي قريشي دی، د خپل پلار څخه يې مخکې اسلام راوړ، پلار يې دیارلس کاله تر ده مشر وو او ځينو دوولس کاله ويلي دي، لوی عابد، عالم، حافظ او د کتابو ويونکی وو، د رسول الله ﷺ څخه يې د حديثو د ليکلو اجازه وغوښتل نو رسول الله ﷺ اجازه ورکړل، د وفات په اړه يې اختلاف دی، ځينو ويلي دي چې د حره په شپو کې د ذي الحجه په مياشت په ۶۴م هجري کال وفات سو، ځينو ۷۳م هجري کال ويلي دي او ځينو په مکه کې ۶۷م هجري کال ويلي دي، او ځينو په طايف کې ۵۵م هجري کال ذکر کړی دی، دده څخه ډېر خلګ روايت کوي، يعلي بن عطاء د خپلي مور څخه نقل کوي چې هغه به د عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه دپاره رانجه جوړول ځکه چې هغه به ټوله شپه عبادت کوی، د څراغ په مړه کولو سره به يې ډېر ژړل تر دې چې د سترګو باړوګان يې وختل، په ځينو نسخو کې رسخ يعني په سترګو کې نقص پيدا کېدل ليکلي دي.

۵۰۹. **عبدالله بن مسعود** رضي الله عنه: دغه عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دی، کنيت يې ابوعبدالرحمن دی. هذلي دي د رسول الله ﷺ په دار ارقم کې د داخلېدو څخه مخکې يې د حضرت عمر رضي الله عنه د اسلام راوړلو څخه لږ مخکې اسلام راوړی دی، او ويل سوي دي چې په اسلام راوړونکو کې شپږم کس دی، رسول الله ﷺ د ځان سره ساتلی وو، د رسول الله ﷺ په خاص خادمانو کې داخل سوی وو، د رسول الله ﷺ ډېر راز دان وو. د رسول الله ﷺ مسواک، څپلی. د اوداسه اوبه او د سفر سامان به يې دده سره وه، حبشې ته يې هجرت وکړ، د بدر په غزا او د هغه څخه وروسته په ټولو غزاوو کې يې ګډون کړی دی، رسول الله ﷺ د جنت زيری ورکړی وو او رسول الله ﷺ وفرمايل: څه چې د ام عبد زوی زما د امت لپاره خوښ کړي زه هم هغه خوښوم، او کوم شی چې د امت لپاره ناخوښه کړي زه هم هغه نه خوښوم، د رسول الله ﷺ مراد د ام عبد څخه حضرت ابن مسعود رضي الله عنه دی، نوموړی د رسول الله ﷺ سره په ظاهري صورت، حلم، وقار او سيرت کې ورته وو، سپک بدن والا، د کوچني قد څښتن، غنم رنګه او نحيفه الجثه وو، په کوفه کې د مسند قضاء مالک وګرځول سو او د هغه ځای د بيت المال ذمه داري هم د حضرت عمر رضي الله عنه په خلافت کې او د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت په پيل کې ده سپارل سوې وه، بيا دی مدينې ته راغلی او هلته په ۳۲م هجري کال وفات سو او په جنت البقيع کې دفن سو، عمر يې تقريبا شپېته کاله وو، دده څخه

حضرت ابوبکر صدیق، عمر، عثمان او علي رضي الله عنهم او نور صحابه کرام او تابعین روایت کوي.

۵۱۰. **عبدالله بن قرط** : نوموړی ازدي ثماني دی، دده نوم مخکي شیطان وو، رسول الله ﷺ دده نوم عبدالله کښېښود، په شامیانو کي شمېرل کیږي، دده حدیث په اهل شام کي تر لاسه کیږي، د عبیده بن جراح رضي الله عنه له خوا د حمص حاکم وو. دده څخه یوه ډله روایت کوي، د روم په هیواد کي په ۸۶م هجري کال کي ووژل سو، قرط د قاف په پېښ او راء مهمله سره دی.

۵۱۱. **عبدالله بن غنام** : دغه عبدالله بن غنام بیاضي دی، په اهل حجاز کي شمېرل کیږي، دده حدیث د دعاء په اړه : ربیعة بن ابي عبدالرحمن عن عبدالله بن عنبسة عن عبدالله بن غنام، سند سره دی.

۵۱۲. **عبدالله بن مغفل** رضي الله عنه : دغه عبدالله بن مغفل مزني دی، د اصحاب شجره څخه دی، یعني تر درختي لاندي د بیعت کوونکو څخه دی، په مدینه کي هستوګن وو، بیا د هغه ځایه بصرې ته ولاړی، نوموړی د هغه لسو کسانو څخه دی چي حضرت عمر رضي الله عنه بصرې ته استولي وه چي خلګو ته یې دین ښودی، په بصره کي په ۶۰ م هجري وفات سو، دده څخه د تابعینو یوه ډله چي په هغوی کي حسن بصري هم دي، روایت کوي، هغه وفرمایل: په بصره کي دده څخه زیات بزرګ هیڅوک نه دی راغلی.

۵۱۳. **عبدالله بن هشام** رضي الله عنه : دغه عبدالله بن هشام قریشي تمیمي دی، د اهل حجاز څخه شمېرل کیږي، دده مور زینب بنت حمید دی رسول الله ﷺ ته حاضر کړ کله چي دی ماشوم وو، رسول الله ﷺ خپل مبارک لاس پر راتېر کړ او دعاء یې ورته وکړل او د صغیر السن کېدو په وجه یې بیعت ونه کړ، دده څخه دده لمسی زهري روایت کوي.

۵۱۴. **عبدالله بن زید**: دغه عبدالله بن زید خطمي د انصارو څخه دی، کله چي دی د اوولسو کالو وو نو د حدیبیه په غزا کي حاضر سو، د حضرت عبدالله بن زبیر رضي الله عنه د خلافت په زمانه کي د کوفې والي او د هغه په خلافت کي وفات سو، شعبي دده کاتب وو، دده څخه دده زوی موسی او ابوبرده بن ابي موسی او نور کسان روایت کوي.

۵۱۵. **عاصم بن ثابت** رضي الله عنه : دغه عاصم بن ثابت دی ، کنیت یې ابوسلیمان دی، د انصارو څخه دی، دبدر په غزا کي شریک وو، دا هغه عاصم دی چي د عسلو موچې د مشرکانو څخه خوندي کړی وو، ځکه چي د مکې مشرکانو د رجیع په غزا کي دده سر پرې کول او د ځان سره وړل غوښتل، کله چي ده بنو لحیان قتل کړ، له دې کبله دده نوم حمي

الدبر من المشركين كنبښنودل سو . دغه عاصم بن ثابت د عاصم بن عمر بن خطاب نيكه دی، په يوه نسخه كي داسي دي چي رسول الله ﷺ د لسو كسانو يو كوچنی لښكر جوړ كړ چي د هغه امير دغه عاصم بن ثابت وو، دغه لښكر روان وو تر دې چي د مكې او عسفان منځ ته ورسېدی ، نو د قبيله لحيان تقريبا دوه سوه كسان په دوی پسې سول چي ټول غشي ويشتونكي وه او ددغه اسلامي لښكر تعاقب يې وكړ تر دې چي هغوی ته معلومات وسو چي د دوی د لاري توښه خرماوي دي ، نو هغوی وويل چي دا د يثرب يعني مدينې خرماوي دي ، كله چي عاصم او د هغه ملگرو دوی وليدل نو يو لوړ ځای ته يې پناه يووړل ، مگر كفارو دوی راگېر كړل او دا يې ورته وويل: تاسو لاندي راكښته سئ او ځان موږ ته وسپارئ ، تاسو ته زموږ له خوا امان دی، مگر عاصم وويل چي زه خو قسم په خدای ! د هيڅ كافر په ذمه داری نه راكښته كېږم ، اې الله! زموږ د حال خبر خپل نبي ته ورسوې، ددې په اورېدو سره كفارو پر هغوی غشي وويشتلې او عاصم يې په هغه اوو كسانو كي ووژی، الله ﷻ د عاصم دعاء قبوله كړل او رسول الله ﷺ ته يې د دوی د شهادت خبر وركړ، نو ددوی د وژني خبر رسول الله ﷺ او صحابه كرامو ته ورسېدی، د قريشو كفار چي د عاصم په قتل خبر سول نو يو قاصد يې واستوی چي هغوی ته د عاصم يو اندام راوړي چي دهغه ځخه معلومات وسي چي عاصم وژل سوی دی، نو الله ﷻ د عام د بدن د ساتني لپاره د عسلو موچې راولېږلې چي پر هغه سربېره خپرې سوې او د هغه د بدن ساتنه يې كول، نو قاصد د هغه د بدن پر اندام وړلو قادر نه سو ، دا د هغه بيان اختصار دی چي بخاري روايت كړی دی، دغه عاصم بن ثابت د عاصم بن عمر بن خطاب نيكه دی.

۵۱۶. **عامر الرام** : ده ته د رسول الله ﷺ د زيارت او روايت شرف حاصل سوی دی، دده ځخه ابو منظور روايت كوي، الرام د راء مهمله په زور سره دی ، دغه لفظ په اصل كي رامی دی چي ياء يې حذف سوې ده .

۵۱۷. **عامر بن ربيعه** : دده كنيت ابو عبد الله الغزی دی، حبشې او مدينې دواړو ته يې هجرت كړی دی، د بدر په غزا او نورو ټولو غزاوو كي شريک وو ، قديم الاسلام دی، ډېر كسان ور ځخه روايت كوي، په ۳۲م هجري كال كي وفات سو .

۵۱۸. **عامر بن مسعود** : دغه عامر بن مسعود بن اميه بن خلف حجمي دی، د صفوان بن اميه وراره دی، دده ځخه نمير بن عريب روايت كوي، امام ترمذي دده د حديث صوم په اړه نقل كړي دي او ويلي يې دي چي دغه حديث مرسل دی، ځكه چي عامر بن مسعود ، رسول

الله ﷺ نه دی لیدلی او ابن منده او ابن عبدالبر دده نوم په صحابوو کي ذکر کړی دی، ابن معین ویلي دي: دده صحبت نبوي نه دی په برخه سوی، عریب د عین مهمله په زور ، راء مهمله زېر او دوو ټکو والا یاء ساکنه ده او په آخر کي باء موحده ده.

۵۱۹. **عائذ بن عمرو**: دغه عائذ بن عمرو مدني دی، تر درختي لاندي د بیعت کوونکو څخه دی، په بصره کي وو او دده حدیث په بصریانو کي تر لاسه کیږي، دده څخه یوه ډله روایت کوي.

۵۲۰. **عباد بن بشر**: دغه عباد بن بشر انصاري دی، د سعد بن معاذ د اسلام راوړلو څخه مخکي ده په مدینه کي اسلام راوړی دی، د بدر او احد په غزا کي او په نورو ټولو غزاوو کي شریک وو، کومو کسانو چي کعب بن اشرف یهودي وژلی وو دی هم په هغوی کي داخل دی. د سترو صحابه کرامو څخه دی، دده څخه انس بن مالک او عبدالرحمن بن ثابت روایت کوي، د یمامه په جګړه کي شهید سو، عمر یې ۴۵ کاله وو، په عباد کي د عین زور او باء موحده په تشدید سره دی.

۵۲۱. **عباد بن عبدالمطلب**: دده یادونه په هغه حضراتو کي کیږي کوم چي د بدر په غزا کي شریک سوي وه. دده څخه روایت نه دی سوی، عباد د باء موحده په تشدید سره دی او مطلب د طاء په تشدید او لام په کسره دی.

۵۲۲. **عباده بن صامت** رضی الله عنه: دده کنیت ابوالولید دی، انصاري سالمي دی، نوموړی د نقیبانو څخه وو. په عقبه اولی، عقبه ثانیه او عقبه ثالثه کي شریک وو، د بدر په غزا او نورو ټولو غزاوو کي هم شریک وو، بیا حضرت عمر رضی الله عنه په شام کي قاضي او معلم وټاکی او دده مستقر یې حمص وګرځوی، تر دې وروسته فلسطین ته ولاړی او هلته په رمله کي او د ځینو په نزد په بیت المقدس کي په ۲۴م هجري کال د ۷۲ کالو په عمر وفات سو، دده څخه یوه ډله د صحابه کرامو او تابعینو روایت کوي، عباد د عین په پېښ او باء غیر مشدده ده.

۵۲۳. **عباس بن عبدالمطلب** رضی الله عنه: د رسول الله ﷺ اکا دی، د رسول الله ﷺ څخه دوه کاله مشر وو. دده مور د نمر بن قاسط ښځه ده چي پر کعبې شریفې یې د رېښمو او دیباج پوښ واچوی. او دا ځکه چي کله حضرت عباس رضی الله عنه په کوچنیوالي ورک سوی وو نو هغې نذر منلی وو که چیري هغه پیدا سي نو زه به پر بیت الله باندي پوښ اچوم، کله چي هغه پیدا سو نو همدا سي یې وکړل، حضرت عباس رضی الله عنه د جاهلیت په زمانه کي لوی مشر وو، د مسجد حرام دجوړښت او د اوبو ذمه داري دده وه، د زمزم اوبه ورکول خو یوه مشهوره

خبره ده، پاته سو جوړښت نو ددې حقیقت دادی چې حضرت عباس ﷺ به قریش پر دې
خبره اماده کول چې هغوی په کعبه شریفه کې د ښکنځلو او ګناهو په پرېښودو سره په خیر
او نیکۍ سره هغه اباده کړي ، دمجاهد بیان دی چې حضرت عباس ﷺ د خپل مرګ پر
وخت اویا غلامان ازاد کړل ، نوموړی د فیل د پېښې څخه یو کال مخکې پیدا سو او د
جمعې په ورځ د رجب د میاشتې پر دوولسمه نېټه په ۳۲م هجري کال د ۸۸ کالو په عمر
وفات سو او په جنت البقیع کې دفن سو ، په شروع کې یې اسلام راوړی وو ، مګر خپل
اسلام یې پټهوی ، د بدر په جګړه کې د مشرکینو له خوا مجبوره کړل سو او راغلی وو نو
رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چې د عباس سره یو ځای سي نو هغه دې نه وژني ځکه چې
هغه په زور جنګ ته راوستل سوی دی، ابوالیسر کعب بن عمر هغه بندي کړ ، حضرت
عباس ﷺ د خپل ځان فدیه ورکړل او مکې ته ولاړی او بیا مدینې ته په هجرت سره
تشریف راوړ ، دده څخه یوه ډله روایت کوي .

۵۲۴. **عباس بن مرداس** : دده کنیت ابوالهیثم دی، سلمی دی، شاعر دی دده شمېر په
مؤلفة القلوب کې دی، دمکې د فتح څخه لږ مخکې اسلام راوړ او دمکې د فتح څخه
وروسته په اسلام کې پختیا پیدا سول، دی د هغه کسانو څخه دی چې د جاهلیت په زمانه
کې یې هم شراب څښل حرام ګڼل، دده څخه دده زوی کنانه روایت کوي، کنانه د کاف په
کسره او دووو نونانو سره دی چې په منځ کې یې الف دی .

۵۲۵. **عبدالمطلب بن ربیعه** : دغه عبدالمطلب بن ربیعه بن الحارث بن عبدالمطلب بن
هاشم دی. قریشي دی په مدینه کې اوسېدی ، بیا د هغه ځایه دمشق ته ولاړی او هلته په
۶۲م هجري کال کې وفات سو ، دده څخه عبدالله بن حارث روایت کوي .

۵۲۶. **عبدالله بن محصن** : انصاري خطمي دی، په اهل مدینه کې شمېرل کېږي، دده
حدیث په هغوی کې تر لاسه کېږي، دده څخه دده زوی سلمه روایت کوي، حافظ ابن
عبدالبر ویلي دي چې ډېر خلګ دده حدیث ته مرسل وایي .

۵۲۷. **عبید بن خالد** : سلمي بهزي مهاجري دی، په کوفه کې اوسېدی ، دده څخه د
کوفیانو یوه ډله روایت کوي .

۵۲۸. **عتاب بن اسید**: قرشي اموي دی، دمکې د فتح په ورځ یې اسلام راوړ، رسول الله
ﷺ د مکې د فتح په ورځ چې کله یې د حنین د غزا لپاره تشریف وړی د مکې حاکم یې
ګرځولی وو ، کله چې رسول الله ﷺ وفات سو نو دی بیا هم د مکې حاکم وو ، حضرت

ابوبکرصدیق رضی اللہ عنہ هم د مکې حاکم وساتی تر دې چې په مکه کې په ۱۳م هجري کال په کومه ورځ چې ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ وفات سو، دی هم په هغه ورځ وفات سو، نوموړی د قریشو د مشرانو څخه وو. ډېر نیک او صالح سړی وو، دده څخه عمرو بن ابي عقرب روایت کوي، عتاب د عین په زور او سین په زبر سره دی.

۵۲۹. **عتبه بن اسید** رضی اللہ عنہ: کنیت یې ابوبصیر دی، ثقفي دی، د بني زهره حلیف دی، په شروع کې یې اسلام راوړی دی، د پیل څخه صحبت نبوي ور په برخه وو، دده یادونه د حدیبیه په غزا کې راځي، دا هغه دی چې دده په اړه رسول الله ﷺ وفرمایل: ددغه سړي پر مېړانه تعجب دی که دده سره یو څو نور زړه ور کسان وي نو دی د جنګ اور بنه تېزونکی دی، د رسول الله ﷺ په زمانه کې وفات سو، اسید د همزه په فتحه او سین مهمله په کسره دی.

۵۳۰. **عتبه بن عبدالسلمی**: ابن عبدالبر ویلي دي چې دغه عتبه د نذر زوی دی، او دا چې د ځینو رایه ده چې دواړه عتبه دوه جلا جلا کسان دي او دغه قول ته د هغوی میلان دی، بخاري رحمہ اللہ دغه دواړه جلا جلا کسان منلي دي، همدغه رایه د ابوحاتم رازي ده، ددغه عتبه نوم عقله وو، رسول الله ﷺ دده نوم عتبه ایښی وو، د خیبر په غزا کې شریک وو، دده څخه یوه ډله روایت کوي، د واقدي د قول مطابق په شام کې آخري وفات کېدونکی صحابي دی.

۵۳۱. **عتبه بن غزوان**: دغه عتبه بن غزوان مازني دی، قدیم الاسلام دی، مخکې یې حبشې ته هجرت وکړ او بیا مدینې ته، د بدر په غزا کې شریک وو، یو قول دادی چې دی ده د شپږو کسانو څخه وروسته اسلام راوړی دی، حضرت عمر رضی اللہ عنہ د بصرې حاکم ټاکلی وو. بیا دی حضرت عمر رضی اللہ عنہ ته راغلی نو هغه په والي ټاکلو سره بېرته واستوی، په ۵۱م هجري کال کې د ۵۷ کالو په عمر په لاره کې وفات سو، دده څخه خالد بن عمیر روایت کوي.

۵۳۲. **عدا بن خالد**: دغه عدا بن خالد بن هوذه عامري دی، دمکې د فتح څخه وروسته یې اسلام راوړی دی، دده حدیث د بصرې په خلګو کې تر لاسه کېږي، دده څخه ابورجاء او نور کسان روایت کوي، عداء د عین په فتحه او دال په تشدید سره دی.

۵۳۳. **عدي بن حاتم**: دغه عدي بن حاتم طائي دی، د شعبان په میاشت کې په اووم هجري کال د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر سو او کوفې ته راغلی، د جمل په جګړه کې د حضرت علي رضی اللہ عنہ په حمایت کې یې یوه سترګه چاودلې وه، د صفین او نهروان په جګړو

کي هم شریک سوی وو، په ۶۷ م هجري کال کي د ۱۲۰ کالو په عمر وفات سو، ځینو ویلي دي چي په فرفیسا کي وفات سو، دده څخه یوه ډله روایت کوي.

۵۳۴. **عدي بن عميره**: د غه عدي بن عميره كندي حضرمي دی، په کوفه کي هستوګن وو، بیا جزیرې ته منتقل سو او هلته وفات سو، قیس بن ابي حازم او نور دده څخه روایت کوي، عمیره د عین په فتحه، او راء او میم سره دی.

۵۳۵. **عرباض بن ساريه**: دده کنیت ابونجیح سلمي دی، د اهل صفه څخه وو، په شام کي یې هستوګنه اختیار کړل او هلته وفات سو، دده څخه ابوامامه او یوه ډله د تابعینو روایت کوي. نجیح د نون په زبر، د جیم په زېر او حاء مهمله سره دی.

۵۳۶. **عرفجه بن اسعد**: دده څخه دده زوی طرفه روایت کوي، دا هغه دی چي رسول الله ﷺ ورته حکم کړی وو چي خپله پزه د سپینو زرو جوړه کړي، بیا تر دې وروسته یې د سرو زرو جوړولو حکم ورکړی وو، په یوم کلاب کي دده پزه پرې سوې وه، کلاب د کاف په ضمه سره دی.

۵۳۷. **عروه بن ابي الجعد**: دغه عروه بن ابي الجعد بارقي دی، حضرت عمر رضي الله عنه د کوفې والي ټاکلی وو، په کوفیانو کي شمېرل کیږي، حدیث یې په کوفیانو کي تر لاسه کیږي، ځینو ویلي دي چي دی عروه بن ابي الجعد دی، ابن مدیني ویلي دي: څوک چي ده ته ابن الجعد وایي هغه غلطي کوي، عروه خو د ابوالجعد زوی دی، دده څخه شعبي او نور کسان روایت کوي.

۵۳۸. **عروه بن مسعود**: د حدیبیه په صلح کي د کفر په حالت کي شریک وو، په نهم هجري کال د طائف څخه په ستنېدو د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او په اسلام مشرف سو، دده په زوجیت کي ډېري ښځي وې، رسول الله ﷺ ده ته وفرمایل چي د دوی څخه څلور ښځي د ځان لپاره اختیار کړه، تر دې وروسته یې د ستنېدو اجازه وغوښتل او ستون سو، خپل قوم ته یې د اسلام دعوت ورکړ مګر قوم دده خبره ونه منل، کله چي د سهار د لمانځه وخت سو نو د خپل سرای بالاخانې ته وختی او آذان یې وکړ، کله چي یې اشهدان لااله الاالله وویل نو د بني ثقیف یو سړي په غشي وویشتی او شهید یې کړ، کله چي رسول الله ﷺ دده په وژنه خبر سو نو وه یې فرمایل: د عروه بن مسعود حال د هغه سړي په ډول دی چي د هغه یادونه په سورة یاسین کي ده چي هغه خپل قوم ته د الله جل جلاله دعوت ورکړ نو قوم هغه قتل کړ.

۵۳۹. **عطیه بن قیس** : دغه عطیه بن قیس سعدي دی، ده ته د رسول الله ﷺ روایت او رؤیت حاصل دی، اهل یمن او اهل شام دده څخه روایت کوي.

۵۴۰. **عطیه بن بسر** : دغه عطیه بن بسر مازني دی د عبدالله بن بسر ورور دی، امام ابوداؤد دده حدیث دده د ورور عبدالله سره داسي ذکر کړي دي : عن ابن بسر یعني د بسر د دواړو زامنو څخه روایت دی او د هغو دواړو نومان یې نه دی ذکر کړی دی ، دغه روایت په کتاب الطعام کي منقول دی، دده څخه مکحول روایت کوي .

۵۴۱. **عطیة القرظي** : دغه عطیه القرظي د بنو قریضه د بندیانو څخه دی، همدارنګه ویل کیږي، حافظ ابن عبدالبر ویلي دي: زه دده د پلار په نامه خبر نه یم ، ده رسول الله ﷺ لیدلی دی او د رسول الله ﷺ ارشادات یې اورېدلي دي، دده څخه مجاهد او نور کسان روایت کوي .

۵۴۲. **عقبه بن رافع**: دغه عقبه بن رافع قرشي دی ، په افریقه کي شهید کړل سو، دده وژونکي حریر دي، په ۶۳ هجري کال دغه پېښه رامنځته سوه، دده څخه یوه ډله روایت کوي دده یادونه په تعبیر الرؤیا کي راغلې ده .

۵۴۳. **عقبه بن عامر** : دغه عقبه بن عامر جهني دی، د حضرت معاویه رضي الله عنه له خوا د عتبه بن ابي سفیان څخه وروسته د مصر حاکم وو، بیا حضرت معاویه رضي الله عنه معزول کړ ، په ۸۵م هجري کال په مصر کي وفات سو ، دده څخه د صحابه کرامو او تابعینو ډېر کسان روایت کوي .

۵۴۴. **عقبه بن الحارث** : دغه عقبه بن الحارث قریشي دی د مکې د فتح په ورځ یې ایمان راوړ، د مکې په اوسېدونکو کي شمېرل کیږي، دده څخه عبدالله بن ابي ملیکه او نور کسان روایت کوي .

۵۴۵. **عکاشه بن محصن**: نوموړی اسدی دی د بني امیه حلیف وو، د بدر په غزا کي یې عجیبه کارنامه کړې وه، په نورو غزاوو کي هم شریک سوی وو ، دده توره د بدر په غزا کي ماته سوه نو د رسول الله ﷺ په برکت د هغه لرګي څخه توره جوړه سوې وه، دی د لوی فضل خاوند دی، د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د خلافت په زمانه کي د ۴۵ کالو په عمر وفات سو ، دده څخه ابوهریره او ابن عباس رضي الله عنهما او دده خور ام قیس روایت کوي، په عکاشه کي د عین پېښ او کاف باندي تشدید دی، او کاف غیر مشدد هم مستعمل دی، مګر د تشدید استعمال یې زیات دی، په پای کي شین معجمه دی ، په محصن کي پر میم زور ، حاء جزم او صاد باندي زېر دی په پای کي نون دی .

۵۴۶. **عقبه بن عمرو**: دغه عقبه بن عمرو دی. کنیت يې ابو مسعود دی، دده یادونه به د میم په حرف کي راسي.

۵۴۷. **عکرمه بن ابي جهل**: دغه عکرمه بن ابي جهل دی. دده د پلار ابو جهل نوم عرو بن هشام مخزومي قریشي دی. ده او دده پلار د رسول الله ﷺ سره سخته دښمني درلودل او دی په سپرتیا کي مشهور وو. د مکې د فتح په ورځ په تېښته یمن تللی وو، ددې وروسته دده ښځه ام حکم بنت حارث ور ورسېدل او دواړه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سول. رسول الله ﷺ چي ولېدی نو ښه راغلاست يې ورته وواېه، په اتم هجري کال کي د مکې د فتح څخه وروسته يې اسلام راوړ، او صحیح اسلام يې راوړ، د یرموک په جګړه کي په ۱۳ هجري کال د ۶۲ کالو په عمر کي قتل کړل سو. بي بئ ام سلمه د رسول الله ﷺ څخه په روایت کولو سره فرمايي: ما په خوب کي د ابو جهل لیاره په جنت کي د خرما درختي لېدلي وې. کله چي عکرمه اسلام راوړ نو رسول الله ﷺ وفرمایل: دا د هغه خوب تعبیر دی، عکرمه رسول الله ﷺ ته شکایت وکړ چي کله زه په مدینه کي ګرځم نو خلګ وايي چي دغه د الله جَلَّ جَلَالُهُ ددښمن ابو جهل زوی دی، ددې په اورېدو سره رسول الله ﷺ د خطبې لیاره ودرېدی. د الله جَلَّ جَلَالُهُ حمد او ثناء بیانولو څخه وروسته يې وفرمایل: خلګ د سپینو او سرو زرو د کانو په ډول دي، کوم چي د جاهلیت په زمانه کي ښه وه هغه د اسلام راوړلو څخه وروسته هم ښه دي.

۵۴۸. **العلاء بن الحضرمي**: دغه علاء بن حضرمي دی، نوم يې عبدالله دی، د حضرت موت اوسېدونکی دی، د رسول الله ﷺ له خوا د بحرین حاکم وو، حضرت عمر رضي الله عنه هم د خپل خلافت په زمانه کي د بحرین حاکم وساتی تر دې چي په ۱۴م هجري کال کي وفات سو. دده څخه سائب بن یزید او نور کسان روایت کوي.

۵۴۹. **علقمه بن وقاص**: دغه علقمه بن وقاص لیثي دی، د رسول الله ﷺ په زمانه کي پیدا سو. د خندق په غزا کي شریک سو. د عبدالملک بن مروان د حکومت په زمانه کي په مدینه کي وفات سو. دده څخه دده لمسی عمرو او محمد ابراهیم تیمي روایت کوي.

۵۵۰. **عمار بن یاسر**: دغه عمار بن یاسر عنسي دی. د بني مخزوم ازاد سوی او حلیف دی، دغه صورت داسي پېښ سو چي د حضرت عمار رضي الله عنه پلار یاسر په مکه کي د خپلو دوو وروڼو سره چي نومونه يې حارث او مالک وو، د خپل څلورم ورور په پلټنه کي راغلی بیا حارث او مالک یمن ته ولاړل مګر یاسر په مکه کي مقیم سو او د ابو حذیفه بن مغیره حلیفه

سو، ابوحذیفه ده ده نکاح د خپلي مینزي سمیه سره وکړل، د هغې څخه حضرت عمار رضي الله عنه پیدا سو، ابوحذیفه، حضرت عمار ازاد کړ نو عمار د ابوحذیفه ازاد سوی غلام دی او د ده پلار د هغه حلیف سو، حضرت عمار په پیل کي اسلام راوړی وو او د هغه کمزورو مسلمانانو څخه دی چي د الله جل جلاله په لاره کي ډېر تکلیفونه په مکه کي ورکړل سو ددې لپاره چي د اسلام څخه منع سي او دمکې مشرکانو دی په اور کي وسوځی، رسول الله صلی الله علیه وسلم چي به پر هغه تېرېدی نو پرده به یې خپل لاس مبارک راتېر کړ او فرمایل یې: اې اوره! ته پر عمار باندي یخ او سلامتي سه لکه څرنګه چي پر حضرت ابراهیم علیه السلام باندي سوی وې، دغه عمار د لومړنیو مهاجرینو څخه دی، د بدر په غزا او نورو ټولو غزاوو کي شریک وو، په غزاوو کي یې ډېر تکلیفونه وزغمل، دده نوم رسول الله صلی الله علیه وسلم الطیب المطیب کېښېنود، د صفین په جګړه کي د حضرت علي رضي الله عنه سره وو او هلته په ۳۷م هجري کال د ۹۳ کالو په عمر شهید سو، دده څخه یوه ډله چي په هغو کي حضرت علي او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما هم دي، روایت کوي.

۵۵۱. **عمرو بن الاحوص**: دغه عمرو بن الاحوص کلابي دی، دده څخه دده زوی سلیمان روایت کوي.

۵۵۲. **عمرو بن الاخطب**: دغه عمرو بن الاخطب انصاري دی، په خپل کنیت ابوزید سره مشهور دی، د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره یې په ډېرو غزاوو کي ګډون کړی دی، رسول الله صلی الله علیه وسلم دده پر سر خپل لاس مبارک راتېر کړی دی او د حسن او ښکلا لپاره یې ورته دعاء هم کړې ده، ویل کیږي چي تقریبا سلو کالو ته رسېدلی وو مګر په سر او ږېره کي یې یو څو سپین وېښتان وه، د بصرې په اوسېدونکو کي شمېرل کیږي، دده څخه یوه ډله روایت کوي.

۵۵۳. **عمرو بن امیه**: دغه عمرو بن امیه ضمري د ضاد په فتحه او میم په جزم سره دی، د بدر او احد په غزا کي د مشرکینو په ملګرتیا د مسلمانانو سره د جنګ لپاره راغلی وو، کله چي مسلمانان د احد د غزا څخه ستانه سول نو ده اسلام راوړ، دی د عربو د خاصو خلګو څخه دی او اول هغه میدان چي په هغه کي د مسلمانانو په ملګرتیا د جنګ لپاره وتلی دی، هغه د بیر معونه جنګ دی، عامر بن طفیل په دغه جنګ کي بندي کړي وو، بیا دده د تندي وېښتان یې پرې کړل او دی یې پرېښودی، رسول الله صلی الله علیه وسلم په شپږم هجري کال کي نجاشي ته استولی وو، کله چي ده د رسول الله صلی الله علیه وسلم لیک نجاشي ته ورسوی چي په هغه کي رسول الله صلی الله علیه وسلم، نجاشي ته د اسلام دعوت ورکړی وو، د رسول الله صلی الله علیه وسلم په دعوت نجاشي

په اسلام مشرف سو ، دی د اهل حجاز څخه شمېرل کیږي، دده څخه دده دوه زامن جعفر او عبدالله، او دده وراره زبرقان بن عبدالله روایت کوي، د امیر معاویه د امارت په زمانه کي په مدینه کي وفات سو، او ځینو ویلي دي چي په ۶۰م هجري کال ، زبرقان د زاء معجمه په کسره او باء موحده په جزم او راء مهمله په کسره او قاف سره دی .

۵۵۴. **عمرو بن الحارث** : دغه عمرو بن الحارث خزاعي دی، د رسول الله ﷺ د زوجې محترمي جویریه ﷺ ورور دی، د کوفې په اوسېدونکو کي شمېرل کیږي، دده څخه ابووائل شقیق بن سلمه او ابواسحاق سبیعي روایت کوي.

۵۵۵. **عمرو بن حریث**: دغه عمرو بن حریث قریشي مخزومي دی، د رسول الله ﷺ لېدنه یې په برخه سوې ده، د رسول الله ﷺ څخه یې حدیث اورېدلي دي، رسول الله ﷺ دده پر سر خپل لاس مبارک را تېر کړی دی او د برکت دعاء یې ورته کړې ده، ځینو ویلي دي چي د رسول الله ﷺ د وفات په وخت کي دده عمر دوولس کاله وو، کوفې ته راغلی او هلته هستوګن سو، د کوفې امیر وټاکل سو او په ۸۵ م هجري کال کي وفات سو، دده څخه دده زوی جعفر او نور کسان روایت کوي .

۵۵۶. **عمرو بن حزم** : کنیت یې ابوالضحاک دی، انصاري دی، د ۱۵ کالو په عمر تر ټولو مخکي د خندق په غزا کي حاضر سوی دی، رسول الله ﷺ پر نجران باندي په ۱۰ م هجري کال حاکم وټاکی، په ۵۳م هجري کال په مدینه کي وفات سو، دده څخه دده زوی محمد او نور کسان روایت کوي .

۵۵۷. **عمرو بن سعید**: دغه عمرو بن سعید قریشي دی،نوموړي دواړه هجرتونه کړي دي، حبشې ته په دوهم وار هجرت کي شریک وو ،تر دې وروسته یې مدینې ته هجرت وکړ او د جعفر بن ابي طالب په ملګرتیا کي د خیبر په کال راغلی دی، په ۱۳م هجري کال په شام کي وفات سو .

۵۵۸. **عمرو بن سلمه** : دغه عمرو بن سلمه مخزومي دی، د رسول الله ﷺ زمانه یې تر لاسه کړې ده، د رسول الله ﷺ په زمانه کي د خپل قوم امام وو ، ځکه چي په هغوی کي تر ټولو ښه قاري وو ، ځینو ویلي دي چي دی د خپل پلار سره رسول الله ﷺ ته راغلی ، دده د پلار د رسول الله ﷺ په خدمت کید حاضرېدو هیڅ ته اختلاف نسته ، بصرې ته په راتلو سره هلته اوسېدی ، دده څخه د تابعینو یوه ډله روایت کوي .

۵۵۹. **عمرو بن العاص** : دغه عمرو بن العاص سهمي قريشي دی، په ۵م هجري کال کي يې اسلام راوړ، او ځينو ويلي دي چي په ۸م هجري کال، د حضرت خالد بن وليد او عثمان بن طلحه په ملګرتيا کي د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او ټولو يوځای اسلام راوړی دی، رسول الله ﷺ د عمان حاکم جوړ کړی وو، او هلته حاکم وو تر دې چي رسول الله ﷺ وفات سو، ده د حضرت عمر، حضرت عثمان او حضرت معاويه رضي الله عنهم له خوا هم لوی لوی کارونه سرته ورسول او د حضرت عمر رضي الله عنه په ژوند کي د مصر حاکم وو، بيا حضرت عثمان غني رضي الله عنه هم هلته تر څلور نيم کالو پوري حاکم وساتی، او تر دې وروسته يې معزول کړ، بيا کله چي حضرت معاويه رضي الله عنه امير سو نو هغه بيا حاکم کړ، په مصر کي په ۴۳م هجري کال د ۹۰ کالو په عمر وفات سو، او دده څخه دده زوی عبدالله يې د مصر حاکم کړ، بيا حضرت معاويه معزول کړ، دده څخه دده زوی عبدالله او عبدالله بن عمر او قيس بن ابي حازم روايت کوي.

۵۶۰. **عمرو بن عبسه**: دغه عمرو بن عبسه دی، دده کنيت ابونجيح دی، سلمي دی، په پيل کي يې اسلام راوړی دی، ويل کيږي چي په اسلام راوړونکو کي څلورم سړی دی، بيا دی خپل قوم بني سليم ته واستول سو، رسول الله ﷺ ورته فرمايلي وه چي کله ته زما په اړه واورې چي زه د اسلام د دښمنانو لپاره راوتلی يم نو زما پيروي کوه، نو موړی په خپل قوم کي مقيم وو تر دې چي د خيبر غزا ختمه سول، ددې څخه وروسته دی د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او په مدينه منوره کي يې هستوګنه اختيار کړل، په شاميانو کي شمېرل کيږي، دده څخه يوه ډله روايت کوي، په عبسه کي عين او باء موحده او سين مهمله زور سره دی، نجيح د نون په زور، د جيم په زېر او حاء مهمله سره دی.

۵۶۱. **عمرو بن عوف**: دغه عمرو بن عوف انصاري دی، د بدر په غزا کي شريک وو، ابن اسحاق ويلي دي: چي دی د سهيل بن عمرو عامري ازاد سوی غلام دی، په مدينه کي وو، دده اولاد نسته، دده څخه مسور بن مخرمه روايت کوي.

۵۶۲. **عمرو بن عوف المزني**: قديم الاسلام دی او د هغو صحابه کرامو څخه دی چي دهغوی په اړه دغه آيت (تولوا واعينهم تفيض من الدمع..) نازل سوی وو، په مدينه يې هستوګنه اختيار کړل او په مدينه کي د امير معاويه په آخره زمانه کي وفات سو، دده څخه دده زوی عبدالله روايت کوي.

۵٦۳. **عمرو بن الحمق** : خزاعي دی، صحابي دي، دده شخه جبير بن نفير او رفاعه بن شداد او نور کسان روايت کوي، په موصل کي په ۵۱م هجري کال ووژل سو .

۵٦۴. **عمرو بن مره** : کنيت يې ابومريم دی ، جهني دي او ځينو ويلي دي چي ازدي دی. نوموړی په زياتو غزاوو کي شريک وو، په شام کي يې قيام وکړ او د امير معاويه په دور کي وفات سو ، دده شخه يوه ډله روايت کوي .

۵٦۵. **عمرو بن قيس** : ځينو ويلي دي چي دده نوم عبدالله بن عمرو قرشي عامري دی چي ړوند وو او د ام مکتوم زوی وو، د ام مکتوم نوم عاتکه دی، دی د بي بي خديجې بنت خويلد د ماما زوی دی، په مکه کي يې اسلام راوړی وو، د اولينو مهاجرينو شخه دی، حضرت معصب بن عمر سره يې هجرت کړی دی، ډېر واره رسول الله ﷺ په مدينه کي خپل خليفه ټاکلی دی، آخري وار هغه وو کله چي رسول الله ﷺ د حجة الوداع لپاره تشريف وړی وو ، په مدينه کي وفات سو او ځينو ويلي دي چي د قادسيه په جګړه کي شهيد سو .

۵٦٦. **عمرو بن تغلب**: دغه عمرو بن تغلب عبدي دی، د عبدالقيس د قبيلې شخه وو ، دده شخه بصري او نور روايت کوي، پر تغلب سربېره د دوو ټکو والا تاء او غين معجمه سره دی .

۵٦۷. **عکراش بن ذويب**: دغه عکراش بن ذويب تميمي دی، په بصريانو کي شمېرل کيږي، دده شخه دده زوی عبيدالله روايت کوي، دی د رسول الله ﷺ په خدمت کي د خپل قوم شخه د صدقو اخيستلو سره حاضر سوی وو ، په عکراش کي د عين زېر، کاف ساکن ، راء مهمله او شين معجمه دی.

۵٦۸. **عمران بن حصين** : دغه عمران بن حصين دی، دده کنيت ابونجيده دی، خزاعي او کعبي دی، د خيبر په کال يې اسلام راوړ، په بصره کي يې قيام وکړ او هلته په ۵۳م هجري کال وفات سو. لوی فاضل او فقيه صحابي دی، دده ، دی او دده پلار دواړه په اسلام مشرف سول. دده شخه ابورجاء او مطرف او زراره بن ابي اوفی روايت کوي، نجيد د جيم په پېښ ، د جيم په زور او ياء په سکون او دال مهمله سره دی .

۵٦۹. **عمير مولی آبی اللحم**: دغه عمير د آبی اللحم غفاري حجازي ازاد سوی غلام دی، دی د خپل بادار آبی اللحم سره د خيبر په فتح کي شريک وو ، دده شخه يوه ډله روايت کوي، ده د رسول الله ﷺ ارشادات واورېدل او ياد يې کړل، آبی اللحم د همزه په زور، دديې وروسته الف ساکن او باء موحده مکسوره ده .

۵۷۰. **عمیر بن الحمام** : انصاري دي، د بدر په غزا کي شریک وو او په هغه کي شهید سو، خالد بن اعلم شهید کړی وو، دده یادونه په کتاب الجهاد کي راځي، د ځینو خیال دی چي دغه عمیر په انصارو کي تر ټولو مخکي د اسلام لپاره شهید کړل سو.

۵۷۱. **عوف بن مالک** : دغه عوف بن مالک اشجعي دی، تر ټولو مخکي د خیبر په غزا کي شریک سو، دده سره اسلامي بېرغ وو، د خیبر د فتح په ورځ یعني د هغه د قوم اشجع په شام کي وه او هلته دی په ۷۳م کال وفات سو، دده څخه د صحابه کرامو او تابعینو یوه ډله روایت کوي.

۵۷۲. **عویم بن ساعده**: انصاري اوسي دی، په بیعت عقبه، بیعت ثانیه، بدر غزا او نورو ټولو غزاوو کي شریک وو، د رسول الله ﷺ په ژوند کي وفات سو، د ځینو خیال دی چي د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت په زمانه کي وفات سوی دی چي عمر یې ۶۵ کاله یا ۶۶ کاله وو، دده څخه حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه روایت کوي.

۵۷۳. **عویمر بن عامر** : دغه عویمر بن عامر ابو درداء دی، دی په خپل کنیت سره مشهور دی، دده یادونه د دال په حرف کي تېره سوې ده.

۵۷۴. **عویمر بن ابیض** : دغه عویمر بن ابیض عجلاني او انصاري دی، د انصارو حلیف دی، د لعان پېښه دده سره اړه لري، طبري ویلي دي چي لعان والا عویمر، عویمر بن حارث بن زید بن حارثه بن جد عجلان دی.

۵۷۵. **عیاض بن حمار** : دغه عیاض بن حمار تیمي مجاشعي دی، په بصریانو کي شمېرل کیږي، د رسول الله ﷺ پخواني رېښتوني محب دی دده څخه یوه ډله روایت کوي.

۵۷۶. **عصام مزني**: دغه عصام مزني دی ده ته د رسول الله ﷺ صحبت او روایت دواړه حاصل دي، ډېر کم حدیث بیانوي، دده حدیث په باب الجهاد کي دي چي د هغه تخریج امام ترمذي او ابوداؤد کړی دی، مګر دواړو دغه حدیث ده ته منسوب کړي نه دي.

۵۷۷. **عتبان بن مالک**: دغه عتبان بن مالک خزرجي سالمي دی، په بدر کي شریک وو، دده څخه حضرت انس او محمود بن ربیع روایت کوي، دامیر معاویه په زمانه کي وفات سو.

۵۷۸. **عماره بن خزیمه**: دغه عماره بن خزیمه بن ثابت انصاري دی، دی د خپل پلار او نورو څخه روایت کوي او دده څخه هم یوه ډله روایت کوي، عماره د عین په ضمه، میم غېر مشدد دی، دده په صحابي کېدو کي تردد سوی دی.

۵۷۹. **عماره بن رويبه**: دغه عماره بن رويبه ثقفي دی ، په کوفيانو کي شمېرل کيږي، ابوبکر رضي الله عنه او نور دده څخه روايت کوي، عماره د عين په پېښن او ميم غير مشدد دی .

۵۸۰. **عرس بن عميره** : دغه عرس بن عميره کندي دی، دده څخه دده وراره عدي او نور کسان روايت کوي، عرس د عين په ضمه ، راء په سکون او سين مهمله سره دی .

۵۸۱. **عياش بن ابي ربيعه**: دغه عياش بن ابي ربيعه مخزومي قريشي دی، دی د ابوجهل مور شريک ورور دی، د رسول الله ﷺ په دار ارقم کي د داخلېدو څخه مخکي يې اسلام راوړی دی ، حبشې ته يې هجرت وکړ بيا ده او حضرت عمر رضي الله عنه مدينې ته هجرت وکړ، ده ته د هشام دواړه زامن ابوجهل او حارث راغلل او ورته يې وويل: ستا مور قسم کړی دی چي تر څو پوري زه تا نه ووينم نو تر هغه وخته پوري به په سر کي تېل نه اچوم او نه به په سايه کي آرام کوم، ځکه دی د هغوی سره دخپل مور په خدمت کي حاضر سو نو هغوی دواړو په يوه رسۍ وتړی او په مکه کي يې بندي کړ ، رسول الله ﷺ دده لپاره په قنوت کي دعاء کول چي اې الله! عياش بن ابي ربيعه ته د کافرانو څخه خلاصون ورکړې، د يرموک په جګړه کي شهيد سو، دده څخه عمر بن خطاب او نور کسان روايت کوي، عياش د دوو ټکو والا ياء په تشديد او شين معجمه سره دی .

۵۸۲. **عابس بن ربيعه** : دغه عابس بن ربيعه غطيفي دی، د مصر په فتح کي شريک سو ، دده څخه دده زوی عبدالرحمن روايت کوي .

۵۸۳. **ابوعبيده بن الجراح** : دغه ابوعبيده عامر بن عبدالله بن جراح فهري قريشي دی، په عشره مبشره کي دی، د دغه امت امين ورته ويل کيږي، د حضرت عثمان بن مظعون سره يې اسلام راوړ، حبشې ته يې دوه واره هجرت وکړ ، په ټولو غزاوو کي د رسول الله ﷺ سره شريک وو او د رسول الله ﷺ سره د احد په غزا کي ثابت قدمه پاته سو ، ده د رسول الله ﷺ د جنګي خولۍ هغه دوې کړۍ چي د رسول الله ﷺ مخ مبارک ننوتلي وې ، را وکښلې چي د هغه په وجه يې د مخ دوه غاښونه شهيد سوي وه، د جګ قد خاوند ، ښکلی او ګڼې ږيرې والا وو ، په طاعون عمراس کي په ۱۸ م هجري کال په اردن کي وفات سو او په بيسان کي دفن کړل سو ، دده د جنازې لمونځ معاذ بن جبل رضي الله عنه ورکړ ، عمر يې ۵۸ کاله وو ، دده نسب د پلار له خوا د رسول الله ﷺ سره پر فهر بن مالک باندي يو ځای کيږي، دده څخه يوه ډله روايت کوي .

۵۸۴. **ابوالعاص بن الربيع** : دغه ابوالعاص مقسم بن ربيع دی،ويل کيږي چي دده نوم لقيط دی او دی د رسول الله ﷺ زوم وو، يعني د رسول الله ﷺ لور زينب دده په نکاح کي وه، د بدر په ورځ د بندي کېدو څخه وروسته چي د کفر په حالت کي وو، ازاد کړل سو، او په اسلام قبلولو سره يې رسول الله ﷺ ته هجرت وکړ، دده د رسول الله ﷺ سره ورورګلوي او رېښتوني مينه درلودل، د يمامه په جګړه کي د حضرت ابوبکر صديق ﷺ د خلافت په زمانه کي ووژل سو، دده ابن عباس، ابن عمر او ابن العاص ﷺ روايت کوي، مقسم د ميم په زېر، د قاف په سکون او سين په زور سره دی.

۵۸۵. **ابوعياش** : دغه ابوعياش زيد بن الصامت انصاري دی، زرقي دی، دده څخه يوه ډله روايت کوي، د هجرت په څلوېښتم کال وفات سو.

۵۸۶. **ابوعمرو بن حفص**: دغه ابوعمرو بن حفص بن مغيره مخزومي دی، دده نوم عبدالمجيد دی او احمد هم ورته ويل کيږي او ځينو دده کنيت ته دده نوم ويلي دي، په ځينو راويانو کي ابوحفص بن مغيره راغلی دی.

۵۸۷. **ابوعبس عبدالرحمن بن جبير**: انصاري حارثي دی، دده د نامه په نسبت دده کنيت زيات مشهور دی، د بدر په غزا کي شريک وو، په مدينه کي په ۳۴م هجري کال وفات سو، په جنت البقيع کي دفن سو، عمر يې اوويا کاله وو، دده څخه عبايه بن رافع بن خديج روايت کوي، عبس د عين مهمله په زور، باء موحده غير مشدد او شين مهمله سره دی، په عبايه کي د عين زور او باء موحده غير مشدده او په پای کي دوو ټکو والا ياء ده.

۵۸۸. **ابوعسيب**: دغه ابوعسيب د رسول الله ﷺ ازاد سوی غلام دی نوم يې احمر دی، دده څخه مسلم بن عبيد روايت کوي، عسيب د عين په زور او سين مهمله په زېر سره دی.

## تابعين رحمة الله عليهم.

۵۸۹. **عبدالله بن بريده** : دغه عبدالله بن بريده اسلمي دی، د مرو قاضي وو، د مشهورو تابعينو څخه يو باوري تابعي دی، د خپل پلار او نورو صحابه کرامو څخه روايت کوي. دده څخه ابن سهل او نور روايت کوي. په مرو کي وفات سو، دده ډېر حديثونه دي.

۵۹۰. **عبدالله بن ابي بکر**: دغه عبدالله بن ابي بکر بن محمد بن عمرو بن حزم انصاري مدني دی، د مدينې د سترو خلګو څخه دی، تابعي دی، د انس بن مالک او عروه بن زبير

ځخه روايت کوي او دده ځخه زهري ، مالک بن انس، ثوري او ابن عينيه ، دده ځخه ډېر حديثونه روايت سوي دي، داسي راوي دی چي د هغه صدق مسلم دی ، امام احمد فرمايلي دي : دده حديث شفاء دي، په ۱۳۵م هجري کال کي د ۷۰ کالو په عمر وفات سو .

۵۹۱. **عبدالله بن زبير** : دغه عبدالله بن زبير هغه دی چي کنيت يې ابوبکر دی، حميدي قريشي اسدي دی، په رواتو کي لوی باوري دی، د مسلم بن خالد ، وکيع او امام شافعي ځخه روايت کوي او د هغوی سره مصر ته تللی وو ، کله چي هلته امام شافعي رحمة الله عليه وفات سو نو دی مکې ته راستون سو ، دده ځخه محمد بن اسماعيل بخاري په خپل صحيح بخاري کي ډېر زيات روايت کوي، په مکه کي په ۲۱۹ هجري کال وفات سو ، يعقوب بن سفيان ويلي دي چي ما د حميدي ځخه زيات هيځوک د اسلام او مسلمانانو خيرخواه نه دی ليدلی .

۵۹۲. **عبدالله بن مطيع** : دغه عبدالله بن مطيع قرشي عدوي ديد مدينې اوسېدونکی دی ، ويل کيږي چي دی د رسول الله ﷺ په زمانه کي پيدا سو او دده پلار د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر کړ، دده د پلار نوم العاص وو ، رسول الله ﷺ د هغه نوم مطيع کښېښود او دغه عبدالله د قريشو د مشرانو ځخه دی، دا هغه سړی دی چي د مدينې اوسېدونکو د يزيد بن معاويه ځخه د فسخ بيعت وروسته ټاکلی وو ، واقدي بيان وکړ چي هغه خو يوازي پر قريشو باندي حکومت کونکی وو نه پر نورو باندي، او هغه عبدالله بن حنظله الغسيل دی چي پر قريشو او غير قريشو دواړو باندي يې حکمراني کول ، ده د خپل پلار ځخه حديث اورېدلي دي او دده ځخه شعبي او نور کسان روايت کوي ، عبدالله بن زبير رضي الله عنه د کوفې حاکم ګرځولی وو او بيا دی د کوفې ځخه مختار بن ابي عبيد ايستلی وو .

۵۹۳. **عبدالله بن مسلمه** : دغه عبدالله بن مسلمه بن قعنب تميمي مدني دی، د قعنبي په نامه سره مشهور دی، په بصره کي اوسېدی ، ډېر قول الحفظ ، د باور او د خطاء ځخه خوندي روايت کونکی دی، د حضرت مالک بن انس رضي الله عنه په شاګردانو کي دی، دده سره د هغه مصاحبت مشهور دی، هشام بن سعد او نورو امامانو ځخه يې حديث اورېدلي دي، دده ځخه بخاري، مسلم، ابوداؤد ، ترمذي او نسائي روايت کوي . د محرم په مياشت کي په ۲۲۱م هجري په مکه کي وفات سو .

۵۹۴. **عبدالله بن موهب** : دغه عبدالله بن موهب فلسطيني شامي دی، د فلسطين قاضي وو ، د تميم داري ځخه يې روايت کړی دی او قبيصه بن ذويب ځخه يې حديث اورېدلي

دي، د ځينو قول دی چي ده د تميم ځخه نه دي اورېدلي بلکه د قبيصه بن تميم ځخه يې اورېدل کړي دي او دده ځخه عمر بن عبدالعزيز روايت کوي.

۵۹۵. **عبدالله بن مبارک** رحمۃ اللہ علیہ : دغه عبدالله بن مبارک مروزي دی، د بني حنظله او نورو ازاد سوی غلام دی، د هشام بن عروه، امام مالک، ثوري، شعبه، اوزاعي او نورو ډېرو خلګو ځخه يې حديث اورېدلي دي او دده ځخه سفيان بن عينيه ، يحيی بن معين او نور کسان روايت کوي . د ربيانينو علماؤ ځخه وو، امام، فقيه، حافظ حديث، زاهد ، پرهيزګار، سخي، د باور وړ وو، اسماعيل بن عياش ويلي دي: د مځکي پر مخ باندي د عبدالله بن مبارک په ډول هيڅوک نه وو، نه د هغه ځخه په علم کي څوک زيات وو، الله جل جلاله د خير داسي خصلتونه نه دي پيدا کړي چي په عبدالله بن مبارک کي نه وه، بغداد ته يې په څو واره تشريف وړی دی او هلته يې درس حديث کړی دی، په ۱۱۸م هجري کال کي پيدا سو او په ۱۸۱ م هجري کال کي وفات سو .

۵۹۶. **عبدالله بن عکيم** : دغه عبدالله بن عکيم جهني دی، د رسول الله ﷺ زمانه يې تر لاسه کړې ده مګر د رسول الله ﷺ روايت وړ ځخه مشهور نه دی، مګر ډېر علماء معرفت رجال دی په صحابوو کي شمېري، مګر صحيح خبره داده چي دی تابعي دی، د عمر بن مسعود او حذيفه ځخه يې حديث اورېدلي دي او د هغوی ځخه يوه ډله روايت کوي، دده حديث په کوفيانو کي ترلاسه کيږي .

۵۹۷. **عبدالله بن ابي قيس**: دغه عبدالله بن ابي قيس دی، کنيت يې ابوالاسود دی، د شام اوسېدونکی دی، دعطيه بن عازب ازاد سوی غلام دی، په شاميانو کي شمېرل کيږي، دی د بي بي عائشې رضی اللہ عنہا ځخه روايت کوي او دده ځخه يوه ډله روايت کوي .

۵۹۸. **عبدالله بن عصم**: ده ته عبدالله بن عصمه هم ويل کيږي، کوفي او حنفي دی، دی د ابوسعيد او ابن عمر ځخه او دده ځخه اسرائيل او شريک روايت کوي، دده حديث دادی: په ثقيف کي به يو کذاب او مفسد اعظم وي.

۵۹۹. **عبدالله بن محيريز** : دده پوره نوم عبدالله بن محريز حجمي قرشي دی، د الله جل جلاله د نيکو بندګانو ځخه دی، د مشهورو تابعينو ځخه دی، د ابو محذوره ، عباده بن صامت او نورو ځخه روايت کوي او دده ځخه مکحول او زهري او داسي نور لوی محدثين روايت کوي، رجاء بن حيوة به ويل : که اهل مدينه د ابن عمر رضی اللہ عنہ په ډول عبادت کوونکي باندي

فخر کوي نو موږ هم پر خپل عابد او زاهد ابن محريز باندي فخر کوو، د ۱۰۰ م هجري کال څخه مخکي وفات سو .

۶۰۰. **عبدالله بن المثنی**: نوم يې عبدالله دی، د مثنی بن عبدالله بن انس بن مالک زوی دی، د خپلو اکاګانو او حسن څخه يې روايت کړی دی او دده څخه دده زوی محمد او مسدد او نور روايت کوي، ابوحاتم ده ته صالح ويلي دي او ابوداؤد وايي چي زه دده حديث نه تخريج کوم .

۶۰۱. **عبدالله بن عمرو بن حفص**: نوم يې عبدالله، د عمرو بن حفص بن عاصم زوی دی، او عمري دی، د خپل ورور عبيدالله، نافع او مقري څخه روايت کوي، قعنبي او نور کسان دده د روايت راويان دي، ابن معين دی صويلح يعني باصلاحيته ګرځولی دی، ابن عدي ويلي دي: لاباس به صدوق، دده څخه په روايت کولو کي څه پروا نسته ، رښتونی سړی دی، په ۱۷۱م هجري کال کي وفات سو .

۶۰۲. **عبدالله بن عتبه**: دغه عبدالله بن عتبه بن مسعود هذلي دی، د عبدالله بن مسعود وراره دی ، مدني دی بيا د کوفې اوسېدونکی سو، د نبوت زمانه يې ترلاسه کړل، د کوفې د لويو تابعينو څخه دی او د نورو صحابه کرامو څخه يې د حديث سماعت کړی دی، دده زوی عبدالله او محمد بن سيرين دده څخه روايت کوي، دبشر بن مروان دحکومت په زمانه کي په کوفه کي وفات سو .

۶۰۳. **عبدالله بن مالک بن بحينه**: پوره نوم يې عبدالله بن مالک بن القشب الازدي دی، دده مور بحينه ده دده د نيکه نوم حارث بن عبدالمطلب دی، د حضرت معاويه ﷺ د حکومت په زمانه کي په ۵۴م هجري کال وفات سو، په قشب کي قاف مکسور، شين منقوطه ساکن او ياء موحده ده .

۶۰۴. **عبدالله بن مالک**: دده نوم عبدالله بن مالک دی، کنيت يې ابوتميم جيشاني دی، د حضرت عمر بن خطاب، ابوذر او نورو صحابه کرامو څخه روايت کوي، د مصر د تابعينو څخه شمېرل کيږي دده حديثونه په اهل مصر کي ترلاسه کيږي .

۶۰۵. **عبدالله بن مالک** : دده نوم عبدالله بن مالک دی، د همدان اوسېدونکی دی، په صحابه کرامو کي د علي، عائشې او ابن عمر ﷺ څخه روايت کوي، ابواسحاق او ابوورق دده څخه روايت کوي، دده حديث په جمع بين الصلاتين کي دي .

۶۰۶. **عبدالله بن عبدالرحمن**: نوم يې عبدالله بن عبدالرحمن بن ابي حسن دی، دمکې اوسېدونکی او د قريشو د کورنۍ څخه دی، تابعي دی، د ابوطفيل څخه روايت کوي د تابعينو د يوې ډلې څخه يې حديث اورېدلي دي، مالک، ثوري او ابن عينيه دده څخه روايت کوي.

۶۰۷. **عبدالله بن عبيدالله**: نوم يې عبدالله بن عبيدالله بن ابي مليکه دی، د ابومليکه نوم زهير بن عبدالله التيمي دی، د قريشو څخه دی، دی احول دی، په مشهورو عالمانو او تابعينو کې دی، د حضرت عبدالله بن زبير ﷺ د حکومت په زمانه کې قاضي وو، د حضرت ابن عباس، حضرت ابن الزبير او بي بي عائشې ﷺ څخه روايت کوي، ابن جريج او دده څخه ماسوا نور ډېر کسان دده څخه روايت کوي، په ۱۱۷ م هجري کال کې وفات سو، په مليکه کې پر ميم باندې پېښ او لام باندې زور دی.

۶۰۸. **عبدالله بن شفيق**: کنيت يې ابوعبدالرحمان دی د بنوعقيل څخه دی، وطن يې بصره دی، مشهور د باور تابعي دی، د حضرت عثمان، حضرت علي او بي بي عائشې ﷺ څخه يې د حديثو اورېدل کړي دي او حريري دده څخه روايت کوي.

۶۰۹. **عبدالله بن شهاب**: ابوالحرب يې کنيت دی، خولانی دی د تابعينو په دوهمه ډله کې شمېرل کېږي، د اهل کوفه سره دده حديث تر لاسه کېږي، ده د ابن عمر او عائشې ﷺ څخه او يوې ډلې دده څخه د حديثو روايت کړی دی.

۶۱۰. **عبدالله بن رفاعه**: دغه عبدالله د رفاعه بن رافع زوی دی، انصاري او زرقي دی، مشهور تابعي دی، د خپل پلار رفاعه او فاطمه بنت عميس څخه روايت کوي او يوه ډله دده څخه روايت کوي.

۶۱۱. **عبيدالله بن عبدالله**: دده نوم عبيدالله بن عبدالله بن عمر او کنيت يې ابوبکر دی، د اهل مدينې څخه يې حديث اورېدلي دي، تابعي دی، امام زهري او نورو سترو تابعينو دده څخه روايت کړی دی، د خپل ورور سالم څخه مخکې وفات سو، دمحدثينو په نزد باوري دی، دده حديث په اهل حجاز کې دي.

۶۱۲. **عبيدالله بن عدي**: نوم يې عبيدالله بن عدي بن خيار قرشي دی، ويل کېږي چې دده زېږېدنه د رسول الله ﷺ په زمانه کې وسول، په تابعينو کې شمېرل کېږي، د حضرت عمر، حضرت عثمان او نورو صحابه کرامو ﷺ څخه روايت کوي، د وليد بن عبدالملک په زمانه کې وفات سو.

۶۱۳. **عبید بن عمیر** : دغه عبید بن عمیر دی، کنیت یې ابو عاصم دی، بنو اللیث دی، د حجاز او سېدونکی دی، د اهل مکه قاضي وو، د رسول الله ﷺ په زمانه کي پیدا سو، دا هم ویل کیږي چي ده د رسول الله ﷺ لېدنه کړې ده، په سترو تابعینو کي شمېرل کیږي، د حضرت عمر، حضرت ابوذر، حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص او بي بي عائشې رضي الله عنها څخه یې حدیث اورېدلي دي، دده څخه تابعینو هم روایت کړی دی، د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه مخکي وفات سوی دی.

۶۱۴. **عبدالرحمن بن کعب**: پوره نوم یې عبدالرحمن بن کعب بن مالک الانصاري دی، د مدینې د مشهورو او باوري تابعینو څخه دی، اکثر الروایت دی، د صحابه کرامو د یوې ډلي څخه روایت کوي، سلیمان بن یسار او نور کسان دده څخه روایت کوي.

۶۱۵. **عبدالرحمن بن الاسود**: عبدالرحمن بن الاسود قرشي زهري دی.

۶۱۶. **عبدالرحمن بن یزید**: پوره نوم یې عبدالرحمن بن یزید بن حارثه الانصاري دی، د مدینې او سېدونکی دی، وایي چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي پیدا سو، دده حدیث په اهل مدینه کي دي، په ۹۸ م هجري کال وفات سو.

۶۱۷. **عبدالرحمن بن ابي لیلی**: د انصارو څخه دی، د حضرت عمر رضي الله عنه په خلافت کي شپږ کاله پاته وه چي دی پیدا سو، په دجیل کي شهید سو، ځیني وایي چي د بصرې په ویاله کي ډوب سو او دا هم ویل کیږي چي په دیرجماجم کي په ۸۳م هجري کال د ابن الاشعبي د حملې په وخت کي ورک سو، دده حدیثونه په اهل کوفه کي دی، د خپل پلار او نورو صحابه کرامو څخه یې حدیث اورېدلي دي، دده څخه شعبي، مجاهد، ابن سیرین او د دوی څخه ماسوا نور ډېر خلک روایت کوي، د کوفې د تابعینو په اوله طبقه کي دی.

۶۱۸. **عبدالرحمن بن غنم**: نوموړی اشعري دی، د شام او سېدونکی دی، د جاهلیت او اسلام دواړي زمانې یې لېدلي دي، د رسول الله ﷺ په ژوند مبارک کي مسلمان سو مګر رسول الله ﷺ یې نه ولېدی، کله چي رسول الله ﷺ حضرت معاذ رضي الله عنه یمن ته واستوی نو دی د هغه سره او سېدی تر دې چي حضرت معاذ رضي الله عنه وفات سو، د اهل شام په فقهاؤ کي تر ټولو زیات فقیه وو، د عمر بن الخطاب او معاذ بن جبل رضي الله عنه په ډول متقدمینو صحابه کرامو څخه روایت کوي، په غنم کي غین منقوطه مفتوح او نون ساکن دی، په ۷۸ هجري وفات سو.

۶۱۹. **عبدالرحمن بن ابي عمره**: نوم يې عمرو بن محصن دی، انصاري او بخاري دی، د مدينې قاضي وو، د باوري تابعينو څخه دی، دده حديثونه مشهور دی، ده د خپل پلار عمرو بن محصن، عثمان او ابو هريره رضي الله عنهم څخه روايت کړی دی او دده څخه يوې ډلي روايت وکړ.

۶۲۰. **عبدالرحمن بن عبدالله**: دده نوم عبدالرحمن بن عبدالله بن ابي صعصه المازني انصاري دی، د خپل پلار عبدالله او عطاء بن يسار څخه روايت کوي، دده يوه ډله، مالک بن انس او نور کسان روايت کوي، دده حديثونه په اهل مدينه کي دي، په ۱۲۹م هجري کال وفات سو.

۶۲۱. **عبدالرحمن بن عبدالقادري**: ويل کيږي چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي پيدا سو، مگر نه يې د رسول الله ﷺ حديث اورېدلي دي او نه يې روايت بيان کړی دی، تاريخ پوه، واقدي د هغه صحابه کرامو په يادونه کي چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي پيدا سو، دی هم شمېرلی دی مگر مشهوره داده چي دی د مدينې د تابعينو او علماؤ څخه دی، د حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه څخه يې حديث اورېدلي دي، په ۸۱ م هجري کال د ۷۸ کالو په عمر وفات سو، په القاري کي قاف او راء مهمله مکسور او ياء مشدده ده او قاره ته يې نسبت دی.

۶۲۲. **عبدالرحمن بن عبدالله**: د مور نوم يې ام الحکم دی چي د ابو سفيان بن حرب لور ده، حضرت معاويه رضي الله عنه د کوفې امير ټاکلی وو، په باب خطبة يوم الجمعة کي دده نوم راځي.

۶۲۳. **عبدالرحمن بن ابي بکر**: دده زوی محمد دده څخه روايت کوي.

۶۲۴. **عبدالرحمن بن ابي بکره**: د انصارو د بنو ثقيف څخه دی، بصره يې وطن دی، په بصره کي په ۱۴م هجري کال د مسلمانانو په رسېدو سره تر ټولو مخکي دی پيدا سو، تابعي دی، ډېر حديثونه نقل کوي، د خپل پلار او حضرت علي رضي الله عنه څخه يې حديث اورېدلي دي، او دده څخه يوه ډله روايت کوي.

۶۲۵. **عبدالرحمن بن عبدالله**: پوره نوم يې عبدالرحمن بن عبدالله بن ابي عمار دی، د مکې اوسېدونکی دی، د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت کوي او د حضرت معاذ رضي الله عنه څخه يې حديث اورېدلي دي، يوه ډله دده څخه روايت کوي.

۶۲۶. **عبدالرحمن بن یزید**: نوم يې عبدالرحمن بن یزید بن اسلم مدني دی، د خپل پلار او ابن المنکدر څخه روایت کوي، قتیبه، هشام او نور کسان دده څخه روایت کوي، محدثینو ورته ضعیف ویلي دي، په ۱۸۲م هجري کال وفات سو.

۶۲۷. **عبدالعزیز بن رفیع**: اسدي مکي دی، په کوفه کي وو، مشهور تابعي دی، د ابن عباس او انس بن مالک رضي الله عنهما څخه يې حدیثونه اورېدلي دي حال دا چي تر نیوي کالو يې عمر زیات سوی وو، رفیع د رفع تصغیر دی.

۶۲۸. **عبدالعزیز بن جریج**: نوموړی مکي دی، د بي بي عائشې او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت کوي، فقیه عبدالمالک دده زوی او خصیف دده څخه روایت کوي.

۶۲۹. **عبدالعزیز بن عبدالله**: د مدینې د سترو فقهاؤ څخه دی، د امام زهري، محمد بن المنکدر، حمید الطویل او نورو ډېرو کسانو څخه يې حدیثونه اورېدلي دي، ډېر خلک دده څخه روایت کوي، بغداد ته يې تشریف راوړ او حدیث يې بیان کړل، په بغداد کي په ۱۶۴م هجري کال وفات سو، د قریشو په هدېره کي دفن سو.

۶۳۰. **عبدالملک بن عمیر**: قریشي کوفي دی، په قرشي کي قرشه ته نسبت دی، څوک چي نه پوهیږي نو هغه وايي چي قریشو ته منسوب دی حال دا چي داسي نه ده، هغه قرشه ته منسوب دی، د امام شعبي څخه وروسته د کوفې قاضي وو، په تابعینو کي مشهور او باوري دی، د کوفې د سترو کسانو څخه شمېرل کیږي، د جندب بن عبدالله او جابر بن سمره رضي الله عنهما څخه روایت کوي، ثوري او شعبه دده څخه روایت کوي، تقریبا په ۱۳۶م هجري کال د ۱۰۳ کالو په عمر وفات سو.

۶۳۱. **عبدالواحد بن ایمن**: مخزومي دی، دی د قاسم بن عبدالواحد پلار دی، هغه د حدیث روایت د خپل پلار او نورو تابعینو څخه کوي او دده څخه يوه لويه ډله روایت کوي.

۶۳۲. **عبدالرزاق بن همام**: ابوبکر يې کنیت دی، د ابن جریج، معمر او نورو څخه روایت کوي او دده څخه احمد، اسحاق او رمادي روایت کوي، ډېر کتابونه يې لیکلي دي، په ۲۱۱م هجري کال د ۸۵ کالو په عمر وفات سو.

۶۳۳. **عبدالحمید بن جبیر**: دغه عبدالحمید بن جبیر حجبي دی، د خپلي عمه صفیه او ابن المسیب څخه روایت کوي او دده څخه ابن جریج او ابن عینیه روایت کوي.

۶۳۴. **عبدالمهیمن بن عباس**: پوره نوم يې عبدالمهیمن بن عباس بن سهل دی، د بنو ساعده څخه دی، د خپل پلار او ابو حازم څخه روایت کوي، دده څخه مصعب او

يعقوب بن حميد بن کاسب روايت کوي، دده يادونه په الحذر والتاني کي ده.

۶۳۵. **عبدالاعلی**: نوم يې عبدالاعلی بن مسهر دی، ابومسهر يې کنيت دی،د غسان څخه دی، دشام بزرگ دی، د سعيد بن عبدالعزيز او مالک څخه روايت کوي او دده څخه ابن معين، ابوحاتم او ابن رواس روايت کوي، په خلګو کي تر ټولو زيات حافظ او د فصاحت خاوند دی، د وژلو لپاره لوڅ کړل سو چي د خلق القرآن د مسئلې اقرار وکړي، هغه وخت يې هم اقرار ونه کړاو انکار يې وکړ، بيا په بند کي واچول سو، د رجب په مياشت کي په ۲۱۸م هجري کال وفات سو.

۶۳۶. **عبدالمنعم**: دغه عبدالمنعم د نعيم زوی اسواري دی، د حريري او يوې ډلي څخه روايت کوي، يونس المورب او محمد بن ابي بکر مقدمي دده څخه روايت کړی دی.

۶۳۷. **عبدخير بن يزيد**: دغه عبد خير د يزيد زوی دی، کنيت يې ابوعماره دی، د همدان او سېدونکی دی، ويل کيږي چي د رسول الله ﷺ زمانه يې تر لاسه کړل مګر لېدنه يې ورسره ونه سول، د حضرت علي رضي الله عنه د ملګرو څخه دی، د محدثينو په نزد باوري او د اعتماد وړ دی، په کوفه کي هستوګن سو او ۱۲۰ کاله عمر يې وو، خير د شر ضد دی يعني په عبدخير کي د خير لفظ د شر ضد دی.

۶۳۸. **عمران بن خطان**: نوموړی دوسي او خزرجي دی، د بي بي عائشې، ابن عمر، ابن عباس او ابوذر رضي الله عنهم څخه يې حديثونه اورېدلي دي او دده څخه محمد ابن سيرين، يحيی بن ابي کثير او نور کسان روايت کوي، په حطان کي پر حاء مهمله باندي کسره، پر طاء مهمله باندي تشديد او په پای کي نوم دی.

۶۳۹. **عمرو بن شعيب**: دغه عمرو د شعيب بن محمد بن عبدالله بن عمرو بن العاص زوی او سهمي دی، د خپل پلار، ابن المسيب او طاؤس څخه يې حديثونه اورېدلي دي او دده څخه زهري، ابن جريج، عطاء او ډېرو خلګو روايت کړی دی، بخاري او مسلم په خپل صحيحين کي دده حديثونه نه دي اخيستي ځکه چي دی خپل روايت داسي نقل کوي: عن ابيه عن جده، او کله چي په سند کي اختصار کوي نو اوس که چيري د عن ابيه عن جده څخه مراد خپل پلار او نيکه وي نو معنی دا سول چي د خپل پلار او خپله نيکه محمد څخه روايت کوي چي د هغه نيکه د محمد څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ داسي وفرمايل، په دغه صورت کي روايت مرسل سو، ځکه چي محمد د هغه نيکه دی او د رسول الله ﷺ په لېدنه مشرف نه وو، نه يې هغه زمانه تر لاسه کړې ده او که ددغه سند مطلب دا وي چي

عمر د خپل پلار شعيب څخه او شعيب د خپل نيکه عبدالله څخه روايت کوي نو په دغه صورت کي سند متصل نه سو ځکه چي شعيب د خپل نيکه زمانه نه ده لېدلې، ددغه عيب په وجه امام بخاري او امام مسلم په صحيح بخاري او صحيح مسلم کي دده روايات نه دي اخيستي، دا هم ويل کيږي چي شعيب د خپل نيکه سره يو ځای سوی دی.

۶۴۰. **عمرو بن سعيد**: د بنوثقيف ازاد سوی غلام دی، په بصره کي اوسېدی، د حضرت انس رضي الله عنه او نورو څخه يې روايت کړی دی او دده څخه ابن عون او جرير بن عازم روايت کړی دی.

۶۴۱. **عمرو بن عثمان**: دغه عمر د عثمان بن عفان رضي الله عنه زوی دی، د اسامه بن زيد او خپل پلار عثمان بن عفان څخه يې حديث اورېدلي دي، په حديث البکاء علی الميت، کي دده يادونه ده، دده څخه مالک بن انس روايت کوي.

۶۴۲. **عمرو بن الشريد**: نوم يې عمرو دی، د شريد زوی دی، ثقفي او تابعي دی، په اهل طائف کي شمېرل کيږي، ابن عباس د هغه د پلار او د رسول الله ﷺ ازاد سوی غلام دی، د ابورافع رضي الله عنه څخه يې حديث اورېدلي دي، دده څخه صالح بن دينار او ابراهيم بن ميسره روايت کوي.

۶۴۳. **عمرو بن ميمون**: ازدي دی، د جاهليت او اسلام دواړي زماني يې ليدلي دي، د رسول الله ﷺ په ژوند مبارک کي مسلمان سوی وو، مگر لېدنه يې ورسره کړې نه ده، د کوفې د سترو تابعينو څخه دی، د عمر بن خطاب، معاذ بن جبل او ابن مسعود رضي الله عنهم څخه يې روايت کړی دی او د دده څخه اسحاق حديث اورېدلي دي، په ۷۴م هجري وفات سو.

۶۴۴. **عمرو بن عبدالله**: نوم يې عمرو او د عبدالله زوی دی، سبيعي دی دده يادونه د الف په حرف کي تېره سوې ده.

۶۴۵. **عمرو بن عبدالله**: نوم يې عمرو دی، د عبدالله بن صفوان زوی دی، حجمي دی او قريش نه دی، د يزيد بن شيبان څخه روايت کوي او دده څخه عمرو بن دينار او نور.

۶۴۶. **عمرو بن دينار**: دغه عمرو د دينار زوی دی، کنيت يې ابويحيی دی، د سالم بن عبدالله او نورو څخه روايت کوي او دده څخه حماد او معتمر، ځينو محدثينو ده ته په روايت کي ضعيف ويلي دي.

۶۴۷. **عمرو بن واقد**: دغه عمرو د واقد زوی د دمشق اوسېدونکی دی، د يونس بن ميسره او نورو څخه يې روايت کړی دی او دده څخه نفيلي او هشام بن عمار، محدثينو په

نزد د حدیث په معامله کي متروک دی .

۶۴۸. **عمرو بن مالک**: ابوثمامه یې کنیت دی، د جاهلیت د زمانې سړی دی، د کسوف حدیث او په باب الغضب کي د جابر د روایت څخه په مسلم کي دده یادونه سوې ده ، ویل کیږي چي دا هغه سړی دی چي رسول الله ﷺ ولیدی چي په دوږخ کي یې خپل لړی او کولمې راکشولې اوروان دی، په روایت کي خو داسي ده چي دغه سړي رسول الله ﷺ ولیدی هغه عمرو بن لحي دی ، لحی ربیعه بن حارثه دی او عمرو د خزاعه پلار دی .

۶۴۹. **عمرو بن عبدالعزیز** رحمة الله عليه: دغه عمرو دی د عبدالعزیز بن مروان بن حکم زوی دی، ابو حفص یې کنیت دی ، په قریشو کي د بنو امیه د کورنۍ څخه دی، دده مور ام عاصم د حضرت عمر بن خطاب لمسۍ او د عاصم لور ده، د ام عاصم نوم لیلی دی، د ابوبکر بن عبدالرحمن څخه یې روایت کړی دی او دده څخه زهري او ابوبکر بن حزم روایت کړی دی، په ۹۹م هجري کال د سلیمان بن عبدالملک څخه وروسته خلیفه سو ، د رجب په میاشت کي په ۱۰۱ هجري کال په دیرسمعان کي وفات سو ، دیرسمعان د حمص په سیمه کي دی ، د خلافت نېټه یې دوه کاله او پنځه میاشتي ده، هغه وخت یې عمر ۴۰ کاله وو، ویل کیږي چي څلوېښت کاله یې پوره سوي نه وه چي وفات سو ، نوموړي د عبادت، زهد، پاکۍ او ښو اخلاقو یو خاص مقام درلود ، په خاصه توګه د خلافت په زمانه کي، ویل کیږي چي کله خلافت ورکړل سو نو دده د سرای څخه د ژړا آواز اوریدل کېدی، په پوښتنه کولو سره معلومه سول چي عمر بن عبدالعزیز خپلو مینځو ته اختیار ورکړی دی چي په تاسو کي د چا ازادي زړه غواړي نو زه هغه ازادوم او زما سره د هغې هیڅ تعلق نسته، او د چا چي زما سره د اوسېدو خواهش وي هغه د ځان سره ساتم، ځکه چي ما ته داسي شی راکړل سوی دی چي د هغه په وجه زه تاسو ته متوجه کیدای نه سم، ددې په اورېدو سره ټولي مینزي په ژړا سوې ، عقبه بن نافع د هغه د ښځي فاطمه بنت عبدالملک څخه پوښتنه وکړل چي ته ما ته د عمر بن عبدالعزیز په اړه څه وښیه، نو هغې جواب ورکړ: د کوم وخت څخه چي الله جل جلاله خلافت ورکړی دی نو زه نه سم ویلای چي کله هغه د جنابت او احتلام په وجه غسل کړی وي تر دې چي هغه وفات سو ، هغې دا بیان هم وکړ : کیدای سي چي یو څوک د عمر بن عبدالعزیز څخه په روژو او لمونځو کي زیات وي مګر ما داسي سړی بالکل نه دی لېدلی چي هغه د عمر بن عبدالعزیز څخه زیات د خپل پروردګار څخه بیریږي، په کور کي په داخلېدو سره به یې ځان په مسجد کي غورځوی او په ژړا او زارۍ به بوخت

وو، تر دې چې پر سترګو به یې خوب غالب سو، بیابه را بېدار سو او په دعاء او ژړا به بوخت سو، ټوله شپه به یې دغه شغل وو، وهب بن منبه ویلي دي: که په دغه امت کي یو څوک مهدي دی نو هغه عمر بن عبد العزیز دی، مناقب یې ډېر زیات دي.

٦٥٠. **عمر بن عطاء**: دغه عمر د عطاء زوی او د خواري لمسی دی، د مکې په تابعینو کي شمېرل کیږي، دده حدیثونه په اهل مکه کي تر لاسه کیږي، د ابن عباس رضي الله عنه څخه یې روایت کول مشهور دي مګر د سائب بن یزید او نافع بن جبیر څخه هم روایت کوي، ابن جریج او نور کسان ور څخه حدیث روایت کوي، په خوار کي پر خاء معجمه پېښ او پر واو باندي زور او په پای کي راء مهمله ده.

٦٥١. **عمر بن عبدالله**: نوم یې عمر، د عبد الله بن ابي خثعم زوی دی، د یحیی بن کثیر څخه یې روایت کړی دی او دده څخه زید بن خباب او یوه ډله روایت کوي، بخاري ویلي دي: دده حدیث بې کاره دي.

٦٥٢. **عثمان بن عبدالله**: نوم یې عثمان د عبد الله بن اوس زوی او د بنو ثقیف څخه دی، د خپل نیکه او اکا عمرو څخه روایت کوي او دده څخه ابراهیم بن میسره او محمد بن سعید او یوه ډله ور څخه روایت کوي.

٦٥٣. **عثمان بن عبدالله**: نوم یې عثمان د عبد الله بن موهب زوی، د تمیم د کورنۍ څخه دی، د ابو هریره او ابن عمر رضي الله عنهما څخه روایت کوي او دده څخه شعبه او ابو عوانه.

٦٥٤. **علي بن عبدالله**: نوم یې علي د عبد الله بن جعفر زوی دی، د ابن مدیني په نامه مشهور دی، په مدیني کي پر میم باندي زور او پر دال باندي زېر دی، حافظ حدیث دی، د خپل پلار، حماد او نورو حضراتو څخه روایت کوي او دده څخه بخاري، ابویعلي او ابوداؤد روایت کوي، خپله دده استاد ابن مهدي وایي: ابن مدیني د رسول الله ﷺ حدیث تر ټولو زیات پېژني، امام نسائي ویلي دي: دده زېږېدنه ددغه کار دپاره سوې ده، د ذي قعده په میاشت په ۲۳۴م هجري کال د ۷۳ کالو په عمر وفات سو.

٦٥٥. **علي بن حسین** رضي الله عنه: نوم یې علي، دحضرت حسین رضي الله عنه زوی او د علي بن ابي طالب رضي الله عنه لمسی دی، کنیت یې ابو الحسن دی، د زین العابدین په نامه سره مشهور دی، د اهل بیتو څخه دی، په تابعینو کي ستر کس وو، امام زهري ویلي دي: په قریشو کي دده څخه زیات افضل ما هیڅوک نه دی لیدلی، په ۹۴ م هجري کال د ۵۸ کالو په عمر وفات سو او په بقیع کي په هغه قبر کي دفن کړل سو چي په هغه کي اکا حضرت حسن رضي الله عنه دفن وو.

٦٥٦. **علي بن منذر**: دغه علي د منذر زوی دی، کوفي دی، په طريقي سره مشهور دی، ډېر عبادت کوونکی وو، ويل کيږي چي ده پنځه پنځوس حجونه وکړل، ابن عينيه او د وليد بن مسلم څخه يې روايت کړی دی او دده څخه ترمذي، نسائي، ابن ماجه او نورو روايت کړی دی، ابن حاتم ويلي دي: دده حديث ما د خپل پلار سره واورېدل، باوري او رښتونی راوي دی، امام نسائي ويلي دي: خالص شيعي او باوري دی، په ۲۵۶م هجري کال وفات سو، په طريقي کي پر طاء مهمله باندي زور او پر راء مهمله باندي زېر او د ياء څخه مخکي قاف دی.

٦٥٧. **علي بن زيد**: په نسب قريشي دی، دبصرې اوسېدونکی دی، د بصرې په تابعينو کي شمېرل کيږي، د مکې اوسېدونکی وو، بصرې ته ولاړی او هلته پاته سوی وو، د انس بن مالک، ابو عثمان نهدي او ابن مسيب څخه يې حديث اورېدلي دي، دده څخه ثوري او نورکسان روايت کوي، په ۱۳۰م هجري کال وفات سو.

٦٥٨. **علي بن يزيد**: نوم يې علي بن يزيد الهاني دی، د قاسم بن عبد الرحمن څخه يې روايت کړی دی او دده څخه ځو کسانو روايت کړی دی، يوې ډلي ده ته په روايت کي ضعيف ويلي دي.

٦٥٩. **علي بن عاصم**: د واسط اوسېدونکی دی، د يحيى البكاء (ډېر ژړونکی او ډېري زاري کوونکی)، عطاء بن سائب او نورو ډېرو خلګو څخه يې روايت کړی دی او دده څخه احمد او نورو خلګو، ډېر خلګ ده ته ضعيف وايي، دده سره يو لک حديثونه دي، عمر يې ترنيوي کالو زيات وو.

٦٦٠. **العلاء بن زياد**: نوم يې علاء د زياد بن مطر زوی دی، د بنو عدي څخه دی، د بصرې اوسېدونکی دی، د دوهمي طبقې تابعي دی، د هغه خلګو څخه دی چي شام ته راغلل، دده څخه قتاده روايت کړی دی، په ۹۴م هجري کال کي وفات سو.

٦٦١. **عطاء بن يسار**: دغه عطاء د يسار زوی دی، دده کنيت ابو محمد دی د ام المؤمنين حضرت ميمونې رضي الله عنها ازاد کړی غلام دی، دمدينې د مشهورو تابعينو څخه دی، د ابن عباس رضي الله عنه څخه ډېر روايت کوي، په ۹۷م هجري کال د ۸۴ کالو په عمر وفات سو.

٦٦٢. **عطاء بن عبدالله**: په اصل کي د خراسان اوسېدونکی وو، په شام کي يې هستوګنه اختيار کړې وه، په ۵۰م هجري کال وفات سو، دده څخه مالک بن انس او معمر بن راشد روايت کوي.

۶۶۳. **عطاء بن ابي رباح** : نوم يې عطاء او د ابي رباح زوى دى، كنيت يې ابو محمد دى، دده وېښتان ډېر پيچلي وه ، تور رنګ يې وو ، پيته پزه يې وه په لاس ګوډ او يو سترګى وو، جليل القدر ، فقيه او دمكې د تابعينو څخه وو ، د امام اوزاعي وينا ده چي په كومه ورځ ذې وفات سو نو داسي وفات سو چي په هغه ورځ خلك تر هر چا د ده څخه زيات خوشحاله وه، امام احمد بن حنبل وايي: د علم خزانې چي الله ﷻ چا ته وركول غواړي نو ويشي يې، كه د علم سره د چا خصوصيت كيداى سواى نو ددې حق به تر ټولو زيات رسول الله ﷺ ته واى ، عطاء ابن ابي رباح حبشي وو ، سلمه بن كهيل وايي: ما يو سړى هم داسي نه دى ليدلى چي د هغه علم يوازي د الله ﷻ لپاره وي مګر درې كسان داسي وه: عطاء، طاؤس او مجاهد، نومړى په ۱۱۵ م هجري كال د ۸۸ كالو په عمر وفات سو . د ابن عباس، ابو هريره ، ابو سعيد ﷺ او نورو ډېرو صحابه كرامو څخه يې حديث اورېدلي دي او دده څخه يوه ډله روايت كوي .

۶۶۴. **عطاء بن عجلان** : نوم يې عطاء او د عجلان زوى دى، بصره يې هيواد دى ، د انس ابو عثمان نهدي او نورو كسانو څخه يې حديث اورېدلي دي او دده څخه ابن نمير او نور ډېر كسان روايت كوي، ځينو په روايت كي متهم كړى دى .

۶۶۵. **عطاء ابن السائب**: دده نوم عطاء د سائب بن يزيد زوى د كورنۍ په لحاظ ثقفي دى، په ۱۳۶ م هجري كي وفات وسو .

۶۶۶. **عدي بن عدي**: دده نوم عدي دى د عدي زوى دى، د بنوكنده څخه دى ، د خپل پلار عدي او رجاء بن حيوة څخه روايت كوي او دده څخه عيسى بن عاصم او نور روايت كوي .

۶۶۷. **عدي بن ثابت**: دده نوم عدي د ثابت زوى دى، ده د خپل پلار څخه او هغه دده د نيكه څخه روايت كړى دى ، ترمذي دده روايت په باب العطاس كي ذكر كړى دى، د عدي بن ثابت څخه ابو اليقظان روايت كوي ، ترمذي ويلي دي چي ما محمد بن اسماعيل يعني بخاري څخه پوښتنه وكړل چي د عدي بن ثابت نيكه څوک دى، نو هغه وويل : زه خو د هغه نوم نه پېژنم مګر يحيى بن معين يادونه كوي چي د هغه نوم دينار دى .

۶۶۸. **عيسى بن يونس**: دده نوم عيسى او د يونس بن اسحاق زوى دى، په حفظ او عبادت كي مشهور دى، د خپل پلار او اعمش څخه روايت كوي ، د حماد بن سلمه په ډول جليل القدر محدثين دده څخه روايت كوي، يو كال به بيت الله شريفي ته تلى او يو كال به

په جهاد کي تلی، په ۱۸۷ م هجري کال په حق ورسېدی .

۶۶۹. **عامر بن مسعود**: قریشي تابعي دی، د ابراهیم بن عامر پلار دی دده څخه شعبه او ثوري روایت کوي .

۶۷۰. **عامر بن سعد**: نوم يې عامر د سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه زوی دی، زهري او قریشي دی د خپل پلار سعد او حضرت عثمان رضي الله عنهما څخه يې حدیث اورېدلي دي او دده څخه زهري او نورو خلکو روایت کړی دی، په ۱۰۴م هجري کال وفات سو .

۶۷۱. **عامر بن اسامه**: دده نوم عامر دی د اسامه زوی دی، کنیت يې ابوالملیح دی، د بنوهذیل څخه دی، د بصرې اوسېدونکی دی، د خپل پلار اسامه ، بریده ، جابر، انس او نورو ډېرو څخه يې حدیث اورېدلي دي او دده څخه دده دوه زامن زیاد او میسر او نورو خلکو روایت کړی دی ، په ملیح کي پر میم باندي زور او لام باندي زور او حاء مهمله ده .

۶۷۲. **عاصم بن سلیمان**: دده نوم عاصم دی، د سلیمان زوی دی، کوږ سترګی دی، د بصرې اوسېدونکی او تابعي دی، د انس ، حفصه او نورو کسانو څخه يې روایت کړی دی ، ثوري او شعبه دده څخه حدیث روایت کوي، په ۱۴۲ هجري کال کي وفات سو .

۶۷۳. **عاصم بن کلیب**: د ده نوم عاصم، د پلار نوم يې کلیب دی، د جرم قبیلې څخه دی، دکوفې اوسېدونکی دی، د خپل پلار او نورو څخه يې حدیث اورېدلي دي او دده څخه ثوري او شعبه روایت کوي، دده حدیثونه د لمانځه، حج او جهاد په اړه دي .

۶۷۴. **عروه بن زبیر**: عروه د زبیر بن العوام زوی دی، کنیت يې ابوعبدالله دی، د قریشو د بنو اسد څخه دی، د خپل پلار حضرت زبیر رضي الله عنه او مور بي بي اسماء رضي الله عنها څخه يې حدیث اورېدلي دي، د دوی څخه ماسوا د خپلي خاله بي بي عائشې رضي الله عنها او نورو سترو صحابه کرامو څخه هم حدیث روایت کوي ، دده څخه دده زوی هشام او زهري روایت کوي، په ۲۲ م هجري کال پیدا سو ، د سترو تابعینو څخه دی په مدینه کي د اوو مشهورو فقهاؤ څخه وو، د ابوالزنا د قول دی چي په مدینه کي زموږ د هغه فقهاؤ څخه چي دهغوی په قول معامله ختمیږي د هغوی څخه سعید بن مسیب او عروه بن زبیر دی، او دځینو نورو حضراتو نوم يې هم واخیست، ابن شهاب ویلي دي: عروه یو داسي دریاب دی چي هیڅکله نه پای کیږي .

۶۷۵. **عروه بن عامر**: دده نوم عروه دی د عامر زوی دی، قریشي تابعي دی، د ابن عباس رضي الله عنه او نور څخه يې حدیث روایت کړی دی دده عمرو بن دینار او حبیب بن ثابت روایت

کوي، ابوداؤد دده حدیث په باب الطیره کي ذکر کړي دي، دغه روایت مرسل دی.

٦٧٦. **عبید بن عمیر**: دده نوم عبید د عمیر زوی دی کنیت یې ابوعاصم دی، د لیث کورنۍ څخه دی، د حجاز اوسېدونکی او د اهل مکه قاضي وو، د رسول الله ﷺ په زمانه کي پیدا سو، ویل کیږي چي د رسول الله ﷺ لیدنه یې هم وکړل، د سترو تابعینو څخه دی، دډېرو صحابه کرامو څخه یې حدیث اورېدلي دي او دده څخه ډېر تابعین روایت کوي، د ابن عمر رضي الله عنه څخه مخکي وفات سو.

٦٧٧. **عبید بن السباق**: دده نوم عبید دی، د سباق زوی دی، د حجاز اوسېدونکی دی، په تابعینو کي شمېرل کیږي، دده څخه کم حدیث نقل سوي دي، په اهل حجاز کي دده حدیثونه تر لاسه کیږي، د زید بن ثابت، سهل بن حنیف او بویریه څخه یې روایت کړی دی او دده څخه دده زوی سعید او نور کسان روایت کوي.

٦٧٨. **عبید بن زیاد**: دده نوم عبید د زیاد زوی دی، کلب دده دوهم نوم دی، دا هغه سړی دی چي د حسین بن علي رضي الله عنه د وژني لپاره یې لښکر بېولی وو، په هغه ورځو کي د یزید له خوا دکوفې امیر وو، د ابراهیم بن مالک اشتري په لاس په ٦١م هجري کال د مختار بن عبید په زمانه کي په موصل کي ووژل سو.

٦٧٩. **عکرمه**: د حضرت ابن عباس رضي الله عنه ازاد سوی غلام دی، ابوعبدالله یې کنیت دی، په اصل کي بربري دی، دمکې د فقهاؤ او تابعینو څخه دی، د ابن عباس رضي الله عنه او نورو صحابه کرامو څخه یې حدیث اورېدلي دي، یوه لویه ډله دده څخه روایت کوي، په ۱۰۷ م هجري کال د ۸۰ کالو په عمر وفات سو، د سعید ابن جبیر څخه خلګو پوښتنه وکړل چي تر تا لوی عالم بل څوک سته؟ هغه وویل: هو، عکرمه دی.

٦٨٠. **علقمه بن ابي عقلمه**: د ابوعلقمه نوم بلال دی، د ام المؤمنین بي بي عائشې رضي الله عنها ازاد سوی غلام دی، د انس بن مالک رضي الله عنه او خپلي مور څخه روایت کوي او دده څخه مالک بن انس او سلیمان بن بلال روایت کوي.

٦٨١. **عوف بن وهب**: دده نوم عوف او د وهب زوی دی، تابعي دی، کنیت یې ابوجحفه دی.

٦٨٢. **ابوعثمان بن عبدالرحمن بن مل**: نوم یې ابوعثمان، د عبدالرحمن بن مل زوی دی، د کورنۍ په اعتبار نهدي او د هیواد له خوا بصري دی، د جاهلیت او اسلام دواړي زمانې یې لېدلي دي، د رسول الله ﷺ په ژوند کي یې اسلام راوړی دی مګر لېدنه یې نه ده سوې، ویل کیږي چي د جاهلیت په زمانه کي یې تر اویا کالو زیات تېر کړل او تقریبا

همد و مره وخت يې په اسلام کي تېر کړ، په ۹۵م هجري کال کي وفات سو عمر يې ۱۳۰ کاله وو، د حضرت عمر، ابن مسعود او ابو موسی رضي الله عنه څخه يې حديث اورېدلي دي، دده څخه قتاده او نور حضرات روايت کوي . په مل کي پر ميم باندي ضمه او کسره دواړه دي، پر لام باندي تشديد دی .

۶۸۳. **ابو عاصم** رحمة الله عليه : دده نوم ابو عاصم دی، د شيبان د قبيلې څخه دی، دامام بخاري رحمة الله عليه استاد دی .

۶۸۴. **ابو عبيده**: د محمد بن عمار بن ياسر زوی دی، د عنس کورنۍ څخه دی، تابعي دي، د جابر رضي الله عنه څخه روايت کوي او دده څخه عبدالرحمن بن اسحاق روايت کوي، په عنس کي پر عين او نون زور او سين غير منقوط دی .

۶۸۵. **ابو عمير بن انس**: د انس بن مالک رضي الله عنه زوی دی، انصاري دي، ويل کيږي چي دده نوم عبدالله دی، د خپلو اکاګانو څخه روايت کوي، په کشرانو تابعينو کي شمېرل کيږي، د خپل پلار انس رضي الله عنه د وفات څخه وروسته تر اوږدې زمانې پوري ژوندی وو .

۶۸۶. **ابو العشراء**: کنيت يې ابو العشراء او نوم يې اسامه دی، دمالک زوی دی، د بنودارم څخه دی، تابعي دی، دخپل پلار څخه روايت کوي او دده څخه حماد بن سلمه ، په اهل بصره کي شمېرل کيږي، دده په نامه کي ډېر اختلاف دی او کوم چي ذکر سول هغه تر ټولو زيات مشهور قول دی، په العشراء کي پر عين باندي پېښ ، شين منقوط باندي زور او په پای کي الف ممدوده دی .

۶۸۷. **ابو العاليه رفيع**: ابو العاليه يې کنيت او رفيع يې نوم دی، دمهران زوی دی چي د رياح څخه دی، دغه نسبت دده د ازاد کېدو په وجه دی، دبصرې اوسېدونکی دی، د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په لېدنه مشرف سو ، د حضرت عمر او ابی بن کعب رضي الله عنهما څخه يې روايت کړی دی او دده څخه عاصم الاحول او نور کسانو ، حفصه چي د سيرين لور ده وايي ما د ابو العاليه څخه واورېدل چي هغه حضرت عمر رضي الله عنه ته درې واره قرآن واوروی، په ۹۰ م هجري کال کي وفات سو .

۶۸۸. **ابو العلاء**: ابو العلاء يې نوم دی د يزيد بن عبدالله بن الشخير زوی دی، د خپل پلار او خپل ورور مطرف او بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روايت کوي او دده څخه قتاده او يوه ډله روايت کوي، په ۱۱۱م هجري کال کي وفات سو .

۶۸۹. **ابوعبدالرحمن**: دغه ابوعبدالرحمن حبلي دی، نوم یې عبدالله د یزید زوی دی، دمصر اوسېدونکی او د عامر قبیلې څخه دی، تابعي دی، په الحبلی کي پر حاء مهمله باندي ضمه او باء موحده باندي هم ضمه ده.

۶۹۰. **ابوعطیه**: نوم یې ابوعطیه د بنوعقیل ازاد سوی غلام دی ځکه ورته عقیلي ویل کیږي، د مالک بن حویرث څخه روایت کوي.

۶۹۱. **ابوعاتکه**: د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت کوي، او دده څخه حسن بن عطیه او نور حضرات روایت کوي، دده په روایت کي ضعیف ګرځول سوی دی.

۶۹۲. **عتبه بن ربیعه**: نوم یې عتبه د ربیعه زوی دی، مسلمان نه سو، حضرت حمزه رضی الله عنه د بدر په غزا کي د شرک په حالت کي ووژی.

۶۹۳. **عبدالله بن ابی**: دده نوم عبدالله د ابی بن سلول زوی دی، سلول د خزاعه قبیلې څخه د یوې ښځي نوم دی، دا د اُبی ښځه ده، دغه عبدالله د منافقانو سردار دی، دده د زوی نوم هم عبدالله دی چي غوره صحابي او د فضیلت خاوند دی، د بدر په غزا کي شریک وو، او د هغه وروسته په نورو ټولو غزاوو کي هم شریک وو.

۶۹۴. **العاص بن وائل**: دده نوم عاص د وائل زوی دی، د بنوسهم څخه دی، حضرت عمرو بن العاص رضی الله عنه دده زوی او صحابي دی، عاص ته د اسلام دزمانې تر لاسه کېدو سربېره د اسلام توفیق ونه سو، ده وصیت کړی وو چي دده له خوا سل غلامان ازاد کړل سي، په باب الوصایا کي دده یادونه راځي.

## صحابي ښځي

۶۹۵. **عائشه صدیقه** رضی الله عنها: دغه محترمه ام المؤمنین عائشه صدیقه رضی الله عنها ده، د ابوبکر صدیق رضی الله عنه لور ده، ددې د مور نوم ام رومان بنت عامر بن عویمر دی، رسول الله صلی الله علیه وسلم ورسره د هجرت څخه مخکي د شوال په میاشت په لسم نبوي کال په مکه کي نکاح وکړل، د یوه روایت څخه معلومیږي چي دغه نکاح د هجرت څخه درې کاله مخکي وسول، نور قولونه هم نقل سوي دي، د شوال په میاشت کي په دوهم هجري کال د هجرت څخه اتلس میاشتي وروسته دبي بي عائشې رضی الله عنها رخصتي په مدینه کي وسول، هغه وخت ددې عمر نهه کاله وو، ویل کیږي چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم مدینې ته د راتګ څخه اووه میاشتي وروسته په مدینه کي دغه رخصتي په عمل کي راغلل، د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره نهه کاله وه، کله چي رسول الله

ﷺ وفات سو نو هغه وخت دبي بي عائشې ﷞ عمر اتلس کاله وو، رسول الله ﷺ د بي بي عائشې ﷞ څخه ماسوا د بلې پيغلې سره واده نه دی کړی، بي بي عائشه ﷞ فقيه، عالمه، فصيحه او فاضله ښځه وه، د رسول الله ﷺ څخه يې زيات روايتونه نقل کړي دي، د وقائع عرب، محارباتو او اشعارو سره ماهره وه، د صحابهٔ کرامو او تابعينو يوې لوی ډلې ددې څخه روايات نقل کړي دي، په مدينه منوره کي په ۵۷ م هجري کال يې په ۵۸ م هجري کال د رمضان المبارک په اووه لسمه نېټه د شنبې په شپه وفات سو، بي بي عائشې ﷞ وصيت کړی وو چي د شپې دي دفن کړل سي، په بقيع کي دفن کړل سول، حضرت ابو هريره ﷛ د جنازې لمونځ ورکړ، هغه وخت د حضرت معاويه ﷛ په زمانه کي مروان حاکم وو.

۶۹۶. **عمره بنت رواحه**: نوم يې عمره د رواحه لور او دانصارو څخه ده، نومورې صحابيه ده، د نعمان بن بشير مور ده ددې څخه ددې خاوند بشير ﷛ او ددې زوی نعمان بن بشير ﷛ روايت کوي.

۶۹۷. **ام عماره**: دغه ام عماره ده، نوم يې نسيبه د کعب لور ده، د انصارو څخه ده، په بيعت عقبه کي حاضره او شريکه سوې وه، د احد په غزا کي د خپل خاوند زيد بن عاصم په ملګرتيا کي شريکه وه، په بيعت الرضوان کي هم شامله سوې وه، بيا د يمامه په جګړه کي حاضره سوه او لاس په لاس جنګ يې وکړ، په دغه جنګ کي يې يو لاس ضائع سو او د توري او نېزې دوولس زخمونه يې وخوړل، يوه ډله ور څخه د حديثو روايت کوي، په عماره کي پر عين باندي ضمه او ميم غير مشدد دی، په نسيبه کي پر نون باندي زور او سين مکسور دی.

۶۹۸. **ام العلاء**: دغه ام العلاء انصاريه تابعيه ده، په اهل مدينه کي ددې حديثونه تر لاسه کيږي، ددې څخه خارجه بن زيد بن ثابت روايت کوي، ام العلاء دده مور ده، رسول الله ﷺ به يې په ناروغی کي پوښتنه کول.

۶۹۹. **ام عطيه**: ددې نوم نسيبه او د کعب لور ده، د ځينو په نزد د حارث لور ده، د انصارو څخه ده، د رسول الله ﷺ سره يې بيعت کړی دی، په سترو صحابياتو کي شمېرل کيږي، يوه ډله ور څخه د حديثو روايت کوي، د رسول الله ﷺ سره په اکثرو غزاوو کي شريکه وه، د ناروغانو درملنه او د زخميانو علاج به يې کوی، په نسيبه کي پر نون باندي ضمه او پر سين مهمله باندي زور او ياء تحتيه ساکن او باء موحده باندي زور دی.

## تابعي ښځې.

۷۰۰. **عمره بنت عبدالرحمن** : عمره بنت عبدالرحمن بن سعد بن زراره لور او د عائشې ﷺ په غېږ کې وه او هغه يې پاللې وه، عمره د عائشې ﷺ ډېر حديثونه روايت کړي دي او د نورو څخه هم، ددې څخه يوې ډلې روايت کړى دى، په ۱۰۳ م هجري کال کې وفات سول او د مشهورو تابعياتو څخه ده.

## غ - صحابه کرام ﷺ:

۷۰۱. **غضيف بن الحارث** : دده نوم غضيف دى، د حارث زوى دى، ثمالي دى، ابواسماء يې کنيت او شام يې هيواد دى، د رسول الله ﷺ زمانه يې تر لاسه کړې ده، دده په صحابي کېدو کې اختلاف دى، مګر خپلدده بيان دى چې زما زېږېدنه د رسول الله ﷺ په زمانه کې وسول، ما د رسول الله ﷺ سره بيعت وکړ او رسول الله ﷺ زما سره مصافحه وکړل، د حضرت عمر، ابوذر او عائشې ﷺ څخه يې حديث اورېدلي دي او دده څخه مکحول او سليم بن عامر روايت کړى دى، په غضيف کې پر غين معجمه باندي ضمه، پر ضاد معجمه باندي فتحه، ياء ساکنه او په پاى کې فاء ده، په ثمالي کې ثاء مضمون او ميم بېله شده دى

۷۰۲. **غيلان بن سلمه**: دده نوم غيلان دى، دسلمه زوى دى، د بنو ثقيف څخه دى، د طائف د فتح څخه وروسته مسلمان سوى دى او هجرت يې ونه کړ، د بنوثقيف د مشهورو کسانو څخه دى، ډېر ښه شاعر وو، د حضرت عمر ﷺ د خلافت په آخري زمانه کې وفات سو، حضرت عبدالله بن عمر او عروه بن غيلان او نور کسان دده څخه روايت کوي.

## تابعين ﷺ.

۷۰۳. **غالب بن ابي غيلان** : نوم يې غالب د ابوغيلان زوى دى، دده د خطاف القطان زوى هم ويل کيږي، بصره يې هيواد دى، د بکر بن عبدالله څخه يې روايت کړى دى او دده څخه ضمره بن ربيعه.

۷۰۴. **غريف بن عياش** : دغه غريف دى، د عياش بن الديلمي زوى دى، د واثله بن الاسقع څخه روايت کوي، په اهل شامو کې شمېرل کيږي، په غريف کې پر غين معجمه باندي زور او راء مهمله زېر او په پاى کې فاء ده.

۷۰۵. **ابوغالب**: د دغه ابوغالب نوم حزور د بنوباهله فرد دى، د بصرې اوسېدونکى دى، حضرت عبدالرحمن بن الحضرمي دى ازاد کړ، د ابوامامه څخه يې روايت وکړ او د هغه

سره یې په شام کې لیدنه وکړل، خپله دده څخه ابن عینیه او حماد بن زید روایت کوي، په حزور کې پر حاء مهمله باندې زور او زاء معجمه باندې زور، واو مشدد او په پای کې راء ده.

## ف - صحابه کرام رضی الله عنهم:

۷۰۶. **الفضل بن عباس**: دده نوم فضل، د رسول الله ﷺ د اکا، عباس رضی الله عنه زوی دی، د رسول الله ﷺ سره د حنین په غزا کې شریک وو، د رسول الله ﷺ سره چې کوم خلک په دغه غزا کې ثابت قدمه پاته سول په هغوی کې دی هم وو، په حجة الوداع کې هم شریک وو، د رسول الله ﷺ د غسل پر وخت دی هم د نورو سره موجود وو، بیا شام ته د جهاد لپاره ولاړی، یوازې د ۲۱ کالو په عمر په اردن کې د طاعون عمواس په وجه په ۱۸ م هجري کال وفات سو، ویل کیږي چې د یرموک په غزا کې شهید سو، نور هم ځیني اقوال راغلي دي، دده څخه دده ورور عبدالله بن عباس او ابوهریره رضی الله عنهما روایت کوي.

۷۰۷. **فضاله بن عبید** رضی الله عنه: د اوس قبیلې څخه دی، انصاري دی، د احد په غزا کې یې ګډون وکړ، په بیعت تحت الشجرة کې یې د رسول الله ﷺ په لاس بیعت وکړ، بیا شام ته منتقل سو او په دمشق کې هستوګن سو، د حضرت معاویه رضی الله عنه له خوا په دمشق کې د فصل خصومات کار یې کوی، دا هغه زمانه ده کله چې حضرت معاویه رضی الله عنه د جنګ صفین دپاره تشریف وړی، د حضرت معاویه رضی الله عنه په زمانه کې وفات سو، ویل کیږي چې په ۵۳م هجري کال کې وفات سو، دده څخه دده ازاد سوی غلام میسره او نور خلک روایت کوي، په فضاله کې فاء او ضاد معجمه باندې زور او په عبید کې پر عین مهمله باندې ضمه ده.

۷۰۸. **الفجیع بن عبدالله** رضی الله عنه: نوم یې فجیع، دعبدالله زوی د بنوعامر څخه دی، د رسول الله ﷺ په خدمت کې د خپل قوم سره حاضر سو او د رسول الله ﷺ څخه یې حدیثونه اورېدلي دي، وهب بن عقبه دده څخه روایت کوي، په الفجیع کې پر فاء باندې ضمه او پر جیم باندې فتحه، یاء ساکنه او تر هغه لاندې دوه ټکي او په پای کې عین مهمله دی.

۷۰۹. **فروه بن مسیک**: دغه فروه دی، دمسیک زوی دی، مرادي او غطیفي او داهل یمن څخه دی، د رسول الله ﷺ په خدمت کې په نهم هجري کال حاضر سو او مسلمان سو، کوفې ته منتقل سو. د حضرت عمر رضی الله عنه د خلافت په زمانه کې په کوفه کې اوسېدی، دده څخه شعبي او نور کسان روایت کوي، دخپل قوم د اشرافو او غوره خلکو څخه دی، غوره شاعر وو، په مسیک کې پر میم باندې ضمه او پر سین مهمله باندې فتحه او تحتیة ساکن

او په پای کي کاف دی.

۷۱۰. **فروه بن عمرو**: دغه فروه دی د عمرو زوی دی، بیاضي او انصاري دی، د بدر په غزا کي شریک سو، تر دې وروسته په نورو غزاوو کي هم شریک وو، دده څخه ابوحازم تمار روایت کوي.

۷۱۱. **فیروز الدیلمي**: دغه فیروز دیلمي دی، ده ته حمیري ویل کیږي ځکه چي ده په حمیر قبیله کي قیام کړی وو، په اصل کي فارسي الاصل دی، د صنعاء اوسېدونکی دی، د هغه خلګو څخه دی چي د رسول الله ﷺ په خدمت کي د وفد په توګه حاضر سو، د اسود عنسي کذاب قاتل دی، چي د رسول الله ﷺ د ژوند مبارک په اخري ورځو کي قتل کړل سو، او دده خبر رسول الله ﷺ ته په مرض الموت کي ورکړل سو، د فیروز دوه زامن ضحاک او عبدالله دده څخه روایت کوي، د حضرت عثمان ﷛ د خلافت په زمانه کي وفات سو، په العنسي کي پر عین باندي زور، نون ساکن او سین مهمله دی.

## تابعين رحمة الله عليهم.

۷۱۲. **الفرافصه بن عمیر**: دده نوم فرافصه دی د عمیر زوی دی، د بنو حنیف څخه دی، د حضرت عثمان بن عفان ﷛ څخه یې روایت کړی دی او دده څخه قاسم بن محمد او نور کسان روایت کوي، په الفرافصه کي دوې فاوي او راء غیر مشدد او صاد غیر منقوط دی، د محدثینو په نزد اوله فاء په فتحه سره ویل کیږي مګر ابن حبیب وایي چي په عربو کي فرافصه کله نوم وي نو اوله فاء به مضموم وي یوازي فرافصه بن الاحوص ددې څخه مستثنی دی، ددې معنی داده چي فرافصه بن عمیر د ابن حبیب د تحقیق مطابق د فاء په ضمه سره ویل کیږي، د اهل لغت په نزد دغه لفظ په هیڅ ځای کي د فاء په فتحه سره نه دی.

۷۱۳. **فروه بن نوفل**: د بنو اسجع څخه دی، په اهل کوفه کي شمېرل کیږي، د خپل پلار او عائشي ﷝ څخه یې حدیث اورېدلي دي او دده څخه ابواسحاق همداني او بلال بن یسار روایت کوي.

۷۱۴. **ابن الفرک**: کنیت یې ابن الفرک او نوم یې احمد بن زکریا بن فارس دی، د لغت ماهر دی، په همدان کي هستوګن وو، د اهل علم سردار وو، په بلاد الجبل کي د هستوګني په وخت کي یې اتقان العلم، ظرف الکتاب والشعراء مضامین جمع کړل، دده پلار ته فراس او فرسي ویل کیږي، دده د رسول الله ﷺ سره یو ځای کېدل ثابت دي، په الفراس کي

پر فاء باندي كسره او راء بېله شده او سين غير منقوط دى .

## صحابي ښځي

۷۱۵. **فاطمة الكبرى** ﷺ: دغه فاطمه الكبرى د رسول الله ﷺ لور ده، ددې مور محترمه بي بي خديجه ﷺ ده، د يوه روايت مطابق د رسول الله ﷺ تر ټولو كشره لور ده، د دنيا او آخرت د ټولو ښځو سرداره ده، په اول هجري كال د رمضان په مياشت كي ددې نكاح د حضرت علي بن ابي طالب ﷺ سره وسول، او په ذي الحجه كي رخصتي په عمل كي راغلل، ددې ځخه د حضرت علي ﷺ درې زامن، حضرت حسن، حضرت حسين او محضرت محسن ﷺ او درې لوڼي: زينب، ام كلثوم، او رقيه پيدا سوې، په مدينه كي د رسول الله ﷺ د وفات ځخه شپږ مياشتي وروسته وفات سول، او د يوه روايت مطابق درې مياشتي وروسته، هغه وخت يې عمر ۲۸ كاله وو، حضرت علي ﷺ غسل وركړ او حضرت عباس ﷺ يې د جنازې لمونځ وركړ، د شپې دفن كړل سول، ددې ځخه حضرت علي بن ابي طالب ﷺ او ددې دواړه زامن حضرت حسن او حضرت حسين ﷺ او د دوى ځخه ماسوا نور ډېر صحابه كرام روايت كوي، بي بي عائشه ﷺ فرمايي: د رسول الله ﷺ ځخه ماسوا ما هيڅوک تر دې زيات رښتوني نه دى ليدلى ، هغې وفرمايل: كله چي به د هغوى دواړو په منځ كي پر يوه خبره خفګان وو نو ما به ويل چي اې د الله رسوله! ددې ځخه پوښتنه وكړه ځكه چي دا دروا غ نه وايي .

۷۱۶. **فاطمه بنت ابي حبيش**: دغه فاطمه د ابو حبيش لور ده چي په استحاضه كي اخته سوې وه، ددې ځخه عروه بن زبير او ام سلمه روايت كوي، دغه فاطمه د عبدالله بن حجش ښځه وه ، حبيش د حبش تصغير دى .

۷۱۷. **فاطمه بنت قيس**: دغه فاطمه د قيس لور ده ، د ضحاک خور ده د قريشو ځخه ده، د اولو مهاجرينو ځخه ده، ډېرو خلګو ددې ځخه روايت كړى دى ، نېک خويه، پوهه او باكماله ښځه ده، مخكي د ابوعمرو بن حفص په نكاح كي وه وروسته هغه طلاق وركړ نو رسول الله ﷺ ددې نكاح د اسامه بن زيد ﷺ سره وكړل ، زيد د رسول الله ﷺ ازاد سوى غلام وو .

۷۱۸. **الفريعة بنت مالك**: ددې نوم فريعه دى، د مالک بن سنان لور د او د ابو سعيد خدري ﷺ خور ده، په بيعت الرضوان كي حاضره وه، د بيعت الرضوان د پېښي روايت دې

کړې دی، دده حدیثونه په اهل مدینه کي دي، بي بي زینب بنت کعب بن حجره دده ځخه روایت کوي ، په الفریعه کي پر فاء باندي ضمه ، پر راء باندي فتحه ، یاء ساکنه او عین مهمله دی.

۷۱۹. **ام الفضل**: دغه ام الفضل لبابه ده، دحارث لور ده او د بنو عامر ځخه ده، د حضرت عباس بن عبد المطلب ښځه او د هغه د اکثرو اولادو مور ده، د ام المؤمنین بي بي میمونې خور ده، ویل کیږي چي د بي بي خدیجې ﷺ ځخه وروسته تر ټولو ښځو مخکي دې ایمان راوړ، د رسول الله ﷺ ځخه ډېر حدیثونه روایت کوي .

۷۲۰. **ام فروه** : دغه ام فروه انصاریه ده، د بیعت کوونکو ځخه ده، قاسم بن غنام دده ځخه روایت کوي .

## تابعي ښځي

۷۲۱. **فاطمة الصغری** : دغه فاطمة الصغری ده، د حضرت حسین بن علي بن ابي طالب لور ، قریشیه هاشمیه ده، دده نکاح د حضرت حسن بن حسن بن علي بن ابي طالب سره وسول، کله چي هغه وفات سو نو عبد الله بن عمرو بن عثمان بن عفان ورسره نکاح وکړل .

## ق - صحابه کرام رضی اللہ عنہم :

۷۲۲. **قبیصه بن ذویب** : دغه قبیصه دی د ذویب زوی او د بنو خزاعه ځخه دی، د هجرت په اول کال پیدا سو ، ویل کیږي چي دغه قبیصه د رسول الله ﷺ په خدمت کي راوستل سو او رسول الله ﷺ ورته دعاء وکړل ځکه دی لوی عالم او فقیه وو . ابو الزناد وایي : ځلور کسان په مدینه کي مشهور فقیه وه: ابن مسیب، عروه بن زبیر، عبد الملک بن مروان، قبیصه بن ذویب، دی د ابو هریره، ابو درداء او زید بن ثابت رضی اللہ عنہم ځخه روایت کوي او دده ځخه امام زهري او نور حضرات روایت کوي، په ۸۶ م هجري کال کي وفات سو ، دا د ابن عبد البر رایه ده چي هغه په خپل کتاب کي درج کړې ده او دی یې په صحابوو کي شامل کړې دی، نورو حضراتو په صحابوو کي نه دی شامل کړی دی، بلکه د شام د تابعینو په دوهمه طبقه کي یې شامل کړی دی، په قبیصه کي پر قاف باندي زور او باء موحده لاندي زېر او ذویب د ذئب تصغیر دی .

۷۲۳. **قبیصه بن مخارق**: دغه قبیصه د مخارق زوی دی، د بنو هلال ځخه دی، د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو ، دده شمېر په اهل بصره کي کیږي، دده ځخه دده زوی قطن

او ابوعثمان نهدي او نور كسان روايت كوي، په مخارق كي پر ميم باندي ضمه، خاء معجمه او راء او قاف دی.

۷۲۴. **قبيصه بن وقاص**: دغه قبيصه د وقاص سلمي زوی دی، په بصره كي هستوګن سو په اهل بصره كي شمېرل كيږي، دده څخه صالح بن عبيد روايت كوي.

۷۲۵. **قتاده بن النعمان**: دغه قتاده د نعمان زوی دی د انصارو څخه دی، په بيعت عقبه او د بدر په غزا كي د شركت په وجه عقبي او بدري ورته ويل كيږي، تر دې وروسته په ټولو غزاوو كي شريک وو، دده څخه دده اخيافي ورور ابوسعيد خدري رضي الله عنه، دهغه زوی او نور كسان روايت كوي، په ۲۳ م هجري كال د ۵۶ كالو په عمر وفات سو، حضرت عمر رضي الله عنه د جنازې لمونځ وركړ، د سترو صحابه كرامو څخه دی.

۷۲۶. **قدامه بن عبدالله**: نوم يې عبدالله، د عبدالله زوی او د بنو كلاب څخه دی، پخوانی مسلمان دی، په مكه كي هستوګن سو او هجرت يې ونه كړ، په حجة الوداع كي حاضر وو، د خپلي قافلې سره په بدر كي تم سوو، دده څخه ايمن بن نائل او نور كسان روايت كوي، په قدامه كي پر قاف باندي ضمه او دال مهمله بلا تشديد دی.

۷۲۷. **قدامه بن مظعون**: دغه قدامه د مظعون زوی دی، قرشي او حجمي دی، د عبدالله بن عمر ماما دی، د مكې څخه يې حبشې ته هجرت وكړ، د بدر په غزا او نورو ټولو غزاوو كي شريک وو، عبدالله بن عمر او عبدالله بن عامر دده څخه روايت كوي، په ۳۲ م هجري كال كي د ۶۸ كالو په عمر وفات سو.

۷۲۸. **قطبه بن مالک**: د بنو ثعلب څخه دی، د كوفې اوسېدونكی دی، صحابي دی دده څخه دده وراره زياد بن علاقه روايت كوي.

۷۲۹. **قيس بن ابي غرزه**: نوم يې قيس، د ابي غرزه زوی دی، غفاري دی، په اهل كوفه كي شمېرل كيږي، دده څخه ابووائل شقيق بن سلمه روايت كوي او دده څخه يوازي يو روايت د تجارت په بيان كي راغلی دی. په غرزه كي پر غين معجمه باندي فتحه او پر راء مهمله باندي فتحه او د هغه څخه وروسته پر زاء معجمه باندي فتحه ده.

۷۳۰. **قيس بن سعد**: دغه قيس د سعد بن عباده زوی دی، كنيت يې ابوعبدالله دی، خزرجي او انصاري دی، د رسول الله ﷺ د سترو صحابه كرامو څخه وو، جليل القدر، صاحب رايه او په جنګي چارو كي صاحب تدبير وو، په خپل قوم كي شريف وو، كله چي رسول الله ﷺ مكې ته راغلی نو د رسول الله ﷺ په نزد دده هغه درجه وه كوم چي د يو امير

په نزد د قومندان وي، د حضرت علي رضی اللہ عنہ له خوا د مصر والي وو، د حضرت علي رضی اللہ عنہ تر شهادت پوري ورسره ملګری وو، په مدینه منوره کي په ۶۰ م هجري کال وفات سو، یوه ډله دده څخه روایت کوي، د قیس بن سعد، عبدالله بن زبیر، قاضي شریح او احنف ددغو ټولو مُخان د ږیږتانو څخه خالي وه او د هیڅا ږیره نه وه مګر قیس بیا هم ښکلی وو.

۷۳۱. **قیس بن عاصم**: دده نوم قیس د عاصم زوی وو، ابوقبیصه یې کنیت وو، ابن عبدالبر وایي: مشهوره داده چي کنیت یې ابوعلي تمیمي وو، د تمیم د وفد سره د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم په خدمت کي حاضر سو او په نهم هجري کال یې اسلام قبول کړ، کله چي رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم ولیدی نو وه یې فرمایل چي دی سردار دی، هوښیار او بردبار وو، په بردباری کي مشهور وو، په اهل بصره کي شمېرل کیږي دده څخه دده زوی حکیم او نور کسان روایت کوي.

۷۳۲. **قرظه بن کعب**: انصاري خزرجي دی، د احد په غزا او د هغه څخه وروسته په ټولو جګړو کي یې ګډون کړی دی، لوی فاضل وو، حضرت علي رضی اللہ عنہ د کوفې حاکم ټاکلی وو، د حضرت علي رضی اللہ عنہ سره په ټولو جګړو کي شریک وو، په کوفه کي د حضرت علي رضی اللہ عنہ د خلافت په زمانه کي وفات سو، شعبي او نور کسان دده څخه روایت کوي، په قرظه کي قاف، راء مهمله او فاء معجمه ټولو باندي زور دی.

۷۳۳. **قره بن ایاس**: دده نوم قره او د ایاس زوی دی، مزني دی، په بصره کي یې هستوګنه اختیار کړې وه، دده څخه دده زوی معاویه روایت کوي، خارجیانو وژلی وو، په ایاس کي همزه مکسور ده.

۷۳۴. **ابوقتاده**: نوم یې حارث دی د ربعي زوی دی، د انصارو څخه دی، د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم د خاصو سپرو څخه دی، په ۵۴م هجري په مدینه کي وفات سو. ویل کیږي چي دا صحیح نه دي بلکه د حضرت علي رضی اللہ عنہ په خلافت کي په کوفه کي وفات سو، د حضرت علي رضی اللہ عنہ سره په ټولو جګړو کي شریک وو، حال دا چي دده عمر ۷۰ کاله وو، دی د هغه خلګو څخه دی چي کنیت یې پر نوم غالب دی، په ربعي کي راء مکسور، باء موحده ساکنه او عین مهمله باندي کسره ده.

۷۳۵. **ابوقحافه**: نوم یې عثمان دی د عامر زوی او د ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ پلار دی، دده یادونه د عین په حرف کي راغلې ده.

## تابعين رحمة الله عليهم .

۷۳۶. **القاسم بن محمد**: دغه قاسم د محمد بن ابي بكر الصديق رضي الله عنه زوی دی، په مدينه کي د اوو مشهورو فقهاؤ څخه يو او په سترو تابعينو کي دی، په خپله زمانه کي صاحب فضل او کمال وو، د يحيی بن سعيد قول دی چي موږ په مدينه کي هيڅوک تر لاسه نه کړ چي د قاسم بن محمد په مقابله کي فيضيلت ورکړ، نوموړي د ډېرو صحابه کرامو څخه چي په هغو کي بي بي عائشه او معاويه رضي الله عنهما هم شامل دی، روايت کړی دی او دده څخه يوه ډله روايت کوي، په ۱۰۱ هجري کال کي د ۷۰ کالو په عمر وفات سو .

۷۳۷. **القاسم بن عبدالرحمن**: دغه قاسم د عبدالرحمن زوی دی، د شام اوسېدونکی او د عبدالرحمن بن خالد ازاد سوی غلام دی، ده د امامه څخه حديث اورېدلي دي او دده څخه علاء بن حارث او نور کسان روايت کوي ، عبدالرحمن بن يزيد وايي چي ما د قاسم مولی عبدالرحمن څخه افضل هيڅوک ليدلی نه دی .

۷۳۸. **قبيصه**: دده نوم قبيصه او د دهلب زوی دی، د بنوطی څخه دی، د خپل پلار څخه يې روايت کړی دی او پلار يې صحابي دی، دده څخه سماک روايت کوي، په هلب کي پر باء باندي ضمه، لام ساکن او په پای کي باء موحده ده، خلک وايي چي هلب د هاء په فتحه او د لام په کسره سره دی تلفظ کول صحيح دی.

۷۳۹. **القعقاع بن حکيم**: دده نوم قعقاع او دحکيم زوی دی، دمدينې اوسېدونکی او تابعي دی، دجابر بن عبدالله او ابويونس څخه يې حديث اورېدلي دي ، دده څخه سعيد مقبري او محمد بن عجلان روايت کوي.

۷۴۰. **قطن بن قبيصه**: دده نوم قطن او د قبيصه زوی دی، د بنو هلال څخه دی، په اهل بصره کي شمېرل کيږي، د خپل پلار څخه روايت کوي او دده څخه حيان بن علاء ، قطن شريف سړی وو ، د سجستان حاکم ټاکل سوی وو ، په قطن کي پر قاف او طاء دواړو باندي فتحه او په پای کي نون دی.

۷۴۱. **قتاده بن دعامه**: دغه قتاده د دعامه زوی دی، دده کنيت ابو الخطاب سدوسي دی، ړوند او قوي الحفظ دی، د بکر بن عبدالله مزني ارشاد دی: د چا چي زړه غواړي چي دخپلي زمانې تر ټولو زيات قوي الحافظه سړی ويني نو هغه دي قتاده ويني، موږ تر ننه پوري دده څخه زيات قوي الحافظه سړی نه دی ليدلی، خپله قتاده وايي : کومه خبره

چي زما غوږ ته را ورسېږي زما زړه يې خوندي کړي، هغه وويل: هيڅ قول بېله د هغه مطابق عمل څخه مقبول نه دی ځکه د چا عمل چي نه وي د هغه قول به د الله ﷻ په نزد مقبول وي، د حضرت عبدالله بن سرجس، انس او نورو ډېرو کسانو څخه يې روايت کړی دی او دده څخه ايوب، شعبه، ابوعوانه او نورو حضراتو روايت کړی دی، په ۱۰۷م هجري کال کي وفات سو.

۷۴۲. **قيس بن عُباد**: دغه قيس د عباد زوی دی، د بصرې اوسېدونکی دی، د بصرې په تابعينو کي د اولي طبقې تابعي دی، د صحابه کرامو د يوې ډلي څخه يې روايت کړی دی، په عُباد کي پر عين مهمله باندي پيش او پر باء موحده باندي تشديد دی.

۷۴۳. **قيس بن ابي حازم**: نوم يې قيس دی د ابي حازم دی، د احمس او بجله څخه دی، د جاهليت او اسلام دواړي زمانې يې ليدلي دي، د رسول الله ﷺ په خدمت کي د بيعت دپاره راغلی مګر هغه وخت رسول الله ﷺ وفات سوی وو، دکوفې په تابعينو کي شمېرل کيږي دده نوم د صحابوو سره ذکر کيږي حال دا چي ټولو ته اعتراف دی چي د رسول الله ﷺ لېدنه يې نه ده کړې، د حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه څخه ماسوا د پاته عشره مبشره څخه يې روايت کړی دی، د دوی څخه ماسوا د نورو ډېرو صحابوو څخه هم روايت کوي، د تابعينو يوه لويه ډله دده څخه روايت کوي، دده څخه ماسوا بل تابعي نسته چي هغه په عشره مبشره کي د نهه صحابه کرامو څخه روايت کړی وي، د نهروان په پېښه کي د حضرت علي رضي الله عنه سره وو، اوږد عمر يې وو، تر سلو کالو زيات ژوندی وو، په ۹۸م هجري کال کي وفات سو.

۷۴۴. **قيس بن مسلم**: دده نوم قيس دی د مسلم زوی دی، د بنو جديله څخه دی او د کوفې اوسېدونکی دی، د سعيد بن جبير او نورو څخه روايت کوي او دده څخه ثوري او شعبه روايت کوي، په ۱۲۰ م هجري کال کي وفات سو، په جديله کي پر ميم باندي زور او پر دال مهمله باندي زور دی.

۷۴۵. **قيس بن کثير**: دغه قيس د کثير زوی دی، د ابوالدرداء رضي الله عنه څخه يې حديث اورېدلي دي او دده څخه داؤد بن جميل روايت کوي، امام ترمذي دده حديث په خپل کتاب کي د قيس بن کثير په حواله سره تخريج کړي دي او وايي چي همدارنګه موږ ته محمود بن خداش حديث بيان کړ، حال دا چي دا د قيس په حواله سره دی نه د قيس بن کثير په ذريعه سره او همدارنګه ابوداؤد دده نوم کثير بن قياس بيان کړ، بخاري هم دده يادونه د

کثیر په باب کي کړې ده، دقیس په باب کي نه، مطلب دادی چي دغه نوم قیس بن کثیر نه دی بلکه کثیر بن قیس دی.

۷۴۶. **ابوقلابه**: په قلابه کي قاف مکسور، لام غیر مشدد او باء موحده ده، دده نوم عبدالله دی، د زید زوی دی، د بنوجرم مشهور تابعي دي، د حضرت انس ﷛ او نورو صحابه کرامو څخه روایت کوي او دده څخه ډېر خلک روایت کوي، سختیاني وایي: قسم په خدای! ابوقلابه ډېر عاقل او فقیه دی، په شام کي په ۱۰۲م هجري وفات سو، په جرم کي جیم مفتوح او راء مهمله ده.

۷۴۷. **ابن قطن**: نوم يې عبدالعزیز دی د قطن زوی دی، په قطن کي قاف مفتوح او طاء مهمله مفتوح ده، د جاهلیت د زمانې سړی دی، دده یادونه د دجال په قصه کي راغلې ده.

۷۴۸. **قزمان**: دا هغه قزمان دی چي په منافقت سره يې د اسلام ظهور وکړ، دده یادونه د معجزو په باب کي راغلې ده، د حنین په غزا کي د مسلمانانو له خوا شریک سو او په ډېر قوت سره يې جګړه وکړل، خلګو دده یادونه رسول الله ﷺ ته وکړل نو رسول الله ﷺ وفرمایل: پوه سئ! چي الله ﷻ د دغه دین تائید د فاجر او فاسق په ذریعه هم کوي، ښه پوه سئ! دغه سړی په یقین سره دوږخي دی.

## صحابي ښځي

۷۴۹. **قیله بنت مخرمه**: دغه قیله ده د مخرمه لور ده، د بنوتمیم څخه ده، ددې څخه د علیبه دوې لوڼي صفیه او وجیه روایت کوي، دغه دواړي ددې ربیبه (روزل سوي) دي، هغه ددې دواړو د پلار انا ده، نوموړې صحابیه ده، وجیبه او علیبه دواړه مصغر دی.

۷۵۰. **ام قیس بنت محصن**: دغه ام قیس ده د محصن لور ده، په محصن کي میم مکسور، حاء ساکن او نون دی، د بنو اسد څخه ده د عکاشه خور ده، ډېر مخکي په مکه کي مسلمانه سوې ده، د رسول الله ﷺ سره يې بیعت وکړ او بیا يې مدینې ته هجرت وکړ.

## ک - صحابه کرام ﷢:

۷۵۱. **کعب بن مالک**: دغه کعب د مالک زوی دی، انصاري او خزرجي دی، په بیعت عقبه ثانیه کي حاضر وو، په دې کي اختلاف دی چي د بدر په غزا کي شریک وو که یا، د تبوک څخه ماسوا په نورو ټولو غزاوو کي شریک وو، د رسول الله ﷺ د شاعرانو څخه دی، دی د هغه درو صحابه کرامو څخه دی چي د تبوک په غزا کي د ګډون کولو څخه پاته

سوي وه، د دوی نومونه دي: کعب بن مالک، بلال بن امیه او مراره بن ربیعه ﷺ، دده څخه یوه ډله روایت کوي، په ۵۰ م هجري کال کي د ۷۷ کالو په عمر کي د ړوند کېدو وروسته وفات سو.

۷۵۲. **کعب بن عجره**: دغه کعب د عجره زوی دی، بلوي دی، په کوفه کي یې هستوګنه کړې وه، په ۵۱م هجري کال کي د ۷۵ کالو په عمر په مدینه کي وفات سو، دده څخه ځینو خلګو روایت کړی دی.

۷۵۳. **کعب بن مره**: بهزي او دبنو سلیم څخه دی، د شام په هیواد اردن کي هستوګن سو، او هم هلته په ۵۹ م هجري کال کي وفات سو، دده څخه ځینو خلګو روایت کړی دی.

۷۵۴. **کعب بن عیاض**: دغه کعب د عیاض زوی دی، اشعري دی او د اهل شامو څخه شمېرل کیږي، دده څخه جابر بن عبدالله او جبیر بن نفیر روایت کوي، په عیاض کي پر عین مهمله باندي کسره او یاء مخففه لاندي دوه ټکي او ضاد معجمه دی.

۷۵۵. **کعب بن عمرو**: دغه کعب د عمرو زوی دی، انصاري او د بنو سلیم څخه دی، په بیعت عقبه او د بدر په غزا کي موجود وو، ده د بدر په غزا کي عباس بن عبدالمطلب نیولی وو، په ۵۵م هجري کال په مدینه کي وفات سو، دده څخه دده زوی عمار او حنظله بن قیس روایت کوي.

۷۵۶. **کثیر بن صلت**: دغه کثیر د صلت زوی دی، د معدي کرب لمسی دی، د کنده کورنۍ یو کس دی، د رسول الله ﷺ په ژوند مبارک کي پیدا سو، خپله رسول الله ﷺ دده نوم کښېښود، دده پخوانی نوم قلیل وو، نوموړی د ابوبکر، عمر، عثمان او زید بن ثابت ﷺ څخه روایت کوي.

۷۵۷. **کرکره**: دغه کرکره دی، دواړه کافه مفتوح یا دواړه مکسور دي، په ځینو غزاوو کي د رسول الله ﷺ د سامان ساتونکی وو، دده یادونه په باب خلول کي راغلې ده.

۷۵۸. **کلده بن حنبل**: دده نوم کلده دی د حنبل زوی دی، د اسلم کورنۍ څخه دی، د صفوان بن امیه حجمي اخیافي ورور دی، او د معمر بن حبیب غلام وو، هغه په بازار کي د یمن د اوسېدونکو څخه رانیولی وو، بیا یې حلیف وګرځوی او دده نکاح یې وکړل، تر وفات پوري په مکه کي وو، دده څخه عمرو بن صفوان روایت کوي، په کلده کي پر قاف او لام باندي زور او پر دال باندي ټکي نسته.

۷۵۹. **ابوکبشه**: نوم یې عمر د سعد زوی او د بنو اشمار څخه دی، په شام کي یې هستوګنه

اختیار کړل، دده شخه سالم بن ابي الجعد او نعیم بن زیاد روایت کوي .

## تابعین رحمة الله علیهم .

۷٦۰. **کعب الاحبار** : دغه کعب الاحبار د مانع زوی دی، کنیت یې ابو اسحاق دی، د کعب الاحبار په نامه مشهور دی، په اصل کي د حمیر کورنۍ شخه دی، د رسول الله ﷺ زمانه یې تر لاسه کړې ده مګر په لیدنه یې مشرف نه سو، د عمر بن الخطاب رضي الله عنه د خلافت په زمانه کي مسلمان سو، د عمر، صهیب او عائشي رضي الله عنهم شخه یې روایت کړی دی، د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت په زمانه کي د حمص په ځای کي په ۳۲ م هجري کال وفات سو .

۷٦۱. **کثیر بن عبدالله**: دغه کثیر د عبدالله بن عمرو بن عوف زوی دی، د مزینه قبیلې شخه دی، مدینې او سېدونکی دی، د خپل پلار شخه یې حدیث اورېدلي دي، مروان بن معاویه او نور کسان دده شخه روایت کوي .

۷٦۲. **کثیر بن قیس**: دغه کثیر د قیس یا قیس بن کثیر زوی دی، دده یادونه د قاف په حرف کي راغلې ده .

۷٦۳. **کریب بن ابي مسلم**: دغه کریب د ابي مسلم زوی دی، د عبدالله بن عباس او معاویه ازاد سوی غلام دی، دده شخه یوه ډله روایت کوي.

۷٦۴. **ابو کریب بن محمد**: دغه ابو کریب د محمد بن علاء زوی دی، همداني او کوفي دی، د ابوبکر بن عباس او نورو شخه یې حدیث اورېدلي دي، دده شخه بخاري ، مسلم او نور محدثین روایت کوي، په ۲۴۸ م هجري کال کي وفات سو .

## تابعي ښځي

۷٦۵. **کبشه بنت کعب**: دغه کبشه د کعب بن مالک لور ده، د عبدالله بن ابو قتاده ښځه ده، ددې حدیث د سؤر هره (د پیشي پسخورده) په بیان کي دي، دې د قتاده شخه او ددې شخه [illegible]یده بنت عبید بن رفاعه روایت کړی دی .

۷٦٦. **[illegible]یمه بنت همام**: دغه کریمه د همام لور ده، په همام کي پر باء باندي ضمه او میم غیر مشدد دی، دا د ام المؤمنین بي بي عائشي رضي الله عنها شخه روایت کوي، ددې حدیث د خطاب په اړه دی .

۷٦۷. **ام کرز**: دغه ام کرز د بنو کعب او خزانه قبیلې شخه ده، دمکې او سېدونکې ده، د رسول الله ﷺ شخه ډېر حدیثونه روایت کوي، ددې شخه عطاء، مجاهد او نور کسان

روایت کوي، ددې روایت د عقیقه په اړه مشهور دي، په کرز کي پر کاف باندي پیش او راء ساکنه ده، په پای کي راء معجمه ده.

۷۶۸. **ام کلثوم بنت عقبه**: دغه ام کلثوم د عقبه بن ابو معیط لور ده، په مکه کي یې اسلام راوړی دی، پر پښو یې هجرت وکړ او بیعت یې وکړ، په مکه کي ددې خاوند نه وو، کله چي مدینې ته راغلل نو حضرت زید بن حارثه ورسره نکاح وکړل، هغه د موته په غزا کي شهید سو، او دهغه وروسته یې د حضرت زبیر بن العوام سره نکاح وکړل، څه وخت وروسته هغه طلاق ورکړ نو عبدالرحمن بن عوف ورسره نکاح وکړل، د هغه څخه ددې دوه زامن ابراهیم او حمید پیدا سول، کله چي هغه وفات سو نو ددې سره عمرو بن العاص نکاح وکړل، د هغه په نکاح کي یوه میاشت پاته سوې وه چي خپله دا وفات سول، دا د حضرت عثمان بن عفان رضی اللہ عنہ اخیافي خور ده، ددې څخه ددې زوی حمید او نور کسان روایت کوي.

## ل - صحابه کرام رضی اللہ عنہم:

۷۶۹. **لقیط بن عامر**: دغه لقیط د عامر بن صبره زوی دی، دده کنیت ابورزین دی، د بنوعقیل څخه دی، مشهور صحابي دی، د اهل طائف څخه شمېرل کیږي، دده څخه دده زوی عاصم او ابن عمر روایت کوي، په لقیط کي پر لام باندي فتحه او پر قاف باندي کسره ده، او په صبره کي پر صاد باندي فتحه او پر باء موحده باندي کسره ده.

۷۷۰. **لقمان بن باعورا**: دغه لقمان د باعورا زوی او دحضرت ایوب علیہ السلام خریی یا د هغه د خاله زوی دی، خلک وایي چي دی د حضرت داؤد علیہ السلام په زمانه کي موجود وو، د هغه څخه یې علم تر لاسه کړ او په بني اسرائیلو کي یې د قاضي دنده سرته رسول، ویل کیږي چي دی یو حبشي غلام په سوډان کي د نوب نامي ځای اوسېدونکی وو، دا ویل کیږي چي نبي نه وو مګر یو حکیم وو، دده یادونه په کتاب الرقاق کي راغلې ده.

۷۷۱. **لبید بن ربیعه** رضی اللہ عنہ: نوم یې لبید او د ربیعه زوی دی، د بنوعامر څخه وو، شاعر وو، د رسول الله ﷺ په خدمت کي په هغه کال حاضر سو په کوم کال چي دده قوم بنوجعفر بن کلاب د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سول، د جاهلیت او اسلام په دواړو زمانو کي صاحب شرف او عزت وو، په کوفه کي اوسېدی، په ۴۱م هجري کال کي د ۱۴۰ کالو په عمر وفات سو، او د یوه قول مطابق د ۱۵۷ کالو په عمر وفات سو، دده د عمر په اړه نور هم اقوال سته، نو موړی د اوږده عمر خاوند وو.

۷۷۲. **ابولبابه**: دغه ابولبابه دی، نوم يې رفاعه او د عبدالمنذر زوی دی، د انصارو د اوس څخه دی، دده کنيت پر نامه باندي غالب دی، د رسول الله ﷺ نقيب وو، په بيعت عقبه او د بدر په غزا او وروسته ټولو غزاوو کي حاضر وو، ويل کيږي چي دبدر په غزا کي شريک سوی نه وو بلکه رسول الله ﷺ د مدينې حاکم ټاکلی وو، د بدر د غازيانو په ډول دده د غنيمت برخه هم ورکړل سوې ده، د حضرت علي رضي الله عنه د خلافت په زمانه کي وفات سو، دده څخه ابن عمر، نافع او نور حضرات روايت کوي.

۷۷۳. **ابن اللتبيه**: دغه ابن اللتبيه دی، دا يې کنيت دی او نوم يې عبدالله دی، نوموړی صحابي دی، دده يادونه د صدقاتو په بيان کي راغلې ده، په اللتبيه کي پر لام باندي ضمه او تاء چي پر هغه دوه ټکي دي مفتوح او باء چي تر هغه لاندي يو ټکی دی مکسور او ياء چي د هغه لاندي دوه ټکي دي مشدده ده.

## تابعين رحمة الله عليهم.

۷۷۴. **ليث بن سعد**: دده نوم ليث دی د سعد زوی دی، کنيت يې ابوالحارث دی، د مصريانو فقيه دی، ويل کيږي چي دی دخالد بن ثابت فهمي ازاد سوی غلام دی، د مصر په کلي کي پيدا سو، ده د ابن مليکه، عطاء، زهري او نورو څخه روايت کړی دی او دده څخه ډېرو خلګو حديث بيان کړي دي چي په هغوی کي ابن مبارک هم دی، په ۱۶۱م هجري کال کي بغداد ته راغلی، منصور د مصر ولايت ده ته سپارل وغوښتل مګر ده انکار وکړ او عذر يې بيان کړ، يحيی بن بکير وايي: ما د ليث بن سعد څخه زيات کامل هيڅوک نه دی ليدلی. قتيبه بن سعيد وايي چي ليث به هر کال د شلو زرو دينارو غله تر لاسه کول او پر هغه هيڅکله زکوة فرض نه سو، د شعبان په مياشت په ۱۷۵م هجري کال کي وفات سو.

۷۷۵. **ابن ابي ليلی**: نوم يې عبدالرحمن دی او يسار ابوليلی دده پلار دی، د انصارو څخه دی، دده زېږېدنه هغه وخت وسوه کله چي د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت شپږ کاله پاته وه، ويل کيږي چي په دجيل کي پيدا سو، په ۸۳م هجري کال په بصره کي په يوه وياله کي ډوب سو، دده حديثونه په اهل کوفه کي دی، په صحابوو کي د ډېرو حضراتو څخه يې حديث اورېدلي دي او دده څخه لويه ډله حديث روايت کوي، د کوفې په تابعينو کي د اولي طبقې تابعي دی، ابن ابي ليلی په ځينو ځايو کي دده زوی محمد ته هم ويل کيږي، دی د کوفې قاضي او د فقهي مشهور امام او صاحب مذهب او رايه دی، کله چي محدثين

ابن ابي ليلی بېله تصريح وايي نو عبدالرحمن مراد وي او کله چي فقهاء وايي نو محمد مراد وي، د محمد زېږېدنه په ۷۴م هجري کال سوې ده او په ۱۴۸م هجري کال کي وفات سو.

۷۷۶. **ابن لهيعه**: دغه ابن لهيعه حضرمي دی، فقيه دی دده نوم عبدالله او کنيت يې ابوعبدالرحمان دی، د مصر قاضي دی، د عطاء، ابن ابي ليلی، ابن ابي مليکه، اعرج او عمرو بن شعيب څخه روايت کوي، او دده څخه يحيی بن بکير او قتيبه مقري روايت کوي، د حديث په باب کي ضعيف دی، ابوداؤد وايي: ما د احمد بن حنبل څخه اورېدلي دي چي په مصر کي هيڅوک د حديثو په زياتوب، حفظ او پختيا کي د ابن لهيعه په ډول نه وو، په ۱۷۴م هجري کال کي وفات سو.

۷۷۷. **لبيد بن الاعصم**: دغه لبيد دی د اعصم زوی دی، يهودي دی، د بنوزريق څخه دی، ويل کيږي چي دی د يهوديانو حليف وو، دده يادونه د سحر په اړه په باب المعجزات کي راغلې ده.

۷۷۸. **ابولهب**: دغه ابولهب دی نوم يې عبدالعزی، د عبدالمطلب بن هاشم زوی دی او د رسول الله ﷺ اکا دی، جاهلي (کافر) دی، دده يادونه په کتاب الفتن کي ده.

## صحابي ښځي

۷۷۹. **لبابه بنت حارث**: دغه لبابه د حارث لور ده، ددې کنيت ام الفضل دی، مخکې ددې يادونه د فاء په حرف کي راغلې ده.

## م - صحابه کرام رضي الله عنهم:

۷۸۰. **مالک بن اوس**: دغه مالک د اوس بن حدثان زوی دی، د بصرې اوسېدونکی دی، دده په صحابي کېدو کي اختلاف دی، ابن عبدالبر وايي: د اکثرو په نزد دده صحابي کېدل ثابت دي، ابن منده وايي چي ثابت نه دي، دده د رسول الله ﷺ څخه روايت کم دي او د صحابه کرامو څخه چي کوم روايات نقل کوي هغه زيات دي، ده د عشره مبشره څخه روايت کړی دی، حضرت عمر رضي الله عنه دده روايات زيات نقل کړي دي، يوه ډله دده څخه روايت کوي چي په هغوی کي زهري او عکرمه هم شامل دي، په مدينه منوره کي په ۵۹۲م هجري کال وفات سو، په حدثان کي پر حاء او دال دواړو باندي فتحه او ثاء مثله مفتوح ده

۷۸۱. **مالک بن حويرث**: د ليث کورنۍ څخه دی، د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر

سو، شل ورځي دلې وو، بیا په بصره کي هستوګن سو، دده څخه دده زوی عبدالله او ابو قلابه روایت کوي، په ۹۴ م هجري کال په بصره کي وفات سو.

۷۸۲. **مالک بن صعصعه:** دغه مالک د صعصعه زوی دی، د انصارو څخه دی، بنومازن دده کورنۍ او هیواد یې مدینه دی، بیا یې په بصره کي هستوګنه اختیار کړل، دده څخه د حدیثو روایت کم دی.

۷۸۳. **مالک بن هبیره:** دغه مالک د هبیره زوی دی، د سکوني او بنو کنده څخه دی، په اهل شام کي شمېرل کیږي، ځیني یې په اهل مصر کي شمېري، دده څخه مرثد بن عبدالله روایت کوي، د حضرت معاویه رضي الله عنه له خوا د فوج امیر وو، د روم په جګړه کي هم دی امیر وو، په مرثد کي پر میم باندي راء ساکنه او ثاء مثلثه ده.

۷۸۴. **مالک بن یسار:** دغه مالک د یسار زوی دی، سکوني او عوفي دی، په اهل شامو کي شمېرل کیږي، ابونجده دده څخه روایت کوي، دده په صحابي کېدو کي اختلاف دی، په سکوني کي پر سین باندي فتحه او کاف او نون دی.

۷۸۵. **مالک بن تیهان:** دغه مالک د تیهان زوی دی، کنیت یې ابوالهثیم دی، د انصارو څخه دی، په بیعت عقبه کي حاضر وو، دی د دوولسو نقیبانو څخه دی، د بدر په غزا او نورو ټولو غزاوو کي شریک وو، دده څخه ابو هریره رضي الله عنه روایت کوي، د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت په زمانه کي په مدینه منوره کي په ۲۰ م هجري کال وفات سو، دا هم ویل کیږي چي په ۳۹ م هجري کال د صفین په جګړه کي شهید سو، ددې څخه ماسوا نور اقوال هم دي، په ابوالهثیم کي پر هاء باندي فتحه، یاء ساکنه او ثاء مثلثه ده، په التیهان کي پر تاء باندي فتحه، پر یاء باندي تشدید او په آخر کي نون دی.

۷۸٦. **مالک بن قیس:** دغه مالک د قیس زوی دی، دده کنیت ابوصرمه دی، په کنیت سره مشهور دی، دده یادونه د صاد په حرف کي راغلې ده.

۷۸۷. **مالک بن ربیعه:** دغه مالک د ربیعه زوی دی، کنیت یې ابو اسید دی، په کنیت سره مشهور دی، دده یادونه په الف کي راغلې ده.

۷۸۸. **ماعز بن مالک** رضي الله عنه: دغه ماعز د مالک زوی دی، اسلمي دي او په اهل مدینه کي شمېرل کیږي، دا هغه صحابي دی چي رسول الله ﷺ د زنا په حد کي رجم کړی وو، دده څخه دده زوی عبدالله یوازي یو روایت کړی دی.

۷۸۹. **مطر بن عکامس:** دغه مطر د عکامس زوی دی، سلمي دی او په اهل کوفه کي

شمېرل کيږي، دده څخه يو روايت منقول دی، د ابو اسحاق سبيعي څخه ماسوا بل چا دده څخه روايت نه دی کړی، په عکامس کي پر عين باندي پېښ او غير مشدد دی، پر ميم باندي کسره او په پای کي سين غير منقوطه دی.

۷۹۰. **معاذ بن انس**: دغه معاذ د انس زوی دی، د جهينه کورنۍ څخه دی، په اهل مصر کي شمېرل کيږي، هلته يې حديثونه تر لاسه کيږي، دده زوی سهل دده څخه روايت کوي.

۷۹۱. **معاذ بن جبل** رضی الله عنه: دغه معاذ د جبل زوی دی، ابو عبدالله يې کنيت دی، انصاري او خزرجي دی، د انصارو څخه د هغو اويا کسانو څخه يو دی چي په بيعت عقبه ثانيه کي حاضر سوی وو، د بدر په غزا او نورو غزاوو کي حاضر وو، رسول الله ﷺ د قاضي او ښوونکي په حيثيت يمن ته استولی وو، دده څخه عمرو ابن عباس او نور ډېر کسان روايت کوي، د ۱۸ کالو په عمر مسلمان سو، دا د ځينو قول دی، حضرت عمر رضی الله عنه د ابو عبيده بن جراح رضی الله عنه څخه وروسته د شام حاکم ټاکلی وو او په هغه کال د ۳۸ کالو په عمر په طاعون عمواس کي وفات سو، نور اقوال هم دده په اړه نقل سوي دي.

۷۹۲. **معاذ بن عمرو بن جموح** رضی الله عنه: دغه معاذ د عمرو بن جموح زوی دی، انصاري خزرجي دی، په بيعت عقبه او بدر په غزا کي خپله دی او دده پلار عمرو رضی الله عنه شريک وه، دا هغه صحابي دی چي د معاذ بن عفراء په ملګرتيا کي يې ابو جهل وژلی وو، دده يادونه په باب قسمة الغنائم کي راغلې ده، د ابن عبدالرحمن او ابن اسحاق روايت دی چي معاذ بن جبل د ابو جهل پښه پرې کړې وه او هغه يې پر مځکه را غورځولی وو، هغوی دا هم وايي چي کرمه د ابو جهل زوی د معاذ بن عمرو رضی الله عنه پر لاس باندي د توري وار وکړ او هغه يې بيل کړی وو، ددې وروسته معاذ بن عفراء پر ابو جهل د توري حمله وکړل تر دې چي هغه يې مړ کړ، لږ ساه يې پاته وه چي هغه يې پرېښودل، کله چي رسول الله ﷺ په وژل سوو کسانو کي د ابو جهل د پلټني لپاره ابن مسعود رضی الله عنه ته حکم وکړ نو دی ابو جهل ته راغلی او د هغه سر يې د بدن څخه جلا کړ، د هغه څخه عبدالله بن عباس رضی الله عنه روايت کوي، د حضرت عثمان رضی الله عنه د خلافت په زمانه کي وفات سو.

۷۹۳. **معاذ بن حارث**: دغه معاذ د حارث بن رفاعه زوی دی، انصاري او زرقي دی، عفراء دده مور ده او هغه د عبيد بن ثعلبه لور ده، دی او رافع بن مالک د خزرج قبيلې د انصارو څخه تر ټولو مخکي مسلمان سو، د بدر په غزا کي د خپلو دواړو وروڼو عوف او معوذ په ملګرتيا کي شريک سو، دده دواړه وروڼه په بدر کي شهيدان سول، د ځينو د قول

مطابق دی د بدر څخه ماسوا په نورو ټولو غزاوو کي هم شریک سو، ځیني وایي چي په بدر کي ژوبل سوی وو او د هغه زخمونو په وجه په مدینه کي وفات سو، دا هم ویل کیږي چي د حضرت عثمان رضی الله عنه تر زمانې پوري ژوندی وو، دده څخه ابن عباس او ابن عمر رضی الله عنهما روایت کوي، په عفراء کي عین مهمله مفتوح او فاء ساکنه او الف ممدوده دی.

۷۹۴. **معوذ بن حارث** رضی الله عنه: دغه معوذ د حارث زوی دی او عفراء دده مور ده، دی په بدر کي شریک وو، دا هغه دی چي دخپل ورور په ملګرتیا کي یې ابوجهل وژلی وو، دوی دواړه کنبت کوونکي او باغوانان وه، په بدر کي یې جګړه وکړل او هلته یې د شهادت درجه تر لاسه کړل، په معوذ کي میم مضمون او پر عین باندي فتحه او واو باندي کسره ده او ذال معجمه دی.

۷۹۵. **مسطح بن اثاثه**: دغه مسطح د اثاثه بن عباده بن عبدالمطلب بن عبدمناف زوی دی، د قریشو او بنو عبدالمطلب څخه دی، د بدر، احد او نورو غزاوو کي شریک وو، دا هغه صحابي دی چي د افک په پېښه کي د عائشې رضی الله عنها په اړه په بدګمانۍ کي شریک وو، رسول الله ﷺ چي کومو کسانو ته د تهمت ویلو په وجه سزا ورکړل په هغوی کي دی هم شامل دی، ویل کیږي چي مسطح دده لقب دی او نوم یې عوف دی، ابن عبدالبر ویلي دي: په دې کي اختلاف نسته چي دی په ۳۴م هجري کال کي د ۵۶ کالو په عمر وفات سو، په مسطح کي میم مکسور، سین ساکن، پر طاء مهمله باندي فتحه او حاء مهمله ده، په اثاثه کي پر همزه باندي ضمه، اوله ثاء غیر مشدده ده او په عباد کي باء مشدده ده.

۷۹۶. **مسور بن مخرمه**: دغه مسور د مخرمه زوی دی، کنیت یې ابوعبدالرحمن دی، زهري او قرشي دی، د عبدالرحمن بن عوف خوریی دی، د هجرت نبوي او وصال څخه وروسته په مکه کي پیدا سو، په اتم هجري کال مدینې منورې ته راغلی، د رسول الله ﷺ څخه یې حدیث اورېدلي دي او یاد کړي یې دي، لوی فقیه او صاحب فضل وو، د حضرت عثمان رضی الله عنه تر شهادت پوري په مدینه کي وو او بیا مکې ته ولاړی، د حضرت معاویه رضی الله عنه تر وفات پوري په مکه کي وو، ده د یزید بیعت خوښ نه کړ مګر بیا هم په مکه کي وو، تر دې چي یزید لښکر واستوی او مکه یې محاصره کړل، هغه وخت ابن زبیر رضی الله عنه په مکه کي موجود وو، په دغه محاصره کي مسور بن مخرمه د منجنیق څخه په یوې ویشتل سوي ډبري ولګېدی او هغه وخت ده په حجره کي لمونځ کوی چي په حق ورسېدی، دغه پېښه د ربیع الاول د میاشتي د ۲۴م هجري کال ده، دده څخه ډېرو خلکو روایت کړی دی، په مسور

کي میم مکسور، سین مهمله ساکن او واو مفتوح دی، په مخرمه کي میم مفتوح ، خاء معجمه ساکن او راء مفتوحه ده.

۷۹۷. **مسیب بن حزن**: دغه مسیب د حزن زوی دی، کنیت یې ابوسعید قرشي او مخزومي دی، د خپل پلار حزن سره یې هجرت وکړ، مسیب په هغه خلګو کي دی چي په بیعت رضوان کي شریک وه، د خپل پلار څخه روایت کوي، په اهل حجاز کي دده حدیث تر لاسه کیږي، دده څخه دده زوی سعید بن مسیب روایت کوي، په مسیب کي میم مضمون، سین مفتوح او یاء مشدده مفتوح ده، په حزن کي حاء مهمله مفتوح ، زاء ساکنه او په پای کی نون دی.

۷۹۸. **مستورد بن شداد**: دغه مستورد د شداد زوی دی، فهري او قرشي دی، په اهل کوفه کي شمېرل کیږي، وروسته په مصر کي هستوګن سو او په هغوی کي شمېرل کیدی، ویل کیږي چي په کومه ورځ رسول الله ﷺ وفات سو هغه وخت دی ماشوم وو، مګر د رسول الله ﷺ څخه یې حدیث اورېدلي دي او هغه یې یاد کړل، دده څخه یوه ډله روایت کوي.

۷۹۹. **مغیره بن شعبه** : دغه مغیره د شعبه زوی او ثقفي دی، د خندق د غزا په کال مسلمان سو او په هجرت مدینې ته راغلی، په کوفه کي پروت وو او هلته په ۵۰ م هجري کال د ۷۰ کالو په عمر وفات سو، هغه وخت د حضرت معاویه بن ابي سفیان له خوا امیر وو. ځیني کسان دده څخه روایت کوي.

۸۰۰. **مقدام بن معدیکرب**: دغه مقدام د معدیکرب زوی دی، کنیت یې ابو کریمه دی او کندي دی، په اهل شامو کي شمېرل کیږي، هلته یې حدیث تر لاسه کیږي، دده څخه ډېرو خلګو روایت کړی دی، په شام کي په ۸۷ هجري کال د ۹۱ کالو په عمر وفات سو.

۸۰۱. **مقداد بن اسود**: دغه مقداد د اسود زوی دی او کندي دی. ددې وجه دا وه چي دده پلار د بنو کنده سره عهد کړی وو ځکه کنده ته منسوب سو، د ابن اسود د ویلو وجه داده چي دی د اسود حلیف یاد هغوی روزل سوی وو، ویل کیږي چي دا خبره نه وه بلکه دی د اسود غلام وو هغه په زوی نیولی وو، دی په اسلام راوړونکو کي شپږم کس دی، دده څخه علي ﷺ، طارق بن شهاب او نور کسان روایت کوي، په جرف نامي ځای کي وفات سو، خلګو د هغه ځای څخه راوړ او په بقیع کي په ۳۳ م هجري کال یې دفن کړل، هغه وخت یې عمر ۷۰ کاله وو.

۸۰۲. **مهاجر بن خالد**: دغه مهاجر د خالد بن ولید بن مغیره زوی دی، مخزوني او قریشي دی، دی او دده ورور عبدالرحمن دواړه د رسول الله ﷺ په زمانه کي کوچنیان وه، په دوی دواړو کي اختلاف وو، دی خپله د حضرت علي رضی الله عنه له خوا وو، او عبدالرحمن د حضرت معاویه رضی الله عنه ملګری وو، ابوعمر وایي چي خلګ وایي: په جنګ جمل کي دده سترګه چاودلې وه، د صفین په جنګ کي شهید سو او تر شهادت پوري د علي رضی الله عنه ملګری وو.

۸۰۳. **مهاجر بن قنفذ**: دغه مهاجر د قنفذ زوی دی، قرشي او تمیمي دی، ویل کیږي چي مهاجر او قنفذ دواړه لقبونه دي، اصل نوم یې عمرو بن خلف دی، مسلمان سو او د رسول الله ﷺ په خدمت کي په هجرت کولو سره حاضر سو، رسول الله ﷺ وفرمایل: دی حقیقي مهاجر دی، ویل کیږي چي د مکې د فتح په ورځ مسلمان سو او په بصره کي پاته سو او هم هلته وفات سو، دده څخه ابوساسان حضین بن منذر روایت کوي، په قنفذ کي پر قاف باندي ضمه، نون ساکن، فاء او ذال معجمه دی، په ساسان کي دواړه سینونه بېله ټکو دي، او په حصین کي حاء مهمله مضموم او ضاد معجمه مفتوح او د باء څخه وروسته نون دی.

۸۰۴. **معیقیب بن ابي فاطمه**: دغه معیقیب د ابوفاطمه زوی دی، دوسي دی او د سعید بن ابي العاص ازاد سوی غلام دی، د بدر په غزا کي شریک وو، ډېر مخکي په مکه کي مسلمان سوی وو، دوهم هجرت په حبشه کي ده هم وکړ او د رسول الله ﷺ مدینې ته تر شریف راوړلو پوري په حبشه کي وو، د رسول الله ﷺ د مهر پر ساتنه مامور وو، ابوبکرصدیق او حضرت عمر رضی الله عنهما د بیت المال مشر ټاکلی وو، دده څخه محمد، ایاس بن حارث او نور کسان روایت کوي، په ۴۰ م هجري کال کي وفات سو.

۸۰۵. **معقل بن یسار** رضی الله عنه: دغه معقل د یسار زوی دی او مزني دی، په بیعت الرضوان کي ده هم بیعت وکړ، په بصره کي اوسېدی، د بصرې نهر معقل ده ته منسوب دی، دده څخه حسن او یوه ډله روایت کوي، د عبید الله بن زیاد په امارت کي په ۶۰ م هجري کال وفات سو، ویل کیږي چي د حضرت معاویه رضی الله عنه په زمانه کي وفات سو.

۸۰۶. **معقل بن سنان**: دغه معقل د سنان زوی دی او اشجعي دی، د مکې په فتح کي شریک وو، په کوفه کي هستوګن وو په اهل کوفه کي ده روایت تر لاسه کیږي، د حره په جګړه کي په تړلو سره ووژل سو، دده څخه ابن مسعود، علقمه، حسن، شعبي او نور کسان روایت کوي، په معقل کي پر میم باندي زور، عین ساکن او قاف مکسور دی،

۸۰۷. **معن بن عدي**: دغه معن د عدي زوی دی، بلوي دی، دعاصم ورور دی، د بدر په

غزا کي او په وروسته غزاوو کي شریک وو، د یمایمه په جګړه کي د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د خلافت په زمانه کي شهید سو، رسول الله ﷺ دده او زید بن خطاب په منځ کي ورورګلوي قائمه کړې وه، د یمامه په جګړه کي دواړه یو ځای ووژل سول.

۸۰۸. **معن بن یزید**: دغه معن د یزید بن اخنس زوی او سلمي دی، دی خپله صحابي دی او دده پلار او نیکه هم صحابیان وه، د بدر په غزا کي شریک وو، په اهل کوفه کي شمېرل کیږي، دده څخه وائل بن کلاب روایت کوي.

۸۰۹. **مجمع بن جاریه**: دغه مجمع د جاریه زوی او انصاري مدني دی، د مسجد ضرار په منافقینو کي دده پلار هم شامل وو، مګر مجمع خپله سم سړی وو، قاري وو، ویل کیږي چي ابن مسعود رضی الله عنه دده څخه نیم قرآن تر لاسه کړی وو، دده څخه دده وراره عبدالرحمن بن یزید او نور کسان روایت کوي، د حضرت معاویه رضی الله عنه د خلافت په آخري زمانه کي وفات سو، په مجمع کي پر میم باندي پیښ او پر جیم باندي زور او دوهم میم مشدد او مکسور دی، په پای کي یې عین مهمله دی.

۸۱۰. **محجن بن ادرع**: دغه محجن د ادرع زوی او اسلمي دی، قدیم الاسلام دی، په اهل بصره کي شمېرل کیږي، دده څخه حنظله بن علي، رجاء او سعید بن ابي سعید روایت کوي، اوږد عمر یې وو. ویل کیږي چي د حضرت معاویه رضی الله عنه په آخري ورځو کي وفات سو، په محجن کي پر میم باندي زېر، حاء مهمله ساکنه او پر جیم باندي زور او په اخر کي نون دی.

۸۱۱. **مخنف بن سلیم**: دغه مخنف د سلیم زوی او غامدي دی، حضرت علي رضی الله عنه د اصفهان حاکم کړی وو، دده څخه دده زوی او ابورمله روایت کو ي، په اهل بصره کي شمېرل کیږي، په مخنف کي پر میم باندي زېر، خاء معجمه ساکنه او پر نون باندي زېر دی، په پای کي فاء ده.

۸۱۲. **مدعم**: دغه مدعم د رسول الله ﷺ ازاد سوی غلام دی، حبشي غلام وو، مخکي د رفاعه بن زید غلام وو، هغه د تحفې په توګه د رسول الله ﷺ په خدمت کي وړاندي کړ، دده څخه قیس بن ابي حازم یوازي یو حدیث روایت کړی دی، د هغه حدیث څخه ماسوا دده بل حدیث نسته.

۸۱۳. **مرداس بن مالک**: دغه مرداس د مالک زوی او اسلمي دی، دی په اصحاب شجره کي وو، په اهل کوفه کي شمېرل کیږي، دده څخه قیس بن ابي حازم یوازي یو حدیث

روايت کړی دی، د هغه حديث څخه ماسوا دده بل حديث نسته.

۸۱۴. **محيصه بن مسعود**: دغه محصيه د مسعود زوی، انصاري او حارثي دی، په اهل مدينه کي شمېرل کيږي او په هغوی کي دده حديثونه تر لاسه کيږي، د اُحد، خندق او نورو ټولو غزاوو کي شريک وو، دده څخه دده زوی سعيد روايت کوي، په محيصه کي پر ميم باندي پېښ او حاء غير منقوطه باندي زور او ياء مشدد باندي زېر او صاد غير منقوطه باندي زور دی.

۸۱۵. **مخارق بن عبدالله**: دغه مخارق د عبدالله زوی دی، په اهل کوفه کي شمېرل کيږي، دده په حديث کي اختلاف دی، دده څخه دده د زوی قابوس ماسوا بل چا روايت نه دی کړی.

۸۱٦. **مخرفه عبدي**: دده په نامه کي اختلاف دی، ځينو ويلي دي چي مخرمه دی، اول قول د اکثرو دی، دده څخه سويد بن قيس روايت کړی دی، دده يادونه د سويد په حديث کي ده.

۸۱۷. **مجاشع بن مسعود**: دغه مجاشع د مسعود زوی دی، سلمي دي، دده څخه ابو عثمان نهدي روايت کړی دی، د صفر په مياشت کي په ۳٦م هجري کال د جمل په جګړه کي شهيد سو، دده حديث په اهل بصره کي دي.

۸۱۸. **مراره بن ربيع**ؓ: دغه مراره د ربيع زوی دی، عامري او انصاري دی، د بدر په غزا کي شريک او حاضر وو، د تبوک د غزا څخه د پاته کېدونکو درو صحابوو څخه دی هم دی، دده توبه قبوله سول، دده په اړه د قرآن کريم آيت نازل سو، په مراره کي پر ميم باندي پېښ دی.

۸۱۹. **معصب بن عمير**ؓ: دغه معصب د عمير زوی دی، قرشي او عدوي دی، بزرګ او د سترو صحابه کرامو څخه دی، اول يې حبشې ته هجرت وکړ بيا په بدر کي شريک سو، د رسول الله ﷺ د بيعت عقبه ثانيه څخه وروسته مدينې ته استولی وو چي د مدينې خلګو ته قرآن او دين وښيي، تر ټولو مخکي ده په مدينه کي جمعه قائمه کړل، د جاهليت په زمانه کي يې ډېر د آرام ژوند کوی، کله چي مسلمان سو نو د دنيا څخه بېزاره سو، د هغه نتيجه دا سول چي ټول پوست يې د مار په ډول وشوړېدی، ويل کيږي چي رسول الله ﷺ د بيعت عقبه اولی څخه وروسته مدينې ته استولی وو، دی به د انصارو سرايو ته ورتلی او هغوی ته به يې د اسلام دعوت ورکوی، کله به يو او کله دوه کسان مسلمانان

کېدل، کله چي اسلام خپور سو نو د رسول الله ﷺ ځخه يې د ليک په ذريعه د جمعې قائمولو اجازه وغوښتل، رسول الله ﷺ اجازه ورکړل، بيا د اويا کسانو سره په بيعت عقبه ثانيه کي حاضر سو او په مکه کي يې لږ قيام وکړ، بيا د رسول الله ﷺ د هجرت ځخه مخکي مدينې ته راغلی، مدينې ته تر ټولو مخکي راورسېدی او د احد په غزا کي شهيد سو، هغه وخت يې عمر ۴۰ کاله يا زيات وو، رجال صدقوا ما عاهدو الله عليه، دا هغه خلګ دي چي د الله جل جلاله معاهده يې په صداقت سره کړل، دغه آيت د دوی په اړه نازل سوی دی، د رسول الله ﷺ په دار ارقم کي د داخلېدو ځخه وروسته دوی مسلمانان سوي دي.

٨٢٠. **معاويه بن ابي سفيان** رضي الله عنه: دغه معاويه د ابي سفيان زوی، قرشي او اموي دی، دده د مور نوم هند بنت عتبه دی، دی خپله او د ده پلار د مکې د فتح په وخت کي مسلمان سو، او په مؤلفة القلوب کي داخل وو، د رسول الله ﷺ په ليکوالانو کي حضرت معاويه رضي الله عنه هم شامل دی، ويل کيږي چي ده وحي نه ده ليکلې مګر د رسول الله ﷺ ليکني به يې ليکلې، ابن عباس او ابوسعيد رضي الله عنهما دده ځخه روايت کوي، د خپل ورور يزيد ځخه وروسته د شام حاکم وو او دحضرت عمر رضي الله عنه د زمانې ځخه د هغه تر وفات پوري حاکم وو، دغه ټول وخت ځلوېښت کاله وو، د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت په زمانه کي تقريبا ځلور کاله او دحضرت عثمان رضي الله عنه په ټول خلافت کي او دحضرت علي رضي الله عنه په ټول خلافت کي دغه ټوله شل کاله سول، تر دي وروسته د حضرت حسن بن علي رضي الله عنه په ۴۱م هجري کال کي خلافت ده ته حواله کړ نو حکومت په پوره توګه ده ته وسپارل سو او پرله پسې شل کاله پاچهي دده په لاس کي وه، په دمشق کي په ۶۰ م هجري کال د ۷۵ کالو په عمر وفات سو، د خپل ژوند په آخري ورځو کي به يې ويل: ارمان چي زه په وادي ذي طوی کي د قريشو يو سړی وای او دغه حکومت مي نه وای، دده سره د رسول الله ﷺ ځادر، قميص، پرتوګ، وېښتان او نوکان مبارک پراته وه، وصيت يې کړی وو چي ما ته دي د رسول الله ﷺ په قميص، پرتوګ او ځادر کي کفن راکړل سي او زما په پزه، خوله او هغه اندامو کي چي په هغه سره سجده کيږي د رسول الله ﷺ وېښتان مبارک او نوکان واچوئ، او زه دي زما د ارحم الراحمين په مخکي يو ازي پرېښودل سم.

٨٢١. **معاويه بن حکم**: دغه معاويه د حکم زوی دی، سلمي دی، په مدينه کي پاته سوی وو، په اهل حجاز کي شمېرل کيږي، دده ځخه دده زوی کثير او عطاء بن يسار او نور کسان روايت کوي، په ١١٧ م هجري کال کي وفات سو.

۸۲۲. **معاویه بن جاهمه**: دغه معاویه د جاهمه زوی دی، اسلمي دی، د اهل حجاز څخه شمېرل کیږي. دی د خپل پلار څخه او دده څخه طلحه بن عبید الله روایت کوي.

۸۲۳. **مروان بن الحکم**: دغه مروان د حکم زوی دی، کنیت یې ابوعبدالملک دی، قرشي اموي او د عمر بن عبدالعزیز نیکه دی، مروان د رسول الله ﷺ په زمانه کي پیدا سو، ویل کیږي چي په دوهم هجري کال پیدا سو، دا هم ویل کیږي چي د خندق د غزا په کال یا په بل کال پیدا سو، ده د رسول الله ﷺ لیدنه نه ده کړې ځکه چي رسول الله ﷺ دده پلار طائف ته جلا وطنه کړی وو، د حضرت عثمان رضی الله عنه د خلافت تر زمانې پوري هلته هستوګن وو. حضرت عثمان رضی الله عنه بېرته مدینې ته راوستی، دی د خپل زوی سره مدینې ته راغلی، په دمشق کي په ۶۵م هجري کال وفات سو، د ځینو صحابه کرامو څخه روایت کوي چي په هغوی کي حضرت عثمان او حضرت علي رضی الله عنهما هم دي، او دده څخه ځیني تابعین روایت کوي لکه عروه بن زبیر او علي بن حسین.

۸۲۴. **مره بن کعب**: دغه مره د کعب زوی دی، بهزي دی په اهل شام کي شمېرل کیږي، دده څخه ځینو تابعینو روایت کړی دی، په ۵۵م هجري کال په اردن کي وفات سو.

۸۲۵. **مزیده بن جابر**: دغه مزیده د جابر زوی د بصرې اوسېدونکی دی، په اهل بصره کي شمېرل کیږي، دده حدیثونه په اهل بصره کي تر لاسه کیږي، دده څخه دده اخیافي ورور عوذ بن عبدالله بن سعد روایت کوي، په مزیده کي پر میم باندي زور، زاء ساکنه او یاء باندي زور دی.

۸۲۶. **مسلم قرشي بن عبدالله**: دغه مسلم قرشي دی، دده نوم مسلم دی د عبدالله زوی دی. ویل کیږي چي دده نوم عبید الله بن مسلم دی.

۸۲۷. **مطلب بن ابي وداعه**: دغه مطلب د ابووداعه زوی دی، د ابووداعه نوم حارث دی. سهمي او قرشي دی، د مکې د فتح په ورځ مسلمان سو، بیا په کوفه کي هستوګن سو او بیا په مدینه کي دده پلار د بدر په غزا کي بندي سوی وو نو مطلب د هغه خلاصولو ته راغلی او د څلور زره درهمه فدیې په ورکولو سره یې خپل پلار خلاص کړ، دده څخه عبدالله بن زبیر او دده دواړه زامن کثیر او جعفر او مطلب بن سائب چي دده وراره دی روایت کوي.

۸۲۸. **مطلب بن ربیعه**: دغه مطلب د ربیعه بن حارث بن عبدالمطلب بن هاشم زوی دی، قرشي او هاشمي دی. د رسول الله ﷺ په زمانه کي کشر وو، په اهل حجاز کي شمېرل کیږي.

۸۲۹. **محمد بن ابي بکر صديق** رضي الله عنه: دغه محمد د ابوبکر صديق رضي الله عنه زوی دی، ابو القاسم يې کنيت دی، په اتم هجري کال د حجة الوداع په کال په ذوالحليفه کې پيدا سو. دده مور اسماء بنت عميس ده، د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه زيات روايت کوي او د نورو صحابه کرامو څخه هم، دده څخه دده زوی قاسم زيات روايت کوي او نور تابعين هم، د حضرت معاويه رضي الله عنه له خوا وو، په مصر کې په ۳۸ م هجري کال ووژل سو د نوموړي مړی پر خره کښېښودی او وسوځل سو.

۸۳۰. **محمدبن حاطب**: دغه محمد د حاطب زوی قرشي او حجمي دی، دی، ده پلار، مور، ورور حارث او اکا خطاب ټول صحابيان دي، د حبشې په هيواد کې پيدا سو، په ۷۴م هجري کال په مکه يا کوفه کې وفات سو، په اهل کوفه کې شمېرل کيږي، دده څخه دده زوی ابراهيم او سماک بن حرب روايت کوي، ويل کيږي چې دی اول سړی دی چې دده نوم د رسول الله ﷺ په نامه کښېښودل سو.

۸۳۱. **محمدبن عبدالله**: دغه محمد د عبدالله بن حجش زوی دی، قرشي او اسدي دی، د هجرت څخه پنځه کاله مخکې پيدا سو او د خپل پلار سره يې حبشې ته هجرت وکړ، بيا مکې ته راغلی او بيا يې مدينې ته هجرت وکړ، دده څخه دده ازاد سوی غلام ابوکثير او نور کسان روايت کوي.

۸۳۲. **محمد بن عمرو**: دغه محمد د عمرو بن حزم زوی او انصاري دی، په لسم هجري کال په نجران کې پيدا سو، د رسول الله ﷺ په زمانه کې پيدا سو، دده پلار عمرو د رسول الله ﷺ له خوا د نجران والي وو چې رسول الله ﷺ دده پلار ته فرمايلي وه چې دده کنيت ابو عبدالملک کيږي، محمد فقيه وو، د خپل پلار او عمرو بن العاص څخه او دده څخه اهل مدينې يوه ډله روايت کوي، په ۶۳م هجري کال د حره په جګړه کې د ۵۳ کالو په عمر ووژل سو.

۸۳۳. **محمدبن ابي عميره**: دغه محمد د ابوعميره زوی او مزني دی، په اهل شام کې شمېرل کيږي، دده څخه جبير بن نفير روايت کوي، په عميره کې پر غين باندې فتحه او پر ميم باندې کسره ده، په پای کې راء ده.

۸۳۴. **محمدبن مسلمه**: دغه محمد د مسلمه زوی دی، انصاري او حارثي دی، د تبوک د غزا څخه ماسوا په نورو ټولو غزاوو کې شريک وو، د حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه او نورو صحابه کرامو څخه يې روايت کړی دی، د سترو صحابه کرامو څخه دی، نوموړي د هغه

صحابو څخه دی چي د حضرت معصب بن عمیر رضی الله عنه په لاس په مدینه کي په اسلام مشرف سو، په مدینه منوره کي په ۴۲م هجري کال د ۷۷ کالو په عمر وفات سو.

۸۳۵. **محمود بن لبید**: دغه محمود د لبید زوی دی، انصاري او اشهلي دی. د رسول الله ﷺ په زمانه کي پیدا سو، د رسول الله ﷺ څخه د ډېرو حدیثو راوي دی، بخاري رحمه الله علیه وایي: دی صحابي دی، ابو حاتم وایي: دده د صحابي کېدو حال معلوم نه سو، امام مسلم د تابعینو په دوهمه طبقه کي ذکر کړی دی. ابن عبید الله وایي: د بخاري قول صحیح دی، ځکه دده صحابي کېدل صحیح دي، محمود د علماؤ څخه دی، د ابن عباس او عتبان بن مالک رضی الله عنهم څخه روایت کوي، په ۹۶م هجري کال کي وفات سو.

۸۳۶. **معمر بن عبدالله**: دغه معمر د عبدالله زوی دی، قرشي او عدوي دی، قدیم الاسلام دی، په اهل مدینه کي شمېرل کیږي، په مدینه کي یې حدیث تر لاسه کیږي. سعید بن مسیب دده څخه روایت کوي.

۸۳۷. **مغیث**: په مغیث کي میم مضموم، غین معجمه، یاء ساکنه او ثاء ده، د بریره خاوند دی. دی خپله د آل ابي احمد حجش ازاد سوی غلام دی، دده څخه ابن عباس او عائشه رضی الله عنهم روایت کوي.

۸۳۸. **منذر بن ابي اسید**: دغه منذر د ابو اسید زوی دی، ساعدي دی. کله چي پیدا سو نو د رسول الله ﷺ په خدمت کي راوستل سو. رسول الله ﷺ په خپله غېږ کي کښېښود او دده نوم یې منذر کښېښود، اسید د اسد تصغیر دی.

۸۳۹. **ابو موسی**: ددغه ابو موسی نوم عبدالله او د قیس زوی دی، اشعري دی، په مکه کي مسلمان سو او حبشې ته یې هجرت وکړ، بیا اهل سفینه سره راغلی، هغه وخت رسول الله ﷺ په خیبر کي وو، په ۲۰ م هجري کال حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه د بصرې حاکم وټاکی، ابو موسی اهواز فتح کړ، د عثمان خلافت تر پیل پوري د بصرې حاکم وو، بیا دهغه ځای څخه په معزول کېدو سره کوفې ته منتقل سو او هلته هستوګن سو، د حضرت عثمان رضی الله عنه تر شهادت پوري د کوفې والي وو، د حضرت علي رضی الله عنه او حضرت معاویه رضی الله عنه په منځ کي د فیصلې کولو لپاره د حضرت علي رضی الله عنه له خوا حکم ګرځول سوی وو، تر دې وروسته تر خپل کال وفات ۵۲م هجري کال پوري په مکه کي وو.

۸۴۰. **ابو مرثد بن حصین**: نوم یې کناز او د حصین زوی دی، ده ته ابن حصین غنوي ویل کیږي. په خپل کنیت سره مشهور دی، دی او دده زوی مرثد د بدر په غزا کي شریک وه. د

سترو صحابه کرامو څخه دی، ده د حضرت حمزه رضي الله عنه څخه او دده څخه واصله بن اسقع او عبدالله بن عمرو رضي الله عنه روایت کوي، په ۱۲ م هجري کال وفات سو، په کناز کي پر کاف باندي زور او نون مشدد او په آخر کي زاء ده.

۸۴۱. **ابومسعود بن عمرو**: نوم یې عقبه د عمرو زوی دی، انصاري او بدري دی، په بیعت عقبه ثانیه کي حاضر وو، او د اکثرو تاریخ پوهانو په نزد په بدر کي شریک نه وو، دا هم ویل کیږي چي په بدر کي یې ګډون وکړ، لومړی قول زیات صحیح دی، ده ته د بدري ویلو وجه داده چي دی د بدر پر څاه باندي تم سوی وو ځکه بدر ته په منسوب کېدو سره بدري ورته ویل کیږي، دی په کوفه کي هستوګن سو، د حضرت علي رضي الله عنه په خلافت کي وفات سو او ویل کیږي چي په ۴۱م هجري کال یا ۴۲ م هجري کال وفات سو. دده څخه دده زوی بشیر او نورو کسان روایت کوي.

۸۴۲. **ابومالک بن عاصم**: نوم یې کعب او د عاصم زوی دی، اشعري دی، امام بخاري رحمة الله علیه په تاریخ کي د نورو حضراتو همداسي بیان کړی دی، دده څخه عبدالرحمن بن غنم روایت کوي، امام بخاري رحمة الله علیه د شک په توګه وفرمایل چي موږ ته ابومالک یا ابوعامر حدیث بیان کړ، ابن المدیني وایي چي دلته ابومالک زیات صحیح دی، دده څخه یوه ډله روایت کوي او د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت په زمانه کي وفات سو.

۸۴۳. **ابومحذوره**: نوم یې سمره او د معیر زوی دی، په معبره کي میم مکسور دی، ویل کیږي چي دده نوم اوس بن معیر دی، دی د رسول الله ﷺ له خوا د مکې مؤذن وو، په ۵۹ هجري کال کي وفات سو، ده هجرت ونه کړل او تر وفات پوري په مکه کي مقیم وو.

۸۴۴. **ابن مربع**: دغه زید دی د مربع زوی او انصاري دی، ویل کیږي چي دده نوم یزید دی او دا هم ویل کیږي چي عبدالله دی، اول قول د زیاتو خلګو دی، دده څخه یزید بن شیبان روایت کوي، دده شمېر په اهل حجاز کي دی، دده حدیث د وقوف عرفات په اړه دي، په مربع کي میم مکسور، راء ساکنه، باء موحده مفتوح او عین مهمله دی.

## تابعین رحمهم الله.

۸۴۵. **محمدبن حنفیه**: دغه محمد د علي ابن ابي طالب رضي الله عنه زوی دی، دده کنیت ابوالقاسم او دده مور خوله حنفیه د جعفر لور ده. ویل کیږي چي دده مور د یمامه په جګړه کي نیول سوې راوستل سول او حضرت علي رضي الله عنه په برخه راغلل، اسماء بنت ابي بکر

وايي: ما د محمد بن الحنفيه مور لېدلې ده چې هغه د سند او سېدونکې او توره وه او هغه د بنو حنفيه مينزه وه، ده د خپل پلار څخه او دده څخه دده زوی ابراهيم روايت کوي، په مدينه منوره کې د ۶۵ کالو په عمر ۸۱ م هجري کال کې وفات سو او په بقيع کې دفن سو .

۸۴۶. **محمد بن علي**: دغه محمد د علي زوی دی او د حسين بن علي بن ابي طالب لمسی دی، کنيت يې ابو جعفر او د باقر په نامه سره مشهور دی، د خپل پلار حضرت زين العابدين او جابر بن عبد الله رضي الله عنه څخه يې حديث اورېدلي دي ، دده څخه دده زوی جعفر صادق او نور کسان روايت کوي، په ۵۶ م هجري کال پيدا سو او په مدينه منوره کې په ۱۱۷ م يا ۱۱۸ م هجري کال د ۶۳ کالو په عمر وفات سو ، دده د عمر په اړه نور اقوال هم دي، په بقيع کې دفن سو ، دده نوم باقر ځکه سو چې دده علم ډېر پراخ وو چې د هغه لپاره تبقر في العلم محاوره په عربي کې مستعمل ده.

۸۴۷. **محمد بن يحيى**: دغه محمد د يحيى بن حبان زوی دی، کنيت يې ابو عبد الله دی، د انصارو څخه دی، دده څخه يوه ډله روايت کوي، د امام مالک د استاذانو څخه دی، خپله امام مالک به دده ډېر عزت کوی، دده د زهد ، عبادت، فقه او علم اړوند هر ډول فضائل يې ذکر کول، په مدينه منوره کې د ۷۴ کالو په عمر په ۱۲۱ م هجري کال وفات سو ، په حبان کې حاء مهمله مفتوح او باء مشدده ده .

۸۴۸. **محمد بن سيرين**: دغه محمد د سيرين زوی دی، کنيت يې ابو بکر دی، د انس بن مالک رضي الله عنه ازاد سوی غلام دی، ده د انس بن مالک رضي الله عنه ، ابن عمر رضي الله عنه او ابو هريره رضي الله عنه څخه حديث اورېدلي دي او دده څخه ډېر خلک روايت کوي، نوموړی فقيه ، عالم، عابد، متقي او محدث وو ، د سترو تابعينو څخه وو ، د علوم شريعت په فن کې يې شهرت درلود ، د مورق العلم عجلي بيان دی چې ما هيڅ سړی نه دی ليدلی چې د پرهيزګاری په چارو کې دده څخه زيات صاحب فقه او په فقهيه مسائلو کې دده څخه زيات پرهيزګار وي، خلف بن هشام ويلي دي: ابن سيرين ته يو خاص علامه او خاص مقام خشوع ورکړل سوی وو، خلکو چې به ليدی نو خدای جل جلاله به ور په يادېدی. اشعث وايي: کله چې به د ابن سيرين څخه د حلال او حرام په اړه پوښتنه وسول نو د هغه رنګ به بدل سو. مهدي ويلي دي: موږ د ابن سيرين سره ناسته او ولاړه درلودل، هغه زموږ سره خبري کوي او موږ ته زيات راځي، نو د هغه رنګ بدل سي او ژړ سي ، داسي معلوميږي چې هغه سړی نه دی کوم چې مخکي وو. په ۱۱۰ م هجري کال د ۷۷ کالو په عمر وفات سو .

۸۴۹. **محمد بن سوقه** : دغه محمد د سوقه زوی دی، ابوبکر يې کنيت دی، غنوي او کوفي دی، عبادت کوونکی سړی دی، د حضرت انس او نخعي څخه روايت کوي او دده څخه ابن مبارک، ابن عينيه او نور کسان روايت کوي، ويل کيږي چي هغه د خدای ﷻ پر نافرمانۍ باندي په ښه توګه قادر نه وو، په خپلو ملګرو يې يولک درهم مصرف کړل.

۸۵۰. **محمدبن عمرو** : دغه محمد د عمرو بن حسن بن ابي طالب زوی دی، دی د جابر بن عبدالله رضي الله عنه څخه روايت کوي.

۸۵۱. **محمدبن سليمان** : دغه محمد د سليمان زوی دی، باغندي دی، کنيت يې ابوبکر دی، د واسط اوسېدونکی دی، د باغندي په نامه سره مشهور دی، په بغداد کي هستوګن سو، او هلته يې د يوې ډلي څخه حديث بيان کړل، دده څخه ډېر خلګ روايت کوي چي په هغوی کي ابوداؤد سجستاني هم دی، په ۲۸۳ م هجري کال وفات سو.

۸۵۲. **محمد بن ابي بکر** : دغه محمد د ابوبکر بن عمرو بن حزم زوی دی، انصاري او مدني دی، د خپل پلار څخه يې حديث اورېدلي دي او دده څخه سفيان بن عينيه او مالک بن انس روايت کوي، د خپل پلار څخه وروسته د مدينې قاضي وو، د خپل ورور عبدالله څخه مشر وو، په ۱۳۲م هجري د ۷۲ کالو په عمر وفات سو، دده پلار په ۱۲۰ م هجري کال کي وفات سو.

۸۵۳. **محمد بن منکدر** : دغه محمد د منکدر زوی دی او تميمي دی، د جابر بن عبدالله، انس بن مالک، ابن الزبير او خپل اکا ربيعه څخه يې حديث اورېدلي دي، په ۱۳۰ م هجري کال وفات سو، دده عمر تقريبا اويا کاله وو، د سترو تابعينو څخه دی، د علم، زهد، عبادت او په دين کي د پختيا او پاک لمنۍ جامع دی.

۸۵۴. **محمد بن صباح** : دغه محمد د صباح زوی دی، ابوجعفر دولابي بزار ورته ويل کيږي، د سنن بزار ليکوال دی، د شريک و هيثم څخه روايت کوي او دده څخه بخاري، مسلم، ابوداؤد، احمد او نور ډېر کسان روايت کوي او باوري يې ګرځولی دی، دی د حديثو حافظ هم دی، په ۲۲۷ م هجري کال کي وفات سو.

۸۵۵. **محمد بن منتشر** : دغه محمد د منتشر زوی دی، دهمدان اوسېدونکی دی، د مسروق وراره دی، د ابن عمر، عائشې او نورو صحابه کرامو رضي الله عنهم څخه روايت کوي او دده څخه يوه ډله روايت کوي.

۸۵۶. **محمد بن خالد** : دغه محمد د خالد زوی او سلمي دی، ده د خپل پلار څخه، هغه د

خپل نيکه څخه روايت کوي ، د هغه نيکه صحابي دی .

۸۵۷. **محمد بن زيد**: دغه محمد د زيد بن عبدالله بن عمر زوی دی، هغه د خپل نيکه او ابن عباس رضي الله عنه څخه او دده څخه دده زامن او اعمش روايت کوي، نوموړی باوري دی.

۸۵۸. **محمد بن کعب**: دغه محمد د کعب زوی دی، قرشي او مدني دی، د څو صحابه کرامو څخه يې حديث اورېدلي دي او دده څخه محمد بن منکدر او نور کسان روايت کوي، دده پلار د قريظه په جګړه کي بې ږېري او بې برېته وو ، ځکه په جګړه کي شامل نه کړل سو ، په ۱۰۸ م هجري کال کي وفات سو .

۸۵۹. **محمد بن ابي مجالد**: دغه محمد د ابي مجالد زوی دی، د کوفې اوسېدونکی دی، د کوفې د تابعينو څخه دی، دده حديث په اهل کوفه کي دی، دی د صحابه کرامو د يوې ډلي څخه حديث روايت کوي او دده څخه ابواسحاق او شعبه او داسي نور روايت کوي.

۸۶۰. **محمد بن قيس**: دغه محمد د ابراهيم زوی دی، قرشي او تميمي دی، د علقمه بن وقاص او ابوسلمه څخه يې حديث اورېدلي دي، امام ترمذي رحمه الله د سهار د دوو رکعتو په اړه دده يو حديث بيان کړی دی چي د هغه سند دادی: روايت دی چي د قيس څخه چي د سعد بن سعيد نيکه دی او دغه قيس د يحيى ابن سعيد او دهغه د ورور سعد بن سعيد نيکه دی، ترمذي ويلي دي چي دغه قيس د عمرو بن قيس بن قعد زوی دی، بيا يې وويل: د دغه حديث سند متصل نه دی ځکه چي ابراهيم تميمي د قيس څخه نه دي اورېدلي ، په قعد کي قاف مفتوح دی .

۸۶۱. **محمد بن ابي بکر**: دغه محمد ثقفي حجازي دی او د ابوبکر عوف زوی دی، ده د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه څخه او دده څخه يوه ډله روايت کوي .

۸۶۲. **محمد بن مسلم**: دغه محمد د مسلم زوی دی، ابوزهر يې کنيت دی، دده يادونه د زاء په حرف کي راغلې ده .

۸۶۳. **محمدبن قاسم**: دغه محمد د قاسم زوی دی، ابوالخلاد يې کنيت دی، نوموړی ړوند وو ، د ابوالعباس په نامه مشهور دی، د ابوجعفر منصور ازاد سوی غلام دی، په اصل کي د يمامه دی، په ۱۹۱ م هجري کال په اهواز کي پيدا سو ، په بصره کي يې روزنه وسول ، ډېر قوي الحفظ او ستر فصيح وو ، په ۲۸۳ م کال کي وفات سو ، دده څخه يوه ډله روايت کوي.

۸٦۴. **محمدبن فضل**: دغه محمد د فضل بن عطیه زوی دی، د خپل پلار او زیاد بن علاقه او منصور څخه روایت کوي او دده څخه داؤد بن رشید او محمد بن عیسی مدائني روایت کوي، محدثینو قابل ترک ګرځولی دی، په ۱۸۰ م هجري کال کي وفات سو.

۸٦۵. **محمدبن اسحاق**: دغه محمد د اسحاق زوی دی، د مدینې اوسېدونکی دی او د قیس بن مخرمه ازاد سوی غلام دی، نوموړی تابعي دی، د حضرت انس او سعید بن مسیب رضي الله عنهما لېدنه یې کړې ده، د تابعینو د یوې لوی ډلي څخه یې حدیث اورېدلي دي، دده د حدیثو روایت امامان او علماء کوي د مثال په توګه یحیی ابن سعید، ثوري، نحعي، ابن عیینه او د دوی څخه ماسوا نور کسان هم ور څخه روایت کوي، د سیرت، غزاوو، د خلګو خاص حالات، د عالمانو پیښي، د نبیانو قصې، د علم حدیث، قرآن او فقهي ستر عالم وو، بغداد ته ولاړی او هلته یې د حدیثو روایت کوی، په ۱۵۰ م هجري کال په بغداد کي وفات سو، د خیزران په هدیره کي ختیځ خوا ته دفن سو.

۸٦٦. **مسدد بن مسرهد**: دغه مسدد د مسرهد زوی دی، د بصرې اوسېدونکی دی، د حمادبن زید، ابوعوانه او نورو یې حدیث اورېدلي دي، دده څخه بخاري، ابوداؤد او نور ډېر کسان روایت کوي، په ۲۲۸ م هجري کال کي وفات سو، په مسدد کي میم مضموم، سین مهمله مفتوح، پر اول دال باندي تشدید دی او په مسرهد کي هم پر میم باندي ضمه، پر سین مهمله باندي فتحه او راء مهمله ساکنه ده، ددې څخه وروسته هاء مهمله مفتوح ده او په پای کي دال مهمله دی.

۸٦۷. **مجاهد بن جبر**: دغه مجاهد د جبر زوی دی، ابوالحجاج یې کنیت دی، د عبدالله بن سائب ازاد سوی غلام دی، د بنو مخزوم څخه دی، د مکې په تابعینو کي د دوهمي درجې تابعي او د مکې د قاریانو او فقهاؤ څخه دی، د مکې په مشهورو خلګو کي دی او پېژندل سوی سړی دی، د قرائت او تفسیر امام دی، دده څخه یوه ډله روایت کوي، په ۱۰۰ م هجري کال کي وفات سو، په جبیر کي پر جیم باندي زور او باء موحده ساکنه ده.

۸٦۸. **مهاجر بن مسمار**: دغه مهاجر د مسمار زوی دی، زهري یعني د بنوزهره ازاد سوی غلام دی، ده د عامر بن سعد بن ابي وقاص څخه او دده څخه ابوذویب او نورو کسانو روایت کړی دی، نوموړی په روایت کي باوري دی.

۸٦۹. **مکحول بن عبدالله**: دغه مکحول د عبدالله زوی دی، کنیت یې ابوعبدالله دی، د شام اوسېدونکی دی، د کابل څخه بندي سوی راوستل سو، د قیس قبیلې د یوې ښځي

یا د بني لیث غلام وو، د امام اوزاعي ستاد وو، امام زهري وایي: علماء څلور دي: په مدینه کي ابن مسیب، په کوفه کي شبعي، په بصره کي حسن بصري او په شام کي مکحول، په فتاوی کي تر مکحول هیڅوک صاحب بصیرت نه وو، کله چي به یې فتوا ورکول نو ویل به یې: لاحول ولاقوة الاباالله، دا زما رایه ده، رایه کله غلطه وي او کله صحیح، دده د یوې ډلي څخه او دده څخه ډېرو کسانو روایت کړی دی، په ۱۱۸ م هجري کال کي وفات سو.

۸۷۰. **مسروق بن اجدع**: دغه مسروق د اجدع زوی دی، همداني او کوفي دی، د رسول الله ﷺ د وفات څخه مخکي په اسلام مشرف سوی وو، د صحابه صدر اول لکه ابوبکر، عمر او عثمان رضی الله عنهم زمانه یې تر لاسه کړل، د سترو فقهاؤ څخه وو، مره بن شرحبیل وایي: که د یوې کورنۍ خلګ د جنت لپاره پیدا سوي دي نو هغه دادي: اسود، علقمه او مسروق، بن منتشر وایي چي خالد بن عبدالله د بصرې والي وو، هغه د تحفې په توګه دېرش زره روپۍ د مسروق په خدمت کي وراندي کړې، مسروق د هغه د قبلېدو څخه انکار وکړ، ویل کیږي چي په کوچنیوالي کي غلا سوی وو، بیا کله چي پیدا سو نو دده نوم مسروق سو، دده څخه ډېرو خلګو روایت کړی دی، په کوفه کي په ۶۲م هجري کال وفات سو.

۸۷۱. **مرثد بن عبدالله**: دغه مرثد د عبدالله زوی دی، ابوالخیر یې کنیت دی، یزني او مصري دی، د عقبه بن عامر، ابوایوب، عبدالله بن عمر او عمرو بن عاص څخه یې حدیث اورېدلي دي، دده څخه یزید بن ابو حبیب روایت کوي.

۸۷۲. **مالک بن مرثد**: دغه مالک د مرثد زوی دی، د خپل پلار څخه روایت کوي او دده څخه سماک بن الولید.

۸۷۳. **مسلم بن ابي بکره**: دغه مسلم د ابي بکره زوی دی، ثقفي او تابعي دی، ده د خپل پلار څخه او دده څخه عثمان شحام روایت کوي.

۸۷۴. **مسلم بن یسار**: دغه مسلم د یسار زوی دی، جهني دی، د سورة اعراف په تفسیر کي امام ترمذي دده روایت د حضرت عمر رضی الله عنه څخه نه دی اورېدلی، امام بخاري رحمة الله علیه وایي: مسلم بن یسار د نعیم څخه او هغه د عمر رضی الله عنه څخه روایت وکړ.

۸۷۵. **مصعب بن سعد**: دغه مصعب د سعد بن ابي وقاص زوی دی، قرشي دی، د خپل پلار حضرت علي بن ابي طالب رضی الله عنه او ابن عمر رضی الله عنه څخه یې حدیث اورېدلي دي، دده څخه سماک بن حرب او نور کسان روایت کوي.

۸۷۶. **معن بن عبدالرحمن**: دغه معن د عبدالرحمن بن عبدالله بن مسعود زوی دی او هذلي دی، ده د خپل پلار څخه روایت کړی دی.

۸۷۷. **معدان بن طلحه**: دغه معدان د طلحه زوی دی، یعمري دی ده د عمر ابودرداء او ثوبان څخه حدیث اوریدلي دي.

۸۷۸. **معمر بن راشد**: دغه معمر د ابوعروه ازدي ازاد سوی غلام دی، د راشد زوی دی، د یمن عالم دی، د زهري او همام څخه یې روایت کړی دی، دده څخه ثوري او ابن عیینه روایت کوي، عبدالرزاق وایي: ما دده څخه لس زره حدیثونه واوریدل، په ۱۵۳م هجري کال د ۵۸ کالو په عمر وفات سو.

۸۷۹. **مهلب بن ابي صفره**: دغه مهلب د ابي صفره زوی دی، ازدي دی، د خوارجو سره دده خاص مقامات او مشهور جنګونه منقول دي، ده د مسمره او ابن عمر رضي الله عنه څخه حدیث اوریدلي دي، او دده څخه یوه ډله روایت کوي، د عبدالملک بن مروان په زمانه کي د خراسان په مرورو نامي ځای کي په ۸۳م هجري کال وفات سو، د بصرې په تابعینو کي د اولي طبقې تابعي دی.

۸۸۰. **مورق بن مشمرج**: دغه مورق د مشمرج زوی دی، کنیت یې ابومعتمر دی، عجلي او بصري دی، د حضرت ابوذر، انس بن مالک او ابن عمر رضي الله عنهم څخه حدیث نقل کوي او دده څخه مجاهد، قتاده او نور کسان روایت کوي، په مورق کي میم مضموم، واو مفتوح، راء مشدده او قاف دی، په مشمرج کي میم مضموم، شین معجمه مفتوح، میم ساکن، راء مکسور او جیم دی.

۸۸۱. **موسی بن طلحه**: دغه موسی د طلحه زوی دی، کنیت یې ابوعیسی تیمي او قرشي دی، د صحابه کرامو د یوې ډلي څخه حدیث روایت کوي، په ۱۰۴م هجري کال وفات سو.

۸۸۲. **موسی بن عبدالله**: دغه موسی د عبدالله زوی دی، جهني او کوفي دی، د حضرت مجاهد او مصعب بن سعد څخه یې حدیث اوریدلي دي او دده څخه شعبه، یحیی بن سعید او یعلی روایت کوي.

۸۸۳. **موسی بن عبیده**: دغه موسی د عبیده زوی دی، زیدي دی، ده د محمد بن کعب او محمد بن ابراهیم تیمي څخه او دده څخه شعبه او عبدالله بن موسی او علي روایت کوي، محدثین ده ته ضعیف وایي، په ۱۵۳م هجري کال کي وفات سو.

۸۸۴. **مطرف بن عبدالله**: دغه مطرف د عبدالله بن شخیر زوی دی، عامري او بصري

دی، د حضرت ابوذر او عثمان ابن ابي عاص رضی اللہ عنہ ځخه روايت کوي، د ۸۷ م هجري کال ځخه وروسته وفات سو، په مطرف کي ميم مضموم، طاء مهمله مفتوح ، راء مشدده او مکسور او فاء ده . په شخير کي پر شين معجمه باندي کسره او پر خاء معجمه باندي تشديد او کسره ده .

۸۸۵. **معاذ بن زهره**: دغه معاذ د زهره زوی دی، سلمي ، کوفي او تابعي دی، مرسلا روايت کوي، حصين بن عبدالرحمن دده ځخه روايت کوي .

۸۸۶. **معاذ بن عبدالله**: دغه معاذ د عبدالله بن حبيب زوی دی. جهني او مدني دی. دخپل پلار ځخه روايت کوي .

۸۸۷. **مخلد بن خفاف**: دغه مخلد د خفاف زوی دی، د عروه ځخه او دده ځخه ابن ذئب روايت کوي، دده حديث په الخراج بالضمان کي دي.

۸۸۸. **مختار بن فلفل**: دغه مختار د فلفل زوی دی، مخزومي او کوفي دی، د انس بن مالک رضی اللہ عنہ ځخه يې حديث اوريدلي دي. دده ځخه ثوري او نور کسان روايت کوي، په فلفل کي دواړه فاوي مضموم دي .

۸۸۹. **مختار بن ابي عبيد**: دغه مختار د ابوعبيد بن مسعود زوی دی، د بنوثقيف ځخه دی، دده پلار صحابي دی، مختار د هجرت په کال پيدا سو ، دی صحابي نه دی او نه د حديث رسول راوي دی. دا هغه سړی دی چي دده په باره کي عبدالله بن عصمه وويل: دا کذاب (درواغجن) دی چي دده په باره کي د رسول الله ﷺ ارشاد دی چي په ثقيف کي به يو کذاب وي، په پيل کي په علم ، فضل او خير کي مشهور وو، چي د ده د جذباتو بالکل برعکس وو، تر دې چي ده د عبدالله بن زبير رضی اللہ عنہ ځخه جلاوالی اختيار کړ او خپله د حکومت خواهش لرونکی سو ، اوس دده د غلطي عقيدې او د نفسانيت اظهار وسو ، دده ځخه داسي ډيري خبري ښکاره سوې چي د دين خلاف وې، دغه سړي د حضرت حسين رضی اللہ عنہ د قصاص مطالبه کول چي د حکومت په تر لاسه کولو کي دده پرمختګ وسي چي دده خاص مقصد وو ، په دغه حالت کي د معصب بن زبير په زمانه کي په ۶۷م هجري کال ووژل سو.

۸۹۰. **مغيره بن زياد**: دغه مغيره د زياد زوی دی، بجلي او موصلي دی، ده د عکرمه او مکحول ځخه او دده ځخه وکيع او ابوعاصم او يوه ډله روايت کوي، امام احمد بن حنبل ورته منکر الحديث ويلي دي، او دا چي ما مغيره بن زياد په صحابوو کي تر لاسه نه کړ.

۸۹۱. **مغيره بن مقسم**: دغه مغيره د مقسم زوی دی، د کوفې او سېدونکی دی، صاحب تفقه او روند وو، ده د ابو وائل او شعبي څخه او دده څخه شعبه، زائده او ابن فضيل روايت کوي، جرير دده څخه نقل کوي چي وايي: کومه خبره چي زما غوږ ته راورسېدل هغه مي هېره نه کړل، په ۱۲۳ م هجري کال کي وفات سو.

۸۹۲. **مثنی بن صباح**: دغه مثنی د صباح زوی دی، اولا يماني او بيا مکې دی، ده د عطاء، مجاهد او عمرو بن شعيب څخه او دده څخه عبدالرزاق او نورو کسانو روايت کړی دی، ابو حازم او نور حضرات وايي چي دی د نقل حديث په اړه نرم دی، په ۱۴۹ م هجري کال کي وفات سو.

۸۹۳. **معاويه بن قره**: دغه معاويه د قره زوی دی، ابواياس يې کنيت دی، د بصرې او سېدونکی دی، د خپل پلار، انس بن مالک او عبدالرحمن بن معقل رضي الله عنه څخه يې حديث اورېدلي دي، او دده څخه قتاده، شعبه او اعمش روايت کړی دی، په اياس کي همزه مکسور او ياء غير مشدده ده.

۸۹۴. **معاويه بن مسلم**: دغه معاويه د مسلم زوی دی، کنيت يې ابونوفل دی، د ابن عباس او ابن عمر رضي الله عنهم څخه يې حديث اورېدلي دي، دده څخه شعبه او ابن جريج روايت کوي.

۸۹۵. **ميناء**: دغه ميناء دی د خپل بادار عبدالرحمن بن عوف، عثمان، او ابوهريره رضي الله عنهم څخه روايت کوي او دده څخه د عبدالرزاق پلار روايت کوي، ده ته د حديثو په نقل کي ضعيف ويل سوي دي.

۸۹۶. **ابوالمليح بن اسامه**: نوم يې عامر دی د اسامه زوی دی، هذلي او بصري دی، د صحابه کرامو د يوې ډلي څخه روايت کوي، په مليح کي پر ميم باندي زور، لام مکسور او حاء مهمله ده.

۸۹۷. **ابومودود بن ابي سليمان**: نوم يې عبدالعزيز دی د ابوسليمان زوی دی، د مدينې او سېدونکی دی، ابوسعيد خدري رضي الله عنه يې ليدلی دی، د سائب بن يزيد او عثمان بن ضحاک څخه يې حديث اورېدلي دي او دده څخه ابن مهدي او عتبي او کامل بن طلحه روايت کوي، محدثينو د حديث په باره کي ده ته باوري ويلي دي، د مهدي د امارت په زمانه کي وفات سو، په باب فضائل سيدالمرسلين ﷺ کي دده يادونه ده.

۸۹۸. **ابوماجد**: دغه ابوماجد دی، حنفي دی، د ابن مسعود، يحيی او جابر څخه روايت کوي، د ابن مسعود رضي الله عنه په حديث باب المشي بالجنازة کي دده يادونه ده، ترمذي دده نوم

ماجد ذکر کړی دی او ویلي یې دي چي ما د محمد بن اسماعیل بخاري څخه واورېدل چي هغه دده حدیث ته ضعیف وایي، ابن عیینه وایي چي هغه د هغه مرغه په ډول دی چي په هواء سوی وي.

۸۹۹. **ابومسلم**: دغه ابومسلم دی، خولاني او زاهد دی، عبدالله بن ثوب یې نوم دی، زیات صحیح دادی، د ابوبکر، عمر او معاذ ﷺ سره یې لېدنه کړې ده، دده څخه جبیر بن نفیر، عروه او قلابه روایت کوي، دده مناقب ډېر دي، په ۶۲م هجري کال کي وفات سو.

۹۰۰. **ابوالمطوس**: نوموړی د خپل پلار څخه او دده څخه خبیب بن ابي ثابت روایت کوي، ویل کیږي چي دده او خبیب په منځ کي یو راوي دی، نوموړی باوري ګرځول سوی دی.

۹۰۱. **ابن مدیني**: دغه علي دی د عبدالله زوی، دده یادونه د عین په حرف کي تېره سوې ده.

۹۰۲. **ابن مثنی**: دده نوم عمر دی، د عبدالله بن مثنی بن انس بن مالک زوی دی، انصاري او بصري دی، د خپل پلار، سلیمان تیمي، حمید طویل او نورو څخه یې حدیث اورېدلي دي، دده څخه قتیبه، احمد بن حنبل او محمد بن اسماعیل بخاري په ډول مشهور امامان روایت کوي، د رشېد په زمانه کي د بصرې قاضي وو، بغداد ته ولاړی نو هلته هم د قضاوت دنده ورکړل سول، دلته هغه خپل روایات بند کړل، بیا بصرې ته راغلی، دده د زېږېدني نېټه ۱۱۸م هجري کال او د وفات نېټه یې ۲۱۵م هجري کال دی.

۹۰۳. **ابن ابي ملیکه**: دده نوم عبدالله دی، د ابوعبدالله زوی دی، دده یادونه د عین په حرف کي راغلې ده.

۹۰۴. **محاربي**: دغه محاربي دی، په محاربي کي میم مضموم، حاء مهمله، راء مهمله او باء موحده ده. دی د نسبت قریش یو بطن محارب ته دی، دده نوم عبدالرحمن دی، د محمد زوی دی، دی د اعمش او یحیی بن سعید څخه او دده څخه احمد او علي بن حرب روایت کوي، دی حافظ حدیث دی، په ۱۹۵م هجري کال کي وفات سو.

## صحابي ښځي

۹۰۵. **میمونه** ﷺ: ام المؤمنین بي بي میمونه ﷺ ده، د حارث لور، هلالیه عامریه ده، ویل کیږي چي ددې نوم بره وو، رسول الله ﷺ یې نوم بدل کړ او میمونه نوم یې پر کښېښود. د جاهلیت په زمانه کي د مسعود بن عمرو ثقفي په نکاح کي وه. هغه پرېښودل

نو ابراهیم ورسره نکاح وکړل، د ابراهیم د وفات څخه وروسته رسول الله ﷺ ورسره نکاح وکړل، دغه نکاح د ذي قعده په میاشت کي په اووم هجري کال د عمرة القضاء په وخت کي د مکې څخه لس میله لیري په صرف نامي ځای کي وسول، چیري چي ددې نکاح سوې وه هم هلته په ۶۱ م هجري کال کي وفات سول، د جنازې لمونځ يې حضرت ابن عباس رضي الله عنه ورکړ، د حضرت عباس رضي الله عنه د ښځي ام الفضل او اسماء بنت عمیس خور ده، د رسول الله ﷺ په بیبانو کي آخري بي بي ده، رسول الله ﷺ تر دې وروسته د هیچا سره نکاح ونه کړل، ددې څخه یوه ډله روایت کوي چي په هغوی کي عبدالله بن عباس رضي الله عنه هم دی.

۹۰۶. **ام منذر**: دغه ام منذر د قیس لور ده، انصاري او د بنو عدي څخه ده، ددې څخه یو حدیث یعقوب بن ابي یعقوب روایت کړی دی.

۹۰۷. **ام معبدبنت خالد**: دغه ام معبد د خزاعه قبیلې یوه ښځه ده، ددې نوم عاتکه دی، د خالد لور ده، ویل کیږي چي دا هغه وخت مسلمانه سول کله چي رسول الله ﷺ د هجرت په سفر کي دده سره په لاره کي قیام کړی وو، دا هم ویل کیږي چي مدینې ته په راتلو سره مسلمانه سول، ددې مشهور حدیث د ام معبد په نامه سره متعارف دی.

۹۰۸. **ام معبد بنت کعب**: دغه ام معبد د کعب بن مالک لور او د انصارو څخه ده، دې دواړو قبلو (بیت المقدس او کعبة الله) ته لمونځ کړی دی، ددې څخه ددې زوی معبد روایت کوي، دا د ابن منده قول دی، ابن عبدالبر وایي چي دغه ام معبد د کعب بن مالک انصاري سلمي ښځه ده او د کعب بن مالک انصاري لور ده، ددې څخه ددې زوی معبد روایت کوي، او دا چي د بخاري په تاریخ باب معبد کي ذکر سوي دي هغه دادي چي معبد د کعب بن مالک انصاري زوی دی، ددې څخه د ابن عبدالبر د قول تائید کیږي.

۹۰۹. **ام مالک بهزیه**: دغه ام مالک بهزیه ده، صحابي ده، ددې څخه روایت هم نقل سوی دی، نو موړې حجازي ده، ددې څخه طاؤس اکو مکحول روایت کوي.

## تابعي ښځي

۹۱۰. **معاذه بنت عبدالله**: دغه معاذه د عبدالله لور او معاویه ده. داد حضرت علي او بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روایت کوي او ددې څخه قتاده او نور کسان روایت کوي، په ۸۳ م هجري کال کي وفات سو.

۹۱۱. **مغیره**: دغه مغیره د حجاج بن حسان خور ده، انس بن مالک یې لیدلی دی، او

دهغه ځخه يې روايت هم کړی دی، د مغيره ځخه د هغې ورور حجاج د هغې حديث په باب الرجل کي روايت کړی دی.

## ن - صحابه کرام رضي الله عنهم:

۹۱۲. **نعمان بن بشير** رضي الله عنه: دغه نعمان د بشير زوی دی، کنيت يې ابوعبدالله دی او د انصارو ځخه دی، د انصارو په مسلمانانو کي د هجرت وروسته تر ټولو اول دی پيدا سو، د رسول الله ﷺ د وفات پر وخت دده عمر اته کاله او اووه مياشتي وو، دی خپله او دده مور او پلار صحابه دي، په کوفه کي اوسېدی او د حضرت معاويه رضي الله عنه په زمانه کي د کوفې حاکم وو، بيا د حمص حاکم جوړ کړل سو، ده د عبدالله بن زبير د خلافت دپاره خلګ مائل کول پيل کړل، اهل حمص دی په ۶۴م هجري کال ووژی، دده ځخه يوه ډله چي په هغو کي دده زوی محمد او شعبي شامل دي، روايت کوي.

۹۱۳. **نعمان بن عمرو بن مقرن**: دغه نعمان د عمرو بن مقرن زوی دی مزني دي، خلګ وايي چي ده وويل: هغه په مزينه کي د ځلور سوه کسانو سره د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوی وو، مخکي په بصره کي اوسېدی او بيا کوفې ته منتقل سو، بيا د حضرت عمر رضي الله عنه له خوا د جيش نهاوند حاکم وو، په ۲۱ م هجري کال کي د نهاوند په فتح کولو سره په هغه ورځ شهيد سو، دده ځخه معقل بن يسار او محمد بن سيرين او نور کسان روايت کوي، په مقرن کي پر ميم باندي پېښ، پر قاف باندي زور او راء باندي تشديد او کسره ده او په آخر کي نون دی.

۹۱۴. **نعيم بن مسود**: دغه نعيم د مسود زوی دی، اشجعي دی، په هجرت کولو سره د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو، د خندق د غزا په وخت په اسلام مشرف سو، دی د بنو قريظه او ابوسفيان احزاب مشرکين مشر وو، ده مشرکين د رسول الله ﷺ ځخه ناکام استولي وه، دده دغه واقعه مشهوره ده، په مدينه منوره کي اوسېدی، دده زوی سلمه دده ځخه روايت کوي، د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت په زمانه کي وفات سو، ويل کيږي چي په جنګ جمل کي د حضرت علي رضي الله عنه د رسېدو ځخه مخکي ووژل سو.

۹۱۵. **نعيم بن همار**: دغه نعيم د همار زوی دی، په همار کي هاء مفتوح، ميم مشدد او راء ده، ويل کيږي چي همام د غطفان قبيلې سړی دی، ابوادريس خولاني او نورو دده ځخه روايت کړی دی.

۹۱۶. **نعیم بن عبدالله**: دغه نعیم د عبدالله زوی دی، قرشي او عدوي دی، د نحام په نامه سره مشهور دی، ویل کیږي چي دغه نعیم نحام د عبدالله زوی دی، په مکه کي ډېر مخکي په اسلام مشرف سوی وو، دا هم ویل کیږي چي د حضرت عمر رضی الله عنه د اسلام څخه مخکي مسلمان سوی وو او خپل اسلام یې پټاوی، په خپل قوم کي ډېر شریف النفس وو، ځکه قوم د هجرت کولو څخه منع کړی وو، ده به دخپل قوم د کونډو ښځو او یتیمانو مصرف کوی، هغوی ده ته ویلي وه چي ته په کوم دین یې پر هم هغه اوسه مګر زموږ سره اوسه، د حدیبیه په صلح کي په اووم هجري کال یې هجرت وکړ او په جنګ اجنادین کي د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د خلافت په آخري ورځو کي شهید سو، دده څخه نافع او محمد بن ابراهیم تیمي روایت کوي. په نحام کي پر نون باندي زور، پر حاء مهمله باندي تشدید دی، او په اجنادین کي پر همزه زور، جیم ساکن او نون او دال باندي زور دی او یاء ساکنه ده.

۹۱۷. **ناجیه بن جندب**: دغه ناجیه د جندب زوی او اسلمي دی، د رسول الله ﷺ د اوښانو څارونکی وو، ویل کیږي چي دی د عمر رضی الله عنه زوی دی، په اهل مدینه کي شمېرل کیږي، دده نوم ذکوان وو، رسول الله ﷺ د ناجیه نوم پر کښېښود، ځکه چي ده ته د قریشو څخه خلاصون په برخه سوی وو، هغه صحابي دی چي د حدیبیه په صلح کي د غشي په اخیستلو سره کښته سوی وو، لکه څرنګه چي بیان کیږي، دده څخه عروه بن زبیر او نور کسان روایت کوي، د حضرت معاویه رضی الله عنه د خلافت په زمانه کي په مدینه کي وفات سو.

۹۱۸. **نبیشة الخیر**: دده نوم نبیشة الخیر دی، د بنوهذیل څخه دی، ابوالملیح او ابوقلابه دده څخه روایت کوي، په اهل بصره کي شمېرل کیږي، په دوی کي دده حدیث تر لاسه کیږي.

۹۱۹. **نوفل بن معاویه**: دغه نوفل د معاویه زوی دی، دیلي دي، ویل کیږي چي د اسلام څخه مخکي دده عمر شپېته کاله وو، دا سي نه ده بلکه سل کاله ژوندی وو، تر ټولو مخکي د مکې په فتح کي شریک وو، په اسلام سره د مخکې څخه مشرف سوی وو. په اهل حجاز کي شمېرل کیږي، د یزید بن معاویه په زمانه کي په مدینه کي وفات سو، ځیني کسان دده څخه روایت کوي، په دیلي کي دال مکسور او یاء ساکنه ده.

۹۲۰. **نواس بن سمعان**: دغه نواس د سمعان زوی دی، د بنو کلاب څخه دی، په شام کي اوسېدی، د اهل شام څخه شمېرل کیږي، جبیر بن نفیر او ابوادریس خولاني دده څخه

روایت کوي، په سمعان کي پر سین مهمله باندي کسره ده، ویل کیږي چي زور دی او میم ساکن او عین مهمله دی.

۹۲۱. **نفیع بن حارث**: دغه نفیع د حارث زوی دی، ثقفي دی، کنیت يې ابوبکره دی، دده یادونه په باء کي تېره سوې ده.

۹۲۲. **نافع بن عتبه**: دغه نافع د عتبه بن ابي وقاص زوی دی، د بنوزهره څخه دی، د حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه وراره دی، دده څخه جابر بن سمره روایت کوي، د مکې د فتح په ورځ مسلمان سو، په اهل کوفه کي شمېرل کیږي.

۹۲۳. **ابونجیح**: نوم يې عمرو بن عتبه دی، په عین کي دده یادونه تېره سوې ده.

## تابعین رحمة الله علیهم.

۹۲۴. **نافع بن سرجس**: دغه نافع د سرجس زوی دی، دعبدالله بن عمر رضي الله عنه ازاد سوی غلام دی، دیلمي دی، د سترو تابعینو څخه دی، د ابن عمر او ابوسعید رضي الله عنهما څخه يې حدیث اورېدلي دي او دده څخه ډېرو خلکو چي په هغوی کي زهري او مالک بن انس هم شامل دي، روایت کړی دی، د حدیثو د روایت په اړه د مشهورو خلکو څخه دی او د هغه باوري راویانو څخه دی چي د هغوی څخه روایات تر لاسه کیږي، د حضرت ابن عمر رضي الله عنه د حدیثو لویه برخه پر ده موقوف ده، امام مالک رحمة الله علیه وايي: کله چي زه د نافع په واسطه حدیث اورم نو د بل راوي د اورېدو څخه بې فکره سم، په ۱۱۷م هجري کال کي وفات سو، په سرجس کي سین مهمله اول مفتوح، راء ساکنه او جیم مکسور دی.

۹۲۵. **نافع بن جبیر**: دغه نافع د جبیر زوی او د مطعم لمسی دی، د قریشو څخه دی، د حجاز اوسېدونکی دی، د خپل پلار او ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت کوي او دده څخه زهري او نور کسان روایت کوي.

۹۲۶. **نافع بن غالب**: دغه نافع د غالب زوی دی، کنیت يې ابوغالب دی، نوموړی خیاط او باهلي دی، د بصرې په تابعینو کي شمېرل کیږي، د انس بن مالک رضي الله عنه څخه روایت کوي او دده څخه عبدالوارث روایت کوي.

۹۲۷. **نبیه بن وهب**: دغه نبیه د واهب زوی دی، کعبي او حجازي دی، د ابان بن عثمان او کعب څخه يې روایت کړی دی چي د سعید بن عاص ازاد سوی غلام دی، دده څخه نافع روایت کوي، په نبیه کي پر نون باندي ضمه، پر باء موحده باندي فتحه او یاء ساکنه ده.

۹۲۸. **نضر بن شميل**: دغه نضر د شميل زوی دی، کنيت يې ابو الحسن دی، د بنو مازن ځخه دی، په مرو کي يې هستوګنه اختيار کړل او هلته تقريبا په ۲۰۳ هجري کال کي وفات سو، دده ځخه ډېرو خلګو روايت کړی دی، په نحو او ټولو ادبي فنونو کي ماهر وو، په شميل کي پر شين معجمه باندي پيش دی.

۹۲۹. **ناصح بن عبدالله**: دغه ناصح د عبدالله زوی دی، محلمي دی، دده يادونه په باب بالشفقة والرحمة کي ده، ده د سماک او ابن کثير ځخه او دده ځخه يحيى بن يعلى او اسحاق المسلم السلولي روايت کړی دی، نيک سړی دی، محدثينو ورته ضعيف ويلي دي.

۹۳۰. **النفيلي**: دده نوم عبدالله دی، د محمد بن علي بن نفيل زوی دی، د حديثو حافظ دی، ده د مالک ځخه او دده ځخه ابوداؤد روايت کړی دی، ابوداؤد وايي ما دده ځخه زيات صاحب حفظ نه دی ليدلی، امام احمد به دده عزت کوی، دی د دين يو رکن دی، په ۲۳۴ هجري کال کي وفات سو.

۹۳۱. **النجاشي**: دغه نجاشي د حبشې پاچا دی، ده په رسول الله ﷺ ايمان راوړ او اسلام يې قبول کړ، دده نوم اصحمه دی، دمکې د فتح ځخه مخکي وفات سو، کله چي رسول الله ﷺ ته دده د وفات کېدو خبر راغلی نو د غائبانه د جنازې لمونځ يې ورکړ، د رسول الله ﷺ په لېدنه مشرف نه سو، ابن منده دده يادونه په صحابوو کي کړې ده، حال دا چي د رسول الله ﷺ سره نه دی پاته سوی او نه يې رسول الله ﷺ ليدلی دی، مناسب داده چي دی په صحابوو کي ونه شمېرل سي ځکه چي د صحابي لفظ پر ده باندي په هيڅ صورت کي نه صادقيږي، دده يادونه په صلوة الجنازه کي راغلې ده.

۹۳۲. **ابونضر**: نوم يې سالم دی د ابواميه زوی دی، د عمر بن عبيد بن معمر ازاد سوی غلام دی، قرشي، تيمي او مدني دی، په تابعينو کي شمېرل کيږي، دده ځخه مالک، ثوري او ابن عيينه روايت کړی دی، په النضر کي نون مفتوح، ضاد معجمه ساکن دی.

۹۳۳. **ابونضره منذر**: نوم يې منذر او د مالک زوی دی، عبدي دی، د ابن عمر، ابو سعيد او ابن عباس رضی الله عنهم ځخه يې حديث اورېدلي دي، دده ځخه ابراهيم تيمي، قتاده او سعيد بن زيد روايت کوی، د بصرې په تابعينو کي شمېرل کيږي، د حسن ځخه لږ مخکي وفات سو.

۹۳۴. **ابن نواحه**: نوم يې عبدالله دی، دا هغه دی چي د خپل ملګري ابن اثال سره د مسيلمه کذاب ځخه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو، د دواړو يادونه په کتاب الامان کي راغلې ده، ابن نواحه د مسيلمه کذاب د وژلو ځخه وروسته په مسلمانانو کي

داسي پېښ سو چي خلکو مسلمان ګڼي تر دې چي د حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه د خلافت په زمانه کي د يمن د مرستي لپاره کوفې ته واستول سو، دغه سړی د خپل قوم بني حنفيه امام وو، دده او دده د ملګرو پر خلاف حارثه بن مضرس شاهدي ورکړل چي دغه خلګ د کلي د مسجد هغه شيان يو بل ته ښيي کوم چي مسيلمه په دروا غو جوړ کړي وه، او ددې دعوه يې کړې وه چي هغه ته د خدای جل جلاله له خوا وحي سوي دي، په هغه زمانه کي حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په کوفه کي معلم او د حضرت ابو موسی رضي الله عنه راسته لاس وو، دغه سرکښنه ډله د هغه په وړاندي حاضره کړل سول، هغه يې سرکښي و پېژندل او توبه په وکښل سول، هغوی توبه وکړل او توبه يې قبوله سول، مګر د ابن نواحه معذرت قبول نه کړل سو ځکه ابن مسعود رضي الله عنه دغه خلګ شام ته جلا وطنه کړل، او د دوی باطني حالات يې الله جل جلاله ته وسپارل، ابن مسعود رضي الله عنه وايي: که د دوی عقيده هغه وي کوم چي مخکي وه نو د شام طاعون به يې هلاک کړي کنه نو اوس د دوی د توبې کولو څخه وروسته موږ لره د سزا ورکولو هيڅ حق پاته نه سو، مګر اوس د نواحه په اړه ابن مسعود رضي الله عنه پر وژلو باندي ټينګ وو، ځکه چي دی د زنديق او زنده مبلغ وو، نو د هغه په حکم سره قرظه بن کعب هغه ووژی.

## و – صحابه کرام رضي الله عنهم :

۹۳۵. **واثله بن الاسقع** : دغه واثله د اسقع زوی دی، ليثي دی، دی هغه وخت مسلمان سو کله چي رسول الله صلی الله عليه وسلم د تبوک د غزا دپاره تياري کول، ويل کيږي چي ده درې کاله د رسول الله صلی الله عليه وسلم خدمت وکړ، نوموړی د اهل صفه څخه وو، مخکي په بصره کي او بيا په شام کي هستوګن سو، دده سرای د دمشق څخه پر نهه ميله فاصله باندي په يو کلي بلاط کي وه، بيا بيت المقدس ته نقل سو او هلته وفات سو، هغه وخت يې عمر سل کاله وو، دده څخه يوه ډله حديث نقل کوي، په اسقع کي پر قاف باندي زور او په آخر کي عين دی.

۹۳۶. **وهب بن عمير** : دغه وهب د عمير بن وهب زوی دی، نوموړی جهمي دی، د بدر په غزا کي د کفر په حالت کي بندي کړل سو، دده پلار مدينې ته راغلی او مسلمان سو، رسول الله صلی الله عليه وسلم د هغه په وجه دی ازاد کړ، نو دی هم مسلمان سو، دده يو خاص حيثيت او مرتبه وه، رسول الله صلی الله عليه وسلم د مکې د فتح په کال دی صفوان بن اميه ته استولی وو چي د اسلام دعوت ورکړي، په شام کي په جهاد کولو سره وفات سو.

۹۳۷. **وابصه بن معبد**: دغه وابصه د معبد زوی دی، کنيت يې ابو شداد او سي دی،

مخکي په کوفه کي هستوګن سو او بیا جزیرې ته منتقل سو، په رقه کي وفات سو، دده څخه زیاد بن ابي الجعد روایت کوي.

۹۳۸. **وائل بن حجر**: دغه وائل د حجر زوی دی، حضرمي دی، د حضرت موت د مشرانو څخه وو، دده پلار د هغه ځای پاچا وو، د رسول الله ﷺ په خدمت کي د وفد په صورت کي حاضر سو، ویل کیږي چي نبي کریم ﷺ خپلو صحابوو ته دده د راتلو څخه مخکي دا زیری ورکړی وو او فرمایلي یې وه چي تاسو ته د ډېر لیري څخه وائل بن حجر راځي، د هغه راتلل د پیروی، او د الله ﷻ او د هغه د رسول د شوق او رغبت دپاره دي، دی په شاهي کورنۍ کي افضل دی، کله چي دی حاضر سو نو رسول الله ﷺ ورته ښه راغلاست وو ایه او خپل ځان ته نژدې یې ځای ورکړ، خپل څادر یې ورته هوار کړ او پر هغه یې کښېنوی او وه یې فرمایل: اې الله! وائل او دده اولاد او دده د اولاد اولاد ته برکت ورکړې، رسول الله ﷺ دی د حضرت موت په مشرانو کي مشر ټاکلی وو، دده څخه دده دواړه زامن علقمه او عبدالجبار او نور کسان روایت کوي، په حجر کي حاء مهمله مضموم، جیم ساکن او په پای کي راء ده.

۹۳۹. **وحشي بن حرب**: دغه وحشي د حرب زوی دی، حبشي دی او د مکې د حبشیانو څخه دی، د جبیر بن مطعم ازاد سوی غلام دی، دا هغه دی چي د کفر په حالت کي د احد په غزا کي د رسول الله ﷺ اکا حضرت حمزه رضي الله عنه شهید کړی وو، د طائف څخه وروسته مسلمان سو او د یمامه په جګړه کي د مسلمانانو له خوا وو، دده دعوه وه چي مسیلمه کذاب یې وژلی دی، ده به ویل چي ما په خپله چاړه دوه کسان وژلي دي، یو خیر الناس (حمزه رضي الله عنه) او دوهم شر النّاس (مسیلمه کذاب)، په شام کي هستوګن سو او په حمص کي وفات سو، دده څخه دده زوی اسحاق، حرب او نور کسان روایت کوي.

۹۴۰. **ولید بن عقبه**: دغه ولید د عقبه زوی دی، کنیت یې ابووهب دی، قرشي دی او د عثمان بن عفان رضي الله عنه ورور دی، د مکې د فتح په وخت کي مسلمان سو، هغه وخت ځوانۍ ته نژدې وو، حضرت عثمان رضي الله عنه د کوفې والي ټاکلی وو، دی د قریشو د زلمیانو او شاعرانو څخه دی، دده څخه ابوموسی همداني او نور کسان روایت کوي، په رقه کي وفات سو.

۹۴۱. **ولید بن ولید**: دغه ولید د ولید زوی دی، قرشي او محزومي دی، د خالد بن ولید ورور دی، د بدر په غزا کي د کفر په حالت کي بندي راوستل سو، دده فدیه دده ورور خالد

او هشام اداء کړل، کله چې فدیه ادا سول نو دی مسلمان سو، خلګو ورته وویل: تا د فدیې ادا کولو څخه مخکې ولې د اسلام اظهار ونه کړ، هغه وویل: ما داسې ځکه ونه کړل چې تاسو ته دغه بدګماني پیدا نه سي چې د بند څخه د بېرېدو په وجه ما اسلام قبول کړی دی، د اسلام د اظهار څخه وروسته د مکې مشرکینو بندي کړ، په مکه کې به دده او نورو ضعفاء اسلام دپاره رسول الله ﷺ په قنوت کې دعاء کول، څه وخت وروسته دی ازاد سو او رسول الله ﷺ ته راورسېدی، په عمرة القضاء کې شریک سو، دده څخه عبدالله بن عمر او ابو هریره رضی الله عنهما روایت کوي.

۹۴۲. **ورقه بن نوفل**: دغه ورقه د نوفل بن اسد زوی دی، د قریشو څخه دی، انجیل یې ویلی وو، ډېر سپین ږیری او ړوند سوی وو، د ام المؤمنین بي بي خدیجې رضی الله عنها د اکا زوی وو.

۹۴۳. **ابوواقد**: نوم یې حارث او دعوف زوی دی، لیثي دی، پخواني مسلمان وو، دده شمېر په اهل مدینه کې کیږي، یو کال د مکې شاوخوا اوسېدی او په مکه کې په ۶۸م هجري کال د ۷۵ کالو په عمر وفات سو او په فخ نامي ځای کې دفن کړل سو.

۹۴۴. **ابووهب**: دغه ابووهب جشمي دی، دده نوم او کنیت یو دی، د رسول الله ﷺ صحبت او روایت کول دواړه ور په برخه دي، په جشمي کې پر جیم باندي ضمه او پر شین باندي فتحه او میم مکسور دی، یاء تحتیه مشدده ده چې د نسبت ده.

## تابعین رحمة الله علیهم.

۹۴۵. **وهب بن منبه**: دغه وهب د منبه زوی دی، کنیت یې ابوعبدالله دی، د صنعاء اوسېدونکی دی او ایراني النسل دی، د جابر بن عبدالله او ابن عباس رضی الله عنهم څخه یې حدیث اورېدلي دي، په ۱۱۴م هجري کال کې وفات سو، په منبه کې پر میم باندي پېښ، پر نون باندي زور او باء مسکور ده او پر هغه باندي تشدید دی.

۹۴۶. **وبره بن عبدالرحمن**: دغه وبره د عبدالرحمن زوی دی، کنیت یې ابوخزیمه دی، د بنو حارث څخه دی، ده د ابن عمر او سعید بن جبیر رضی الله عنهما څخه او دده څخه یوه ډله روایت کوي، په وبره کې واو مفتوح، باء ساکنه ده.

۹۴۷. **وکیع بن جراح**: د کوفې اوسېدونکی دی، د قیس غیلان څخه دی، ویل کیږي چې دده اصل د نیشاپور یوه کلي سره دی، ده د هشام بن عروه او اوزاعي او ثوري څخه اورېدل کړي دي او دده څخه عبدالله ابن مبارک، احمد بن حنبل او یحیی بن معین، علي بن

مديني او د دوی څخه ماسوا نور ډېر کسان روايت کوي، بغداد ته راغلی او هلته يې حديث بيان کړل، دی د باور وړ دی، دده په حديثو باور دی، دده قول ته رجوع کيږي، ده به د ابو حنيفة رحمة الله عليه پر قول فتوا ورکول، ده د امام ابو حنيفة رحمة الله عليه څخه ډېر شيان اورېدلي دي، په ۹۹ م هجري کال کي پيدا سو، او په ۱۹۷ هجري کال کي د مکې شريفي څخه په ستنېدو وفات سو او په فيد کي دفن سو.

۹۴۸. **وحشي بن حرب**: دغه وحشي دحرب زوی دی، ده د خپل پلار په واسطه د خپل نيکه څخه روايت کړی دی او دده څخه صدقه بن خالد او نور کسان روايت کړی دی، په اهل شام کي شمېرل کيږي.

۹۴۹. **ابووائل**: نوم يې شقيق دی د سلمه زوی دی، اسدي او کوفي دی، د جاهليت او اسلام دواړي زمانې يې تر لاسه کړي دي، د رسول الله ﷺ زمانه يې تر لاسه کړل مگر رسول الله ﷺ يې ونه ليدی او نه يې د رسول الله ﷺ حديث اورېدلي دي، دده خپل بيان دی چي د رسول الله ﷺ د بعثت څخه مخکي زما عمر لس کاله وو، ما به دخپل کور پسونه په ځنگل کي څرل، په صحابه کرامو کي د ډېرو حضراتو څخه چي په هغوی عمر بن خطاب او ابن مسعود رضي الله عنهما هم شامل دي، روايت کوي، د ابن مسعود رضي الله عنه په لويو شاگردانو کي خاص وو، ډېر حديث نقل کوي، نوموړی باوري دی، د حجاج بن يوسف په زمانه کي وفات سو.

۹۵۰. **وليد بن عقبه**: دغه وليد د عقبه بن ربيعه زوی دی، جاهلي (کافر) دی، ددی يادونه د بدر په غزا کي راغلې ده او په همدغه غزا کي ووژل سو.

## ۵ - صحابه کرام رضي الله عنهم:

۹۵۱. **هشام بن حکيم**: دغه هشام د حکيم بن حزم زوی دی، قرشي او اسدي دی، د مکې د فتح په وخت مسلمان سو، په صحابوو کي صاحب خير او فضل وو، دی په هغه صحابوو کي وو چي امر بالمعروف او نهي عن المنکر يې کول، دده څخه يوه ډله چي په هغوی کي عمر بن خطاب رضي الله عنه هم دی، روايت کوي، د خپل پلار د وفات څخه مخکي وفات سو، دده پلار په ۵۴م هجري کال کي وفات سو.

۹۵۲. **هشام بن عاص**: دغه هشام د عاص زوی د عمر بن عاص ورور او پخوانی مسلمان دی، په مکه کي په اسلام مشرف سوی دی، حبشې ته يې هجرت وکړ، کله چي د رسول الله ﷺ په هجرت خبر سو نو د خندق د غزا څخه وروسته چي په مدينه کي رامنځته سول، مکې

ته راغلی، غوره او صاحب فضل صحابي دی، دده څخه دده وراره عبدالله روایت کوي، په ۱۲م هجري کال په یرموک کي شهید سو .

۹۵۳. **هشام بن عامر**: دغه هشام د عامر زوی دی، انصاري دی، په بصره کي اوسېدی او هلته وفات سو، په اهل بصره کي شمېرل کېږي او دهغوی سره دده حدیثونه تر لاسه کېږي، دده څخه دده زوی سعد او حسن بصري او نور کسان روایت کوي .

۹۵۴. **هلال بن امیه** رضي الله عنه : دغه هلال د امیه زوی دی، واقفي او انصاري دی، د تبوک د غزا څخه د پاته کېدونکو درو صحابوو څخه دی هم دی، الله جل جلاله د دوی ټولو توبه قبوله کړل، د بدر په غزا کي شریک وو، دا هغه صحابي دی چي خپله ښځه یې د شریک سره متهم کړل، دده یادونه په لعان کي ده، دده څخه جابر او ابن عباس روایت کوي .

۹۵۵. **هزال بن ذباب**: دغه هزال د ذباب زوی دی، کنیت یې ابونعیم دی، اسلمي دی، دده څخه دده زوی نعیم او محمد بن منکدر روایت کوي، دده یادونه د ماعز په حدیث او د هغه د رجم په اړه راغلې ده، ځیني خلک وایي چي ابن منکدر خپله دده څخه روایت ونه کړ بلکه دده د زوی نعیم په واسطه یې دده څخه روایت کړی دی .

۹۵٦. **ابوهریره** رضي الله عنه : په نامه او نسب کي یې سخت اختلاف دی، زیاته مشهوره خبره داده چي د اسلام څخه مخکي دده نوم عبدالشمس یا عبد عمرو وو او د اسلام راوړلو څخه وروسته د عبدالرحمن نوم ور باندي کېښېښودل سو، د دوس قبیلې څخه دی. حاکم ابواحمد وایي: زموږ په نزد د ابوهریره رضي الله عنه د نامه په اړه تر ټولو زیاته صحیح خبره داده چي دده نوم عبدالرحمن بن صخر دی، دده کنیت دده پر نامه داسي غالب سو لکه بالکل چي دده نوم اېښودل سوی نه وي، د خیبر د غزا په کال یې اسلام راوړ او د رسول الله ﷺ سره ملګری سو، بیا د رسول الله ﷺ سره وو او د علم په شوق کي په پابندۍ سره حاضرېدی. پر یوازي نس مړولو به یې اکتفاء کول، رسول الله ﷺ چي به چیري تلی دی به هم ورسره تلی. ډېر قوي الحفظ وو، د نبي کریم ﷺ د ملګرتیا په برکت سره هغه شیان یې په ذهن کي مستحضر کېدل چي د نورو په ذهن کي نه راتلل، خپله دده بیان دی چي ما رسول الله ﷺ ته وویل: اې دالله رسوله! زه ستاسو څخه ډېري خبري اروم او هغه زما نه په یاد کېږي، رسول الله ﷺ وفرمایل: خپل څادر وغوړوه، ما خپل څادر وغوړوی، بیا رسول الله ﷺ ډېر حدیثونه وفرمایل او هغه ټول مي په یاد سول، امام بخاري رحمه الله وایي چي هغه د اته سوه څخه زیاتو کسانو روایت نقل کوي چي په هغو کي صحابه کرام لکه ابن

عمر، ابن عباس، جابر، انس رضي الله عنهم او تابعين ټول شامل دي، په مدينه منوره كي په ۵۷م هجري كال يا په ۵۸ م هجري كال د ۷۵ كالو په عمر وفات سو، دده سره به هر وخت كوچنى پيشي وه ځكه دده نوم ابو هريره رضي الله عنه سو.

۹۵۷. **ابو الهثيم**: دده نوم مالک بن تيهان دی، د ميم په حرف كي دده يادونه راغلې ده.

۹۵۸. **ابوهاشم**: دغه ابو هاشم شيبه بن عتبه بن ربيعه قرشي دی، ويل كيږي چي دده نوم هشام دی، او دا هم ويل كيږي چي دده نوم دده كنيت دی، او دغه زيات مشهور دی، د معاويه بن ابو سفيان ماما دی، د مكې د فتح په كال مسلمان سو او په شام كي او سېدی، د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت په زمانه كي وفات سو، نيک او صاحب فضل صحابي دی، دده څخه ابو هريره رضي الله عنه او نور كسان روايت كوي.

## تابعين رحمهم الله.

۹۵۹. **ابوهند**: نوم يې يسار دی، د ويني كښلو كسب يې كوی، ده د رسول الله ﷺ وينه كښلې وه، د بنو بياضه ازاد سوی غلام دی، د ابن عباس، ابوهريره او جابر رضي الله عنهم څخه روايت كوي.

۹۶۰. **هشام بن عروه**: دغه هشام د عروه بن زبير زوی دی، كنيت يې ابو منذر دی، قريشي او مدني دی، د مدينې مشهور تابعي او زيات روايت كونكی دی، په سترو علماؤ او جليل القدر تابعينو كي شمېرل كيږي، د عبدالله بن زبير او ابن عمر رضي الله عنهم څخه يې حديث اورېدلي دي. او دده څخه ډېرو خلكو روايت كړی دی چي په هغوی كي ثوري، مالک بن انس او ابن عيينه هم دي، خليفه منصور ته بغداد ته راغلی، په ۶۱م هجري كال پيدا سو، په ۱۴۶م هجري كال په بغداد كي وفات سو.

۹۶۱. **هشام بن زيد**: دغه هشام د زيد بن انس بن مالک زوی دی، انصاري دی، د خپل نيكه انس څخه روايت كوي، دده څخه يو ډله روايت كوي، په اهل بصره كي شمېرل كيږي

۹۶۲. **هشام بن حسان**: دغه هشام د حسان زوی دی، قردوسي دی، يعني ددغه قبيلې ازاد سوی غلام دی، د دوی سره هستوګن وو ځكه قردوسي ورته ويل كيږي، دا هغه كس دی چي ويلي يې وه: حجاج چي څوک د لاسو او پښو په تړلو سره وژلي دي هغوی شمېر كړئ. هغوی چي وشمېرل سول نو يو لک او شل زره كسان وه، د حسن، عطاء او عكرمه څخه يې حديث اورېدلي دي او دده څخه حماد بن زيد، فضل بن عياض او نور كسان

روایت کوي، په ۱۴۷ م هجري کال کې وفات سو، په قردوسي کې پر قاف باندي ضمه او پر دال مهمله باندي ضمه او سین مهمله دی.

۹۶۳. **هشام بن عمار**: دغه هشام د عمار زوی دی، کنیت یې ابوالولید دی، ثلمي او دمشقي دی، د تجوید ماهر، حافظ حدیث او د دمشق خطیب دی، ده د مالک، یحیی ابن همزه څخه او دده څخه بخاري، نسائي، ابوداؤد، ابن ماجه، محمد بن خزیم او باغندي روایت کړی دی، ۹۲ کاله ژوندی وو، په ۲۴۵م هجري کال کې وفات سو.

۹۶۴. **هشام بن زیاد**: دغه هشام د زیاد زوی دی، ابوالمقدام یې کنیت دی، د قرظي او حسن څخه روایت کوي او دده څخه شیبان بن فروغ او قواریري روایت کوي، محدثینو ده ته په روایت کې ضعیف ویلي دي.

۹۶۵. **هشیم بن بشیر**: دغه هشیم د بشیر زوی دی، سلمي دی، د مشهورو امامانو عمرو بن دینار، زهري، یونس بن عبید، او ایوب سختیاني څخه یې حدیث اورېدلي دي، او دده څخه مالک، ثوري، شعبه او ابن مبارک او د دوی څخه ماسوا نور ډېر خلک روایت کوي، په ۱۰۴ م هجري کال کې پیدا سو او په ۱۸۳م کال کې وفات سو.

۹۶۶. **هلال بن علي**: دغه هلال د علي بن اسامه زوی دی، خپل نیکه هلال بن ابي میمونه فهري ته منسوب دی، ده د حضرت انس او عطاء بن یسار څخه او دده څخه مالک بن انس او نورو کسانو روایت کړی دی.

۹۶۷. **هلال بن عامر**: دغه هلال د عامر زوی دی، مزني دی، په اهل کوفه کې شمېرل کیږي، دی د خپل پلار څخه روایت کوي او د رافع مزني څخه یې حدیث اورېدلي دي، دده څخه یعلي او نور کسان روایت کوي.

۹۶۸. **هلال بن یساف**: دغه هلال د یساف زوی دی، د اشجع ازاد سوی غلام دی، دده لیدنه د حضرت علي رضی الله عنه سره ثابت ده، د سلمه بن قیس څخه یې روایت کړی دی، د ابومسعود انصاري څخه یې د حدیثو اورېدل کړي دي، او دده څخه یوه ډله روایت کوي.

۹۶۹. **هلال بن عبدالله**: دغه هلال د عبدالله زوی دی، ابوهاشم یې کنیت دی، د بنوباهله څخه دی، ده د ابواسحاق څخه روایت کړی دی او عفان او مسلم دده څخه روایت کوي، بخاري وفرمایل: دده حدیث منکر دی.

۹۷۰. **همام بن حارث**: دغه همام د حارث زوی دی، نخعي او تابعي دی، د ابن مسعود، عائشې او نورو صحابه کرامو څخه یې حدیث اورېدلي دي، دده څخه ابراهیم

نخعي روايت كوي .

۹۷۱. **هود بن عبدالله**: دغه هود د عبدالله بن سعد زوی دی، عصري دی، د خپل نيكه مزيده او سعيد بن وهب څخه يې روايت كړی دی، دواړه صحابيان دي او دده څخه طالب بن حجر روايت كوي .

۹۷۲. **هبيره بن مريم**: دغه هبيره د مريم زوی دی، د علي او ابن مسعود رضي الله عنهما څخه روايت كوي او دده څخه ابواسحاق او ابو فاخته روايت كوي ، نوموړی باوري دی، امام نسائي وايي: دده په روايت كي قوت نسته، په ۶۶ م هجري كال كي وفات سو .

۹۷۳. **هزيل بن شرحبيل**: دغه هزيل د شرحبيل زوی دی، ازدي او كوفي دی، نوموړی ړوند وو ، د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه يې حديث اورېدلي دي او دده څخه يوه ډله روايت كوي.

۹۷۴. **ابوالهياج**: دغه ابوالهياج حيان دی، د حصين زوی دی، اسدي دی، دحضرت عمار بن ياسر رضي الله عنه كاتب وو، دده حديث صحيح دي ، ده د حضرت علي او عمار رضي الله عنهما څخه او دده څخه شعبي او ابووائل روايت كړی دی، په هياج كي ياء مشدده او جيم دی .

## صحابي ښځي

۹۷۵. **هندبنت عتبه**: دغه هند د عتبه بن ربيعه لور ده، د ابوسفيان ښځه ده او د معاويه رضي الله عنه مور ده، د مكې د فتح په كال د خپل خاوند د اسلام راوړلو څخه وروسته مسلمانه سول، رسول الله ﷺ د دوی دواړو نكاح باقي وساتل ، نوموړې ډېره فصيحه او عاقله وه، د رسول الله ﷺ په لاس مبارك يې بيعت وكړ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: د الله جل جلاله سره شريک مه نيسئ ، غلا مه كوئ، نو هندې وويل چي ابوسفيان په لاس نيولو سره مصرف كوي چي د هغه په وجه تنگي وي، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ته دومره اخله چي ستا او ستا د اولاد لپاره كافي وي، رسول الله ﷺ وفرمايل: او زنا مه كوئ، نو هندې وويل: ايا يوه شريفه ښځه زنا كولای سئ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: خپل اولاد مه وژنئ، نو هندې وويل: تاسو خو زموږ ټول اولاد ووژل ، موږ كوچني كوچني اولادونه لوی كړل او تاسو په بدر كي ووژل، د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت په زمانه كي وفات سول، په هغه ورځ حضرت ابو قحافه د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه پلار هم وفات سو ، دې د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روايت كړی دی .

۹۷۶. **اُم هاني**: نوم يې فاخته دی د ابو طالب لور او د حضرت علي رضي الله عنه خور ده، رسول الله ﷺ د نبوت څخه مخکي د نکاح پيغام ورکړی وو او هبيره بن ابو وهب هم پيغام ورکړی وو، مګر ابو طالب د هغې نکاح د ابو هبيره سره کړې وه، وروسته دا مسلمانه سول او د اسلام په وجه د هغې نکاح پاته نه سول، اوس په دوهم وار رسول الله ﷺ پيغام ورکړ نو هغې وويل: قسم په خدای! زه خو تاسو د مخکي څخه خوښوم، اوس د مسلمانېدو څخه وَروسته به تا ولي خوښ نه کړم، مګر زه د کوچنيانو موريم، نو رسول الله ﷺ سکوت وفرمايه، ددې څخه ډېرو کسانو روايت کړی دی چي په هغوی کي علي او ابن عباس رضي الله عنهما هم دي.

۹۷۷. **ام هشام**: دغه ام هشام د حارثه بن نعمان لور او صحابيه ده، ددې څخه يوې ډلي روايت کړی دی.

## ي - صحابه کرام رضي الله عنهم:

۹۷۸. **يزيد بن اسود**: دغه يزيد د اسود زوی دی او سوائي دی، دده څخه دده زوی جابر رضي الله عنه روايت کوي، دده شمېر په اهل طائفو کي کيږي، په سوائي کي سين مهمله مضموم، واو بېله تشديده او الف ممدوده دی.

۹۷۹. **يزيد بن عامر**: دغه يزيد د عامر زوی دی، سوائي او حجازي دی، د حنين په غزا کي د مشرکانو له خوا شريک وو، د هغه څخه وروسته مسلمان سو، دده څخه سائب بن يزيد او نور کسان روايت کوي.

۹۸۰. **يزيد بن شيبان**: دغه يزيد د شيبان زوی دی، ازدي او صحابي دی، دده څخه روايت هم نقل سوی دی، دده يادونه په وحدان کي کيږي، ده د ابن مربع څخه روايت کړی دی، او دده څخه عمرو بن عبد الله بن صفوان روايت کوي، دده حديث د حج په اړه دي.

۹۸۱. **يزيد بن نعامه**: دغه يزيد د نعامه زوی دی او ضبي دی، دده څخه سعيد بن سلمان روايت کړی دی، د شرک په حالت کي د حنين په غزا کي شريک سو، دهغه څخه وروسته مسلمان سو، د ترمذي ارشاد دی چي دده د رسول الله ﷺ څخه د حديثو اورېدل مشهور نه دي، په نعامه کي نون او عين مهمله دواړه مفتوح دي.

۹۸۲. **يحيى بن اسيد بن حضير**: دغه يحيى د اسيد حضير زوی دی، د انصارو څخه دی، د رسول الله ﷺ په زمانه کي پيدا سو، دده د پلار کنيت د ابو يحيى په نامه دی، دده يادونه په فضل القراءة والقاري کي راغلې ده، ابن عبد البر ويلي دي: دده عمر خو د حديث

د اوربدو ورووو مگر زه دده هیڅ روایت نه پېژنم.

۹۸۳. **یوسف بن عبدالله**: دغه یوسف د عبدالله بن سلام زوی دی، کنیت یې ابویعقوب دی، د حضرت یوسف بن یعقوب علیهما السلام اولاد د بني اسرائیلو څخه وو، د رسول الله ﷺ په ژوند کي پیدا سوی دی، د رسول الله ﷺ په خدمت کي راوستل سو ، رسول الله ﷺ په خپله مبارکه غېږ کي واخیست او دده نوم یې یوسف تجویز کړ او په سر کي یې ورته لاره وایستل او د ساتني دعاء یې ورته وکړل، ځیني خلګ وایي چي د رسول الله ﷺ لېدنه یې په برخه سول ، دده څخه روایت نسته ، په اهل مدینه کي شمېرل کېږي .

۹۸۴. **یعلي بن امیه**: دغه یعلي د امیه زوی دی، تمیمي او حنظلي دی، د مکې د فتح په کال مسلمان سو ، په اهل حجاز کي شمېرل کېږي ، دده څخه صفوان ، عطاء ، مجاهد او نور کسان روایت کوي، د حضرت علي بن ابي طالب رضی الله عنه سره د جمل په جګړه کي شریک وو او په هغه کي ووژل سو .

۹۸۵. **ابوالیسر**: دغه ابوالیسر (پر باء باندي فتحه او دوو ټکو والا یاء او سین مهمله باندي فتحه ده ) دی، نوم یې کعب دی او د عمرو زوی دی، دده یادونه د کاف په حرف کي راغلې ده .

## تابعین رحمة الله علیهم

۹۸٦. **یزید بن هارون** : دغه یزید د هارون زوی دی، اسلمي دی یعني د هغوی ازاد سوی غلام دی، د واسط اوسېدونکی دی، د یوې ډلي څخه روایت کوي او دده څخه احمد بن حنبل ، علي بن مدیني او نور کسان روایت کوي، په بغداد کي وارد سو او هلته یې حدیث بیان کړل، بیا د واسط څخه راغلی او هلته وفات سو ، په ۱۱۸ م هجري کال کي پیدا سو ، ابن مدیني وایي چي ما د ابن هارون څخه زیات قوي الحفظ هیڅوک لیدلی نه دی. د حدیثو ستر عالم او حافظ وو ، نوموړی باوري، زاهد او عابد وو ، په ۲۱۷ هجري کال کي وفات سو .

۹۸۷. **یزید بن زریع**: دغه یزید د زریع زوی دی، دده کنیت ابومعاویه دی، حافظ الحدیث دی، ده د ایوب او یونس څخه او دده څخه ابن مدیني او مسدد روایت کوي، دده یادونه په باب الشفقة والرحمة کي راغي، امام احمد وایي چي په بصره کي دیني او علمي خبري پر ده ختمي وې، د شوال په میاشت په ۱۸۳م هجري کال کي د ۸۱ کالو په عمر وفات سو.

۹۸۸. **یزید بن هرمز**: دغه یزید د هرمز زوی دی، همداني او مدیني دی، د بنو لیث ازاد سوی غلام دی، ده د ابوهریره رضی الله عنه څخه او دده څخه دده زوی عبدالله، عمرو بن دینار او زهري روایت کوي.

۹۸۹. **یزید بن ابي عبید**: دغه یزید د ابي عبید زوی دی، د سلمه بن اکوع ازاد سوی غلام دی، ده د سلمه څخه او دده څخه یحیی بن سعید او نور کسان روایت کوي.

۹۹۰. **یزید بن رومان**: دغه یزید د رومان زوی دی، دده کنیت ابوروح دی، په اهل مدینه کي شمېرل کیږي، د ابن زبیر او صالح بن خوات څخه یې حدیث اورېدلي دي او دده څخه امام زهري او نور کسان روایت کوي.

۹۹۱. **یزید بن اصم**: دغه یزید د اصم زوی دی، د ام المؤمنین بي بي میمونې رضی الله عنها خریی دی، د بي بي میمونې او ابوهریره رضی الله عنهما څخه روایت کوي.

۹۹۲. **یزید بن نعیم**: دغه یزید د نعیم بن هزال زوی دی، اسلمي دی، ده د خپل پلار او جابر رضی الله عنه څخه او دده څخه یوه ډله روایت کوي، په نعیم کي پر نون باندي فتحه ده او عین مهمله دی، په هزال کي هاء مفتوح او زاء مشدده ده.

۹۹۳. **یزید بن زیاد**: دغه یزید د زیاد زوی دی، د دمشق او سېدونکی دی، ده د زهري او سلیمان بن حبیب څخه او دده څخه وکیع او ابونعیم روایت کوي.

۹۹۴. **یعلي بن مملک**: دغه یعلي د مملک زوی دی، تابعي دی، ده د ام سلمه رضی الله عنها څخه او دده څخه ابن ابي ملیکه روایت کوي.

۹۹۵. **یعیش بن طخفه**: دغه یعیش د طخفه بن قیس زوی دی، غفاري دی، ده د خپل پلار څخه روایت کړی دی، دده پلار د اصحاب صفه څخه وو، او دده څخه ابوسلمه روایت کوي، په طخفه کي پر طاء باندي کسره او خاء معجمه ساکنه ده.

۹۹۶. **یعقوب بن عاصم**: دغه یعقوب د عاصم بن عروه بن مسعود زوی دی، ثقفي او حجازي دی، ده د ابن عمر رضی الله عنه څخه روایت کړی دی.

۹۹۷. **یحیی بن خلف**: دغه یحیی د خلف زوی دی، باهلي دی، معتمدو او نورو څخه ده او دده څخه مسلم، ابوداؤد، ترمذي او ابن ماجه روایت کړی دی، په ۲۴۲م هجري کال کي وفات سو، په باب اعداد آلة الجهاد کي دده یادونه ده.

۹۹۸. **یحیی بن سعید**: دغه یحیی د سعید زوی دی، انصاري او مدني دی، د انس بن مالک، سائب بن یزید او نورو ډېرو څخه یې حدیث اورېدلي دي، دده څخه هشام بن

عروه، مالک بن انس، شعبه، ثوري، ابن عيينه او ابن مبارک او نور کسان روايت کوي، په مدينة الرسول کي د بنو اميه په دور کي د جګړې د فيصلې کولو ذمه دار وو، خليفه منصور د عراق څخه راوبلی او په هاشميه کي يې قاضي وټاکی، په دغه ځای کي په ۱۴۳م هجري کال وفات سو، د حديث او فقهي عالم، پرهيزګار، زاهد، نيک او په فقهي بصيرت کي مشهور وو.

۹۹۹. **يحيی بن حصين**: دغه يحيی د حصين زوی دی، د خپلي انا ام حصين او طارق څخه روايت کوي، دده څخه ابو اسحاق او شعبه روايت کوي، باوري دی.

۱۰۰۰. **يحيی بن عبدالرحمن**: دغه يحيی د عبدالرحمن بن حاطب بن ابي بلتعه زوی دی، مدني دی، ده د صحابه کرامو د يوې ډلي څخه روايت کړی دی.

۱۰۰۱. **يحيی بن عبدالله**: دغه يحيی د عبدالله بن بحير زوی دی. صنعاني دی، د هغو خلګو څخه يې روايت کړی دی چي د هغوی څخه فرسوده بن مسک اورېدل کړي دي، دده څخه معمر روايت کړی دی، په بحير کي باء مفتوح او حاء مهمله مکسور او راء مهمله ده.

۱۰۰۲. **يحيی بن ابي کثير**: دغه يحيی د ابو کثير زوی دی، دده کنيت ابونصر دی، يمامي او د بنوطی ازاد سوی غلام دی، په اصل کي بصري دی، بيا يمامه ته منتقل سو، ده د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه ليدنه کړې ده او د عبدالله بن ابي قتاده رضي الله عنه او نورو څخه يې حديث اورېدلي دي، دده څخه عکرمه، اوزاعي او نور کسان روايت کوي.

۱۰۰۳. **يونس بن يزيد**: دغه يونس د يزيد زوی دی، ايلي دی، ده د قاسم عکرمه او امام زهري څخه او دده څخه ابن مبارک او ابن وهب روايت کوي، باوري او امام دی، په ۱۵۹م هجري کال کي وفات سو.

۱۰۰۴. **يونس بن عبيد**: دغه يونس د عبيد زوی دی، د بصرې او سېدونکی دی، د حسن او ابن سيرين څخه يې حديث اورېدلي دي، دده څخه ثوري او شعبه روايت کوي، په ۱۳۹م هجري کال کي وفات سو.

## صحابي ښځي

۱۰۰۵. **يسيره**: د ياسر انصاري مور ده، مهاجره ده، ددې څخه ددې لمسۍ حميصه بنت ياسره روايت کوي، په يسره کي پر ياء باندي ضمه، پر سين باندي فتحه، ياء ساکنه او راء ده.

# د اصحاب اصول امامانو په بیان کې

۱۰۰۶. **مالک بن انس** رحمه الله : دغه امام مالک رحمه الله دی، د انس بن مالک بن ابي عامر زوی او اصبحي دی، دده کنیت ابوعبدالله دی، موږ دده په یادونه ځکه پیل وکړ چې دی د خپل واقفیت، مرتبې او زمانې په لحاظ مقدم دی، دی د علماؤ شیخ او د امامانو استاذ دی، حال دا چې موږ په مقدمة الکتاب کې د بخاري او مسلم یادونه تر ده مخکې کړې ده، ددې وجه هغه شرط دی چې د هغه رعایت دوی دواړو په خپل کتاب کې اینبی دی، موږ دلته هغوی نه ذکر کوو، ځکه چې تر دوی دواړو د مقدم کېدو زیات لائق دی او د هغه دواړو کتابونه بېله شکه دده د کتاب څخه د تقدیم حق لري، په ۹۵م هجري کال کې پیدا سو او په مدینه منوره کې په ۱۷۹م هجري کال وفات سو، هغه وخت دده عمر ۸۴ کاله وو، واقدي وایي چې عمر یې ۹۰ کاله وو، نوموړی نه یوازې د حجاز امام وو بلکه په حدیث او فقه کې د ټولو انسانانو مقتداء وو، د نوموړي د فخر دپاره دا کافي ده چې امام شافعي رحمه الله یې په شاګردانو کې دی، د زهري، یحیی بن سعید، نافع، محمد بن المنکدر، هشام بن عروه زید بن اسلم ربیعه بن ابي عبدالرحمن او نورو ډېرو حضراتو څخه یې د حدیث علم تر لاسه کړ، او دده څخه دومره خلکو د حدیثو روایت کړی دی چې دهغوی شمېر نه سي کیدای. د دوی شاګردان د پوره پوره هیوادو امامان سول، په هغوی کې امام شافعي، محمد بن ابراهیم بن دینار، ابوهاشم، عبدالعزیز بن ابي حازم او داسي نور شامل دي، چې په شاګردانو کې د علم په اعتبار د دوی مثال دی، د دوی څخه ماسوا معن بن عیسی، یحیی بن یحیی، عبدالله بن مسلمه قعنبي، عبدالله بن وهب او داسي نور و خلګو شمېر نسته. دوی د بخاري، مسلم، ابوداؤد: ترمذي، احمد بن حنبل او یحیی ابن معین په ډول د امامانو او محدثینو استاذان دي، بکر بن عبدالله صنعاني وایي: موږ د مالک بن انس په خدمت کې حاضر سو، هغه موږ ته د ربیعه بن ابي عبدالرحمن څخه حدیثونه واورول او اورېدل مو غوښتل، نو یوه ورځ یې وفرمایل: تاسو په ربیعه څه کوئ، هغه هلته په محراب کې بېده دی، موږ ورغلو، ربیعه مو وېښ کړ او ورته وه مو ویل: تاسو ربیعه یاست، هغه وویل: هو، موږ ورته وویل: هغه ربیعه چې مالک بن انیس رضي الله عنه ور څخه روایت کوي، هغه وویل: هو، موږ ورته وویل: څه خبره ده چې امام مالک ستاسو څخه دومره مستفیض سو، او تاسو د خپل علم څخه دغه درجې (اجتهاد) ته ورسېدلاست، هغه جواب راکړ چې تاسو

ته معلومه نه ده چي دولت يعني د لطف رباني يو مثقال د علم د يو پنډ څخه غوره دی، عبدالرحمن بن مهدي وايي چي سفيان په ثواب حديث كي امام دی مگر په سنت كي امام نه دی، او اوزاعي په سنت كي امام دی، نو په حديث كي امام نه دی، او مام مالک په دواړو كي امام دی، دغه امام مالک رحمة الله عليه د علم او دين په تعظيم كي ډېر زيات وو چي كله به يې د حديثو بيانولو اراده وكړل نو اودس به يې وكړ، ډېره به يې ژمونځ كړل، خوشبويي به يې ولگول او په ډېر وقار سره به كښېنست، بيا به يې حديث بيانول، په دې اړه هغه ته وويل سول نو هغه وويل: زما زړه غواړي چي د حديث رسول الله ﷺ عظمت قائم كړم، يو وار ابو حازم حديث بيانوی، امام مالک پر تېر سو او پر مخ ولاړی، نه كښېنستی، پوښتنه وسول نو وه يې فرمايل چي د ناستي ځای نه وو او د حديث رسول په ولاړه تر لاسه كول ما ته ښه معلوم نه سول، ځكه زه ولاړم، يحيى بن سعيد وايي: د هيچا حديث د امام مالک د حديث څخه زيات صحيح نه دي، امام شافعي رحمة الله عليه به ويل: كله چي به يو ثوک اهل باطن ورتلی نو هغه ته به يې ويل: ته وگوره زما د دين شاهدي زما سره موجود ده او ته خو شكي يې، ولاړ سه او د ځان په ډول شكي ته ورسه او د هغه سره مناظره وكړه، او دا يې هم وفرمايل چي كله يو روايت د امام څخه حاصل سي نو هغه په ټينگه ونيسه، د امام مالک رحمة الله عليه وينا ده چي كله د يو انسان په نفس كي خير موجود نه وي نو خلگو ته هغه د هغه څخه خير نه تر لاسه كيږي، دده وينا ده چي علم د كثرت روايت نوم نه دی بلكه هغه يو نور دی چي الله جل جلاله يې په زړه كي اېږدي، ابو عبدالله وايي: ما په خوب كي ولېدل چي رسول الله ﷺ په مسجد كي ناست دی، خلگ شاوخوا ناست دي، امام مالک رحمة الله عليه د رسول الله ﷺ مخته ولاړ دی، د رسول الله ﷺ مخته مشک پراته دي، رسول الله ﷺ د هغه څخه په موټ ډكولو سره امام مالک رحمة الله عليه ته وركوي او امام مالک رحمة الله عليه يې خلگو ته وركوي، بطرف ويلي دي: ما د دغه تعبير علم او اتباع سنت وگڼی، امام شافعي رحمة الله عليه وايي: ما ته زما عمه وفرمايل، هغه وخت چي موږ په مكه كي وو، ما نن شپه يو عجيبه شی وليدی، ما وويل: څه دي ولېدل؟ هغې وويل: يو سړی وايي نن شپه په مځكه كي تر ټولو لوی عالم وفات سو، امام شافعي رحمة الله عليه وايي: موږ د هغې حساب ولگوی نو معلومه سول چي دا هغه وخت وو كله چي امام مالک رحمة الله عليه وفات سو، د امام مالک رحمة الله عليه څخه روايت دی چي زه خليفه هارون رشيد ته ورغلم، نو هغه ما ته وويل: ښه به وي كه تاسو دلته راسئ او زموږ ماشومان ستاسو څخه ستاسو كتاب مؤطا واوري، ما جواب وركړ چي الله

ﷻ د امير المؤمنين عزت برقرار ولري، دغه علم ستاسو څخه وتلی دی، که تاسو يې عزت وساتئ نو باعزته به ياست، او که تاسو يې ذليل کړئ نو ذليل به سئ، علم خو داسي شی دی چي هغه ته رسېدل پکار دي نه چي هغه ځان ته راغوښتل، هارون وويل: تاسو رښتيا وويل او کوچنيانو ته يې وويل چي په مسجد کي د خلګو سره حديث اورئ، د رشېد څخه روايت دی چي هغه د امام مالک رحمة الله عليه څخه پوښتنه وکړل چي ستاسو سرای نسته؟ هغه جواب ورکړ: نه، رشېد هغه ته درې زره ديناره ورکړل او ورته يې وويل چي په دې سرای رانيسه، امام صاحب دينارونه واخيستل او خرڅ يې نه کړل، رشيد چي د روانېدو اراده وکړل نو امام صاحب ته يې وويل: تاسو هم زموږ سره ولاړ سئ ځکه چي ما پخه اراده کړې ده چي خلګ پر مؤطا باندي داسي پابند کړم لکه څرنګه چي عثمان رضي الله عنه پر يو قرآن باندي خلګ پابند کړي وه، امام مالک رحمة الله عليه جواب ورکړ: خلګ پر مؤطا باندي مجبورول داسي کار دی چي تاسو ته پر دې قدرت نسته، ځکه چي د رسول الله ﷺ اصحاب د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته په ښارو کي منتشر سوي دي او هغوی حديثونه بيان کړي دي ځکه د هر ښار والا سره د حديثو علم دی او د رسول الله ﷺ ارشاد دی چي زما د امت اختلاف رحمت دی او ستاسو سره تلل خو داسي معامله ده چي ما ته د دې قدرت نسته، د رسول الله ﷺ ارشاد دی چي مدينه د هغه لپاره غوره ده ، کاش چي هغوی ته د دې علم وای، او رسول الله ﷺ فرمايلي دي چي مدينه کوټ وباسي او ستاسو راکړي دينارونه دادي، موجود دي ، که ستاسو زړه غواړي نو بېرته يې واخلئ يا يې پرېږدئ، مقصد دا وو چي ته ما د مدينې پرېښودو لپاره ځکه مجبوره کوې چي تا زما سره احسان کړی دی، زه د رسول الله ﷺ د ښار په مقابله کي دينارو ته ترجيح نه سم ورکولای، امام شافعي رحمة الله عليه وايي: ما د امام مالک رحمة الله عليه پر دروازه د خراسان د اسونو يوه ډله او د مصر د غاترو يوه ګله ولېدل، ما تر دې غوره هيڅکله نه وه ليدلي، ما امام مالک رحمة الله عليه ته وويل: دا څرنګه ښه دي، نو هغه وويل: اې عبدالله! دا زما له خوا ستا دپاره تحفه ده، ما وويل: تاسو هم د ځان دپاره يو څو سپرلئ واخلئ ، هغه وويل: ما ته د الله ﷻ څخه شرم راځي چي په دغه مځکه کي چي رسول الله ﷺ موجود دی د يو حيوان په سم سره وموږل سي ، همدارنګه نامعلوم فضائل د دغه لوړ غره او بحر امواج لپاره مذکور دي .

۱۰۰۷. **نعمان بن ثابت** رحمة الله عليه : دغه امام اعظم ابوحنيفة رحمة الله عليه دی، نوم يې نعمان وو، د ثابت بن زوطاء زوی او د کوفې اوسېدونکی دی، د حمزه زيات د کورنۍ څخه دی،

نوموړی بزاز وو او د ریشمو د ټوکرانو تجارت یې کوی، د نوموړي نیکه زوطا د کابل وو او د بني تیم الله بن ثعلبه غلام وو، وروسته ازاد کړل سو، دده پلار ثابت مسلمان سو، ځیني خلگ وایي چي هغه هم ازاد وو او هیڅکله غلام سوی نه وو، ثابت خپله په کوچنیوالي د حضرت علي بن ابي طالب رضی الله عنه په خدمت کي حاضر سو نو حضرت علي رضی الله عنه د هغه او د هغه د اولاد په حق کي د برکت دعاء وکړل، په ۸۰ م هجري کال کي پیدا سو او په ۱۵۰ م هجري کال په بغداد کي وفات سو، د خیرزانَ په هدېره کي دفن سو، په بغداد کي دده قبر مشهور دی، دده په زمانه کي څلور صحابه کرام ژوندي وه: په بصره کي انس بن مالک رضی الله عنه، په کوفه کي عبدالله بن ابي اوفی رضی الله عنه، په مدینه کي سهل بن سعد ساعدي رضی الله عنه او په مکه کي ابوالطفل عامر بن واصله رضی الله عنه، د امام اعظم رحمة الله علیه لیدنه د هیچا سره ونه سول او نه یې د دوی څخه څه تر لاسه کړل ، فقه یې د حماد بن ابي سلیمان څخه تر لاسه کړل او دحدیثو اورېدل یې د عطاء بن ابي رباح ، ابواسحاق سبیعي ، محمد بن منکدر، نافع ، هشام بن عروه ، سماک بن حرب او نورو څخه کړي دي، دده څخه عبدالله بن مبارک، وکیع بن جراع، یزید بن هارون، قاضي محمدیوسف، محمد بن حسن شیباني او نورو روایت کړی دی، خلیفه منصور د کوفې څخه بغداد ته منتقل کړ او تر وفات پوري هلته وو، د مروان بن محمد اموي په زمانه کي ابن هبیره د قضاء د ذمه دارۍ پر قبلولو باندي مجبور کول غوښتل مگر ابوحنیفة رحمة الله علیه په سختي سره انکار وکړ، هغه تر لسو ورځو پوري هره ورځ لس دُرې وهی مگر وه یې لېدل چي په هیڅ ډول نه راضي کیږي نو هغه یې پرېښود، کله چي خلیفه منصور، ابوحنیفة رحمة الله علیه عراق ته وبلی نو د قضاء محکمه یې ورکول وغوښتل مگر هغه انکار وکړ، خلیفه قسم وکړ چي تا ته به داسي کول وي، ابوحنیفة رحمة الله علیه هم قسم وکړ چي داسي به هیڅکله نه کوم، د دواړو خواوو څخه په وار وار قسمونه وکړل سول، په پای کي یې امام صاحب بندي کړ او په هم هغه بند کي وفات سو، حکیم بن هشام ویلي دي: په شام کي ما ته د ابوحنیفة رحمة الله علیه په اړه ویل سول چي ابوحنیفة رحمة الله علیه په امانتدارۍ کي تر ټولو لوی سړی دی، پاچا وغوښتل چي امام صاحب د خزانو د کیلیانو ذمه دار سي کنه نو د دُرو سزا به ورکړل سي مگر هغه د دنیا عذاب د آخرت د عذاب په مقابله کي وزغمی ، روایت دی چي ابن مبارک ته د ابوحنیفة رحمة الله علیه په اړه یادونه وسول نو هغه وویل: تاسو د هغه چا یادونه کوئ چي د هغه په وړاندي ټوله دنیا اېښودل سوې ده او هغه د دنیا په پرېښودو سره وتښتېدی، ابوحنیفة رحمة الله علیه د درمیانه قد خاوند وو ، غنم

رنګي پر غالبه وه، مخ يې ښکلی، په خبرو کي تر ټولو ښه، ډېر سخي، د خپلو قريبانو او ملګرو ډېر خبري اخيستونکی وو، امام شافعي رحمة الله عليه وايي: امام مالک ته وويل سول چي تاسو ابو حنيفة رحمة الله عليه ليدلی دی؟ هغه وويل: هو، ما داسي سړی ليدلی دی که هغه ستاسو سره ددغه ستني په اړه خبري وکړي چي دا د سرو زرو ده نو يقينا په يو ټينګ دليل سره به يې درته وښيي، امام شافعي رحمة الله عليه وايي: کوم چا ته چي په فقه کي تبحر تر لاسه وي نو هغه د ابو حنيفة رحمة الله عليه د مرستي څخه ماسوا په خپل مقصد کي کامياب کيدای نه سي، امام ابو حامد غزالي رحمة الله عليه وايي: ويل سوي دي چي ابو حنيفة رحمة الله عليه به نيمه شپه تهجد کول، يوه ورځ يو سړی پر هغه لاره تېرېدی نو ده ته په اشاره کولو سره يې بل سړي ته وويل: دا هغه سړی دی چي د الله جل جلاله په عبادت کي ټوله شپه وېښ وي، نو د هغه ورځي څخه به ټوله شپه وېښ وو او وه يې فرمايل: ما ته ددې خبري څخه شرم محسوس کيږي چي خلګ زما د عبادت په اړه هغه خبره کوي چي په ما کي نسته، شريک نخعي وايي: ابو حنيفة رحمة الله عليه ډېر ارام او همېشه به په فکر کي ډوب وو او ډېري کمي خبري يې کولې، دا د علم باطني او ديني معاملاتو کي د بوختيا واضحه نښه ده، ځکه چي کوم چا ته دوه نعمتونه، پټه خوله کېدل او د دنيا څخه بې رغبتي تر لاسه سي نو هغه ته پوره علم تر لاسه کيږي. که چيري موږ د نوموړي د مناقبو او فضائلو تشريح کول پيل کړو نو خبره به اوږده سي او مقصد به د لاسه ورکړل سي، خلاصه دا چي نوموړی عالم، متقي، زاهد، عابد او په علوم شريعت کي امام وو، په دغه کتاب کي موږ دده يادونه کړې ده حال دا چي د ده په واسطه سره يو روايت په دغه کتاب مشکوة کي نسته ځکه مقصد يوازي د نوموړي شان او د کثرت علوم په سبب د نوموړي په نامه او يادونه سره تبرک تر لاسه کول دي.

۱۰۰۸. **محمدبن ادريس شافعي** رحمة الله عليه: دغه امام ابو عبد الله محمد بن ادريس بن عباس بن عثمان بن شافع بن سائب بن عبيد بن عبد يزيد هاشم بن عبد المطلب بن مناف دی، قرشي او مطلبي دی، شافع د ځوانۍ په حالت کي د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره ليدنه کړې وه، دده پلار سائب د بدر په غزا کي مسلمان سو، دی د بني هاشم بېرغ پورته کوونکی وو، بندي سو نو په فديه ورکولو سره خلاص سو، او ددې وروسته په اسلام مشرف سو، امام شافعي رحمة الله عليه په غره نامي ځای کي په ۱۵۰ م هجري کال پيدا سو، د دوو کالو په عمر مکې ته راوستل سو، ځيني خلګ وايي چي زېږېدنه يې په عسقلان کي سوې ده، او ځيني يمن ښيي. دا هغه کال دی چي په هغه کي ابو حنيفه رحمة الله عليه پيدا سو، ځيني خلګ دا هم وايي چي

په هغه ورځ پيدا سو په کومه ورځ چي امام ابو حنيفة رحمة الله عليه وفات سو، امام بيهقي رحمة الله عليه وايي: د زېږېدني د ورځي دغه خصوصيت يوازي په ځينو رواياتو کي مذکور دی، کنه نو په اهل تاريخ کي مشهوره داده چي په دغه کال پيدا سو، محمد بن حکيم وايي: کله چي امام شافعي رحمة الله عليه د مور په نس کي وديعت کړل سو نو د هغه مور په خوب کي ولېدل چي مشتري ستوری د هغې د نس څخه راووتی او هغه ټوټې ټوټې سو، بيا د هغه برخي په هر ښار کي ولوېدې، يو معبر تعبير ورکړ چي ستا څخه به يو ستر عالم پيدا کيږي، امام شافعي رحمة الله عليه وايي: ما په خوب کي د رسول الله ﷺ لېدنه وکړل نو ماته يې وفرمايل: اې هلکه! ته څوک يې؟ ما وويل: ستاسو د کورنۍ څخه يم، نو ما ته يې وفرمايل: رانژدې سه، زه ور نژدې سوم نو رسول الله ﷺ د خپلي خولې مبارکي ناړي رااخيستلې، ما خپله خوله خلاصه کړل او رسول الله ﷺ د خپلي خولې مبارکي لعاب زما په شونډو، ژبه او خوله باندي ومونښلې او وه يې فرمايل: ولاړ سه، الله دي ستا په ذات کي برکت درکړي، امام شافعي رحمة الله عليه وايي: ما په کوچنيوالي کي رسول الله ﷺ (په خوب کي) په مکه کي د يو ډېر وجيه انسان په شکل کي خلګو ته په مسجد حرام کي پر لمونځ ورکولو باندي ولېدی، کله چي رسول الله ﷺ د لمانځه څخه فارغ سو نو خلګو ته په مخ کولو سره کښېنستی او هغوی ته يې تعليم ورکوی، په نژدې کېدو سره ما وويل: تاسو ما ته هم لمونځ راکړئ، نو رسول الله ﷺ د خپل لستوڼي څخه يو ترازو را وايست او ما ته يې راکړ، بيا يې وفرمايل: دا ستا دی، امام شافعي رحمة الله عليه وايي: هلته يو تعبير کوونکی وو، ما خپل خوب هغه ته ووايه نو هغه وويل: ته به د علم امام يې او ته به پر سنتو باندي قائم يې، ځکه چي د مسجد حرام امام د ټولو امامانو څخه افضل وي، او د ترازو تعبير دادی چي ته به د شيانو حقيقت ته ورسېږې، خلګ وايي چي امام شافعي رحمة الله عليه په پيل کي مسکين وو او کله چي هغه ښوونکي ته وسپارل سو نو د هغه د قريبانو سره معلم ته د تنخواه ورکولو لپاره هيڅ نه وه، معلم به د هغه په تعليم کي بې فکري کول، مګر کله چي به معلم يو کوچني ته تعليم ورکوی نو امام شافعي رحمة الله عليه به د هغه د ژبي څخه په وتلو سره يادول، کله چي به معلم د خپل ځای څخه ولاړ سو نو امام شافعي رحمة الله عليه به کوچنيانو ته هغه شيان ور يادول، معلم فکر وکړ نو هغه ته محسوسه سول چي امام شافعي رحمة الله عليه کوچنيانو ته د تعليم ورکولو په اړه مدرس ته د هغه څخه زياته ګټه رسوي لکه څرنګه چي د تنخواه په صورت کي هغه د
[illegible] دي، اوس خو معلم د تنخواه غوښتنه پرېښودل ،

همدغه د تعلیم لړۍ جاري وه او د نهو کالو په عمر کي يې قرآن کریم زده کړ، امام شافعي رحمة الله علیه فرمايي: د ختم القرآن څخه وروسته زه په مسجد کي داخل سوم او د علماؤ په مجلس کي به کښېنستم، حديثونه او مسائل به مي يادول، زموږ سرای په شعب خیف مکه کي وو، زه دومره غریب وم چي کاغذ مي نه سو رانیولای نو ما به هډوکي راواخیستل او پر هغه به مي لیکل، په پیل کي هغه د فقهي تعلیم د مسلم بن خالد څخه تر لاسه کړ، په دغه دوران کي هغه ته معلومه سول چي مالک ابن انس هغه وخت د مسلمانانو امام دی، امام شافعي رحمة الله علیه وايي: زما په زړه کي دا خبره کښېنستل چي زه باید هغه ته ورسم، نو ما د یو سړي څخه مؤطا عاريتا واخیستل، هغه مي زباني یاد کړل، بیا د مکې والي ته ورغلم او د هغه څخه مي یو خط د مدینې د والي په نامه او بل د امام مالک په نامه واخیست، مدینې ته راغلم او هغه خط مي ورکړ، د مدینې حاکم وويل: زویه! که ته ما د مدینې څخه تر مکې پوري پر پښو تللو باندي مجبور کړې نو دا زما دپاره په نسبت د دغه کار ډېره اسانه خبره ده چي زه د امام مالک دروازې ته ولاړ سم، ما وويل: که د امیر رایه وي نو هغه راوغواړئ، امیر وويل: دا خو ډېره مشکله ده، کاش چي ته د هغه دروازې ته ورسې او د هغه سره پاته سې، هغه وخت ممکنه ده چي زموږ دپاره هم د هغه دروازه خلاصه سي، بیا هغه پر خپلي سپرلۍ سپور سو او موږ هم د هغه سره وو، یو سړی په مخکي کېدو سره دروازه وټکول، نو یوه توره مینزه راووتل، امېر هغې ته وويل: خپل بادار ته ووایه چي زه د دروازې سره یم، هغه دننه ولاړل او ډېر وخت وروسته راغلل، هغې وويل: بادار وايي که څه مسئله وي نو هغه ولیکه او را وه یې لېږه، جواب به درکړل سي او که یوه اهمه معامله وي نو تا ته معلومه ده چي پنجشنبه د دغه ډول ضرورت لپاره ټاکل سوې ده، ځکه نو ولاړ سئ، هغه وويل: زما سره په یوه معامله کي د مکې د والي خط دی، هغه دننه ورغلل، او لاس کي یې چوکۍ را اخیستې راووتل او هغه یې کښېښودل، ما ولیدل چي امام مالک رحمة الله علیه تشریف راوړئ، ډېر پرهیبت وو، د طیلسان څادر یې پر ځان اچولی وو، والي هغه خط د امام په خدمت کي پیش کړ، کله چي امام مالک رحمة الله علیه دغه جملې ته ورسېدی چي محمد بن ادریس یو شریف سړی دی او د ده حال داسي دی نو هغه خط وغورځوی او وه یې فرمایل: سبحان الله د رسول الله ﷺ علم دغه درجې ته راغلی چي خلک یې د خطو په سفارش تر لاسه کوي، امام شافعي رحمة الله علیه وايي: زه هغه ته ور مخکي سوم او عرض مي وکړ چي الله جل جلاله دي تاسو ته نیکي درکړي زه د عبدالمطلب اولاد یم، زما حالت او قصه داسي او

داسي ده هغه چي زما قصه واورېدل نو تر څه وخته يې ما ته کتل ، امام مالك رحمة الله عليه صاحب فراست بزرگ وو ، بيا يې ما ته وفرمايل: ستا نوم څه دی، ما وويل: محمد، ما ته يې وويل: اې محمد ! د الله جل جلاله څخه بېره کوه، د گناهو څخه پرهېز کوه ځکه دېر ژر به ستا شان ظاهر سي، ما وويل: ډېره ښه، بيا يې وفرمايل: الله جل جلاله ستا پر زړه يو وديعت فرمايلی دی هغه د معصيت سره مه يو ځای کوه، بيا يې وويل: کله چي ته راځې نو د ځان سره يو داسي سړی راوله چي مؤطا ووايي، ما وويل: زه به هغه زباني وايم ، بيا د هغه په خدمت کي دوهمه ورځ حاضر سوم او ما قرائت پيل کړ، کله چي به ما د بس کولو اراده وکړل نو هغه به زما قرائت خوښوی او ما ته به يې فرمايل: اې زويه! نور ووايه، تر دې چي په څو ورځو کي ما د مؤطا قرائت مکمل کړ ، ددې څخه وروسته د امام مالك رحمة الله عليه تر وفات پوري زه په مدينه کي مقيم وم، امام شافعي رحمة الله عليه چي به يوه رايه د امام مالك رحمة الله عليه څخه نقل کول نو فرمايل به يې : دا زموږ د استاد امام مالك رحمة الله عليه رايه ده، عبدالله بن امام احمد بن حنبل وايي: ما خپل پلار ته وويل: دغه شافعي کوم سړی دی ځکه زه تاسو اکثر د هغه په حق کي په دعاء کولو وينم، نو هغه وويل: زويه! امام شافعي رحمة الله عليه د ورځي د لمر په ډول وو او د خلکو په حق کي هغه د آمن او عافيت په ډول وو ، چي ددغه دواړو قائم مقام يا بدل څوک کيدای سي، ددغه عبدالله ورور صالح بن احمد وويل چي امام شافعي رحمة الله عليه يوه ورځ زما د پلار پوښتني ته راغلی، زما پلار هغه وخت ناروغ وو ، صالح وايي : زما پلار را پورته سو د هغه د سترگو په مچولو سره امام شافعي يې پر خپل ځای کښېنوی او خپله ورته مخته کښېنستی، بيا تر يو وخته يې پوښتني کولې ، کله چي امام شافعي رحمة الله عليه ولاړ سو او سپور سو نو زما پلار د هغه رکاب ونيوی او د هغه سره پر پښو ولاړی ، يحيی بن معين چي ددې څخه خبر سو نو هغه وويل: سبحان الله! تاسو د ناروغۍ په حالت کي د هغه سره ولي ولاړ ياست، نو والد صاحب جواب ورکړ، اې ابوزکريا ! که تا د بلي خوا څخه د هغه رکاب نيولی وای نو تا ته به هم گټې تر لاسه سوي وای، کوم چا ته چي د فقه خواهش وي نو هغه به د هغه د غاتري لکۍ خامخا بويوي، امام احمد بن حنبل وايي: زه يو داسي سړی نه پېژنم چي د هغه نسبت د اسلام سره دومره زيات وي څومره چي د امام شافعي رحمة الله عليه وو ، زه د خپلو ټولو لمونځو وروسته د هغه په حق کي د خير دعاء کوم چي اې الله! زما او زما د مور او پلار او امام محمد بن ادريس شافعي مغفرت په برخه کړې، حسين بن محمد زاعفراني وايي: ما

چي کوم کتاب د امام شافعي رحمۃ اللہ علیہ په مخکي وايه په هغه کي امام احمد بن حنبل خامخا موجود وو، د امام شافعي رحمۃ اللہ علیہ قول دی چا چي د نفس په عزت سره علم تر لاسه کړ هغه هيڅکله کامياب نه سو مګر چا چي په مفلسۍ او ذلت د نفس او د علماؤ په خدمت سره علم حاصل کړ نو هغه کامياب سو، د دوی وينا ده چي ما هيڅکله د چا سره مناظره ونه کړل نو هغه وخت دا خواهش وسو چي خدای جل جلاله دي هغه ته توفيق ورکړي چي هغه سم سي او د هغه مرسته وکړي او هغه ته د الله جل جلاله رعايت او ساتنه وي او ما هيڅکله د چا سره مناظره ونه کړل مګر دا چي ددغه امر خواهش مي نه وي کړی چي الله جل جلاله حق زما د ژبي څخه واضح کړي يا د هغه د ژبي څخه، يونس بن عبدالاعلی وايي: ما د امام شافعي رحمۃ اللہ علیہ څخه دا واورېدل چي د يو سړي د شرک څخه ماسوا په لويو ګناهو کي اخته کېدل زما په نزد تر دې غوره دي چي هغه د علم کلام په مسائلو کي غور وکړي او ما ته خو قسم په خدای! د اهل کلامو د داسي خبرو خبر سوی دی چي د هغه زه ګمان هم نه سم کولای او وه يې فرمايل: کوم څوک چي کلام خپل لباس جوړ کړي نو هغه هيڅکله کامياب نه سو، ابو محمد چي د امام شافعي رحمۃ اللہ علیہ خريی دی د خپلي مور څخه روايت کوي چي ډېر واره مور په يوه شپه کي دېرش واره يا تر دې کم و زيات راتلو نو څراغ د امام شافعي رحمۃ اللہ علیہ مخته وو، شافعي رحمۃ اللہ علیہ به په پروت فکر کوی بيا يې مينزي ته آواز کوی چي څراغ راوړه، هغې به څراغ راوړ، څه چي يې ليکل غوښتل هغه به يې وليکل بيا به يې وفرمايل: دا يو سه، د ابو محمد څخه پوښتنه وسول چي د څراغ بېرته ورکولو څخه څه مقصد وو؟ نو هغه وويل: په تياره کي زړه زيات روښانه وي، امام شافعي رحمۃ اللہ علیہ وفرمايل: په خبرو کي د قوت پيدا کولو دپاره سکوت مرسته کوونکی وي، او د استنباط قوت تر لاسه کولو دپاره فکر په کار راولئ، او دا يې هم وفرمايل چي کوم څوک خپل ورور ته په پټه نصيحت وکړي نو هغه ورسره د اخلاص معامله وکړل او هغه يې سم کړ، مګر کوم څوک چي په ښکاره نصيحت کوي هغه يې بدنام کړ او د هغه سره يې خيانت وکړ، حميدي ويلي دي: امام شافعي رحمۃ اللہ علیہ په يو دستمال کي د لسو زرو روپو سره مکې ته راغلی، خپله خيمه يې د مکې څخه دباندي ولګول، خلک به ورته راتلل، زه هلته موجود وم، په لږ وخت کي ټولي روپۍ مصرف سوې، او س امام شافعي رحمۃ اللہ علیہ په مکه کي داخل سو، مزني وايي: ما د امام شافعي رحمۃ اللہ علیہ څخه زيات سخي هيڅوک نه دی ليدلی، يو وار د اختر په شپه زه ور سره روان سوم، ما د هغه سره په يوه مسئله کي خبري کولې او د هغه د سرای تر دروازې پوري

ولاړم، هغه وخت یو غلام هغه ته یوه کڅوړه راوړل او وه یې ویل چي بادار تاسو ته سلام ویلی دی او دا یې ویلي دي چي دغه کڅوړه قبوله کړئ، امام هغه کڅوړه واخیستل، هغه وخت یو سړی راغلی او هغه وویل: اې ابوعبدالله! اوس زموږ کره کوچنی پیدا سوی دی او هیڅ را سره نسته، امام هغه کڅوړه هغه ته ورکړل او خالي لاس په سرای کي داخل سو، د نوموړي فضائل بې شمېره دي، د ټولي دنیا امام او د مشرق او مغرب په ټولو خلکو کي لوی عالم دین وو، الله ﷻ د هغه په ذات کي د علومو او فضائلو هغه مقدار یو ځای کړی وو چي نه دده څخه مخکي یو امام ته حاصل سوی دی او نه وروسته، د نوموړي شهرت او یادونه دومره خپره سول چي بل چا ته دغه خبره په برخه نه سول، د مالک بن انس، سفیان بن عیینه، مسلم بن خالد او د دوی څخه ماسوا د ډېرو خلکو څخه یې حدیث اورېدلي دي، دده څخه امام احمد بن حنبل، ابوثور، ابراهیم بن خالد، ابوابراهیم مزني، ربیع بن سلیم مرادي او نورو ډېرو خلکو روایت کړی دی، په ۱۹۵ م هجري کال کي بغداد ته ولاړی، هلته دوه کاله هستوګن سو او بیا مکې ته ولاړی او څو میاشتي یې قیام وکړ، بیا مصر ته ولاړی او هلته د ماخستن په وخت د جمعې په شپه وفات سو، په جمعه کي د مازدیګر څخه وروسته دفن کړل سو، د رجب په آخري نېټه په ۲۰۴م هجري کال د ۵۴ کالو په عمر وفات سو، ربیع وایي: ما د امام شافعي رحمة الله عليه د وفات څخه څو ورځي مخکي په خوب کي ولیدل چي آدم عليه السلام وفات سوی دی او خلکو د هغه جنازه پورته کړې ده، په سهار کي ما د ځینو علماؤ څخه ددغه خوب تعبیر وپوښتی، نو هغوی وویل: دغه خوب د دنیا تر ټولو لوی عالم مرګ ته اشاره ده ځکه چي الله ﷻ آدم عليه السلام ته علم اسماء ورکړی وو، څو ورځي وروسته امام شافعي رحمة الله عليه وفات سو، مزني وایي: زه امام شافعي رحمة الله عليه ته په هغه ناروغۍ کي ورغلم چي په هغه کي وفات سو، ما پوښتنه وکړل چي نن سهار څرنګه وو؟ هغه وویل: زه د دنیا څخه تلونکی یم، د ملګرو څخه جلا کېدونکی یم، د مرګ جام څښونکی او د خپلي بدعملۍ سره یو ځای کېدونکی یم، او خپل الله ﷻ ته رسېدونکی یم، اوس ما ته معلومه نه ده چي زما روح جنت ته منتقل کېږي چي زه ورته مبارک باد ووایم، که دوږخ ته چي زه ورسره تعزیت وکړم، بیا یې وژړل او دغه اشعار یې وویل:

شعر:

۱: کله چي زما زړه په قسادت کي اخته سو او زما لاري تنګي سوې نو ما ستا امید عفو ته رسونکې زینه جوړه کړل، ۲: زما ګناهونه ما ته لوی معلوم سول مګر کله چي ما هغه ته ستا د

عفو په مقابله کي وکتل نو ستا عفوه لویه ثابته سول، ۳: تا ګناهونه معاف کول او د خپلي عفو او مغفرت په سخاوت سره دي پر ما احسان کوی، او زما عزت دي زیاتوی، ۴: که ستا مرسته نه وای نو هیڅ عابد د شیطان څخه هیڅکله خوندي کیدای نه سي او دا ممکن نه ده ځکه چي هغه ستا صفي آدم هم د لاري څخه آخوا کړی وو،

احمد بن حنبل رحمة الله عليه وايي: ما امام شافعي رحمة الله عليه په خوب کي ولیدی نو ما ورته وویل: اې وروره! الله جل جلاله ستا سره څه معامله وکړل، هغه وویل: زما مغفرت یې وکړ او یو تاج یې زما پر سر کښېښود ، او ما ته یې ښځه راکړل، او ما ته یې وفرمایل: دا د هغه خبري بدله ده چي تا په هغه شیانو باندي کبر ونه کړ چي موږ هغه تا ته درکړي وه، او تا زموږ په درکړل سوو نعمتو باندي تکبر ونه کړ، ټول علماء فقه او اصول و حدیث و لغت و نحو پر دې متفق دي چي امام شافعي رحمة الله عليه ثقه، آمین، عادل، زاهد، متورع، سخي، نیک سیرته او د لوړي مرتبې دی، اوس دده صفتونه چي څو مره ذکر کړل سي هغه به پر کوتاهۍ باندي محمول کیږي او څومره خبره چي اوږده سي هغه به مختصره تصور کیږي او بیانونکی به د کوتاهۍ مرتکب وي .

۱۰۰۹. **احمد بن حنبل** رحمة الله عليه : دغه امام ابو عبد الله احمد بن محمد بن حنبل مروزي دی، د بنو شیبان څخه دی، په ۱۴۶م هجري کال په بغداد کي پیدا سو او په ۲۲۳م هجري کال د ۷۷ کالو په عمر په بغداد کي وفات سو ، نوموړی په فقه، حدیث، زهد او عبادت کي مقتدی دی، د صحیح او سقیم، مجروح او معدل معباد دی، په بغداد کي لوی سو او د هغه ځایه یې علم حاصل کړ، د مشائخ حدیث څخه یې حدیث اورېدلي دي ، بیا یې د کوفې، بصرې، مکې، مدینې ، یمن ، شام او جزیرې سفر وکړ، او د هغه زمانې د علماؤ څخه یې حدیث جمع کړل، نوموړي د یزید بن هارون، یحیی بن سعید قطان، سفیان بن عینیه، محمد بن ادریس شافعي ، عبد الرزاق بن همام او د دوی څخه ماسوا د نورو ډېرو حضراتو څخه حدیث اورېدلي دي، دده دواړه زامن صالح او عبد الله، او د اکا زوی حنبل بن اسحاق او محمد بن اسماعیل بخاري او مسلم بن حجاج نیشاپوري ، ابوزرعه، ابو داؤد سجستاني او د دوی څخه ماسوا ډېرو خلګو دده څخه روایت کړی دی، دا خبره ضروري ده چي د کتاب الصدقات په پای کي د یو بلا ذکر سند حدیث څخه ماسوا امام بخاري رحمة الله عليه دده څخه روایت په خپل کتاب صحیح بخاري نقل نه کړ او احمد بن حسین ترمذي هم دده څخه یو بل حدیث روایت کړی دی ، د نوموړي فضائل او مناقب ډېر زیات دی ، په اسلام کي دده اثرات مشهور دي، په دین کي دده د مقامات عالیه یادونه ده، د هغه یادونه په آفاق

کي مشهور ده، د هغه تعريف په ټولو هيوادو کي خپور سوی دی. دی په هغه مجتهدينو کي دی چي د هغوی پر قول، رايه او مذهب باندي په ډېرو هيوادو کي عمل کيږي. د اسحاق بن راهويه قول دی چي امام احمد بن حنبل د خدای ﷻ او د هغه د بندګانو په منځ کي پر مځکه د خدای ﷻ حجت دی، امام شافعي رحمه الله به ويل: زه د بغداد څخه روان سوم . ما تر ځان وروسته د امام احمد بن حنبل څخه زيات متقي، متورع ، عالم او فقيه نه پرېښود . احمد بن سعيد دارمي وايي: ما هيڅ ځوان د امام احمد بن حنبل څخه زيات د حديث رسول حافظ او د هغه د معنی او فقه خبردار ونه ليدی ، ابوزرعه وايي چي احمد بن حنبل ته لس لکه حديث ياد وه ، يو چا پوښتنه وکړل چي تاسو څرنګه معلومه کړل. نو هغه وويل: ما د هغه سره د حديثو مذاکره وکړل او ډېر ابواب حديث مي ځيني تر لاسه کړل، ابراهيم حربي وايي: ما احمد بن حنبل وليدی ، الله ﷻ د هغه په ذات کي هر ډول اولين او آخرين علم جمع کړی وو او هغه ته دومره واک وو چي کومه برخه به يې بيانول غوښتل هغه به يې بيانول، او کوم چي به يې پرېښودل غوښتل هغه به يې پرېښودل، ابوداؤد سجستاني وايي: د هغه مجلس به مجلس آخرت وو، په هغه کي به ددنيا د هيڅ شی يادونه نه وه، محمد بن مسلمه وايي: د حسن بن عبدالعزيز ميراث هغه ته د مصر څخه راوړل سو ، هغه يو لک اشرفی وې، هغه د امام احمد بن حنبل دپاره درې کڅوړي چي په هري کڅوړي کي زر زر اشرفی وی ددغه پيغام سره راواستولې چي دا د حلال مېراث څخه وراندي کوم. تاسو دا قبول کړئ، او په خپله کورنۍ يې مصرف کړې، نوموړي وفرمايل: ما ته ددې ضرورت نسته . زما سره د اړتيا په اندازه مال موجود دی، نو هغه يې بېرته ورکړې. او دهغه څخه يې هيڅ قبول نه کړ، دده زوی عبدالرحمن وايي: د لمانځه وروسته زيات وختونه ما د خپل پلار څخه دا اورېدل چي اې الله! څرنګه چي تا زما مخ د نورو په مخکي د سجدې کولو څخه ساتلی دی همدارنګه زما مخ هم د نورو څخه د سوال کولو څخه خوندي کړې. ميمون ابن اصبع وايي: زه په بغداد کي وم ، ما يو آواز واورېدی . نو پوښتنه مي وکړل چي دا څرنګه آواز دی؟ نو خلګو بيان وکړ چي د احمد بن حنبل امتحان کيږي، زه هلته ورغلم . کله چي هغه يوه دُره ووهل سو نو هغه وويل: بسم الله، دوهمه دره چي ووهل سو نو هغه وويل: لاحول ولاقوة الابالله، دريمه دره چي ووهل سو نو هغه وويل: قرآن د الله ﷻ کلام دی مخلوق نه دی، څلورمه دره چي ووهل سو نو دغه آيت (لن يصيبنا الا ما کتب الله لنا ) يې ووايه، همدارنګه نهه ويشت درې ووهل سو، هغه وخت د امام احمد پرتوګابن چي د

ټوکر څخه جوړ وو، پرې سو، د هغه پرتوګ تر نامه لاندې سو، نو امام احمد آسمان ته وکتل او خپلو شونډو ته یې حرکت ورکړ، معلومه نه ده چې څه یې وویل او د هغه پرتوګ پورته سو، یوه اونۍ وروسته زه هغه ته ورغلم نو ما ورته وویل: ما ته ولېدلې چې تا خپلو شونډې ښورولې، تاسو څه ویل، هغه وویل: ما داسې وویل چې اې الله! زه تا ته ستا د هغه نامه په وسیله سره غوښتنه کوم چې په هغه سره تا عرش پورته کړی دی، تا ته علم دی چې زه پر صحیح لاریم، نو زما پرده مه څرګندوې، احمد بن کندي وایي: ما امام احمد بن حنبل په خوب کې ولیدی نو ما پوښتنه ور څخه وکړل چې الله ﷻ ستاسو سره څه معامله وکړل؟ هغه وویل: زما بخښنه یې وکړل او دا یې وفرمایل چې اې احمد! ته زموږ په معامله کې وهل سوې وې؟ ما وویل: هو، اې پروردګاره! نو وه یې فرمایل: وګوره دا زموږ مخ دی، د هغه لېدنه وکړه، موږ تا ته د لیدنې اجازه درکړې ده.

۱۰۱۰. **محمدبن اسماعیل بخاري** رحمة الله علیه: دغه ابو عبد الله محمد بن اسماعیل بن ابراهیم بن مغیره زوی دی، جعفي او بخاري دی، ده ته جعفي ځکه ویل کیږي چې دده نیکه پلار مغیره مخکې د اور عبادت کوونکی وو، یمان د بخاري په لاس مسلمان سوی وو او هغه جعفي د بخارا حاکم وو، ځکه ده ته جعفي او بخاري ویل کیږي ځکه چې هغه دده په لاس اسلام راوړی وو، جعفي د یمن د یوې قبیلې د نیکه نوم دی، جعفي د سعد زوی دی که جعفي ته نسبت وکړل سي نو دغه لفظ د نسبت لپاره هم ویل کیږي، د امام بخاري رحمة الله علیه زېږېدنه د جمعې په ورځ په دیارلسمه نېټه د شوال په ۱۹۴م هجري کال کې وسول، او د شوال په اوله نېټه ۲۵۶م هجري کال کې وفات سو، د نوموړي عمر دیارلس ورځې کم ۶۲ کاله وو، نارینه اولاد یې نه وو، امام بخاري رحمة الله علیه د علم حدیث په طلب کې د لیرې لیرې سفر وکړ او د ټولو هیوادو د محدثینو سره یې لېدنه وکړل او په خراسان، جبال، عراق، حجاز، شام او مصر کې یې حدیثونه جمع کړل او د سترو حفاظ حدیث څخه یې حدیث حاصل کړل، چې په هغوی کې مکې بن ابراهیم بلخي، عبدالله بن موسی، عیسی، ابوعاصم شیباني، علي بن مدیني، احمد بن حنبل، یحیی بن معین، عبدالله بن زبیر، حمیدي او د دوی څخه ماسوا نور امامان شامل دي، په ښار کې چیرې چې امام بخاري رحمة الله علیه حدیث بیان کړل د هغه څخه ډېرو خلګو حدیث تر لاسه کړل، فربري وایي: د امام بخاري کتاب بخاري خپله مصنف د نیوي زره کسانو څخه واورېدی، اوس د امام بخاري څخه نقل کوونکې زما څخه ماسوا څوک پاته نه دی، امام بخاري چې د مشائخ حدیث په خدمت کې

حاضر سو نو هغه وخت د هغه عمر يوازي يوولس كاله وو او د علم طلب يې د لسو كالو په عمر كي وكړ، بخاري فرمايي: ما خپل كتاب بخاري د شپږو لكو څخه زياتو حديثونو په انتخابولو سره مرتب كړ، په دې كي چي كوم حديث مي درج كړ د هغه څخه مخكي مي دوه ركعته لمونځ وكړ ، هغه داهم وايي چي ما ته يو لک صحيح او دوه لكه غير صحيح حديثونه ياد دي، د ده په كتاب صحيح بخاري كي د مكرر حديثونو په شمول اووه زره دوه سوه او پنځه اويا (۷۲۷۵) حديثونه دي، ويل كيږي چي د مكرر حديثونو په حذف كولو سره څلور زره حديثونه پاتيږي، امام بخاري خپل دغه كتاب په شپاړلس كاله كي مرتب كړ ، كله چي امام بخاري بغداد ته ورسېدی او د هغه ځای محدثينو دده خبر وسو نو هغوی يو ځای سول او هغوی سل حديثونه داسي انتخاب كړل چي د هغه متون او سندونه يې گډ وډ كړل او د يوه متن حديث سره د بل متن سند يې ولگوی او د هغه سند يې د بل حديث سره شامل كړ، لسو كسانو ته يې داسي لس لس حديثونه وركړل او هغوی ته وويل سول چي كله د امام بخاري په مجلس كي حاضر سي نو دغه حديثونه دي د امام بخاري په مخكي ووايي چي د هغه د حفظ حديث او حفظ سند امتحان واخيستل سي، نو د امام په مجلس كي د محدثينو يوه ډله حاضره سول ، كله چي په اطمينان سره كښېنستل نو د هغه لسو كسانو څخه يو سړی د امام په مخكي حاضر سو او په هغه حديثونو كي د يوه حديث په اړه يې د امام څخه پوښتنه وكړل، امام بخاري جواب وركړ چي زه دا نه پېژنم تر دې چي هغه لس حديثونه وويل او امام بخاري همدا ويل چي زه يې نه پېژنم، اهل علم د هغه پر انكار كولو باندي پوه سول چي امام بخاري ماهر حديث دی مگر غير علماء تر اوسه پوري د امام د واقفيت علم ونه سو ، بيا دوهم سړی حاضر سو او همدارنگه پېښه سول لكه څرنگه چي مخكي پېښه سوې وه، تر دې چي لسو كسانو همداسي وكړل، او امام بخاري به يوازي دا ويل چي زه دا نه پېژنم، كله چي ټول كسان د خپلو حديثونو وړاندي كولو څخه فارغ سول نو امام بخاري اول سړي ته متوجه سو او هغه ته يې وفرمايل : ستا اول حديث داسي دی او دوهم داسي او دريم داسي ، مطلب لس سره حديثونه يې په هغه ترتيب وويل او د هغه څخه وروسته د هر متن سره د هغه اصلي سند يو ځای كولو سره ووايه او بيا د پاته نهو كسانو حديثونه يې هم داسي وكړل، نو هغه وخت ټولو كسانو دده د حفظ اقرار وكړ او ټولو دده د فضل په وړاندي غاړه كښېښوده كړل ، ابو مصعب احمد بن ابي بكر مديني وايي: امام بخاري زموږ په خيال كي د امام احمد بن حنبل څخه زيات فقيه او د هغه څخه زيات صاحب

بصیرت دی ، د هغه د مجلس په ملګرو کي یو چا وویل چي ته د حد څخه زیات وړاندي سوې نو ابو مصعب وویل: که ته د امام مالک سره یو ځای سوی وای او د هغه او د امام بخاري مخونه دي لیدلي واي نو خپله به قائل سوی وای چي دواړه فقه او حدیث کي یو ډول دي، امام احمد بن حنبل وايي: خراسان د محمد بن اسماعیل بخاري په ډول شخصیت پیدا نه کړ د هغه قول دی چي د خراسان پر څلورو کسانو حفظ ختم دی، په هغوی کي یې بخاري هم شمېرلی دی، رجاء بن مزجي وايي چي امام بخاري د علماؤ په مقابله کي هغه فضیلت لري کوم چي نارینوو ته د ښځو په مقابله کي دی، هغه ته یو سړي وویل چي اې ابو محمد! دا څه دي؟ نو هغه وویل: هغه د الله ﷻ د نښو څخه د مځکي پر سطح ګرځېدونکې یوه نښه ده، محمد بن اسحاق وايي: ما تر آسمان لاندي هیڅوک د محمد بن اسماعیل بخاري څخه زیات د حدیثو عالم نه دی لیدلی، د ابو سعید بن منشیر قول دی چي امیر خالد ابن احمد ذیلي د بخارا حاکم امام بخاري رحمه الله ته پیغام واستوی چي ما ته جامع کتاب او تاریخ راوړي چي زه یې ستاسو څخه واورم، امام بخاري ورته وویل: زه علم نه ذلیل کوم او نه هغه د خلګو دروازو ته وړم، که تاسو ته څه ضرورت وي نو زما مسجد ته راسئ او که تاسو ته دا هر څه ناخوښه وي نو تاسو پاچا یاست ، ما د اجتماع څخه منع کړئ چي د الله ﷻ په مخکي د قیامت په ورځ زما عذر واضح سي، زه خو علم نه پټوم ځکه چي د رسول الله ﷺ ارشاد دی: د کوم چا څخه چي علمي خبره وپوښتل سي او هغه ونه ښیي نو هغه ته به د اور قیزې واچول سي ، نور خلګ بیان کوي چي د بخاري رحمه الله د بخارا څخه د تللو سبب دا وو چي خالد هغه ته درخواست کړی وو چي امام د هغه پر سرای حاضر سي او د هغه کوچنیانو ته تاریخ وښیي. هغه نه ورغلی ، خالد بیا پېغام ور واستوی چي تاسو دومره وکړئ چي زما د کوچنیانو دپاره یو خاص مجلس مقرر کړئ چي په هغه کي د دوی څخه ماسوا نور څوک حاضر نه وي، بخاري دا هم ونه کړل بلکه دا یې وفرمایل چي زه داسي نه سم کولای چي زه خپل مجلس د یو خاص ډلي سره خاص کړم چي نورو خلګو ته دا خصوصیت نه وي، پر دې باندي خالد د هغه خلاف د علماء بخارا څخه مرسته وغوښتل، هغه علماؤ د بخاري پر مذهب اعتراض وکړ نو خالد هغه د بخارا څخه جلا وطنه کړ، امام بخاري د هغوی ټولو خلاف ښېرا وکړل او هغه قبوله سول او په لږ وخت کي هغوی ټول په مصیبتو کي اخته کړل سول .

محمد بن احمد مروزي وايي: زه د رکن او مقام په منځ کي بېده وم، ما رسول الله ﷺ په

خوب کي ولېدی چي وه یې فرمایل: اې ابوزید! ته به تر کومه پوري د امام شافعي رحمه الله کتاب وایې او زموږ کتاب نه وایې، ما عرض وکړ چې اې د الله رسوله! ستاسو کتاب څه شي دی؟ وه یې فرمایل: د محمد بن اسماعیل بخاري جامع، نجم بن فضل وایي ما رسول الله ﷺ په خوب کي ولیدی او محمد بن اسماعیل د رسول الله ﷺ څخه تر شا دی، رسول الله ﷺ چي یو قدم پورته کوي نو امام بخاري هم یو قدم پورته کوي او د رسول الله ﷺ پر نقش قدم خپل قدم اېږدي، یعني د رسول الله ﷺ د نقش اتباع کوي، عبدالواحد بن آدم طواویسي فرمایي: ما رسول الله ﷺ په خوب کي ولیدی، د رسول الله ﷺ سره یوه ډله ده ، رسول الله ﷺ پر یو ځای باندي ولاړ دی، ما سلام ادا کړ ، رسول الله ﷺ جواب راکړ ، ما وویل: اې د الله رسوله! تاسو دلته څرنګه پاته یاست؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: د محمد بن اسماعیل بخاري په انتظار کي، څو ورځي وروسته موږ د امام بخاري رحمه الله د وفات خبر واورېدی ، معلومه سول چي امام بخاري هم هغه وخت وفات سو کوم وخت چي ما رسول الله ﷺ په خوب کي لیدلی وو .

۱۰۱۱. **مسلم بن حجاج** رحمه الله : دغه ابوالحسین امام مسلم دی، د حجاج بن مسلم زوی دی، قشیري او نیشاپوري دی، د حدیث د حافظانو او امامانو څخه دی، په ۲۰۴م هجري کال کي پیدا سو او د یکشنبې په ورځ د رجب د میاشتي د ختمېدو څخه شپږ ورځي مخکي په ۲۶۱ م هجري کال کي وفات سو، د عراق، حجاز، شام او مصر سفرونه یې کړي دي، د یحیی بن یحیی، نیشاپوري، قتیبه بن سعید ، اسحاق بن راهویه ، احمد بن حنبل، عبدالله بن مسلمه قعنبي او د دوی څخه ماسوا د نورو امامانو او علماء حدیث څخه یې حدیث حاصل کړل، بغداد ته څو واره راغلی او هلته یې حدیث بیان کړل. دده څخه ډېر خلګ چي په هغوی کي ابراهیم بن محمد بن سفیان، امام ترمذي او ابن خزیمه شامل دي، روایت کوي، په آخري وار په ۲۵۷م هجري کال کي بغداد ته راغلی ، امام مسلم رحمه الله وایي: ما مسند صحیح د درو لکو خپل اورېدلو حدیثو څخه په انتخاب کولو سره لیکلی دی، محمد بن اسحاق بن منده وایي: ما د ابو علي نیشاپوري څخه واورېدل چي هغه ویل: په علم حدیث کي تر آسمان لاندي هیڅ کتاب د کتاب مسلم څخه زیات صحیح نسته. خطیب ابوبکر بغدادي وایي: امام مسلم خو یوازي د بخاري پیروي وکړه او د هغه پر علومو یې نظر وکړ. او د هغه پر نقش قدم روان سوی دی، کله چي اما بخاري په آخري وار نیشاپور ته راغلی نو امام مسلم به د هغه سره وو او هغه ته به ورتلی. امام دار قطني وایي: که هلته بخاري نه وای نو امام مسلم ته هلته د تللو او راتللو ضرورت نه وو .

۱۰۱۲. **سلیمان بن اشعث** رحمۃ اللہ علیہ : دغه ابوداؤد سلیمان د اشعث زوی او سجستاني دی، د هغو خلکو ځخه دی چې سفرونه يې وکړل او وګرځېدل، او د حدیثو په جمع کولو سره يې کتاب تصنیف کړ، د اهل عراق، خراسان، شام، مصر او جزیرې ځخه د روایاتو په اورېدو سره يې ولیکل، په ۲۰۲م هجري کال کې پیدا سو او په ځوارلسم شوال په ۲۷۵م هجري کال په بصره کې وفات سو، بغداد ته ځو واره راغلی او بیا اخري وار په ۲۷۱ هجري کال د هغه ځایه ووتی، د مسلم بن ابراهیم، سلیمان بن حرب، عبدالله بن مسلمه قعنبي، یحیی بن معین، احمد بن حنبل او د دوی ځخه ماسوا د نورو امامانو ځخه يې حدیث تر لاسه کړل، دده ځخه دده زوی عبدالله او عبدالرحمن نیشاپوري او احمد بن محمد خلال او نور کسان روایت کوي، ابوداؤد په بصره کې هستوګن سو او بغداد ته راغلی او هلته يې خپل تصنیف سنن ابوداؤد روایت کړ، د هغه ځای اوسېدونکو دغه کتاب ځیني نقل کړ او د امام احمد بن حنبل په مخکې يې وړاندې کړ، نو هغه يې په ښه توګه تحسین کړ، ابوداؤد وویل: ما د رسول الله ﷺ ځخه نقل سوي پنځه لکه حدیثونه جمع کړل، د هغه ځخه ما ددغو حدیثونو انتخاب وکړ چې په دغه کتاب کې مې ځلور زره اته سوه جمع کړل، ما صحیح د صحیح، مشابه او د صحیح نژدې درې کوچني ډوله حدیثونه بیان کړي دي، په هغه کې سړي لره د خپل دین دپاره یوازې ځلور حدیثونه کافي دي:

۱: د رسول الله ﷺ دغه ارشاد چې د اعمالو دار او مدار په نیتو پوري دی.
۲: د رسول الله ﷺ ارشاد: د سړي د اسلام ښېګڼه داده چې لایعني او پالتو خبري پرېږدي.
۳: د رسول الله ﷺ دغه وینا: سړی تر هغه وخته پوري مؤمن کیدای نه سي تر ځو چې هغه د خپل مسلمان ورور دپاره هغه شی خوښ نه کړي کوم چې د ځان دپاره خوښوي.
۴: د رسول الله ﷺ دغه فرمان چې حلال ظاهر دي او حرام هم واضح دي مګر د دواړو په منځ کې مشتبه شیان دي ... ترپایه.

ابوبکر حلال وایي: ابوداؤد په خپله زمانه کې امام وو، دا هغه سړی دی چې دده په زمانه کې هیځوک په تخریج، علوم معرفت، استخراج او بصیرت کې تر ده مخکې نه سو، صاحب ورع او پیشوا دی، احمد بن محمد وایي: ابوداؤد د اسلام په زمانه کې د حدیث رسول ﷺ حفظ کوونکی او د هغه نقائص او د هغه سند یاد ساتونکو کې یو دی، هغه د اعلی درجې عبادت کونکي، عفیف، نیک او د حدیثو ماهر دی، د ابوداؤد یو لستوڼی پراخ او یو تنګ وو، دده ځخه پوښتنه وسول چې الله جل جلاله دي پر تاسو رحم وکړي دا ولي

داسي ده؟ هغه وفرمايل: پراخ لستوڼی د کتابو دپاره دی او د دوهم د پراخ کولو ضرورت نسته، خطابي وايي: سنن ابوداؤد يو شريف کتاب دی، په علم دين کي داسي کتاب نه دی تصنيف سوی، ابوداؤد وايي: ما په خپل کتاب کي هيڅ داسي حديث نه دی درج کړی چي د هغه په پرېښودو باندي د ټولو خلګو اتفاق وي، ابراهيم حربي وايي: کله چي ابوداؤد دغه کتاب تصنيف کړ نو د هغه دپاره حديث داسي نرم کړل سول لکه څرنګه چي د حضرت داؤد عليه السلام دپاره اوسپنه نرم کړل سوې وه، ابن اعرابي د ابوداؤد په اړه وايي: که د چا سره د علومو څخه ماسوا د مصحف څخه چي په هغه کي کتاب الله دی، او بيا د ابوداؤد څخه ماسوا بل هيڅ هم نه وي نو ددغه دواړو کتابو په موجودتيا کي به هغه ته د بل هيڅ علم ضرورت نه وي.

۱۰۱۳. **محمد بن عيسي ترمذي** رحمه الله: دغه ابوعيسی محمد بن عيسی ترمذي دی، په ترمذي کي د دوشنبې په ورځ په ديارلسمه نېټه د رجب په ۲۷۹ م هجري کال وفات سو، يو ستر حافظ حديث دی، په فقه کي يې ښه لاس رسی درلود، د حديثو د امامانو د يوې ډلي څخه يې حديث حاصل کړل، د مشائخ صدر اول سره يې ملاقات وسو لکه قتيبه بن سعيد، محمود بن غيلان، محمد بن بشر، احمد بن منيع، محمد بن مثنی، سفيان بن وکيع، محمد اسماعيل بخاري او داسي نورو ډېرو خلګو څخه يې د حديثو علم تر لاسه کړ، او دهغه څخه ډېرو خلګو حديث تر لاسه کړل چي په هغوی کي محمد بن احمد محبوبي مروزي شامل دی، په علم حديث کي يې ډېر تصنيفات دي او دده کتاب صحيح ترمذي په ټولو کتابو کي ښه کتاب دی، دده په کتابونو کي ترتيب تر ټولو غوره دی او د هغه د ګټې تر ټولو زياتي او تکرار تر ټولو کتابو کم دی، په دغه کتاب کي دوه شيان دي چي په نورو کتابو کي نسته، د مثال په توګه د مذهبو ذکر، د استدلال طرق انواع حديث يعني د حسن، صحيح او غريب بيان، په دې کي جرح او تعديل هم سته، د کتاب په پای کي د کتاب العلل په نامه يوه برخه ده، په دې کي هغه ډېر ښه فوائد جمع کړي دي د هغه مرتبه د هغه چا څخه پټه نه ده چي د هغه څخه خبر سوی وي، ترمذي وايي: ما دغه کتاب ترتيب او د علماء حجاز په مخکي مي وړاندي کړ هغوی د خوښۍ اظهار وکړ، بيا مي د علماء خراسان په مخکي کښېښودهغوی هم خوښ کړ، بيا علماء عراق په مخکي کي وړاندي کړ هغوی هم خوښ کړ، د چا په سرای کي چي دغه کتاب موجود وي نو دا ګڼل پکار دي چي د هغه سره يو نبي موجود دی، چي خبري کوي، په ترمذي کي تاء مکسور او ذال معجمه دی، دا

ترمذي ته منسوب دی او هغه د جيحون سيند پر څنډه باندي د يو مشهور ښار نوم دی .

١٠١۴. **احمد بن شعيب نسائي** رحمة الله عليه : دغه ابوعبدالرحمن احمد د شعيب زوی دی، نسائي دی، په مکه مکرمه کي په ٣٠٣ م هجري کال وفات سو او هلته دفن دی، اهل حفظ او صاحب علم او په فقهاؤ کي يو دی هم دی، د لويو لويو مشائخو سره يې ملاقات سوی دی. ده د قتيبه بن سعيد، هناد بن سري، محمد بن بشار، محمود بن غيلان ، ابوداؤد ، سليمان بن اشعث او نورو مشائخو څخه حديث حاصل کړل، دده څخه هم ډېرو خلکو چي په هغوی کي ابوالقاسم طبراني، ابوجعفر طحاوي او حافظ ابوبکر، احمد بن اسحاق سني داخل دي، حديث حاصل کړل، په حديث، علل او نورو کي دده ډېر کتابونه دي ، حافظ مامون مصري وايي: موږ د عبدالرحمن سره طرطوس ته ولاړو ، ډېر بزرگان جمع سول او د حفاظ حديث څخه عبدالله بن احمد بن حنبل او محمد بن ابراهيم او نور کسان هم راغلل او په خپلو کي يې مشوره وکړل چي د شيوخو په مقابله کي د هغوی دپاره کوم سړی تر ټولو زيات مناسب دی، د ټولو اتفاق پر ابوعبدالرحمن نسائي وسو او ټولو د هغه انتخاب وکړ، حاکم نيشاپوري ويلي دي: د ابوعبدالرحمن د فقهي او حديث په اړه خبري تر دې ډېري زياتي دي چي د هغه بيان وکړل سي ، مگر کوم څوک چي د هغه په کتاب کي غور کوي هغه د کلام په حسن کي حيران پاته سي ، هغه وويل: ما د حافظ علي بن عمر څخه څو واره واورېدل چي هغه ويل: ابوعبدالرحمن په خپله زمانه کي د هغه ټولو خلکو څخه مقدم دی کوم چي په دغه علم کي شهرت لرونکي دی، امام نسائي د مذهب د لحاظه شافعي وو، ډېر متقي او د سنتو پيروي کوونکی وو، په نسائي کي پر نون باندي فتحه، سين بېله تشديد او الف ممدوده او همزه دي، دغه لفظ د خراسان يوې سيمې نساء ته منسوب دی .

١٠١۵. **ابن ماجه** : دغه ابوعبدالله محمد دی، د يزيد بن ماجه زوی دی، د قزوين اوسېدونکی، د حديثو حافظ او د سنن ابن ماجه مصنف دی، د امام مالک رحمة الله عليه د شاگردانو او ليث څخه يې حديث اورېدلي دي او دده څخه ابوالحسن قطان او نورو خلکو روايت کړی دی، په ٢٠٩ م هجري کي پيدا سو او په ٢٧٣م هجري کال د ۶۴ کالو په عمر وفات سو .

١٠١۶. **عبدالله دارمي**: دغه ابومحمد عبدالله دی، د عبدالرحمن زوی دی، دارمي حافظ حديث او د سمرقند عالم دی، ده د يزيد بن هارون او نضر بن شميل څخه او دده څخه مسلم، ابوداؤد، ترمذي او نورو روايت کړی دی، ابوحاتم وايي چي دی د خپلي زمانې

امام دی، په ۱۸۱م هجري کال کي پیداسو او په ۲۵۵م هجري کال کي د ۷۴ کالو په عمر وفات سو .

۱۰۱۷. **دار قطني** : دغه ابوالحسن علي د عمر زوی دی، دارقطني د حدیثو حافظ، امام او مشهور عالم دی، نوموړی د وخت امام او ستر عالم وو، د علوم حدیث او نقائص حدیث واقفیت او د اسماء رجال علم د راویانو معرفت ختم دی، ددې سره د علوم حدیث ماسوا د صدق امانت، اعتماد، عدالت، د عقیدې صحت او د مذهب د سلامتیا او نورو علومو سره ښکلی وو، د مثال په توګه د قرآن علم، د فقهاؤ د مذهبو واقفیت، د حدیثو د علومو پرته، ابوسعید اصطخري څخه یې د فقه شافعي تعلیم حاصل کړ او د هغه څخه یې حدیث هم جمع کړل، په دغه علومو کي علم ادب او شعر هم دي، ابوطیب وایي: دارقطني په حدیث کي امیر المؤمنین دی، هغه د ډېرو خلګو څخه حدیث اورېدلي دي او دده څخه ابونعیم ابوبکر برقاني، جوهري، قاضي ابوطیب طبري او نورو کسان روایت کړي دی، په ۳۰۵ م هجري کال کي پیداسو او د ذي قعده په اتمه نېټه په ۳۸۵م هجري کال کي د چارشنبې په ورځ وفات سو، په دار قطني کي قاف او نون دی، دغه لفظ د بغداد یو پخوانۍ سیمي دارقطن ته منسوب دی .

۱۰۱۸. **ابونعیم**: دغه ابونعیم احمد دی، د عبدالله زوی دی، د اصفهان اوسېدونکی دی، د حلیه مصنف دی، دی د حدیث د باوري مشائخو څخه دی چي د هغه په حدیث عمل کیږي، او د هغه قول ته رجوع کیږي، د ډېري لوړي مرتبې خاوند دی، په ۳۳۴م هجري کال کي پیدا سو او د صفر په میاشت کي په ۴۳۰ م هجري کال په اصفهان کي د ۹۶کالو په عمر وفات سو .

۱۰۱۹. **الاسماعیلي**: دغه ابوبکر دی، نوم یې احمد او د ابراهیم زوی دی، اسماعیلي جرجاني دی، دی امام او دحدیثو حافظ دی، په ده کي حدیث، فقه، اصول، ددین او دنیا سرداري یو ځای ده، ده خپل کتاب صحیح د امام بخاري د ټاکل سوو شرطونو مطابق تصنیف کړی دی، دده څخه دده زوی ابوسعید او د جرجان اهل فقه حدیث حاصل کړل، په ۳۷۷م هجري کال کي پیداسو، عمر یې ۹۴ کاله وو .

۱۰۲۰. **البرقاني**: دغه ابوبکر احمد بن محمد خوارزمي برقاني دی، په خپل ښار کي د ابوعباس بن احمد نیشاپوري او نورو څخه یې حدیث اورېدلي دي بیا جرجان ته ولاړ د اسماعیلي څخه یې حدیث واورېدل، بیا بغداد ته په تلو سره هغه یې خپل هیواد وګرځوی،

هلته يې حديث بيان کړل او باوري ، متقن او فهيم ثبت وو ، خطيب ابوبکر بغدادي وايي : ما په خپل شيوخو کي هيڅوک تر ده زيات ونه ليدى هغه حافظ قرآن، د فقهي ماهر، په علوم عربيه کي، په علم حديث کي دده څو تصانيف دي، په ۲۳۶م هجري کال کي پيدا سو ، او په ۴۲۵م هجري کال کي د ۸۹ کالو په عمر وفات سو ، د جامع منصور په هدېره کي دفن سو ، په برقاني کي باء مسکوره ، ياء مفتوح ، قاف او نون دى .

۱۰۲۱. **احمد سني**: دغه ابوبکر احمد دی، د محمد زوی دی، سني او حافظ حديث دی، د دنيوري امام احمد بن شعيب نسائي او نورو څخه يې حديث روايت کړئ دي او دده څخه ډېر خلګ روايت کوي، په ۳۶۴م هجري کال کي وفات سو ، په سني کي پر سين مهمله باندي ضمه او نون مشدده مکسور دی، او ياء تحته مشدده ده .

۱۰۲۲. **بيهقي** رحمة الله عليه: دغه ابوبکر احمد دی، د حسين زوی او بيهقي دی، په حديثو ، د کتابو په تصنيف او د فقهي په خبرتيا کي د خپلي زمانې يوازيني سړی دی، د حاکم ابوعبدالله په لويو شاګردانو کي دی، خلګ وايي چي د حديثو په حافظانو کي اووه کسان داسي تېر سوي دي چي د هغوی تصانيف ډېر ښه دي او د هغوی څخه خلګو ډېره ګټه تر لاسه کړه او هغه دادي :

۱: امام ابوالحسن علي بن عمر دار قطني .
۲: حاکم ابوعبدالله نيشاپوري .
۳: حافظ مصر ابو محمد عبدالغني ازدي .
۴: ابونعيم احمد بن عبدالله اصفهاني .
۵: حافظ مغرب ابوعمر بن عبدالبر .
۶: ابوبکر احمد بن حسين بيهقي.
۷: ابوبکر احمد بن خطيب بغدادي .

بيهقي په ۳۸۴ م هجري کال کي پيدا سو او په نيشاپور کي د جمادي الاولی په مياشت د ۷۴ کالو په عمر وفات سو .

۱۰۲۳. **محمد بن ابي نصر حميدي** : دغه ابوعبدالله محمد دی، د ابونصر فتوح بن عبدالله زوی دی، د اندلس اوسېدونکی او حميدي دی، د کتاب الجمع بين صحيح البخاري ومسلم مصنف دی، نوموړی امام، ستر او مشهور عالم دی، په خپل هيواد کي يې د حديثو اورېدل کړي دي او په مصر کي د مهندس د شاګردانو څخه دی، په مکه کي د

ابن فراس د شاګردانو اونورو څخه او په شام کې د ابن جميع د شاګردانو اونورو خلګو څخه يې حديث اورېدلي دي، بغداد ته راغلی نو د دارقطني د شاګرانو اونورو کسانو څخه يې حديث واورېدل، تاريخ اهل اندلس هم دده تصنيف دی، امير بن ماکولا وايي: ما دده په ډول بې عيبه، عفيف او متورع انسان نه دی ليدلی، په بغداد کې د ذي الحجې په مياشت په ۴۸۸ م هجري کال کې وفات سو، د ۴۲۰ م هجري کال څخه مخکې پيدا سوی دی.

۱۰۲۴. **خطابي** رحمة الله عليه: دغه امام ابوسليمان احمد د محمد زوی دی، خطابي او بستي دی، په خپله زمانه کې څرګند وو، چې هغه ته په ګوتو سره اشاره کېدل، ستر عالم، د فقه، حديث، ادب په معرفت کې يوازينی وو، دده مشهور تصنيفات او عجيبه مؤلفات دي لکه معالم السنن، غريب الحديث او داسې نور.

۱۰۲۵. **ابومحمد حسين بغوي** رحمة الله عليه: دغه فقيه ابومحمد حسين دی، د مسعود زوی دی، بغوي او شافعي دی، د کتاب مصابيح، شرح السنه او د فقهي کتاب التهذيب او تفسير کتاب معالم التنزيل مصنف دی، دده نور هم ښه تصنيفات سته، د فقه او حديثو امام وو، ډېر متورع، معتمد عليه، حجت او په دين کې صحيح عقيده لرونکي انسان وو، د پنځمي هجري پيړۍ څخه وروسته په ۵۱۶م هجري کال کې وفات سو، په بغوي کې باء مفتوح، غين معجمه مفتوح دی، د خراسان ښار بغشور ته يې نسبت دی، دغه نسبت د قاعدې خلاف دی، ويل کېږي چې ددغه ښار نوم بغ دی.

۱۰۲۶. **رزين بن معاويه** رحمة الله عليه: دغه ابوالحسين رزين د معاويه زوی دی، حافظ حديث او د التجريد في الجمع بين الصحاح مصنف دی، د ۵۲۰ م هجري کال څخه وروسته وفات سو.

۱۰۲۷. **مبارک بن محمد جرزي**: دغه ابوالسادات مبارک د محمد زوی دی، جرزي دی، د ابن اثير په نامه سره مشهور دی، د جامع الاصول، مناقب الاخيار او نهايه مصنف دی، محدث، عالم او د لغت ماهر وو، د سترو امامانو څخه دی، د ډېرو خلګو څخه يې روايت کړی دی، مخکې په جزيره کې وو، بيا په ۵۱۵ م هجري کال کې موصل ته منتقل سو او هلته هستوګن وو، د حج په اراده بغداد ته راغلی بيا موصل ته بېرته ولاړی او هلته د پنجشنبې په ورځ د ذي الحجې په آخري نېټه په ۶۰۶ م هجري کال کې وفات سو.

۱۰۲۸. **ابن جوزي** رحمة الله عليه: دغه ابوالفرح عبدالرحمن دی، د علي بن جوزي زوی دی، حنبلي المذهب او په بغداد کې واعظ وو، دده څو مشهور تصنيفات دي، په ۵۱۰ م هجري کال کې پيدا سو او په ۵۹۷ م هجري کال کې وفات سو.

۱۰۲۹. **امام نووي** رحمۃ اللہ علیہ : نوموړی ابوزکریا محي الدین یحیی او د شرف زوی دی، نووي د خپلي زماني امام، عالم، فاضل، صاحب ورع، فقیه، محدث، مثبت او حجت دی، دده ډېر تصنیفات او عجیبه تالیفات دي، په فقه کي الروضه، په حدیث کي الریاض او الاذکار، په شرح حدیث کي شرح مسلم او ددې څخه ماسوا معرفة علوم الحدیث واللغة په ډول کتابونه دده د تصنیفاتو څخه دي، نوموړي د لویو مشائخو څخه او دده څخه ډېرو خلکو حدیث اورېدلي دي، د شرح مسلم او الاذکار د روایت اجازه یې ټولو مسلمانانو ته ورکړل، دی دد مشق په یو کلي نوي کي هستوګن وو، هلته لوی سو او ټول قرآن یې یاد کړ، په ۶۵۰ م هجري کال د مشق ته راغلی، هغه وخت یې عمر ۱۹ کاله وو، دلته فقیه سو او پرمختګ یې وکړ، دده ژوند ډېر غریبانه وو، یوازي په قوت الایمان باندي یې قناعت کوی، د جذباتو او خواهشاتو څخه جلا وو، په خوف خدا او عبادت کي به بوخت وو، حقه خبره به یې بې بېري بیانول، د شپې به زیات وخت وېښ وو او په علمي کارو کي به بوخت وو، د رجب په میاشت کي په ۶۷۶ م هجري کال وفات سو، په نوي کي دده قبر دی، ۴۵ کاله ژوندی وو، مؤلف رحمۃ اللہ علیہ وایي: دده یادونه د کتاب په آخر کي راغلې ده لکه څرنګه چي دده نوم د حروفو په پای کي دی.

یوه بله خبره کول غواړم، ما چي څه وړاندي کړي دي په هغه کي مي یوازي د باور وړ کتابو باندي باور کړی دی لکه د عبدالبر کتاب استیعاب د ابونعیم اصفهاني حلیة الاولیاء، د ابوالسعادات جزري جامع الاصول او مناقب الاخیار، ابوعبدالله ذهبي او دمشقي کتاب کاشفین، د جمعې مبارکي په ورځ د رجب د میاشتي په شلمه نېټه په ۷۴۰ م هجري کال کي ددغه کتاب د تصنیف، مضامینو جمع کولو او ترتیبولو څخه فارغ سوم.

زه د الله جل جلاله تر ټولو کمزور، د خدای جل جلاله د عفو او د هغه د مغفرت امیدلرونکی بنده خطیب محمد بن عبدالله بن محمد یم، دا هرڅه زما د شیخ او آقا مفسرین، سرتاج محققین، د دین او ملت عزت، پر مسلمانانو باندي د خدای جل جلاله قائم سوی حجت، حسین بن عبدالله بن محمد طیبي په مرسته او اعانت سره پوره سول، ما د مشکوة په ډول دغه کتاب هم د خلکو په وړاندي پیش کړ، هغوی د مشکوة په ډول ددغه کتاب تحسین هم وکړ او ډېر یې خوښ کړ.

تـــمــت بـــالــخـــیــر